# تسهیلات

## پښتو شرح

# مشکواة

تالیف۔ مولانا شاه فیصل فاضل دارالعلوم اسلامیه چارسده

څلورم جلد (٤)

د شلو (۲۰) خصوصیاتو سره چې لس (۱۰) په کښې دا دی

① پېښوري پښتو سره بین القوسین د قندهاري پښتو د ګرانو ټکو اضافه
② د مشکاة د عربي او اردو متداولو ټولو شروحاتو مجموعه
③ په ترجمه کښې بین القوسین د مرقاة المفاتیح داضافي قیوداتو ترجمه
④ دحدیث هرې جملې ته اود هغې ترجمې د آسانتیا دپاره نمبرې ورکول
④ په فقهي اختلافي مسئلو کښې مدلل او آسان مباحث
⑤ د اوږدو احادیثو د متن او ترجمې تقسیم
⑥ د هرحدیث د صحاح سته وغیره څخه تخریج
⑦ د حل اللغات په عنوان سره د مرقاة المفاتیح څخه د مشکلو لغات حل
⑧ دقوله په عنوان سره دحدیث د هرې مشکلې جملې تشریح
⑨ د هرباب په اول کښې دهغې د احادیثو خلاصه
⑩ د کتاب په اول کښې د علوم الحدیث مفیده مقدمه

خورنکي
فیصل کتب خانه محله جنګی پېښور
موبائل ۰۳۱۵-۹۵۹۵۷۱۷

**د کتاب نوم** : تسهیلات شرح مشکواة

**شارح**: مولانا پروفیسر شاه فیصل

فاضل وفاق المدارس، امداد العلوم، جامعه اسلامیه چارسده

**معاون مترجم**:: عبدالکریم صدیقی

**د ملاوید پتې**

- جدید اسلامي کتب خانه خوست
- المصباح کتب خانه کابل
- روغانیوال کتب خانه جلال آباد
- رحیمي کتب خانه خوست
- حرم کتب خانه کابل
- دیلي کتب خانه ټیمر ګره
- تاج کتب خانه صوابي
- مکتبه خواجه عبدالله انصاري غزني
- مکتبه دار الاخلاص کابل
- مکتبه رحمانیه قندهار
- مکتبه رحمانیه کوټه
- الوري کتب خانه قندهار
- نعمت کتب خانه کابل
- مکتبه علمیه اکوړه خټک
- حقانیه کتب خانه ګردیز
- وطن دوست کتب خانه ګردیز
- إقرأ کتب خانه جلال آباد
- مکتبه معروفیه کوټه
- مکتبه عمریه چمن
- مکتبه عباسیه ټیمر ګره
- مکتبه امیر حمزه قندهار

# اجمالی فہرست

.......

# د احاديثو د عنوانانو فهرست

........

# فهرست اختلاف مذاهب

| شمار | مضمون | صفحه |
|---|---|---|
| | د لوئي اختر د قربانئ د جواز په آخري وخت كښې مذاهب | ٢٠٤ |
| | د صلاة الكسوف په حكم كښې مذاهب | ٢١٣ |
| | د صلاة الكسوف د ادا كولو په كيفيت كښې مذاهب | ٢١٣ |
| | په صلاة الكسوف كښې د قراءت په جهراً او سراً كښې مذاهب | ٢١٥ |
| | د سجده شكر په حكم كښې مذاهب | ٢٢٧ |
| | د مړي د كفن د جامو په تعداد كښې مذاهب:- | ٣٧٩ |
| | د محرم د كفن په حكم كښې مذاهب:- | ٣٨١ |
| | په غائبانه جنازه كښې مذاهب:- | ٣٩٣ |
| | په جنازه كښې د سورة فاتحې په لوستلو كښې مذاهب:- | ٣٩٢ |
| | په جمات كښې د جنازې مونځ ادا كولو كښې مذاهب:- | ٣٩٩ |
| | مړده ته د امام د اودريدو په محل كښې مذاهب:- | ٤٠١ |
| | صلاة بعد التدفين كښې مذاهب:- | ٤٠٢ |
| | د شهيد صلاة الجنازې په حكم كښې مذاهب:- | ٤٠٩ |
| | دڅلورو مياشتو څخه وړاندې ساقط شوي بچي باندې د جنازې په مونځ كښې مذاهب:- | ٤١٢ |
| | د جنازې وړاندې يا روسته د تلو په افضليت كښې مذاهب:- | ٤١٤ |
| | د يوځائې څخه بل ځائې د مړي منتقل په حكم كښې مذاهب:- | ٤٤١ |
| | قبر ته د مړي كوزولو په افضله طريقه كښې مذاهب:- | ٤٤٣ |
| | دَتعزيت خوراك په خوړلو كښې مذاهب:- | ٤٨٤ |
| | په دريم صورت كښې مذاهب:- | ٥٤٨ |
| | دماشوم په مال كښې د مال په فرضيت كښې مذاهب:- | ٥٥٠ |
| | په زكات كښې د قيمت په وركولو كښې مذاهب:- | ٥٥٧ |
| | د زرعي پيداوار په مقدار كښې مذاهب:- | ٥٢٠ |
| | د فَرس په دريم قسم كښې په وجوب زكات كښې مذاهب:- | ٥٢١ |
| | په استيناف اول كښې مذاهب:- | ٥٢٢ |
| | د خلطة الشيوع يا الجوار په وجوب زكات كښې مؤثر كيدو كښې مذاهب:- | ٥٢٧ |

........

# [٥٧/٤١]بَابُ صَلَاةِ السَّفَرِ

## دَ سفرد مونځ بیان

**خلاصة الباب:-**

**فيه أحد وعشرون حديثاً مشتملة على تسع مسائل:**

① ثبوت القصر في الصلاة الرباعي: ١، ٢، ۴، ٥، ١٦،١٥،١١،١٠،٩، ١٧، ١٨-

② القصر بالخروج من المصر إلى وقت الرجوع: ١، ۴-

③ جواز القصر وقت الأمن: ٢، ٣-

④ مدة الإقامة: ٥، ١٠-

⑤ حكم أداء السنن في السفر: ۶، ١١، ٢٠، ٢١-

⑥ حكم الجمع بين الصلوتين في السفر: ٧، ١٢-

⑦ جواز صلوة التطوع على الراحلة في السفر: ٨، ١٣، ١۴-

⑧ اتمام الصلاة في السفر : ٩، ١٥، ١۶-

⑨ مقدار مسافة السفر: ١٩-

**د صلاة السفر ثبوت:-**

① وقال الله تعالى ﴿فَأَيْنَمَا تُوَلُّوا فَثَمَّ وَجْهُ اللَّهِ﴾ [بقرة:١١٥]

② ﴿وَإِذَا ضَرَبْتُمْ فِي الْأَرْضِ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَنْ تَقْصُرُوا مِنَ الصَّلَاةِ﴾ [نساء الايه:١٠١]

**سفر د لغوی تحقیق:-** سفر يسفر نه سفرًا وسفورًا دَ سفردپاره روانيدوته وائی دَ لفظ سفرپه ماده کښې دَانکشاف معنی پرته ده چنانچه اسفراسفارًاتفسرتفسيرًا اومسفرة تولوالفاظوکښې کشف وانکشاف اودَوضاحت معنی پرته ده. بهرحال هغه سفرکوم کښې چه څه شرعی احکام متاثرکيږی مثلاً دَ رمضان روژې متاثرکيږی او په مونځونوباندې دَدې داسې اثر پريوځی چه دَڅلورو رکعتومونځ په دوؤ رکعتوکښې بدليږی اودَسنن مؤکده تاکدختميږی اودَ جمع بين الصلوتين مسئله پيداکيږی چه آيا دَ سفردَ وجې نه جمع بين الصلوتين گنجائش شته که نه؟ بهرحال دَدغه شرعی سفر يوڅو مواضع کښې تفصيل تحقيق اودَ فقهاؤ اختلاف دې. هم دا دَ يوڅومباحثو په عنوان سره بيانولې شی.

**اول بحث دَ سفرمسافت:-** دَ څومره فاصلې سفرکولوسره سړې شرعی مسافرجوړيږی اوده ته شرعی آسانتی قصرصلوة اوافطارصوم حاصليږی په دې مسافت کښې دَ فقهاؤ کرامو اختلاف دې.

## د سفر په مقدار کښې مذاهب

① بعضې اهل ظواهر اوغیرمقلدین حضراتو په نیزدَ قصرصلوة دَپاره دَ سفرڅه حد متعین نه دې بلکه مطلق سفردَ قصر دَپاره کافی دې. مودودی صاحب هم تقریبًا هم دا مسلك خپل کړې دې. مګر دَعامو اهل ظواهر په نیزقصرصلوة دَپاره درې میله اندازه باندې دَ سفرکیدل ضروری دی اوهم دغه مقدارموجب قصردې

② جمهورفقهاء فرمائی چه په دومره کمه اندازه باندې سفرسره قصرصلوة جائزنه دې

**داول فریق اول دلیل:-** غالبًا ددوی استدلال دحضرت انس ﷺ ()د روایت نه دې چه ((کان رسول الله ﷺ اذا خرج مسیرة ثلاثة امیال اوثلاثة فراسخ)شعبه شك)یصلی رکعتین))

**د اول فریق د دلیل جواب:-**د دې مطلب دا ن دې چه صرف ددریو میلو په سفر کښې قصر اوکړه بلکه مطلب دا دې چه سفر خو ددریو میلو نه زیات به وو خوددوی ددریو میلو یا دریو فرسخو په فاصله باندې قصر کول مشروع کړی وو.بهرحال په دې باب کښې څه صریح حدیث مبارك مرفوع نشته دې

**داول فریق دویم دلیل:-** اهل ظواهر داؤد ظاهری اوغیرمقلدینومشکاة د باب صلاة المسافر دَ رومبی حدیث دَ ظاهری الفاظونه استدلال کړې دې چه حضوراکرم "صلی القصر بذي الحلیفة رکعتین" ذوالحلیفه کښې دوه رکعته دَقصرمونځ کړې اوذوالحلیفه دَمدینې منورې نه تقریبًا درې میله فاصله باندې ده.

**داول فریق د دویم دلیل جواب:-** په دې حدیث باندې استدلال غلط دې ځکه چه حضورپاك ﷺ دَمدینې نه صرف ذوالحلیفه ته نه تللو بلکه دَ مدینې نه مکې ته تللو چه دَ پنځوسوو میلونه زیات سفردې.اودا خبره مونږ هم منو چې کله یوکس د سفر په مسافت باندې د خپل کلی یا ښارد آبادۍ څخه بهرشي نوهغه به قصر شروع کوی.

**د ددویم فریق دلائل:-** ① دَ قرآن آیت ﴿ أَوْعَلَىٰ سَفَرٍ ﴾ دَ یومعتدبه سفرتقاضاکوی ځکه چه علی دَ استعلاء دَپاره دې لکه چه داسې دَ سفرپه سټ باندې یوشان سوردې.

② عن سالم ان ابن عمرو خرج إلى أرض له بذات النصب فقصر وهي ستة عشر فرسخا (۴۸ میل)(٢)

③ عن علی بن ربیعة الوالبی قال : سألت عبدالله ابن عمر رضی الله عنهما إلی کم تقصر الصلاة؟ فقال أتعرف السویداء قال قلت:لاولکنی قد سمعت بها،قال: هی ثلاث لیال قواصد فإذا خرجنا إلیها قصرنا الصلاة (٣)

---

[1]) سنن ابی داود (ج/ ١ . ص/ ١٧٠ ) باب متی یقصر المسافر)مرتب عفی عنه )-

[2]) مصنف ابن ابی شیبة (ج/ ٢ ، ص/ ٤٤٥ ) فی مسیرة کم یقصر الصلوة

[3]) قال النیموی رواه محمد بن الحسن فی الآثار واسناده صحیح آثار السنن (ج/ ، ص/ ٢١٤ ) باب ما استدل به علی ان مسافة القصر ثلاثة ایام

**دویم بحث:**

**د جمهورو په خپل مینځ کښې د سفر په مقدار کښې مذاهب**

① بیا دَ جمهورو په خپل مینځ کښې لږشان اختلاف دې. امام مالك رحمه الله امام شافعي رحمه الله او امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائی چه دَ ښار آبادی مصرنه وتلونه پس ۴۸ میله مسافت موجب قصردې دې نه کم نه دې او صرف دَ سفراراده هم کافی نه ده بلکه دَ ښار دَ مضافات نه وتل ضروری دی. دَدې حضراتو په نیز په اصل کښې شرعی سفرڅلوربرید یا شپاړس فرسخ مسافت دې یو برید دولس میله وی او یوفرسخ درې میله وی. نودَدوارو اطلاقاتو نتیجه ۴۸ میله راوځی لهذا دَ شرعی سفرمسافت ۴۸ میله دې.اونن صبا په کلو میټروسره حساب کیږی نو ۴۸ (اته څلویښت)میله ۷۶ (شپږ اویا) کلومیټره جوړیږی.

② دَامام ابوحنیفه رحمه الله اصل مسلك درې مراحل دی دَ یواطلاق درې منازل دی دَیواطلاق دادې چه متوسط سفرسره درې ورځې سفرموجب قصرصلوة دې. دَمتوسط سفرمطلب دادې چه دَپیدل سړی چال یادَ اوښ په چال باندې دکال دَ تولونه وړو ورځوکښې سړې دَ سحرنه دَغرمې پورې سفراوکړی دامطلب نه دې چه دَ سحرنه ترماښام پورې سفر اوکړی نو بهرحال یوه ورځ یایومنزل یادَ یوې مرحلې سفرمسافت تقریبًا ۱۶ میل وی نودَنتیجې په اعتبارسره دَامام صاحب قول هم دَ جمهورو طرف ته راګرځی صرف لفظ اختلاف دې اوکه چرې فرق هم وی نودَاحنافو علماؤدَ عوامودَ آسانئی دَپاره دَ جمهورو په قول ۴۸میل باندې یا ۷۸کلومیټرمسافت په سفرباندې اووتلواوځنګه دَخپل کلی یا ښاردَ آبادئی نه بهراووتلو نوبه ده باندې به دَ قصر حکم نافذ شی.

**د دویم فریق دلائل:-**

① جمهورو دَ دې باب دَ فصل ثالث دَحدیث نمبر(۱۳۵۱) نه استدلال کړې دې الفاظ داسی دی: "وعن مالك بلغه ان ابن عباس كان يقصر الصلوة في مثل مايكون بين مكة والطائف وفي مثل مابين مكة وعسفان وفي مثل مابين مكة وجدة قال وذلك اربعة برد". (رواه مالك فی المؤطا)

② دَ جمهورودویم دلیل دَحضرت علی رضي الله عنه حدیث دې کوم چه مسلم شریف کښې دې الفاظ دادی: "جعل النبي صلي الله عليه وسلم ثلاثة ايام ولياليهن للمسافر" هم دَدې روایت نه استدلال په داسې توګه دې چه حضوراکرم دَ مسافردَ حیثیت اوشرعی احکامو دَبدلیدو دَپاره درې ورځې مقرر کړی دی. که چرته دَدریوورځوسفروی نومسح علی الخفین دریو ورځو پورې ده ګنی سفرنه دې اوکله چه دَ دریوورځونه کم سفرنه جوړیږی نومسح دَ دریو ورځوپه ځائی به یوه ورځ اویوه شپه پورې وی کوم چه دَمقیم دَپاره دې.

③ جمهورودَ حضرت ابن عمر، حضرت سویدبن غفله رضي الله عنهما دَ اثرنه هم استدلال کړې دې

الفاظ دادي: "اذاسافرت ثلاثاً فاقصر" (کتاب الآثار لمحمد) دَدي رواياتونه په واضحه توګه ثابتيږي چه موجب قصرصلوة مسافت يومعين محدود اومعدود مسافت دي نه داچه څنګه هم سفروی هغه موجب قصر دي خواه قصير وی اوکه کثير.

**دریم بحث:-**

**د قصر په وجوب او جواز کښې مذاهب**

په سفر کښې دقصر او رباعی مونځونو نصف کيدل په مشروعيت باندې اجماع ده البته دې کښې اختلاف دې چه قصر واجب دې او که جائز؟

① د امام شافعی رحمه الله په نزد قصر رخصت دې اواتمام جائز دې بلکه افضل دې.(1)

② دُ امام مالك رحمه الله اود امام محمد رحمه الله يو يو روايت د دې مطابق دې او د دوی نور روايتونه قصر افضل ګرځوی.

③ د احنافو په نزد قصر عزيمت يعنی واجب دې ، په دې وجې د قصر پريښودل او اتمام ناجائز دې.

**داول فريق اول دليل:-** د امام شافعی رحمة الله عليه استدلال دقران پاك د دې آيت مبارك نه دې چه ﴿وَإِذَا ضَرَبْتُمْ فِي الْأَرْضِ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَنْ تَقْصُرُوا مِنَ الصَّلٰوةِ﴾ (2) دې کښې ﴿ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ﴾ (3) الفاظ دې چه دال په دې دې.چه قصر کولو کښې هيڅ حرج نشته دې.اودا الفاظ د اباحت دپاره استعماليږی او د واجبو دپاره نه.

**د اول فريق د اول دليل څخه جوابونه:-**

① د دې جواب دا دې چه نفی دجناح يو داسې تعبير دې چه په واجبو باندې هم صادق راځی.او دا داسې ده لکه چه دسعی باره کښې فرمائی چه ﴿ فَمَنْ حَجَّ الْبَيْتَ أَوِ اعْتَمَرَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ أَنْ يَطَّوَّفَ بِهِمَا ﴾ او حال دا دې چه سعی بالاتفاق واجب ده.

② په حقيقت کښې دا آيت د قصر فی السفر متعلق نه دې.بلکه د صلوٰی خوف سره متعلق دې او د دې باره کښې نازل شوې دې.ګويا دې آيت مبارك کښې قصر نه مراد قصر فی الکيفيت دې ، قصر فی الکميت نه دې.اودهغې دليل دا دې چه دې کښې مخکښې تير شو چه ﴿ وان خفتم ان يفتنکم الذين کفروا ﴾ قيد لګولې دې.حال دا دې چه قصر فی السفر دچا په نزد هم حالت د خوف سره مشروط نه دې ، په دې صورت کښې

---

(1) فی مذهب الشافعی تفصيل ذا القصر افضل فی مواضع والاتمام فی مواضع انظر شرح المهذب (ج/ ٤ ، ص/ ٣٣٥) كذافی معارف السنن (ج/ ٤ ، ص/ ٤٥٤) مرتب عفی عنه )-

(2) سوره نساء جزء نمبر ٥ رقم الايه نمبر ١٠١ مرتب عفی عنه )-

(3) سورهٔ بقره جزءنمبر ٢ رقم الايه نمبر١٥٨، مرتب عفی عنه )-

به البته ﴿ليس عليكم جناح﴾ په خپل حقيقي حالت محمول وى او دې نه به هم دا اباحت معنى مراد وى.حافظ ابن جرير رحمه الله او حافظ ابن كثير رحمه الله هم دا تفسير كړې دې. او دحضرت مجاهد رحمه الله او دبعضو نورو تابعينو همدا تفسير نقل شوې دې.په احنافو كښې صاحب د بدائع هم دې ته ترجيح وركړې ده.([1])

**اشكال:-** البته په دې تفسير كښې مسلم ([2]) ديو حديث مبارك نه اشكال كيديشى چه كوم د حضرت يعلى بن اميه نه مروى دې.((قال قلت لعمر بن الخطاب ﴿فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَن تَقْصُرُوا مِنَ الصَّلَوٰةِ﴾ فقد امن الناس فقال عجبت مما عجبت منه فسألت عن ذالك فقال صدقة تصدق الله بها عليكم فاقبلوا صدقته)) د دې نه په ظاهره معلوميږى چه حضور نبى كريم ﷺ هم دا آيت دصلوة السفر سره متعلق ګرځولې دې.د صلوة خوف سره نه.

**د اشكال جواب:-** د دې جواب دا دې چه دقصر صلوهٔ اجازت د دې آيت دنزول نه مخكښې راغلې وو.([3])

بيا چه كله دا آيت مبارك نازل شو نو دحضرت عمر فاروق رضی الله عنه په ذهن داشبه پيدا شوه چه شايد دې آيت مبارك دقصر صلوة عمومى اجازت منسوخ كړو. او دصلوة خوف سره ئې مشروع كړه.په دې بناء دوى د حضور نبى كريم ﷺ نه سوال اوكړو.حضور نبى كريم ﷺ په جواب كښې اوفرمائيل چه ((صدقة تصدق الله بها عليكم فاقبلوا صدقته)) چه دهغې حاصل دا دې چه قصر سفر دالله ﷻ د طرفنه په تاسو يو صدقه ده.چه كومه اوس هم ده او دې آيت هغه منسوخ كړې نه ده ځكه چه دا آيت مبارك دقصر سفر باره كښې نه دې.بلكه د صلوة خوف باره كښې دې.

② په سنن نسائى ([4]) كښې د حضرت عائشه رضی الله عنها يو روايت د دوى دليل دې چه ((انها اعتمر مع رسول الله ﷺ من المدينة الى مكة قالت يارسول الله ﷺ! بأبى انت وامى قصرت واتممت وافطرت وصمت قال احسنت ياعائشه وماعاب على)) دې نه معلوم شوچه په سفر كښې اتمام جائز بلكه بهتر دې.

**د اول فريق د دويم دليل ځخه جوابونه:-**

① ړومبئ خو دې روايت كښې علاء بن زهيرمتكلم فيه دې.

② حديث مبارك مضطرب دې كما قال الماردينى ([5])

[1]) تفصيل دپاره معارف السنن (ج/ ٤ ، ص/ ٤٦١ ) مرتب عفى عنه )-
[2]) (ج/ ١ ، ص/ ٢٤١ ) كتاب الصلوه المسافرين وقصرها)مرتب عفى عنه )-
[3]) معارف السنن (ج/ ٤ ، ص/ ٤٦١ تا ٤٦٣ )مرتب عفى عنه )-
[4]) كتاب التقصير فى السفر باب المقام الذى يقصر بمثله الصلوة (ج/ ١ ، ص/ ٢١٣ ) وسنن كبرى بيهقى (ج/ ٣ ، ص/ ١٤٢ ) باب من ترک القصر فى السفر غير رغبة عن السنة)-
[5]) الجوهر النقى فى ذيل السنن الكبرى للبيهقى (ج/ ٣ ، ص/ ١٤٢) باب من ترک القصر فى السفر غير رغبة عن السنة)-

③حافظ زيلعی د دې حديث مبارك متن منكر ګرځولې دې.او د صحيحينو ()په حواله سره ئې د حضرت انس ﷺ روايت نقل كړې دې.((حج النبی ﷺ حجة واحدة واعتمر اربع كلهن فی ذی القعدة الا التی مع حجته))د دې نه معلوميږی چه حضور نبی كريم ﷺ يو عمره هم په رمضان كښې نه ده كړې.

**د اول فريق د طرفه د دې اعتراض جواب:-** بعضو شوافعو د دې دا توجيه كړې ده چه دا دفتح مكه واقعه كيدیشی څكه چه فتح مكه په رمضان كښې شوې وه.([2])

**د جواب ضعف:-** خودا توجيه څكه صحيح نه كيديشی چه حضرت عائشه ﷺ د حضور نبی كريم ﷺ سره نه وو.([3]) بلكه په آزواجو مطهراتو كښې حضرت ام سلمه ﷺ او حضرت زينب ﷺ د حضور نبی كريم ﷺ سره وې.([4]) پ دې وجې دا روايت معلول دې.او په تاريخی اعتبار سره د حضور نبی كريم ﷺ د په يو سفر هم نه منطبق كيږی. نود دې نه استدلال كول صحيح نه دی.

**تسليمی جواب:-** اوكه بالفرض دا حديث مبارك صحيح اوګرځولې شی او دا اومنلې شی چه د فتح مكه په وخت حضرت عائشه ﷺ ورسره وه.نو دې جواب دا دې چه حضور نبی كريم ﷺ په دې سفر كښې دپنځلسو ورځو يا د دې نه زيات په مكه مكرمه كښې مقيم وو.([5]) دغه وخت حضور نبی كريم ﷺ دا خيال كړې وو چه حضور نبی كريم ﷺ به يو طويل مدت په مكه مكرمه كښې قيام نيت نه وو كړې.([6])

خوممكن ده چه حضرت عائشه صديقه ﷺ داخيال كړې وی چه حضور نبی كريم ﷺ به يو طويل مدت په مكه مكرمه كښې قيام كوی په دې بناء دوی په اتمام عمل اوكړو.او روژې ئې ساتلې وې.او حضور نبی كريم ﷺ په دې حيثيت سره دحضرت عائشه ﷺ تحسين كړې وی.

④ په دار قطنی ([7]) د كښې د حضرت عائشه ﷺ ديوبل روايت نه دې چه ((ان النبی ﷺ كان يقصر فی السفر ويتم ويفطر ويصوم)) امام دار قطنی ﷺ د دې

---

[1]) صحيح بخاری (ج/۱ ، ص/ ۲۳۸) ابواب العمرة باب كم عتمر رسول الله ﷺ و صحيح مسلم (ج/ ۱ ، ص/ ۴۰۹ ) كتاب الحج بيان عدد عمر النبی ﷺ وزما نهن . شيخينو دا روايت د الفاظو په فرق سره ذكر كړی دی مرتب عفی عنه )-

[2]) لكه چه دحضرت ابن عباس ﷺ نه مروی دی چه (( ان رسول الله ﷺ غزا غزوة الفتح فی رمضان صحيح بخاری (ج/ ۲ ، ص/ ۶۱۲ ) كتاب المغازی باب غزوة الفتح فی رمضان مرتب عفی عنه )-

[3]) (ج/ ۳ ، ص/ ۳۷۴ ) قبيل باب الصلوة فی ا لكعبة مرتب عفی عنه )-

[4]) معارف السنن (ج/ ۴ ، ص/ ۴۶۰ ) بحواله المواهب علامه كاندهلوی ﷺ سيرت المصطفی ﷺ (ج/ ۲ ، ص/ ۱۳ ) غزوة الفتح الاعظم مدينة منوره)-

[5]) اقامة خمسة عشر او سبعة عشر اوثمانية يوما علی اختلاف الروايات كذا فی المعارف (ج/ ۴ ، ص/ ۴۶۰ )مرتب عفی عنه )-

[6]) لانه كان يريد ان يخرج الی حنين مرتب عفی عنه )-

[7]) سنن دار قطنی (ج/ ۲ ، ص/ ۴۴ ) كتاب الصيام باب القبلة للصائم مرتب عفی عنه )-

حدیث مبارك سند صحیح ګرځولې دې.

**د اول فریق د دریم دلیل ځخه جواب:-** د حدیث مبارك مطلب دا کیدیشی چه حضور نبی کریم ﷺ په وړوکی سفر کښې چه کوم ددرې مراحلو نه کم وی اتمام کولو او د درې مراحلو نه زیات سفر کښې به ئې قصر کولو.

**مشترکه جواب:-** دحضرت عائشه رضی الله عنها د پورته ذکر شوی روایتونو نه یومشترکه جواب دا دې چه حضرت عائشه رضی الله عنها په سفر حج کښې اتمام کولو.چه د حضرت عروه رضی الله عنه نه سوال اوکړو چه (١) (( ما بال عائشه رضی الله عنها تتم ؟ قال تاولت ماتاول عثمان )) یعنی چه په کوم تاویل سره حضرت عثمان رضی الله عنه په مکه مکرمه کښې اتمام کولو ددغه رنګ تاویل په بناء باندې حضرت عائشه رضی الله عنها هم اتمام کوی.اوس که د حضرت عائشه رضی الله عنها سره په جواز داتمام باندې څه حدیث مرفوع وی نو حضرت عروة به دانه وئیل چه (( تاولت ما تاول عثمان ، ثم ان التشبیه فی نفس التاویل لا فی اتحاد تاویلها کما فی المعارف )).بلکه د دې حدیث مبارك حواله به ئې ورکوله.دحضرت عروة د قول نه ظاهره ده چه دحضرت عائشه رضی الله عنها سره په دې باره کښې هیڅ مرفوع حدیث مبارك نه وو(٢).بلکه دا ددوی خپل اجتهاد وو. لکه څنګه چې حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه په حقیقت کښې د حضرت عائشه رضی الله عنها په نزد دقصر مدار په وجود دمشقت باندې دې او دا ددوی اجتهاد دې ، لکه چه دحضرت عروه نه دحضرت عائشه رضی الله عنها باره کښې روایت دې چه (( انها کانت تصلی فی السفراربعا ، فقلت لها لوصلیت رکعتین فقالت یا ابن اختی انه لایشق علی (٣)په دې وجې پورته ذکر شوی دواړه احادیث چه کوم حضرت عائشه رضی الله عنها ته منسوب دی یا خو صحیح نه دی یا د دې څه بل مطلب دې.علامه ابن تیمیه رحمه الله خود دې په جواب کښې وضاحت سره دا وئیلی دی چه (( هو کذب علی رسول الله ﷺ.(٤)

**داول فریق څلورم دلیل:-** دحضرت عثمان رضی الله عنه عمل دلیل دې چه هغوی به مکه مکرمه کښې اتمام کولو.(٥)

**د اول فریق د څلورم دلیل ځخه جوابونه:-**

① حضرت عثمان رضی الله عنه په مکه مکرمه کښې کور جوړ کړې وو او ددوی اجتهاد داوو چه

---

(١) صحیح البخاری (ج/ ١ ، ص/ ١٤٨ ) ابواب التقصیر الصلوة باب یقصر اذا خرج من موضعه . .)-

(٢) کما فی التلخیص الخبیر (ج/ ٢ ، ص/ ٤٤ ) رقم/٦٠٣ کتاب الصلوة المسافرین. )-

(٣) بیهقی (ج/ ٣ ، ص/ ١٤٣ ) باب من ترك القصر فی السفر غیر رغبة عن السنة کذا فی الفتح الباری (ج/ ٢ ، ص/ ٤٧١ ) باب یقصر اذا خرج مو موضعه

(٤) کذا فی معارف البنوری رحمه الله (ج/٤ ، ص/ ٤٥٩) مرتب عفی عنه )-

(٥) عن عبدالرحمن بن یزید قال صلی عثمان بمنی اربعا ، لیکن عبدالرحمن بن یزید فرمائی چه (( حتی بلغ ذالک عبدالله فقال لقد صلیت مع رسول الله رکعتین سنن نسائی (ج/ ١ ، ص/ ٢١٢ ) کتاب تقصیر الصلوة فی السفر باب الصلوة بمنی .)-

کوم ښارکښې دچا کور وی نو په هغه ښار کښې اتمام واجب دې.
④ بعضو حضراتو فرمائیلی دی چه دحضرت عثمان ﷺ د اتمام وجې دا وه چه هلته دحج په موقع د اعرابو اجتماع کیدله.اوکه دوی هغه ځائې کښې قصر کولې نو د دې خبرې خطره وه چه اعرابو به دا خیال کولو چه ټول مونځونه دوه رکعته کوی.په دې وجې دوی ﷺ دهغوی دتعلیم په خاطر داقامت نیت اوکړو.او اتمام ئې مناسب خیال کړو.([1])

**د دویم فریق دلائل:-**

① په صحیحینو([2])کښې د حضرت عائشه ﷺ روایت دې فرمائی چه (( الصلوة اول ما فرضت رکعتان فاقرت صلوة السفر واتمت صلوةالحضر للبخاری )) اود مسلم په روایت کښې ((وزید فی صلوة الحضر )) الفاظ مروی دی.
دې نه معلوم شوچه سفر کښې دوه رکعته د تخفیف په بناء نه دی بلکه په خپله اصلی فریضه پاتې ده ، دې نه دا عزیمت دې نه رخصت.
② سنن نسائی ([3])کښې د حضرت عمر فاروق ﷺ نه مروی دی چه (( صلوة الجمعة رکعتان و الفطر رکعتان والنحر رکعتان والسفر رکعتان تمام غیر قصر علی لسان النبی ﷺ )).
③ په نسائی ([4])کښې د حضرت عبدالله ابن عباس ﷺ نه مروی دی چه (( قال ان الله عزوجل فرض الصلوة علی لسان نبیکم ﷺ فی الحضر اربعا وفی السفر رکعتین الخ )).
④ دحضرت عمرفاروق ﷺ هغه حدیث مبارك مخکښې تیر شوي دې چه په هغې کښې حضور نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ([5]) (( صدقة تصدق الله بها علیکم فاقبلوا صدقته )).
⑤ دمورق روایت دې فرمائی چه (( سالت ابن عمر ﷺعن الصلوة فی السفر فقال رکعتین رکعتین من خالف السنة کفر )).([6])
⑥ دجهوروصحابه کرام ﷺ مسلك هم داحنافو مطابق دې.والله اعلم.

---

[1] ) فتح الباری (ج/ ٢ ، ص/ ٤٧١ ))-
[2] ) بخاری (ج/ ١ ، ص/ ١٤٨ ) ابواب تقصیر الصلوة باب اذا خرج من موضعه صحیح مسلم (ج/ ١ ، ص/ ٢٤١ ) کتاب الصلوة المسافرین وقصرها ،)-
[3] ) (ج/ ١ ، ص/ ٢١١) باب صلوة السفر.. مرتب عفی عنه )-
[4] )(ج/ ١ ، ص/ ٢١٢) باب صلوة السفر.. مرتب عفی عنه )-
[5] ) صحیح مسلم (ج/ ١ ، ص/ ٢٤١ ) کتاب صلوة المسافرین وقصرها مرتب عفی عنه )-
[6] ) راوه الطبرانی فی الکبیر ورجاله الصحیح مجمع الزوائد (ج/ ٢ ، ص/ ١٥٤ ، ١٥٥) باب صلوة المسافر.

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## [١٣٢٣]د نبي ﷺ د قصر مونځ

١٣٢٣-(١)[١] ١ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ٢ «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى الظُّهْرَ بِالْمَدِينَةِ أَرْبَعًا، ٣ وَصَلَّى الْعَصْرَ بِذِي الْحُلَيْفَةِ رَكْعَتَيْنِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ حضرت انس رضی الله عنه فرمايي ٢ چې رسول الله ﷺ په مدينه کې د ماسپښين مونځ څلور ركعاته وكړو ٣ او په ذي الحليفه كې يې د مازيګر مونځ دوه ركعاته وكړو. (بخاري، مسلم)

**تسهيلات:- قوله: بِالْمَدِينَةِ أَرْبَعًا:**

**د غيرمقلدينو غلط استدلال:-** اول خودلې شوی دی چه رسول الله ﷺ په دې سفركښې نه يوازې دَ ذو الحليفه پورې بلكه دَمكې په سفرباندې روان وو. لهذا غيرمقلدين دَدې نه استدلال نه شي كولې چه دَ دريو ميلو په فاصله باندې سفركښې قصر كيږي.

**د ذوالحليفه او مدينې په منځ كښې فاصله:-** ذوالحليفه دَ مدينې منورې نه بهر ده لهذا دَ جمهورو هم دغه مسلك دې چه كله دَښار يا كلي دَ حدود نه سرې اوځي او ٤٨ميل يعنی ٧٨كلوميټر په نيت باندې ځي نوهغه شرعي مسافر دې. تركومې چه دكلي دَ حدود نه وتلې نه دې صرف دَ سفر په اراده او نيت سره سړې مسافر نه جوړيږي او نه په هغه باندې دَ مسافر احكام نافذ كيږي.

## [١٣٢٤]په منى اوعرفات كښې د مونځ قصر

١٣٢٤-(٢)[٢] ١ وَعَنْ حَارِثَةَ بْنِ وَهْبٍ الْخُزَاعِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: ٢ «صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَحْنُ أَكْثَرُ مَا كُنَّا قَطُّ ٣ وَآمَنُهُ بِمِنًى، رَكْعَتَيْنِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ حارثه ابن وهب خزاعي رضی الله عنه فرمايي ٢ چې رسول الله ﷺ مونږ ته په منى كښې دوه ركعاته مونځ راكړو او په هغه موقع مونږ په دومره تعداد كې وو چې د هغه څخه مخكې هيڅ كله نه وو ٣ او ډيرد امن په حالت كې وو. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:-** ① قَطُّ: داسم ظرف صيغه ده، راځي دپاره د تاكيد دنفی په زمانه ماضی كښې، معنى ئې ده هيڅ كله هم، ② آمَنُهُ: په امن كښې،

---

[1] ) اخرجه البخاری كتاب الحج/باب من بات بذی الحليفة حتی أصبح (رقم-١٥٤٧) ومسلم كتاب الصلاة/باب صلاة المسافرين وقصرها (رقم-١١ - (٦٩٠) وابوداود كتاب الصلاة،باب متی يقصر المسافر؟ (رقم-١٢٠٢) والترمذی كتاب السفر/باب التقصير فی السفر (رقم-٥٤٦) والنسائی كتاب الصلاة/باب عدد صلاة الظهر فی الحضر (٤٦٩-٤٦٩)

[2] ) اخرجه البخاری فی كتاب الحج/باب الصلاة بمنى (رقم-١٦٥٦) ومسلم فی كتاب الصلاة/باب قصر الصلاة بمنى (رقم-٢٠ - (٦٩٦))

**تسهیلات:- قوله: وَنَحْنُ أَكْثَرُمَا كُنَّا:**

**د مذکوره جملې ترکیب:**-دا جمله حالیه اوما مصدریه دې. شیخ عبدالحق رحمه الله دَدې جملې په ترکیب کښې ډیر څه لیکلی دی او پورته چه کوم تقدیری عبارت راویستلې شوې دې دا دَټولونه آسان صورت دې. مطلب دا چه حضوراکرم ﷺ په منٰی کښې قصر مونځ په داسې حالت کښې ورکړو چه مونږ په هغه زمانه کښې دَ ټولو نه په زیات امن کښې وو اودَ ټولو نه په زیات شمیرکښې هم وو. په دې حدیث کښې صحابی رضی الله عنه دا خودل غواړی چه دَ قصر دَپاره دکافرانو حمله یا ویره څه شرط نه دې بلکه دَ امن په حالت کښې هم په سفرکښې قصر کولې شی.

**په منی کښې د نبی صلی الله علیه وسلم د قصرپه سبب کښې مذاهب**

حضورپاك ﷺ چې په منٰی کښې کوم دوه رکعته کړی وو . ددې په علت کښې د فقهاؤ دوه اختلاف دې

① امام مالك رحمه الله فرمائی چه دا قصرالحج یعنی دَ حج په ورځوکښې عرفات مزدلفه اومنٰی کښې چونکه ډیره زیاته ګڼره وی په دې وجه دَ آسانتیا په وجه په دې ځایونوکښې په څلور رکعتیز مونځ کښې قصر کولې شی. بل دَ جمعې مونځ په دې ځایونوکښې نشته دې اودَ لوئی اختر مونځ هم نشته دې او په عرفات او مزدلفه کښې خو به جمع بین الصلاتین باندې عمل کیږی دا ټول دَ آسانتیٰ پیدا کولودَ وجې نه دی.

② جمهور علماء فرمائی چه دا قصرالحج نه دې بلکه قصر مونځ دَ سفردَ وجې وو لهذا کوم سړې چه مسافر وی هغوی دې په دغه ځایونو باندې په قصر سفرباندې عمل کوی لیکن چه کوم سړې مقیم وی هغه به قصر نه کوی.

**د احنافو رائې:**-په تسهیلات شرح مشکاة کښې دی چې په عرفات کښې بین الصلوتین کښې هم دا اصول مخې ته ساتلوسره مقیم سړې شریکیدې نه شی څکه چه دَمقیم دَپاره قصر جائز نه دې اودَ جمع بین الصلوتین دَپاره شرط دادې چه سړې په دغه عام اجتماع دَ امام په اجتماعی مونځ کښې شریك شی او جمع بین الصلوتین اداکړی لهذا یوحنفی ځان له په خپله یواځې باندې جمع بین الصلوتین هم نه شی کولې. دا دَ امام صاحب مسلك دې. دَ صاحبینو په نیز جماعت او اجتماع شرط نه ده ځان له هم جمع بین الصلوتین جائز دی سره دَدې چه ړومبې قول راجح دې.

**تنبیه:**-دَاحنافودَ فقهاؤ په کتابونومثلاً شامی کښې احنافو ته مشوره ورکړې شوې ده که څوك مسافر نه وی نوخپل مونځ دې نه خرابوی اودَ قصر کوشش دې نه کوی بلکه ځان له دې کامل اومکمل مونځ اداکړی. دَ بحرالرائق په هامش باندې حاشیه شامی ابن عابدین ده په هغې کښې هم دغه شان لیکلی دی. (بحر ج٢ص٣٣٧)

**په سعودی کښې معمول به مسلک:**-نن صبا په عرفات اومنی کښې سعودی علماء قصر کوی چه دَامام مالك رحمه الله نه علاوه دَ ټولو مسالکو دپاره دَ پریشانئی سبب دې کله کله دَ سعودی حکومت دَ عرفات دَمونځ دَپاره داسې امام راولی چه پخپله مسافر وی دې دَپاره چه قصر مونځ صحیح شی. عموماً نن صبا هم په دې باندې عمل کیږی چه امام مسافر وی.

**دامام مالك په مذهب فتوی ورکول:**-دَ احنافو څه علماؤ دا هم لیکلی دی که چرې په دې مسئله کښې دَ امام مالك په مسلك باندې عمل اوکړې شی نودا عمل هم جائز دې څکه چه ځان له مونځ کولو کښې لوئی حرج دې او "الحرج مدفوع فی الشرع" یوه قاعده ده. او یادې دا اوکړی چه په دې مسئله کښې دې هم دَ امام مالك رحمه الله مسلك خپل کړې شی او په دې باندې دې فتوی ورکړې شی او اوودې وئیلې شی چه دلته قصر سفر نه دې بلکه قصر الحج دې. بهرحال په دې حدیث کښې صحابی دا خودل غواړی چه دَ قصر مونځ دَپاره دا شرط نه دې چه دکافرانو ویره دې وی بغیرد ویرې دَ امن په حالت کښې هم چه کله سفر وی نوقصر جائز دې. په آیت کښې دَ "ان خفتم" قید اتفاقی دې. چنانچه په راتلونکی روایت کښې دَدې تصریح موجود ده.

**[۱۲۳۵] د قصر په آیت کښې د خوف قید او د هغې وضاحت**

١٢٣٥-(١)[٣] وَعَنْ يَعْلَى بْنِ أُمَيَّةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قُلْتُ لِعُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، [٢] إِنَّمَا قَالَ اللَّهُ تَعَالَى: ﴿أَنْ تَقْصُرُوا مِنَ الصَّلَاةِ [٣] إِنْ خِفْتُمْ أَنْ يَفْتِنَكُمُ الَّذِينَ كَفَرُوا﴾ [النساء:١٠١] [٤] فَقَدْ أَمِنَ النَّاسُ، [٥] قَالَ عُمَرُ: عَجِبْتُ مِمَّا عَجِبْتَ مِنْهُ، [٦] فَسَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى الله عليه وسلم [٧] فَقَالَ: "«صَدَقَةٌ تَصَدَّقَ اللَّهُ بِهَا عَلَيْكُمْ، [٨] فَاقْبَلُوا صَدَقَتَهُ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] یعلی ابن امیه رضی الله عنه فرمایي چې ما امیر المؤمنین حضرت عمر فاروق رضی الله عنه ته عرض وکړو [٢] چې د الله جل شانه ارشاد دي چې کم مونځ کوئ (یعني قصر کوئ) [٣] که تاسو ته دا ویره وي چې کافر به تاسو ته تکلیف ورسوي [٤] (نو) اوس هر کله چې خلق په امن کې دي او د کافرانو څخه خوف نشته نو د قصر څه ضرورت دي؟ [٥] نو حضرت عمر رضی الله عنه وفرمايل په څه چې تا ته تعجب دي په دي ماته هم تعجب راغلي وو [٦] ما د رسول الله ﷺ څخه په دي باره کې پوښتنه وکړه [٧] نو رسول الله ﷺ وفرمايل چې په (قصر په لمانځه کې) د الله یو احسان دي چې په تاسو یي کړي دي [٨] نو تاسو د هغه صدقه (یعني احسان) قبول کړئ. (مسلم)

[١] اخرجه مسلم فی کتاب صلاة المسافرين وقصرها/باب صلاة المسافرين وقصرها (رقم) ٤ - (٦٨٦) وابوداود كتاب الصلاة،باب صلاة المسافر (رقم-١١٩٩) والترمذی کتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب: ومن سورة النساء (رقم-٣٠٣٤) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب تقصير الصلاة فی السفر (رقم-١٠٦٥)

**تسهیلات:- قوله:** إِنْ خِفْتُمْ أَنْ يَفْتِنَكُمْ:

**د قصر د حکم اطلاق:-** یعنی دَقصرحکم دکافرانودَ ویرې اودَهغوی دَ حملو او فتنوسره تړلې نه دې بلکه دا یوه آسانی ده چه الله تعالی په مسلمانانوباندې په حالت دَ سفرکښې احسان اوانعام کړې دې. دَدې حدیث نه یوه خبره دامعلومه شوه چه قصر مونځ دَ کافرانو په ویره باندې موقوف نه دې بلکه دا یوه آسانی ده چه دَالله تعالی دَ طرف نه مسلمانانو مسافرانوته ورکړې شوې ده. دویمه خبره دَدې حدیث نه دامعلومه شوه چه قصر فی السفر دَالله تعالی انعام اواحسان دې په بندیګانوباندې دَدې قبلول واجب دی لهذا قصر عزیمت او رخصت اسقاط دې رخصت ترفیه اختیاریه نه دې اوهم دغه دَاحنافو مسلك دې.

**[١٣٣٦]دَاقامت موده**

١٣٣٦-()[٣][١] وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ:[٢] «خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى مِنَ الْمَدِينَةِ إِلَى مَكَّةَ،[٣] فَكَانَ يُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ رَكْعَتَيْنِ، حَتَّى رَجَعْنَا إِلَى الْمَدِينَةِ،[٤] قِيلَ لَهُ: أَقَمْتُمْ بِمَكَّةَ شَيْئًا؟ [٥] قَالَ: "أَقَمْنَا بِهَا عَشْرًا»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**[١] انس رضی الله عنه فرمایي[٢] چې د رسول الله ﷺ سره مونږ د حجة الوداع په موقع د مدینې څخه مکې ته لاړو[٣] او حضور ﷺ (څلور رکعاته لمونځ) دوه دوه رکعاته وکړل تر دې چې مونږ مدینې ته واپس راغلو[٤] د حضرت انس رضی الله عنه څخه پوښتنه وشوه چې آیا تاسو خلق په مکه کې څه ورځې پاتې شوې وئ ؟[٥] انس رضی الله عنه وفرمایل (هو) مونږ خلق په مکه کې لس ورځې پاتې شوې وو. (بخاري، مسلم)

**تسهیلات:-**

**قوله:** "أَقَمْنَا بِهَا عَشْرًا":

**دسفر باطل کیدو دوه صورتونه:-**

① دَ شرعی سفردَ باطل کیدو یوصورت دادې چه سړې دَ سفرنه فارغ شی منزل مقصود وطن اصلی ته اورسی

② څوك سړې یوځائی کښې دَ اقامت نیت اوکړی. نواوس به څومره ورځې دَ اقامت نیت کولوسره شرعی سفر او قصر باطل کیږی. په دې کښې دَ فقهاؤډیر زیات اقوال دی. مګر مشهور اقوال څلور دی.

---

[١] اخرجه البخاری فی کتاب الجمعة/باب ما جاء فی التقصیر وکم یقیم حتی یقصر (رقم-١٠٨١) وابوداود فی کتاب الصلاة،باب التطوع فی السفر (رقم-١٢٢٣) والترمذی کتاب السفر/باب ما جاء فی کم تقصر الصلاة (رقم-٥٤٨) والنسائي کتاب تقصیر الصلاة فی السفر/باب المقام الذی یقصر بمثله الصلاة (رقم-١٤٥٢)

**په دوېم صورت کښې مذاهب**

① امام مالک رحمه الله او امام شافعي رحمه الله په نيزباندې څلور ورځې اقامت په نيت سره شرعی سفرباطل کيږی البته دَ تلو او راتلو ورځ دې نه مستثنی ده.
② امام احمدبن حنبل رحمه الله او داؤد ظاهری په نيزدَ څلورو ورځونه زيات اقامت نيت سره قصرباطل کيږی. يعنی دَ ٢١ مونځونوپه اندازه دَ اقامت په نيت سره قصر باطل کيږی.
③ دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما په نيز ١٩ ورځې يا دَدې نه زيات دَ اقامت نيت سره قصر باطل کيږی.
④ دَ امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز ١٥ورځې يا دې نه زيات دَاقامت نيت سره شرعی سفراوقصر باطل کيږی.
**داول فريق دليل:-** دې ټولو حضراتوسره څه مرفوع منصوص حکم نشته دې البته دَ صحابه کرامو دَ آثار نه ټولو استدلال کړې دې دکوم په ضمن کښې چه اجتهاد هم شامل دې. داول فريق دليل دا دې چه حضوراکرم صلی الله علیه وسلم په مکه مکرمه کښې درې ورځې حصارشوې وو
اوقصرئی کولو. لهذا دَدې نه زيات حصاريدوسره قصر باطل کيږی.
**داول فريق د دليل څخه جواب:-** دَ زيربحث حضرت انس رضي الله عنه د اول فريق دليل بالکل ختميږی څکه چه دَ دې حديث مطابق دَ لسو ورځو په قيام کښې صحابه کرامو قصر کولو نودَ څلورو ورځو يا دريو ورځو دَ اقامت څه حيثيت باقی پاتې کيدې شی؟
**د دويم فريق دليل:-** حضوراکرم صلی الله علیه وسلم دَ حجة الوداع په موقع مکه مکرمه کښې څلور ورځې حصارشوې اوقصرئی کولو. دې نه معلومه شوه دَدې نه په څه زيات سره قصرباطل کيږی.
**د دويم فريق د دليل څخه جواب:-** دَ زيربحث حضرت انس رضي الله عنه د دويم فريق دليل بالکل ختميږی څکه چه دَ دې حديث مطابق دَ لسو ورځو په قيام کښې صحابه کرامو قصر کولو نودَ څلورو ورځو يا دريو ورځو دَ اقامت څه حيثيت باقی پاتې کيدې شی؟
**د دريم فريق دليل:-** حضر ت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائی چه حضوراکرم صلی الله علیه وسلم په يوسفرکښې چرته تشريف يوړو او ١٩ورځو پورې قيام اوکړو مګر هغوی صلی الله علیه وسلم قصرکولو لکه چه راتلونکې حديث نمبر(١٣٢٧)کښې چه راځی. لهذا دَ١٩ورځونه زيات نيت سره شرعی سفرباطل کيږی.
**د دريم فريق د دليل څخه جوابونه:-**
①چه کله سړې نن صبا کولو سره دَ تلو اراده لری نوهلته ١٩ ورځې خوڅه چه ١٩مياشتو پورې سړې مسافر پاتې کيدې شی. حضرت انس رضي الله عنه فرمائی صحابه کرامو په رامهرمز کښې ٩ مياشتو پورې قصر کولو.

③ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما شپږو میاشتو پورې په آذر بائیجان کښې مقیم وو لیکن قصرئی کولو څکه چه نن صبا کولوسره ئی دومره موده تیره شوه.

④ دغه شان حضور پاك ﷺ هم په یوسفر کښې هم دغه نیت اوکړو چه صبا به څو لیکن په جهادی معاملاتو کښې به بیا حصارشو دغه شان ۱۹ ورځې تیرې شوې. دا فعل دَ اقامت دَ مودې دَپاره دلیل نه شی جوړیدې.

**د څلورم فریق دلائل:-**

① دَ حضرت ابن عمر رضي الله عنهما څخه یواثر منقول دې چه دَ هغه الفاظ دادی: "وعن مجاهد أن ابن عمر كان إذا جمع علي إقامة خمسة عشر يوماً أتم الصلوة" (رواه ابن ابي شيبه بسند صحيح)

② دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما اثردې چه په طحاوی شریف کښې داسې ذکردې. "اذا قدمت بلدة وانت مسافر وفي نفسك ان تقيم خمسة عشر يوما فاكمل الصلوة بها وان كنت لاتدري متى تظعن فاقصرها" (طحاوي)

**ترجمه:** [١] یعنی چه ته کله یوښار ته مسافرکیدو سره راشې اوهلته دَ ۱۵ ورځو دَ قیام اراده وی نوته هلته پوره مونځ کوه او چه تاته معلومه نه وی چه کله به په سفر روانیدل وی نوبیا قصر کوه.

**[۱۳۳۷] دابن عباس رضي الله عنه په نیز موده داقامت**

١٣٣٧-(١)[٥] [١] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: [٢] سَافَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَفَرًا [٣] فَأَقَامَ تِسْعَةَ عَشَرَ يَوْمًا يُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ رَكْعَتَيْنِ، [٤] قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: فَنَحْنُ نُصَلِّي فِيمَا بَيْنَنَا وَبَيْنَ مَكَّةَ، تِسْعَةَ عَشَرَ، رَكْعَتَيْنِ رَكْعَتَيْنِ، [٥] فَإِذَا أَقَمْنَا أَكْثَرَ مِنْ ذَلِكَ صَلَّيْنَا أَرْبَعًا. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [١] ابن عباس رضي الله عنهما فرمایي [٢] چې (یو ځل) رسول الله ﷺ چرته په سفر تشریف یوړلو [٣] او هلته یې نورلس ورځې قیام وکړو (د قیام په دوران کې به) حضور ﷺ دوه دوه رکعاته مونځ کولو [٤] ابن عباس رضي الله عنهما فرمایي چې مونږ خلق هم چې د مکې او مدینې په مینځ کې چرته نورلس ورځې قیام کوو نو دوه دوه رکعاته مونځ کوو [٥] او هر کله چې د دې څخه زیات پاتې کیږو نو څلور رکعاته مونځ کوو. (بخاري، مسلم)

**تسهیلات:- قوله:** يُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ رَكْعَتَيْنِ:

**د ابن عباس مستدل:-** دا حدیث دَحضرت ابن عباس رضي الله عنهما دلیل دې لیکن علماء فرمائی چه په دې روایت کښې چرته دَ اقامت اودَ دې دَ نیت ذکر نشته دې بلکه "على عزم الترحيل" یعنی بغیردَ قصد او ارادې دومره ورځې تیرې شوې که دغه شان چرته یوکال هم تیرشی نوبیاهم سړې نه مقیم کیږی.

(١) اخرجه البخاري فی کتاب الجمعة/باب ما جاء فی التقصير وكم يقيم حتى يقصر (رقم-١٠٨٠)

## [١٣٣٨]په سفر کښې د نفلو حکم

١٣٣٨ - ()[٦][١] «وَعَنْ حَفْصِ بْنِ عَاصِمٍ، قَالَ:[٢] صَحِبْتُ ابْنَ عُمَرَ فِي طَرِيقِ مَكَّةَ، فَصَلَّى لَنَا الظُّهْرَ رَكْعَتَيْنِ،[٣] ثُمَّ جَاءَ رَحْلَهُ، وَجَلَسَ،[٤] فَرَأَى نَاسًا قِيَامًا،[٥] فَقَالَ: مَا يَصْنَعُ هٰؤُلَاءِ؟ قُلْتُ: يُسَبِّحُونَ،[٦] قَالَ: لَوْ كُنْتُ مُسَبِّحًا أَتْمَمْتُ صَلَاتِي،[٧] صَحِبْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَكَانَ لَا يَزِيدُ فِي السَّفَرِ عَلَى رَكْعَتَيْنِ،[٨] وَأَبَا بَكْرٍ، وَعُمَرَ، وَعُثْمَانَ كَذٰلِكَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**[١] حفص ابن عاصم فرمايي[٢] چې (يو ځل) د مکې او د مديني په مينځ لار کې ماته د ابن عمر رضي الله عنه د ملګرتيا شرف حاصل شو (هر کله چې وخت شو) نو هغه مونږ ته د ماسپښين مونځ دوه دوه رکعاته راکړو[٣] او د هغې څخه وروسته چې خپلې خيمې ته واپس راغي او کيناستلو[٤] نو وي ليدل چې خلق ولاړ دي[٥] نو هغه پوښتنه وکړه چې دا خلق څه کوي؟ ما عرض وکړو چې نفل کوي[٦] نو هغه وفرمايل که ما نفل مونځ کولو نو ما به فرض مونځ پوره کولي (يعني که دا موقع د نفل لمانځه کولو وې نو فرض مونځ پوره کول زيات اهم وو خو هر کله چې د آساني په خاطر د فرض لمانځه د قصر کولو حکم شوي دي نو نفل مونځ ترک کول اولي دي ځکه چې فرض اداء کول د نفل کولو څخه اولي دي)[٧] ما ته د رسول الله صلی الله علیه وسلم د ملګرتيا شرف حاصل دي، رسول الله صلی الله علیه وسلم به د سفر په حالت کې د دوو رکعاتو څخه زيات نه کول[٨] او ما ته د حضرت ابوبکر رضي الله عنه حضرت عمر رضي الله عنه ،حضرت عثمان رضي الله عنه د ملګرتيا شرف هم حاصل دي د دې حضراتو هم دا معمول وو چې په سفر کې به يې د دوه رکعاتو څخه زيات نه کول. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:**- ① رَحْلَهُ: أي مسكنه: خيمې خپلې ته. ② مُسَبِّحًا: دَ تسبيح نه دې دَ نفل مونځ کولو په معنی کښې دې.

"مسبحاً" يعنی که چرې ما نفل کولې نوما به دَ هغې په ځائې فرض مکمل کولې اوکه دا مې کولې نو په فرضوکښې به مې قصر نه کولو. په سفرکښې سنت کول اونه کولوکښې دَ فقهاؤ أقوال مختلف دی.

**تسهيلات:**-

**قوله: قَالَ: لَوْكُنْتُ مُسَبِّحًا أَتْمَمْتُ صَلَاتِي:**

**په سفر کښې د سنتو حکم:**- که په سفرکښې دَ مشقت سختی ده يا دَ وخت تنګی ده او يوسړې دَ سنت او نوافل په سختئی سره پابندی کوی نودا جائز نه دی ځکه چه کله الله تعالی په فرائضوکښې نرمی اوفرمائيله نو په سنن او نوافل کښې په طريق اولی نرمی راغله هم په دې وجه وئيلی شوی دی. "من السنة ترك السنة في السفر" ليکن که يوسړې په سفرکښې آرام سره

[١]) اخرجه البخاری فی کتاب الجمعة رقم الحديث ١١٠١، وابوداود فی السنن رقم الحديث ١٢٢٣

دي او په سفرکښې هم جاري نه دي بلکه څه وقفه ده نو په دغه وقفه کښې يوسړې پاسې سنت کوي نودا منع نه دی بلکه په دې باندې به زيات اجر اوثواب ملاويږي.

**په سفر کښې د سنتو په کولو کښې اقوال:-**

① بعضې فقهاؤ په سفرکښې سنت کول مطلقًا منع گرځولی دی.

② بعضې مطلقاً جائز گرځوی

③ بعضو په سنن مؤکده راتبه او نوافل کښې فرق کړې دې. چې سنن مؤکده به کوی او سنن غيرمؤکده به نه کوی.

④ په دَ ائمه اربعه کښې امام مالک رحمه الله شافعی رحمه الله او امام احمدبن حنبل رحمه الله په نيز په سفرکښې هم مخکې او روستې سنت کول پکاردی.

⑤ دَ امام ابوحنيفه رحمه الله نه په دې باره کښې څه صريح قول نقل نه دې. البته دَ علماء احناف اقوال مختلف دی. ليکن بهتر قول هم دغه دې که چرې حالت دَ قرار سکون او تسلئی دې نوکول ئې پکاردی ګنې نه دی کول پکار. البته داخبره فيصله شوې ده چه دَ سحر دَ سنتونه علاوه دَ ټولو سنتو تأکد په سفرکښې ختميږي.

**په رواياتو کښې تعارض:-** دَحضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما روايات هم په دې باره کښې مختلف دی. دَهغوی نه داهم نقل دی چه هغوی پخپله سنت نه دی کړی اوفرمائيلی چه حضورپاك ﷺ به هم نه کول لکه چه په دې حديث وَعَنْ حَفْصِ بْنِ عَاصِمٍ، قَالَ: صَحِبْتُ ابْنَ عُمَرَ فِي طَرِيقِ مَكَّةَ، فَصَلَّى لَنَا الظُّهْرَ رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ جَاءَ رَحْلَهُ، وَجَلَسَ، فَرَأَى نَاسًا قِيَامًا، فَقَالَ: مَا يَصْنَعُ هَؤُلَاءِ؟ قُلْتُ: يُسَبِّحُونَ، قَالَ: لَوْكُنْتُ مُسَبِّحًا أَتْمَمْتُ صَلَاتِي، صَحِبْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَكَانَ لَا يَزِيدُ فِي السَّفَرِ عَلَى رَكْعَتَيْنِ، وَأَبَا بَكْرٍ، وَعُمَرَ، وَعُثْمَانَ كَذَلِكَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ کښې ذکر دی. خويه دې

عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ: «صَلَّيْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الظُّهْرَ فِي السَّفَرِ رَكْعَتَيْنِ، وَبَعْدَهَا رَكْعَتَيْنِ، وَفِي رِوَايَةٍ قَالَ: صَلَّيْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْحَضَرِ وَالسَّفَرِ، فَصَلَّيْتُ مَعَهُ فِي الْحَضَرِ الظُّهْرَ أَرْبَعًا، وَبَعْدَهَا رَكْعَتَيْنِ، وَصَلَّيْتُ مَعَهُ فِي السَّفَرِ الظُّهْرَ رَكْعَتَيْنِ، وَبَعْدَهَا رَكْعَتَيْنِ، وَالْعَصْرَ رَكْعَتَيْنِ، وَلَمْ يُصَلِّ بَعْدَهَا شَيْئًا، وَالْمَغْرِبُ فِي الْحَضَرِ وَالسَّفَرِ سَوَاءٌ ثَلَاثُ رَكَعَاتٍ، وَلَا يَنْقُصُ فِي حَضَرٍ وَلَا سَفَرٍ، وَهِيَ وِتْرُ النَّهَارِ، وَبَعْدَهَا رَكْعَتَيْنِ» . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. حديث کښې ذکر دې چه حضرت ابن عمر رضي الله عنهما به سنت کول اوحضور اکرم ﷺ هم په سفرکښې کړی دی.

**د تعارض دفع کولو دپاره تطبيقات:-**

① په دې روايتونوکښې تطبيق دادې چه حضرت ابن عمر رضي الله عنهما دَ سنتو کولو کومه نفی فرمائيلې ده دَهغې نه دَ عام سنتو نفی مرادنه ده بلکه دې نه دَ سنتو دَ تأکد نفی مراد ده.

④ یا دا مطلب ئی دې چه حضورپاك ﷺ به په غالب حالاتو کښې نه کول کله کله به ئی کول. یا دامطلب دې لکه چه اول لیکلې شوی دی که حالت دَ قرار سکون او تسلئی وی نو په کولوکښې ثواب دې لیکن دَ نفل ثواب دې دَ سنن مؤکده نه دې اوکه چرې حالت دَ قرار اوسکون نه دې دَ سفر تادی ده یا دَ وخت تنگی ده اوستومانتیا تکلیف او زحمت دې نوبیا دَ نه کولو حکم دې.

**[١٣٢٩]دَجمع بین الصلوتین حکم**

١٣٢٩-()[٧] ① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: ② «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَجْمَعُ بَيْنَ [صَلَاةِ] الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ إِذَا كَانَ عَلَى ظَهْرِ سَيْرٍ، ③ وَيَجْمَعُ بَيْنَ الْمَغْرِبِ وَالْعِشَاءِ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① ابن عباس رضی الله عنهما فرمایي ② چې رسول الله ﷺ چې به سفر کې وو نو د ماسپښین او مازیگر مونځ به یي یو ځای کولو ③ دغسې د ماښام او ماسخوتن مونځ به یي هم یو ځای کولو. (بخاري)

**حل اللغات:-** ① إِذَا كَانَ عَلَى ظَهْرِ سَيْرٍ: أَيْ: جَنَاحِ سَفَرٍ: چه کله به مسافر وو.

**تسهیلات:- قوله: يَجْمَعُ بَيْنَ [صَلَاةِ] الظُّهْرِ:**

**د جمع بین الصلاتین دوه صورتونه:-** دَ جمع بین الصلوتین دوه قسمونه دی.

① جمع بین الصلوتین صوری اوفعلی ده. دَ جمع صوری اوفعلی صورت دادې چه مثلاً ماسپښین اومازیگر په خپل وخت باندې اوکړې شی لیکن ماسپښین دَ خپل وخت بالکل آخرکښې اوکړې شی او مازیگردَ خپل وخت بالکل اول کښې اوکړې شی. دغه شان ماښام دَخپل وخت په آخره کښې اوکړې شی او ماسخوتن دَ خپل وخت بالکل په شروع کښې اوکړې شی. دغه شان په ظاهری صورت اوعمل کښې داسې ښکاری چه دواړه مونځونه په یو وخت کښې کړې شوی دی. مگر فی الواقع هرمونځ په خپل وخت کښې اداکړې شوی دې. اووخت هم بچ شو. ② جمع بین الصلوتین حقیقی ده جمع حقیقی داسې دې چه مثلاً ماسپښین او مازیگر دواړه دَ ماسپښین په وخت اوکړې شی اوماښان اوماسخوتن دواړه دَ ماښام په وخت اوکړې شی دا جمع حقیقی ده اودې ته جمع تقدیم هم وئیلی شی. ځکه چه په دې کښې آخری مونځ مقدم کولوسره رومبې مونځ سره اوکړې شو. اوچې دماسپښین اومازیگر دواړه دَ مازیگر په وخت اوکړې شی اوماښام اوماسخوتن دواړه دَ ماسخوتن په وخت اداکړې شی دا جمع حقیقی ده اودې ته جمع تاخیرهم وائی چه اولنې مونځ آخری مونځ سره یوځائی کولوسره اوکړې شی.

---

[1] اخرجه البخاری فی کتاب التقصر الصلوة/ باب الجمع فی السفر من المغرب العشا... رقم الحدیث ١١٠٧

## په جمع حقيقي کښې مذاهب

په جمع صوري کښې خوَ چا اختلاف نشته دې البته دَ جمع حقيقي وقتي په جواز او عدم جواز کښې دَ فقهاؤ اختلاف دې

① دَ ائمه ثلاثه په نيزدَ ماسپښين اومازيګر په مينځ کښې اودَ ماښام اوماسخوتن په مينځ کښې دَ عذر په وجه جمع حقيقي جائز ده په اجمالي توګه باندې دَدې په مينځ کښې اتفاق دې ليکن په تفصيلاتو کښې دَ دې په مينځ کښې څه فرق دې.چنانچه سفرټولو عذر ګرځولې دې بعضې سفر اومطر عذر ګرځولې دې. بعضې سفرسره "جدبه السير" دَ تيزايمرجنسي سفرقيد لګولې دې. بعضې په حضرکښې مرض عذر ګرځولې دې بعضې نه دې منلې دامعمولي اختلاف دې مګر په اجمالي توګه باندې دَ جمهورو په نيز جمع بين الصلوتين حقيقي تقديمي اوتاخيري ټولې جائز دي. البته سحر، ماسپښين اوماسخوتن اوسحر کښې جمع کول په وجه دَ فاصلې جائز نه ده.

② دَ ائمه احناف کثرالله سوادهم په نيزدَجمع حقيقي هيڅ يوصورت هم جائز نه دې. نه تقديم جائز دې اونه تاخير جائز دې، نه په سفرکښې جائز دې اونه په حضرکښې جائز دې. اودَ عرفه په ورځ په ميدان عرفات کښې په ماسپښين اومازيګرکښې جمع حقيقي جائز ده اودَ مزدلفه په شپه کښې ماښام اوماسخوتن کښې جمع حقيقي جائز ده. په اول الذکرکښې جمع تقديم ده اومؤخرالذکرکښې جمع تاخيرده.

**داول فريق دلائل:**- زيربحث د حديث اول فريق مستدل دې په کوم کښې چه په واضحه توګه هميشه والي سره جمع بين الصلوتين ذکر دې. "عن معاذبن جبل قال کان النبي ﷺ في غزوة تبوك اذازاغت الشمس قبل ان يرتحل جمع بين الظهروالعصرالخ"

② دَمسلم شريف روايت هم داول فريق مستدل دې. "کان اذاجدبه السير جمع بين المغرب والعشاء بعدان تغيب الشفق" ښکاره خبره ده چه کله شفق يعني سوروالي دَ غيبيدونه پس دَماښام مونځ کړې شوې دې نودَماسخوتن په وخت هم جمع حقيقي اوشوه.

**د دويم فريق دلائل:**-دَ ائمه احناف استدلال دَ قرآن اوحديث او امت دَتعامل نه دې.

① دليل دَ قرآن پاك آيت دې چه ﴿إِنَّ الصَّلٰوةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ كِتٰبًا مَّوْقُوْتًا﴾ [نساء. الاية:١٠٣] يعني دَ هرمونځ خپل متعين اومقرر وخت دې. دَ هغې نه مخکښې اودَ هغې نه روستو جائز نه دې.

② دغه شان آيت ﴿حٰفِظُوْا عَلَى الصَّلَوٰتِ وَالصَّلٰوةِ الْوُسْطٰى﴾ دليل دې. [بقرة آلاية:٢٣٨ ] په دې کښې هم دَ مانځه دَ محافظت حکم دې اودا حفاظت وخت ته هم شامل دې چه په خپل خپل وخت کښې دننه دَ مونځ حفاظت اوکړئی لهذا نه جمع تقديم جائز ده او نه جمع تاخير جائز ده.

③ دَ حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ حدیث مستدل دې کوم چه امام بخاری ﷫ ذکر کړې دې، الفاظ ئې دادی: "مارأیت النبی صلی الله علیه وسلم صلی صلوة بغیر میقاتها الا الصلوتین الخ" یعنی دَ عرفات اومزدلفه نه علاوه ماکله هم حضورپاک ﷺ داسې نه دې لیدلې چه حضورپاک ﷺ یو مونځ دَ هغې دَ وخت نه علاوه چرته بل وخت کښې کړې وی.
④ مضبوط دلیل هغه ټول احادیث دی په کوم کښې چه حضوراکرم ﷺ دَ هرمونځ دَپاره خپل یو متعین وخت مقرر کړې دې اودَ هغې دَ پابندئ په سختئ سره حکم ورکړې دې.
**داول فریق ه دلیل څخه جواب:-**
① دَدې احادیثو داسې محمل لټول پکاردی چه دَهغې آیت سره تعارض رانه شی. ځکه چه دَ قرآن کریم دَآیت معارضه احادیثو اوخاص کر اخبار احاد سره نه شی کیدلې. په دې وجه احنافو دَ دغه ټولو احادیثو محمل دا بیان کړې دې چه دَدې جمع بین الصلوتین نه جمع حقیقی نه بلکه جمع صوری مراد ده. لهذا دا احادیث دَ جمهورو نه بلکه دَ احنافو دلائل دی او په دې باندې قرائن هم دی.
**دجمع صوری کیدو قرائن:-** جمع صوری مراد اخستلو باندې مختلف قرائن دی:
① دَ جمع بین الصلوتین په احادیثو کښې ځائی په ځائی "اخرالظهر وعجل العصرواخرالمغرب وعجل العشاء" الفاظ راغلی دی دَ کوم نه چه معلومیږی چه دا تاخیر اوتعجیل دَ جمع صوری په صورت کښې کیږی دَ جمع حقیقی دَپاره دا الفاظ نه راځی. چنانچه دَ حضرت ابن عباس ﷠ شاګرد ابوشعثاء هم دَدې الفاظو په رڼرا کښې دَدې احادیثو نه جمع صوری مراد اخستې ده.
② بخاری شریف کښې حدیث دې چه حضرت ابن عمر ﷠ به دَ ماښام مونځ کولو سره څه وخت انتظار کولو اوبیابه ئې دَماسخوتن مونځ کولو. هم دغه شان حدیث په ابوداؤد شریف کښې هم دې یوڅو الفاظ دادی: "ان مؤذن ابن عمر قال الصلوة قال سرسر حتی اذاکان قبل غیوب الشفق فصلی المغرب ثم انتظر حتی اذاغاب الشفق فصلی العشاء" (ابوداؤد) دې نه صفا معلومیږی چه دادَ جمع صوری صورت دې دَ جمع حقیقی نه دې.
③ په جمع صوری باندې یوه زبردست قرینه دَ ترمذی شریف یوحدیث دې الفاظ دادی: "جمع رسول الله صلی الله علیه وسلم بین الظهر والعصر وبین المغرب والعشاء من غیرخوف ولامطر" په دې حدیث کښې دَ جمع بین الصلوتین ذکر دې لیکن نه سفردې نه مطر نه مرض دې نه ویره. په مدینه منوره کښې دغه شان جمع بین الصلوتین بغیردَ څه عذر نه دَ چا په نیز هم جائز نه ده. جمهور هم مجبوراً دا حدیث په جمع صوری باندې حمل کوی لهذا نور احادیث هم دغه شان په جمع صوری باندې حمل کول پکاردی. ابن حجر په فتح الباری کښې اعتراف کړې

دي چه دلته به جمع صوري مراد اخستلې شي.
**په دویم فریق اعتراض:**- اوډ احنافو ډپاره په یو حدیث کښې مشکلات رامخې ته دي هغه ډ مسلم شریف یو روایت دي: "جمع بین المغرب والعشاء بعد ان یغیب الشفق" ښکاره خبره ده چه ډ شفق یعنی سرخئې غیبیدو نه پس ډ ماسخوتن وخت وی لهذا دا جمع حقیقی ده صوری نه ده.
**دا اعتراض جواب:**- ډدې جواب دادې چه دلته ډ شفق غیبیدلو نه مراد رانیزدې کیدل دی غائبیدل نه دی او په دې باندې ډ دارقطنی حدیث دلالت کوی هلته ډ قریب لفظ موجود دې الفاظ دادی: "حتی اذا کاد یغیب الشفق" بهرحال ډ دلائل دنیا هم دغه ده لیکن جمهور ډ مخ ډ زمکې نه ختمولې نه شی او په بعضې موقعو کښې ډجمع حقیقی سخت ضرورت پیښیږی. که چرې ډ امت ډ آسانئی ډپاره بعضې وخت په دې احادیثو باندې عمل اوشی نو مجبوری بهرحال مجبوری ده. دلته بار بار دا سوال اوجواب هم راغلې دې چه ډ حضوراکرم جمع بین الصلوتین نه مقصد څه وو نو جواب هم دغه راغلو چه جمع بین الصلوتین نه مقصود دادې چه ډ حضورپاک ﷺ امت په حرج کښې پرینوځی. ډدې نه ډ جمع حقیقی ډ آسانتیا طرف ته واضحه اشاره ملاویږی. (ځکه چه الحرج مدفوع فی الشرع).

**[١٢٤٠] په سورلۍ د مانځه کولو حکم**

١٣٣٠-()[٨] [١] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: [٢] «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي فِي السَّفَرِ عَلَى رَاحِلَتِهِ [٣] حَيْثُ تَوَجَّهَتْ بِهِ، يُومِئُ إِيمَاءً [٤] صَلَاةَ اللَّيْلِ إِلَّا الْفَرَائِضَ [٥] وَيُوتِرُ عَلَى رَاحِلَتِهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ

**ترجمه:** [١] ابن عمر رضی الله عنهما فرمایې [٢] چې رسول الله ﷺ چې به په سفر کې وو نو دشپې مونځ به یې په خپله سورلۍ په اشارې سره کولو [٣] او د سورلۍ مخ چې به کوم طرف ته وو هم هغه طرف ته به د رسول الله ﷺ مخ مبارك هم وو [٤] علاوه د فرض لمانځه څخه [٥] او وتر مونځ به یې هم په سوارلۍ کولو. (بخاري، مسلم)
**حل اللغات:**- ① يُومِئُ إِيمَاءً: اشاره به ئې کوله. ② صَلَاةَ اللَّيْلِ: مونځ دشپې یعنی نوافل.
**تسهیلات:**- **قوله:** عَلَى رَاحِلَتِهِ:

**په سورلۍ د تکبیر تحریمې په وخت داستقبال په حکم کښې مذاهب**

یعنی ډ سورلئی مخ چه به کوم خوا ووډ رسول الله ﷺ مخ مبارك به هم هغې طرف ته وو.
① امام شافعی رحمه الله فرمائی چه ډ تکبیرتحریمه په وخت مخ ډ قبلې طرف ته کول په هرصورت ضروری او واجب دی
② ائمه جمهور فرمائی چه په شروع کښې ډ قبلې طرف ته مخ کولوسره تکبیر تحریمه وئیل

[1] اخرجه البخاری فی کتاب الوتر / باب الوتر فی السفر... رقم الحدیث ١٠٠٠ ومسلم فی کتاب الصلوة المسافرین / باب جواز الصلاة النافل علی الدبة فی السفر... رقم الحدیث ١٦٥٠

مستحب دی واجب یا فرض نه دی

**د اول فریق دلیل:**- راتلونکی حدیث نمبر (۳۳۵) د دوی مستدل دې په هغې کښې دَ حضرت انس دَ روایت په شروع کښې دَ استقبال قبله په بیان کښې راځی.

**د دویم فریق دلیل:**- دَ مونځ حکم یوشان وی که هغه په شروع کښې وی اوکه په آخره کښې په دوارو کښې څه فرق نشته.

**قوله: يُومِئُ إِيمَاءً:**

**په سورلئ باندې په اشاره د مونځ کولو اجازت:**- یعنی په سورلئی باندې کیناستو سره رکوع اوسجدې دپاره به حضورپاک ﷺ اشاره فرمائیله مګر دَ سجدې اشاره دَ رکوع دَ اشارې نه به زیاته ښکته وه.

**قوله: صَلَاةَ اللَّيْلِ:**

**په سورلئ باندې د شپې او د ورځې د نفل کولو جواز:**- دا قید اتفاقی دې احترازی نه دې ځکه چه په سورلئی باندې څنګه دَ شپې نوافل کول جائز دی دَ ورځې دَ نوافلو هم دغه حکم دې ځکه چه په نورو روایاتوکښې دَ عام نوافلو ذکر دې دَ شپې قید نشته دې لهذا دا حکم سنن مؤکده او دې نه علاوه نورو سننو او نوافلو ته هم شامل دې. سره دَدې چه دَامام ابوحنیفه رحمه الله یو قول دادې چه دَ سحر دَ سنتودپاره که چرې ګنجائش وی نودَ سورلئی نه کوزیدو سره کول مستحب دی بلکه په یو روایت کښې دَ واجب قول هم دې ځکه چه دَ سحر په سنتوکښې ډیر زیات تاکید او کلکوالې دې.

**قوله: إِلَّا الْفَرَائِضَ:**

**په سورلئ باندې د فرضو ادا کولو عدم جواز:**- دې حدیث نه دوه مسئلې مستنبط کیږی. یوه مسئله دا چه نوافل او سنن په سورلئی باندې کول جائز دی او فرائض په سورلئی باندې کول جائز نه دی. دلته دَ نوافل نه دَ فرائض استثناء هم دَدې مقصد دپاره ده چه فرائض په سورلئی باندې کول بالکل جائز نه دی.

**په سورلئ د فرائضو ادا کولو صورتونه:**- په دې لاندینی عذرونوکښې که چرې موجود وی نوبیا فرائض هم په سورلئی باندې کولې شی.

① که یوسړې په ځنګل کښې وی اوکوزیدوسره په سحرا کښې مونځ کولوسره هرقسم خطرې وی یا دَ نن صباسورلئی ریل ګاډې وغیره وی دکوم نه چه کوزیدل ممکن نه وی نو په داسې صورتونوکښې په سورلئی باندې فرائض کول جائز دی.

② چه داسې بوډا وی چه نه سوریدې شی اونه کوزیدې شی.

③ دَ سورلئی نه کوزیدونه پس په سورلئی باندې سوریدل ممکن نه وی.

④ یا دَ واورې او باران عذر وی.
⑤ په زمکه باندې ختې وغیره دومره وی چه هلته مونځ کول ممکن نه وی.
بهرحال په دې صورتونو کښې فرض مونځ په سورلئی باندې کول دَ مجبورئی دَ وجې نه جائز دې. او سورلی هم عام ده که اس وی، اوښ وی یا ریل ګاډې وی یا کشتئی وی په ټولو کښې مونځ کیدې شی.

**په هوائی جهاز کښې د مونځ کولو کښې اقوال:-**

① دَ بعضې عالمانو په نیز په هوائی جهاز کښې جائز نه دې ځکه چه دَ سجدې دَپاره زمکه پکار ده هوائی جهاز په فضاء معلق دې نو سجده صحیح نه ده.
② بعضې علماء فرمائی په هوائی جهاز کښې مونځ کول جائز دی اودَ هوائی جهاز دَ زمکې سره په ذریعه دَ کشش رابطه اوتعلق دې لکه چه هم په زمکه دې. دَ سعودی حکومت په جهازونو کښې دَ مونځ دَپاره ځائی جوړشوې وی اوخلق مونځ کوی. پی آئی اې والا په زمکه باندې مونځ نه کوی نو فضا کښې دَدې انتظام ولې اوکړی؟

**په سورلئی باندې د مونځ د جواز دپاره د سفر په شرطیت کښې مذاهب**

① که چرې سړې مسافر دې نو په سورلئی باندې په روانه باندې مونځ کولې شی. اوکه مسافر نه وی نو په سورلئی باندې مونځ کول جائز نه دی هم دغه مسلك دَ جمهور فقهاؤ دې. دَ صاحبینو مسلك نیز دَ جمهورو په شان دې چه دا جواز دَ سفر سره مشروط دې دَ ښار سره مشروط نه دې.
② امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی چه په سورلئی باندې دَ مونځ کولو دَ جواز دَ پاره دَښار نه بهر کیدل شرط دی که سړې مسافر وی او که نه وی.

**قوله:** وَيُوتِرُ عَلَى رَاحِلَتِهِ:

**په سورلئ باندې د وترو کولو په حکم کښې مذاهب**

① په دې حدیث کښې دریمه مسئله دَ وتر بیان کړې شوې ده چه حضورپاك ﷺ به وتر هم په سورلئ باندې کول. دَ جمهور فقهاؤ مسلك هم دغه دې چه وتر په سورلئ باندې کولې شی.
② امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی چه څنګه فرائض بغیردَ سخت عذر نه په سورلئی نه کولې کیدې دغه شان وتر هم په سورلئی باندې کول جائز نه دی.
**د فریق اول دلیل:-** داول فریق دلیل زیر بحث حدیث دې په کوم کښې چه وتر په سورلئی باندې کولو صراحت سره ذکر دې.
**داول فریق د دلیل څخه جوابونه:-**
① ددې جواب دادې چه ممکن ده دادَ هغه زمانې خبره وی کوم وخت چه په وترو کښې

تاکد نه وو راغلي خوچه کله په وترو کښې تاکید راغلو نو بیا دَ حضرت ابن عمر رضي الله عنهما والا خبره راغله چه وتر به ئې په زمکه باندې کوزیدو سره کول.

④ شاه انورشاه کشمیري رحمه الله ورکړې دې چه زیر بحث حدیث کښې دَ وترو اطلاق په مشهور وترو نه دی بلکه دلته دَ وتر اطلاق دَ شپې په مونځ باندې شوې دې او هم داسې کیږي.

⑤ دادې چه کیدې شي حضور پاك صلی الله علیه وسلم دَ څه عذر دَ وجې نه په سورلئی باندې وتر کړې وی او دَ عذر دَ وجې نه خو فرض هم په سورلئی باندې کیدې شي.

**د دویم فریق دلائل :-**

① دامام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دَ حضرت ابن عمر رضي الله عنهما حدیث دې کوم چه امام طحاوی رحمه الله ذکر کړې دې دکوم الفاظ چه دا دی: "عن ابن عمر رضي الله عنهما انه کان یصلی علی راحلته ویوتر علی الارض وزعم ان رسول الله صلی الله علیه وسلم کان یفعل ذلك" (طحاوی).

② بل امام محمد رحمه الله په مؤطا محمد کښې دَ صحابه کرامو اوتابعینو حضراتو آثار نقل کړی دی دکوم نه چه ثابتیږي چه هغه حضرات به دَ وتر کولو دَپاره دَ سورلونه کوزیدل.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [١٣٤١] د نبی صلی الله علیه وسلم څخه د قصر او اتمام ثبوت

١٣٤١-()[٩] ① عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: ② «كُلَّ ذٰلِكَ قَدْ فَعَلَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ③ قَصَرَ الصَّلَاةَ وَأَتَمَّ». رَوَاهُ فِي "شَرْحِ السُّنَّةِ".

**ترجمه:** ① ام المؤمنین بي بي عائشه صدیقه رضي الله عنها فرمایي ② چې رسول الله صلی الله علیه وسلم هر رنګ کړي دي ③ دسفر په حالت کې کم رکعتونه یي هم کړي دي او پوره یي هم کړي دي. (شرح السنة)

**حل اللغات:-** ① قَصَرَ: په سفر کښې څلور رکعتیز مونځ دوه رکعته کولو ته قصر وائی. ② أَتَمَّ: په سفر کښې څلور رکعتیز مونځ پوره کولو ته اِتمام وائی.

**تسهیلات:- قوله: قَصَرَ الصَّلَاةَ وَأَتَمَّ:**

**په سفر کښې د قصر او اتمام په مفهوم کښې تاویلات:-**

① یعنی حضور پاك صلی الله علیه وسلم په شرعی سفر کښې کله قصر کړې کله ئې نه دې کړې بلکه اتمام ئې کړې دې.

② یا مطلب دادې چه حضور پاك صلی الله علیه وسلم په سفر کښې قصر کړې دې او حضر کښې قصر نه دې کړې بلکه پوره کړې ئې دې.

③ یا مطلب دادې چه په شروع کښې دَ دواړو امورو اختیار وو نو رسول الله صلی الله علیه وسلم کله

[١] اخرجه شرح السنة فی کتاب الصلوة/ باب قیام الشهر رمضان وفضله ... ٢/ ٢٢٠

قصر کړي او کله پوره. روستو به داسې نه کيدل بلکه هم قصر متعين شو. په ابتدائی مباحث کښې ددې حديث سره متعلق تفصيل تير شوې دې.

**[١٣٤٢] په يو ځائې کښې د اقامت د نيت څخه بغير د قصر حکم**

١٣٤٢ -(١) [١٠] ١ وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: ٢ «غَزَوْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَشَهِدْتُ مَعَهُ الْفَتْحَ، ٣ فَأَقَامَ بِمَكَّةَ ثَمَانِيَ عَشْرَةَ لَيْلَةً لَا يُصَلِّي إِلَّا رَكْعَتَيْنِ، ٤ يَقُولُ: "يَا أَهْلَ الْبَلَدِ! صَلُّوا أَرْبَعًا، فَإِنَّا سَفْرٌ» ". رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** ١ عمران ابن حصين رضي الله عنه فرمايي ٢ چې زه د رسول الله ﷺ سره په غزاګانو کې شامل شوې يم چنانچه د مکې په فتح کې هم زه د حضور ﷺ سره موجود وم ٣ حضور ﷺ (په دې موقع) په مکه کې اتلس شپې مقيم وو او (څلور رکعاته لمونځ) به يې دوه رکعاته کولو ٤ او دا به يې فرمايل چې اې ښاريانو! تاسو خلق څلور رکعاته مونځ وکړئ مونږ مسافريو (څکه دوه رکعاته کوو). (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ① سَفْرٌ: دَ سافرجمع ده لکه رکبدَ راکب اوصحب دَ صاحب جمع ده سافربه معنی مسافردې.

**تسهيلات:-**

**قوله:** لَا يُصَلِّي إِلَّا رَكْعَتَيْنِ

**د نبی کريم ﷺ د اقامت نيت نه کول:-** يعنی رسول الله ﷺ اتلس ورځې تيرې کړې مګر دَاقامت نيت ئی نه ووکړې بلکه نن صباکولوسره دومره ورځې تيرې شوې نوداداقامت حالت نه وو بلکه دَسفرحالت وو لهذا هم قصربه ئی کولو. احناف فرمائی چه کله يوسړی دَ ١٥ ورځوداقامت نيت اوکړو بيا قصرجائزنه دې اوکه نيت ئی نه وی کړې نود کاله پورې سړې مقيم کيدې نه شی بلکه هم مسافروی نوهم قصربه کوی. دلته دَفتح مکه په موقع باندې حضورپاک ﷺ سره هم داسې اوشو حضورپاک ﷺ نه غوښتل چه دکوم ښارنه دَالله تعالی دَ رضادَپاره يوځل هجرت اوکړو اوس دوباره هلته اقامت اختيار کړی.

**[١٣٤٣] صرف په څلوررکعتيز مونځ کښې قصر**

١٣٤٣ -(٢) [١١] ١ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ: ٢ «صَلَّيْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الظُّهْرَ فِي السَّفَرِ رَكْعَتَيْنِ، وَبَعْدَهَا رَكْعَتَيْنِ، ٣ وَفِي رِوَايَةٍ قَالَ: صَلَّيْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْحَضَرِ وَالسَّفَرِ، ٤ فَصَلَّيْتُ مَعَهُ فِي الْحَضَرِ الظُّهْرَ أَرْبَعًا، وَبَعْدَهَا رَكْعَتَيْنِ،

**ترجمه:** ١ ابن عمر رضي الله عنه فرمايي ٢ چې ما د سفر په حالت کې د حضور ﷺ سره د ماسپښين دوه رکعاته او د هغې څخه وروسته (يعني د سنت) دوه رکعاته کړي دي ٣ او د

[1] ) اخرجه ابوداود کتاب الصلاة،باب متی يتم المسافر؟ (رقم-١٢٢٩)
[2] ) اخرجه الترمذی کتاب السفر/باب ما جاء فی التطوع فی السفر (رقم-٥٥٢)

يو روايت الفاظ دا دي چې ابن عمر رضي الله عنهما وفرمايل چې ما د رسول الله ﷺ سره په سفر کې هم مونځ کړي دي او په ښار (يعني حضر) کې هم [٣] ما په حضر کې خو د حضور ﷺ سره د ماسپښين څلور رکعاته او د هغې څخه وروسته (د سنت) دوه رکعاته کړي دي

[١] وَصَلَّيْتُ مَعَهُ فِي السَّفَرِ الظُّهْرَ رَكْعَتَيْنِ، وَبَعْدَهَا رَكْعَتَيْنِ، [٢] وَالْعَصْرَ رَكْعَتَيْنِ، وَلَمْ يُصَلِّ بَعْدَهَا شَيْئًا، [٣] وَالْمَغْرِبُ فِي الْحَضَرِ وَالسَّفَرِ سَوَاءٌ ثَلَاثُ رَكَعَاتٍ، [٤] وَلَا يَنْقُصُ فِي حَضَرٍ وَلَا سَفَرٍ، [٥] وَهِيَ وِتْرُ النَّهَارِ، وَبَعْدَهَا رَكْعَتَيْنِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [١] او په سفر کې مې ورسره د ماسپښين دوه رکعاته کړي دي او د هغې څخه وروسته دوه رکعاته کړي دي [٢] او د مازيګر مو دوه رکعاته کړي دي او د دې څخه وروسته يې څه مونځ نه دي کړي [٣] او د ماښام مونځ به په سفر او حضر په دواړو کې يو رنګه درې رکعاته وو [٤] حضور ﷺ به په دې لمانځه کې په سفر او حضر کې هيڅ زياتي نه کولو [٥]. اود ماښام مونځ د ورځې وتر دي اود هغې څخه وروسته د سنتو دوه رکعاته به موکول. (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① وِتْرُ النَّهَارِ: د ورځې وتر يعنی د ماښام مونځ.

**تسهيلات:** -

**قوله:** وَصَلَّيْتُ مَعَهُ فِي السَّفَرِ الظُّهْرَ رَكْعَتَيْنِ،

**قصر په څلور رکعتيز مونځ کښې:** - دَدې حديث دَ تفصيل نه معلومه شوه چه قصر صرف څلور رکعته مونځونو کښې دې کوم چه په ماسپښين مازيګر اوماسخوتن کښې دي په ماښام او سحر کښې قصر نشته دې څکه چه يو رکعت مونځ نه وی او نه يونيم رکعت وی.

**قوله:** وَهِيَ وِتْرُ النَّهَارِ:

**فائده:** - دَدې نه په واضحه توګه سره ثابته شوه چه وتر يوسلام سره درې رکعته دی څکه چه دَ ماښام درې رکعته دی اويوسلام سره دی دا وتر يوشان ګرځولي شوی دی.

**[١٣٤٤] په سفر کښې جمع بين الصلاتين**

٣٣٣ - ( )[١٣] [١] وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: [٢] «كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي غَزْوَةِ تَبُوكَ: إِذَا زَاغَتِ الشَّمْسُ قَبْلَ أَنْ يَرْتَحِلَ: [٣] جَمَعَ بَيْنَ الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ، [٤] وَإِنِ ارْتَحَلَ قَبْلَ أَنْ تَزِيغَ الشَّمْسُ أَخَّرَ الظُّهْرَ، حَتَّى يَنْزِلَ لِلْعَصْرِ،

**ترجمه:** [١] معاذ ابن جبل رضي الله عنه فرمايي [٢] چې رسول الله ﷺ به په غزوه تبوک کې (داسي عمل کولو) چې کله به د کوچ کولو څخه مخکې دغرمې زوال وشو [٣] نو حضور ﷺ به د ماسپښين او مازيګر مونځ يو ځاي کولو [٤] او کله چې به يې غرمه د زوال کيدو څخه مخکې کوچ (سفر) کولو نو د ماسپښين په لمانځه کې به يې تاخير کولو او د مازيګر د

[١] اخرجه الترمذي في كتاب الصلوة /باب ما جا في الجمع بين الصلاتين... رقم الحديث ٥٥٦

پاره به ښکته کېدل (یعني د ماسپښین او د مازیګر دواړه لمونځونه به یې یو ځای کول)

[١] وَفِي الْمَغْرِبِ مِثْلَ ذَلِكَ، [٢] إِذَا غَابَتِ الشَّمْسُ قَبْلَ أَنْ يَرْتَحِلَ جَمَعَ بَيْنَ الْمَغْرِبِ وَالْعِشَاءِ، [٣] وَإِنِ ارْتَحَلَ قَبْلَ أَنْ تَغِيبَ الشَّمْسُ أَخَّرَ الْمَغْرِبَ [٤] حَتَّى يَنْزِلَ لِلْعِشَاءِ، ثُمَّ يَجْمَعُ بَيْنَهُمَا». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [١] او د ماښام په لمانځه کې به هم حضور ﷺ دغسې کول [٢] کله چه به نمر د حضور ﷺ د کوچ کولو څخه مخکې ډوب شو نو د ماښام او ماسخوتن دواړه لمونځونه به یې یو ځای کول [٣] او که د نمر د غروب کېدو څخه مخکې به یې کوچ کولو نو د ماښام په لمانځه کې به یې تاخیر کولو [٤] تر دې چې د ماسخوتن د لمانځه د پاره به ښکته شو نو هغه وخت به یې دواړه لمونځونه یوځای کول. (ابوداؤد، ترمذي)

**حل اللغات:** - ① زَاغَتْ: زوال به اوشو، ② ارْتَحَلَ: واپس به شو.

**تسهیلات:** - **قوله:** جَمَعَ بَيْنَ الْمَغْرِبِ وَالْعِشَاءِ:

**داستدلال عدم صحت:** - دَدې حدیث تشریح اوتوضیح وړاندې تیره شوې ده جمهور دَدې نه استدلال نشی کولې. یو خودا ډیر ضعیف دې. بله دا چې په دې حدیث کښې ډیر احتمالات دی لهذا احتمال سره استدلال صحیح نه دې.

**[١٢٤٥] په سورلۍ باندې د نفلی مونځ کولو حکم**

١٣٣٥ - (١)[١٣] [١] وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: [٢] «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَافَرَ وَأَرَادَ أَنْ يَتَطَوَّعَ [٣] اسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ بِنَاقَتِهِ، فَكَبَّرَ [٤] ثُمَّ صَلَّى حَيْثُ وَجَّهَهُ رِكَابُهُ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] حضرت انس رضی الله عنه فرمایي [٢] چې رسول الله ﷺ چې به کله سفر کولو (یعني د ښار څخه به چې وتلو که مسافر به وو او که مقیم) او د نفل مونځ کولو اراده به یې وکړه [٣] نو د خپلې اوښې مخ به یې د قبلې طرف ته وګرځولو او تکبیر تحریمه به یې ویلو [٤] بیا کوم طرف ته چې به د سوارلۍ مخ وو هغه طرف ته به یې مونځ کوي. (ابوداؤد)

**تسهیلات:** -

**نوټ:** - د دې حدیث تشریح په راروان حدیث نمبر ١٣٣٦ کښې اوګورئ.

**[١٢٤٦] د نبی ﷺ پر سورلۍ باندې مونځ کول**

١٣٣٦ - (٢)[١٤] [١] وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: [٢] «بَعَثَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَاجَةٍ، [٣] فَجِئْتُ وَهُوَ يُصَلِّي عَلَى رَاحِلَتِهِ نَحْوَ الْمَشْرِقِ، [٤] وَيَجْعَلُ السُّجُودَ أَخْفَضَ مِنَ الرُّكُوعِ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] حضرت جابر رضی الله عنه فرمایي [٢] چې رسول الله ﷺ زه د څه کار د پاره (چېرته) ولیږلم [٣] کوم وخت چې زه واپس راغلم نو ما ولیدل چې رسول الله ﷺ په خپلې سورلۍ د

[١] اخرجه ابوداود فی کتاب الصلوة / باب التطوع علی الراحلة والوتر... رقم الحدیث ١٢٢٧
[٢] اخرجه ابوداود فی کتاب الصلوة... رقم الحدیث ١٢٢٩

مشرق طرف ته مخ کړي مونځ کولو [٣] او سجده به يې د رکوع څخه زياته ټيټه کوله. (ابوداؤد)

**حل اللغات:**- ① نَحْوَ: دنحو مختلفي معاني دی دلته په معنی دطرف دي ② أَخْفَضَ: زياته ښکته (ټيټه).

**تسهيلات:**-

**قوله:** وَهُوَ يُصَلِّي عَلَى رَاحِلَتِهِ نَحْوَ الْمَشْرِقِ

**په سورلۍ باندې د نفل مونځ حکم کښې اختلاف:**- دامام شافعي رحمه الله په نيز په مذکوره صورت کښې قبلې ته مخ کول شرط دې. اود امام اعظم رحمه الله په نيز په فرض کښې خو شرط دې خو په نفل مونځ کښې شرط نه دې.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[١٣٤٧] دَ حضرت عثمان ﷛ منیٰ کښې دَ قصر نه کولو وجه**

١٣٤٧- ()[١٥] [١] عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: [٢] «صَلَّى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمِنًى رَكْعَتَيْنِ، [٣] وَأَبُو بَكْرٍ بَعْدَهُ، وَعُمَرُ بَعْدَ أَبِي بَكْرٍ، [٤] وَعُثْمَانُ صَدْرًا مِنْ خِلَافَتِهِ، [٥] ثُمَّ إِنَّ عُثْمَانَ صَلَّى بَعْدُ أَرْبَعًا، [٦] فَكَانَ ابْنُ عُمَرَ إِذَا صَلَّى مَعَ الْإِمَامِ صَلَّى أَرْبَعًا، [٧] وَإِذَا صَلَّاهَا وَحْدَهُ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] ابن عمر ﷛ فرمايي [٢] چې رسول الله ﷺ په منی کې (څلور رکعاتو والا لمونځ) دوه رکعاته کړي دي [٣] د حضور ﷺ څخه وروسته حضرت ابوبکر صديق ﷛ هم دوه رکعاته کړي دي او د هغه څخه وروسته حضرت عمر فاروق ﷛ هم دوه رکعاته کړي دي [٤] او حضرت عثمان ﷛ هم د خلافت په ابتداء کې خو دوه رکعاته کړي دي [٥] ليکن وروسته يې څلور رکعاته کول [٦] د ابن عمر ﷛ په باره کې منقول دي چې هغه به کله امام (يعني حضرت عثمان ﷛) سره مونځ کولو نوڅلور رکعاته به يې کول [٧] اوکله چې به يې يوازې (يعنی سفر کې) مونځ کولو نودوه رکعاته به يې کول. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:**- ① صَدْرًا: په ابتدا کښې.

**تسهيلات:**- **قوله:** وَأَبُو بَكْرٍ بَعْدَهُ، وَعُمَرُ بَعْدَ أَبِي بَكْرٍ:

**د شيخينو په منی کښې سفرانه مونځ کول:**- مطلب دادې چې حضرت رسول کريم ﷺ او حضرت ابوبکر صديق ﷛ او حضرت عمر فاروق ﷛ به چې کله حج ته په سفر تلل او منی ته به اورسيدل نو هلته به ئې هم مسافرانه (يعنی قصر مونځ) ادا کولو. داشان حضرت عثمان ﷛ هم دخپل خلافت په ابتدائی دور کښې دوه رکعته مونځ ادا کړې دې. خو روستو به ئې څلور رکعاته مونځ کولو.

[1] اخرجه البخاری فی كتاب الجمعة /باب الصلاة بمنى (رقم-١٠٨٢) ومسلم كتاب صلاة المسافرين وقصرها /باب قصر الصلاة بمنى (رقم) ١٦ - (٦٩٤) والنسائی كتاب تقصير الصلاة فی السفر /باب الصلاة بمنى (رقم-١٤٥١)

**قوله: ثُمَّ إِنَّ عُثْمَانَ صَلَّى بَعْدُ أَرْبَعًا:**

**دحضرت عثمان په منی کښې د اتمام کولو توجیهات:-** حضرت عثمان رضی الله عنه په مکه مکرمه کښې متأهل وو. ددې تائید د امام احمد رحمه الله د روایت نه هم کیږی چې حضرت عثمان ﷺ منی کښې څلور رکعته ادا کړل. نو خلق حیران شو ، دوئ اوفرمائیل چې ائې خلقو زه په مکه مکرمه کښې متاهل یم. یعنی قبیله لرم. اوما د رسول کریم ﷺ نه آؤریدلی دی چې وې فرمائیل چې کوم کس په یو ښار کښې متأهل وی نو هغه دې د مقیم پشان مونځ ادا کوی. دحضرت عثمان ﷺ په دې عمل باندې دخلقو حیرانتیا ددې خبرې دلیل دې چې حضرت رسول کریم ﷺ به په سفر کښې پورا مونځ نه کولو اودا چې د سفر په حالت کښې قصر لازم دې. ګنی خلقو به د حیرانتیا اظهار ولې کولو.

④ د حج په موسم کښې به ډیر زیات مسلمانان په منی کښې راجمع کیدل او په دوئ کښې داسې خلق هم وو چې نوی نوی اسلام کښې داخل شوی وو، او ددین احکامو باندې پورا نه پوهیدل. نو په دې وجه حضرت عثمان ﷺ نه د هغوئ د زدکړې دپاره څلور رکعته ادا کول چې کوم مسلمانان خبر نه دی چې هغوئ ته معلومه شی چې د مونځ څلور رکعته دی . که قصر ئې کولې او دوه رکعته ئې کولې نو هغه خلقو به دا ګنړل چې دا هم دوه رکعته فرض دی. یا دا هم وئیلې شی چې آخر کښې د حضرت عثمان ﷺ عمل دحضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها د رائې مطابق شوې وو. ځکه چې د حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها په نزد د سفر کښې قصر او اتمام دواړه جائز وو.

**[١٣٤٨]په اول کښې د دوؤ رکعتو مونځونو فرضیت**

١٣٤٨–()[١٦] ① وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: ② فُرِضَتِ الصَّلَاةُ رَكْعَتَيْنِ، ③ ثُمَّ هَاجَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَفُرِضَتْ أَرْبَعًا، ④ وَتُرِكَتْ صَلَاةُ السَّفَرِ عَلَى الْفَرِيضَةِ الْأُولَى، ⑤ قَالَ الزُّهْرِيُّ: قُلْتُ لِعُرْوَةَ: مَا بَالُ عَائِشَةَ تُتِمُّ؟ ⑥ قَالَ: تَأَوَّلَتْ كَمَا تَأَوَّلَ عُثْمَانُ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① د بي بي عائشه صدیقه رضی الله عنها په باره کې منقول دي چې هغې وفرمایل ② (په ابتداء کې سفر او حضردواړو کښې) د لمانځه دوه رکعاته فرض شوې وو ③ بیا رسول الله ﷺ هجرت وکړو نو (د مقیم د پاره) څلور رکعاته فرض مقرر شو ④ او د سفر په حالت کې اولني دوه رکعاته فرض پاتې شو ⑤ امام زهري رحمه الله فرمایي چې ما عروه رحمه الله ته عرض وکړو چې بي بي عائشه رضی الله عنها له څه شوي دي چې هغه په سفر کې پوره څلور رکعاته مونځ

[١] اخرجه البخاری فی کتاب الصلاة/باب: کیف فرضت الصلاة فی الإسراء؟ (رقم–٣٥٠) ومسلم فی کتاب صلاة المسافرین وقصرها/باب صلاة المسافرین وقصرها (رقم) ١ - (٦٨٥) وابوداود کتاب الصلاة،باب الصلاة المسافر (رقم-١١٩٨) ومالک فی الموطا کتاب قصر الصلاة فی السفر . باب قصر الصلاة فی السفر (رقم-٨)

کوي [٦] هغه وفرمایل چه هغې هم داسې تاویل کولو څنګه چې حضرت عثمان رضی الله عنه تاویل کولو (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** - ① تَأَوَّلَتْ: تاویل کوی.

**تسهیلات:** -

**قوله: كَمَا تَأَوَّلَ عُثْمَانُ:**

**په اول کښې د مونځو د رکعتونو تعداد:** - مطلب دادې چې په شروع کښې د مونځ دوه رکعته فرض کړې شوی وو لیکن روستو دماسپخین ، مازیګر او ماسختن څلور څلور رکعته فرض اوګرزولې شو. البته د ماښام مونځ ئې هم په اولنی حکم باندې قائم اوساتلو. ددې نه معلومه شوه چې د سفر په حالت کښې څلور رکعتی مونځ دوه رکعته کول د څلور رکعتو مشروع کیدو نه پس رخصت نه دې. بلکه په اصل کښې هم مشروع دی. چونکه دوه رکعته دی په دې وجه قصر عزیمت یعنی لازم دی رخصت په کښې نشته دې. یعنی چې د چا خوښه وی نو دوه رکعته دې ادا کړی او چې د چا خوښه وی نو پورا مونځ دې ادا کړی.

**د مسلک حنفی تائید:** - دې سره دامام اعظم دمسلك تائید کیږی. لهذا که څوك د سفر په حالت کښې وی او په ده باندې قصر لازم وی او پورا مونځ کوی او په اوله قعده باندې به کینی نو دابه ښه نه کوی ، او دده زیات دوه رکعته بهٔ نفل شی ، او که یو کس څلور رکعته داشان کوی چې په اوله قعده نه کیني څکه چې حکمًا هم دا آخری قعده ده نو دده فرض مونځ به باطل شی.

**دحضرت عائشې تاویل:** - د حدیث مبارك دآخری الفاظو (تَأَوَّلَتْ كَمَا تَأَوَّلَ عُثْمَانُ) مطلب دادې چې لکه څنګه حضرت عثمان رضی الله عنه به په سفر کښې څلور رکعته کول او ددې خپل عمل تاویل به ئې کولو نو داشان حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها به هم په سفر کښې څلور رکعته مونځ کولو او ددې خپل عمل تاویل به ئې کولو.

**د عثمان و عائشې رضی الله عنهما تاویل:** -

① حضرت عثمان رضی الله عنه او حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها دواړو به سفر کښې قصر او اتمام دواړه جائز ګڼړل.

**[١٣٤٩] قصر د الله تعالی جل جلاله حکم**

١٣٤٩ - (١) [١٧] [١] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ: [٢] «فَرَضَ اللَّهُ الصَّلَاةَ عَلَى لِسَانِ نَبِيِّكُمْ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْحَضَرِ أَرْبَعًا، [٣] وَفِي السَّفَرِ رَكْعَتَيْنِ، [٤] وَفِي الْخَوْفِ رَكْعَةً». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] ابن عباس رضی الله عنهما فرمایي [٢] چې الله جل شانه ستاسو د نبي صلی الله علیه وسلم په ژبه په حضر

(١) اخرجه مسلم فی کتاب الصلوة المسافرین /باب الصلاة المسافرین وقصرها... رقم الحدیث ١٦٠٧

کې څلور رکعاته مونږ فرض کړي دي[٣] او په سفر کې دوه رکعاته [٤] او د خوف په حالت کې يې يو رکعت فرض کړ ي دي. (مسلم)

**حل اللغات:** - الْخَوْفِ: ويره،

**تسهيلات:** - **قوله:** وَفِي الْخَوْفِ رَكْعَةً:

**په صلاة الخوف کښې دامام سره د يو رکعت ادا کول:** - يعنى دَ دښمن دَ ويرې په وخت صلوة خوف کښې يو رکعت امام سره فرض دې او يو رکعت خان له فرض دې. کله چه سړې په سفرکښې وى په دې حديث کښې دَسفرپه حالت کښې دَصلوة خوف نقشه حضرت ابن عباس رضي الله عنهما بيان کړې ده. دَدې حديث مطلب دانه دې چه صلوة خَوف صرف يو رکعت دې. دَامت تول فقهاء دَ صلوة خوف دَ دوؤ رکعتوقائل دى. دَ يو رکعت خبره دَ حسن بصرى رحمه الله نه علاوه بل چانه ده کړې. صلوة خوف کښې به تفصيل ان شاء الله راشى.

**[١٣٥٠] دسنت څخه د قصر ثبوت**

١٣٥٠ - (١)[١٨] [١] وَعَنْهُ، وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَا: [٢] «سَنَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَاةَ السَّفَرِ رَكْعَتَيْنِ، [٣] وَهُمَا تَمَامٌ غَيْرُ قَصْرٍ، [٤] وَالْوِتْرُ فِي السَّفَرِ سُنَّةٌ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [١] ابن عباس او ابن عمر رضي الله عنهم فرمايي [٢] چې رسول الله ﷺ د سفر د لمانځه د پاره دوه رکعاته مقرر کړي دي او هغه ناقص نه دي، پوره دي [٤] او په سفر کې وتر سنت دي. (ابن ماجه)

**تسهيلات:** - **قوله:** تَمَامٌ غَيْرُ قَصْرٍ:

**د غير قصر مفهوم:** - مطلب دادې چه دَ سفردَپاره هم دوه رکعته مشروع دى. داسې نه ده چه اول څلور رکعته مشروع وو اوروستو دوه رکعته کړې شو دوه پاتې شو او دوه ساقط کړې شوداسې نه ده بلکه دَ سفرهم دوه رکعته دَ شروع نه پوره راروان دى اووتر په سفرکښې سنت دى دامسئله واضحه کيږى چه که سفرنه وى نووترواجب دى.

**[١٣٥١] دَقصردَمسافت حد**

١٣٥١ - (٢)[١٩] [١] وَعَنْ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، [٢] بَلَغَهُ أَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ كَانَ يَقْصُرُ فِي الصَّلَاةِ فِي مِثْلِ مَا يَكُونُ بَيْنَ مَكَّةَ وَالطَّائِفِ، [٣] وَفِي مِثْلِ مَا بَيْنَ مَكَّةَ وَعُسْفَانَ، [٤] وَفِي مِثْلِ مَا بَيْنَ مَكَّةَ وَجُدَّةَ، [٥] قَالَ مَالِكٌ: وَذَلِكَ أَرْبَعَةُ بُرُدٍ. رَوَاهُ فِي الْمُوَطَّأِ".

**ترجمه:** [١] امام مالك رحمه الله راوي دي [٢] چې هغه ته د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما په باره کې دا خبر رارسيدلي دي چې ابن عباس رضي الله عنهما به قصر مونږ کولو د هغه مسافت په دوران کې

[١] اخرجه ابن ماجة فى كتاب الاقامة الصلاة والسنة فيها/ باب ما جا فى الوتر فى السفر... رقم الحديث ١١٩٤
[٢] اخرجه الموطا فى كتاب الندا للصلاة... رقم الحديث ٤٩٥

چې د مکي او طائف په مينځ کې دي ③ او د هغه مسافت چې د مکي او عسفان په مينځ کې دي ④ او د هغه مسافت چه د مکي او جدي په مينځ کې دي .⑤ امام مالك رحمه الله فرمايي دا مسافت (فاصله) څلور بريده ده. (موطاء)

**حل اللغات:-** ① بُرُد: دا جمع د بريد دې، د مسافت يو مقدار دې.يو بريد ۴ فرسخه وی.او او يو فرسخ ۳ ميله دې.نو يو بريد ۴۸ ميله شول.

**تسهيلات:-** **قوله:** وَذٰلِكَ أَرْبَعَةُ بُرُدٍ:

**د بريد مفهوم:-** څلور بريده د شپاړسو فرسخو برابر دی ، يو فرسخ د دريو ميلو برابر وی ، او يو ميل د محدثينو په نزد د څلور زرو لاسونو مسافت برابر دې ، داشان څلور بريده د اته څلويښتو ميلو مسافت شو. که يومنزل د دولسو ميلونو اوګرزولې شی نو څلور بريده به دڅلورو منزلونو برابر وی.

**د څلورو بريدو مصداق:-** په ظاهره ددې حديث پاك نه معلوميږی چې په حديث پاك کښې دکومو دريو مسافتونو ذکر کړې شوې دې هغه يوشان دی يعنی څومره مسافت چې د مکې او طائف په مينځ کښې دې نو دومره مسافت د مکې او عسفان په مينځ کښې وی. داشان څومره مسافت چې ددې دواړو جدا جدا وی هم دومره مسافت د مکې او جدې ترمينځه بۀ وی . حالانکه حقيقت کښې دا درې واړه مسافتونه برابر نه دی. داوئيل به ډير مناسب وی چې د حضرت امام مالك رحمه الله قول ذلك أربعة برد يعنی دا مسافت څلور بريده دې. نو ددې تعلق د آخری مسافت سره يعنی د مکې او جدې په مينځ کښې مسافت دې چې دمکې او د جدې په مينځ کښې فاصله څلور بريده ده .

**قوله:** كَانَ يَقْصُرُ فِي الصَّلَاةِ

**د قصر په مسافت کښې د نص عدم وجود:-** د حضرت ابن عباس رضي الله عنه ددې مذکور فعل باره کښې علماء کرام ليکی چې قرآن اوحديث کښې د مسافت قصر څه حد نه دې بيان شوې بلکه مطلقا د سفر ذکر کړې شوې دې. د قصرمونځ په باب کښې چې کوم احاديث دی په هغې باندې د نظر اچولو نه پس دا خبره واضح کيږی چې کوم کوم ځائې کښې هم دقصر مونځ ذکر کړې شوې دې اود حضرت ر سول کريم ﷺ قصر مونځ بيان کړې شوی دی د هغه ټولو مواقع په مسافت کښې فرق دې ، خينې مسافتونه کم دی او خينې مسافتونه زيات دی. د حضرت رسول اکرم ﷺ نه پس صحابه کرامو، تابعينو او آئمه کرامو او علماء کرامو د امت آسانتيا دپاره د خپل خپل اجتهاد په ذريعه او غور وفکر کولو نه پس د مسافت دقصر حد مقرر کړې دې چې ددې حد نه په کم مسافت باندې به قصرمونځ نه کيږی. بلکه پورا مونځ به کوی. او ددې مسافت يا ددې نه زيات مسافت په صورت کښې به قصر وا جب وی.

## [١٣٥٢]په سفر کې سنت کولو بيان

١٣٥٢-(١)[٢٠] ١ وَعَنِ الْبَرَاءِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ٢ «صَحِبْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَمَانِيَةَ عَشَرَ سَفَرًا، ٣ فَمَا رَأَيْتُهُ تَرَكَ رَكْعَتَيْنِ إِذَا زَاغَتِ الشَّمْسُ قَبْلَ الظُّهْرِ» . رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، ٤ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ١ حضرت براء ﷛ فرمايي ٢ چې ما ته د رسول الله ﷺ سره اتلس ورځو د سفر شرف حاصل شوې دي ٣ ما په دې دوران کې داسې هيڅ کله نه دي ليدلي چې حضور ﷺ د نمر د زوال څخه وروسته د ماسپښين د لمانځه څخه مخکې دوه رکعاته پريښي وي، ابوداؤد ترمذي، ٤ امام ترمذي ﷫ فرمايي چې دا حديث غريب دي.

**حل اللغات:-** ① زَاغَتْ: زوال به اوشو.

**تسهيلات:-**

**نوټ:-** په حديث کښې څه مشکل نشته. د ترجمې څخه مطلب واضح دي.

## [١٣٥٣]د فرصت په موقع په سفر کښې د نفلو کول

١٣٥٣-(٢)[٢١] ١ وَعَنْ نَافِعٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: ٢ «إِنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ كَانَ يَرَى ابْنَهُ عُبَيْدَ اللّٰهِ يَتَنَفَّلُ فِي السَّفَرِ ٣ فَلَا يُنْكِرُ عَلَيْهِ». رَوَاهُ مَالِكٌ.

**ترجمه:** ١ نافع ﷫ فرمايي ٢ چې حضرت ابن عمر ﷛ به خپل زوي عبيدالله د سفر په حالت کې په نفل لمانځه کولو ليدلو ٣ او هغه به يې نه منع کولو. (مالك)

**تسهيلات:- قوله:** بْنَ عُمَرَ كَانَ يَرَى ابْنَهُ:

**د حديثينو په مينځ کښې تعارض:-** دې نه وړاندې په حديث نمبر ۶ کښې په واضحه توګه ذکردې چه حضرت ابن عمر ﷠ دَ سفرپه حالت کښې دَخلقو په نفلونه کولوسره حيرانتيا هم اوکړه اوپخپله دَنه کولووجه ئې هم بيان کړه ليکن دلته په زيربحث حديث کښې ذکردې چه حضرت ابن عمر ﷠ خپل ځوئې په سفرکښې نفل کولوسره اوکتلواو په هغه باندې څه منع والې اونه فرمائيلو دَدې څه وجه ده؟

**دتعارض جوابونه:-**

① کيدې شي چه دَحضرت ابن عمر ﷠ ځوئې دَ سنت مؤکده مونځ کولو په دې وجه ئې نه منع کړو اونه ئې اوټوکلو.

---

[1] ) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب التطوع فى السفر (رقم-١٢٢٢) والترمذى كتاب السفر/باب ما جاء فى التطوع فى السفر (رقم-٥٥٠)

[2] ) اخرجه مالک فى الموطا كتاب قصر الصلاة فى السفر ، باب صلاة النافلة فى السفر، بالنهار والليل، والصلاة على الدابة (رقم-٢٤)

② ډیر ممکن دی چه دَحضرت ابن عمر رضي الله عنهما خوئي عبید الله رحمه الله په داسې وخت کښې مونځ کولو په کوم کښې چه کافی وسعت وه او هغه دغه شان فارغ وخت کښې کله سرې خپل ځان په بل څه کار کښې نه لګوی بلکه په مونځ کولو کښې مشغول کیږی نو هغه بندونکې به څوك وی؟

③ یا دَ حضرت ابن عمر رضي الله عنهما په ذهن کښې به دا آیت ﴿ اَرَءَيْتَ الَّذِيْ يَنْهٰى ۙ عَبْدًا اِذَا صَلّٰى ﴾ [علق الایه: ١٠] په کوم کښې چه دَ عام مانځه نه بندولو باندې دَسخت وعید ذکر دې په دې وجه هغوی دَمانځه نه بند نه کړو او عبید الله رحمه الله په نوافلو کښې مشغول پاتې شو.

# [٥٨/٢٤] بَابُ الْجُمُعَةِ

## دَ جمعې بیان

**خلاصة الباب:-**

**فيه أربعة عشر حديثاً مشتملة على مسئلتين:**

① فضیلة یوم الجمعة و لیلتها: ١، ٢، ٥، ٧، ٨، ٩، ١٠، ١١، ١٢، ١٣، ١٤

② فضیلة ساعة في یوم الجمعة: ٣، ٤، ٥، ٦، ٨، ، ١٠.

**د جمعې د مونځ ثبوت:-** قال الله تعالى ﴿ يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا نُوْدِيَ لِلصَّلٰوةِ مِنْ يَّوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا اِلٰى ذِكْرِ اللّٰهِ وَذَرُوا الْبَيْعَ ﴾ [جمعة الایه: ٩] وقال الله تعالى ﴿ وَالْيَوْمِ الْمَوْعُوْدِ ۙ وَشَاهِدٍ وَّمَشْهُوْدٍ ﴾ [بروج آلایه: ٣]

**دجمعه د لفظ لغوی تحقیق:-** په لفظ دَ جمعه کښې مختلف لغات دی دَ ټولو نه ښه لغت دَ جیم او میم ضمه "جُمُعه" ده. دې نه پس ښکلې لغت جیم باندې ضمه او میم سکون دې بیا دَ جیم ضمه او دَمیم فتح دَ هُمَزَه په شان دې. دَ جمعه په لفظ کښې تاء دَ تانیث دَپاره نه ده بلکه دَ مبالغه دَپاره ده.

**په زمانه جاهلیت کښې د جمعې نوم:-** دَ جمعه نوم دَدې اسلامی نوم دې په جاهلیت کښې دَدې نوم "یوم العروبة" و وعروبه دَ رحمت په معنی کښې ده اوس دا خبره په جمعه باندې

**دجمعې په وجه تسمیه کښې مختلف اقوال:-** دَ جمعه نوم کیخودلو وجه ده که نه، نو علماؤ یو څو وجوهات بیان کړی دی.

① په دې ورځ دَ حضرت آدم علیه السلام دَ بدن مبارك خټه راجمع کړې شوې وه.

② په دې ورځ چونکه دَخلقو ډیره اجتماع وی خلق راجمع کیږی نو دې ته جمعه او وئیلې شوه. یعنی "یوم الفوج المجموع"

③ بعضې حضرات وائی چه کعب بن لوئی په دې ورځ خلق راجمع کولو سره وعظ کولو

دَدې جمع کيدلو دَ وجې نه جمعه شوه.

④ په دې ورځ په زمکه باندې دَ حضرت حوا عليهما السلام او حضرت آدم عليه السلام دَ جنت دَخروج نه پس په ړومبی ملاقات کښې اجتماع شوې وه.

**دجمعې ورځ دالله تعالی لوئې نعمت:** -بهرحال دَمسلمانانو دَپاره جمعه مبارکه ورځ دَ الله تعالی دَ طرف نه يولوئی نعمت او لوئی رحمت دې. يهود اونصاریٰ الله تعالی دَدې ورځ نه محروم کړل او مسلمانانو ته ئې دا عظيم دولت ورکړوچه دې کښې دَ روحانی برکتونو نه علاوه بې شميره مادی فوائد هم دی. دَ پيسو خرچ کولونه بغيرتقريبًا پنخوس کروړه نه زيات مسلمانان په ټوله دنيا کښې دَ جمعو په اجتماعاتو کښې په هفته کښې يوځل رايوخائی کيږی دَجماتونو طرف ته مخ کوی او دَخطيبانو حضراتو نه وعظ اوری او قرآن اوحديث اودين اسلام سره اينختی وی. پنخوس کروړه انسانان په هفته کښې يوځل دَ دنياکوم يومذهب راجمع کولې شی؟ اوکه رايوخائی هم کړی نو په دې به څومره خرچه راځی واقعی دَالله تعالی دين رحمت دې.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [١٣٥٤]د جمعي د فضيلت څخه د يهودو او نصاري اعراض

١٣٥٤-(١)[١] ١ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٢ "«نَحْنُ الْآخِرُونَ السَّابِقُونَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، ٣ بَيْدَ أَنَّهُمْ أُوتُوا الْكِتَابَ مِنْ قَبْلِنَا، وَأُوتِينَاهُ مِنْ بَعْدِهِمْ، ٤ ثُمَّ هَذَا يَوْمُهُمُ الَّذِي فُرِضَ عَلَيْهِمْ -يَعْنِي الْجُمُعَةَ- ٥ فَاخْتَلَفُوا فِيهِ، فَهَدَانَا اللهُ لَهُ، ٦ وَالنَّاسُ لَنَا فِيهِ تَبَعٌ، ٧ الْيَهُودُ غَدًا، وَالنَّصَارَى بَعْدَ غَدٍ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ حضرت ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ مونږ (په دنيا كي) وروسته راغلي يو او د قيامت په ورځ به (په شرف او مرتبه كي) د ټولو څخه مخكې يو ٣ داجدا خبره ده چې اهل كتابو يعني يهود اونصارٰي ته (د الله جل جلاله د طرف څخه) زمونږ څخه مخكې كتاب وركړل شوي دي او مونږ ته وروسته كتاب راكړل شوي دي ٤ بيا دا ورځ (يعنى د جمعي ورځ) په دي اهل كتابو باندې فرض شوې وه ٥ خو هغوئ په دي كې اختلاف وكړو نو الله تعالى جل جلاله د دې ورځي (يعني د جمعي) په باره كې مونږ ته هدايت وكړو (په دي طور چې مونږ د الله تعالى جل جلاله د حكم فرمانبرداري كولو سره دا ورځ د الله تعالى جل جلاله د عبادت د پاره اختيار كړه) ٦ او خلق (يعني يهود اونصارٰي) زمونږ تابع دي ٧ يعنى يهودو صبا ورځ (يعني د جمعي څخه وروسته د خالي ورځ) اختيار كړه او نصارٰي

[١] اخرجه البخاری فی كتاب الجمعة/باب فرض الجمعة (رقم-٨٧٦) ومسلم فی كتاب الجمعة/باب هداية هذه الأمة ليوم الجمعة (رقم-١٩ - (٨٥٥)) والنسائی كتاب الجمعة/باب إيجاب الجمعة (رقم-١٣٦٧)

ود صبا څخه بله ورځ (يعني د خالي څخه وروسته د يکشنبي ورځ) اختيار کړه. (بخاري مسلم)

[١] وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ، قَالَ: "نَحْنُ الْآخِرُونَ الْأَوَّلُونَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ،[٢] وَنَحْنُ أَوَّلُ مَنْ يَدْخُلُ الْجَنَّةَ، بَيْدَ أَنَّهُمْ "[٣] وَذَكَرَ نَحْوَهُ إِلَى آخِرِهِ.

**ترجمه:** [١] او د مسلم په يو روايت کښې دي چې نبی کريم ﷺ اوفرمائل: مونږ آخرنی يو (په وجود دنياوی کښې او) اولنی به يو د قيامت په ورځ [٢] مونږ به جنت ته په داخليدونکو کښې اولنی يو. خو دومره ده چې هغوي به .... [٣] او ددې پشان روايت ئې آخره پورې ذکر کړې دې.

**حل اللغات:-** ① بَيْدَ: دا د غير په معنی کښې دې. ② تَبَعٌ: تابع، ③ غَدًا: صبا ورځ، ④ بَعْدَ غَدٍ: بله ورځ.

**تسهيلات:-**

**نوټ:-** د دې حديث تشريح په راروان حديث نمبر ۱۳۵۵ کښې راروانه ده.

**[١٣٥٥] داولين او آخرين مختلف اعتبارات**

١٣٥٥-()[*] [١] وَفِي أُخْرَى لَهُ عَنْهُ، وَعَنْ حُذَيْفَةَ، قَالَا: [٢] قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي آخِرِ الْحَدِيثِ: [٣] «نَحْنُ الْآخِرُونَ مِنْ أَهْلِ الدُّنْيَا، [٤] وَالْأَوَّلُونَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ الْمَقْضِيُّ لَهُمْ قَبْلَ الْخَلَائِقِ.»

**ترجمه** : او د مسلم په يو بل روايت کې د ابوهريره رضي الله عنه او حذيفه رضي الله عنه څخه داسې منقول دي دواړو اوويل [٢] چې حضور ﷺ د حديث په آخر کې وفرمايل [٣] چې (دنيا ته د راتلو په اعتبار سره) مونږ د ټولو څخه وروسته راغلي يو [٤] او د قيامت په ورځ به د ټولو څخه مخکې يو چې د ټول مخلوقات څخه مخکې به زمونږ د پاره (د حساب او په جنت کې د داخليدو) حکم وشي.

**حل اللغات:-** ① الْآخِرُونَ : په آخر کښې راتلونکی، ② الْأَوَّلُونَ : اول تلونکی، ③ الْمَقْضِيُّ : د اسم مفعول صيغه ده. فيصله کړې شوې. ④ الْخَلَائِقِ: ټول مخلوق.

**تسهيلات:- قوله : نَحْنُ الْآخِرُونَ:**

**دوجود په اعتبار سره د امت محمدی روسته والې:-** يعنی مونږ په دنيا کښې د ټولونه په آخر کښې راپيدا شوی يو ليکن په عزت، منزلت او مرتبه اومقام په اعتبار سره د قيامت په ورځ مونږ د ټولو نه مخکښې يو. د ټول مخلوق نه مخکښې به زمونږ فيصله کيږی او مونږ به د ټولو نه مخکښې جنت کښې داخليږو.

علماؤ د احاديثو په رڼړا کښې داخبره په وضاحت سره ليکلې ده چه رسول الله ﷺ د ظهوراوبعثت په اعتبارسره اگرچه د ټولونه په آخره کښې راغلي وو ليکن په نبوت باندې سرفراز کيدو او د نبوت د برکتونو د ظهور په اعتبارسره حضورپاك ﷺ د ټولو نه

[١]) اخرجه مسلم في كتاب الجمعة/باب هداية هذه الأمة ليوم الجمعة (رقم) ٢٢ - (٨٥٦)

مخکښې اومقدم وو. څکه چه "کنت نبیاوادم بین الماءوالطین" دَ حدیث هم دغه مطلب دې.

**قوله: فَرَضَ عَلَيْهِمْ:**

**د فرض عليهم په مطلب کښې دوه اقوال:-**

① يعنى الله تعالى چه په مسلمانانوباندې څنګه دَ جمعې په ورځ عبادت فرض کړې دې دغه شان دَدې ورځې عبادت په اهل کتاب او يهود اونصارىٰ باندې هم فرض ګرځولې شوې وو اوهغوى ته حکم ورکړې شوې وو چه په دې ورځ جمع شئى اودَ الله تعالى په عبادت کښې مشغول شئ. اودَدنياکارونه پرېږدئ ليکن دغه خلقو دَخپل کم عقلئ اودَ فساد نه ډك ذهن په بنياد باندې دَدې نه مخ واړولو نوالله تعالى دا ورځ مسلمانانوته ورکړه.

② يا دَ دې جملې مطلب دادې چه الله تعالى دَ خپل علم مطابق دَجمعې ورځ يهوديانو اونصارىٰ باندې دَ عبادت دَپاره پيش کړه اوحکم ئى ورکړو چه الله تعالى دَ عبادت دَپاره يوه ورځ ستاسو دَپاره خوښه کړې ده. دَ دې وجې نه تاسو دَخپل فکرى قوت او اجتهادى سوچ نه کارواخلئى اودغه ورځ خوښه کړئى. لکه چه په دې صورت کښې دَ يهوديانو او نصارىٰ امتحان وو چه هغوى په خپل اجتهادسره دَ صحيح خبرې پورې رسيدو صلاحيت لرى او که نه او په دې امتحان کښې هغوى پاس کيدې شى اوکه نه.

حال دادې چه دَ دغه دواړو فرقو سوچ غلط طرف ته لاړو او صحيح څيز ئى حاصل نه کړې شو بلکه په صحيح څيزکښې ئى اختلاف اوکړو او ناکام شو.

**د جمعې د ورځې په انتخاب کښې د اهل کتابو اختلاف:-**

"فأختلفوا" يعنى اهل کتاب دَدغه ورځې په انتخاب کښې اختلاف اوکړو اودَخپل عقل سرکش اسونه ئى غلط طرف ته اوزغلول.

① نويهوديانو دَ هفتې يعنى سنيچر ورځ اختيارکړه او دا اجتهاد ئى اوکړو چه په دې ورځ الله تعالى دَ کائنات دَ تخليق نه فارغ شوې وو نومونږ هم په دې ورځ دَ ټولو کارونونه فارغيدو سره به عبادت کښې مشغول کيږو نويهوديانوته دَ هفتې ورځ ورکړې شوه اوهغوى تر ننه پورې يوم السبت د مقدس ورځې په توجه نمانځى.

② په اهل کتاب کښې بله لويه فرقه نصارىٰ اجتهاد اوکړو چه دَ اتوار په ورځ چونکه الله تعالى دَ کائنات دَتخليق شروع کړې ده اوحال دادې هم دغه ورځ دکمالاتو او انعاماتو شروع ده په کوم کښې چه الله تعالى په خپل مخلوق باندې دَ فيض رسولو دَپاره متوجه شو اوهغوى ته ئى وجود ورکړو دَدې وجې نه دَ الله تعالى دَعبادت دَپاره هم دغه ورځ افضل او غوره ده. نو نصارىٰ دَ اتوار ورځ په توګه دَمقدس ورځې نمانځل شروع کړه او ترننه پورې ئى نمانځى. يهوديان او نصارىٰ دَ خپل غلط سوچ او سرکش عادتونو دَ وجې نه دَجمعې حقيقت حاصل نه کړې شو اوهغوى دَ دې دولت نه محروم پاتې شو. لهذا الله تعالى دَ

جمعې ورځ مسلمانانوته ورکړه . مسلمان امت هم خیرالامم دې اودا دَ جمعې ورځ هم سیدالایام ده په دې وجه الله تعالی امت محمدیه له دا عزت ورکړو. اوس اوشوه داسې چه دَ جمعې دَ ورځې نه دَ پوره هفتې دَ ورځو شروع کیږي. نومسلمانان په اول نمبر باندې په جمعه راغلل دویم نمبر دَ هفتې ورځ باندې یهودیان پاتې شو او نصارىٰ په دریم نمبر دَ اتوار په ورځ راغله. "وذلك فضل الله يؤتيه من يشاء".

**قوله: والناس لنا فيه تبع:**

**دَ تابعداری مفهوم:**- یعنی په عبادت کښې خلق زمونږ تابع دی څکه چه دَ جمعې ورځ دَ تخلیق آدم او انسانی تخلیق شروع اوشوه. دَ انسان وجود هم په دې ورځ راغلو اودَ انسان وجود دَعبادت دَپاره دې لهذا په عبادت کښې دَ جمعې ورځ مبتوع اودَ ټولو نه اوله ورځ ده اوهفته او اتوار دَدې تابع دی. دَ تبع مطلب هم دغه دې اوپورته چه کوم مطلب لیکلې شوې دې چه جمعه دَ هفتې دَ اووه ورځو دَپاره رومبې ورځ ده اوهم دَدې نه هفته شروع کیږي دغه مطلب اخستل هم صحیح دی.

**[١٣٥٦]دَ جمعه دَورځې فضیلت**

١٣٥٢-()[٢][١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:[٢] "«خَيْرُ يَوْمٍ طَلَعَتْ عَلَيْهِ الشَّمْسُ يَوْمُ الْجُمُعَةِ،[٣] فِيهِ خُلِقَ آدَمُ، وَفِيهِ أُدْخِلَ الْجَنَّةَ، وَفِيهِ أُخْرِجَ مِنْهَا،[٤] وَلَا تَقُومُ السَّاعَةُ إِلَّا فِي يَوْمِ الْجُمُعَةِ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:**[١] ابوهریره رضی الله عنه راوي دي چې سردار د دواړو جهانو صلی الله علیه وسلم وفرمایل[٢] هغه ورځې چې په هغې کې نمر راخیجي د ټولو څخه بهتره ورځ جمعه ده[٣] په دي ورځ حضرت آدم علیه السلام پیدا شو (یعني د هغه تخلیق مکمل شو) په دي ورځ په جنت کې داخل شو او په دي ورځ د جنت څخه ویستل شو (او زمکې ته راښکته کړل شو)[٤] او قیامت به د جمعې په ورځ قائمیږي. (مسلم)

**تسهیلات:**- **قوله: يَوْمُ الْجُمُعَةِ:** په راتلونکی احادیث کښې هم دَدې قسم ډیرو څیزونو تذکره دَ جمعه په فضیلت کښې کړې شوې ده چه جمعه څکه دَ ټولو ورځونه افضل ده چه په دې کښې لوئی لوئی واقعات شوی دی یابه کیږي.

**دَ خروج آدم او دَ قیام قیامت په فضیلت اشکال:**- اشکال دادې چه دَحضرت آدم علیه السلام دَ جنت نه راوتل په ظاهره څه دَ فضیلت خبره نه ده دَدې دَجمعې فضیلت سره څه تعلق دې؟ بل دَ قیامت قائم کیدل یوآفت اومصیبت دې دَدې دَ جمعه فضیلت سره څه کاردې؟

[1]) اخرجه مسلم فی کتاب الجمعة/باب فضل یوم الجمعة (رقم-١٨ - (٨٥٤) والترمذی کتاب الجمعة/باب فضل یوم الجمعة (رقم-٤٨٨)

**داشکال دوه جوابونه :-**

① دَ حضرت آدم عليه السلام دَ جنت نه راوتل دَ يوعظيم منصوبې دَ پوره کيدو دَپاره وو چه انسان دې دنياته راشي اوآبادشي دَالله تعالى دَ کائنات نه فائده اوچته کړي اوعبادت کولوسره دَ الله تعالى رضاحاصله کړي جنت ته لاړشي. دغه شان دَ قيامت قائم کيدوسره هم دَانسانانورسيدل الله تعالى ته کيږي اودَ الله تعالى په رضااو رحمت سره جنت ملاويږي دَدې وجې نه داځيزونه هم دَجمعې دَ فضيلت ذريعه ده.

② حضورپاك ﷺ دَ جمعې فضيلت په دې انداز سره بيان کړې دې چه جمعه کښې لوئى لوئى واقعات او انقلابات شوى دى اوبيابه هم په دغه عظيمه ورځ کښې عظيم واقعات ښکاره کيږي او په کومه ورځ چه دومره يادګاري اوتاريخي واقعات ښکاره شوى دى هغه ورځ به پخپله څومره لويه وى. هم په دې سلسله کښې دَحضرت آدم عليه السلام دَ پيدائش عظيم الشان واقعه بيادَ جنت نه دَهغوى دَ وتلو ډيره لويه واقعه بياقيامت کښې دکائنات دړې وړې کيدلوغوندې لوئى واقعات رسول الله ﷺ دَ جمعه ورځې سره يو ځائى کول دَجمعې انقلابى شان بيان کړې دې. داډيرښه جواب دې او په دې ټولو احاديثوکښې جارى کيدې شى په کومواحاديثوکښې چه دَدې قسم واقعاتوذکراغلي دې.

**د عرفې اويوم الجمعې په افضليت کښې اختلاف:-** اوس بحث په دې کښې دې چه دَعرفې ورځ افضل ده که دَ جمعې ورځ افضل ده. علامه طيبى رحمه الله فرمائى بعضې حضرات وائى دَ عرفې ورځ افضل ده اوبعضې وائى دَ جمعې افضل ده.

**په قولونو کښې تطبيق:-** بهرحال په دې کښې داسې تطبيق کيدې شى چه په کال کښې دَټولونه افضل ورځ دَعرفې ده اودَ هفتې په ورځوکښې دَ ټولونه افضل دَ جمعې ورځ ده نوځه تضادبه نه وى.

**[١٣٥٧] دَجمعې په ورځ کښې د دعا د قبليدو وخت**

١٣٥٧-(١)[٣] ① وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«إِنَّ فِي الْجُمُعَةِ لَسَاعَةً لَا يُوَافِقُهَا عَبْدٌ مُسْلِمٌ ③ يَسْأَلُ اللّٰهَ فِيهَا خَيْرًا إِلَّا أَعْطَاهُ إِيَّاهُ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ، ④ وَزَادَ مُسْلِمٌ: قَالَ: "وَهِيَ سَاعَةٌ خَفِيفَةٌ". ⑤ وَفِي رِوَايَةٍ لَهُمَا، قَالَ: "«إِنَّ فِي الْجُمُعَةِ لَسَاعَةً لَا يُوَافِقُهَا مُسْلِمٌ ⑥ قَائِمٌ يُصَلِّي يَسْأَلُ اللّٰهَ خَيْرًا إِلَّا أَعْطَاهُ إِيَّاهُ»".

**ترجمه:** ① ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② د جمعې په ورځ يو داسې ساعت راځي که يو مؤمن بنده يي اومومي ③ او په هغې کې د الله تعالى جل جلاله څخه د خير سوال وکړي نو الله تعالى جل جلاله ورته هغه خير عطا کوي (يعني په هغه ساعت کې

---

[١] ) اخرجه البخارى فى كتاب الجمعة /باب الساعة التى فى يوم الجمعة (رقم-٩٣٥) ومسلم كتاب الجمعة /باب فى الساعة التى فى يوم الجمعة (رقم-١٥ - (٨٥٢) والترمذى كتاب الصلاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء أنه يخفى التشهد (رقم-٢٩١) والنسائى كتاب الجمعة /باب ذكر الساعة التى يستجاب فيها الدعاء يوم الجمعة (رقم-١٤٣١) ومالك فى الموطا كتاب الجمعة /باب العمل فى غسل يوم الجمعة

غوښتل شوې دعا ضرور قبليږي، بخاري مسلم،[٤] په يو روايت کې مسلم دا الفاظ مزيد نقل کړي دي چې حضور ﷺ وفرمايل هغه ساعت ډير لږ وي،[٥] او د بخاري او مسلم په يو بل روايت کې دا الفاظ منقول دي چې حضور ﷺ وفرمايل بغير د شك شُبهې د جمعې په ورځ يو داسې ساعت راځي کوم مومن بنده يې چه ومومي[٦] چې د لمانځه د پاره ولاړوي او د الله تعالىٰ ﷻ څخه د خير د پاره دعا وغواړي نو الله تعالىٰ ﷻ ورته هغه خير ضرورو ورکوي.

**حل اللغات:-** ① خَفِيفَةٌ: قِلّت مراد دې يعنی لږ وخت.

**تسهيلات:-**

**قوله: إِنَّ فِي الْجُمُعَةِ لَسَاعَةً:**

دَدې حديث نه داخبره معلومه شوه چه دَ جمعې په ورځ يو ساعت داسې دې چه که يوبنده په هغې کښې دَ الله تعالىٰ نه سوال کوی نوالله تعالىٰ هغه قبلوی. مطلب دا چه الله تعالىٰ په خپل حکمت سره دغه گهړئی او ساعت پټ ساتلې دې دې دَپاره چه هرسړې دَ جمعې ټوله ورځ عبادت او دعاگانوکښې ښه محنت اومشقت اوکړی اودَ يوخاص مختصر وخت انتظار اونه کړی.

**قوله: إِلَّا أَعْطَاهُ إِيَّاهُ:**

**د دعا د قبوليت درې صورتونه:-**

① چه کومه دعادې اوغوښتله الله تعالىٰ په دنياکښې پوره کړه اوانسان ته دَهغې دَ نتيجې علم اوشو.

② چه په دنياکښې دَ هغې دَ قبوليت اثر نه ښکاره کيږی مگر دَقيامت په ورځ الله تعالىٰ دَ دې دعا په بدله کښې دغه سړی ته ثواب ورکوی

③ د دعا د قبوليت يو صورت دا هم چې کله دَ دعادَ قبوليت صورت دا وی چه دعا غوښتونکی باندې يوغيبی آفت راتلونکې وی مگر دَ دعادَ برکت نه دا مصيبت او آفت اخواشی دا هم "الاعطاه" يوصورت دې. بهرحال دَ مسلمان دعا ضائع کيږی نه.

**قوله: قَائِمٌ يُصَلِّي:**

**د مذکوره جملې په مطلب کښې درې اقوال:-**

① واقعی هغه سړې په مانځه باندې ولاړ وی او سوال کوی اوهم دا گهړئی رارسيدلې وی.

② هغه سړې دَ مونځ په انتظارکښې ناست وی څکه چه داهم حکماً په مونځ کښې شميرلې کيږی.

③ هغه صرف هم مونځ کوی يعنی دَ مونځ ډيره پابندی کوی. مطالب دَدې دَپاره بيان کړې شوې دې چه په دې باره کښې ټولو احاديثوکښې تطبيق راشی.

## [١٣٥٨]دَ جمعې په ورځ دَ دعا د قبليدو د وخت مصداق

١٣٥٨–()[٣][١]وَعَنْ أَبِي بُرْدَةَ بْنِ أَبِي مُوسَى، قَالَ:[٢]«سَمِعْتُ أَبِي يَقُولُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ فِي شَأْنِ سَاعَةِ الْجُمُعَةِ:[٣]"هِيَ مَا بَيْنَ أَنْ يَجْلِسَ الْإِمَامُ إِلَى أَنْ تُقْضَى الصَّلَاةُ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:**[١] ابي برده ابن ابي موسي راوي دي[٢] چې ما د خپل پلار بزرګوار (حضرت ابو موسي رضي الله عنه) څخه واوريدل فرمايل يي چې ما د رسول الله ﷺ څخه د جمعې د قبوليت د ساعت په باره کې اوريدلي دي[٣] چې هغه ساعت (د خطبې د پاره) د امام په منبر د ناستې او د لمانځه پوره کولو پورې په درمياني حصه کې دي. (مسلم)

**تسهيلات:- قوله: هِيَ مَا بَيْنَ أَنْ يَجْلِسَ الْإِمَامُ:**

**د جمعې په ورځ د دعا د قبليدو د وخت په تعيين کښې درې اقوال:-** دَ جمعې په ورځ دَ دعا دَ قبليدو ساعت اوداوخت خويقيني دې په دې کښې دَ چاهم اختلاف نشته دې اونه په دې کښې څه شك شته ليکن په دې کښې په علماؤکښې اختلاف دې چه هغه ساعت په کوم وخت کښې راځي.

① څنګه الله تعالى اسم اعظم پټ ساتلې دې اوشب قدرئې پټه ساتلې ده دغه شان ئې هغه دَ جمعې وخت هم پټ ساتلې دې. او

② هغه ساعت په هره جمعه کښې بدليږي. په يوه جمعه کښې دَسحروخت بله کښې دَ ماسپښين يا زوال وخت کښې راځي اوپه يوه جمعه کښې دَمازيګرنه پس راځي.

③ دَاکثروعلماؤ رائې داده چه هغه ساعت دَ جمعې په يوخاص وخت کښې راځي.

**د مختلفو وختونو دلائل:-**

① په زيربحث حديث کښې خودلې شوی دی چه دَامام دَ خطبې دَوخت نه واخله دَ مانځه ختميدوپورې کوم وخت دې په دې وخت کښې هغه ساعت موجود دې.

② حديث نمبر ٥ کښې حضرت عبدالله بن سلام رضي الله عنه تصريح فرمائی چه دا ساعت دَ مازيګردَ مانځه نه پس وی. مظاهرحق کښې دَ ٣٥ اقوالو په رنړاکښې دَ ټولو وختونو ذکر کړې شوې دې هم هلته اوګورئی ليکن په زيربحث حديث کښې چه دَ يووخت متعلق تصريح راغلې داکافی ده.

[1] ) اخرجه مسلم في كتاب الجمعة /باب في الساعة التي في يوم الجمعة (رقم) ١٦ - (٨٥٣) وابوداود كتاب الصلاة،باب الإجابة أية ساعة هي في يوم الجمعة (رقم-١٠٤٨)

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [١٢٥٩] دَ جمعې فضيلت او دَ قبوليت وخت

١٢٥٩ – (١)[٥] [١] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: [٢] «خَرَجْتُ إِلَى الطُّورِ، فَلَقِيتُ كَعْبَ الْأَحْبَارِ، فَجَلَسْتُ مَعَهُ، [٣] فَحَدَّثَنِي عَنِ التَّوْرَاةِ، وَحَدَّثْتُهُ عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، [٤] فَكَانَ فِيمَا حَدَّثْتُهُ أَنْ قُلْتُ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٥] " خَيْرُ يَوْمٍ طَلَعَتْ عَلَيْهِ الشَّمْسُ يَوْمُ الْجُمُعَةِ، [٦] فِيهِ خُلِقَ آدَمُ، وَفِيهِ أُهْبِطَ، وَفِيهِ تِيبَ عَلَيْهِ، [٧] وَفِيهِ مَاتَ، وَفِيهِ تَقُومُ السَّاعَةُ،

**ترجمه:** [١] ابوهريره رضي الله عنه فرمايي [٢] چې (يوه ورځ) زه د کوه طور طرف ته لاړم او هلته مې د کعب احبار سره ملاقات وکړو زه د هغه سره کيناستم [٣] هغه زما په مخکې د تورات څه خبرې بيان کړې او ما د هغه په مخکې د رسول الله ﷺ حديثونه بيان کړل [٤] کوم حديثونه چې ما هغه ته بيان کړل په هغه کې يو دا هم وو چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي [٥] چې په هغه ورځو کې چې په هغې کې نمر راخيجي د ټولو څخه بهترينه ورځ د جمعې ورځ ده [٦] د جمعې په ورځ حضرت آدم عليه السلام پيدا شو، په دې ورځ د جنت څخه زمکې ته رابښکته کړل شو په هغه ورځ (يعني په کومه جمعه چې د جنت څخه رابښکته کړل شو) د هغې جمعې په آخري وخت کې يا دا چې د بلې جمعې په ورځ د هغه توبه قبوله شوه [٧] په دې ورځ هغه وفات شو او د جمعې په ورځ به قيامت قائميږي.

[١] وَمَا مِنْ دَابَّةٍ إِلَّا وَهِيَ مُصِيخَةٌ يَوْمَ الْجُمُعَةِ [٢] مِنْ حِينِ تُصْبِحُ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ، [٣] شَفَقًا مِنَ السَّاعَةِ، [٤] إِلَّا الْجِنَّ وَالْإِنْسَ، [٥] وَفِيهِ سَاعَةٌ لَا يُصَادِفُهَا عَبْدٌ مُسْلِمٌ [٦] وَهُوَ يُصَلِّي يَسْأَلُ اللّٰهَ شَيْئًا إِلَّا أَعْطَاهُ إِيَّاهُ، [٧] قَالَ كَعْبٌ: ذَلِكَ فِي كُلِّ سَنَةٍ يَوْمٌ؟ فَقُلْتُ: بَلْ فِي كُلِّ جُمُعَةٍ. [٨] فَقَرَأَ كَعْبٌ التَّوْرَاةَ، فَقَالَ: صَدَقَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ،

**ترجمه:** [١] او داسې هيڅ چوپايه (حيوان) نشته چې د جمعې په ورځ د قيامت کيدو منتظر نه وي [٢] د نمر ختو څخه تر نمر پريوتو پورې (يعني چوپايه ته هم دا معلومه ده چې قيامت به د جمعې په ورځ راځي ځکه هغه د جمعې ټوله ورځ په دې خوف کې مبتلا وي چې چيرته نن قيامت نشي) [٣] د قيامت د ويرې په وجه [٤] علاوه د پيريانو او انسانانو څخه (يعني جن او انس د دې د انتظار څخه غافله شوې دي) [٥] او د جمعې په ورځ يو داسې ساعت راځي که يو مسلمان بنده هغه اومومي [٦] او هغه (حقيقتاً يا حکماً) مونځ کوي (يعني د لمانځه انتظار کوي يا دعا غواړي) او د الله تعالى جل جلاله څخه د څه شي سوال وکړي نو هغه شي

[١]) اخرجه ابوداود فى كتاب الصلاة،باب فضل يوم الجمعة وليلة الجمعة (رقم-١٠٤٦)والترمذى باب فى الساعة التى ترجى فى يوم الجمعة (رقم-٤٩١) والنسائى كتاب الجمعة /باب ذكر الساعة التى يستجاب فيها الدعاء يوم الجمعة (رقم-١٤٣٠)ومالک فى الموطا كتاب الجمعة /باب ما جاء فى الساعة التى فى يوم الجمعة (رقم-١٦)

ضرور ورکول کیږی (یعني هغه وخت چې څه دعا غواړي هغه قبلیږي) ٧ کعب احبار دي اوریدو سره ماته اوویل چې دا ورځ (چې ساعت قبولیت پکې پټ پروت دي) په کال کې یو ځل راځي ما ورته اوویل چې نه دا ورځ خو په هره هفته کې یو ځل راځي ٨ کعب (د دې خبرې د تصدیق د پاره) تورات اولوستلو او د هغې څخه وروسته یې اوویل چې هو، رسول الله ﷺ رښتیا ویلي دي

**حل اللغات:** - ① مُصِيخَةٌ: دَباب افعال نه دې غوږ لګولوسره دَ څه آواز وغیره اوریدو او انتظارکولوته وائی. دلته دَ انتظار په معنی کښې دې ② شَفَقًا: ویره، ③ لَا يُصَادِفُهَا: أي لا يدركها: نه بیامومی، نه رالاندې کوی.

١ قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ: لَقِيتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ سَلَامٍ، ٢ فَحَدَّثْتُهُ بِمَجْلِسِي مَعَ كَعْبِ الْأَحْبَارِ وَمَا حَدَّثْتُهُ فِي يَوْمِ الْجُمُعَةِ، ٣ فَقُلْتُ لَهُ: قَالَ كَعْبٌ: ذَلِكَ فِي كُلِّ سَنَةٍ يَوْمٌ؟ ٤ قَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَلَامٍ: كَذَبَ كَعْبٌ، ٥ فَقُلْتُ لَهُ: ثُمَّ قَرَأَ كَعْبٌ التَّوْرَاةَ، فَقَالَ: بَلْ هِيَ فِي كُلِّ جُمُعَةٍ. ٦ فَقَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَلَامٍ: صَدَقَ كَعْبٌ. ٧ ثُمَّ قَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَلَامٍ: قَدْ عَلِمْتُ أَيَّةَ سَاعَةٍ هِيَ؟

**ترجمه:** ١ ابوهریره رضی الله عنه فرمایي ٢ چې (د دې څخه وروسته) ما د عبدالله ابن سلام رضی الله عنه سره ملاقات وکړو او هغه ته مې د کعب سره د ملاقات کولو تذکره وکړه او د جمعې په باره کې کعب ته چې مې کوم حدیث بیان کړي وو هغه مې هغه ته هم اوویل ٣ بیا ما عبدالله ابن سلام ته دا هم اوویل چې کعب وایي چې دا ورځ په کال کې یو ځل راځي ٤ عبدالله بن سلام رضی الله عنه اوویل کعب دروغ ویلي دي ٥ بیا ما اوویل لیکن کعب وروسته تورات اولوستلو او هغه اوویل (چې رسول الله ﷺ صحیح ویلي دي چې) دا ساعت د هرې جمعې په ورځ راځي ٦ عبدالله بن سلام رضی الله عنه وفرمایل چې کعب دا رښتیا اووئیل ٧ بیا یې اوویل ما ته معلومه ده چې هغه کوم ساعت دي

١ قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ: فَقُلْتُ: أَخْبِرْنِي بِهَا وَلَا تَضِنَّ عَلَيَّ، ٢ فَقَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَلَامٍ هِيَ آخِرُ سَاعَةٍ فِي يَوْمِ الْجُمُعَةِ، ٣ قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ: فَقُلْتُ: وَكَيْفَ تَكُونُ آخِرَ سَاعَةٍ فِي يَوْمِ الْجُمُعَةِ، وَقَدْ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " ٤ لَا يُصَادِفُهَا عَبْدٌ مُسْلِمٌ وَهُوَ يُصَلِّي فِيهَا"؟

**ترجمه:** ١ ابوهریره رضی الله عنه وایي ما ورته اوویل چې ماته یې هم وښایه او د بخل څخه کار مه اخله ٢ نو عبدالله ابن سلام رضی الله عنه وفرمایل چې هغه د جمعې د ورځې آخري ګهړۍ ده ٣ ابوهریره رضی الله عنه وایي ما ورته اوویل چې هغه د جمعې د ورځې آخري ګهړي څنګه کیدې شی حالانکه د رسول الله ﷺ دا ارشاد دي ٤ چې کوم مؤمن بنده دا اوموميي او په هغې کې مونځ کوي (او ته وایي چې هغه ساعت د جمعې د ورځې آخري ګهړي ده هغه وخت خو مونځ نه کیږي ځکه چې مکروه دي)

**حل اللغات:** - ③ تَضِنَّ: ضن يضن. کنجوسئ او بخل ته وائی.

[١] فَقَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ سَلَامٍ: أَلَمْ يَقُلْ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] "مَنْ جَلَسَ مَجْلِسًا يَنْتَظِرُ الصَّلَاةَ، فَهُوَ فِي صَلَاةٍ حَتَّى يُصَلِّيَ "؟ [٣] قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ: فَقُلْتُ: بَلَى، قَالَ: فَهُوَ ذَلِكَ». رَوَاهُ مَالِكٌ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ، [٤] وَرَوَى أَحْمَدُ إِلَى قَوْلِهِ: صَدَقَ كَعْبٌ.

**ترجمه:** [١] عبد الله ابن سلام ﷛ وفرمایل (دا صحیح ده لیکن، آیا دا د رسول الله ﷺ ارشاد نه دي چې [٢] کوم سړي د لمانځه په انتظار کې په خپل ځاي ناست وي نو هغه (حکمًا) د لمانځه په حکم کښې دي تر دي چې هغه (حقیقتًا) مونځ وکړي [٣] ابوهریره ﷛ وایي چې دي اوریدو سره ما ورته اوویل چې هو حضور ﷺ دا فرمایلي دي نو عبد الله ابن سلام ﷛ وفرمایل بس د لمانځه څخه مراد د لمانځه انتظار کول دي (او د ورځې په آخري حصه کې د لمانځه په انتظار کې ناسته ممنوع نه ده دا وخت که څوك دعا وغواړي نو هغه قبلیږي) مالك، ابوداؤد، ترمذي، نسایي [٤] او امام احمد هم دا روایت د صدق کعب پورې نقل کړي دي.

**تسهیلات:- قوله: مَنْ جَلَسَ مَجْلِسًا:**

**د کعب احبار تعارف:-** کعب احبارد اهل کتاب لوئی عالم وو د حضورپاك ﷺ په زمانه کښې ئې اسلام قبول نه کړو. روستو مسلمان شو لهذا تابعي دې صحابی نه دې.

**د قبولیت د وخت په تعین کښې یو مناظره:-** په دې حدیث کښې حضرت عبد الله بن سلام ﷛ اوحضرت ابوهریره ﷛ د جمعې د ورځې فضیلت والا د ګهړئی د هغه ساعت د خاصوالی متعلق یوه مکالمه بلکه مناظره ذکر کړې شوې ده. حضرت عبد الله بن سلام ﷛ فرمائیل چه دا ساعت د مازیګرنه پس وی. حضرت ابوهریره ﷛ په دې باندې اشکال اوکړو چه د مازیګرنه پس خومونځ کول منع دی حالانکه د دغه ساعت حاصلولو دپاره حضورپاك ﷺ اوفرمائیل چه کوم سړې مونځ کوی نودعا قبلیږی حالانکه مونځ کولې نه شی. حضرت عبد الله بن سلام ﷛ په جواب کښې اوفرمائیل چه کوم سړې د مونځ په انتظارکښې ناست وی ولې هغه په مونځ کښې نه دې؟ حضرت ابوهریره ﷛ اوفرمائیل چه او په مونځ کښې دې. حضرت عبد الله بن سلام ﷛ اوفرمائیل چه د حضورپاك ﷺ هم دغه مقصد دې چه هغه سړې د مازیګر نه پس د مونځ په انتظارکښې ترکومې پورې وی هغه په مونځ کښې وی. علماؤ لیکلی دی چه د عام علماؤ رحجان هم دې طرف ته دې چه د قبولیت دا ساعت د مازیګرنه پس وی.

## [١٣٦٠] د دعا د قبلیدو امید

١٣٦٠-()[١] [١] وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] " «الْتَمِسُوا السَّاعَةَ الَّتِي تُرْجَى فِي يَوْمِ الْجُمُعَةِ [٣] بَعْدَ الْعَصْرِ إِلَى غَيْبُوبَةِ الشَّمْسِ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

[١] اخرجه الترمذی کتاب الجمعة /باب فی الساعة التی ترجی فی یوم الجمعة (رقم-٤٨٩)

**ترجمه**:[١] انس رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل[٢] د جمعې د ورځې هغه ساعت چې په هغې کې د دعا د قبليدو اميد دي[٣] د مازيګر څخه وروسته تر نمر ډوبيدو پورې تلاش کوي. (ترمذي)

**حل اللغات**: - ① الْتَمِسُوا: تلاش کړئ.

**تسهيلات**: -

**قوله**: بَعْدَ الْعَصْرِ إِلَى غَيْبُوبَةِ الشَّمْسِ

**تخصيص بعد التعميم**: - داحديث پاك دتخصيص بعد التعميم د قبيل نه دې چې اول د مطلق ساعة ذکر اوشو اوس دلته دهغه ساعت تخصيص اوکړې شو چې هغه د جمعې په ورځ د مازيګر نه پس وي.

## [١٣٦١] دَ جمعې فضيلت

١٣٦١-()[٧] [١] وَعَنْ أَوْسِ بْنِ أَوْسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] "إِنَّ مِنْ أَفْضَلِ أَيَّامِكُمْ يَوْمُ الْجُمُعَةِ، [٣] فِيهِ خُلِقَ آدَمُ، وَفِيهِ قُبِضَ، [٤] وَفِيهِ النَّفْخَةُ، [٥] وَفِيهِ الصَّعْقَةُ، [٦] فَأَكْثِرُوا عَلَيَّ مِنَ الصَّلَاةِ فِيهِ، [٧] فَإِنَّ صَلَاتَكُمْ مَعْرُوضَةٌ عَلَيَّ "، [٨] قَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ! وَكَيْفَ تُعْرَضُ صَلَاتُنَا عَلَيْكَ وَقَدْ أَرِمْتَ؟ [٩] قَالَ: يَقُولُونَ بَلِيتَ، [١٠] قَالَ: " إِنَّ اللهَ حَرَّمَ عَلَى الْأَرْضِ أَجْسَادَ الْأَنْبِيَاءِ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي "الدَّعَوَاتِ الْكَبِيرِ".

**ترجمه**:[١] اوس ابن اوس رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل[٢] د جمعې ورځ ستاسو د بهترينو ورځو څخه ده[٣] ځکه چې په دې ورځ حضرت آدم عليه السلام پيدا شوې وو په دې ورځ د هغه روح قبض شو[٤] په دې ورځ به دويمه شپيلې صور پو کيږي (چې د هغې د آواز سره به مړي راژوندي کيدو سره د حشر په ميدان کې جمع شي)[٥] په دې ورځ به (اولنې) صور (شپيلې) وپو کل شي چې د هغې د آواز سره به قيامت قائم شي او ټول مخلوق به فنا شي[٦] نو په دې (يعني د جمعې) په ورځ تاسو په ما زيات درود ليږئ[٧] ځکه چې ستاسو درود ماته پيش کول کيږي[٨] صحابه ؤ رضي الله عنهم عرض اوکړو چې يا رسول الله ﷺ زمونږ درود ستا ﷺ مخې ته څنګه پيش کول کيږي ؟ حالانکه (زمونږ درود ليږلو په وخت به) ستا هډوکي بوسيده شوې وي؟[٩] راوي وايي چې د لفظ ارمت څخه د صحابه ؤ رضي الله عنهم مراد لفظ بليت وو يعنې ستا ﷺ جسم مبارك به بوسيده شوې وي[١٠] حضور ﷺ وفرمايل الله تعالى جل جلاله د زمکې د پاره د انبياء و عليهم السلام جسم حرام کړې دي (يعنې د انبياء و عليهم السلام جسم زمکه فناء کولې نشي). (ابوداؤد، نسايي، ابن ماجه، دارمي، بيهقي)

[1]) اخرجه ابوداود في كتاب الصلاة،باب فضل يوم الجمعة وليلة الجمعة (رقم-١٠٤٧) والنسائي كتاب الجمعة/باب ذكر فضل يوم الجمعة (رقم-١٣٧٣) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب ما جاء في الصلاة بين المغرب والعشاء (رقم-١٣٧٣)

**حل اللغات:** - ① النَّفْخَةُ: شپیلۍ پوک وهل، د اسرافیل علیه السلام شپیلۍ پوک وهل مراد دی. ② الصَّعْقَةُ: سخت آواز، دتندر آواز، ③ أَرَمْتَ: تاسو به رژیدلی یئ، ④ بَلِيتَ: تاسو به خراب شوي یئ، (دا دَ راوی دَطرف نه دَ أَرَمْتَ تفسیراو ترجمه ده)

**تسهیلات:** - **قوله: فَأَكْثِرُوا عَلَيَّ مِنَ الصَّلَاةِ فِيهِ:**

**د جمعې په ورځ په نبی ﷺ د کثرت درود وئیلو حکمت:** - یعنی دَ جمعې ورځ دَ ډیرو فضیلتونو برکتونو او لویو لویو واقعاتو ورځ ده په دې کښې په مابانديې د زیات نه زیات درود رالیږئ. دَ جمعې ورځ دَ ورخوسرداره ده په دې کښې یوه نیکی اویا درجوته رسیږي نو په درودونیلوسره به ډیره فائده رسیږي. جمعه هم عظیم نعمت دې اودرود هم عظیم نعمت دې. دَ جمعې په ورځ زیارت القبور فضیلت دې نو دَ درود په ذریعه به دَمحمدعربی ﷺ زیارت اوشی په سترګه نه سهی زړه دماغو روح اوژبې سره به زیارت اوشی.

**قوله: وَقَدْ أَرَمْتَ:**

**د ارمت لفظ تحقیق:** - دَدې لفظ په اصل ماده کښې او بیا په صیغه کښې ډیر اختلاف دې. ډیرواضح اوصحیح دادی چه ارمت ضرب یضرب نه سخاکیدوته وائی لکه ﴿مَنْ يُحْيِي الْعِظَامَ وَهِيَ رَمِيمٌ﴾ شیخ عبدالحق رحمه الله لمعات کښې لیکلی دی چه ارمت په اصل کښې ارممت وو یو میم حذف کړې شو ارمت پاتې شو. بهرحال دا ماده چه په کوم باب بانديې هم یوسې دَدې په مفهوم کښې سخاکیدل پراته دی. [اشعة المعات]

**د صحابی د تپوس مقصد:** - دَصحابی رضي الله عنه دَ سوال مطلب دادې یارسول الله ﷺ زمونږ درود به په تاسو بانديې څنګه پیش کولې شی حالانکه تاسو په به قبرکښې ژوندی نه ئی بلکه ذره ذره به شوی ئی. دَدې په جواب کښې حضورپاک ﷺ ارشاد اوفرمائیل دَ انبیاء کرامو بدنونه الله تعالی په زمکه بانديې حرام کړی دی چه هغه ئی اوخوری. دا جواب دَ سائل دَ سوال مطابق دې. سائل اووئیل چه تاسو به دَ مرګ نه پس ژوندی نه ئی. حضورپاک ﷺ اوفرمائیل انبیاء ژوندی وی اوزه به هم ژوندې یم. دَ بدن دَ حفاظت جواب دَ سائل دَ سوال جواب دې هغه دَ مرګ خبره اوکړه نوحضوردَ حیات خبره اوکړه. دَدې مسئلې تحقیق باب التشهد کښې شوې دې.

## [١٣٦٢] دَ جمعې په ورځ د دعا قبلیدل

١٣٦٢ - (١)[٨] [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] " الْيَوْمُ الْمَوْعُودُ يَوْمُ الْقِيَامَةِ، [٣] وَالْيَوْمُ الْمَشْهُودُ يَوْمُ عَرَفَةَ، [٤] وَالشَّاهِدُ يَوْمُ الْجُمُعَةِ، [٥] وما طَلَعَتِ الشَّمْسُ وَلَا غَرَبَتْ عَلَى يَوْمٍ أَفْضَلَ مِنْهُ، [٦] فِيهِ سَاعَةٌ لَا يُوَافِقُهَا عَبْدٌ مُؤْمِنٌ يَدْعُو اللَّهَ بِخَيْرٍ إِلَّا اسْتَجَابَ اللَّهُ لَهُ، [٧] وَلَا يَسْتَعِيذُ مِنْ

[١] ) اخرجه الترمذی کتاب تفسیر القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ومن سورة البروج (رقم-٣٣٣٩)

شَيْءٍ إِلَّا أَعَاذَهُ مِنْهُ». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، [۸] وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا يُعْرَفُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ مُوسَى بْنِ عُبَيْدَةَ وَهُوَ يُضَعَّفُ.

**ترجمه:** [۱] ابوهریره رضی الله عنه راوي دي چه رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] چې ورځ وعده کړل شوې د قیامت ورځ ده [۳] مشهود د عرفه ورځ ده [۴] او شاهد د جمعې ورځ ده [۵] نمر په داسې هیڅ ورځ باندې نه طلوع او غروب کیږي (راخیجي او پریوځي) چې د جمعې د ورځې څخه افضله وي (یعنې د جمعې ورځ د ټولو څخه افضله ده) [۶] په دې ورځ کې داسې یو ساعت راځي که یو مؤمن بنده یې اومومي او په هغې کې د الله تعالی جل جلاله څخه د خیر سوال وکړي نو الله تعالی جل جلاله هغې ته ضرور خیر عطا کوي [۷] یا د کوم شي څخه پناه وغواړي نو الله تعالی جل جلاله ضرور د هغې څخه پناه ورکوي، احمد ترمذي، [۸] امام ترمذي رحمه الله فرمایي چې دا حدیث غریب دی نه پیژندل کیږي مګر د یو سړي موسی بن عبیده څخه او دا (موسی د محدثینو په نیز د حدیث په روایت کې) ضعیف شمیرل کیږي.

**حل اللغات:-** ① اَلْيَوْمُ الْمَوْعُودُ: وعده کړې شوې ورځ (یعنی قیامت) ② اَلْيَوْمُ الْمَشْهُودُ: هغه ورځ چه خلق ورته حاضریږي (یعنی د عرفې ورځ). ③ اَلشَّاهِدُ: هغه ورځ چه حاضریږي (یعنی د جمعې ورځ).

**تسهیلات:-** قوله: اَلْيَوْمُ الْمَوْعُودُ

**د سورة بروج د ایت تفسیر:-** اصل کښې په حدیث پاک کښې د سورة البروج د آیت مبارك تفسیر مقصود دی (وَالسَّمَاءِ ذَاتِ الْبُرُوجِ ۝ وَالْيَوْمِ الْمَوْعُودِ ۝ وَشَاهِدٍ وَمَشْهُودٍ ۝) چې د یوم الموعود نه مراد د قیامت ورځ ده ، اود شاهد نه مراد د جمعې ورځ ده. اود مشهود نه مراد د عرفې ورځ ده.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [۱۳۶۲] دَ جمعې فضیلت

۱۳۶۳-([1])[۹] [۱] عَنْ أَبِي لُبَابَةَ بْنِ عَبْدِ الْمُنْذِرِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: «قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "إِنَّ يَوْمَ الْجُمُعَةِ سَيِّدُ الْأَيَّامِ وَأَعْظَمُهَا عِنْدَ اللَّهِ، [۳] وَهُوَ أَعْظَمُ عِنْدَ اللَّهِ مِنْ يَوْمِ الْأَضْحَى وَيَوْمِ الْفِطْرِ، [۴] فِيهِ خَمْسُ خِلَالٍ: [۵] خَلَقَ اللَّهُ فِيهِ آدَمَ، [۶] وَأَهْبَطَ اللَّهُ فِيهِ آدَمَ إِلَى الْأَرْضِ، [۷] وَفِيهِ تَوَفَّى اللَّهُ آدَمَ، [۸] وَفِيهِ سَاعَةٌ لَا يَسْأَلُ الْعَبْدُ فِيهَا شَيْئًا إِلَّا أَعْطَاهُ، مَا لَمْ يَسْأَلْ حَرَامًا، [۹] وَفِيهِ تَقُومُ السَّاعَةُ، [۱۰] مَا مِنْ مَلَكٍ مُقَرَّبٍ وَلَا سَمَاءٍ وَلَا أَرْضٍ وَلَا رِيَاحٍ وَلَا جِبَالٍ وَلَا بَحْرٍ إِلَّا هُوَ مُشْفِقٌ مِنْ يَوْمِ الْجُمُعَةِ» . رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] ابو لبابه ابن عبدالمنذر رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] د جمعې ورځ د الله تعالی جل جلاله په نیز د ټولو ورځو سرداره ده او په ټولو ورځو کې زیاته باعظمته ده [۳] او د الله تعالی جل جلاله په نیز د جمعې د ورځې عظمت د عید الفطر او بقر عید (وړوکي او لوي اختر) د ورځې څخه هم زیات دی [۴] او په دې ورځ کښې پنځه خبرې (خوبیانې) دي

---

[1]) اخرجه ابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب في فضل الجمعة (رقم-۱۰۸٤)

(چې د دې د عظمت او فضيلت دليل دی)[٥] ① په دې ورځ الله تعالى ﷻ حضرت آدم عليه السلام پيدا کړو [٦] ② په دې ورځ الله تعالى ﷻ حضرت آدم عليه السلام زمکې ته راښکته کړو [٧] ③ په دې ورځ الله تعالى ﷻ حضرت آدم عليه السلام وفات کړو [٨] ④ په دې ورځ کې يو ساعت داسې راځي چې په هغې کې بنده د الله تعالى ﷻ څخه د حرام شي څخه علاوه څه چې هم غواړي الله تعالى ﷻ يې ورته ضرور عطا کوي (يعنى حرام شي غوښتل مقبول نه دي)[٩] ⑤ او په دې ورځ به قيامت قائميږي [١٠] ټولې مقربې فرښتې، آسمان، زمکه، هوا، غرونه او دريابونه ټول د جمعې د ورځې څخه ويريږي (په دې وجه چې قيامت د جمعې په ورځ راتلونکې دې معلومه نه ده چه کوم وخت راځي)ږ (ابن ماجه)

**حل اللغات:-** ① جلَائِل: خوبيانې، صفات ② أَهْبَطَ: راکوز نې کړو، ③ مُقَرَّبٍ: نزدې کړې شوې، عزتمند ④ مُشْفِقٌ: صيغه داسم فاعل ده، ويريدونکې

**تسهيلات:-**

**قوله: وَهُوَ أَعْظَمُ عِنْدَ اللَّهِ مِنْ يَوْمِ:**

**د جمعې د ورځې الفضليت:-** دحديث مبارك الفاظو (وَهُوَ أَعْظَمُ عِنْدَ اللَّهِ مِنْ يَوْمِ الْأَضْحَى وَيَوْمِ الْفِطْرِ) نه معلوميږي چې يا خود عرفې ورځ دجمعې نه افضل ده يا د فضيلت په اعتبار سره دواړه مساوي دی. ليکن دحضرت رزين رضی الله عنه روايت کښې صراحت سره فرمائيلې شوی دی چې په ټولو ورځو کښې د ټولونه افضله ورځ د عرفې ورځ ده.

**قوله: فِيهِ خَمْسٌ:**

**د جمعې د ورځې پنځه خصوصيات:-** او په دې کښې ورځ کښې پنځه خبرې دی، دا د جمعې دورځې د فضائيلو په بيان کښې تحديد او حصر دپاره نه دی فرمائيلې شوې چې مطلب دا وی چې د جمعې په ورځ صرف دا پنځه خبرې د فضيلت دی. بلکه ددې ورځې نورې خبرې هم داسې دی چې دفضيلت په اعتبار اودعظمت په اعتبار جمعې ته په ټولو ورځو باندې فضيلت ورکوی. لکه منقول دی چې په جنت کښې به د الله ﷻ د ملاقات شرف هم د جمعې په ورځ وی يا داشان نورې خبرې هم منقول دی.

١٣٦٣-(١)[٥] [١] وَرَوَى أَحْمَدُ عَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَادَةَ: [٢] «أَنَّ رَجُلًا مِنَ الْأَنْصَارِ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: [٣] أَخْبِرْنَا عَنْ يَوْمِ الْجُمُعَةِ مَاذَا فِيهِ مِنَ الْخَيْرِ؟ [٤] قَالَ: "فِيهِ خَمْسُ خِلَالٍ» وَسَاقَ إِلَى آخِرِ الْحَدِيثِ.

**ترجمه:** [١] او امام احمد د حضرت سعد ابن عباده رضی الله عنه څخه داسې نقل کړي دي [٢] چې يو انصاري صحابي د حضور ﷺ په خدمت کې حاضر شو او عرض يې وکړو [٣] چې يا رسول الله ﷺ ماته د جمعې په باره کښې وښايه چې په دې کې څه څه خوبياني دي؟ [٤]

(١) اخرجه احمد فى المسند ٥/٢٨٤

حضور ﷺ ورته وفرمايل د دې ورځې پنځه خبري دي باقي حديث يې تر آخر پورې نقل کړي دي (څنګه چې پورته ذکر شوې دي).

**حل اللغات:-** ① خِلَالٍ: خوبياني، صفات. ② سَاقَ الحديث :أى سرده: دحديث تر آخره پورې بوتلل اوبيانول مراد دی.

**تسهيلات:-**

**نوټ:-** د دې حديث تشريح به تيرحديث نمبر ۱۳۶۳ کښې اوګورئ.

**[١٣٦٥] د جمعې وجه تسميه**

١٣٦٥–()[١٠] ١ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: قِيلَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٢ لِأَيِّ شَيْءٍ سُمِّيَ يَوْمُ الْجُمُعَةِ؟ ٣ قَالَ: لِأَنَّ فِيهَا طُبِعَتْ طِينَةُ أَبِيكَ آدَمَ ٤ وَفِيهَا الصَّعْقَةُ وَالْبَعْثَةُ، ٥ وَفِيهَا الْبَطْشَةُ، ٦ وَفِي آخِرِ ثَلَاثِ سَاعَاتٍ مِنْهَا سَاعَةٌ ٧ مَنْ دَعَا اللّٰهَ فِيهَا اسْتُجِيبَ لَهُ. رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** ١ ابوهريره رضی الله عنه راوي دي چې د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وشوه ٢ چې د جمعې نوم جمعه په کوم سبب اينبودل شوې دي؟ ٣ حضور ﷺ وفرمايل په دې وجه چې په دې ورځ ستاسو دپلار حضرت آدم علیه السلام خاوره جمع کړل شوه او د هغه خمير جوړ کړل شو ٤ په دې ورځ به (اولني) صور (شپيلي) پوکل کيږي (چې د هغې د آواز سره به د ټولې دنيا والا مړه شي) او (دويم) صور به پوک کړل شی (چې د دې په آواز سره به ټول مړي دوباره راژوندي کړل شي) ٥ او په دې ورځ به (د قيامت) سخت نيول وي ٦ او د دې ورځ په آخري دري ساعتونو کې يو داسې ساعت دي (يعني د جمعې آخري ساعت) ٧ چې هغه وخت د الله تعالی جل جلاله څخه څه دعا څوك وغواړي نو د هغه دعا قبليږي. (احمد)

**حل اللغات:-** ① طُبِعَتْ : جمع کړې شوه، ② طِينَةُ : خاوره، خټه، ③ الصَّعْقَةُ : سخت آواز، اولنئ شپيلئ، ④ الْبَعْثَةُ: دوباره راژوندی کيدل، ⑤ الْبَطْشَةُ: سخت نيول.

**تسهيلات:-**

**قوله: لِأَيِّ شَيْءٍ سُمِّيَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ:**

**د جمعې وجه تسميه:-** جمعې ته جمعه په دې وجه وائی چې په دې ورځ باندې دامذکوره امور راجمع کيږی. يعنی په دې ورځ به دا ټول کارونه کيږی ، مړه کيدل ، راژوندی کيدل ، او سخت رانيول وغيره.

**قوله: لِأَنَّ فِيهَا طُبِعَتْ طِينَةُ أَبِيكَ آدَمَ:**

دجمعې په ورځ د آدم عليه السلاد جمعې په ورځ د حضرت آدم عليه السلام د خاورې خميره جوړ کړې شوه.

[1]) اخرجه احمد فی المسند ٣١١/٢

**قوله: وَفِيهَا الصَّعْقَةُ:**
د نفخې څخه مراد نفخه اولی ده چې په دې سره به ټوله دنیا مړه شی.(مرقاة ج/٣ص/٢٤١).

**قوله: وَالْبَعْثَةُ:**
د دې نه مراد نفخه ثانیه ده چې په دې سره به ټول مړی راژوندی کړې شی اګر چې خاورې سره خاورې شوی وی.

**[١٣٦٦] دَ جمعې په ورځ د کثرت درود لوستلو فضیلت**

١٣٦٦-()[١١] ① وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② أَكْثِرُوا الصَّلَاةَ عَلَيَّ يَوْمَ الْجُمُعَةِ، ③ فَإِنَّهُ مَشْهُودٌ تَشْهَدُهُ الْمَلَائِكَةُ، ④ وَإِنَّ أَحَدًا لَمْ يُصَلِّ عَلَيَّ إِلَّا عُرِضَتْ عَلَيَّ صَلَاتُهُ حَتَّى يَفْرُغَ مِنْهَا"، ⑤ قَالَ: قُلْتُ: وَبَعْدَ الْمَوْتِ؟ ⑥ قَالَ: " إِنَّ اللّٰهَ حَرَّمَ عَلَى الْأَرْضِ أَنْ تَأْكُلَ أَجْسَادَ الْأَنْبِيَاءِ، ⑦ فَنَبِيُّ اللّٰهِ حَيٌّ يُرْزَقُ»". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① ابو درداء رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② د جمعې په ورځ په ما باندې په کثرت سره درود رالیږئ ③ ځکه چې د جمعې ورځ مشهود (یعني حاضر کړې شوې) ده په دې ورځ ملائکې حاضریږي ④ او کوم سړي چې په ما درود لیږي د هغه درود زما په مخکې (په ذریعهٔ مکاشفه یا بذریعهٔ ملائکه) ما ته پیش کول کیږی تر دې چې هغه د دې معاملې څخه فارغ شی ⑤ ابو درداء رضي الله عنه وایي چې (د دې په اوریدو سره) ما عرض وکړو چې یا رسول الله ﷺ د مرګ څخه وروسته به هم درود تا ﷺ ته پیش کول کیږی؟ ⑥ رسول الله ﷺ وفرمایل چې الله تعالی جل جلاله د انبیاءو علیهم السلام جسمونه (اجسام) خوړل په زمکه حرام کړي دي ⑦ نو د الله تعالی جل جلاله نبیان علیهم السلام (په خپلو خپلو قبرونوکې په برزخي ژوند سره) ژوندي دي او رزق ورکول کیږی. (ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① مَشْهُودٌ: حاضر کړې شوې، د جمعې ورځ مراد ده.

**تسهیلات: - قوله: مَشْهُودٌ:**
**د شاهد او مشهود مصداق:** - داحدیث دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما دَ تفسیر تائید کوی هغوی دَ سورت بروج دَ آیت ﴿ وَشَاهِدٍ وَّمَشْهُوْدٍ ﴾ [بروج: ٢] کښې دَمشهودنه دَ جمعې ورځ مراد اخستې ده لیکن حضرت علی رضي الله عنه دَ "شاهد" دَ لفظ نه دَجمعې ورځ مراد اخستې ده اوهم دغه راجح اوصحیح دی. دلته هم احتمال دې چه مشهودنه دَجمعې ورځ مراد ده.
**قوله: عُرِضَتْ:** یعنی هسې خودَهرې ورځې رالیږلې شوې درود ماته پیش کولې شی لیکن دَجمعه دَ ورځې درود په خصوصی توګه ماته پیش کولې شی.
**د حیاة الانبیاء ثبوت:** - صحابی تپوس اوکړو چه یارسول الله ﷺ دَ وفات نه پس به هم

[1]) اخرجه ابن ماجه فی کتاب الجنائز/باب ذکر وفاته ودفنه صلی الله علیه وسلم (رقم-١٦٣٧)

درودپیش لیږلی شی حالانکه تاسو به وفات شوی نی؟ حضورپاک ﷺ په جواب کښې اوفرمائیل چه انبیاء کرام ژوندی وی ځکه چه الله تعالی دَ انبیاء کرامو بدنونه په زمکه باندې حرام ګرځولی دی. دَحیات الانبیاء سره متعلق تول بحث باب التشهد کښې شوی دی. زیربحث حدیث کښې دَحتی یرزق الفاظ سره په واضحه توګه حیات الانبیاء ثابتیږی په دې کښې دَ کمی زیاتی ضرورت نشته. دامت په حیات الانبیاء باندې اتفاق دې په دې کښې اختلاف نه دی کول پکار.

**[١٣٦٧] دَ جمعې په ورځ دَمرګ فضیلت**

١٣٦٧ - ( ) [١٢] [١] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] "«مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَمُوتُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ أَوْلَيْلَةَ الْجُمُعَةِ [٣] إِلَّا وَقَاهُ اللّٰهُ فِتْنَةَ الْقَبْرِ» "). رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ [٤] وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ وَلَيْسَ إِسْنَادُهُ بِمُتَّصِلٍ.

**ترجمه:** [١] عبدالله ابن عمرو رضی الله عنهما راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] داسې هیڅ مسلمان نشته چې د جمعې په ورځ یا د جمعې په شپه وفات شی [٣] او الله تعالی جل جلاله هغه د قبر د فتنې څخه (یعني د قبر د سوال او د قبر د عذاب څخه) بچ نه کړي، احمد ترمذي، امام ترمذي رحمه الله فرمايي چه دا حدیث غریب دي او د دې اسناد متصل نه دي.

**حل اللغات:** - ① وَقَاهُ: بچ ساتی هغه لره.

**تسهیلات:** -

**قوله: مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَمُوتُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ أَوْلَيْلَةَ الْجُمُعَةِ:**

**د جمعې د ورځې بشارت صرف د مسلمان دپاره:** - دَ جمعې په ورځ خوبه ډیرزیات کافران هم مری مګر دَ حدیث دې بشارت کښې کافران شامل نه دی بلکه دا بشارت مسلمانانو سره خاص دې یعنی یوخوش قسمته مسلمان دَ جمعې په ورځ مړکیږی نوهغه دَ جمعې په وجه دَ الله تعالی په بې پناه رحمتونو او نعمتونوکښې وی اودَ قبردَ عذاب نه محفوظ پاتې کیږی.

**د جمعې په ورځ د مرګ فضیلت:** -

① یویل حدیث کښې دی چه دَ جمعې په ورځ مړکیدونکی مسلمان ته دَ قبر دَعذاب نه نجات ملاویږی اوهغه دَمحشر په میدان کښې به په داسې حال کښې راځی چه په هغه باندې به دَ شهیدانو مهر وی.

② په یویل روایت کښې دی چه دَجمعې په ورځ کوم مسلمان مړکیږی دَهغه دپاره دَ شهید اجر اوثواب لیکلې کیږی اودَ قبردَ عذاب نه هغه بچ کولې شی.

③ په یویل روایت کښې دی چه دکوم سړی یا ښځې دَ جمعې په ورځ انتقال کیږی یا دَ

(١) اخرجه الترمذی کتاب الجنائز عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ ما جاء فیمن مات یوم الجمعة (رقم-١٠٧٤)

جمعې په شپه کيږي نوهغه ښځه اوسړې دَ قبردَ عذاب نه بچ کولې شي. او الله تعالى سره به دَهغه ملاقات په داسې حال کښې کيږي چه هغه سره به څه حساب نه کيږي څکه چه هغه سره به ګواه وی یابه په هغه باندې دَ شهيدانو مهر لګيدلې وی. دَ دې حديث زيرې يو مسلمان سره دې چه دَمسلمان دَ جمعې په ورځ مرکيدلوسره دا فائده کيږي. يوکافر يا زنديق يا منافق ته دَدې نه څه فائده نشته. "او" دَ شك دَپاره نه دې بلکه دَقسم بيانولو دَپاره دې.

**[١٣٦٨] جمعه دَ مسلمان دَاختر ورځ**

١٣٦٨–()[١٣][١] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا: أَنَّهُ قَرَأَ: [٢] ﴿الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ﴾ [المائدة: ٣] الْآيَةَ، [٣] وَعِنْدَهُ يَهُودِيٌّ. فَقَالَ: [٤] لَوْ نَزَلَتْ هَذِهِ الْآيَةُ عَلَيْنَا لَاتَّخَذْنَاهَا عِيدًا. [٥] فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: فَإِنَّهَا نَزَلَتْ فِي يَوْمِ عِيدَيْنِ، فِي يَوْمِ جُمُعَةٍ، وَيَوْمِ عَرَفَةَ. [٦] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [١] د ابن عباس رضي الله عنهما په باره کې منقول دي چې هغه يوه ورځ دا آيت اولوستلو [٢] اَلْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمُ الْآيَةَ (نن ورځ مونږ ستاسو د پاره ستاسو دين مکمل کړو په تاسو مو خپل ټول نعمتونه پوره کړل او مونږ ستاسو د پاره دين داسلام خوښ کړو) [٣] د هغه سره هغه وخت يو يهودي ناست وو هغه (د ابن عباس رضي الله عنهما څخه دا آيت اوريدو سره) اوويل [٤] چې که دا آيت په مونږ نازل شوې وې نو مونږ به دا ورځ (چې دا آيت پکې نازل شوې دې) اختر مقرر کړي وو، [٥] ابن عباس رضي الله عنهما ورته وفرمايل چې دا آيت د دوو آخترونو په ورځ (يعني د حجة الوداع په موقع) د جمعې او عرفې په ورځ نازل شوې دي، [٦] امام ترمذي رحمه الله دا روايت نقل کړي دي او ويلي يې دي چې دا حديث حسن غريب دي.

**حل اللغات:-** ① عِيدًا: ورځ د خوشحالۍ.

**تسهيلات:- قوله:** لَاتَّخَذْنَاهَا عِيدًا:

**د يو يهودی اعتراض:-** يعنی ﴿اَلْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ﴾ [مائده: ٣] چه کوم آيت په تا نازل شوې دې دا دومره دَ لوئی شان والاآيت دې چه که په مونږ يهودو باندې نازل شوې وی نومونږ به دا ورځ دَ يادګار په توګه اودَ تاريخی ورځ په توګه نمانځله مګر تاسو مسلمانان هيڅ هم نه کوئ؟
جواب: حضرت ابن عباس رضي الله عنهما اوفرمائيل چه تاسو دَ يواختر خبره کوئی حالانکه چه کله دا آيت نازل شو هغه وخت مونږ مسلمانانو دوه اخترونه کول. يوخودَ دې دَپاره چه دَ جمعې ورځ وه او جمعه دَ مسلمانانودَ اختر ورځ وی.

[1] ) اخرجه البخاري فی کتاب تفسير القرآن/باب قوله: «اليوم أكملت لكم دينكم_[المائدة: ٣] (رقم-٤٦٠٦) والترمذی کتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب: ومن سورة المائدة (رقم-٣٠٤٤)

اودویم اختر داسې چه هغه وخت دَ عرفې ورځ وه اوعرفه دَمسلمانانودَپاره دَ اختر ورځ ده. یوروایت کښې دی چه یویهودی سره دا مکالمه حضرت عمر رضی الله عنه شوې وه. هغوی اوفرمائیله پریږده مونږ خپل اخترونه پخپله پیژنو ستا ضرورت نشته دې. مونږ ته دا هم معلومه ده چه وخت کوم یو وو ورځ کومه وه. یاد ساتئی دَ عرفې ورځ وه اودَ جمعې دَ ورځې دَمازیګر وخت وو.

**[١٣٦٩] دَ جمعې د شپې او ورځې فضیلت**

١٣٦٩ ــ (١)[١٣] ١ وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: ٢ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَخَلَ رَجَبُ قَالَ: ٣ " «اللّٰهُمَّ بَارِكْ لَنَا فِي رَجَبَ وَشَعْبَانَ وَبَلِّغْنَا رَمَضَانَ» "، ٤ قَالَ: وَكَانَ يَقُولُ: " «لَيْلَةُ الْجُمُعَةِ لَيْلَةٌ أَغَرُّ ٥ وَيَوْمُ الْجُمُعَةِ يَوْمٌ أَزْهَرُ» ". رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي "الدَّعَوَاتِ الْكَبِيرِ".

**ترجمه:** ١ حضرت انس رضی الله عنه فرمايي ٢ چې هر کله د رجب میاشت به راغله نو رسول الله صلی الله علیه وسلم به دعا غوښتله ٣ چې اي الله تعالی جل جلاله د رجب او شعبان په میاشت کې (زمونږ په طاعت او عبادت کې) برکت واچوي او مونږ رمضان ته ورسوي ٤ او حضرت انس رضی الله عنه وايي چې حضور صلی الله علیه وسلم به دا هم فرمایل چې د جمعې شپه روښانه شپه ده ٥ او د جمعې ورځ خلانده (ښائسته) ورځ ده. (بیهقي)

**حل اللغات:**- ① أَغَرُّ: غره دَ اس په تندی باندې سپین داغ ته وائی بیاهر روښانه او مبارك مخ ته اغراووئیلې شو. ② أَزْهَرُ: روښانه مخ.

**تسهیلات:**- **قوله:** وَبَلِّغْنَا رَمَضَانَ:

**رمضان پورې د ژوندی پاتې کیدو دعا:**- دادَامرصیغه ده چه دَ دې تقاضا داده چه یوانسان وائی اې پروردګار مونږ ته داسعادت رانصیب کړه چه مونږ رمضان ته اورسو او په پوره رمضان کښې عبادت اوکړو تراویح اوکړو تلاوت اوکړو اوپه اعتکاف کښې کینو.

**قوله:** لَيْلَةٌ أَغَرُّ: دَ اغرپه ځائی غراء وئیل وو مګر دَاغرموصوف زمان محذوف دې لیلة موصوف نه دې.

¹) اخرجه البیهقی فی شعب الایمان حدیث رقم ٣٨١٥

# [۵۹/۳۴]بَابُ وُجُوبِهَا]

## دَ جمعې د مونځ دَ فرضيت بيان

**خلاصة الباب:-**

**فيه تسعة احاديث مشتملة على اربع مسائل:**

① الزجر على من ترك الجمعة: ۱، ۲، ۷، ۸.
② من تجب عليه الجمعة: ۴، ۵، ۶، ، ۹.
③ الكفارة بفواة صلاة الجمعة:۳.
④ من لا تجب عليه الجمعة : ۶، ۹.

**د جمعې د فرضيت ثبوت:-** قال الله تعالى ﴿ إِذَا نُودِيَ لِلصَّلٰوةِ مِنْ يَّوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا إِلٰى ذِكْرِ اللهِ وَذَرُوا الْبَيْعَ ﴾ [جمعه:۹]

**د جمعې د مانځه حکم:-** علامه يحيى رحمه الله فرمائي چه دَجمعې مونځ محکم فريضه ده چه دَ قرآن کريم، ګنړو احاديثو او اجماع دَامت نه ثابت دې. ﴿ فَاسْعَوْا إِلٰى ذِكْرِ اللهِ وَذَرُوا الْبَيْعَ ﴾ [جمعه:۹] آيت دَ جمعې دَ فرضيت دليل دې. اواحاديث هم راځي په کوم سره چه دَ جمعې فرض کيدل په واضحه توګه ثابتيږي لهذا دَ جمعه دَ فرضيت نه انکارکونکي کافردې اوپريخودونکې فاسق دې. کوموعلماؤ چه جمعې ته فرض کفايه وئيلې هغوى ډيره لويه غلطي کړې ده. جمعې فرض عين ده اوبوڅوکسان دَ جمعې نه مستثنى دى.

**د جمعې اولنې مونځ:-** مدينه منوره کښې دَ ټولونه وړاندې اسعدبن زراره رضي الله عنه په کورکښې دَجمعې مونځ قائم شو. دَبعضې رواياتونه معلوميږي چه هغوى دَ حضوراکرم په حکم باندې جمعه قائم کړې وه مګر تردغه وخته پورې حضورپاک صلى الله عليه وسلم هم په مکه کښې ووهجرت نى نه ووکړې ليکن بعضې رواياتوکښې دى چه اسعدبن زراره رضي الله عنه په خپل اجتهاداودَ ايمان فراست اوکشف صادق سره جمعه شروع کړې وه.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [۱۳۷۰]دَجمعې مونځ د پريخودلو وعيد

۱۳۷۰-(۱)[۱] ① وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ أَنَّهُمَا قَالَا: ② سَمِعْنَا رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ عَلَى أَعْوَادِ مِنْبَرِهِ: ③ " «لَيَنْتَهِيَنَّ أَقْوَامٌ عَنْ وَدْعِهِمُ الْجُمُعَاتِ، ④ أَوْ لَيَخْتِمَنَّ اللهُ عَلَى قُلُوبِهِمْ ⑤ ثُمَّ

[1] اخرجه مسلم فى كتاب الجمعة/باب التغليظ فى ترک الجمعة (رقم)۴۰ - (۸۶۵) والنسائى كتاب الجمعة/باب التشديد فى التخلف عن الجمعة (رقم-۱۳۷۰) وابن ماجة كتاب المساجد والجماعات/باب التغليظ فى التخلف عن الجماعة (رقم-۷۹٤)

لَيَكُونُنَّ مِنَ الْغَافِلِينَ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] ابن عمر او ابوهريره رضی الله عنهما دواړه راويان دي [٢] چې مونږ د رسول الله ﷺ څخه د خپل لرګي په منبر (يعني د هغه په څينو دا فرمايلي) اوريدلي دي چې [٣] خلق دې د جمعې مونځ پريښودلو څخه منع شي [٤] ګينې الله تعالى جل جلاله به د هغوئ په زړونو مهر ولګوي [٥] او هغوي به په غافلو کې شمير شي. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① أَعْوَادِ: دَ عودجمع ده لرګی ته وائی. ② وَدْعِهِمُ: دَ فتح يفتح نه ودع پريخودو اوترک کولو په معنى کنبې دې. ③ لَيَخْتِمَنَّ: مهر به اولګوی.

**تسهيلات:** - **قوله:** على أَعْوَادِ مِنْبَرِهِ:

**د منبر د ذکر حکمت:** - چونکه په کال ۲ هجرى کنبې دَ حضورپاک ﷺ په اجازت سره دَ عائشه انصاريه رضی الله عنها په حکم باندې دَهغې غلام باقوم رومى کوم منبرتيار کړې وو هغه دَ غابه ځنګل دَ جارې دارې ونې دَ لرګى نه جوړشوې وو په دې وجه صحابى دَ لرګى ذکراوکړو اودې طرف ته ئى اشاره اوکړه چه دا حديث په ښه پوهه او هوش اوحواس سره بيانوم چه

هغه منبردَ لرګى نه جوړوو دَ څه اوسپنې ياکانړى نه وو.

**قوله:** وَدْعِهِمُ: يعنى خلق دې دَ جمعې پريخودو نه په لازمى توګه منع شى ګنى کَ هغوى په زړونوباندې به الله تعالى دَ جباريت مهراولګوى بيا به داخلق هم په غفلت کنبې پراته وى اوبيابه په عذاب کنبې راګيرشي.

**د تارک الجمعة حکم:** - دَ جمعه دَ فرضيت نه که يوسړې انکاراوکړى نوهغه کافردې او که په سستئى سره ئى پريږدى نو هغه فاسق دې. راتلونکى دَدې نه هم سخت وعيدات راروان دى.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [١٣٧١] د جمعې د مانځه د پريښولو سزا

١٣٧١ - ()[٢] [١] عَنْ أَبِي الْجَعْدِ الضَّمْرِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] " «مَنْ تَرَكَ ثَلَاثَ جُمَعٍ تَهَاوُنًا بِهَا، [٣] طَبَعَ اللهُ عَلَى قَلْبِهِ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [١] ابو الجعد ضمري رضی الله عنه راوي دي چې سرتاج دوعالم ﷺ وفرمايل [٢] کوم سړي چې محض د سستي په بناء دري جمعې مونځ پريږدي [٣] الله تعالى جل جلاله به د هغه په زړه

[1] ) اخرجه ابوداود کتاب الصلاة باب التشديد فى ترک الجمعة (رقم-١٠٥٢) والترمذى کتاب الجمعة/باب ما جاء فى ترک الجمعة من غير عذر (رقم-٥٠٠) والنسائى کتاب الجمعة/باب التشديد فى التخلف عن الجمعة (رقم-١٣٦٩) وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة والسنة فيها/باب فيمن ترک الجمعة من غير عذر (رقم-١١٢٥) والدارمى کتاب الصلاة /باب فى فضل يوم الجمعة

مهر ولګوي، «ابوداؤد، ترمذي، نسايي، ابن ماجه، دارمي»

**حل اللغات:** - ① تَهَاوُنًا: دَ سستئی په وجه.

**تسهیلات:** -

**قوله: تَهَاوُنًا بِهَا:** یعنی چه دَ سستئی په وجه ئی درې جمعې ترک کړې نودَهغه سړي په زړه باندې به دَ نفاق مهر اولګی. اوکه چرې دَ انکار په صورت کښې ترک کړی نودې سره به هغه سړې کافرشي.

٣٧٤–()[٠]① وَرَوَاهُ مَالِكٌ عَنْ صَفْوَانَ بْنِ سُلَيْمٍ.

**ترجمه:** ① او امام مالك دا روايت د صفوان ابن سليم څخه نقل كړي دي.

٣٧٤–()[٠]① وَأَحْمَدُ عَنْ أَبِي قَتَادَةَ.

**ترجمه:** ① او امام احمد د ابو قتاده څخه نقل كړي دي.

## [١٣٧٤] بغيرعذره د جمعې په پريخود د صدقې کول

٣٧٤–()[٣]① وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ②: "«مَنْ تَرَكَ الْجُمُعَةَ مِنْ غَيْرِ عُذْرٍ، فَلْيَتَصَدَّقْ بِدِينَارٍ، ③ فَإِنْ لَمْ يَجِدْ فَبِنِصْفِ دِينَارٍ»". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① سمره ابن جندب ﷺ راوي دي چې سردار د دوارو جهانو ﷺ وفرمايل② كوم سړي چې بغير د عذر څخه د جمعې مونځ پرېږدي هغه ته پكار دي چې يو دينار صدقه وركړي③ او كه يو دينار ورسره نه وي نو نيم دينار دي وركړي، «احمد، ابوداؤد، ابن ماجه»

**تسهيلات:** - **قوله: فَلْيَتَصَدَّقْ بِدِينَارٍ:**

**دَجمعې د مونځ قضا کیدو کفاره:** - یعنی که چادَ سستئی دَ وجې نه دَ جمعې مونځ پریخودو نوهغه لـه دَ کفارې پـه توګـه یودینارخرچ کـول پکـاردی خوکـه سړې غریـب وی نونـصف دیناردې اداکړی. نن صبادَ کویت دینار ۱۹۰روپې پاکستانی سره نیزدې دې. پـه دې صدقه سره خودَ جمعې دَترک کولوګناه خو ختمیدې نه شي البتـه پـه هغې بـه تخفیـف راشـی اودې پریخودونکی ته به بنه تنبیه اوشی چه ده دګناه ارتکاب کړې دې اوس جرمانه اداکوی.

¹) اخرجه مالک فی الموطا کتاب الجمعة /باب القراءة فی صلاة الجمعة، والاحتباء، ومن ترکها من غیر عذر (رقم–۲۰)
²) اخرجه احمد فی المسند ۳۳۲/۳
³) اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة،باب کفارة من ترکها (رقم–۱۰۵۳) والنسائی کتاب الجمعة /باب کفارة من ترک الجمعة من غیر عذر (رقم–۱۳۷۲) وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة، والسنة فیها /باب فیمن ترک الجمعة من غیر عذر (رقم–۱۱۲۸)

## [۱۲۷۵] دَ جمعې اذان اوریدو سره جمات ته د تلو وجوب

۱۲۷۵–()[۴] ۱ وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: ۲ "«الْجُمُعَةُ عَلَى مَنْ سَمِعَ النِّدَاءَ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ۱ عبدالله ابن عمرو رضي الله عنهما راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ کوم سړي چې د جمعې اذان واوري په هغه د جمعې مونځ واجبيږي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:**- ① النِّدَاءَ: نداء مطلق آواز ته وائی. د ندانه مراد دلته اذان دي.

**تسهيلات:- قوله: مَنْ سَمِعَ النِّدَاءَ:**

**د من سمع النداء په توجيه کښې مختلف اقوال:-**

① مطلب داچه کوم خلق دَ جمعې په ورځ دَ مؤذن اذان اوری نو په هغوی باندې په جمعه کښې شرکت کول واجبيږی اوس هغه دَ جمعه نه بهر نه شی پاتې کيدې.

② شيخ عبدالحق رحمه الله فرمائی دَدې حديث مطلب دادې چه کوم خلق دَ جمعې په ورځ اذان واوری نو په هغوی باندې دَ جمعې تياری اوپه جمعه کښې حاضريدل لازمی دی. [اشعة اللمعات: ۱/۴۱۸]

③ ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی داحديث دَ دې په ظاهری معنی باندې حمل کولوسره به ډيرزيات اشکالات پيداشی. په دې وجه به دَدې دامطلب اخستې شی چه جمعه په هغه سړی باندې واجب ده چه په يوداسې مقام باندې وی چرته چه دَ ده اودَ ښاريه مينځ کښې دومره فاصله وی کـه په ښارکښې څوك په زوره آواز اوکړی نوچه دې ځائی پورې آواز راورسی.

④ دَمنية المصلی په شرح کښې ليکلی دی چه جمعه په هغه سړی باندې لازم ده چه دَ ښاريه اطرافوکښې په يوداسې ځائی کښې مقيم وی چه دَ ښاراو دَ ده په مينځ کښې متصل آبادی وی اودَمکانونه يو بل سره لګيدلې وی کـه هغـه اذان واوری اوکـه وانوری اوکـه دَهغـه اودَ ښار په مينځ کښې پټی اودَ څرن ځايونه وی نو په ده باندې دَ جمعې مونځ واجب نـه دې سره دَدې چه هغه اذان اوری.

**د څلورم قول تضعيف:-** دا توجيه اوتعبيرډير ښه دې ليکن دَدې آخری جمله چه اذان واوری که وانوری داظاهردَ حديث سره بالکل متعارض ده چه دا نه شی قبلولې مګرکه لاره کښې منع کونکې څيز وی چه په هغې تيريدل ګران او مشکل وی مثلاً لوئی نهر دې يادرياب وغيره دې. بهرحال کوم خلق چه اذان اوری په هغوی جمعه کښې حاضری لازم ده. په دې

---

[1] ) اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة،باب کفارة من ترکها (رقم-۱۰۵۳) والنسائی کتاب الجمعة /باب کفارة من ترک الجمعة من غير عذر (رقم-۱۳۷۲) وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب فيمن ترک الجمعة من غير عذر (رقم-۱۱۲۸)

وجه امام محمد رحمه الله فرمائی چه کوم سړي اذان اوري په هغه واجب دی چه په جمعه کښې حاضرشي اوفتوی هم په دې دَ امام محمد رحمه الله قول باندې ده. په راتلونکی حدیث کښې هم دغه مسئله راځی.

**[١٢٧٦] د جمعې په وجوب مکلف خلق**

١٢٧٦-(¹)[٥]① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:② "«الْجُمُعَةُ عَلَى مَنْ آوَاهُ اللَّيْلُ إِلَى أَهْلِهِ»". ③رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ إِسْنَادُهُ ضَعِيفٌ.

**ترجمه:** ① ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل② د جمعي مونځ په هغه سړي فرض دي چې د جمعي مونځ وکړي او د شپې خپل اهل او عيال ته ورسيږي، ③ امام ترمذي دا روايت نقل کړي دي او ويلي يې دی چې د دې حديث اسناد ضعيف دي.

**حل اللغات:** - ① آوَاهُ: ځای یا پناه ورله ورکړی، یعنی اورسیږی.

**تسهیلات:** - **قوله:** عَلَى مَنْ آوَاهُ اللَّيْلُ إِلَى أَهْلِهِ:

**د حدیث د جملې مطلب:** - یعنی چه یوسړې په ښارکښې دَ جمعې مونځ کولونه پس کورته روان شی اودَ شپې خپل کورته اورسی نو په داسې مقام باندې اوسیدونکی مسلمان باندې په جمعه کښې شرکت کول ضروری او واجب دی. دَهغه مونځ په خپل مقام باندې دَ جمعې نه علاوه دَ ماسپښین په وخت جائز نه دې.

**د دوؤ مسئلو تمهید:** - دلته دوه جدا مسئلې دی په کوم کښې چه دَ ګډوډ کیدونه بچ کیدل ضروری دی اوهره یوه جدا جدا ګنړل ضروری دی. یوه مسئله خوداده چه آیا هغه کوم مقامات دی چرته چه جمعه ادا کول صحیح اودَ دې ادا کول جائز وی آیا دَ جمعې دَ صحت دَپاره مصر کیدل شرط دې یا لوئی کلې ضروری دې یا په هره آبادئی کښې جمعه صحیح وی که هغه مصر وی یا لوئی کلې وی اویا وړوکې کلې وی.

دلته دویمه مسئله داده چه په کومو مواضع کښې جمعه کیږی مثلاً ښاریه ده یا لوئی کلې دې نودَ دې په دننه آبادو خلقو باندې خو شرکت واجب دې په دې کښې دَ چاهم اختلاف نشته دې. لیکن کوم خلق چه ښاریې سره نیزدې اوسیږی یا لوئی کلې سره نیزدې اوسیږی. دَهغوی دَپاره دَ څومره فاصلې نه دَ جمعې دَپاره حاضریدل ضروری او واجب دی په دې کښې دَ فقهاؤ کرامو اختلاف دې

**ښار سره نزدې خلقو باندې د جمعې د مونځ په فرضیت کښې مذاهب**

① امام شافعی رحمه الله او په یوقول کښې امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائی چه کوم سړې دَ جمعې اذان اوری په هغه دَ جمعې حاضری واجب ده کنی نه ده. مګر دَ اذان دَپاره دا شرط

---

¹) اخرجه الترمذی کتاب الجمعة /باب ما جاء من کم تؤتی الجمعة (رقم-٥٠٢)

دي چه هغه دې په اوچت ځائی باندې وی او خلقوته رسیدو کښې څه مانع نه وی مثلاً دَ هوا سخت دباؤ بل طرف ته نه وی چه خلقوته آواز اونه رسی.

② امام ابویوسف رحمه الله فرمائی چه یوسړې دَ جمعې دَ اداکولونه پس که چرې دَ شپې کورته رسیدې شی نو په ده باندې په جمعه کښې شرکت کول فرض دی.

③ امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی چه کوم سړې دَ ښار په اطراف، خواؤشا کښې اوسیږی په هغه باندې جمعه فرض ده مثلاً په کومو طرفونو کښې چه دَ حکومت دَ کارکونکو دفترې وی تهانه اوتحصیل وی اوحکومتی چوکئی وی داسې مقامات دَ ملحقات ښاریې نه دی. دَدې په شان مقاماتو کښې چه کوم خلق اوسیږی په هغوی باندې جمعه فرض ده.

**داول فریق دلائل:**- دَدې حدیث نه مخکښې حدیث نمبر ۳ داول فریق مستدل دې په کوم کښې چه په واضحه توګه دَ اذان اوریدل په جمعه کښې دَحاضریدو دَپاره شرط ګرځولې شوې دې.

**داول فریق ددلیل جواب:**- امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی چه دَ دواړو حدیثو نه دَ ښار اطراف او دَ ښارسره پیوست آبادی مراد ده. هم دَدې مقصد دَ واضح کولودَپاره دا حدیث دې چه څوك اذان واؤری او هم دَدې مقصد دَ بیانولودَپاره دا تعبیردې چه دَجمعې کولونه پس کوره پورې راؤرسیدې شی. دَدې نه مخکښې چه دَ کوم حدیث توضیح کړې شوې ده په هغې کښې هم دَ امام ابوحنیفه رحمه الله مسلك بیان کړې شوې دې ځکه چه که چرې دَ دې احادیثونه عوالی او مضافات دَ ښاریې آبادی مراد وانخستلې شی نودیره ممکن ده چه بالکل دَ ښار په مینځ کښې یوسړې دَ اذان آواز وانوریدې نوولې په هغه باندې به جمعه نه وی څه؟

**د دویم فریق دلیل:**- ددویم فریق دلیل زیر بحث حدیث دې په کوم کښې چه په واضحه توګه باندې دَ شپې پورې کورته رسیدلو ذکر دې.

**د دویم فریق د دلیل څخه جواب:**- دَ شپې پورې کورته رسیدو فاصله هم دومره وی چرته چه دَ ښار ملحقات اومضافات واقع وی. معلومه شوه چه په دې دواړو احادیثو کښې کوم حد او اندازه ده. دا په حقیقت کښې دَ ښارمضافاتو اوملحقاتو آبادی ذکرکولو یوتعبیردې.

خلاصه دا چې د اول فریق د لیل چې کوم جواب دې هم هغه د دویم فریق د لیل جواب هم دې.

**د دریم فریق دلائل:** ① وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "«الْجُمُعَةُ عَلَى مَنْ سَمِعَ النِّدَاءَ»". رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

② وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "«الْجُمُعَةُ عَلَى مَنْ آوَاهُ اللَّيْلُ إِلَى أَهْلِهِ»"

ددې دواړو احادیثوڅخه د دریم فریق مذهب ثابتیږی. تفصیل ئې د اول او دویم فریق د دلائلو په جواب کښې تیرشو.

## په کلی کښې د جمعې د مونځ په جواز اوعدم جواز کښې مذاهب

دَ ټولو نه اول په دې خبره باندې پوهیدل پکاردی چه دَ ټولو فقهاؤ متبوعین په نیزدَ جمعې دَاداکولودَپاره څه شرائط دی. دَ شرائطونه بغیر غیرمقلدینونه څا هم دَ جمعې دَ فرضیت خبره نه ده کړې. اوس دَ جمعې دَ اداکولو دَ صحت دَپاره هغه شرائط څه دی په دې کښې دَ فقهاؤ اختلاف دې.

① امام شافعی رحمه الله اوامام احمدبن حنبل رحمه الله په نیزپه هرهغه کلی کښې جمعه جائز ده چرته چه ژمې اوړې څلویښت کلی آباد وی اوڅلویښت عاقل بالغ دَ جمعې په مونځ کښې شریك وی. که چرې ۳۹ کسان شریك شو نو جمعه به صحیح نه وی.

② امام مالك رحمه الله په نیز په کوم کلی کښې چه ژمې اوړې ۵۰ کورونه آباد وی په هغې کښې جمعه جائز ده ګنی نه. او چه آبادی هم متصل وی. غیرمقلدین وائی چه جمعه هرځائی کښې فرض ده دَ هیڅ یو ښار کلی وغیره څه شرط نشته دې. زمونږ په نیز بدعتی هم دغه شان وائی.

③ امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی چه دَ جمعې ادا کولو دَ صحت دَپاره مصرکیدل شرط دې اوکه چرې مصر نه وی نوکم نه کم لوئی کلې کیدل شرط دی دې نه بغیر وړوکې کلې اومحلوکښې جمعه جائزنه ده.

**د(مصر) ښارپه تعریف کښې اقوال:-** دَ ائمه احناف دَ ښار په تعریف کښې مختلف اقوال دی اودَ ښار ټول تعریفات په حقیقت کښې رسومات دی یعنی دَ پوهیدلودَپاره دَعرف عام لاندې مختلف تعبیرات دی. هم دغه تعبیرات ملاحظه کړئی.

① دَ مصراطلاق په هغه لوئی ښارباندې کیږی چرته چه بازار وی اوهلته داسې حاکم اوسیږی چه دَ مټو په زور باندې دَ ظالم نه دَ مظلوم حق ورکولې شی اوخلق په خپلو مسئلوکښې دَ هغه طرف ته رجوع کوی. صاحب دَ بدائع دا تعریف دَ ټولو نه ښکلې او صحیح ګرځولې دې.

② دَ احنافوپه نیزدَ ښاریوتعریف دادې چه ښار هغې ته وائی چرته چه مفتی وی چرته چه قاضی چه دَ دین احکام او حدود مقرر کولوباندې قدرت لری اوهلته دومره آبادی وی څومره آبادی چه په منی کښې وی. په خلاصة الفتاویٰ کښې هم دا تعریف قابل اعتماد خودلې شوې دې. البته دَ تنفیذ احکام نه مراددا دې چه په دې باندې قدرت وی سمدستی مقرر کول شرط نه دې.

③ مصر هغه دې چرته چه بازار وی کوڅې وی اودومره ګڼړه آبادی وی چه هلته دَ سړی دَ ورکیدو خطره وی اودَ ضرورت ټول څیزونه ملاویږی.

④ مصر هغه ځائې دې چرته چه دومره خلق اوسیږی چه که ټول خلق دَ علاقې دَ ټولو

جماتونو نه په یولوئي جمات کښې راجمع شي او په دغه لوئي جمات کښې راخائي نه شي صاحب شرح وقایه دا تعریف راجح ګرځولې دې.

⑤ بعضو دا تعریف کړې دې چه مصر هغه دې چرته هره ورځ یو انسان پیدا کیږي او یو مړ کیږي.

⑥ بعضو دا تعریف کړې دې چه مصر هغه دې چرته چه لس زره آبادي وي.

⑦ حکیم الامت حضرت مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله دا تعریف کړې دې چه مصر هغه وي چرته چه دَ مردم شمارئي په اعتبار سره کم و زیات درې زره کسان اوسیږي. (بهشتی زیور)

⑧ بعضې دا تعریف کړې دې چه مصر هغه دې چه که چرې یو طاقتور دښمن ناڅاپي حمله اوکړي نو دَ دغه ښار خلق خان له حفاظت کولې شي.

⑨ مفتي الهند حضرت مولانا مفتي کفایت الله صاحب رحمه الله فرمائي چه دَ دریو زرو په ځائي دوه نیمه زره کسان هم وي مګر تیلي فون موجود وي ډاکخانه موجود وي دَ ماشومانو سکول موجود وي دَ اوړو مشین وي دَ ضرورت څیزونو اخستلو دکانونه وي موچي، کولال، لوهار او دهوبي موجود وي نو په داسې مقام باندې جمعه صحیح ده. فقهاؤ لیکلي دي چه دَ آبادئي نه مراد متصل آبادي ده چه په مینځ کښې نهر پټي وغیره حائل نه وي.

**داول فریق دلائل:-**

① دَ قرآن عظیم دا آیت د اول فریق مستدل دې. ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا نُودِيَ لِلصَّلَاةِ مِن يَوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا إِلَىٰ ذِكْرِ اللَّهِ وَذَرُوا الْبَيْعَ﴾ [جمعه] طرز دَ استدلال داسې دې چه فاسعوا دَ امر صیغه ده په دې کښې مصر یا قریه کبیره هیڅ قید نشته دې. لهذا جمعه دَ څه شرائطو سره هرځائي جائز ده. نیزدې نیزدې دا شان استدلال غیرمقلدینو هم کړې دې او دَ صوبه خیبرپختونخوا په کلي والو علاقو کښې جمعه کونکي اهل بدعت هم دغه شان استدلال کوي.

**د اول فریق د اول دلیل هغه جواب:-** دا آیت مطلق نه دې بلکه مشروط اومقید دې. دَ حضور پاک ﷺ او صحابه کرامو عمل کول دَ ښار یا لوئي کلي سره مقید کړې دې. او هسې هم په دې آیت کښې ډیر داسې اشارات موجود دي دکوم په موجودګئي کښې چه آیت مطلق کیدې نه شي لکه چه دَ ائمه احناف دَ دلیل نمبر ① لاندې په تفصیل سره لیکلې شوي دې.

**داول فریق دویم دلیل:-** ② دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما حدیث دې ((ان اول جمعة جمعت في الاسلام بعد جمعة جمعت في مسجد رسول الله صلى الله عليه وسلم بالمدينة لجمعة جمعت بجواثى قرية من قرى البحرين)) (رواه ابوداؤد ص: ٢٨٠) دا حدیث دَ الفاظو دکمي بیشي سره امام بخاري رحمه الله په خپل کتاب کښې ذکر کړې دې په دې حدیث کښې دَ "قریة" لفظ راغلې دې چه دَ کلي په معنی کښې دې لهذا دَ ښار ضرورت نشته دې.

**داول فریق د دویم دلیل ځخه جواب:**- په بحرین کښې واقع جوائی څه کلي نه وو بلکه هغه لوئی کلي وو بلکه هغه لوئی ښار وو او هلته یوه لویه تجارتی منډئی قائمه وه. هغه بویندرګاه وو کلي چرته وو؟ او که چرې هغه حضرات دا اووائي چه په هغې باندې دَ قریه اطلاق شوې دې نو هل لغت قریه کلی سره خاص نه ده منلي بلکه دَ قریه اطلاق په ښار باندې هم کیږی لکه چه قرآن کښې ﴿ عَلٰى رَجُلٍ مِّنَ الْقَرْيَتَيْنِ عَظِيْمٍ ﴾ [زخرف: ٣١] کښې طائف اومکې ته دَ قریه نوم سره یاد کړی دی حالانکه دا لوئی ښارونه وو. ﴿ وَاسْئَلِ الْقَرْيَةَ الَّتِيْ كُنَّا فِيْهَا ﴾ [یوسف: ٨٢] کښې دَ قریه اطلاق په ملك دَمصر باندې شوې دې او مصر قریه نه بلکه ښار وو. دَ انصاف تقاضا خو داده چه جوائی والاحدیث خودَ احنافو دلیل دې خکه چه ټول کلی ئی پریخودو سره په جوائی کښې جمعه قائمول دَدې دَ ښارکیدو دلیل دې.

**داول فریق دریم دلیل:**-

③حضرت عمر فاروق رضی الله عنه یو فرمان دې هغوی ته صحابه کرامو خط اولیکلو الفاظ دادی:

((عن ابی هریرة رضی الله عنه انهم کتبوا الی عمر یسئلون فی الجمعة فکتب عمر رضی الله عنه ان جمعوا حیث ماکنتم)) (بیهقی ومصنف ابن ابی شیبه)

**داول فریق د دلیل ځخه جوابونه:**-

①د دې جواب دادې چه دَ "حیث کنتم" عموم دَ نورو نصوص دَ وجې نه به خاص کولې شی مطلب دا چه حضرت عمر رضی الله عنه فرمائی چه تاسو چرته هم په ښار کښې یئ نو جمعه قائمه کړئ.

② داچه هغه وخت حضرت ابوهریره رضی الله عنه دَهغه ځائی ګورنر وو چرته چه دَحضرت عمر رضی الله عنه فرمان تلې وو او ګورنر په ښار کښې وی کلو او جهونپړو کښې نه وی لهذا دَ حیث ماکنتم نه مراد ښار دې.

**داول فریق څلورم دلیل:**-

④ حضرت اسعدبن زراره رضی الله عنه په نقیع الخضمات کښې جمعه قائم کړه. "وهی قریة علی میل من المدینة" معلومه شوه چه لوئی کلی او محله کښې جمعه جائز ده. (رواه ابوداؤد)

**داول فریق د څلورم دلیل ځخه جواب:**- حضرت اسعدبن زراره رضی الله عنه دَ مدینې په عوالی کښې کومه جمعه قائم کړې وه دا دَ حضورِاکرم صلی الله علیه وسلم په اجازت سره نه وه بلکه تر دغه وخته پورې خو جمعه فرض شوې هم نه وه هغوی په خپل اجتهاد او مضبوطه رائی او روحانی انکشاف سره دا په ذهن کښې راغله او قائم ئی کړه.

حافظ ابن حجر رحمه الله فتح الباری کښې لیکی: جمع اهل المدینة قبل ان یقدمها رسول الله صلی الله علیه وسلم وقبل ان نزل الجمعة یعنی دَ حضور پاك صلی الله علیه وسلم راتلل خو څه چه تر دغه وخته پورې جمعه فرض شوې هم نه وه.

بهرحال په کلو کښې جمعه قائم کول دَ جمعې دَ شان توهين دې اودَ سلف صالحين دَعملي نمونې خلاف ورزی ده. البته په کومو علاقو کښې چه سړکونه موجود وی بجلی وی ټيلی فون وی پبلك سکول وغيره ضروريات موجود وی نو هلته په جمعه کښې سختی نه دی کول پکار. دَ جمعې په قائم کولو سره امت ته لويه فائده کيږی. عواموته دَ حق آواز رسيږی اودَ اسلام دَ عظمت جهنډا اوچتيږی.

**د دويم فريق دلائل:-**

① د قرآن کريم آيت مبارك د دويم فريق دليل دې. ① ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا نُودِيَ لِلصَّلٰوةِ مِنْ يَوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا إِلٰى ذِكْرِ اللّٰهِ وَذَرُوا الْبَيْعَ﴾ طرز دَ استدلال داسې دې چه په دې آيت کښې ډيرې اشارې دی دکوم نه چه اشاره ملاويږی چه دَ جمعې دَ صحت دَپاره دا آيت مطلق نه دې بلکه مقيد دې اودَ ډيرو قيوداتو او شرائطونه پس دَ جمعې قائمول صحيح کيږی. مثلاً "الذين" کښې کم نه کم درې کسان راغلل "اذانودي" کښې يو اذان ورکونکې راغلو "يوم الجمعة" کښې يو معتدبه او قابل ذکر اجتماع طرف ته اشاره ده. "فاسعوا" کښې کم نه کم درې کسان راغلل "الى ذکرالله" نه اشاره ملاويږی چه هلته په جمات کښې دَ اول نه څوك نه څوك ذکرکونکې موجود وی. "وذروا" هم دَ جمع صيغه ده دکوم نه چه کم نه کم درې کسان کيدې شی. "البيع" دالفظ دَداسې بازار طرف ته اشاره کوی چرته چه ښه رونق وی لوئی بازار وی او دوکاندارانوته حکم ورکولې شی چه بازار بندکړئی. دَ دومره اشاراتونه پس نه شی وئيلې کيدې چه دَ جمعې دَپاره دَ څه شرط ضرورت نشته دې. هم دغه وجه او هم دا مجبوری وه چه ائمه ثلاثه هم دَ جمعې دَ قائم کولودَپاره صرف صحرا او ځنګل کافی نه دې منلې بلکه هغه هم څلوېښت پنځوس کورونو او کسانوته په جمع کښې دَ شموليت دَپاره شرط ګرځولې دې. دلته حيرانتيا صرف په غيرمقلدينو او اهل بدعت حضراتو باندې ده چاته چه دومره زيات خدائی اشارې نه ښکاری اوهغوی دَ هيڅ يو قيدنه بغير دَغر په څوکه باندې دَجمعې په شان دَمسلمانانو عظيم اجتماع اودَ اسلام شوکت په بې دردئی سره ذبح کوی.

② دَ حضرت عائشه صديقه رضی الله عنها حديث دې دکوم الفاظ چه دا دی: ((كان الناس ينتابون الجمعة من منازلهم والعوالي)) (بخاری باب الجمعة) دا صريح حديث دې چه اهل قری کلی اومحلو په خلقو باندې جمعه نشته ګنی دَ عوالی مدينه خلق به کله هم وار په وار نه راتلل بلکه دَ فرض کيدو په صورت کښې به ټول حاضريدل او حضورپاك ﷺ پسې به ئی دَ جمعې مونځ کولو اوبيا به واپس کلوته تلل. خودَې حديث مطلب دادې چه خلق به دَ مدينې دَ اطرافو او کلونه په نمبر باندې راتلل.(متفق عليه)

③ ((عن ابن عباس رضی الله عنهما قال ان اول جمعة جمعت بعد الجمعة فی مسجد رسول الله صلى الله عليه وسلم فی مسجد

عبدالقيس بجواثي من البحرين)) (بخاري ص: ١٢٢) داحديث په دې باره کښې واضح دليل دې چه دَ مسجد نبوی نه پس رومبې جمعه دَ بحرين ښار جواثی کښې قائم کړې شوې وه. که چرې جمعه په کلی اومحله کښې وې نودَمدينې اوبحرين په مينځ کښې دَ سونو کلو آبادی وه په هغې کښې ولې اونه شوه اوصرف په بحرين کښې هغه وخت جمعه قائم شوه. په کال ٨هجری کښې دا ښار دَ اسلام دَ جهنډې لاندې راغلو. دَ سوچ مقام دې په دومره اوږده موده کښې په دومره زياتو کلوکښې دا فريضه دَ صحابه په دورکښې بلکه په عهد نبوی کښې ولې نظر انداز کړې شوه؟

④ ((عن حذيفة قال ليس على اهل القرى جمعة فانما الجمعة على اهل الامصار)) (رواه ابن ابی شيبة مرسل) دا واضح دليل دې اودَ جمهورو په نيز حديث مرسل حجت دې.

⑤ ((عن علی قال لاجمعة ولاتشريق ولافطر ولااضحی الافی مصرجامع اومدينة عظيمة)) (رواه عبدالرزاق في مصنفه وابن ابی شيبة) دې روايت ته سره دَدې چه امام نووی رحمه الله وغيره ضعيف وئيلې دې چه دَدې مرفوع طرق نه دی ملاؤ ليکن علامه عينی رحمه الله په جواب کښې فرمائيلی چه دَحديث صحيح مرفوع طرق موجود دی او اثبات دَ مرفوع کيدو په انکار دَ مرفوع کيدو باندې مقدم وی. بلکه داحديث موقوف هم وی نوغيرمدرك بالقياس حکم سره متعلق روايت دَمرفوع حديث په حکم کښې وی. لهذا دَ حضرت دا روايت دَ مرفوع حديث په حکم کښې دې.

⑥ صحابه کرامو په زرګونوښارونه فتح کړل ليکن جمعه ئی په بعضې بعضې مقاماتوکښې قائم کړه. څنګه چه شاه ولی الله رحمه الله فرمائی حضرت عمر فاروق رضي الله عنه ٣٦زره ښارونه فتح کړل ليکن جمعه ئی صرف په ٩٠٠ جامع مسجدونوکښې قائم کړه. بل چه حضورپاك ﷺ کله دَمدينې طرف ته هجرت اوکړو نودَ بنی عمرو بن عوف په محله کښې يولس يا دَدې نه هم زياتې ورځې تيرې کړې او حضورپاك ﷺ په وجه دَ کلی کيدو هلته په مسجد قباکښې جمعه اونکړه. بل دَ عرفات په ميدان کښې دَ جمعې ورځ وه څلويښت زره نفوس قدسيه يا دَدې نه هم زيات حضورپاك ﷺ سره وو او حضورپاك ﷺ هلته جمعه اونه کړه. دَدې صرف هم دغه وجه کيدې شی چه عرفات کلې دې مزدلفه کلې دې منی کلې دې نن هم هلته جمعه نه کيږی.

### [١٣٧٧]دجمعې په وجوب غير مکلف خلق

١٣٧٧-(٦)[٦] ١ وَعَنْ طَارِقِ بْنِ شِهَابٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " ٢ «الْجُمُعَةُ حَقٌّ وَاجِبٌ عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ فِي جَمَاعَةٍ، إِلَّا عَلَى أَرْبَعَةٍ: ٣ عَبْدٍ مَمْلُوكٍ، أَوِامْرَأَةٍ، أَوْصَبِيٍّ، أَوْمَرِيضٍ» " رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ، ٤ وَفِي "شَرْحِ السُّنَّةِ" بِلَفْظِ "الْمَصَابِيحِ" عَنْ رَجُلٍ مِنْ بَنِي وَائِلٍ.

[1]) اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة،باب الجمعة للمملوک والمرأة (رقم-١٠٦٧)

**ترجمه:** [۱] طارق ابن شهاب رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] جمعه حق ده او په جماعت سره په هر مسلمان باندې واجب ده علاوه د څلور قسمه خلقو څخه [۳] ① غلام چې د چا په ملك كې وي ② ښځه ③ ماشوم ④ او مريض (په دوي باندې جمعه واجب نه ده) (ابوداؤد) [۴] او په شرح السنه د مصابيح په الفاظو سره د بنو وائل د يو سړي نه نقل دي.

**تسهيلات:** - **قوله: حَقٌّ وَاجِبٌ:** په دې دواړو الفاظو سره دَ فرض اراده كړې شوې ده ځكه چه دَ جمعې مونځ دَ كتاب الله اوسنت رسول الله ﷺ په واضح نصوص سره فرض دې يعنې دَ مذكوره اشخاصونه علاوه په ټولو انسانانو باندې جمعه فرض ده.

**قوله: فِي جَمَاعَةٍ:** يعنې په جمع سره فرض ده ځكه چه جمعه په انفرادي توګه باندې نه شي قائم كيدې.

**عبد:** - چونكه غلام دَبل په حق كښې وي اودَبل په ملكيت اوتصرف كښې اوسيږي په دې وجه په ده باندې جمعه فرض نه ده په آزادو خلقو باندې فرض ده.

**قوله: امْرَأَةٌ:**

**په ښځه د جمعې د عدم فرضيت وجوهات:** -

① په ښځه باندې يو خو په دې وجه باندې جمعه فرض نه ده چه هغه دَ خپل خاوند په خدمت كښې اوسيږي كورنئ نظام دَ هغې په ذمه دې. دَجمعه په مونځ كښې دَ شركت دَ وجې نه دا حقوق ضائع كيدې شي په دې وجه په هغې باندې جمعه فرض نه ده. دَدې نه معلومه شوه چه په ښځو باندې دَ خاوندانو خدمت څه دَ رضاخبره نه ده بلكه په هغوی باندې فرض دی اودَهغوی ذمه واری ده دَ جمعې دَپاره به نه ځی خدمت به كوی.

② په ښځه باندې په جمعه كښې شركت كول په دې وجه هم فرض نه دی چه په جامع مسجدونو كښې او په لارو كښې دَ ښځو دَ سړو سره ګډوډوالی خطره ده. دَ جمعې په ورځ دَ سړو ګڼړه وی په دې وجه دَ ښځو شموليت دَ فتنې اوفساد ذريعه جوړيدې شی په دې وجه په هغوی باندې ضروری نه ده.

**قوله: صَبِيٌّ:** ماشوم چونكه غيرمكلف وی په دې وجه په هغه باندې جمعه فرض نه ده.

**قوله: أَوْمَرِيضٌ:** دَ مريض نه مراد هغه بيمار سړې دې چه په داسې بيمارئ كښې اخته وی دَ څه په وجه چه هغه په جمعه كښې شركت نه شی كولې يا شريك كيدل دَ هغه دَپاره ګران وی. دَ ماشوم په حكم كښې ليونې او بې عقل سړې هم دې په دوی باندې هم دَ ماشوم په شان جمعه فرض نه ده. دغه شان په ګوډ شل باندې هم دَ جمعه مونځ فرض نه دې.

دغه شان دَ بيمار خيال ساتونكی سړی باندې هم فرض نه ده چه دَ يوداسې مريض په خدمت كښې مشغول وی چه كه لاړشی نومريض ته نقصان رسيدې شی. بل په مسافر باندې هم جمعه فرض نه ده اوكه داخلق په جمعه كښې حاضرشو نوجمعه اداكول جائزدی.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [١٣٧٨] دَ جمعې پرېښودو لکې ډا لدې سخت وعید

١٣٧٨ -(¹)[٧] [١] عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا [٢] أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِقَوْمٍ يَتَخَلَّفُونَ عَنِ الْجُمُعَةِ: [٣] "«لَقَدْ هَمَمْتُ أَنْ آمُرَ رَجُلًا يُصَلِّي بِالنَّاسِ، [٤] ثُمَّ أُحَرِّقَ عَلَى رِجَالٍ يَتَخَلَّفُونَ عَنِ الْجُمُعَةِ بُيُوتَهُمْ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] ابن مسعود ﷺ راوي دي [٢] چې رسول الله ﷺ د هغه خلقو په باره کښې چې د جمعې د لمانځه څخه وروسته پاتې کېږي (يعني د جمعې مونځ نه کوي) وفرمايل [٣] يقينازه قصد کوم چې يو سړي ته اووايم چې هغه خلقو ته مونځ ورکړي [٤] او بيا زه تلو سره د هغه خلقو کورونه وسوزوم چې (بغير د عذر څخه) جمعه پرېږدي. (مسلم)

**حل اللغات:-** ① يَتَخَلَّفُونَ: روسته پاتې کېږي (د جمعې دمونځ نه)، ② هَمَمْتُ: قصد مې کړې دي. ③ أُحَرِّقَ: اوسوزوم.

**تسهیلات:- قوله: لَقَدْ هَمَمْتُ:**

**د جمعې د پرېښودو تهديد:-** دَدې حديث په شان باب جماعة کښې احاديث تيرشوي دي. دلته داحديث دَ جمعه دَ پرېښودونکی باره کښې دي ليکن شارحين حديث فرمائي چه داحکم جمعه سره خاص نه دي بلکه دي نه وړاندې په عمومي احاديثوکښې داوعيد هغه خلقوته هم اوروليې شوي د چه کوم بوهم چه بغيردَ عذر نه پرېږدي. نولکه څنګه چه دا حکم دَ تارك الجمعه دپاره دي دغه شان دَعام مونځونو جمع پرېښودونکودَپاره هم دي. رسول الله ﷺ تمنا اوخواهش ښکاره کړو او په دې باندې ني عمل اونه کړو. دَدې ډير وجوهات وو هلته په تفصيل سره تسهيلات کښې ليکلې شوی دی باب الجماعة کښې اوګورئی. په دې حديث کښې دَهغه خلقو دَپاره هم سخت وعيددې چه دَ جمعې په مونځ کښې دَ جمع دَ شريکيدلونه روستوپاتې کيږي.

## [١٣٧٩] بغيردَ شرعی عذر نه درې جمعې پرېښودو لکې منافق دې

١٣٧٩ -(²)[٨] [١] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: [٢] "«مَنْ تَرَكَ الْجُمُعَةَ مِنْ غَيْرِ ضَرُورَةٍ [٣] كُتِبَ مُنَافِقًا فِي كِتَابٍ لَا يُمْحَى وَلَا يُبَدَّلُ» [٤] "وَفِي بَعْضِ الرِّوَايَاتِ "ثَلَاثًا". رَوَاهُ الشَّافِعِيُّ

**ترجمه:** [١] ابن عباس ﷺ راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] کوم سړي چې بغير د څه عذر څخه جمعه پرېږدي [٣] هغه په داسې کتاب کې منافق ليکل کيږي چې نه چېرته ورانيدي شي او نه تبديل کيدي شي [٤] او په بعضې رواياتو کې دا هم دي چې کوم سړي

¹) اخرجه مسلم فی کتاب المساجد/باب فضل صلاة الجماعة، وبيان التشديد فی التخلف عنها(رقم) ٢٥٤ - (٦٥٢)
²) اخرجه الشافعی فی مسنده کتاب ايجاب الجمعة / باب ترک الجمعة من غير الضرورة... رقم الحديث ٢٨١

دري جمعي پريږدي (دا وعيد يعنى سزا د هغه د پاره ده) (شافعي)

**حل اللغات:** - ① كِتَابٍ: دلته د كتاب نه مراد عمل نامه ده. ② لَا يُمْحَى: نه ورانيږي.

**تسهيلات: - قوله: مِنْ غَيْرِ ضَرُورَةٍ:**

**بغير د عذر د جمعي پريښودلي عملي نفاق:** - يعنى چه دَ شرعي عذر نه چابغير يوشان دري جمعي پريخودلي نوهغه سړي په داسي رجسټر كښي منافق ليكلي كيږي په كوم كښي چه ليكلي شوي يوڅيز نه شي ورانيدي. داسړي بـه عملي منافق جوړيږي ځكه چه اعتقادي منافقان به هغه وخت وو كوم وخت چه حضورپاك ﷺ ژوندي وو اودَ وحي نزول به كيدلو. دَ حضورپاك ﷺ دَ وفات او دنيا نه تللونه پس عملي منافقان پاتي شودَ چاتذكره چه اكثر په قرآن كښي كيږي.

**قوله: كتب منافقا في كِتَابٍ:**

**د كتاب نه مراد:** - دي نه مراد عمل نامه ده. ثلاثاً يعني زير بحث حديث كښي دَ يوي جمعي دَ ناغـه كولو ذكر دي ليكن بعضي نورو روايتونو كښي دَ دريوجمعو پريخودو دَ وعيدخبره كړي ده. سوچ كونكوله سوچ پكار دي چه څومره سخت وعيد دي دَ جمعي په پريخودو باندي اودَ هغوى دَ طرف نه دَجمع كولو څومره قدرې سستي ده.

**[۱۳۸۰] د جمعي مونځ پريښوونكي خپل نقصان كوي**

۱۳۸۰ - ()[۹] [۱] وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: [۲] "«مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ، [۳] فَعَلَيْهِ الْجُمُعَةُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ، [۴] إِلَّا مَرِيضٌ، أَوْ مُسَافِرٌ، أَوِ امْرَأَةٌ، أَوْ صَبِيٌّ، أَوْ مَمْلُوكٌ. [۵] فَمَنِ اسْتَغْنَى بِلَهْوٍ أَوْ تِجَارَةٍ اسْتَغْنَى اللّٰهُ عَنْهُ، [٦] وَاللّٰهُ غَنِيٌّ حَمِيدٌ»". رَوَاهُ الدَّارَقُطْنِيُّ.

**ترجمه:** [۱] حضرت جابر رضي الله عنه راوي دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] كوم سړي چي د الله تعالى جل جلاله په ذات او صفاتو او د آخرت په ورځ ايمان او اعتقاد لري [۳] په هغه د جمعي د ورځي مونځ فرض دي [۴] علاوه د مريض او مسافر اوښځي او غلام څخه (چي په دوي د جمعي مونځ فرض نه دي) [۵] نو كوم سړي چي په لوبو او تماشو او تجارت وغيره كي مشغول ليدو سره د جمعي د لمانځه څخه بي پروايي اختياروي [٦] نو الله تعالى د هغه څخه بي پروا دي او الله تعالى جل جلاله بي پروا او تعريف كړل شوي دي (دارقطني)

**حل اللغات:** - ① اسْتَغْنَى: بې پرواهي ئې اوكړه، يعنى مشغوله شو ② لَهْوٍ: لوبې، عبث كارونه. ③ غَنِيٌّ: بې پرواه.

[1] اخرجه الدنطني في السنن رقم الحديث ۱ من باب من تجب علية الجمعة

**تسهيلات:- قوله**: بِلَهْوٍ أَوْتِجَارَةٍ اسْتَغْنَى اللَّهُ عَنْهُ:

**د جمعې د مونځ څخه لاپرواهي خپل نقصان دې:-** يعنى كه يوسړي په لوبو تړقو ياتجارت يا نورو مشغولياتو دَ وجې نه دَجمعې مونځ په لاپرواهئ سره كوى اودَ جمعې پريخودو او هغه ته څه احساس نه وى نوداسې سړې هم خپل نقصان كوى ځكه چه الله تعالى دَدې نه بې نياز دې اوهغه به دَخپل رحمت نه اوباسى پريږدى به. نودَ داسې سړى په تباهئ اوبربادئ كښې څه شك كيدې شى دَ هغه دنيا هم تباه ده اوآخرت ئى هم تباه برباد شو.

## [٤٤/٦٠]بَابُ التَّنْظِيفِ وَالتَّبْكِيرِ

**د صفائى او وختى تلو په بيان كښې**

**خلاصة الباب:-**

**فيه ثمانية عشر حديثاً مشتملة على ثلاث مسائل:**

① فضائل التنظيف: ١، ٢، ٣، ٧، ٨، ٩، ١٧، ١٨.

② فضائل التكبير والحث عليه: ٦، ٨، ١٠، ١١، ١٤.

③ الأمر بالانصات والزجر عن موانعه: ١، ٢، ٣، ٥، ٧، ٨، ١٢، ١٣، ١٥، ١٦.

**حل اللغات:-** ① التنظيف: نظافة نه دې پاكوالي حاصلولو ته وائى. ② التبكير: دَبكورة نه دې سحروختى وتلو ته وائى.

**قوله: التَّنْظِيفِ**: دې نه دَ جمعې په ورځ غسل كول اودَ غسل په ذريعه بدن پاكول، مسواك استعمالول، بريت صفا كول، نوكونه پرې كول، دَ نامه لاندې ويښته لرې كول، دَ ترخونوويښته صفاكول او كپړې صفاكولوسره اغوستل اوخوشبوا ستعمالول مراددى. داټول ځيزونه دَ جمعې په ورځ مسنون دى.

**قوله: وَالتَّبْكِيرِ**: دَ جمعه دَ مانځه دَپاره دَ جمات طرف ته دَ وختى وتل مراددى يعنى دَ جمعې دَ مونځ دَپاره په اول وخت كښې تلل مراددى.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

**[١٣٨١]دَ جمعې دَ مونځ آداب**

١٣٨١-()[١] ١ عَنْ سَلْمَانَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٢ «لَا يَغْتَسِلُ رَجُلٌ يَوْمَ الْجُمُعَةِ، ٣ وَيَتَطَهَّرُ مَا اسْتَطَاعَ مِنْ طُهْرٍ، ٤ وَيَدَّهِنُ مِنْ دُهْنِهِ، ٥ أَوْ يَمَسُّ مِنْ طِيبِ بَيْتِهِ، ٦ ثُمَّ يَخْرُجُ فَلَا يُفَرِّقُ بَيْنَ اثْنَيْنِ، ٧ ثُمَّ يُصَلِّي مَا كُتِبَ لَهُ، ٨ ثُمَّ يُنْصِتُ إِذَا تَكَلَّمَ الْإِمَامُ، ٩ إِلَّا غُفِرَ لَهُ مَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْجُمُعَةِ

[١] اخرجه البخارى كتاب الجمعة/باب الدهن للجمعة (رقم-٨٨٣) والنسائى كتاب الجمعة/باب فضل الإنصات وترك اللغو يوم الجمعة (رقم-١٤٠٣) والدارمى كتاب الصلاة/باب فى فضل الجمعة والغسل والطيب فيها

الْأُخْرَى»". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ١ حضرت سلمان ﷺ راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ کوم سړي چې د جمعې په ورځ ولمبيږي ٣ او څومره چې کيدي شی پاکي حاصله کړي ٤ او د خپلو تيلو څخه (يعني په کور کې چې کوم بلا تکلف ميسر شي) تيل اولګوي ٥ او د خپل کور څخه عطر ولګوي ٦ او بيا مسجد ته ووځي او (مسجد ته رسيدو سره) د دوه سړو په مينځ کې جداوالي ونه کړي ٧ او څومره هم چې د هغه په مقدر کې وي (يعني د جمعې سنت ونوافل يا قضاء) مونځ وکړي ٨ او د امام د خطبي ويلو په وخت خاموش وي ٩ نو د دې جمعې او د تيري جمعې په مينځ کې د هغه ګناه بخښل کيږی. (بخاري)

**حل اللغات:** - ① دُهْن: تيل، ② يَمَسُّ: اولګوی. ③ يَتَطَهَّرُ: ښه پاکی حاصله کړی، دې نه دَ جمعې په ورځ د غسل په ذريعه بدن پاکول، نوکه اخستل وغيره صفائی مراد ده کوم چه دجمعې دپاره مسنون دی..

**تسهيلات:** - **قوله: دُهْنِهِ:**

**په دهنه کښې د اضافت فائده:** - يعنی چه دکورنی ساخت تيل استعمال اوکړی يا داسې تيل اوخوشبوئی وی کومه چه مسلمانانو جوړ کړې وی او په هغې کښې دَ څه حرام څيز ملاوټ نه وی. کيدې شی دَمسلمان او مونځ ګذار طرف ته دَدې تيلو دَاضافت مقصد دَ رسول الله ﷺ په زمانه کښې خودَدې اضافت فائده زياته نه معلوميدله ليکن نن خودَدې قيد سخت ضرورت محسوسيږی ځکه چه په عطرونو کښې خو حرام څيزونه ملاوولې شی. دَ غيرمسلمو کمپنيانې دَ عطرسازئی کار کوی او ښه په قصدسره مسلمانان ناپاکه جوړولو کوشش کوی اوداهم ممکن ده چه "من دهنه يامن دهن بيته" دَ اضافت قيد اتفاقی اودَ قيد واقعی په توګه باندې وی چه په هغه زمانه کښې به تيل اوعطر هم کورنی جوړ وو. والله اعلم.

**قوله: ثُمَّ يَخْرُجُ فَلَا يُفَرِّقُ بَيْنَ اثْنَيْنِ:**

**د تفريق بين الاثنين په مفهوم کښې درې اقوال: -**

① چه مثلاً دوه کسان په يوځائې ناست وی هغه دوستان او محبت کونکی دی. يا پلار خوئی دی يا دَ يوبل نه جدا کيدو او ورکيدو خطره وی او څوك دريم سړې راشی اودَ هغوی په مينځ کښې باوجود دَ ځائی دَ نشتوالی سره ديکه ورکولوسره کينی دا جائز نه دی. په حرمين کښې دا حديث ښه په پوهه کښې راځی.

② چه يوسړې ناوخته راځی او دَ خلقو په سرونو باندې اوړی ورانديې کيږی اوهغه دَ دوو کسانو په مينځ کښې خامخا جدائی اچولوسره خپله لاره جوړه وی او وړاندې کيږی اوخلقو ته تکليف رسوی. دَدې مشاهده هم په حرمين شريفين کښې ښه کيږی. اوکه چرې په وړاندې صفونو کښې خالی ځائی ښکاری نوبيا دَدې سړی وړاندې تلل جائز دی ځکه چه

تصورد هغه خلقو دې چه شاته ناست دی او وړاندې ځائی خالی پریخودې دې.
④ دا هم کیدې شی چه د دوو کسانو په مینځ کښې جدائی اونفرت پیدا نه کړی.

**قوله: ثُمَّ يُنْصِتُ:**

**د جمعې په ورځ په جمات کښې د خاموشۍ حکم:-** چونکه په جمعه او اخترونو کښې ګڼړه وی هلته خاموشی د ټولو نه زیات ښه څیز وی دې د پاره چه نظم او ضبط په ځائې پاتې شی. په دې وجه د جمعې د اضافی ثواب د حاصلولو د پاره دا بنیادی شرط لګولې شوې دې چه سړې دې په ژبه باندې هیڅ هم نه وائی بلکه خاموش دې پاتې وی تردې چه څه نیکه خبره دې هم نه کوی. مثلاً چاته دا وینا کول چه چپ شه دا امر بالمعروف دې مګر دا هم جائز نه ده.

**قوله: غُفِرَلَهُ:**

**د ګناهونو مغفرت:-** یعنی د دې جمعې نه واخله تر راتلونکې جمعې پورې د دې سړی ټول ګناهونه معاف کولې شی. دې نه واړه ګناهونه مراد دی اوکه چرته رښتونې توبه نی اوکړه نولوئی ګناهونه به ئی هم معاف شی ګنی کمزورې خو به شی.

**قوله: إِلَّا غُفِرَلَهُ مَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْجُمُعَةِ الْأُخْرَى:**

**د جمعة الاخرى څخه مراد:-** شیخ عبدالحق رحمه الله لیکی چه د دویمې جمعې پورې نه هغه جمعه مراد ده چه د دې جمعې نه مخکښې تیره شوې ده. لکه چه د اُخرىٰ مطلب اومعنی داده چه یوه بله جمعه . اوس دا ضروری نه ده چه هغه بله جمعه هم هغه وی کومه چه وړاندې راځی بلکه تیره شوې جمعه هم کیدې شی. دا توجیه شارحین څکه کوی چه راتلونکی څه احادیثو باندې پوهیدل په دې باندې موقوف دی. [اشعة المعات]

**[١٣٨٢] د ګناهونو بخښش**

١٣٨٢–(١)[٢] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: ② «مَنِ اغْتَسَلَ، ثُمَّ أَتَى الْجُمُعَةَ فَصَلَّى مَا قُدِّرَ لَهُ، ③ ثُمَّ أَنْصَتَ حَتَّى يَفْرُغَ مِنْ خُطْبَتِهِ، ④ ثُمَّ يُصَلِّيَ مَعَهُ، غُفِرَ لَهُ مَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْجُمُعَةِ الْأُخْرَى، ⑤ وَفَضْلُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① ابوهریره رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② کوم سړي چې غسل وکړو بیا جمعې ته راغې او څومره چې د هغه په نصیب کې وو مونځ یې وکړو ③ بیا د امام خطبې څخه تر فارغیدو پورې چپ وو ④ او د ده سره یې مونځ وکړو نو د دې جمعې څخه تر تیرې جمعې پورې ⑤ بلکه د دې څخه درې ورځې زیات د هغه ګناه بخښل کیږي. (مسلم)

**تسهیلات:-**

**قوله: وَفَضْلُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ:**

[1] اخرجه مسلم فی کتاب الجمعة /باب فضل من استمع وأنصت فی الخطبة (رقم-٢٦ - (٨٥٧)

**د جمعې د ورځې فضيلت:**- دَدې وجه داده چه دَ يوې جمعې نه دَ بلې جمعې پورې اووه ورځې جوړيږي اودَدې امت يوه نيکي په لس چنده باندې زياتيږي. لهذا دَ جمعې يوه ورځ دَ لسو ورځو برابرکيدل پکار دی. په دې وجه په اووه ورځو باندې دَدريو ورځو اضافه کولوسره ﴿مَنْ جَآءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهُ عَشْرُ اَمْثَالِهَا ﴾په دې سره پوره کړې شو.

**[١٣٨٢]د خطبې په دوران کښې د نورو کارونو لغويت**

١٣٨٢-()[٣]١ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٢ "«مَنْ تَوَضَّأَ فَأَحْسَنَ الْوُضُوءَ ٣ ثُمَّ أَتَى الْجُمُعَةَ فَاسْتَمَعَ وَأَنْصَتَ ؛ ٤ غُفِرَ لَهُ مَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْجُمُعَةِ وَزِيَادَةُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ ٥ وَمَنْ مَسَّ الْحَصَى فَقَدْ لَغَا» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ١ ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ کوم سړي چې اودس وکړو او ښه اودس يي وکړو (يعني د اوداسه د آدابو د رعايت سره) ٣ بيا جمعي ته راغي او (که نزدي وو نو) خطبه يي واوريده او (که لرې وو خطبه يي نشوه اوريدي نو) چپ کيناستو ٤ نو د ددې (جمعي) او د تيري جمعي په مينځ کې بلکه د دې څخه هم دري ورځي زيات د هغه ګناه بخښل کيږی ٥ او چا چې د خطبې په وخت يا په لمانځه کښې د سنګ ريزو وغيره سره شغل وکړو هغه لغو کار وکړو. (مسلم)

**حل اللغات:**- ① الْحَصَى: کاڼړی، ② لَغَا: فضول او عبث کار.

**تسهيلات:- قوله: مَسَّ الْحَصَى:**

**په مس الحصى کښې دوه احتماله:-**

① کاڼړوته لاس لګول دې نه مراددی چاچه په مانځه کښې داشغل اوکړواوکاڼړوسره ئې لوبې کول شروع کړه يعنی دَ سجدې دَ ځائی نه دَ يوځل په ځائی باربار کاڼړی اخواکول شروع کړه نوهغه فضول کاراوکړو اوچاچه فضول کاراوکړو دَهغه دَ جمعه اضافی ثواب ضائع شو. په دې سره دَعربواوعجموهغه سلفی رونړو ته تنبيه ورکول دی چه دَبل دَ جيب نه ټشو پيپر راؤباسی اوپوزه پاکوی اوموبائل فون هم اوری. په مانځه کښې اخوا ديخوا تلل اوځوك راښکل اوخپل طرف ته راوستل خودَهغوی معمولی خبره ده.

② بعضې شارحينودَ دې حديث مطلب دااخستې دې چه دَ خطبې دوران کښې يوسړې دَ خطبې اوريدوپه ځائی کاڼړوسره لوبې کوی دَهغه ثواب ضائع کيږی دامطلب ډيرواضح دې.

[1]) اخرجه مسلم فى كتاب الجمعة /باب فضل من استمع وانصت فى الخطبة (رقم-٢٧ - (٨٥٧)

## [١٣٨٤] دَ جمعې په ورځ په اول وخت ګښې دَ راتلو فضيلت

١٣٨٣-(١)[٣] ١ وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٢ "«إِذَا كَانَ يَوْمُ الْجُمُعَةِ، وَقَفَتِ الْمَلَائِكَةُ عَلَى بَابِ الْمَسْجِدِ، ٣ يَكْتُبُونَ الْأَوَّلَ فَالْأَوَّلَ، ٤ وَمَثَلُ الْمُهَجِّرِ كَمَثَلِ الَّذِي يُهْدِي بَدَنَةً، ٥ ثُمَّ كَالَّذِي يُهْدِي بَقَرَةً، ٦ ثُمَّ كَبْشًا، ٧ ثُمَّ دَجَاجَةً، ٨ ثُمَّ بَيْضَةً، ٩ فَإِذَا خَرَجَ الْإِمَامُ طَوَوْا صُحُفَهُمْ، وَيَسْتَمِعُونَ الذِّكْرَ» " مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ هر کله چې د جمعې ورځ راځي نو فرښتې د مسجد په دروازه اودريږي ٣ نو څوک چې مسجد ته په اول وخت کې راځي مخکې د هغه نوم ليکي بيا د دې څخه وروسته د مخکې راتلونکو نومونه ليکي ٤ او کوم سړي چې مسجد ته اول (وخت) په جمعه کې راشي د هغه مثال داسې دي لکه يو سړي چې مکې ته د قرباني د پاره اوښ ليږي (چې د هغې ډير زيات ثواب دي) ٥ بيا د هغې څخه وروسته چې کوم سړي جمعې ته راځي د هغه مثال داسې دي لکه يو سړي چې د قرباني د پاره غوا ليږي ٦ بيا د هغه څخه وروسته چې کوم سړي راځي د هغه مثال داسې دي لکه يو سړي چې پسه ليږي ٧ بيا د هغه څخه وروسته چې کوم سړي راځي د هغه مثال داسې دي لکه يو سړي چې په صدقه کې چرګ ليږي ٨ بيا د هغه څخه وروسته چې کوم سړي راځي هغه صدقه کې د اګې ورکونکي پشان وي ٩ او هر کله چې امام د خطبې د پاره منبر ته راشي نو هغه (يعنې فرښتې) خپلې صحيفې ونغاړي او خطبه آوري. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** - ① إِذَا كَانَ: دا کان تامه دي لهذا دَدې دَپاره دخبر ضرورت نشته دې. ② الْمُهَجِّر: دَ باب تفعيل نه دې، تهجير هاجره نه دې دَ غرمې دَنمر دَ زوال وخت ته هاجره وائي. دلته زر او اول وخت کښې راتلل مراد دي ③ بَدَنَةً: د قربانئ اوښ. ④ كَبْشًا: ګډ، پيسه. ⑤ طَوَوْا: راؤنغاړي،

**تسهيلات:** - **قوله: فَالْأَوَّلَ:** دا منصوب دې کوم چه دَ "يکتبون" دَپاره مفعول به دې او "فاء" دَ ترتيب دَپاره ده.

**دحديث مقصد:** - دَدې حديث مطلب دادې چه مثلاً دَ زوال دَ نمر نه پس دَ جمعې وخت کيږي اوس دَدغه وخت نه واخله دَ امام په منبر باندې دَ کيناستو پورې چه کوم وخت دې. دا وخت فرښتو په پنځو حصو کښې تقسيم کړې دې. هم دَدغه پنځو حصو بيان په دې حديث کښې کړې شوې دې. يعنې چه کوم سړې دَدغه وخت په اوله حصه کښې دَ جمعې دَپاره راغلو

---

(١) اخرجه البخاری فی کتاب الجمعة /باب الاستماع إلى الخطبة (رقم-٩٢٩) ومسلم فی کتاب الجمعة /باب فضل التهجير يوم الجمعة (رقم-٢٤ - (٨٥٠) وابوداود کتاب الطهارة /باب فی الغسل يوم الجمعة(رقم-٣٥١ ) والترمذی کتاب الجمعة /باب ما جاء فی التبکير إلى الجمعة (رقم-٤٩٩) والنسائی کتاب الجمعة /باب التبکير إلى الجمعة (رقم-١٣٨٥) وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها /باب ما جاء فی التهجير إلى الجمعة (رقم-١٠٩٢) ومالک فی الموطا کتاب الجمعة /باب العمل فی غسل يوم الجمعة(رقم- ١٤)

لکه چه هغه دَ بیت الله دَ قربانئی دَپاره دَ هدیه په توګه صدقه اوخیرات کښې اوبښ اولیګلو اوکوم سړی چه په دویمه حصه کښې راغلو هغه لکه چه دَ بیت الله دَ قربانئی دَپاره غوا صدقه کړه اوڅوك چه په دریمه حصه کښې راغلو نوهغه لکه دَ ګډ صدقه اولیګله او څوك چه په څلورمه حصه کښې راغلو هغه لکه چه دَ چرګ صدقه اوکړه اوڅوك چه په پنځمه حصه کښې راغلو نوهغه لکه چه دَ هګئی صدقه اوکړه. دې نه پس دَ صدقاتو دروازه بنده شی څکه چه امام راوځی خطبه شروع کیږی. اوس دَ انسانانوپه شان فرښتې هم دَخطبې دَ اوریدو پابند کیږی. لهذا رجسټر بند کړی اودَ خطبې اوریدو دَپاره کینی.

**[١٣٨٥] دَ خطبې په وخت د امر معروف اونهی عن المنکر ممانعت**

١٣٨٥–()[٥] [١] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] "«إِذَا قُلْتَ لِصَاحِبِكَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ: أَنْصِتْ وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ، [٣] فَقَدْ لَغَوْتَ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] ابوهریره رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] د جمعې په ورځ چې امام خطبه وايي که تا د خان سره ناست نژدې سړي ته دا هم اوویل چې چپ شه [٣] نو تا هم لغو کار وکړو. «بخاري، مسلم»

**حل اللغات:-** ① لَغَوْتَ: تا فضول او عبث کار اوکړو.

**تسهیلات:- قوله : فَقَدْ لَغَوْتَ:**

**دخطبې په دوران کښې د امر بالمعروف عدم جواز:-** ښکاره خبره ده چه کله یوسړې بل سړی ته په زوره سره وائی چه چپ شه نوهغه پخپله هم شور اوکړو. لهذا داهم دَ لغو په زمره کښې راځی په کوم سره چه دَ جمعې اضافی ثواب ختمیږی. سره دَدې چه دا نیك کار دې لیکن دغه وخت په اشاره سره پوهه کول پکاردی په ژبه سره څه نه دی وئیل پکار. دَ سوچ مقام دې چه کوم فضول قسم خلق په دې دوران کښې شورکوی یا په امام وغیره باندې اعتراض اوکړی دَهغوی به څه حال وی.

**داحنافو په نیز د خطبې په دوران کښې د خاموشۍ حکم:-** کوم وخت چه امام خطبه ورکوی نودَ اکثر علماؤ په نیز بالکل خاموش پاتې کیدل واجب دی. دَ امام ابوحنیفه رحمه الله هم دغه مسلك دې هغوی فرمائی چه دَ امام دَ خطبې دوران کښې نه مونځ جائز دې اونه څه بل کلام جائز دې څکه چه "اذاخرج الامام فلا صلاة ولاكلام".

امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی چه په ژبه سره په اوچت آواز دې دوران کښې درود شریف وئیل هم جائز نه دی بلکه په زړه کښې دې وائی اوکوم خلق چه دَ خطبې آواز نه اوری بلکه لرې

[١] ) اخرجه البخاری فی كتاب الجمعة/باب الإنصات يوم الجمعة والإمام يخطب(رقم-٩٣٤) ومسلم كتاب الجمعة/باب فی الإنصات يوم الجمعة فی الخطبة (رقم-١١ - (٨٥١)

ناست وي او لاؤډسپیکر نه وي نو هغوی له هم چپ کیناستل پکاردي. دَ فقه دَ عبارت "والناءي کالقريب" هم دغه مطلب دې.

**د خطبې په دوران کښې د ليکلو ممانعت:**- علماؤ دَ خطبې په آدابو کښې ليکلي دي چه دغه وخت کښې ليکل لوستل هم منع دي بلکه دَ اتروشي جواب ورکول هم مکروه دي.
درمختار کښې دا قاعده ليکلې ده "وكل شئ حرم في الصلوة حرم في الخطبة" بهرحال په دې حديث کښې دَ جمعې دِپاره آدابو خيال ساتلو سره دَ وختـه تلل دَ لوئي فضيلت څيزدې.
مسلمانانو له په دې باندې عمل کول پکاردي "ومن بطاءبه عمله لم يسرع به نسبه" کوم سړي چه دَ هغه عمل شاته کړو هغه دَ ده نسب نه شي وړاندې کولې.

**[١٢٨٦] جمات کښې څوک دَهغه دَځائې نه اخواکولو ممانعت**

١٣٨٦-()[٦][١] وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] " «لَا يُقِيمَنَّ أَحَدُكُمْ أَخَاهُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ، [٣] ثُمَّ يُخَالِفُ إِلَى مَقْعَدِهِ، فَيَقْعُدُ فِيهِ، [٤] وَلَكِنْ يَقُولُ: افْسَحُوا» " رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:**[١] جابر رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] په تاسو کې دې يو سړي د جمعي په ورځ (جامع مسجد ته د رسيدو سره) خپل مسلمان ورور د هغه د ځاي څخه نه لرې کوي [٣] چې هلته بياخپله د ناستي اراده کوي [٤] هو خلقو ته دې دا اووائي چې (ورونو) ځاي څه کشاده کړي. (مسلم)

**حل اللغات:**- ① مَقْعَدِهِ: د کيناستلو ځاي، ② افْسَحُوا: ځاي فراخه کړئ.

**تسهيلات:-**

**قوله: افْسَحُوا:** داحديث مونږ ته داتعليم راکوي چه دَ يوبل ځائې نيولو په ځائې بهتر داده چه تاسو په خپل مينځ کښې دَ کولاويدل او وسعت پيدا کولو کوشش کوئې مه څوك پاره کوئې او مه څوك پاسوئې.

**په حرمين شريفينو کښې د خپل ځائې پريښودو صورتونه:**- په توضيحات شرح مشكاة کښې مولانا فضل محمد صاحب مدظله العالى فرمائيلي دي دَ جمعې په ورځ دَ ګڼړې دَوجې نه دَ ځائې مسئله پيدا کيږي او خاص کر په حرمين شريفين کښې دامسئله يوسنګين صورت اختياره وي داحکم دَټولو مونځونودپاره دي ليکن دَدې صورت په جمعه يا اخترونو کښې ډير پيښيږي په دې وجه نې دا په جمعه کښې ذکر کړو. صورت داسې وي چه يوسړي راشي او بل سړي دَهغه دَ ځائې نه په زور سره پاسوي او بخپله په هغه ځائې باندې کيني داخوخالص حرام کاردې او که هغه سړي په خپله مرضئ سره دغه ځائې پريږدي نو ظاهراوباطن دَدواړو رضا ضروري ده نه دا چه دَ ويراوحيا، اميد اوطمع دَ وجې نه هغه اجازت ورکوي. او که

[١] اخرجه مسلم في باب تحريم إقامة الإنسان من موضعه المباح الذي سبق إليه (رقم-٣٠ - (٢١٧٨))

یوسړی بل سړی د وړاندې نه جماعت لیګی او هغه سړی خی او د هغه د پاره په جماعت کښې ځائی ګیره وی او بیا هغه سړی راخی او په دغه ځائی کښې کینی او پخپله دغه ځائی نیونکې سړی خی نو دا صورت هغه وخت جائزدې کله چه راتلونکې سړې عالم فاضل وی او مخدوم او بزرګ وی نو د دغه کمزور خادم د پاره دا قربانی ورکول جائزدی. لیکن که هغه سړې عالم فاضل نه دې او نه په درجه کښې د ده نه لوئی دې نو د هغه کیناستل او د ده پاسیدل او ځائی پریخودل مکروه دی. دا صورت هغه وخت ډیر زیات خراب ښکاری کله چه د ځائی نیونکې سړې د هغه کس د پاره ځائی ګیره وی چه هغه به ده له څه پیسې ورکړی لکه نن صبا چه په رمضان کښې د عربو شیخانو تکرونی غریبانانو توریانو مسلمانانو سره هم دغه معامله ده. او کیدې شی چه پخوا زمانه کښې هم دغه معامله چرته په بل صورت کښې وه نو ځکه خو حضورپاک ﷺ منع فرمائیلې. نن صبا خو دا صورت د ظلم د حدپورې رسیدلې دې. هم په دې وجه یو الله والا او وئیل چه د کوموخلقو په عبادت کښې دا ظلم کیږی د عبادت نه علاوه به د هغوی د ظلم او ګناه څه حال وی؟

**په جماعت کښې خپل ځائې بل ته پریخودل:** -د جماتونو زمکې وقف دی کوم سړې چه وړاندې راغلو د هغه حق دې چه هلته دې کینی. اوس مسئله د ایثار بالتبرع ده یعنی یو طالب خپل استاذ په مخکښې صف کښې په خپل ځائی باندې اودروی او پخپله ایثار او قربانی کولو سره د ثواب نه لاس اخلی روستو صف ته خی. د دې متعلق بعضې علماء فرمائی چه جائزدی بعضې وائی ایثار بالتبرع مکروه دې.

**[۱۳۸۷] د جمعې په ورځ ښکلې لباس اچول**

۱۳۸۷ -()[۷] [۱] عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَا: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] " «مَنِ اغْتَسَلَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ، وَلَبِسَ مِنْ أَحْسَنِ ثِيَابِهِ [۳] وَمَسَّ مِنْ طِيبٍ إِنْ كَانَ عِنْدَهُ، [۴] ثُمَّ أَتَى الْجُمُعَةَ، فَلَمْ يَتَخَطَّ أَعْنَاقَ النَّاسِ، [۵] ثُمَّ صَلَّى مَا كَتَبَ اللَّهُ لَهُ، [٦] ثُمَّ أَنْصَتَ إِذَا خَرَجَ إِمَامُهُ حَتَّى يَفْرُغَ مِنْ صَلَاتِهِ، [۷] كَانَتْ كَفَّارَةً لِمَا بَيْنَهَا وَبَيْنَ جُمُعَتِهِ الَّتِي قَبْلَهَا» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] ابو سعید او ابوهریره رضی الله عنهما راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] کوم سړي چې د جمعې په ورځ غسل وکړو ښه لباس یې واغوستو [۳] او که میسر وي نو خوشبو یې ولګوله [۴] بیا جمعې ته راشي او هلته د خلقو په څټونو (غاړو) توپ نه وهي [۵] بیا څومره چې الله ﷻ د هغه په مقدر کې لیکلي وي عبادت وکړي [٦] او کله چې امام د خطبې د پاره لاړ شی نو دي خاموشي اختیار کړي تر دې چې د لمانځه څخه فراغت حاصل کړي [۷] نو دا به د ده د پاره د دې جمعې او د دې څخه د مخکې جمعې په مینځ کې د ګناهونو کفاره شي (ابوداؤد)

[۱]) اخرجه ابوداود فی کتاب الطهارة/باب فی الغسل یوم الجمعة(رقم-۳۴۳)

**حل اللغات:** - ① يَنْفَطُ: توپ وهل، آورېدل. ② أَحْسَنِ نِهَايَه: ښائسته جامې، پاکې صفا جامې مراد دی.

**تسهيلات:** - **قوله:** إِنْ كَانَ عِنْدَهُ:

**د قيد فائده:** -په دې جمله کښې چه کومې اشارې اوفائدې دی هغه اول ليکلې شوی دی. يوه فائده داهم ده چه په خپلو عطرو اوخوشبوسره حضورپاك ﷺ اشاره اوکړه که چرې خپل دې نه وی نودچانه په سوال مه غواړه ثواب هم په دې کښې دې چه خپل عطر او تيل اولګوی اودَ چانه په غوښتلوسره نه دی لګول پکار.

**قوله:**

كَانَتْ كَفَّارَةً لِمَا بَيْنَهَا وَبَيْنَ جُمُعَتِهِ الَّتِي قَبْلَهَا:

**د ګناهونو مغفرت:** -په دې حديث کښې تصريح ده چه تيره شوې جمعه اودَ دې جمعه په مينځ کښې کومه ګناه کولې شی وړاندې چه کوم ليکلی دی چه دَ اخرئ نه مراد راتلونکې جمعه نه ده هغه دَدې حديث په رڼړا کښې ليکلې شوې دی ځکه چه دا حديث ښائی چه تيره شوې جمعې او دَ دې جمعې په مينځ کښې ګناهونه به معاف کيږی.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [۱۳۸۸] جامع مسجدته د پيدل تلل افضل

١٣٨٨-()[٨] [١] وَعَنْ أَوْسِ بْنِ أَوْسٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "[٢] «مَنْ غَسَّلَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَاغْتَسَلَ، [٣] وَبَكَّرَ وَابْتَكَرَ، [٤] وَمَشَى وَلَمْ يَرْكَبْ، [٥] وَدَنَا مِنَ الْإِمَامِ، [٦] وَاسْتَمَعَ وَلَمْ يَلْغُ، [٧] كَانَ لَهُ بِكُلِّ خُطْوَةٍ عَمَلُ سَنَةٍ: أَجْرُ صِيَامِهَا وَقِيَامِهَا» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [١] اوس ابن اوس رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] کوم سړي چې د جمعي به ورځ بل څوک اولمبولو او خپله ئې هم اولمبل [٣] او د وختـه (جامع مسجد تـه) لاړ شی چې د شروع څخه خطبه لاندې کړي او پيدل (په پښو) لاړ شی [٤] او امام تـه نزدې کيني [٦] او خطبه واوري او څه بيهوده خبره د ژبي څخه ونه باسي [٧] نو د هغـه د هر قدم په بدلـه کـې د يـو کـال د روژو او د شـپي د عبـادت کولـو ثـواب ليکـل کيـږی.
(ترمذي، ابوداؤد، نسايي، ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① بَكَّرَ وَابْتَكَرَ: وختی تلل، (دادواړه لفظونه دَ يوبل دَپاره تاکيد دې.) ② يَلْغُ: فضول او عبث کار نه وائی.

**تسهيلات:** - **قوله:** غَسَّلَ:

**د جمعې په شپه د جماع کولو استحباب او ددې حکمت:** -دَباب تفعيل نه دَ لامبلو په معنی کښې

[١] ) اخرجه ابوداود فی كتاب الطهارة/باب فی الغسل يوم الجمعة(رقم-٣٤٥) والترمذی كتاب الجمعة/باب ما جاء فی فضل الغسل يوم الجمعة (رقم-٤٩٦) والنسائی كتاب الجمعة/فضل المشی إلی الجمعة (رقم-١٣٨٤) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة والسنة فيها/باب ما جاء فی الغسل يوم الجمعة (رقم-١٠٨٧)

دي. دَدې مطلب دادې چه پخپله دې هم غسل کوی او په خپله ښځه دې هم غسل کوی. دَ ښځې لامبول دا چه جماع دې کوی دې دپاره چه هغه هم دَ جنابت دَ وجې نه غسل اوکړی نولکه چه هغه ښځه اولامبوله. په دې کښې دَدې خبرې طرف ته اشاره ده چه دَ جمعې په شپه یاپه ورځ کښې صحبت کول مستحب دی. دې دپاره چه دَ شیطاني وسوسو اودَ زنا دَ خطرې نه ښځې او سړی دواړه محفوظ پاتې شی ځکه چه دَ جمعې په ګنړه کښې دَ ګډوډ کیدو زیاتې خطرې دی.

**قوله : وَبَكَّرَوَابْتَكَرَ:**

**د بکر وابتکر په معنی کښې درې احتمالات:-**

① دادواړه لفظونه دَ یوبل دپاره تاکید دې مطلب دا چه هغه سړې دې دَ وختـه جمات ته لاړشی.

② یا "بکّر" مطلب دادې چه پخپله وختی لاړو "وابتکر" او خطبه ئی دَ شروع نه حاصله کړه

③ یا "بکّر" مطلب وختی تلل نه دی بلکه صدقه کول دی چه دَ جمعې په ورځ ئی صدقه اوکړه او بیا دَوخته لاړو خطبه ئی واؤریده.

**قوله : وَمَشَى وَلَمْ يَرْكَبْ:**

**جمات ته د پیدل تلو فضیلت:-** په دې کښې هم دویم لفظ دَ اول لفظ مشی دَ پاره تاکید دې یعنی پیدل لاړو او بالکل سور نه شو. بهرحال که جامع مسجد ډیر لرې نه وی نو پیدل تلوکښې ثواب زیات دې ځکه چه قدمونه لیکلې کیږی. دَ دوړو پریوتلو ثواب جدا دې اوکه جمات لرې وی نوبیا سوریدو سره تلل منع نه دی.

**[١٣٨٩] دَجمعې اواخترونودپاره ښکلې کپړې ساتل**

١٣٨٩-(١)[٩] ① وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ سَلَامٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② "«مَا عَلَى أَحَدِكُمْ إِنْ وَجَدَ أَنْ يَتَّخِذَ ثَوْبَيْنِ لِيَوْمِ الْجُمُعَةِ ③ سِوَى ثَوْبَيْ مِهْنَتِهِ»". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① عبدالله ابن سلام رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② په تاسو کې چې د چا وس وي که هغه د جمعې د لمانځه د پاره علاوه د کارو بار د کپړو څخه دوه کپړې نوري جوړې کړي ③ نو په دې کې څه حرج نشته. (ابن ماجه)

**حل اللغات:-** مِهْنَتِهِ: محنت مشقت، کار روزګار.

**تسهیلات:- قوله : سِوَى ثَوْبَيْ مِهْنَتِهِ:**

**دعیدین او جمعې دپاره دخاص لباس استعمال حکم:-** یعنی دَ عام خدمت اوکارروزګاردَلباس

[1] ) اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة،باب اللبس للجمعة (رقم-١٠٧٨) وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة، والسنة فیها/باب ما جاء فی الزینة یوم الجمعة (رقم-١٠٩٥)

نه علاوه خاص دَ جمعه اواخترونودپاره که څوك لباس تیاره وی او ایږدی نو منع نه دی بلکه محمود دی. شرط دادې چه الله تعالی دې سړی ته په وسعت سره ورکړې وی دا په اسراف کښې داخل نه دی اونه دَ زهداوتقویٰ منافی دی. په دې کښې دَ شعائراسلام جمعه اوعیدین اعزازهم دې اولونی شان هم دې. رسول الله ﷺ دَ خپل دې مبارك فرمان په ذریعه اودَ خپل مبارك فعل په ذریعه هم دَدې تعلیم ورکړې دې. رسول الله ﷺ مبارك به دَ جمعه اودَ عیدین دَپاره خاس لباس او جبه ساتله اوبیابه ئی استعمالوله. نن صبا دَ دنیادارودپاره دَ یونیفارم رواج دې. دَعدالت کمرې ته چه کله یوانگریزیادَ انگریزپه شان جج داخلیږی نو په لازمی توګه هغه جُبه اوقبه استعمالوی. دَ وکیلانو اوسکول کالج یونیفارم وی دَ جمعې اواخترونودپاره جبه استعمالول او پټکې تړل اسلامی یونیفارم دې په هرخطیب باندې لازم دی چه هغه دې دَ اسلام دا امتیازی اعزازی لباس استعمال کړی اوشرم دې نه کوی. په عوام الناس کښې په دې سره دَدین عظمت زیاتیږی او په وعظ اونصیحت باندې باور اویقین زیاتیږی. ډیردَ افسوس مقام دې چه دَ برصغیرعام خطیبانودا سنت ترك کړی دی سره دَدې چه دَ سنن زوائدنه ولې نه وی.

١٣٩٠—()[۰] ١ وَرَوَاهُ مَالِكٌ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ.

**ترجمه:** ١ او امام مالك رحمه الله دا روایت د یحیٰی ابن سعید څخه نقل کړي دي.

**[١٣٩١] په خطبه کښې امام څخه د لرې کیناستو وعید**

١٣٩١—()[١٠] ١ وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " ٢ «احْضُرُوا الذِّكْرَ، وَادْنُوا مِنَ الْإِمَامِ، ٣ فَإِنَّ الرَّجُلَ لَا يَزَالُ يَتَبَاعَدُ ٤ حَتَّى يُؤَخَّرَ فِي الْجَنَّةِ وَإِنْ دَخَلَهَا» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ١ سمره ابن جندب رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ٢ د خطبي په وخت زر حاضریږي او امام ته نژدي کیني ٣ ځکه چې سړي (د خیر د ځاي څخه چې بلا عذره) څومره لرې کیږي ٤ د جنت په داخلیدو کښې به وروسته وي اګر که په جنت کې داخل شی هم. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① يَتَبَاعَدُ: لرې کیږی.

**تسهیلات:** - **قوله:** فَإِنَّ الرَّجُلَ لَا يَزَالُ يَتَبَاعَدُ:

**په نیکۍ کښې شرم نه کول:** - داحدیث مسلمانانوته داتعلیم ورکوی چه هغوی دې همیشه اعلی اواوچتې حوصلې خپله وی اوپه هره نیکئی کښې دَ ښکته والی په ځائی اوچتوالی ته اوړاندې کیږی اودَ خپلو عظمتونو پروازدې ښکته نه ساتی بلکه اوچت دې ساتی.

[1] ) اخرجه مالک فی الموطا فی کتاب الجمعة /باب الهیئة وتخطی الرقاب، واستقبال الإمام یوم الجمعة (رقم-١٧)
[2] ) اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة،باب الدنو من الإمام عند الموعظة (رقم-١١٠٨)

**[١٣٩٢] د خطبې په دوران کښې په څټونو باندې د تيريدو وعيد**

١٣٩٢-(١)[١١] [١] وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ أَنَسٍ الْجُهَنِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] "«مَنْ تَخَطَّى رِقَابَ النَّاسِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ، [٣] اتَّخَذَ جِسْرًا إِلَى جَهَنَّمَ»". [٤] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [١] معاذ رضي الله عنه ابن انس جهني رضي الله عنه د خپل پلار بزرګوار څخه نقل کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] کوم سړي چې د جمعې په ورځ (په جامع مسجد کې د ځاي حاصلولو د پاره) د خلقو په څټونو (ګردنونو، غاړو) تيوپ وهي [٣] هغه به د جهنم طرف ته پل جوړ کړي، [٤] ترمذي رحمه الله دا روايت نقل کړي دي او ويلې يې دی چې دا حديث غريب دي.

**حل اللغات:** - ① جِسْرًا: پُل.

**تسهيلات:** - **قوله: مُعَاذِ بْنِ أَنَسٍ الْجُهَنِيِّ، عَنْ أَبِيهِ:**

**دحديث په سند کښې غلطي:** - شيخ سيد رحمه الله فرمائيلی دی چه دَدې حديث په سند کښې معاذ بن انس عن ابيه وئيل سهو ده ځکه چه دَ معاذ پلار انس نه صحابی دې نه هغه دَ يوحديث راوی دې. په دې وجه صحيح اسناد داسې دی عن سهل بن معاذ رضي الله عنه عن ابيه. دَ حديث الفاظ "اتخذ جسرا" يعنی دا سړې به دَ دوزخ دَپاسه پل جوړولې شي.

**د اتخاذ الجسر مطلب:** - دَدې مطلب دادې چه څنګه دې سړی مسلمانان تنګ کړل اودَ خلقو په ستونو باندې اوختو سره هغوی ته تکليف اورسولو اوس به دَ قيامت په ورځ دا سړې په جهنم باندې دَ پل په توګه کيخودې شی اوخلقوته به وئيلی شی چه دَدې سړی دَپاسه تيريږئی نوخلق به تيريږی اوهغه به دَ خپلو لاندې کوی.

**[١٣٩٣] دَ خطبې دوران کښې دَ کيناستو يوممنوع صورت**

١٣٩٣-(٢)[١٢] [١] (وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ أَنَسٍ: [٢] أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "«نَهَى عَنِ الْحُبْوَةِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُودَاوُدَ).

**ترجمه:** [١] معاذ ابن انس رضي الله عنه راوي دي [٢] چې رسول الله ﷺ د جمعې په ورځ کله چې امام خطبه وايي دواړي ګونډي د ځيتې سره د لګولو څخه منع فرمايلي ده، (ترمذي، ابواؤد)

**حل اللغات:** - ① الْحُبْوَةِ: پرلت کيناستل.

**د راوي مختصر تعارف:** - نوم معاذ دَ پلار نوم انس قبيله جهنيه سره ئې تعلق لرلو دَ مصر په خلقو کښې دَ هغوی شمير کيدلو او هم په اهل مصرکښې دَهغوی روايات موندلې شي دَ هغوی ځوئ سهل دَ هغوی نه روايات نقل کوی.

[١] ) اخرجه الترمذی کتاب الجمعة/باب ما جاء فی کراهية التخطی يوم الجمعة (رقم-٥١٣)
[٢] ) اخرجه ابوداود کتاب الصلاة،باب الاحتباء والإمام يخطب (رقم-١١١٠) والترمذی کتاب الديات عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی الموضحة (رقم-٣٩٠)

تسهیلات:-

قوله: نَهَى عَنِ الْحُبْوَةِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ:

د حبوة معنی او ددې د منعې وجه:- دا یوشان کیناستل دی کوم ته چه پرلت وهلوسره کیناستل وائی. حضورپاک ﷺ دې نه ځکه منع فرمائیلې ده چه داسې کیناستوسره خوب غالب راځی کوم سره چه اودس ماتیږی. یا سړې په یواړخ باندې ناڅاپی پریوځی یا په ناسته ناسته اودس ماتیږی او هغه ته احساس هم نه کیږی.

[۱۳۹٤] د پرکالی په راتلو د ځائې بدلول

۱۳۹۴-(۱)[۱۳] ۱ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ۲ " «إِذَا نَعَسَ أَحَدُكُمْ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فَلْيَتَحَوَّلْ مِنْ مَجْلِسِهِ ذَلِكَ» ". (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ).

ترجمه: ۱ ابن عمر رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ هر کله چې په تاسو کې يو سړي د جمعي په ورځ (په مسجد کې ناستي سره) نيم خوابه شی (د خوب جوته ورشي) نو هغه ته پکار دي چې خپل ځاي بدل کړي (يعني کوم ځاي چې ناست وي د هغه ځاي څخه دي پاڅي او په بل ځاي کې دي کيني دغسې د خوب غلبه به يې کمه شي). (ترمذي)

حل اللغات:- ① نَعَسَ: د خوب جوتې، پرکالی، ② فَلْيَتَحَوَّلْ: نو لاړ دې شی.

تسهیلات:-

قوله: فَلْيَتَحَوَّلْ مِنْ مَجْلِسِهِ ذَلِكَ

دځائې بدلولو په مفهوم کښې دوه اقوال:-

① ځائې بدلولوسره به د خوب غلبه ختمه شی. ځکه چې ګرزيدو سره خوب تښتی.

② د اودس ځائې ته دې لاړ شی او مخ لاس دې اووينځی.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

[۱۳۹۵] يوکس د هغه د ځائې څخه د پاسولو ممانعت

۱۳۹۵-(۲)[۱۴] ۱ عَنْ نَافِعٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ يَقُولُ: ۲ «نَهَى رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنْ يُقِيمَ الرَّجُلُ الرَّجُلَ مِنْ مَقْعَدِهِ وَيَجْلِسَ فِيهِ» ۳ قِيلَ لِنَافِعٍ: فِي الْجُمُعَةِ. قَالَ: فِي الْجُمُعَةِ وَغَيْرِهَا». (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).

ترجمه: ۱ نافع رحمه الله فرمايي ۲ چې ما د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه اوريدلي دي چې

---

[۱] ) اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة،باب الرجل ينعس والإمام يخطب (رقم-۱۱۱۹) والترمذی باب فيمن ينعس يوم الجمعة أنه يتحول من مجلسه (رقم-۵۲۶)

[۲] ) اخرج البخاری فی کتاب الاستئذان/باب (إذا قيل لكم تفسحوا فی المجلس. فافسحوا يفسح الله لكم وإذا قيل انشزوا فانشزوا) الآية (رقم-۶۲۷۰) ومسلم فی کتاب السلام/باب تحريم إقامة الإنسان من موضعه المباح الذی سبق إليه (رقم ۲۷ - (۲۱۷۷)) وابوداود فی کتاب الأدب/باب فی الرجل يقوم للرجل من مجلسه (رقم-۴۸۲۸)

رسول الله ﷺ د دې خبرې څخه منع فرمايلې ده چې هيڅ سړي دې بل سړي د خپله ځاي څخه نه پاڅوي چې بيا پخپله هلته کيني[٣] د نافع رحمه الله څخه پوښتنه وشوه چې آيا دا ممانعت د جمعې د پاره دې؟ هغه وفرمايل جمعې د پاره هم دي او د جمعې څخه علاوه هم دي. (بخاري)

**حل اللغات:-** ① مَقْعَدِهٖ: د کيناستلو ځاي.

**تسهيلات:-**

**قوله: أَنْ يُقِيمَ الرَّجُلَ الرَّجُلَ مِنْ مَقْعَدِهٖ**

**موتګلذار د خپل ځاي څخه د پاسولو د ممانعت وجه:-** د داسې فعل نه منع کړې شوې ده په کوم سره چې يو مسلمان رور ته تکليف رسي.لهذادا ممانعت د جمعې او غير جمعې ټولو متعلق دې . ددې حديث مبارك نه دا هم معلومه شوه چې دا دواړه کارونه جدا جدا کول منع دی. څوك ئې صرف پورته کړی او د هغه په ځائې ناسته او نه کړی نو د يوې ګناه مرتکب به وی. او چې څوك ناسته اختيار کړی نو د دوه ګناهونو مرتکب بهٔ وی.

**د حديث د حکم څخه بعضې مستثنيات:-** ددې حکم نه هغه صورتونه مستثنی نه دی کوم ځائې کښې چې شرعا پورته کول جائز وی ،

① امام د خپل ځائې نه بل کس پاڅولې شی.

② مؤذن د خپل تکبير وَالا ځائې نه بل کس پاڅولې شی.

③ چې په دغه ځائې باندې وړاندې نه څوك ناست وو بيا دې د څه تقاضې دپاره لاړو يا ئې په دې ځائې باندې خپله څه کپړا کيخوده او اودس دپاره لاړو ، بل کس راغلو او دده په ځائې کښيناستو نو دې هغه پاڅولې شی .

④که څوك د چا کور ته لاړ شی د صاحب خانه دعزت په ځائې دناستی نه هم منع کړې شوې ده. په دې وجه نبی کريم ﷺ حديث مبارك کښې من مقعده اوفرمائيل ناست دهغه د ځائې نه مه پاڅوه. لهذا کوم ځائې کښې چې دپاڅولو ضرورت دې هغه ځائې نه پاڅولې شی .

**[١٣٩٦] جمعې ته د حاضريدو نکو درې قسمونه او درجات**

١٣٩٦–()[١٥][١]وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ- صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-[٢] يَحْضُرُ الْجُمُعَةَ ثَلَاثَةُ نَفَرٍ[٣] فَرَجُلٌ حَضَرَهَا بِلَغْوٍ فَذٰلِكَ حَظُّهُ مِنْهَا،[٤] وَرَجُلٌ حَضَرَهَا بِدُعَاءٍ[٥] فَهُوَ رَجُلٌ دَعَا اللّٰهَ إِنْ شَاءَ أَعْطَاهُ، وَإِنْ شَاءَ مَنَعَهُ،[٦] وَرَجُلٌ حَضَرَهَا بِإِنْصَاتٍ وَسُكُوتٍ،[٧] وَلَمْ يَتَخَطَّ رَقَبَةَ مُسْلِمٍ،[٨] وَلَمْ يُؤْذِ أَحَدًا؛[٩] فَهِيَ كَفَّارَةٌ إِلَى الْجُمُعَةِ الَّتِي تَلِيهَا،[١٠] وَزِيَادَةَ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ[١١] وَذٰلِكَ بِأَنَّ اللّٰهَ يَقُولُ: مَنْ جَاءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهُ عَشْرُ أَمْثَالِهَا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

[١]) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب الكلام والإمام يخطب (رقم-١١١٣)

**ترجمه:**[۱] عبدالله ابن عمرو رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل[۲] د جمعې (لمانځه ته) دري قسمه خلق راځي[۳] ① یو هغه سړي چې د لغو کلام او بیکاره کار سره راځي ایعني د خطبې په وخت په لغو او بیهوده کلام او بیکاره کار کې مشغولیږي) نو د جمعې په حاضري کې د هغه دا حصه ده (یعني هغه د جمعې د ثواب څخه محروم شي او د لغو کار او فعل وبال د هغه په حصه کې راځي)[۴] ② دویم هغه سړي دي چې په جمعه کې د دعا د پاره راځي (نو هغه د خطبې په وخت په دعا کې مشغول وي تر دي چې د هغه دعا هغه د خطبې د اوریدو یا د خطبې د کمال ثواب څخه منع کوي)[۵] نو هغه دعا غواړي برابره ده که الله تعالی جَلَّ جَلَالُهُ (د خپل فضل وکرم په صدقه کې) د هغه دعا قبوله کړي او قبوله یې نه کړي[۶] ③ دریم هغه سړي جمعې ته راځي (چې د خطبې په وخت امام ته نژدې وي نو د خطبې اوریدو د پاره) چپ وي او (که د امام څخه لرې وي او د خطبې آواز هغه ته نه رسیږي بیا هم د خطبې په احترام کې هغه (سکوت (یعني خاموشي) اختیاروي[۷] نو نه خو د خلقو په څټونو (غاړو) ټوپ وهي[۸] او نه چا ته تکلیف رسوي[۹] نو د هغه د پاره دا جمعه د هغه (یعني اولني) جمعې پورې چې د دې سره لګیدلي ده[۱۰] بلکه تر نورو دریو ورځو زیاتو پورې کفاره جوړیږي[۱۱] ځکه چې الله تعالی جَلَّ جَلَالُهُ فرمایي: مَنْ جَاءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهُ عَشْرُ أَمْثَالِهَا (څوک چې یوه نیکي وکړي هغه ته به د هغه نیکي لس چنده ثواب ورکول شي). (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ① لَغْو: فضول او عبث کار، ② حَظّ: حصه.

**تسهیلات:- قوله: ثَلَاثَةُ نَفَرٍ:**

**د درې کسانو تفصیل:-** یعنی په جمعه کښې حاضری کونکی خلق درې قسمه وی یو هغه قسم خلق وی چه دَ جمعې کولو دَ پاره نه راځی بلکه دَ سیاسی مقاصد دنیاوی اغراض، شرارت فساد اوشورژوګ دَپاره راځی. دَ دغه خلقو هم دغه حصه ده دَ کوم دَپاره چه راغلی دی ثواب وغیره هیڅ نشته بلکه دَلغویات دَپاره راغلی وو او هم هغه ئی خان سره یوړل واپس لاړل ځکه چه په خطبه کښې خبرې اترې منع دی سره دَدې چه ښه خبرې اترې ولې نه وی.

**د خطبې په دوران کښې د دعا کولو حکم:-** دویم هغه خلق دی چه دَدعا په غرض په جمعه کښې حاضریږی او په خطبه کښې په دعاغوښتو کښې مشغول کیږی. اوس که دا خلق په ژبه سره په اوچت آواز باندې دعاغواړی نودا یقینًا ناجائزدی اوکه په زړه کښې په خاموشئی سره دعا غواړی نوبیاهم داخلق په خپل کارکښې مشغول اودَ خطبې دَ آدابوخلاف ورزی کوی. نوکه الله تعالی غواړی په خپل فضل اوکرم سره به دَهغوی دعاقبوله کړی ګنی دَعدل اوانصاف قاعدې اوقانون مطابق به دَدوی دَ خراب فعل په وجه دَهغوی دعا رد کړی. دَ احنافو په نیز په خطبه کښې دعا کول مکروه دی اودَ نورو ائمه حضراتو په نیزحرام دی.

**قوله**: تَلِيهَا:

**د تلي مفهوم**:- تلي دَ نيزدې په معنى كښې دې او دَ نيزدې مطلب دادې دې نه وړاندې چه كومه نيزدې جمعه تيره شوې ده دَهغې پورې دَ ټولو ګناهونو دَپاره كفاره ده. په دې توجيه سره به په ټولو احاديثو كښې تطبيق راشي ځكه چه په احاديثو كښې راتلونكې جمعه مراد نه ده بلكه تيره شوې جمعه مراد ده مګر دَ ظاهري الفاظونه راتلونكې جمعه هم مراد كيدې شي. په دې وجه چه كله دَ قريب معنى واخستې شوه نو اوړاندې روستو دواړو جمعوته به حديث شامل شي او په ټولو احاديثو كښې به تطبيق راشي ځكه چه دا خبره ښكاره ده چه راتلونكې جمعې پورې خو لاګناه شوې هم نه ده دَ دې دَمغفرت مطلب واضح نه دې لهذا هم تيره شوې جمعه مراد ده.

**[١٣٩٧] په خطبه كښې د خبرې كونكې د خر سره تشبيه وركول**

١٣٩٧-()[١٦] [١] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [٢] "«مَنْ تَكَلَّمَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ ; [٣] فَهُوَ كَمَثَلِ الْحِمَارِ يَحْمِلُ أَسْفَارًا، [٤] وَالَّذِي يَقُولُ لَهُ: أَنْصِتْ. لَيْسَ لَهُ جُمُعَةٌ» ". (رَوَاهُ أَحْمَدُ)

**ترجمه**: [١] ابن عباس رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] كوم سړي چې د جمعې په ورځ په داسې حالت كې چې امام خطبه وايي په خبرو اترو كې مشغول شي [٣] نو هغه د خره په شان دي چې په هغه كتابونه اينبيول شوې وي [٤] او كوم سړي چې هغه (په خبرو اترو كې مشغوليدونكي سړي) ته اووائي چې چپ شه نو د هغه د پاره د جمعې ثواب نشته. (احمد)

**حل اللغات**:- ① أَسْفَارًا: د سِفرْ جمع ده، صحيفې او كتابونو ته وائي، يعنى بوج، بار.

**تسهيلات**:-

**قوله**: كَمَثَلِ الْحِمَارِ: يعنى په خطبه كښې په خبرو اترو كښې مشغول سړى مثال حضورپاك ﷺ دَهغه خر په شان بيان كړې دې په كوم چه دَ كتابونو بار تړلې شوې وى او هغه ته پخپله معلومه نه وى چه په هغه باندې څه بار كړې شوى دى او دَ عالم بې عمل هم دغه مثال دې.

**قوله**: وَالَّذِي يَقُولُ لَهُ: أَنْصِتْ. لَيْسَ لَهُ جُمُعَةٌ:

**د خطبې په دوران كښې د امر بالمعروف د فريضې سقوط**:- يعنى دغه جتې او جاهل سړى ته څوك سړې دَ شفقت دَ وجې نه دَ امر بالمعروف او نهى عن المنكر لاندې دَخاموشه كيدو دَپاره اووائي نو دَهغه دَ جمعې ثواب هم ضائع شو ځكه چه په خطبه كښې هر قسم خبره منع ده.

**يو اشكال او دهغې جواب**:- باقى په خطبه كښې كه دَحضور اكرم نه څه خبرې ثابتې وى نو هغه دَ رسول الله ﷺ خصوصيت وو يا هغوى ﷺ دَخطبې نه وړاندې خبرې كړى وى روستوئى

[١]) اخرجه احمد في المسند ١/٢٣٠

خطبه شروع کړی وی یا به ئی هغه خبرې دَ خطبې په ختمیدو باندې کړې وی. لهذا په خطبه کښې مطلقًا خبرې اترې کول منع دی.

**[۱۲۹۸]اختر اود جمعې ورځ**

۱۳۹۸–()[۱۸]۱وَعَنْ عُبَيْدِ بْنِ السَّبَّاقِ مُرْسَلًا قَالَ: ۲«قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فِي جُمُعَةٍ مِنَ الْجُمَعِ: ۳يَا مَعْشَرَ الْمُسْلِمِينَ، إِنَّ هَذَا يَوْمٌ جَعَلَهُ اللهُ عِيدًا فَاغْتَسِلُوا، ۴وَمَنْ كَانَ عِنْدَهُ طِيبٌ فَلَا يَضُرُّهُ أَنْ يَمَسَّ مِنْهُ ۵وَعَلَيْكُمْ بِالسِّوَاكِ»). (رَوَاهُ مَالِكٌ، وَرَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ عَنْهُ).

**ترجمه:** ۱ عبید ابن سباق بطریق ارسال روایت کوي ۲ چې رسول الله ﷺ یوه جمعه وفرمایل ۳ اې د مسلمانانو جماعته! دا (جمعه) هغه ورځ ده چې الله تعالی ﷻ (د مسلمانانو) اختر مقرر کړې دې نو په دې ورځ غسل کوئ ۴ او کوم سړي ته چې خوشبو میسر (حاصله) شی که هغه دا استعمال کړي نو څه حرج نشته ۵ او تاسو مسواک ضرور کوئ، مالك او ابن ماجه هم دا حدیث د عبید الله ابن سباق څخه.

**حل اللغات:** -① عِيدًا: د خوشحالئ ورځ، اختر.

۱۳۹۹-[۱۹]۱(وَهُوَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ مُتَّصِلًا).

**ترجمه:** ۱ او هغه دا روایت ابن عباس رضی الله عنهما نه متصل منقول دی.

**تسهیلات:** - **قوله:** عِيدًا:

**دجمعې په ورځ د اختر د اطلاق وجه:** -دَجمعې ورځ په حدیث کښې دَ اختر کرځولې شوې ده داپه کوم اعتبارسره اختردې؟ په دې باره کښې علماء لیکی دَفقیرانو مسکینانو بې کسواوبې وسو دَاولیاء الله اوصلحاء اوصالحین دَپاره دَخوشحالئی او زیب اوزینت اختیارولوورځ ده. دَدې ورځې په خوشحالو کښې دَټولونه غریب سړې هم شرکت کولې شی اودې نه خوند اخستې شی. هغوی په دې ورځ لامبی غسل کوی کپړې اغوندې جامع مسجدته ځی عطراستعمالوی. لهذا که دَ مسلمانانو کم خرچ اوبالاتشین اختر وی نوهغه دَ جمعې ورځ ده په دې وجه دا دَمسلمانانودَاختر په ورځ سره یاده کړې شوه.

**قوله:** فَلَا يَضُرُّهُ أَنْ يَمَسَّ مِنْهُ:

**اشکال:** -په دې جمله باندې سوال پیدا کیږی چه دَدې قسم جملو استعمالولو مواقع هغه وی چرته چه دګناه احتمال وی دلته داقسم جمله ولې استعمال کړې شوه؟ دَ کوم مطلب چه دا دې چه دَجمعې په ورځ چادَ خپل کور عطر استعمال کړل نو په دې کښې هیڅ ګناه نشته دې.

[1] ) اخرجه ابن ماجة فی کتاب إقامة الصلاة، والسنة فیها/باب ما جاء فی الزینة یوم الجمعة (رقم-۱۰۹۸) ومالک فی الموطا کتاب الطهارة، باب ما جاء فی السواک (رقم-۱۱۳)

**د اشکال جواب:** – دَدې جواب دادې چه دَ جمعې په ورځ دَعطرو لګولو کله حکم اوشو نوسړو په عطرو استعمالولو کښې تکلیف محسوس کړو چه عطر استعمالول خودَ ښځو کاردې دَ سړو دَپاره کیدې شي په دې کښې ګناه وی. نودَدې جواب داورکړې شو چه عطر استعمالولو کښې هیڅ ګناه نشته دې.

**[١٤٠٠] د جمعې په ورځ د غسل کولو او خوشبو لګولو اهمیت**

١٣٠٠ – ()[١٨] ١ وَعَنِ الْبَرَاءِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٢ " «حَقًّا عَلَى الْمُسْلِمِينَ أَنْ يَغْتَسِلُوا يَوْمَ الْجُمُعَةِ ٣ وَلْيَمَسَّ أَحَدُهُمْ مِنْ طِيبِ أَهْلِهِ، ٤ فَإِنْ لَمْ يَجِدْ فَالْمَاءُ لَهُ طِيبٌ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ.

**ترجمه:** ١ حضرت براء رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ په مسلمانانو د جمعي په ورځ لمبيدل واجب دي ٣ او مسلمانانو ته پکار دي چې په هغوئ کې هر سړي د خپل كور خوشبو استعمال كړي ٤ او كه چا ته خوشبو حاصل نه وي نو د هغه د پاره اوبه خوشبو ده، دا روايت احمد او ترمذي نقل كړي دي او ويلې يې دی چې دا حديث حسن دي.

**تسهيلات:** -

**قوله:** حَقًّا عَلَى الْمُسْلِمِينَ أَنْ يَغْتَسِلُوا يَوْمَ الْجُمُعَةِ:

دا دَمصدريت په وجه منصوب دې اصل عبارت داسې دې "اي حق حقاً" يعنی په مسلمانانو باندې حق او واجب دی چه هغوی دې په هفته کښې يوه ورځ غسل کوی صفائی دې حاصلوی اوخوشبوئی دې استعمالوی. که کورنئی خوشبوئی نه وی نوبيا صفاسترا اوخالص اوبه به دَ خوشبوئی په ځائی شی کومې سره چه صفائی اوپاکی راځی.

[١] ) اخرجه الترمذي فى كتاب الجمعة/باب فى السواك والطيب يوم الجمعة (رقم-٥٢٨)

# [۶۱/۴۵] بَابُ الْخُطْبَةِ وَالصَّلَاةِ

## دَخطبې اوجمعې دَ مونځ بیان

**خلاصة الباب:-**

**فيه تسعة عشر حديثاً مشتملة على تسع مسائل:**

① وقت صلوة الجمعة: ۱، ۳۔

② الاهتمام للجمعة: ۲۔

③ زيادة النداء الثالث لصلاة الجمعة: ۴۔

④ الخطبتان للجمعة: ۵، ۱۳۔

⑤ آداب الخطبة :

, منها الجلسة بين الخطبتين: ۵، ۱۳، ۱۵۔

- ومنها الجلسة بينهما : ۱۳،

. ومنها جلوس الناس للخطبة: ۱۸۔

/ ومنها قصر الخطبة۶۔ . ومنها إنذار الناس : ۷۔ ، ومنها العمامة: ۱۰۔ ۲ ومنها استقبال الوجوه: ۱۴۔ ۳ ومنها القيام: ۱۵۔ ۴ ومنها الإشارة باالأصبع: ۱۷۔

⑥ قدر قراءة القران فى الخطبة: ۵، ۸، ۹۔

⑦ الصلوة وقت الخطبة: ۱۱۔

⑧ إدراك الجمعة: ۱۲، ۱۹۔

⑨ الرد على بعض البدع فى الخطبة كالخطبة قاعداً : ۱۶، ۱۷۔

**د خطبې لغوی او شرعی تعریف:-** په لغوی اعتبارسره خطبه اوخطاب صرف تقریر او خبرو اترو اوکلام ته وئیلې شی دَ کوم په ذریعه چه خلق مخاطب کولې شی. لیکن دَ شریعت په اصطلاح کښې خطبه دَهغه مجموعه کلام نوم دې چه وعظ اونصیحت،ذکرالله اوشهادت د توحیداورسالت باندې مشتمل وی.دَجمعې دَمونځ دَصحت دَپاره خطبَه فرض اوشرط دې.

**دخطبې په مقدار کښې مختلف اقوال:-** بیا په دې کښې بحث دې چه دَ فرض خبطې مقدار څه دې.

①امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی چه دَ فرض خطبې کم نه کم مقدار یو ځل سبحان الله یا الحمدلله یا لااله الاالله وئیل کافی دی دې نه زیاتی سنت دی. دَ صحت جمعې دَپاره داشرط نه دې چه اوږدې خطبې نه بغیر دَ جمعې مونځ نه صحیح کیږی

② لیکن امام ابویوسف رحمه الله اوامام محمد رحمه الله فرمائی چه دَ فرض خطبې مقدار دومره

پکاردي په کوم کښې چه اوږد ذکر وی او په هغې کښې پند اونصیحت وی کومې ته چه په عرف عام کښې خطبه وئیلی شی صرف سبحان الله ته خطبه نه شی وئیلې دَ احنافو عمل دَ صاحبینو په قول باندي دي.

③ دَامام شافعي رحمه الله په نیز دوه اوږدې خطبې فرض دی که دوه خطبې نه شی نودَجمعې مونځ جائزنه دي. بهرحال داسې معلومیږی چه شریعت دوه خطبې دَ ماسپښین څلورر کعته مونځ دَدوو رکعتو په بدله کښې کیخودې دی په دې وجه دا ضروری دی. په عربو کښې هم دغه دوه خطبې دَهغوی تقریر دي

**په عجمی ژبه کښې د خطبې حکم:**- لیکن عجم عربی باندې نه پوهیږی په دې وجه اول په عام ژبه کښې تقریر کیږی اوبیا په عربی کښې خطبه وئیلی کیږی دا ښه طریقه ده. لیکن په حدیث باندې دَعمل دعویدار غیرمقلدین حضراتو په نیز په اردو کښې خطبه وی هم دغه خطبه ده اوهم دغه تقریردې. هغوی اودریږی او په اردو کښې تقریر کوی اوهم دې ته خطبه وائی. داهم عجیبه ده چه دَهغوی په مهراب اومنبر کښې بدعت داخل شو. صحابه کرامو دنیا فتح کړه مگر په هیڅ یوفتح شوی علاقه کښې ئې دَعربی نه سوا خطبه جاری نه کړه.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [١٤٠١]دَ جمعې دَ مانځه وخت

١٤٠١—()[١] ١ عَنْ أَنَسٍ: «أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- كَانَ يُصَلِّي الْجُمُعَةَ ٢ حِينَ تَمِيلُ الشَّمْسُ» رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ١ حضرت انس رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ به د جمعې مونځ هغه وخت کولو ٢ کله چې به نمر په زوال شو، (بخاري)

**حل اللغات:**- ① تَمِيلُ: زوال به اوشو.

**تسهیلات:- قوله: تَمِيلُ الشَّمْسُ:**

**د میل الشمس مطلب:**- یعنی عین دَ زوال په وخت رسول الله ﷺ به خطبه وئیلوسره دَ جمعې مونځ ورکولو. نن صبا په سعودی عرب کښې هم داسې کیږی اوداسې کول ډیر ښه دی. افسوس چه زمونږ په عجمو کښې هم داسې کیدې. بهر حال عین دَ زوال په وخت کښې چه کوم مونځ ورکړې شوې دې دا به په یخنئی کښې کیدلو کوم چه دَ یخنئی نقشه ده. په گرمئی کښې به حضورپاك ﷺ دَ یخ وخت انتظار کولو لکه چه راتلونکی دَ حضرت انس رضی الله عنه حدیث نمبر(٣٠٣) کښې دَدې بیان راغلې دې.

---

[١] ) اخرجه البخاری فی كتاب الجمعة/باب وقت الجمعة إذا زالت الشمس (رقم-٩٠٤) وابوداود فی كتاب الصلاة/باب فی وقت الجمعة (رقم-١٠٨٤)

## دنمر د زوال څخه وړاندې دخطبې او جمعې ادا کولو کښې مذاهب

د جمعې په ورځ دَ زوال الشمس او ماسپښین وخت راتلونه وړاندې دَ جمعې مونځ او خطبې په جائز او عدم جواز مذاهب دي.

① دَامام احمد بن حنبل رحمه الله او اسحاق بن راهويه رحمه الله په نیز دَ جمعې مونځ دَ زوال الشمس نه وړاندې جائز دې دَهغوی په نیز دَ جمعې په ورځ کښې مکروه وخت هم شته لهذا دَ وخت دَ راتلونه وړاندې جمعې کول جائز دی.

② امام ابوحنیفه رحمه الله امام مالك رحمه الله او امام شافعي رحمه الله جمهور فقهاؤ په نیز دَ وخت راتلونه وړاندې دَ جمعه مونځ نه شی اداکیدې او نه جائز دې.

**داول فریق دلیل:** -دَدې باب دَ فصل اول حدیث نمبر(۳۰۲) د اول فریق مستدل دې په کوم کښې چه حضرت سعد بن سهل رضي الله عنه فرمائی چه مونږ به دَ غرمې خوراك او قیلوله دَ جمعې دَ مونځ نه پس کولو.

**د دویم فریق دلیل:** -دَدې نه وړاندې دَحضرت انس رضي الله عنه دَ حدیث نمبر(۱۴۰۱) د دویم فریق مستدل دې په کوم کښې چه واضح الفاظو کښې ذکردی چه حضورپاك صلى الله عليه وسلم به دَ زوال الشمس نه پس دَ جمعه مونځ اداکولو.

**داول فریق د دلیل څخه جواب:** -امام احمد رحمه الله چه دَ کوم حدیث نه استدلال کړې دې هغه استدلال واضح نه دې په دې حدیث کښې دَ دې خبرې طرف ته اشاره هم نشته دې چه دَ وخت نه وړاندې حضورپاك صلى الله عليه وسلم جمعه اداکړې ده بلکه هلته دا بیان دې چه دَ جمعې په ورځ به مونږ قیلوله ورستو کوله او خوراك به مو روستو خوړلو نو په دې سره چرته لازمیږی چه دَ وخت نه وړاندې جمعه کیدله. هسې خو الله تعالی ټول مونځونه دَهغې وختونو سره تړلی دی دې نه وړاندې روستو مونځ جائز نه دې. ﴿إِنَّ الصَّلٰوةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ كِتٰبًا مَّوْقُوْتًا﴾

### [١٤٠٢] دجمعې په ورځ د خوب او قیلولې وخت

۱۴۰۲-(١)[٢] وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ: [٢] مَا كُنَّا نَقِيلُ وَلَا نَتَغَدَّى إِلَّا بَعْدَ الْجُمُعَةِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).

**ترجمه:** [١] سهل ابن سعد رضي الله عنه فرمایي [٢] چې مونږ خلقو به د جمعې په ورځ د جمعې د لمانځه څخه مخکښې نه قیلوله کوله او نه به مو ډوډۍ خوړله. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** - ① نَقِيلُ: دَ قیلوله نه دې او قیلوله دَ غرمې په وخت لږ ساعت دَپاره اوده کیدو ته وائی.
② وَلَا نَتَغَدَّى: د غرمې نه مخکښې روټۍ خوړلو ته وائي، یعنی ناشته کول.

---

[١] ) اخرجه البخاری فی کتاب الجمعة/باب قول الله تعالی: ﴿فإذا قضیت الصلاة فانتشروا فی الأرض وابتغوا من فضل الله﴾ [الجمعة: ١٠] (رقم-٩٣٩) وابوداود کتاب الصلاة/باب فی وقت الجمعة (رقم-١٠٨٦) والترمذی کتاب الجمعة/باب فی القائلة یوم الجمعة (رقم-٥٢٥) وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة والسنة فیها/باب ما جاء فی وقت الجمعة (رقم-١٠٩٩)

**تسهيلات:-**

**قوله:** مَاكُنَّا نَقِيلُ وَلَا نَتَغَدَّى إِلَّا بَعْدَ الْجُمُعَةِ:

**د جمعې په ورځ د خوراک مسنون وخت:-** يعنى صحابه كرامو به دَ جمعې دَمونځ نه مخكښې قيلوله او خوراك كښې نه مشغول كيدل. دا دواړه څيزونه به دَ جمعې دَ مونځ نه پس كيدل. دې نه معلوميږى چه دَ جمعې مونځ وختى او زر به كيدلو ليكن دَدې مطلب دا هيڅ كله نه دې چه دَ وخت راتلونه مخكښې جمعه جائز ده. دَ جمعې دپاره ضرورى دى چه دَ دې وخت راشى او هغه دَ نمر زوال دې لكه چه وړاندې راځى. لهذا دَ جمهورو مسلك دادې چه دَ زوال نه مخكښې جمعه ناجائز ده. امام احمد بن حنبل رحمه الله او اسحاق ابن راهويه رحمه الله په نيز جمعه دَ زوال نه مخكښې هم جائز ده اګرچه عمل پرې نه كيږى.

**[١٤٠٣] په يخنى او ګرمى كښې د جمعې د مونځ وختونه**

١٤٠٣-(١)[٣] وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: [٢] «كَانَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- إِذَا اشْتَدَّ الْبَرْدُ بَكَّرَ بِالصَّلَاةِ، [٣] وَإِذَا اشْتَدَّ الْحَرُّ أَبْرَدَ بِالصَّلَاةِ»، يَعْنِي الْجُمُعَةَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ).

**ترجمه:** [١] حضرت انس رضي الله عنه فرمايي [٢] چې رسول الله صلى الله عليه وسلم به د يخنۍ په موسم كې د جمعې مونځ د وخته كولو [٣] او چې سخته ګرمي به وه نو په تاخير (ځنډ) سره به يې كولو. (بخاري)

**حل اللغات:-** ① اَلْبَرْدُ: يخنى، ② بَكَّرَ: تادى كولو ته بكر او تبكير وائى.

**تسهيلات:-**

**قوله:** إِذَا اشْتَدَّ الْبَرْدُ بَكَّرَ بِالصَّلَاةِ:

**د جمعې وختى كول:-** دې حديث نه معلومه شوه چه حضورپاك صلى الله عليه وسلم به په سخته ګرمئ كښې دجمعې په مونځ كښې هم او نورو مونځونو كښې هم تاخير كولو.

**[١٤٠٤] په عهد نبوى كښې د جمعې د ماښخه دپاره يو اذان**

١٤٠٤-(٢)[٣] وَعَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيدَ قَالَ: [٢] كَانَ النِّدَاءُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ أَوَّلُهُ إِذَا جَلَسَ الْإِمَامُ عَلَى الْمِنْبَرِ [٣] عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- وَأَبِي بَكْرٍ، وَعُمَرَ، [٤] فَلَمَّا كَانَ عُثْمَانُ وَكَثُرَ النَّاسُ، [٥] زَادَ النِّدَاءَ الثَّالِثَ عَلَى الزَّوْرَاءِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ).

**ترجمه:** [١] حضرت سائب ابن يزيد رضي الله عنه فرمايي [٢] چې د جمعې اولني اذان هغه وو چې د امام په منبر باندې د كيناستلو څخه وروسته به كولي شو [٣] د رسول الله صلى الله عليه وسلم او د حضرت

١) اخرجه البخارى فى كتاب الجمعة/باب إذا اشتد الحر يوم الجمعة (رقم-٩٠٦)
٢) اخرجه البخارى فى كتاب الجمعة/باب الأذان يوم الجمعة (رقم-٩١٢) وابوداود كتاب الصلاة،باب النداء يوم الجمعة (رقم-١٠٨٧) والترمذى كتاب الجمعة/باب ما جاء فى أذان الجمعة (رقم-٥١٦)

ابوبکر ﷺ او عمر ﷺ په زمانه کې [۴] خو کوم وخت چې حضرت عثمان ﷺ خلیفه شو او د خلقو کثرت شو[۵] نو د دریم اذان اضافه یې اوکړه چې په زوراء مقام باندې به کیدو. (بخاري)

**حل اللغات:-** ① النِّدَاءُ: آواز ته وائی دلته ترې اذان مراد دې. ② الزَّوْرَاءِ: په مدینه کښې د یو مقام نوم دې.

**تسهیلات:-**

**قوله**: زَادَالنِّدَاءَالثَّالِثَ عَلَى الزَّوْرَاءِ:

**د آذان ثالث څخه مراد:-** د رسول الله ﷺ په زمانه کښې به د جمعې دپاره هم یو اذان هغه وخت کیدلو کوم وخت چه به حضورپاك ﷺ په منبر باندې کیناستلو. د حضرت ابوبکرصدیق ﷺ او حضرت عمر ﷺ په زمانه کښې هم دغه طریقه وه. بیا چه کله د حضرت عثمان بن عفان ﷺ دور راغلو اوخلق زیات شو اومشاغل هم زیات شو اود خلقو کورونه هم د مسجدنبوی نه بنه لرې لاړل. نو دغه وخت د خلقو دپاره د جمعې په مونځ کښې شامل کیدل ګران شو څکه چه په منبر باندې د کیناستو په وخت د اذان نه پس په دغه لږ وخت کښې به خلق د خطبې اوریدونه هم محروم پاتې کیدل او په جمع کښې شریکیدل هم مشکل کیدل. په دې وجه حضرت عثمان ﷺ د صحابه کرامو ﷺ په مشوره باندې د مدینې نه بهر په یو اوچت مقام زوراء باندې د وخت په شروع کیدو باندې د اذان ورکولو حکم ورکړو اود حضورپاك ﷺ د زمانې والا اول اذان ئی هم په هغه وخت باندې په خائی اوساتلو. په دې سره خلقو ته دا آسانی حاصله شوه چه د وخت په شروع کیدو باندې به جمات کښې راجمع کیدل او بیا د خطبې د اذان په وخت هم په جمات کښې حاضر وو او په خطبه او جمعه کښې به شریك وو.

**په آذان ثانی باندې د صحابؤ اجماع:-** ترننه پورې په مسلمانانو کښې هم دغه طریقه روانه ده. په دغه مبارکه زمانه کښې چاهم په حضرت عثمان ﷺ باندې اعتراض اونه کړو. صحابه کرامو اوکتلو اوریدل ئی اوخاموش پاتې شو. دغه شان په دې باندې د صحابه کرامو اجماع هم اوشوه لهذا دې اذان ته بدعت نه شی وئیلې کیدې. څنګه چه غیر مقلدین حضرات وائی او په خپلو جماتونو کښې په دې عمل هم نه کوی. ما پخپله د یوغیرمقلد نه واؤریده چه دا اذان حضرت عثمان ﷺ د ذان نه جوړکړې دې. حیرانتیاده په دې باندې چه حضرت عثمان بن عفان ﷺ د خلفاء راشدین نه دې د هغه پخپله یو شرعی حیثیت او اختیار دې. د رسول الله ﷺ ارشاد دې ((علیکم بسنتی وسنة الخلفاء الراشدین)) یعنی زما سنت او طریقه خپله کړئی اود خلفاء راشدین سنت او طریقه په مضبوطیاسره خپله کړئی. بیا د صحابه کرامو اجماع هم اوشوه او ټولو مسلمانانو دا قبوله هم کړه. په حرمین شریفین کښې په دې باندې عمل کیږی بیا دې ته د ذان نه جوړشوې وئیل او په دې باندې عمل نه

کول ډیره لویه گستاخی او بې ادبی ده.
مګر حقیقت خودادې چه غیرمقلدین دَهرې یوې مسئلې نه انکار کړې دې کومه چه دَ صحابه کرامو دَ یوجماعت نه ثابته وی یا دَ خلفاء راشدین په قول اوفعل سره رائج شوې وی مثلاً شل رکعته تراویح او طلقات ثلاثه واقع کیدل دَ جمعې دَ دریم اذان اونورو ډیرو مسئلو هغوی خکه انکارکوی چه دادَ صحابه کرامو دَ زمانې نه رائج شوی دی.

**اشکال:**- دلته په دې حدیث کښې دې اذان ته "النداء الثالث" په نوم سره یاد کړې دې حالانکه دَ جمعې په ورځ دوه اذانونه کیږی دریم چرته دې؟

**جواب:**- دَدې جواب دادې چه دَ ضرورت په وجه کله دا دریم اذان دَ جمعې په ورځ دَ ماسپښین وخت راتلو باندې وئیلی شی نودا دَ ټولو نه اول اذان جوړشو دې نه پس دَمنبر مخې ته دَ خطیب په راتلو باندې دَ خطبې دَپاره چه کوم ذان وو هغه دَ ترتیب په اعتبارسره دویم اذان شو اودې نه پس دَ مونځ دَپاره اقامت دریم اذان جوړ شو خکه چه اقامت هم اذان الحاضرین دې. نن صبا خلق هم په دې ترتیب باندې پوهیږی او شمیر کولو کښې هم دغه شان شمیرکوی.

لیکن دَحقیقت په اعتبارسره اولنې اذان هم هغه وو چه دَ رسول الله ﷺ په مخکښې په وخت دَ خطبې وو. دې نه پس اقامت په دویم اذان سره یاد کړې شو اوچه کله دا اذان دَ حضرت عثمان رضی الله عنه په زمانه کښې شروع شو نوداد اصل ترتیب په اعتبارسره دریم اذان وو دَ دې دَپاره زیر بحث روایت کښې دې ته اذان ثالث وئیلې شوې دې. خلاصه دا چه اقامت ته دَ اذان وئیلودَ وجې نه اذانونه درې شو او دَ اصل ترتیب په اعتبارسره دا زیاتی اذان په دریم نمبر باندې دَ دریم اذان په نوم سره یاد کړې شو. نو نن صباچه مونږ کوم اذان ته رومبې اذان وایو دا دریم اذان دې او کوم ته چه مونږ دویم اذان وایو هغه اولنې دې.

**قوله: فَلَمَّا كَانَ:** دا کان تامه دې یاخبرمحذوف دې. "اي فلماكان عثمان خليفة".

**دَ بیع او شراء دَ حرمت تعلق په دَ کوم اذان سره وی دې کښې مذاهب**

① شیخ عبدالحق رحمه الله لمعات ج۴ص۱۸۴ باندې لیکلی دی چه دَ بعضې علماؤ په نیز دَدې ممانعت تعلق هم دغه اذان سره دې کوم چه دَ خطیب مخې ته په وخت دَ خطبې وی.

② لیکن عام علماء او فقهاء فرمائی چه صحیح خبره داده چه وجوب سعی اوحرمت دَ بیع او شراء کښې هم دَ دغه نوی اذان اعتباردې چه دَ حضرت عثمان رضی الله عنه په دورکښې شروع شوې وو خکه چه اصل مدار په دې باندې دې چه خلق په وخت کښې دننه دَ جمعې اذان واوری نو په هغوی باندې لازم کیږی چه سعی دې شروع کړی اوخرڅول اخستل دې پریږدی. اعلان هم په دې نوی اذان سره کیږی اوخلق هم دغه اذان اوری. لهذا هم دَدې اعتباربه کیږی. په هدایه کښې هم دغه شان لیکلی دی. [اشعة اللمعات]

[١٤٠٥]دَ جمعې خطبه په عربي کښې

٣٠٥-()[٥][١] وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ:[٢] كَانَتْ لِلنَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - خُطْبَتَانِ،[٣] يَجْلِسُ بَيْنَهُمَا يَقْرَأُ الْقُرْآنَ وَيُذَكِّرُ النَّاسَ،[٤] فَكَانَ صَلَاتُهُ قَصْدًا، وَخُطْبَتُهُ قَصْدًا. رَوَاهُ مُسْلِمٌ).

**ترجمه:**[١] د حضرت جابر بن سمره رضي الله عنه څخه روايت دي[٢] فرمائي چه نبي كريم ﷺ به دوه خطبې وئيلې[٣] د هغې دواړو په مينځ کښې به كيناستلو قرآن پاک به ئې لوستلو اوخلقو ته به ئې نصيحت کولو.[٤] نود دوی مونځ به درميانه وو. او خطبه به ئې هم درميانه وه. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① قَصْدًا: معتدل، درميانه.

**تسهيلات:** - **قوله:** يَقْرَأُ الْقُرْآنَ:

**په خطبه کښې د قراءت مسنونيت:** - يعني حضورپاک ﷺ به دَ جمعه دَ مونځ نه وړاندې دوه خطبې فرمائيلې اودَ دواړو په مينځ کښې به لږساعت دَپاره كيناستو اودواړه خطبې به مختصروې اودَ جمعې مونځ به هم مختصر وو.

په دې حديث سره يوڅو فوائد او يوڅو مسائل ثابتيږي:

**دعربۍ څخه علاوه په بله ژبه کښې د خطبې حکم:** - يوه مسئله داثابته شوه چه په عربي کښې به ئې خطبه ورکوله دَ حضورپاك ﷺ وعظ به دَ حضورپاك ﷺ خطبه وه اودَ حضورپاك ﷺ ژبه عربي وه. دَحضوراکرم نه پس صحابه کرامو په مشرق اومغرب کښې مختلف ملکونه فتح کړل اوهلته ئې جمعې قائم کړې. حضرت عمر فاروق رضي الله عنه ٣۶ زره ښارونه فتح کړل څلور زره عام مسجدونه ئې جوړ کړل اونهه سوه جامع مسجدونه ئې جوړ کړل. او په هغې کښې جمعات شروع کړل ليکن په تاريخ کښې چرته هم داثابت نه دی چه حضورپاك ﷺ يا صحابه كرامو تابعين يا تبع تابعين خيرالقرون کښې چرته دَجمعې په خطبو کښې دَعربي په ځائې عجمی ژبه استعمال کړې وی. په ټولومقاماتوکښې سره دَدې چه دَعربي ژبې نه واقف نه وو په عربي کښې به خطبه جاری کيدله اوچونکه منبر اومحراب مرکزاسلام دی اودَ اسلام ژبه عربي ده نوډيره نامناسب ده چه دَاسلام په مرکزکښې دَهغې دَ خپلې ژبې په ځائې په بل څه ژبه کښې جاري شي. علماؤ ليکلی دی دَعربي په ځائې په عجمی ژبه کښې خطبه ورکول بدعت دي. غيرمقلدينو له پکاردی چه هغوی دې دَ دغه بدعت نه خپل ځانونه بچ کړی او په خپلو جماتونوکښې دې عين دَ جمعه مباركې په وخت

[١]) اخرجه مسلم فی كتاب الجمعة /باب ذكر الخطبتين قبل الصلاة وما فيهما من الجلسة (رقم-٣٤ - (٨۶٢) وابوداود فی كتاب الصلاة،باب الخطبة قائما (رقم-١٠٩٤)والترمذی كتاب الجمعة /باب ما جاء فی قصر الخطبة (رقم-٥٠٧) والنسائی كتاب الجمعة /باب القراءة فی الخطبة الثانية والذكر فيها (رقم-١٤١٨) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها /باب ما جاء فی الخطبة يوم الجمعة (رقم-١١٠۶)

کښې منبر او محراب کښې د بدعت د ارتکاب نه اجتناب او کړي. د محققین علماؤ په نیز دعربی نه علاوه په بله هره یوه ژبه کښې خطبه ورکول مکروه تحریمی دی.

## د جمعې بیاره د خطبه په تعداد کښې مذاهب

① د امام شافعی رحمه الله په نیز دوه خطبې فرض دی او په مینځ کښې د لږشان ساعت دپاره کیناستل هم فرض دی او په خطبه کښې څه قرآن لوستل هم فرض دی.

② د احنافو په نیز مطلق یوه خطبه د جمعې د مونځ د صحت دپاره شرط دی.

## دخطبه په مقدار کښې مذاهب:

① امام ابو حنیفه رحمه الله بالکل مختصر خطبه هم جائز منی

② صاحبین فرمائی چه خطبه دومره اوږده کیدل پکار دی کوم ته چه په عرف عام کښې خطبه وائی او په کوم کښې چه اوږد ذکر وی او د قرآن پاك آیاتونه وی. [١٤٠٦] **د خطبې اختصار د خطیب هوښیارتیا**

١٣٠٦ــ()[٦١] ١ وَعَنْ عَمَّارٍ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: ٢ «إِنَّ طُولَ صَلَاةِ الرَّجُلِ، وَقِصَرَ خُطْبَتِهِ مَئِنَّةٌ مِنْ فِقْهِهِ; ٣ فَأَطِيلُوا الصَّلَاةَ وَاقْصُرُوا الْخُطْبَةَ، ٤ وَإِنَّ مِنَ الْبَيَانِ لَسِحْرًا» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ١ عمار رضی الله عنه وایي چې ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي ٢ چې اوږد مونځ کول او مختصره خطبه ویل د سړي (یعني د امام) د هوښیارتیا علامت دي ٣ نو تاسو مونځ اوږدوئ او خطبه مختصره کوئ ٤ ځکه چې بعضې بیان سحر دي (یعني د سحر په شان تاثیر لري). (مسلم)

**حل اللغات:** - ① مَئِنَّةٌ: د علامت او دلیل په معنی کښې دې. ② فِقْهِهِ: هوښیارتیا، پوهه.

**تسهیلات:** - **قوله: فَأَطِيلُوا الصَّلَاةَ وَاقْصُرُوا الْخُطْبَةَ:**

**د جمعې مونځ مختصر کول او خطبه اوږدول:** - یعنی کوم سړي چه خطبه مختصر لولی او د جمعې مونځ اوږد کوی دا دهغه سړی د فقاهت هوښیارتوب او حکمت علامت او دلیل دې په دې شرط چه مونځ د سنت مطابق وی نه زیات اوږد او نه زیات مختصر وی او خطبه هم د دې سره مختصروی. د دې وجه داده چه د جمعې مونځ اصل دې او خطبه د دې دپاره فرع ده او د اصل اهتمام د فرع نه زیات کیدل پکادی او هسې هم خطیب چه کله خطبه ورکوی نو پخپله هم د عجب ښکار کیدې شي او د خلقو توجو هم په ځانی د خالق په مخلوق پریوتلې شي. او په مونځ کښې خطیب هم د عجب نه عجز طرف ته راځي او د عوامو توجو هم د مخلوق نه د خالق طرف ته واپس کیږی په دې وجه په خطبه کښې دکم نه کم وخت په درجه د ضرورت لګول پکار دی او باقی وخت په مانځه کښې خرچ کول پکاردی. بعضې خطیبان یوه نیمه ګهینته په تقریر باندې خرچ کوی او بیا په سورت کوثر او سورت اخلاق باندې درې منټه

١) اخرجه مسلم فی کتاب الجمعة /باب تخفیف الصلاة والخطبة (رقم) ٤٧ - (٨٦٩) والدارمی کتاب الصلاة /باب فی قصر الخطبة

كنبي د جمعي مونځ وركوى دا ډيرلوئي ظلم او ناداني ده.

**قوله: لَسِحْرًا:**

**په خطبه د سحر په اطلاق كنبي دوه وجوهات:** - دَدې كلام دوه ارخونه دى په يو كنبي دَمدح صورت دې او په دويم كنبي دَ مذمت صورت دې

① كه په خطبه سره دَ خلقو زړونه خپل طرف ته مائل كوى مقصدوى نودا دهوكه باز اوجادوګرخطيب دې دادَ مذمت صورت دې

② اوكه دَخلقو زړونه دَالله تعالى طرف ته متوجى كول مقصود وى نودا شيرين كلام اوجادولرونكې بيان دې دادَمدح صورت دې. بهرحال په خطيب كنبي چه كله اخلاص وى الله تعالى سره ژورتعلق وى نودَهغه بيان دَ خلقو په زړونو باندې اثركولې شى او الفاظى خوږ آواز يووقتى اثر لرى مګر پائيدارنه وى.

**[١٤٠٧]په خطبه كنبي دَ نبى كريم ﷺ كيفيت**

١٤٠٧-()[٤٧] ١ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: ٢«كَانَ رَسُولُ اللّهِ - صَلَّى اللّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا خَطَبَ احْمَرَّتْ عَيْنَاهُ، ٣ وَعَلَا صَوْتُهُ، ٤ وَاشْتَدَّ غَضَبُهُ، ٥ حَتَّى كَأَنَّهُ مُنْذِرُ جَيْشٍ يَقُولُ: ٦ صَبَّحَكُمْ وَمَسَّاكُمْ ٧ وَيَقُولُ بُعِثْتُ أَنَا وَالسَّاعَةُ كَهَاتَيْنِ، ٨ وَيَقْرُنُ بَيْنَ إِصْبَعَيْهِ السَّبَّابَةِ وَالْوُسْطَى» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ١ حضرت جابر رضي الله عنه فرمايي ٢ چې رسول الله ﷺ چې به د جمعي يا يوه بله خطبه ارشاد فرمايله نو ستر ګي مباركي به يي سري شوې ٣ آواز به يي اوچت شو ٤ او غصه به يي تيزه شوه ٥ تر دي چې (داسي به محسوسيده) لكه چې حضور ﷺ خلق (د دښمن د لښكر څخه) اويروى ٦ او فرمايي چې په سحر او مابنام كې په تاسو د دښمن لښكر حمله كونكي دي ٧ او حضور ﷺ به په خطبه كې دا ارشاد هم فرمايلو چې زه او قيامت داسې يو ځاي راليږل شوي يو ٨ د دې فرمايلو سره به حضور ﷺ خپلي دوه ګوتي (يعني د شهادت ګوته او مينځني ګوته) يو ځاي كړي. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① احْمَرَّتْ: سري به شوې، ② عَلَا: اوچت، ③ مُنْذِر: داسم فاعل صيغه ده. ويرونكې، ④ صَبَّحَكُمْ: سحر په وخت تاسو د دښمن لښكر حمله كونكې دې. ⑤ مَسَّاكُمْ: دمابنام په وخت تاسو د دښمن لښكر حمله كونكې دې.

**تسهيلات:** - **قوله: احْمَرَّتْ عَيْنَاهُ:**

**د نبى كريم ﷺ د سترګو سرې كيدو وجه:** - يعنى دَامت غم اودَ ګناه كثرت اودكفراوشرك تيارې او په دې كنبي دَامت دَ راګيريدو مشاهده كولودَ وحې نه به په خطبه كنبي دَ حضورپاك ﷺ سترګې مباركې سرې وې. دغه شان دَخپل امت دَهدايت په فكر كنبي اودَ

[1] ) اخرجه مسلم في صحيحه رقم الحديث ٤٣/ ٨٦٧ وابن ماجة رقم الحديث ٤٥

حاضرينو غوږونو ته آواز رسولو وجي نه به دَ حضورپاك ﷺ آواز اوچت وو لکه چه هغوی په ايمرجنسي کښې دَ يو دښمن حمله کولو نه خپل قوم ويرونکي وو په کوم سره چه آواز اوچتيدلو.

**قوله : يَقُولُ: صَبَّحَكُمْ وَمَسَّاكُمْ:**

**په خطبه کښې د لښکر څخه ويرولو انداز:-** يعنی دَ دغه لښکرنه خپل قوم ويرونکي لکه چه وائی "صبحكم" يعنی په تاسو باندې دَ سحر په وخت دښمن حمله کونکي دې "مساكم" يعنی په تاسو باندې دَ ماښام په وخت دښمن حمله کونکي دې. دلته دا احتمال هم شته چه دَيقول ضمير دَ حضورپاك ﷺ طرف ته راګرځی مطلب دا چه حضورپاك ﷺ به په خپله اعلان کولو چه "صبحكم" په تاسو باندې دَ سحر په وخت دښمن حمله کونکي دې يا ماښام کښې په تاسو دښمن حمله کونکي دې.

**په اوچت آواز سره د خطبې مسنونيت:-** دَدې حديث نه معلومه شوه چه حضورپاك ﷺ به په اوچت آواز سره او په زوردار انداز کښې خطبه ورکوله. او دا جائز دی او په ښه محنت سره به ئی سامعين پوهه کول څکه چه بيدار خطيب دَ قوم دَ بيدار ساتلو دَپاره بيداره خطبه ورکوی. **قوله : وَيَقْرُنُ بَيْنَ إِصْبَعَيْهِ السَّبَّابَةِ وَالْوُسْطَى:**

**د قيامت د نزديکت تعليم ورکول:-** يعنی مينځمی او مسواکه ګوته ملاوولو سره به ئی اشاره کوله چه زه او قيامت داسې نيزدې نيزدې يو لکه څنګه چه مينځمې ګوته مسواکې سره ده. يعنی چه څنګه دا دواړه ګوتې يوځائی شوی دی او مينځمې لږه شان وړاندې ده دغه شان قيامت ما سره ملاؤ شوی دې صرف زه لږشان وړاندې يم. په دې حديث کښې حضورپاك ﷺ قرب قيامت خودلې دې.

**[١٤٠٨] په خطبه کښې د قرآنی آياتونه لوستلو فضيلت**

٣٠٨-()[٨] [١] وَعَنْ يَعْلَى بْنِ أُمَيَّةَ قَالَ: [٢] «سَمِعْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقْرَأُ عَلَى الْمِنْبَرِ: " [٣] ﴿وَنَادَوْا يَامَالِكُ لِيَقْضِ عَلَيْنَا رَبُّكَ﴾ [الزخرف: ٧٧]» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).

**ترجمه:** [١] يعلی ابن اميه ﷺ وايي [٢] چې ما د رسول الله ﷺ څخه په منبر دا آيت اوريدلي دي [٣] يَامَالِكُ لِيَقْضِ عَلَيْنَا رَبُّكَ (اې سرداره ته خپل پروردګار ته اووئيلو چې هغه زمونږ کار تمام کړي). (بخاري او مسلم)

**حل اللغات:-** ① لِيَقْضِ: چه پوره کړی، تول کړی.

---

[1] ) اخرجه البخاري في كتاب تفسير القرآن/باب قوله: ونادوا يا مالك ليقض علينا ربک. قال: إنكم ماكثون. [الزخرف: ٧٧] (رقم-٤٨١٩)

**تسهيلات:-**

**قوله:** وَنَادَوْا يَا مَالِكُ

**په خطبه کښې د عذاب آياتونه لوستل:-** د حديث مبارك حاصل دادې چې نبی کريم ﷺ به دخطبې په دوران کښې داآيت مبارك لوستو چې ﴿وَنَادَوْا يٰمٰلِكُ لِيَقْضِ عَلَيْنَا رَبُّكَ﴾ ، اصل کښې دا د دوزخيانو د سوال او جواب بيان دې چې دوزخيان به د دوزخ داروغه فرښتې ته اووائی چې زمونږ سفارش اوکړئی چې الله ﷻ مونږ ته مرګ راکړی چې د عذاب نه بچ شو. ددې دوزخ داروغه به جواب ورکړی چې ﴿إِنَّكُمْ مٰكِثُونَ﴾ تاسو به دې ځائې کښې ايسار يئ. نو نبی کريم ﷺ به د خلقو د ويرولو دپاره دا آيت مبارك بار بار لوستو. ددې نه معلومه شوه چې د خطبې په دوران کښې ويرولو والا آيت لوستل زيات بهتر دی.

**[١٤٠٩]د جمعې په خطبه کښې د سورة ، ،ق، ، لوستل**

١٣٠٩-()[٩] [١] وَعَنْ أُمِّ هِشَامٍ بِنْتِ حَارِثَةَ بْنِ النُّعْمَانِ قَالَتْ: [٢]«مَا أَخَذْتُ ق وَالْقُرْآنِ الْمَجِيدِ إِلَّا عَنْ لِسَانِ رَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [٣]يَقْرَؤُهَا كُلَّ جُمُعَةٍ عَلَى الْمِنْبَرِ إِذَا خَطَبَ النَّاسَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] د حارثه ابن هشام لور بي بي ام هشام رضي الله عنها فرمايي[٢] چې ما سورة ق والقرآن المجيد د حضور ﷺ د ژبې مبارکې څخه داسې زده کړي دي[٣] چې حضور ﷺ به هره جمعه په منبر هر کله چې د خلقو په مخکې به يې خطبه ارشاد فرمايله نو دا سورت به يې ويلو او ما به اوريدلو سره يادولو. (مسلم)

**تسهيلات:- قوله:** يَقْرَؤُهَا كُلَّ جُمُعَةٍ:

**د رواياتو په مينځ کښې د تعارض دفع:-** دا مطلب نه دې چه هميشه به حضور پاك ﷺ سورت "ق" لوستلو بلکه مراد دادې چه په کسرت سره به نبی سورت "ق" د جمعه په ورځ لوستلو دې نه علاوه سورتونه په مانځه کښې لوستل هم ثابت دی هيڅ منع نه دی.

**[١٤١٠]په توريتکی کښې د جمعې مونځ کول**

١٣١٠-()[١٠] [١] وَعَنْ عَمْرِو بْنِ حُرَيْثٍ: [٢]«أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- خَطَبَ وَعَلَيْهِ عِمَامَةٌ سَوْدَاءُ [٣]قَدْ أَرْخَى طَرَفَيْهَا بَيْنَ كَتِفَيْهِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] عمرو ابن حريث رضي الله عنه وايي[٢] چې رسول الله ﷺ د جمعې په ورځ په دې حال کې خطبه ارشاد فرمايلي وه چې د حضور ﷺ په سر مبارك توره عمامه وه [٣] چې د هغې دواړه څاکونه (شملې) حضور ﷺ د خپلو دواړو اوږو په مينځ کې پريښې وو. (مسلم)

**حل اللغات:-** ①أَرْخَى: رازوړند کړی وو.

[١] ) اخرجه مسلم فی کتاب الجمعة/باب تخفيف الصلاة والخطبة (رقم) ٥٢ - (٨٧٣)

[٢] ) اخرجه مسلم فی کتاب الحج/باب جواز دخول مکة بغير إحرام (رقم-٤٥٢ - (١٣٥٩)وابوداود فی کتاب اللباس/ باب فی العمائم (رقم-٤٠٧٧) والنسائی کتاب الزينة/باب إرخاء طرف العمامة بين الکتفين (رقم-٥٣٤٦)وابن ماجة کتاب الجهاد/باب لبس العمائم فی الحرب (رقم-٢٨٢١)

**تسهیلات:- قوله : وَعَلَيْهِ عِمَامَةٌ سَوْدَاءُ:**

**د جمعې په ورځ د مسنون لباس اهتمام:** دامت ټولو فقهاؤ اوعلماؤ له پکاردي چه هغوی دې دَدې حدیث نه تعلیم حاصل کړی اودَ جمعې په ورځ دې اسلامی لباس خپل کړی په کوم کښې چه جبه (عبا) اوعمامه وغیره شامل دی. حضورپاك ﷺ دَ جمعه په ورځ سپین پټکې هم استعمال کړې دې اوتور نی هم استعمال کړې دې.

**د شین پټکی حکم:** -شین پټکې استعمالول دَ حضورپاك ﷺ نه ثابت نه دی. اهل بدعت شین پټکې دَ ډیروخت نه پس اوس استعمالوی لیکن هغوی دَ رسول الله ﷺ دَ روضې مبارکې نقل کوی دَ حضورپاك ﷺ سنت سره نی هیڅ کارنشته دې.

**[١٤١١] د خطبې دوران کښې دَتحیة المسجد کولومسئله**

١٤١١ - ()[١]١ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ٢«إِذَا جَاءَ أَحَدُكُمْ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ فَلْيَرْكَعْ رَكْعَتَيْنِ،٣ وَلْيَتَجَوَّزْ فِيهِمَا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ١ حضرت جابر ﷛ راوي دي چې رسول الله ﷺ په خطبه کې وفرمایل ٢ هر کله چې په تاسو کې څوك د جمعې په ورځ (مسجد ته راشي) او امام خطبه وایي نو دوه رکعاته دي وکړي ٣ خو دواړه رکعاته دي مختصر وکړي. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① لِيَتَجَوَّزْ: مختصر دې اوکړی

**تسهیلات:** -

**قوله : فَلْيَرْكَعْ رَكْعَتَيْنِ:** په مشکوة شریف کښې داحدیث مختصردې. په مسلم شریف کښې دَ حضرت جابر ﷛ نه دا حدیث نقل کړې شوې دې چه اوږدحدیث دې او په دې کښې داسې قصه ده چه یوځل حضورپاك ﷺ دَ جمعې مبارکې خطبه ورکوله چه په دې کښې سلیك غطفانی ﷛ جمات ته داخل شو اوکیناستو. حضوراکرم اوفرمائیل اې سلیك پاسه اودریږه اومختصرشان دوه رکعته اوکړه. بیا حضوپاك اوفرمائیل چه کله تاسونه څوك سړې دَ جمعې په ورځ راشی او امام خطبه ورکوی هغه له پکاردی چه دوه رکعته مختصرمونځ اوکړی. دَدې حدیث نه معلومیږی چه دَ خطبې دوران کښې دَ تحیة المسجد دوه رکعته مونځ کول پکاردی په دې کښې دَ فقهاؤ سخت اختلاف دې.

**دخطبې په دوران کښې د تحیة المسجد په حکم کښې مذاهب**

① امام شافعی ﷬ اوامام احمدبن حنبل ﷬ فرمائی چه په خطبه کښې هم دوه رکعته تحیة المسجد کول پکاردی دې نه پس کیناستل او خطبه اوریدل پکاردی. دامستحب دی اودَغیرمقلدینو په نیز دَ تحیة المسجد دوه رکعته عندالخطبه واجب دی.

[١] ) اخرجه مسلم فی کتاب الجمعة /باب التحیة والإمام یخطب (رقم) ٥٩ - (٨٧٥)

② امام ابوحنیفه رحمه الله امام مالك رحمه الله امام محمد رحمه الله امام ابویوسف رحمه الله امام اوزاعی شام رحمه الله او سفیان ثوری رحمه الله ټول فرمائی چه په خطبه کښې په بل څه کار کښې مشغول کیدل مکروه تحریمی دی سره دَدې چه مونځ ولې نه وی. لهذا دوه رکعته تحیة المسجد هم جائزنه دی. حضرت عمر حضرت عثمان او حضرت علی رضی الله عنهم په شان اکابر صحابؤ نه هم دغه شان نقل دی. (معارف السنن)

**داول فریق دلائل:-**

① زیربحث دحضرت جابر رضی الله عنه روایت د دوی دلیل دې کوم چه قولی حدیث دې او په کوم کښې چه په توګه دَ قاعده او ضابطه بیان کړې شوې ده چه په دوه رکعته مختصر کول پکاردی.

**د اول دلیل څخه جوابونه:-**

① ددې په جواب کښې خو بعضو حضراتو دا وئیلی دی چه دا روایت دشعبه تفرد دې او دعمر بن دینارنه په مذکوره الفاظ سره دې روایت نقل کولو ده ته وهم راغلې دې ، اصل کښې دا وهم دحضرت سلیك واقعه ده . چه دوی په غلطئ سره داقولی حدیث مبارك اوګرځولو[1]. امام دار قطنی د کتاب التتبیع علی الصحیحین په نوم یو کتاب لیکلې دې چه هغې کښې ئې دصحیحینو متکلم فیه روایات راجمع کړې دی . او دا روایت هم په هغې کښې شامل دې .

**د دارقطنی تردید:** خوحافظ ابن حجر رحمه الله په هدی الساری مقدمة فتح الباری کښې په امام دار قطنی رحمه الله مدلل رد کړې دې او د ده دیو یو اعتراض ئې مفصل جواب ورکړې دې او هغې کښې د امام دارقطنی په دې حدیث مبارك دا اعتراض شافی جواب ورکړې شوې دې . لکه چه د اهل علم په دې اتفاق دې چه په صحیحینو کښې یو روایت هم ضعیف نشته او ددې ټول احادیث صحیح دی ، په دې وجه دحضرت جابر رضی الله عنه ددې قولی حدیث مبارك باره کښې هډو صحیح هم نه دې او څنګه به صحیح شی چه شعبه امیر المومنین فی الحدیث دې ده ته بلا دلیله وهم صحیح نه دې چه منسوب شی نوددې حدیث په صحت شك صحیح نه دې اوبیا چه حافظ ابن حجر رحمه الله ددې یو متابع هم ذکر کړې دې . [2]

---

[1]) اود ابن جریج رحمه الله، ابن عینه رحمه الله ، حمادبن زید رحمه الله ، ایوب رحمه الله ، ورقاء رحمه الله او حبیب بن یحیی رحمه الله داهمد عمرو بن دینار نه د فعلی حدیث په طور روایت کوی اوګورئی معارف السنن (ج/ ٤ ، ص/ ۳۷۷ )-

[2]) ثم اجاب عند الحافظ بمتابعة روح بن قاسم شعبة عند الدار قطنی فی سننه معارف السنن (ج/ ٤ ، ص/ ۳۷۷ ، ۳۷۸ ) لکه چه امام دار قطنی دا متابع په خپل سنن (ج/ ۲ ، ص/ ۱۵ رقم/۱۸ ) باب فی الرکعتین اذاجاء الرجل والامام یخطب کښې ذکر کړی دی . (( حدثنا محمد بن نوح الجند یسابوری حدثنا الفصل بن عباس الصواف حدثنا یحیی بن غیلان حدثنا عبدالله ابن یزیع عن روح بن القاسم نه علاوه سفیان رحمه الله عینیه رحمه الله هم دشعبه متابعت کړې دې ........

④ ددې حدیث مبارك صحیح جواب دادې چه دا دقران پاك د آیت (( واذا قرئ القران فاستمعوا له وانصتوا )) اودهغه احادیثو معارض دې چه احنافو په خپل استدلال کښې ذکر کړی دی (چه کوم مونږ مخکښې ذکر کړل ) او س که د تطبیق طریقه اختیار کړې شي نودا به اووئیلې شي چه ((والامام یخطب)) څخه مراد ((یرید الامام ان یخطب)) یا ((کاد الامام ان یخطب)) دې اوکه د ترجیح طریقه اختیار شي نو روایات دنهی دڅو وجوهاتو نه راجح دی .

**د اول فریق دویم دلیل :-**

④ دَ دې حدیث دَ نورو طرق نه قاعده اوضابطه په توګه حکم نشته دې بلکه دَ یوجزئی واقعه په توګه ئی بیان کړې دې. یو سړې راغلو چه دهغه نوم سلیك بن هدبه الغفانی وو.اوحضوراکرم خطبه لوستله هغه کیناستو حضورپاك ﷺ اوفرمائیل پاسه اومختصردوه رکعته تحیة المسجد اوکړه. اوس که چرې

**جوابونه :-**

①دا واقعه دا د خطبی نه مخکښې وه دهغې تفصیل دادې چه حضرت نبی اکرم ﷺ یو ځل دخطبې وئیلو دپاره دجمعې په منبر ناست وو خو لا خطبه شروع شوې نه وه . چه دې کښې یوصاحب چه دهغه نوم سلیك بن هدبه الغفانی وو ، ډیرې زړې کېړې ئې اغوستې وې چه په مسجد ته داخل شو. حضرت نبی اکرم ﷺ چه دهغه د فقرو اوفاقې دا حالت اولیدو نو مناسب ئې اوګنړلو چه ټول صحابه کرام رضي الله عنهم ددې حالت ښه اووینی ، په دې و چه ئې دوی ته د اودریدو اودمونځ حکم ورکړو ([1]). اوچه څومره ده مونځ کولو نو تر هغه وخت پورې حضرت نبی اکرم ﷺ خاموش وو([2]). او خطبه ئې نه شروع کوله . بیا روستو حضرت نبی اکرم ﷺ صحابه کرامو رضي الله عنهم ته دصدقې ورکولو ترغیب ورکړو([3])
. نوپه دې موقع صحابه کرام رضي الله عنهم ده ته ښه صدقه ورکړه . ددې نه معلومه شوه چه اول خودا یو خاص واقعه وه چه دعمومی قواعدو کلیه خلاف نه شسی پیش کولې .

............ بلکه سنن دار قطنی (ج/ ۲ ، ص/ ۱٤ ، قم ۳) کښې دا روایت خپله دحضرت سلیک غطفانی نه مروی دې اوددې سند کښې دشعبه واسطه شته دې اونه دعمروبن دینار . مرتب عفی عنه )-

[1] ) لکه دحضرت جابر رضي الله عنه په روایت کښې داالفاظ مرو دی چه (( فقال له النبی ﷺ صلیت ؟ قال لا . قال قم فارکع سنن نسائی(ج/ ۱. ص/ ۲۰۸ ) باب مخاطبة الامام رعیته وهوعلی المنبر مرتب عفی عنه )-

[2] ) لکه چه محمد بن قیس فرمانی چه (( ان النبی ﷺ حیث امره ان یصلی الرکعتین امسک عن الخطبة حتی فرغ من رکعته الخ . مصنف ابن ابی شیبه (ج/ ۲ . ص/ ۱۱۰ ) فی یعین یوم الجمعة والامام یخطب یصلی رکعتین . علامه زیلعی رحمه الله نصب ا لرایه (ج/ ۲ . ص/ ۲۰٤ ) باب صلوة الجمعه کښې لیکی چه (( و بوب النسائی فی سننه الکبری علی حدیث سلیک رضي الله عنه باب الصلوة قبل الجمعة رشید اشرف عفی عنه )-

[3] ) لکه چه یو روایت کښې دا الفاظ مروی دی چه (( وحث النبی ﷺ الناس علی الصدقة فالقوا ثیابهم الخ سنن نسائی (ج/ ۱ . ص/ ۲۰۸ ) باب حث الامام علی الصدقة یوم الجمعة فی خطبة مرتب عفی عنه )-

بله دا چه دحضرت سليك دراتلو په وخت حضرت نبی اکرم ﷺ خطبه شروع کړې نه وه. اودهغې دليل دادې چه په صحيح مسلم (١) کښې يوروايت کښې داالفاظ مروی دی چه (( جاء سليك الغطفانی يوم الجمعة ورسول الله ﷺ قاعدا على المنبر )) اودا معلوم شو چه حضرت نبی اکرم ﷺ به هميشه په ولاړه خطبه ورکوله (٢)

. په دې وجه دناستې مطلب همدادې چه حضرت نبی اکرم ﷺ لا خطبه نه وه شروع کړې (٣) اودا خبره چه حضرت سليك رضي الله عنه په ډير خراب حالت کښې وو نودا په ترمذی کښې (٤) دحضرت ابوسعيد خدری رضي الله عنه د روايت نه ثابته ده چه هغې کښې دې فرمائی چه (( رجلا جاء يوم الجمعة فی هيئته بذة ( ای هيئة تدل على الفقر) اودا خبره چه حضرت نبی اکرم ﷺ

(١) (ج/ ١ . ص/ ٢٨٧ )كتاب الجمعه مرتب عفی عنه )-

(٢) وعن ابی عبيه بن كعب بن عجرةً قال دخل المسجد و عبدالرحمان ابن ام الحكم يخطب قاعدا فقال الى هذه يخطب قاعدا وقد قال الله عز وجل واذا راو تجارة او لهو انفضو ا ليها وتركوک قائما . سنن نسائی (ج/ ١ . ص/ ٢٠٧ ) قيام الامام فی الخطبة

وعن ابن عمر رضي الله عنه قال كان النبی ﷺ يخطب قائما يقعد ثم يقوم كمنا تفعلی ان الان صحيح بخاری (ج/ ١ . ص/ ١٢٥ ) باب ا لخطبة قائما )-

(٣) قال الحافظ فی الفتح (ج/ ٢ . ص/ ٢٣٩ ) واجيب بان القعود على المنبر لا يختص بالابتداء بل يحتمل ان يكون بين الخطبتين ايضا وتعقبة البدر العينی فی العمدة فقال والاصل ابتداء قعود ، وقعوده بين الخطبتين متحمل فلا يحكم به على الاصل على ان امره ﷺ اياه بان يصلی ركعتين سؤاله اياه . هل صليت ؟ وامره الناس بالصدقة قد يضيق عن القعود على المنبر لا يختص بالابتداء بل يحتمل ان يكون بين الخطبتين ايضا . و تعقبه البدر العينی فی العمدة فقال : والاصل ابتداء وقعوده . وقعوده بين الخطبتين محتمل فلا يحكم به الی الاصل على ان امره رسوالله ﷺ اياه بان يصلی ركعتين وسؤله اياه هل اصليت؟ وامر للناس بالصدقة يضيق عن القعود بين الخطبتين هذا ملخص مافی معارف السنن (ج/ ٤ . ص/ ٢٧٠. ٢٧١) خو په دې جواب (چه صلاه وكلام قبل الشروع فی الخطبه وو) بانذې په سنن دارقطنی (ج/ ٢ . ص/ ١٥ ) رقم ٩ باب فی الركعتين اذا جاء والامام يخطب )) كښې دحضرت انس رضي الله عنه نه روايت نه اشكال كيای چه هغه فرمائی چه (( دخل رجل من قيس ورسول الله ﷺ يخطب فقال له البنی ﷺ قم فاركعتين وامسک عن الخطبة حتی فرغ من صلوته )) ددې روايت نه معلوميای چه دوی ته نبي دمونځ كولو حكم وركړو. نودغه وخت حضرت نبی اكرم ﷺ خطبه نه وئيلې.

حضرت كشيمری رحمه الله دمسلم روايت د قعود اود دارقطنی په دې روايت كښې داسې تطبيق كړې دې چه (( بانه صلی الله عليه وسلم كان قعد على المنبر وكان دان يقوم فيشرع فجاء سليک فاخر الخطبة واسلک عنها وهذا الجمع غير بعيد قال الراقيم ( ای شيخ بنوری رحمه الله ) فاالتاويل فی قوله وكان يخطب وكان على اشرف الشروع فيها هذا اقريب من تاويلهم القعود على الجلسة الخفيفة بين الخطبيتی كما لا يخفی والله اعلم . وعلى كل حال هذه صورة الجمع وذالک ان تجعله جوابين كما تقدم انفا كذافی معارف السنن (ج/ ٤ . ص/ ٣٧١ )

مصنف ابی ابی شيبة (ج/ ٢ . ص/ ١١٠ ) باب فی الرجل يحجيئ يوم الجمعة والامام يخطب يصلی ركعتين كښې د محمد بن قيس په روايت كښې د (( مسلک عن الخطبة حتی افرغ من ركعتيه )) دا الفاظ سره د ( ثم عاد الى خطبة)) جمله هم مروی ده . ددې مطلب داسې هم بيان دې شی چه (( ان النبی ﷺ كان قعد على المنبر وكان دان ان يقوم فيشرع فجاء سليک فاخر الخطبة وامسک عنها حتی فرغ هو من ركعتيه ثم عاد الى الشروع فی الخطبة)) —

(٤) (ج/ ١ . ص/ ٩٣ ) باب ا لركعتين اذا جاء الرجل والامام يخطب )) داشانت اوګورئی سنن نسائی (ج/ ١. ص/ ١٠٨ ) باب حث الامام على الصدقة يوم الجمعة فی خطبته مرتب عفی عنه )-

دده دمونځ په دروان کښې خطبه بنده کړې وه، د دارقطنی رحمه الله (١)) د روایت نه ثابت ده.
② بیا دې روایت نه په تحیة المسجد سره استدلال هم مشکل دې . اول خو څکه چه د قم فارکع (٢) ظاهر دی او دامعلومیږی چه حضرت سلیك رضي الله عنه راغلې وو او ناست وو بیا نې حضرت نبی اکرم صلی الله علیه وسلم اودرولو(٣). او ظاهر ده چه دناستې نه پس تحیة المسجد فوت کیږی . دویم دابن ماجه (٤) په روایت کښې مروی دی چه حضرت نبی اکرم صلی الله علیه وسلم دوی نه تپوس اوکړو چه (( اصلیت رکعتین قبل ان تجیی )) نودوی اوفرمائیل چه لا . نو حضرت نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ورته اوفرمائیل چه (( فصل رکعتین )) نو ددې نه صفا واضحه شوه چه حضرت نبی اکرم صلی الله علیه وسلم دوی ته د تحیة المسجد حکم نه وو کړې بلکه دسنن قبلیه حکم نې ورته کړې وو.
**خلاصه د جواب:**- بهرحال دایو مخصوص واقعه ده . دو ددې نه دعمومی حکم مستنبط کول غلط دی چه د خطبې په دوران کښې همشیه تحیة المسجد کول مستحب دی.
زمونږ په دې مذکوره شرح سره دحضرت سلیك رضي الله عنه د واقعې جواب اوشو (٥)

**د دویم فریق پنځه دلائل:-**

① د قران پاك(٦) آیت مبارك دې چه ﴿ وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنْصِتُوا لَعَلَّكُمْ

---

(١) (ج/ ٢ ، ص/ ١٥ ، باب فی الرکعتین اذا جاء الرجل والامام یخطب ، د روایت دا الفاظ مونږ مخکښې ذکر کړی دی مرتب عفی عنه )-
(٢) صحیح مسلم (ج/ ١ ، ص/ ٢٨٧ ) مرتب عفی عنه )-
(٣) بلکه صحیح (ج/ ١ ، ص/ ٢٨٧ ) کتاب الجمعة کښې په روایت کښې دا تصریح ده چه (( فقعد سلیک قبل ان یصلی النبی فقال لها البنی صلی الله علیه وسلم ارکعت رکعتین ؟ قال لا قال لم فارکعها . رشید اشریف عفی عنه )-
(٤) (ج/ ، ص/ ٧٨ ) باب ماجاء فیمن دخل المسجد والامام یخطب مرتب عفی عنه )-
(٥) چه دهغې خلاصه داده چه :
①چه ترکومې دحضرت سلیك رضي الله عنه مونځ کولو نو ترهغه وخت پورې حضرت نبی اکرم صلی الله علیه وسلم خاموش وو . (( کما فی روایة المصنف ابن ابی شیبة (ج/ ٢ ، ص/ ١١٠ ) فی الرجل یجبیئ یوم الجمعة الخ ، و روایة دارقطنی (ج/ ٢ . ص/ ١٥ ، رقم/٩) باب فی الرکعتین اذا جاء الرجل الخ ، او په دې خاموشۍ دخطبې احکام به جاری نه وو.
② دا واقعه دخطبې دشروع کولو نه مخکښې وه (( کما یفهم من روایة مسلم (ج/ ١ ، ص/ ٢٨٧ ) جاء سلیک الغطفانی یوم الجمعة ورسول الله صلی الله علیه وسلم قاعدا علی المنبر.
③ د حضرت نبی اکرم صلی الله علیه وسلم مقصد دده غربت اصحابو کرمو رضي الله عنهم ته ښکاره کول وو. چه ددوی مدداوش اوددې اظهار دټولو نه بهتره ذریعه دا مونځ وو.
④ داواقعه حال لا عموم لها دقسم نه ده چه د کلی قواعدو مقابله نه شی کولې .
دڅلورو وارو جوابونو تفصیل مونږ مخکښې کړې دې .
⑤ یو جواب داهم ورکړې شوې دې چه دا واقعه دهغه وخت ده چه کله دکلام فی الصلوة اجازت اوچه خطبه دصلوة په درج کښې ده . په دې و جه دې کښې همس دغه وخت صلوة دکلام جائز وو. (( وانظر لتفصیل هذا الجواب ،التعلیق الحسن علی اثارالسنن (ج/ ، ص/ ٢٤٩ ) باب التنفل حین یخطب الامام)-
(٦) سورة اعراف جزء حضرت عبدالله ابن عباس ایت ٢٠٤ مرتب عفی عنه )-

تُرْحَمُوْنَ۞) دې باره کښې بحث مخکښې تیر شوې دې چه د جمعې خطبه هم دې حکم کښې شامل ده بلکه شوافعو خودا آیت مبارک دجمعې دخطبې پورې خاص کړې دې البته مونږ دا خبره ثابته کړې وه چه د آیت مبارک د مونځ باره کښې نازل شوې دې خوددې په عموم کښې خطبه هم شامل ده .

⑫ ([1])د حضرت ابوهریره رضی الله عنه روایت دې چه (( ان رسول الله ﷺ قال یوم الجمعة والإمام یخطب إنصت فقد لغا )) چه هغې کښې حضرت نبی اکرم ﷺ د امر بالمعروف نه منع کړې ده ، حال دادې چه امر بالمعروف فرض دی . اوتحیة المسجد مستحب دی نو تحیة المسجد په طریق اولی سره ممنوع شو.

⑬ ([2]) په مسند احمد کښې دحضرت نبیشه هذلی رضی الله عنه روایت دې چه دې دنبی کریم ﷺ نه نقل کوی چه : (( إن المسلم إذا إغتسل یوم الجمعة إلی المسجد لا یؤذی أحدا فان لم یجد الإمام خرج صلی مابدا له وإن وجد الإمام خرج جلس فاستمع وانصت حتی یقضی الإمام جمعة الخ ))

حدیث مبارک کښې صراحت سره خودلې شوی دی چه مونځ هله مشروع دې چه کله امام د خطبې دپاره نه وی راوتلې اوکه امام راوځی نوبیا خاموش ناسته پکار ده .

علامه هیثمی رحمه الله په مجمع الزوائد کښې ددې حدیث مبارک دنقل کولو نه پس لیکی چه (( رواه احمد ورجاله رجال الصحیح خلا أحمد وهوثقة ))

**اعتراض:**-البته په دې روایت باندې علامه منذری دا اعتراض کړې دې چه دحضرت عطاء خراسانی سماع د حضرت نبیشه رضی الله عنه نه نشته دې ([3]).

**جواب:**-خو ددې اعتراض حاصل به زیات نه زیات داشی چه محدثینو په مینځ کښې ددې حدیث مبارک په تصحیح کښې اختلاف دې اوداسې صورت کښې حدیث مبارک د استدلال قابل دې .

⑭ ([4]) په معجم طبرانی کښې د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه نه مرفوعا مروی دی چه (( قال سمعت النبی ﷺ یقول إذا دخل أحدکم المسجد والإمام یخطب فلا صلوة ولا کلام حتی یفرغ الإمام )) ددې حدیث مبارک سندا گر چه ضعیف دې ([5]) خو متعدد قرائن ددې مؤید دې.

---

[1]) باب ماجاء فی کراهیة الکلام والامام یخطب ترمذی (ج/ ۱، ص/ ۹٤) مرتب عفی عنه )-

[2]) انظر مجمع الزوائد (ج/ ۲ ، ص/ ۱۷۱ ) باب حقوق ا لجمعة من الغسل والطیب ونحو ذالک مرتب غفی عنه )-

[3]) فقال اوعطا لم یسمع من نبیشه فی ما اعلم . الترغیب والترهیب (ج/ ۱ . ص/ ٤٨٧) رقم ۸ کتاب الجمعة الترغیب فی صلوة الجمعة والسعی الیها وماجاء فی فضل یومها وساعتها مرتب عفی عنه )-

[4]) مجمع الزوائد (ج/ ۲ . ص/ ۱۸٤ ) باب فیمن یدخل المسجد والامام یخطب مرتب عفی عنه )-

[5]) علامه هیثمی ددې روایت دنقل کولو نه پس لیکی چه (( وراه الطبرانی فی ا لکبیر وفیه ایوب بن نهیک وهومتروک ضعفه جماعة وذکره ابن حبان فی الثقات وقال یخطئ کذا فی الزوائد للهیثمی (ج/ ۲ . ص/ ۱۸٤ ) مرتب عفی عنه )-

**دحديث مؤيدات:-**

**(الف)** ددې به بناء چه مصنف ابن ابی شیبه() کښې ابن عمر ؓ خپل مسلك هم ددې مطابق مروی دې .

**(ب)** دعلامه نووی ؒ داعتراف ([2]) مطابق دحضرت عمر فاروق ؓ، حضرت عثمان ؓ اودحضرت علی ؓ مسلك هم دا وو چه دوی د خروج الامام نه پس مونځ اوکلام جائز نه ګڼړلو. اوهم دا مسلك د بعضو نورو اصحابو([3]) او........

د تابعینو([4]) نه هم مروی دې . او دا اصول څو ځل تیر شو چه که ضعیف حدیث مبارك مؤید بالتعامل وی نو هغه قابل استدلال دې .

⑤ د حدیث د باب واقعې نه سوا د حضرت نبی اکرم ﷺ نه چرته هم دا ثابت نه دی چه حضرت نبی اکرم ﷺ دخطبې په دوران کښې راتلونکی کس ته دمونځ کولو دپاره وئیلی وی د دې مؤیدات دا دی.

**(الف)** لکه د استسقاء حدیث ([5]) کښې چه کوم اعرابی د قحط شکایت راوړې وو ، بیا یو هفته پس دوباره ئې دسیلاب شکایت راوړې وو. هغه په دواړه واقعو کښې دخطبې په دوران کښې راغلی اورارسیدلې وو. خو حضرت نبی اکرم ﷺ دوی ته دمونځ حکم نه وو ورکړې .

**(ب)** دغه شان یوسړې د خطبې په دوران کښې تخطی رقاب کوله او روان وو نو حضرت نبی اکرم ﷺ هغه ته اوفرمائیل چه ((إجلس ([6]) فقد آذیت)) داشان په ابوداؤد ([7]) کښې د حضرت عبد الله ابن مسعود ؓ واقعه ذکر کړې ده چه ((عن جابر قال لما استوی رسول

---

[1] ) (ج/ ٢ . ص/ ١٢٤ ) باب الکلام اذا صعد المنبر وخطب وعن ابن عباس ؓ وابن عمر ؓ انهما یکرهان خرج الامام یوم الجمعة بعد خروج الامام عن ابن عمر ؓ انه کان یصلی یوم الجمعة فاذا خرج الامام لم یصلی رشید اشرف عفی عنه )-

[2] ) اوګورئی شرح دصحیح مسلم (ج/ ١ . ص/ ٢٨٧ ) فصل من دخل المسجد والامام یخطب اوخرج للخطبة فلیصل رکعتین الخ مرتب عفی عنه )-

[3] ) کما نقلنا عن ابن عباس ؓ وابن عمر ؓ مرتب عفی عنه )-

[4] ) عن سعید بن المسیب قا خروج الامام یقطع الصلاة وکلامه یقطع الکلام انظر مصنف لابن ابی شیبه (ج/ ٢ . ص/ ١٢٤، ١٢٥ ) فی الکلام اذا صعد المنبر وخطب مرتب عفی عنه )-

[5] ) انس بن مالک یذکر ا ن رجلا دخل یوم الجمعة من باب و کان جاء المنبر ﷺ قام یخطب فاستقبل رسول الله ﷺ فقال یارسول ا لله ﷺ هلکت الاموال وانقطعت السبل فادع الله ان یغیثنا فا فرع رسول الله ﷺ یدیه فقال اللهم اسقنا الی ان قال الراوی ثم امطرت قال فوالله مارأینا الشمس ستا ثم دخل رجل من ذالک الباب فی الجمعة المقبلة ورسول الله ﷺ قائم یخطب فاستقبله قائما فقال یارسول الله ﷺ هلکت الاموال وانقطعت السبل فادع الله ان یمسکها الخ صحی بخاری (ج/ ١ . ص/ ١٣٧ ) ابواب الاستسقاء باب الاستسقاء فی المسجد الجامع مرتب عفی عنه )-

[6] ) سنن نسائی (ج/ ١ . ص/ ٢٠٧ ) باب النهی عن تخطئ رقاب الناس والامام علی المنبر یوم الجمعة وسنن ابی داود (ج/ ١ . ص/ ١٥٩ ) باب خطئ رقاب الناس یوم ا لجمعة مرتب عفی عنه )-

[7] ) (ج/ ١ . ص/ ١٥٦ ) باب الامام یکلم الرجل فی خطبته مرتب عفی عنه )-

الله ﷺ اى جلس مستوياً على المنبر يوم الجمعة قال : اجلسوا فسمع ذالك ابن مسعود رضي الله عنه فجلس على باب المسجد فراه رسول الله ﷺ فقال تعال يا عبدالله بن مسعود رضي الله عنه )) دلته هم حضرت نبى اكرم ﷺ ده ته دمونځ کول حکم اونه کړو.

(ج)دغه شان د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه دخطبې دوران کښې دحضرت عثمان رضي الله عنه تشريف راوړو نو حضرت عمرفاروق رضي الله عنه دوى ته په ناوخته راتلو او په غسل نه کولو تنبيه ورکړه . خود مونځ حکم ئې ورته اونه کړو(١) دا ټول واقعات په دې دلالت کوى چه دخطبې په دوران کښې د مونځ حکم نه وو.

**د نهى رواياتو دترجيح وجوه:**

① چه کله محرم او مبيح کښې تعارض راشى نو ترجيح به محرم ته وى .

② روايات دنهى مودید بالقران دى نو ترجيح به همدې لره وى .

③ روايات دنهى موید بالاصول کليه دى .څکه په ترجيح دې لره وى.

④ روايات دنهى دا مويدبتعامل الصحابه او تابعين دى (٢)

⑤ په دې عمل کولو کښې احتياط دې څکه چه تحية المسجد دچا په نزد هم واجب نه دى . نو ددې په ترك دچا په نزد دګناه نه متحقق کيږى . اودنهى عن الصلاة والکلام داحاديثو په ترك سره دګناه احتمال شته دې ، په دې بناء احنافو احتياط دې کښې اوګنړل چه دنهى په احاديثو عمل راشى .هم دا وجه ده چه دخطبې په وخت دوى ترك دصلاة اختيار کړو ، والله اعلم .

**[١٤١٢]دامام سره ديو رکعت مونځ رالاندې کولو حکم**

٣٣- (٣)[١٣] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ② «مَنْ أَدْرَكَ رَكْعَةً مِنَ الصَّلَاةِ مَعَ الْإِمَامِ ③ فَقَدْ أَدْرَكَ الصَّلَاةَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ

**ترجمه:** ① ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ ارشاد وفرمايلو ② کوم سړي چې د لمانځه يو رکعت د امام سره ونيولو ③ هغه پوره مونځ ومونډلو ، (بخاري،مسلم)

(١) د حضرت عثمان رضي الله عنه واقعه مخکښې د باب ماجاء فى الاغتسال فى ا لجمعه لاندې په حواله د مسلم (ج/ ١ . ص/ ٢٨٠ ) کتاب الجمع تيره شوې ده مرتب عفى عنه )-

(٢) کما روى عن عمر h و عثمان h ذكره النووى m فى شرح مسلم(ج/ ١ ، ص/ ٢٨٧ ) داشان دنوروروایاتو اود اثارو دپاره اوګګورئی مصنف ابن ابى شيبه (ج/ ٢ . ص/ ١١١ ) من كان يقول اذا خطب الامام فلا تصل . او شرح معانى الاثار (ج/ ١ . ص/ ١٧٨ تا ١٨١ ) باب الرجل يدخل المسجد يوم الجمعة والامام يخطب هل ينبغى له ان يركع ام لا ؟ مرتب عفى عنه )-

(٣) اخرجه البخارى فى كتاب مواقيت الصلاة/باب من أدرک من الصلاة رکعة(رقم-٥٨٠) و ابوداود فى كتاب الصلاة،باب من أدرک من الجمعة رکعة (رقم-١١٢١) والنسائى كتاب المواقيت/باب من أدرک رکعة من الصلاة (رقم-٥٥٣) والترمذى كتاب الجمعة/باب فيمن أدرک من الجمعة رکعة (رقم٥٢٤) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب ما جاء فيمن أدرک من الجمعة رکعة (رقم-١١٢٢) ومالک فى الموطا كتاب الجمعة /باب فيمن أدرک رکعة يوم الجمعة (رقم-١١)

**تسهیلات:-**

**قوله: مَنْ أَدْرَكَ رَكْعَةً:**

**د مذکوره حدیث په باب الجمعة کښې د ذکر وجه:-** دَدې حدیث مضمون والاحدیث باب ماعلی المأموم کښې تیرشوې دې. هلته په دې باندې بحث هم شوې دې. دلته صاحب مشکوة دا حدیث دَ جمعې په باب کښې درج کړو حالانکه دا حدیث مطلق دَ مونځونو دَ بیان دَپاره دې دَ جمعې متعلق نه دې. لیکن چونکه امام شافعي رحمه الله زیر بحث حدیث جمعې سره مقید کړې دې په دې وجه صاحب مشکوة دا دلته درج کړو.

**دجمعې مانځه کښې مدرک د آخری قعدې مدرک د جمعې دې که د ماسپښین. دې کښې مذاهب**

دَ حدیث مطلب دادې چه کوم سړی دَ مونځ یو رکعت لاندې کړو هغه ټول مونځ رالاندې کړو. اوس دلته دَ فقهاؤ کرامو په مینځ کښې دَ جمعې په مونځ کښې لږ شان اختلاف دې چه مثلاً یوسړی ته دَ دویم رکعت څه حصه ملاؤ نه شوه بلکه په قعده یا سجده کښې شریك شو نو اوس به هغه دَ جمعې دوه رکعته پوره کوی که دَماسپښین مونځ به کوی؟

① دَ بعضې سلف مسلك دادې چه که دَ یوسړی نه دَ جمعې خطبه هم لاړه نو دغه وخت دې دې دَ ماسپښین مونځ اوکړی دَ جمعې نه ② جمهور داسې نه وائی.

**مدرک د آخری قعدې مدرک د جمعې دې که نه دې کښې د جمهورو مذاهب**

دَ جمهورو په خپل مینځ کښې اختلاف دې.

① امام مالك رحمه الله امام شافعي رحمه الله امام احمدبن حنبل رحمه الله او امام محمد رحمه الله یعنی جمهور فرمائی چه دَ جمعې په مونځ کښې ترکومې پورې سړې یو رکعت پوره نه لاندې کوی نوهغه ته جمعه نه ملاویږی یعنی که یو سړی ته آخری رکعت پوره ملاؤ نه شی بلکه په سجده یا قعده کښې شریك شو نودَ هغه دَ جمعې مونځ فوت شو اوس دې هغه دَ ماسپښین مونځ له پاسی او اودې کړی.

② دَ امام ابوحنیفه رحمه الله او امام ابویوسف رحمه الله په نیز که یوسړی ته دَ جمعې په مونځ کښې آخری قعده هم ملاویږی نوهغه دې دَ جمعې نیت اوکړی دَ ماسپښین مونځ دې نه کوی ځکه چه هغه ته جمعه حاصله شوه.

**د اول فریق دلیل:-** زیر بحث د حضرت ابوهریره رضی الله عنه حدیث د دوی مستدل دې لیکن استدلال ئی دَ مفهوم مخالف په توګه باندې کړې دې یعنی چاچه یو رکعت لاندې کړو هغه مونځ رالاندې کړو اوچاته چه یو رکعت هم ملاؤ نه شو نو هغه ته مونځ هم ملاؤ نه شو. سره دَدې چه په زیر بحث حدیث کښې دَ جمعې ذکر نشته دې مګر هم په دې باب کښې وراندې دَ حضرت ابوهریره رضی الله عنه حدیث نمبر ١٩ راځی په هغې کښې دَ جمعې ذکر موجود دې. لهذا جمهور په توګه دَ مفهوم مخالف دَدې روایت نه استدلال کوی.

**داول فریق د دلیل جواب:-** دویم فریق وائي مونږ هم دغه حدیث منو. په دې کښې دا ذکر دې چاچه یو رکعت لاندې کړو هغه مونځ رالاندې کړو. مونږ هم دغه وایو چه په دې حدیث کښې خودې نه زیاتي هیڅ هم نشته دې. که چرې دا حضرات دَ مفهوم مخالف نه دَ استدلال کوشش کوی نو ادب سره عرض دې چه مونږ دَ مفهوم مخالف قاعده نه منو. لهذا مفهوم مخالف په مونږ باندې حجت نه دې خاص کر په هغه وخت کښې چه زمونږ دَ دلیل مخالف هم وی.

**د دویم فریق دلائل:-**

① دَحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه اثر د دوی مستدل دې چه په مصنف ابن ابی شیبه کښې ذکردې الفاظ دادی:((من ادرك التشهد فقد ادرك الصلوة)). هم په دې مصنف ابن ابی شیبه کښې دَحضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه دا روایت هم دې کوم چه دَ هغه اثر دې فرمائی: ((اذا دخل فی صلوة الجمعة قبل التسليم وهو جالس فقد ادرك الجمعة وعن الضحاك رضي الله عنه اذا ادرك الناس يوم الجمعة جلوسا صلى ركعتين)).

② دَدوی مستدل دا حدیث دې.. ((اذا سمعتم الاقامة فامشوا الى الصلوة وعليكم السكينة والوقار ولا تسرعوا فما ادركتم فصلوا وما فاتكم فاتموا))(بخاری) په دې حدیث کښې "فما ادركتم" کښې کلمه ماء عام ده چه څومره ئی هم رالاندې کړو که په تشهد کښې شامل شو هغه مونځ رالاندې کړو دلته سره دَدې چه دَ جمعې ذکر نشته دې لیکن دا حکم دَ ټولو مونځونودَپاره ارشاد شوې دې لهذا دا جمعې ته هم شامل دې.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[١٤١٢]دَرسول الله ﷺ دَ خطبې طريقه**

-٣٣()[١٣]وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: [٢]«كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَخْطُبُ خُطْبَتَيْنِ،[٣] كَانَ يَجْلِسُ إِذَا صَعِدَ الْمِنْبَرَ [٤] حَتَّى يَفْرُغَ أُرَاهُ الْمُؤَذِّنُ ثُمَّ يَقُومُ فَيَخْطُبُ،[٥] ثُمَّ يَجْلِسُ وَلَا يَتَكَلَّمُ،[٦] ثُمَّ يَقُومُ فَيَخْطُبُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:**[١] ابن عمر رضي الله عنه فرمایي [٢] چې رسول الله ﷺ به دوه خطبې داسې ویلې [٣] چې کله به منبر ته وختلو نو (مخکې) به کیناستلو [٤] تر دې چې فارغ به شو راوي وایي زما ګمان دا دې چې ابن عمر رضي الله عنه دا ویلي وو چې تر دې چې مؤذن به فارغ شو بیا به حضور ﷺ پاڅیدلو او (اولنۍ) خطبه به یې ارشاد فرمایله [٥] بیا به (لږ ساعت) کیناستلو لیکن (د دې ناستې په مینځ کې) به یې څه کلام نه کولو [٦] بیا به ودریدلو او دویمه خطبه به یې ویلهږ (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ①صَعِدَ: اوختلو (ممبرته).

[1]) اخرجه ابوداود فی كتاب الصلاة،باب الجلوس إذا صعد المنبر (رقم-١٠٩٢)

**تسهيلات:-**

**قوله: وَلَا يَتَكَلَّمُ:**

**د خطبتينو په مينځ کښې خبرې نه کول:-** يعنى دَ دوو خطبوپه مينځ دکيناستلودوران کښې به حضورپاك ﷺ کلام نه کولو. دَ دوو خطبو دوران دَ کيناستلو دَمقدار متعلق ابن حجر ﷫ فرمائى چه دَ سورت اخلاص دَ لوستلو په اندازه باندې کيناستل پکاردى

**په خطبه کښې دَبادشاه بې ځايه تعريف کولو حکم:-** مسئله داده چه په دويمه خطبه کښې دَ نبى اکرم ﷺ دآل اصحاب او ازواج مطهرات اوخلفاء راشدين حمزه عباس رضى الله عنهم دَپاره دعاکول مستحب دى لکه دادَ شاهى خاندان خلق دى. په دوى باندې نور خلق نه شى قياس کولې. دَ وخت دَ خليفه دَپاره هم په خطبه کښې دعاکول جائزدى. ليکن دَ منيه په شرح کښې ليکلى دى چه دَ بادشاهانو داسې تعريف کول چه دروغ اوغلط وى يادَهغوى داسې صفتونه بيانول په کوم سره چه هغوى صفت نه کيږى دامکروه تحريمى دى ځکه چه په عبادت کښې دروغ ملاؤکړې شو. په دې مسئله کښې دَزمانې تيريدوسره نورسختوالې هم راغلو لهذا زمونږ بعضې ائمه حضراتو فرمائيلى دى زمونږ دَ زمانې بادشاهانوته عادل وئيل دَ کفرحدته دَ نيزدې کيدو په شان دى.(کذافى مظاهرحق)

**[١٤١٤]په خطبه کښې خطيب طرف ته متوجه کيدل**

٣٣-()[١٣] [١] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ: [٢]«كَانَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- إِذَا اسْتَوَى عَلَى الْمِنْبَرِ [٣] اسْتَقْبَلْنَاهُ بِوُجُوهِنَا»). [٤] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ مُحَمَّدِ بْنِ الْفَضْلِ، وَهُوَ ضَعِيفٌ، ذَاهِبُ الْحَدِيثِ.

**ترجمه:** [١] عبدالله ابن مسعود ﷛ فرمايي[٢] چې رسول الله ﷺ چې به د خطبې په وخت منبر ته تشريف يوړو [٣] نو مونږ به خپل مخونه د حضور ﷺ طرف ته متوجه کول، [٤] امام ترمذي ﷫ دا روايت نقل کړي دي او ويلي يې دى چې مونږ دا حديث بغير د محمد بن الفضل دسند څخه علاوه دبل څه سند څخه نه پيژنو اوهغه ضعيف دي هغه ته حديث ياد نه پاتې کيدل.

**حل اللغات:-** ① اسْتَوَى: چه کله به برابر شو (په منبر).

**تسهيلات:- قوله: اسْتَقْبَلْنَاهُ بِوُجُوهِنَا**

**د خطبې په دوران کښې خطيب ته مخ کول:-** ددې حديث مبارك نه معلومه شوه چې خلقو دپاره دا مستحب دى چې هغوئ دې د خطبې په وخت دخطبې آوريدو دپاره خپل مخونه خطيب ته واړوى او ناسته دې اختيار کړى، اوداشان خطيب دې هم خلقو طرفته متوجه شى او خطبه دې اووائى.

[١]) اخرجه الترمذى كتاب الجمعة /باب فى استقبال الإمام إذا خطب (رقم-٥٠٩)

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [١٤١٥] خطبه کښې په ولاړه ورکول

١٤١٥-()[١٥] ١ «عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ: ٢ كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَخْطُبُ قَائِمًا ثُمَّ يَجْلِسُ، ٣ ثُمَّ يَقُومُ فَيَخْطُبُ قَائِمًا، ٤ فَمَنْ نَبَّأَكَ أَنَّهُ كَانَ يَخْطُبُ جَالِسًا فَقَدْ كَذَبَ ٥ فَقَدْ وَاللَّهِ صَلَّيْتُ مَعَهُ أَكْثَرَ مِنْ أَلْفَيْ صَلَاةٍ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ

**ترجمه:** ١ جابر ابن سمره ﷺ وايي ٢ چې رسول الله ﷺ به په ولاړه (اولني) خطبه ارشاد فرمايله بيا به کيناستلو ٣ بيا به يې (دويمه) خطبه هم په ولاړه ارشاد فرمايله ٤ که تا ته څوك دا اووائي چې حضور ﷺ به په ناسته خطبه ورکوله نو بلا شبه هغه سړي دروغجن دي ٥ قسم په الله ما د رسول الله ﷺ سره د دوه زره څخه زيات لمونځونه کړي دي. (مسلم)

**تسهيلات:-**

**قوله:** يَخْطُبُ قَائِمًا ثُمَّ يَجْلِسُ، ثُمَّ يَقُومُ فَيَخْطُبُ قَائِمًا:

**په قرآني آيت استشهاد:-** په قرآن کريم کښې ﴿ وَتَرَكُوكَ قَائِمًا ﴾ الفاظو سره په يقيني توګه معلوميږي چه د حضورپاك ﷺ خطبه به په ولاړه باندې وه. اسلام يوژوندي اوآباد مذهب دې ځکه چه د دې د اصول اوفروع نه معمولي شان خبره هم پټه نه ده. دلته اوګورئ چه په خطبه کښې د حضورپاك ﷺ په منبرباندې د قيام ذکرهم موجوددې.

**قوله:** وَاللَّهِ صَلَّيْتُ مَعَهُ أَلْفَيْ صَلَاةٍ:

**د مونځونو څخه مراد:-** د دوو زرو مونځونو نه عام مونځونه او جمعې مراددي صرف د جمعې مونځونه مرادنه دي ځکه چه د جمعې مونځ په مدينه منوره کښې شروع شوې وو اوهلته د حضورپاك ﷺ د ژوند مبارك موده لس کاله وه او په لسو کالو کښې د پنځوسونه زيات جمعات نه شي کيدې لهذا حضرت جابر ﷺ عام مونځونه مراد اخلي او په دې کلام سره د هغوی مقصد داخودل دی چه د حضورپاك ﷺ سره د هغوی اوږد رفاقت پاتې دې.

**د خطيب آداب:-**

① د خطيب د پاره مستحب دی چه د هغه په لاس کښې نيزه يا توره وی په کوم سره چه اشاره کيږي چه د دې دين احکام محفوظ دی ځکه چه د جهادعمل جاری دې.

② په شرح منيه کښې ليکلی دی چه کوم ښار د توری په زور فتح شوې وی لکه مکه نوهلته دې د جمعې په ورځ خطيب په خپل لاس کښې توره اخستوسره خطبه لولي. اوکوم ښارچه په صلح سره فتح شوې وی هلته دې بغير د توری نه خطبه لوستلې شی.

③ ينابيع کښې ليکلی دی چه دويمه خطبه لږ په رو آواز سره ورکول پکاردی.

[1] اخرجه مسلم فی کتاب الجمعة/باب ذکر الخطبتين قبل الصلاة وما فيهما من الجلسة (رقم-٣٥ - (٨٦٢)

**[١٤١٦]په ناسته د خطبې ورکولو کراهت**

١٣٦٣ـ()[١٦] ١ وَعَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ: أَنَّهُ دَخَلَ الْمَسْجِدَ ٢ وَعَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ أُمِّ الْحَكَمِ يَخْطُبُ قَاعِدًا. ٣ فَقَالَ: انْظُرُوا إِلَى هٰذَا الْخَبِيثِ يَخْطُبُ قَاعِدًا، ٤ وَقَدْ قَالَ اللهُ تَعَالَى: ﴿وَإِذَا رَأَوْا تِجَارَةً أَوْ لَهْوًا ٥ انْفَضُّوا إِلَيْهَا وَتَرَكُوكَ قَائِمًا﴾ [الجمعة: ١١]. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ١ د كعب ابن عجره ﷺ په باره کې منقول دي چې هغه يوه ورځ د جمعې په ورځ په مسجد کې په داسې وخت داخل شو ٢ کله چې عبدالرحمٰن ابن ام الحکم (چې د بني اميه څخه وو) په ناسته خطبه ورکوله ٣ نو کعب ابن عجره ﷺ اوويل (لږ) د دې خبيث طرف ته وګورئ چې په ناسته خطبه ورکوي ٤ حالانکه د الله تعالی ﷻ ارشاد دي وَإِذَا رَأَوْا تِجَارَةً أَوْ لَهْوًا انْفَضُّوا إِلَيْهَا وَتَرَكُوكَ قَائِمًا (يعني هر کله چې خلق سوداګري يا لوبه تماشه ويني ٥ نو د هغې طرف ته ورزغلي او تا دغسې ولاړ پريږدي). (مسلم)

**حل اللغات:**- ① انْفَضُّوا: خواره واره کيدل، په منډه ورتلل.

**تسهيلات:**- **قوله:** وَعَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ أُمِّ الْحَكَمِ يَخْطُبُ قَاعِدًا:

**په منکر باندې د رد کول او صحابه کرام:**- داسې دَبنو اميه نه وو دَوخت دَحاکم دَ طرف نه ګورنروو. ده په ناسته خطبه ورکوله په کوم چه دَ شان والاصحابه کرامو سختو الفاظو کښې اعتراض اوکړو او په منکرباندې ردکول دَ صحابه کراموېوامتيازي شان وو.

**قوله:** وَإِذَا رَأَوْا تِجَارَةً:

**د آيت شان نزول:**- په مدينه منوره کښې يوځل سخت قحط راغلو. هم دَ دغه قحط په وخت دَ شام نه يوقافلې غله راوړله مدينې ته راغله. دَ جمعې ورځ وه دَ جمات والوته چه کله معلومه شوه نودَ مجبورئی په وجه دَ قافلې طرف ته وريه منډه شو. حضورپاك ﷺ په منبرباندې ولاړ وو يوڅو صحابه کرام هم وو مګر اکثر بهر لاړل هم دې سره متعلق دا آياتونه نازل شو په کوم چه دَ حضورپاك ﷺ په منبرباندې دَ ولاړې بيان دې. الحمد لله دَ دين اسلام يويوشعبه اودَهغې پوره نبني نښانې محفوظ اومامون دی. دَ دنيادَ يومذهب والادَخپل نبی يا دينی پيشوا دَ حالاتو داسې کلکه نقشه نه شي پيش کولې نه هيڅ کله نه، دا نعمت صرف اسلام اواهل اسلام ته حاصل دې.

**[١٤١٧]په خطبه کښې د لاسونو خوزولو حکم**

١٣٦٤ـ()[١٧] ١ «وَعَنْ عُمَارَةَ بْنِ رُوَيْبَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: ٢ أَنَّهُ رَأَى بِشْرَ بْنَ مَرْوَانَ عَلَى الْمِنْبَرِ رَافِعًا يَدَيْهِ، فَقَالَ: ٣ قَبَّحَ اللهُ هَاتَيْنِ الْيَدَيْنِ، ٤ لَقَدْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مَا يَزِيدُ عَلَى أَنْ يَقُولَ بِيَدِهِ هٰكَذَا، ٥ وَأَشَارَ بِإِصْبَعِهِ الْمُسَبِّحَةِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

[١] ) اخرجه مسلم فى باب فى قوله تعالى: ﴿وإذا رأوا تجارة أو لهوا انفضوا إليها وتركوك قائما﴾ [الجمعة: ١١] (رقم-٣٩ - (٨٦٤)
[٢] ) اخرجه مسلم فى كتاب الجمعة /باب تخفيف الصلاة والخطبة (رقم) ٥٣ - (٨٧٤)



**ترجمه:** [١] د عماره ابن روبیه په باره کې منقول دي [٢] چې هغه یو ځل بشر ابن مروان په منبر (د خطبي په وخت) خپل لاسونو پورته کولو سره ولیدلو (څنګه چې نن صبا مقررین او واعظین د تقریر په دوارن کې د خطابت په جوش کې خپل لاسونه پورته کوي) نو وي فرمایل [٣] الله تعالی جَلَّ جَلَالُهُ دي دا دواړه لاسونه برباد کړي [٤] ما رسول الله ﷺ لیدلي دي چې حضور ﷺ به په خپل لاس سره د دې څخه زیاته اشاره نه کوله [٥] دي ویلو سره هغه د خپل شهادت په ګوتې سره اشاره وکړله. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① قَبَّحَ: برباد دې کړي، ② الْمُسَبِّحَةِ: مسواکه، دشهادت ګوته.

**تسهیلات:** -

## قوله : قَبَّحَ اللّٰهُ هَاتَيْنِ الْيَدَيْنِ :

په دې حدیث کښې دې صحابي دَ وخت حکمران ته په یومنکربانديې په سختو الفاظو اعتراض کړې دې. هغه سړی په خطبه کښې دواړه لاسونه دَ ضرورت نه زیات خوزول.

**په عادی عمل باندې د رټلو وجه:** - علماء کرامو لیکلی دی چه په خطبه کښې لاسونه خوزول یا اوچتول یانه اوچتول یو طبعي اوعادي معامله ده حضورپاك ﷺ به دَ خپل عادت مبارك مطابق صرف په ګوته سره اشاره فرمائیله زیات لاس به ئی نه خوزولو. په دغه شان عادتونو خپلولو کښې څوك په سختئی سره پابند کولې نه شي خوصحابه کرام چه دَ رسول الله ﷺ عاشقان وو هغوی دَ حضورپاك ﷺ په ادا اوانداز کښې لږشان بدلون هم نه شو برداشت کولې په دې وجه په عادی امر کښې خلاف ورزی کولو باندې ئې هغه سړې اوټوکلو اوسختې جملې ورته ارشاداوفرمائیلې. فجزاه الله خیرا.

### [١٤١٨] حضرت ابن مسعود رضي الله عنه او د نبی علیه السلام تابعداری

١٣١٨ – ()[١٨] [١] وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: [٢] «لَمَّا اسْتَوَى رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَوْمَ الْجُمُعَةِ عَلَى الْمِنْبَرِ قَالَ: [٣] " اجْلِسُوا " فَسَمِعَ ذَلِكَ ابْنُ مَسْعُودٍ فَجَلَسَ عَلَى بَابِ الْمَسْجِدِ، [٤] فَرَآهُ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ " تَعَالَ يَا عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ مَسْعُودٍ ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] حضرت جابر رضي الله عنه فرمایي [٢] چې رسول الله ﷺ (یو ځل) د جمعې په ورځ (د خطبي د پاره) په منبر ودریدلو او صحابه وُ ﷺ ته یي وفرمایل [٣] (د خطبي اوریدو د پاره کیني) عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه چې دا ارشاد واوریدلو هغه د مسجد په دروازه کښې کیناستلو [٤] حضور ﷺ چې هغه ولیدلو نو ورته یي وفرمایل چې اي عبدالله ابن مسعودا (رضي الله عنه) دلته راشه، (ابوداؤد)

[١] ) اخرجه ابوداود کتاب الصلاة،باب الإمام یکلم الرجل فی خطبته (رقم-١٠٩١)

**تسهيلات:-**

**قوله:** فَجَلَسَ عَلَى بَابِ الْمَسْجِدِ:

**اتباع نبوي او صحابه كرام:-** دَ صحابه كرامو رضي الله عنهم اطاعت ته اوګورئ چه غوږونو ته دَ "اجلس" آواز راغې نو بيا نه ګوري چه چاته وائي يا ځانې هم دَ ناستې دې که نه دې بلکه صرف حکم ته ګوري چه د کيناستو حکم شوې دې اوس بس کيناستل دي.

دلته حضرت عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه هم دغه شان کړي دي او جمات په دروازه کښې کيناستو بيا حضورپاك صلى الله عليه وسلم په شاندار الفاظوسره آواز کوي "تعال يا عبدالله بن مسعود رضي الله عنه" علماؤ ليکلي دي چه دا خبرې اترې به دَ خطبې شروع کيدونه وړاندې وي ځکه چه روستو په خطبه کښې خطيب هم خبرې نه شي کولې.

**فائده:** په دې حديث سره په واضحه توګه سره دا خبره ثابته شوه چه په خطبه کښې تحية المسجد جائزنه دي ګنې حضورپاك صلى الله عليه وسلم به ابن مسعود رضي الله عنه ته حکم فرمائيلو چه دوه رکعته اوکړه.

**[١٤١٩] دَ جمعې مونځ نه ملاويدلوپه صورت کښې دَ ماسپښين مونځ ادا کول**

٣٩ـ()[١٩] [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] "«مَنْ أَدْرَكَ مِنَ الْجُمُعَةِ رَكْعَةً فَلْيَصِلْ إِلَيْهَا أُخْرَى، [٣] وَمَنْ فَاتَتْهُ الرَّكْعَتَانِ فَلْيُصَلِّ أَرْبَعًا» [٤] " أَوْ قَالَ: "الظُّهْرَ". رَوَاهُ الدَّارَقُطْنِيُّ.[1]

**ترجمه:** [١] ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل [٢] کوم سړي چې د جمعې يو رکعت (د امام سره) لاندې کړي نو هغه دې ورسره دويم رکعت يو ځاى کړي (يعني دويم رکعت دې تنها ودريدو سره پوره کړي) [٣] او کوم سړي چې دواړه رکعاته لاندې نه کړي نو هغه ته پکار دي چې هغه څلور رکعاته وکړي [٤] يا وي فرمايل چې د ماسپښين مونځ دې پوره کړي. (دار قطني)

**تسهيلات:- قوله:** وَمَنْ فَاتَتْهُ الرَّكْعَتَانِ فَلْيُصَلِّ أَرْبَعًا:

**د رکعتينو نه لاندې کول:-** يعنى که دَ جمعې په دوه رکعته کښې څه ملاؤنه شى نه تشهد ملاؤشو نه سجده نواوس دې سړى ته دَ جمعې دَ مونځ په ځائى دَ ماسپښين څلور رکعته مونځ کول پکاردى. دَدې حديث دَ ظاهرى الفاظونه هم جمهورو استدلال کړې دې چه دَ يو رکعت ملاويدل دَ جمعې دَ حاصولول دَپاره ضرورى دى. دَدې مسئلې تفصيل وړاندې تير شوې دې

[1] اخرجه الدار قطنى فى باب: فيمن يدرک من الجمعة رکعة أو لم يدرکها (رقم-١٥٩٥)

# [۶۲/۴۶]بَابُ صَلَاةِ الْخَوْفِ]

## دَويرې دَ مونځ بيان

**خلاصة الباب:-**

**فيه ستة احاديث مشتملة على ثلاث مسائل:**

① كيفية صلوة الخوف: ١، ٢، ٣، ۴، ۵.

② كيفية الصلوة وقت شدة الخوف: ١.

③ وقت نزول حكم صلوة الخوف : ۶.

**د قرآن څخه د صلاة الخوف ثبوت:-** قال الله تعالى ﴿ وَإِذَا كُنتَ فِيهِمْ فَأَقَمْتَ لَهُمُ الصَّلَوٰةَ فَلْتَقُمْ طَآئِفَةٌ مِّنْهُم مَّعَكَ وَلْيَأْخُذُوٓا۟ أَسْلِحَتَهُمْ فَإِذَا سَجَدُوا۟ فَلْيَكُونُوا۟ مِن وَرَآئِكُمْ وَلْتَأْتِ طَآئِفَةٌ أُخْرَىٰ لَمْ يُصَلُّوا۟ فَلْيُصَلُّوا۟ مَعَكَ وَلْيَأْخُذُوا۟ حِذْرَهُمْ وَأَسْلِحَتَهُمْ وَدَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ لَوْ تَغْفُلُونَ عَنْ أَسْلِحَتِكُمْ وَأَمْتِعَتِكُمْ فَيَمِيلُونَ عَلَيْكُم مَّيْلَةً وَٰحِدَةً وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ إِن كَانَ بِكُمْ أَذًى مِّن مَّطَرٍ أَوْ كُنتُم مَّرْضَىٰٓ أَن تَضَعُوٓا۟ أَسْلِحَتَكُمْ وَخُذُوا۟ حِذْرَكُمْ إِنَّ ٱللَّهَ أَعَدَّ لِلْكَٰفِرِينَ عَذَابًا مُّهِينًا ﴾ [سورت نساء]

**د صلاة الخوف مشروعيت کښې اقوال:-** دَ صلوة خوف مشروعيت کله شوې؟ په د کښې مختلف اقوال دي:

① دَ بعضې علماؤ قول دې چه دَ صلوة خوف مشروعيت په څلورمه هجرى کښې شوې وو

② بعضې پنځم　　③ اوبعضې شپږم

④ اوبعضو دَ اووم هجرئى قول کړې دې

⑤ جمهوردَ څلورمې هجرئى قول ته ترجيح ورکوى.

**د تولو څخه اول د صلاة الخوف د ادا کولو مقام:-** دَ ټولونه اول دا مونځ دَمکې اوجدې په مينځ کښې يومقام کښې شوې دَ کوم نوم چه عسفان دې. په حديث کښې داشان تصريح ده چه ضجنان غراو عسفان په مينځ کښې په رومبى ځل صلوة خوف شوې دې. دَ کافرانودَ ويرې اودَ دښمن دَحملې کولوپه وخت چه کوم مونځ اداکولې شى هغې ته صلوة خوف وائى. دَ ويرې

**د قرآن او حديث نه د صلاة الخوف ثبوت:-** دا مونځ دکتاب الله نه ثابت دې اودَ يوحدپورې په کتاب الله کښې دَدې دَاداکولوطريقه هم بيان کړې شوې ده. دا مونځ دَ سنت رسول الله ﷺ نه هم ثابت دې

**د صلاة الخوف مختلفې طريقې:-** البته دَ حالاتو اومقاماتو دَ وجې دَ دې مختلف طريقې راغلې دي.

① امام ابوداؤد رحمه الله په خپل سنن کښې دَدې مونځ اته طریقې بیان کړې دی.
② ابن حبان رحمه الله نهه طریقې ذکر کړې دی.
③ ابن حزم رحمه الله دَدې متعلق مستقل جزلیکلې دې په دې کښې هغوی څوارلس طریقې بیان کړې دی
④ بعضو ١۶ او ١٧ طریقو پورې بیان کړې دی. په دې باندې دَامت اتفاق او اجماع ده چه صلوة خوف یو مشروع او جائز مونځ دې او دَ حضور پاك ﷺ دَعمل نه ډیر ځلې ثابت دې.

**د نبی کریم ﷺ د وفات نه پس د صلاة الخوف په مشروعیت کښې مذاهب**

① دَ حضور پاك ﷺ دَ وفات نه پس هم خلفاء راشدین او صحابه ﷺ په دور کښې دَدې مشروعیت باقی پاتې دې په دې باندې هم دَجمهورو اتفاق دې
② دَامام ابو یوسف رحمه الله نه یو روایت دې هغه فرمائی چه صلوة خوف حضور پاك ﷺ سره خاص وو کله چه دَ حضور پاك ﷺ انتقال اوشو نو دا مونځ مشروع پاتې نه شو.

**داول فریق دلیل:** - دَ قرآن آیت ﴿ وَاِذَا كُنْتَ فِيْهِمْ فَاَقَمْتَ لَهُمُ الصَّلٰوةَ ﴾ د دوی مستدل دې. چه په دې کښې په خاص توګه حضور پاك ﷺ ته خطاب دې او دَ حضور پاك ﷺ موجودګئی طرف ته واضح اشاره ده لکه چه دَ صلوة خوف دَپاره دَ حضور پاك موجودګی قید او شرط دې. کله چه حضور پاك ﷺ په دنیا کښې پاتې نه شو نو حضور پاك ﷺ سره مخصوص دا مونځ هم پاتې نه شو.
② دَحضور اکرم په موجودګئی به خلقو دَ حضور پاك ﷺ نه علاوه بل چا پسې مونځ کول نه شو برداشت کولې لهذا دَ جدا جدا جمعو ګنجائش نه وو. دَ حضور پاك ﷺ دَ وصال نه پس صورت داسې پاتې نه شو لهذا دَ یوې جمع په ځائی جمع ځان ځانله کولې شی نو دَ صلوة خوف ضرورت پاتې نه شو.

**د مذهب یوسفی تضعیف:** - لیکن په دې مسئله کښې دَامت نه چا هم دَ امام ابو یوسف رحمه الله ملګرتیا نه ده کړې په دې وجه دَهغوی دا رائې صرف دَ ده نه نقل کړې شوې خبرو کښې شمیر کړې شوې ده.

**د صلاة الخوف ادا کولو په طریقه کښې مذاهب**

بیا دَ جمهور فقهاؤ په نیز دَ صلوة خوف دَ ادا کولو په طریقو کښې څه اختلاف دې.
① امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائی چه په احادیثو کښې څومره طریقې راغلی دی دَ موقع مقام حالت او زمانې په وجه ټولې طریقې جائز دی. علماء وائی چه دَ یو دوو طریقو نه علاوه دَ امام احمد رحمه الله په نیز ټولې طریقې جائز دی.
② دَ امام مالك رحمه الله او امام شافعی رحمه الله په نیز هم دَ صلوة خوف ټولې طریقې جائز دی البته دَهغوی په نیز یوه طریقه راجح او خوښه کړې شوې ده. هغه داسې چه پیش امام به خلق په

دوو ډلوکښې تقسيم کولوسره يوه ډله دَدښمن په مقابله کښې اودره وی او يوې ډلې سره به يو رکعت اوکړی دا ډله دې خپل دويم رکعت اوکړی اولاړه دې شی اودَ مقابلې والا ډله دې مانځه له راؤليږی اوامام دې دَهغوی په انتظار کښې ولاړوی کله چه هغه ډله راشی نوامام سره دې يو رکعت اوکړی. اوس امام مالك رحمه الله فرمائی چه امام دې دَقعدې نه پس سلام اوګرځوی اوفارغ دې شی مګر امام شافعی رحمه الله فرمائی چه امام دې سلام نه ګرځوی بلکه دَمقتديانو انتظار دې اوکړی کله چه دا دويمه ډله خپل مونځ مکمل کړی نوامام دې هغوی سره يوځائی سلام اوګرځوی اودَ مانځه نه دې فارغ شی. دَ امام مالك رحمه الله امام شافعی رحمه الله په منيځ کښې دغه لږشان فرق دې. په دې طريقه کښې دا خوبی خوشته چه په دې کښې دَ مقتديانو په مانځه کښې تګ راتګ نشته دې ليکن په دې کښې دا نقصان شته چه مسئله به اولټه شی هغه داسې چه امام دَمقتديانو انتظار کوی نوپيش امام به "شا" امام جوړشی. دويم نقصان دا چه ړومبې ډلې مقتديان دَ خپل امام نه وړاندې دَ مانځه نه فارغ کيږی داهم دَ مسئلې اولټه والې دې چه امام ترډغه وخته پورې په مانځه کښې دې اومقتديان فارغ شو مورچه اوميدان جنګ ته اورسيدل.

③ دَ احنافو په نيزدَ صلوٰة خوف يوه طَريقه په اصل کتابونو کښې ذکرده او يوه طريقه په شروحاتو کښې ذکرده دواړه طريقې غوره کړې شوی دی.

**د حنفی متونو د صلاة الخوف طريقه:** –دَ احنافو په کتابونو کښې چه په اصل کتاب کښې کومه طَريقه ذکرده هغه داسې ده چه امام دې ټول خلق په دوو ډلوکښې تقسيم کړی. اوله ډله دې دَمونځ طرف ته راشی اودويمه ډله دې دَښمن په مقابله کښې اودريږی. اوله ډله دې يو رکعت مونځ امام سره اوکړی او دَدښمن دَمقابلې دَپاره دې هم دَ مانځه په حالت کښې مورچې طرف ته لاړه شی. دَهغه ځائی نه دې دويمه ډله راشی اوامام سره دې يو رکعت اوکړی. امام دې دَ قعدې نه پس سلام اوګرځوی فارغ دې شی ځکه چه دادَ سفردَ حالت مونځ دې کوم چه دوه رکعته دې. بهرحال دا ډله دې هم دَ مانځه په حالت کښې مورچې اودَ جنګ ميدان ته لاړه شی اودَهغه ځايه دې ړومبې ډله راشی خپل دويم رکعت دې پوره کړی لاړدې شی او هغه بله ډله دې راشی خپل مونځ دې مکمل کړی. په دې طريقه کښې تګ راتګ ډير دې اودا طريقه قرآن حکم ته ډيره نيزدې ده ځکه چه دَ قرآن په آيت کښې هم زيات تګ راتګ ذکردې. احنافو هم دَدې ابن عمر رضی الله عنه دَ حديث نه دا طريقه اخستې ده.

چونکه دَ مانځه باره کښې دا فيصله شوې ده چه په کوم ځائی دې شروع کړې هم هلته به ئې ختموې په دې وجه چه تګ راتګ زيات شوځو دلته به دا خيال ساتل وی چه ړومبې ډله کوم وخت خپل دويم رکعت اوکړی نوهغه به قرآءت نه وی بلکه خاموش به ولاړوی ځکه چه هغوی لاحقين دی او لاحق په خپل مونځ کښې قراءت نه شی کولې.

**د حنفی شروحاتو د صلاة الخوف طریقه:** -دَ احنافودَ شرحو کتابونو کښې چه کومه مختار طریقه لیکلې ده هغه داده چه دویمه ډله کوم وخت یو رکعت اوکړی نودَ مورچې طرف ته دې بغیرد مونځ نه نه ځی بلکه خپل دویم رکعت دې پوره کړی بیادې ځی. اوس دې دواړو طریقوته دَ احنافو په نیز غوره څکه وئیلی شوی دی چه په اول طریقه کښې تګ راتګ زیات دې او په دویمه طریقه کښې سره دَدې چه نقل وحرکت کم دې لیکن په دې کښې دا نقصان دې چه دَ لاحقین نه مسبوقین وړاندې فارغ شو حالانکه لاحقینوته دَ اصولو مطابق دَ مسبوقین نه وړاندې فارغ کیدل پکاردی. غرض دا چه په دواړو طریقو کښې څه خوبیانې او څه نقصانات دی لهذا دواړه په مختار کیدو کښې برابر دی.

**نوټ:** -دامام احمد رحمه الله په نیز چونکه ټولې طریقې جائز دی څکه د هغوی د دلائلو ذکر کولو ته ضرورت نشته.

**د دویم فریق دلیل:** -دَ مشکاة حدیث نمبر (١٤٢١) د دوی مستدل دې چه دَحضرت یزیدبن رومان رضی الله عنه نه روایت دې اوبخاری رحمه الله دا دَ سهل بن حثمه رضی الله عنه نه روایت کړې دې.

**د دویم فریق د د لیل جواب:** -په مانځه کښې تګ راتګ او نقل وحرکت کول دَ شریعت دَ قواعدو په رڼا کښې دَ مجبورئی په وخت صحیح دی او مشهوراومعروف دی لکه چه دَ مار لړم دَ وژلودَپاره یا دَ بې اودس دَپاره دَ اودس تل راتلل ثابت دی. خوشوافع اومالکیه چه کومه طریقه خپله کړې ده هغه خوداَصول امامت خلاف ده او په دې کښې مسئله اولټه ده چه امام تابع کیږی اودَ مقتدی تابعدار کیږی لهذا هغه طریقه افضل نه ده بلکه کومه طریقه چه مونږ اختیارکړې ده هغه افضل ده. بهرحال دادَ اولی اوغیراولی اختلاف دې دَ جواز اوعدم جواز اختلاف نه دې.

**د دریم فریق دلیل:** -دَ دې باب رومبی حدیث د دوی مستدل دې کوم چه دَ حضرت ابن عمر رضی الله عنهما نه نقل دې. دَ ابن عمر رضی الله عنهما دا روایت دَ قرآن کریم سیاق اوسباق سره ډیر نیزدې دې لهذا دَ احنافو غوره طریقه قرآن ته ډیره نیزدې ده.

**دوه غیر معمول بها طریقې:** -اوپه دې ټولو طریقوکښې دوه طریقې داسې دی په کوم چه عمل ممکن نه دې.

① اوله طریقه داده چه هره ډله دې یویورکعت اوکړی لاړه دې شی او دَ امام به دوه رکعته شی اودَ قوم به یویورکعت شی دا طریقه دَ جمهورو په نیزجائزنه ده اګرچه امام احمدبن حنبل رحمه الله دې ته هم جائزوائی. په دې طریقه کښې مشکل دادې چه یو رکعت مونځ په شریعت کښې مشهور او معروف نه دې.

② دویمه غیرمعمول به طریقه داده چه هره ډله دې دوه دوه رکعته اداکړی دَ امام څلوررکعته شو اودَ مقتدیانو دوه دوه رکعته شو. په دې کښې مشکل دادې چه حضورپاك

ﷺ دوو رکعتو باندې سلام ګرځولې دې که چرې داد مسافر مونځ وو نو څلور رکعتـه ئـې ولې کړې اوکه د دمقيم مونځ وو نو په مينځ کښې سلام ولې ګرځولې دې؟ بهرحال په دې کښې به دا تاويل کولې کيږي چه داد هغه وخت خبره ده چه فرض مونځ دوه ځل اداکيدې شو.دا طريقه صاحب مشکوة د فصل ثانی رومبی حديث نمبر(١٤٢٣) کښې د حضرت جابر ﷺ د روايت په حواله سره ذکرکړې ده هم هلته ددې نوره تشريح توضيح اوتوجيه ذکر ده.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [١٤٢٠] د صلاة الخوف طريقه

١٤٢٠-()[١] [١] عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ عَنْ أَبِيهِ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ، قَالَ: [٢] «غَزَوْتُ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-قِبَلَ نَجْدٍ، [٣] فَوَازَيْنَا الْعَدُوَّ، فَصَافَفْنَا لَهُمْ، [٤] فَقَامَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-يُصَلِّي لَنَا، [٤] فَقَامَتْ طَائِفَةٌ مَعَهُ، وَأَقْبَلَتْ طَائِفَةٌ عَلَى الْعَدُوِّ، [٥] وَرَكَعَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-بِمَنْ مَعَهُ وَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ،

**ترجمه:** [١] سالم ابن عبدالله ابن عمر ﷺ د خپل پلار (عبدالله ابن عمر ﷺ) څخه روايت کوي [٢] چې مونږ (يو ځل) د رسول الله ﷺ سره د نجد طرف ته د جهاد د پاره لاړو [٣] (کوم وخت چې) مونږ دښمن ته مخامخ شو نو مونږ د هغوئ (د مقابل کيدو) د پاره صفونه وتړل [٤] حضور ﷺ مونږ ته د لمانځه راکولو د پاره ودريدلو [٥] نو يو جماعت د حضور ﷺ سره (د لمانځه کولو د پاره) ودريدلو او بل جماعت د دښمن مد مقابل ودريدلو [٥] حضور ﷺ د هغه خلقو سره چې د حضور ﷺ سره (د لمانځه په جماعت کي) شريك وو يو رکوع وکړله او دوه سجدې يې وکړلې.

**حل اللغات:** - ① نَجْدٍ: ما ارتفع من الارض وصلب: يعنی د زمکې اوچته حصه.خو دلته د يوځای نوم مراد دی. ② وَازَيْنَا: فوازينا: دا صيغه د موازات نه متکلم مع الغير صيغه ده. دمدمقابل کيدو په معنی کښې ده. ③ صَافَفْنَا: صفونه مو جوړکړل.

[١] ثُمَّ انْصَرَفُوا مَكَانَ الطَّائِفَةِ الَّتِي لَمْ تُصَلِّ، [٢] فَجَاءُوا، فَرَكَعَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-بِهِمْ رَكْعَةً، [٣] وَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ، ثُمَّ سَلَّمَ، [٤] فَقَامَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمْ، [٥] فَرَكَعَ لِنَفْسِهِ رَكْعَةً، وَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ». [٦] وَرَوَى نَافِعٌ نَحْوَهُ، [٧] وَزَادَ: فَإِنْ كَانَ خَوْفٌ هو أَشَدَّ مِنْ ذَلِكَ صَلَّوْا رِجَالًا، [٨] قِيَامًا عَلَى أَقْدَامِهِمْ، [٩] أَوْ رُكْبَانًا مُسْتَقْبِلِي الْقِبْلَةِ، أَوْ غَيْرَ مُسْتَقْبِلِيهَا، [١٠] قَالَ نَافِعٌ: لَا أُرَى ابْنَ عُمَرَ ذَكَرَ ذَلِكَ إِلَّا عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

---

[١] ) اخرجه البخاری فی ابواب صلاة الخوف (رقم-٩٤٢) والنسائی کتاب صلاة الخوف (رقم-١٥٢٩) والدارمی کتاب الصلاة/باب فی صلاة الخوف

**ترجمه:** [١] بیا هغه خلق (چې د حضور ﷺ سره په لمانځه کې وو) د هغه خلقو ځای ته ورغلل چې هغوئ مونځ نه وو کړي [٢] هغه راغلل (او د حضور ﷺ سره په لمانځه کې شریك شو) نو حضور ﷺ د هغه خلقو سره یوه رکوع اوکړه [٣] او دوه سجدې یې وکړلې بیا یې سلام وګرځولو [٤] بیا دا خلق ودریدل [٥] او هر یو خپله یوه یوه رکوع او دوه دوه سجدې پوره کړې [٦] نافع رحمه الله هم دغسې روایت بیان کړې دې [٧] خو دومره یې نور زیات بیان کړي دي چې که (عین د جنګ حالت وو او) خوف د دې څخه هم زیات وو (چې په مذکوره طریقې سره مونځ کول ممکن نه وي) نو خلق دې پیاده مونځ وکړی [٨] په ولاړه ولاړه [٩] یا که (پیاده نشې کیدې نو) په سوارلۍ باندې (که ممکنه وي نو) د قبلې طرف ته (او که ممکنه نه وي نو) کوم طرف ته چې مخ کړې مونځ دې وکړي [١٠] نافع رحمه الله وایې چې زما خیال دې چې ابن عمر رضي الله عنهما به دا الفاظ د رسول الله ﷺ څخه نقل کړې وې (بخاري)

**د راوي مختصر تعارف:**- نوم سالم ابوعمر کنیت. دَ حضرت عمر رضي الله عنه په زمانه کښې چه دَ ایران بادشاه کومې جینکئی راګیرې کړې شو په هغې کښې یوه حضرت عبدالله رضي الله عنه ته ورکړې شوه او حضرت سالم رحمه الله هم دَ هغې نه پیداشو. (٢) په تفسیر حدیث او فقه کښې خپل مثال پخپله وو.(یعنی د ده پشان څوک نه وو) امام مالك رحمه الله به فرمائیل چه دَ سالم په زمانه کښې دَ هغهٔ نه زیات تقوی دار اود سلف صالحین په شان څوك نه وو.(٣) علامه ذهبي رحمه الله فرمائی سالم فقهی حجت دې.دَهغه مخصوص علماؤنه وودکومو ذات چه دَعلم اوعمل مجموعه وه.(٤)

علامه نووی رحمه الله فرمائی دَ سالم امامت جلالت زهد او دَ الله تعالی نه ویره اوپه اوچته مرتبه باندې ټول متفق دی. (٥) دَ هغوی ژوندډیر ساده وو په هغوی کښې تکلف اوخان خودل هډو وونه.حافظ ذهبی رحمه الله لیکی دهغوی ژوند ډیر ساده وو دَ ورئ جامې به ئې اغوستلې دَ ټولوجامو قیمت به دوه درهمونه زیات نه ووپه خوراك کښې به ئې صرف روټئی او دَ زیتونوتیل وو.

**وفات:**- ذی الحجه ١٠٦ هـ کښې مدینه منوره کښې وفات شو. هشام بن عبدالملك چه دَ حج نه پس مدینې ته راغلې ووهغوی ئې دَ جنازې مونځ اوکړو په جنازه کښې ډیر زیات خلق وو. دَ جنت البقیع په میدان کښې جنازه اداکړې شوه (٦) دَ نورو حالاتودپاره اوګورئی① طبقات ابن سعد ١٤٨/٥② تذکرة الحفاظ ٧٧/١ ③ابن خلکان ١٩٨/١ ④ تهذیب الاسماء ٧٧/١ ⑤ تهذیب التهذیب ٤٣٧/٣ وغیره.

**تسهیلات:**-

**قوله: فَصَافَفْنَا لَهُمْ:** یعنی دَ دښمن په مقابله کښې دَ جنګیدلودپاره مونږ دَهغوی سره دَ مقابلې کولودپاره صفونه اوتړل

**قوله: قِبَلَ نَجْدٍ:**

**د نجد مصداق:** -نجد اوچتې زمکې ته وائي دَ نجد نه دلته مراد نجد حجاز دې نجد يمن نه دې نن صبا په سعودی باندې دَ نجد دَ اوسيدونکو حکومت دې دَ رياض په اطراف کښې نجد دې.

**قوله: فَرَكَعَ لِنَفْسِهِ:**

**د صلاة خوف يوه طريقه:** -په حديث کښې چه دا دَ ويرې دَمونځ کومه طريقه ذکر ده دا دَ احنافو په نيز مختار ده اودا اقرب الى القرآن ده. په دې حديث کښې سره دَدې چه هغه پوره طريقه موجود نه ده کومه چه احناف اخستې ده ليکن په حضرت ابن عباس رضي الله عنهما باندې موقوف يو حديث کښې هغه طريقه په مکمل توګه باندې موجود ده کومه چه امام محمد رحمه الله په خپل کتاب الآثار کښې ذکر کړې ده.

احناف فرمائی چه کله چرته دَ ماښام مونځ وی نواوله ډله دې دوه رکعته اوکړی لاړ دې شی او دویمه ډله به يو رکعت کوی. "رجالا قياما على اقدامهم" يعنی چه ويره زياته سخته شی نو بيا پيدل تلوتلو کښې مونځ کولې شی په دې کښې به دَ رکوع او سجدې دَپاره اشاره کولې شی او که چرې سور وی نو هغه به په سورلئی باندې اشاره سره فرض مونځ کوی که دَقبلې طرف ته ئی مخ وی او که نه وی.

**د صلاة الخوف مذکوره طريقه د مطلوب دپاره کيدل:** -ائمه احناف فرمائی چه دَدې په شان صورت کښې مونځ هغه سړې کولې شی کوم چه مطلوب وی يعنی دښمن هغه پسې لګيدلې وی او وريسې شاته منډې وهی. احناف فرمائی دَ طالب دَپاره داسې مونځ کول جائز نه دی يعنی کوم سړې چه دښمن پسې لګيدلې وی او دښمن ترې وړاندې منډې وهی ددې حديث نه معلومه شوه چه فرض مونځ څومره اهم څيز دې اوداد الله تعالى څومره اهم حکم دې چه په دې حالت کښې هم نه شی پريخودې. بل دَدې حديث نه دا هم معلومه شوه چه جهاد څومره اهم حکم دې څکه چه دَ عبادتونو ټولې نقشې ماتيږی ليکن جهاد موقوف يا مؤخر کولې نه شی. دَ دې حديث نه دا هم معلومه شوه چه فرض مونځ په يو وخت کښې په دويم ځل نه شی کيدې ګنی امام به جدا جدا دوه ځل ورکولو.

**په مذکوره طريقه د مونځ کولو صورت:** -علماء ليکی چه دَ صلوة خوف دا صورت هغه وخت دې چه کوم وخت په يو امام پسې خلق په مونځ کولو اصرار کوی او په بل امام پسې شاته نه کول غواړی. لکه څنګه چه دَ حضورپاك ﷺ په زمانه کښې وو. ليکن که په جدا جدا امامانو پسې خلق مونځ کوی نو بيا به دَ دې صلوة خوف په دې صورت کښې ضرورت نه پيښيږی. بهرحال دا حديث په جزوی توګه دَ احنافو دليل دې.

## [١٤٢١] د ويرې د مونځ دويمه طريقه

١٤٢١ —(١)[٢] ١ وَعَنْ يَزِيدَ بْنِ رُومَانَ، «عَنْ صَالِحِ بْنِ خَوَّاتٍ، عَمَّنْ ٢ صَلَّى مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - "يَوْمَ ذَاتِ الرِّقَاعِ صَلَاةَ الْخَوْفِ: ٣ أَنَّ طَائِفَةً صَفَّتْ مَعَهُ، ٤ وَطَائِفَةٌ وِجَاهَ الْعَدُوِّ، ٥ فَصَلَّى بِالَّتِي مَعَهُ رَكْعَةً، ٦ ثُمَّ ثَبَتَ قَائِمًا، وَأَتَمُّوا لِأَنْفُسِهِمْ، ٧ ثُمَّ انْصَرَفُوا، فَصَفُّوا وِجَاهَ الْعَدُوِّ،

**ترجمه:** ١ يزيد ابن رومان دحضرت صالح ابن خوات څخه او هغه د هغه سړي څخه نقل کوي ٢ چې هغه د رسول الله ﷺ سره د ذات الرقاع په ورځ د خوف مونځ کړي وو (د خوف د لمانځه دا طريقه نقل کوي) ٣ چې (يوه ورځ) يو جماعت د رسول الله ﷺ سره (د لمانځه د پاره) صف بندي وکړه ٤ او دويم جماعت د دښمن په مقابله کې صف بسته شو ٥ نو حضور ﷺ د هغه جماعت سره چې د حضور ﷺ سره وو يو رکعت مونځ يې وکړو ٦ حضور ﷺ د يو رکعت پوره کولو سره ودريدلو او هغه جماعت خپله خپل مونځ پوره کړو (يعني دويم رکعت جماعت خپله تنهاء وکړو) ٧ بيا د دې څخه وروسته دا جماعت (د لمانځه څخه فارغيدو سره) واپس شو او د دښمن مقابل صف بسته شو

**حل اللغات:** - ① ذَاتِ الرِّقَاعِ: "رقاع" د کپړې ټکړو او چيړرو ته وائي چونکه په دې غزوه کښې صحابه کرامو ﷺ سره خو يا څپلنې نه وې يا شليدلې وې، يا هغه علاقه مختلفې ټکړې او رنګونه وو، په دې وجه دغه غزوه ته ذات الرقاع اووئيلى شو. ② وِجَاهَ: مخامخ (دشمن ته).

١ وَجَاءَتِ الطَّائِفَةُ الْأُخْرَى، ٢ فَصَلَّى بِهِمُ الرَّكْعَةَ الَّتِي بَقِيَتْ مِنْ صَلَاتِهِ، ٣ ثُمَّ ثَبَتَ جَالِسًا وَأَتَمُّوا لِأَنْفُسِهِمْ، ثُمَّ سَلَّمَ بِهِمْ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. ٤ وَأَخْرَجَ الْبُخَارِيُّ بِطَرِيقٍ آخَرَ عَنِ الْقَاسِمِ، عَنْ صَالِحِ بْنِ خَوَّاتٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ أَبِي حَثْمَةَ، عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -.

**ترجمه:** ١ او هغه جماعت چې د دښمن په مقابل کښې صف بسته وو (د لمانځه د پاره) راغې ٢ نو حضور ﷺ هغه دويم رکعت چې باقي پاتې شوې وو د دې جماعت سره وکړو ٣ او (په التحيات کې) کيناستلو او هغه جماعت خپل هغه اولني رکعت چې باقي وو هغه يې تنهاء اداء کړو او په التحيات کې د حضور ﷺ سره شريك شو بيا رسول الله ﷺ د هغوئ سره سلام وګرځولو، بخاري ومسلم، ٤ بخاري رحمه الله دا روايت د يو بل سند سره نقل کړي دي يعنى داسې چې قاسم د صالح ابن خوات څخه او هغه د حضرت سهل ابن ابي حثمه څخه او هغه د حضور ﷺ څخه نقل کوي.

[1]) اخرجه البخاری فی کتاب المغازی/باب غزوة ذات الرقاع (رقم-٤١٢٩) ومسلم کتاب صلاة/باب صلاة الخوف (رقم-٣١٠ - (٨٤٢) وابوداود کتاب الصلاة،باب من قال: إذا صلى رکعة «وثبت قائما أتموا لأنفسهم رکعة. ثم سلموا، ثم انصرفوا فکانوا وجاه العدو. واختلف فی السلام» (رقم-١٢٣٨) والترمذی کتاب السفر/باب ما جاء فی صلاة الخوف (رقم-٥٦٥)والنسائی کتاب صلاة الخوف (رقم-١٥٣٧)

**تسهيلات:-**

**قوله: يَوْمَ ذَاتِ الرِّقَاعِ:**

**د ذات الرقاع د غزوه پس منظر:-** دا دَ يو غزوه نوم دې چه په ۵ هجرى كښې واقع شوې وه. چونكه په دې غزوه كښې صحابه كرامو رضي الله عنهم سره خو يا څپلئ نه وې يا شليدلې وې او هغوى په خپې ابله خپو سفر كولو په كوم سره چه دَ هغوى خپې زخمى شوې وې او په هغې كښې سورې شوى وو. نو هغوى خپو پورې دَ كپړو چيرې تړلې وې په دې وجه دَ دغه غزوه نوم ذات الرقاع شو. بعضې علماء وائى چه په كومه زمكه باندې مجاهدينو سفر كولو په هغه زمكه كښې مختلف رنګونه او ټكرې وې په دې وجه دې غزوه ته ذات الرقاع ونيلې شوې.

**د امام مالک او شافعى مستدل:-** په دې حديث كښې چه دَ ويرې دَ مونځ كومه طريقه ذكر ده دا دَ امام مالك رحمه الله او امام شافعى رحمه الله دَ مسلك موافق ده. دا حديث دَ هغوى دليل دې لكه څنګه چه دې نه مخكښې حديث دَ احناف دليل دې. او دَ حنابله په نيز ټولې طريقې جائز دى.

**[١٤٢٢] د نبى عليه السلام حلم (صبر) او بهادرى**

١٤٢٢-(٣) [١] وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [٢] «أَقْبَلْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - حَتَّى إِذَا كُنَّا بِذَاتِ الرِّقَاعِ، [٣] قَالَ: كُنَّا إِذَا أَتَيْنَا عَلَى شَجَرَةٍ ظَلِيلَةٍ تَرَكْنَاهَا لِرَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٤] قَالَ: فَجَاءَ رَجُلٌ مِنَ الْمُشْرِكِينَ وَسَيْفُ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مُعَلَّقٌ بِشَجَرَةٍ، [٥] فَأَخَذَ سَيْفَ نَبِيِّ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَاخْتَرَطَهُ،

**ترجمه:** [١] جابر رضي الله عنه فرمايي [٢] چې مونږ د رسول الله ﷺ سره جهاد (غزا) ته روان شو تر دې چې ذات الرقاع ته ورسيدو [٣] جابر رضي الله عنه وايي چې (زمونږ دا قاعده وه چې) كله به مونږ څه سايه (سورې) داره ونه موندله نو مونږ به د رسول الله ﷺ د پاره پريښوده (چې حضور ﷺ د هغې په سايه (سورې) كې استراحت يعنى آرام وكړي) [٤] نو داسې وشوه چې په ذات الرقاع كې رسول الله ﷺ د يوې ونې لاندې آرام كولو چه يو مشرك راغې او هغه د حضور ﷺ توره چې په ونه كې ځوړنده وه، [٥] راښكته كولو سره د تيكې څخه راوښكله (حضور ﷺ په دې خبر نه شو ځكه چې يا خو حضور ﷺ اوده وو يا د دې طرف څخه بې پروا وو)

**حل اللغات:-** ① ظَلِيلَةٍ: سورى والا وونه، ② فَاخْتَرَطَهُ: اختراط توره دَ تيكې نه راويستل او خودلو په معنى كښې دې.

[١] فَقَالَ لِرَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَتَخَافُنِي؟ قَالَ: "لَا". [٢] قَالَ: فَمَنْ يَمْنَعُكَ مِنِّي قَالَ: "اللَّهُ يَمْنَعُنِي مِنْكَ، [٣] فَتَهَدَّدَهُ أَصْحَابُ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَغَمَدَ السَّيْفَ وَعَلَّقَهُ، [٤] قَالَ: فَنُودِيَ بِالصَّلَاةِ، فَصَلَّى بِطَائِفَةٍ رَكْعَتَيْنِ، [٥] ثُمَّ تَأَخَّرُوا وَصَلَّى بِالطَّائِفَةِ الْأُخْرَى رَكْعَتَيْنِ. [٦] قَالَ: فَكَانَتْ لِرَسُولِ اللَّهِ -

[١] اخرجه البخارى فى كتاب المغازى/باب غزوة ذات الرقاع (رقم-٤١٣٦) ومسلم كتاب صلاة/باب صلاة الخوف (رقم) ٣١١-(٨٤٣)

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَرْبَعُ رَكَعَاتٍ، وَلِلْقَوْمِ رَكْعَتَانِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] هغه مشرك حضور ﷺ ته اوویل چې آیا ته زما څخه ویرېږې حضور ﷺ ورته وفرمایل چې نه (زه ستا څخه ولې ویرېږم هر کله چې زما د رب څخه ماسوا بل څوك ما ته نه څه نفع رسولي شي نه څه نقصان) [۲] نو هغه مشرك اوویل بیا تا به اوس زما څخه څوك بچ کوي ؟حضور ﷺ وفرمایل ما به ستا څخه الله ﷻ بچ کوي [۳] جابر رضي الله عنه وایي صحابه وُ ﷺ چې دا ولیدل نو هغه ته یې دهمکي ورکړله هغه توره په تیکي کې کېښودله او په وونه کې یې زوړنده کړه [۴] جابر رضي الله عنه وایي چې بیا (د ماسپښین یا د مازیګر) د لمانځه د پاره اذان (او تکبیر) وشو حضور ﷺ مخکې د یو جماعت سره دوه رکعاته وکړل [۵] او هغه جماعت دوه رکعاته مونځ کولو سره د دښمن د مقابلې د پاره واپس شو بیا حضور ﷺ د دویم جماعت سره دوه رکعاته وکړل [۶] جابر رضي الله عنه وایي چې دغسې د حضور ﷺ څلور رکعاته شو او د خلقو دوه دوه رکعاته شو. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** - ⓷ فَتَهَدَّدَهُ: دهمکي ئې ورکړه هغه ته، ⓷ فَغَمَدَ: توره په تیکي کښې ایخودلو ته غمد وائی یعنی توره ئې کیخودله.

**تسهیلات:** - **قوله: قَالَ: "لَا".**:

دې نه معلومه شوه چه رسول الله ﷺ اشجع العرب اوډ ټولو نه زیات بهادر وو. هم دغه وجه ده چه حضرت خالدبن ولید رضي الله عنه غوندې د عربو لوئی لوئی بهادر خلقو په حضورپاك ﷺ باندې ایمان راوړو او د حضورپاك ﷺ تابع شو ګنی د انسانی طبیعت داسې واقعې شوی دی چه بهادر سړې کله هم د بزدل سړی تابعداری نه کوی.

**د مذکور سړی په ایمان راوړو کښې اختلاف:** - د علامه واقدی رحمه الله وینا ده چه دا مشرك کله عاجز راغلو نوبیا مسلمان شو او د ده د وجې نه ډیرزیات خلق مسلمانان شو. لیکن ابوعوانه رحمه الله غوندې محدثین حضرات فرمائی چه دا سړې مسلمان شوې نه دې او هغه وعده کړې وه چه بیابه مقابله نه کوم. حضورپاك ﷺ هغه معاف کړو او هیڅ سزا ئی ورنه کړه.

**اشکال:** - شیخ مظهر رحمه الله فرمائی چه د ویرې دډې مونځ واقعه هم ذات الرقاع کښې راغلې ده په کوم کښې چه حضورپاك ﷺ څلورر کعته مونځ ورکړې وو اوددې نه مخکښې د حدیث نمبر ۲ واقعه هم د ذات الرقاع ده حالانکه هلته دوه رکعته د صلوة خوف ذکردې. دا په دې دواړو روایتونوکښې تضاد دې حالانکه واقعه یوه ده.

**جواب:** - کیدې شی په غزوه ذات الرقاع کښې د ویرې د مونځ واقعه دوه ځل پیښه شوې وه. نو سهل بن حثمه چه کومه طریقه بیان کړې ده هغه د سحر په مونځ باندې محمول ده او زیر بحث حدیث کښې حضرت جابر رضي الله عنه چه دکومې طریقې ذکرکړې دې کیدې شی دا د ماسپښین یا مازیګر په مونځ باندې محمول ده. دویم جواب دادې چه د دواړو روایتونو

تعلق یوځائی یا یو واقعه سره نه دي بلکه جدا جدا غزوات ترې نه مراد دی

**دویم اشکال:** – زیر بحث حدیث کښې حضوراکرم ﷺ څلور رکعته ولې اوکړل؟ حالانکه په سفرکښې دوه رکعته قصرسره وی.

**جواب:** – کوم ځائی حضورپاك ﷺ څلور رکعتونه کړی دی هغه مقام دَ قصر نه وو. دویم جواب داکیدې شی چه هغه وخت دَ قصر حکم نازل شوې نه وی.

**[۱۴۲۳] دَ صلوة خوف بل کیفیت**

۱۴۲۳–(۳)[۱] [۱] وَعَنْهُ قَالَ: [۲] «صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - صَلَاةَ الْخَوْفِ، [۳] فَصَفَفْنَا خَلْفَهُ صَفَّيْنِ، [۴] وَالْعَدُوُّ بَيْنَنَا وَبَيْنَ الْقِبْلَةِ، [۵] فَكَبَّرَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَكَبَّرْنَا جَمِيعًا، [۶] ثُمَّ رَكَعَ وَرَكَعْنَا جَمِيعًا، [۷] ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ، وَرَفَعْنَا جَمِيعًا، [۸] ثُمَّ انْحَدَرَ بِالسُّجُودِ وَالصَّفُّ الَّذِي يَلِيهِ، [۹] وَقَامَ الصَّفُّ الْمُؤَخَّرُ فِي نَحْرِ الْعَدُوِّ،

**ترجمه:** [۱] حضرت جابر رضی الله عنه فرمایي [۲] چې رسول الله ﷺ (یو ځل) مونږ ته د خوف مونځ راکړو [۳] مونږ په حضور ﷺ پسې دوه صفونه وتړل [۴] او دښمن زمونږ او د قبلي په مینځ کې وو [۵] حضور ﷺ تکبیر اووئیلو مونږ ټولو هم (یعني دواړو صفونو) تکبیر اووئیلو [۶] بیا حضور ﷺ (د قراءت څخه وروسته) رکوع وکړه نو مونږ ټولو هم رکوع وکړه [۷] بیا حضور ﷺ د رکوع څخه سر مبارك پورته کړو نو مونږ ټولو (دواړو صفونو) هم خپل سرونه د رکوع څخه پورته کړل [۸] بیا حضور د سجدي د پاره د هغه صف سره ښکته شو [۹] کوم چې حضور ﷺ ته نزدې وو (یعني اولني صف) او دویم صف د دښمن په مقابله کې (په قومه کې) ولاړ وو

**حل اللغات:** – ① انْحَدَرَ: انحط من عُلوالی سفل: د بره نه لاندې راتلل، یعنی سجدي ته لاړل ② نَحْرِ الْعَدُوِّ: په مقابله د دشمن کښې.

[۱] فَلَمَّا قَضَى النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - السُّجُودَ وَقَامَ الصَّفُّ الَّذِي يَلِيهِ، [۲] انْحَدَرَ الصَّفُّ الْمُؤَخَّرُ بِالسُّجُودِ، ثُمَّ قَامُوا، [۳] ثُمَّ تَقَدَّمَ الصَّفُّ الْمُؤَخَّرُ، وَتَأَخَّرَ الْمُقَدَّمُ، [۴] ثُمَّ رَكَعَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَرَكَعْنَا جَمِيعًا، [۵] ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ وَرَفَعْنَا جَمِيعًا، [۶] ثُمَّ انْحَدَرَ بِالسُّجُودِ، وَالصَّفُّ الَّذِي يَلِيهِ الَّذِي كَانَ مُؤَخَّرًا فِي الرَّكْعَةِ الْأُولَى، [۷] وَقَامَ الصَّفُّ الْمُؤَخَّرُ فِي نَحْرِ الْعَدُوِّ، [۸] فَلَمَّا قَضَى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ السُّجُودَ وَالصَّفُّ الَّذِي يَلِيهِ، [۹] انْحَدَرَ الصَّفُّ الْمُؤَخَّرُ بِالسُّجُودِ فَسَجَدُوا، [۱۰] ثُمَّ سَلَّمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَسَلَّمْنَا جَمِيعًا» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او بیا چې حضور ﷺ سجده وکړه او د حضور ﷺ سره هغه صف ولاړ وو چې حضور ﷺ ته نزدې وو (یعني اولني صف) [۲] نو وروستني صف والا سجدي ته لاړل بیا دوي ودریدل [۳] د دې څخه وروسته مخکیني صف والا راوروسته شو او (وروستني صف والا

[۱] ) اخرجه مسلم فی کتاب صلاة/باب صلاة الخوف (رقم) ۳۰۷ - (۸۴۰)

مخکې شو، [٤] بيا حضور ﷺ قيام (يعني په ولاړه کي) قرآءت وکړو او رکوع يې وکړله نو مونږ ټولو هم رکوع وکړله [٥] بيا حضور ﷺ د رکوع څخه سر پورته کړو نو مونږ ټولو هم د رکوع څخه سر پورته کړو [٦] بيا حضور ﷺ سجدي ته لاړلو او هغه صف هم چې حضور ﷺ ته نزدې وو او په اولنې رکعت کې وروسته وو د حضور ﷺ سره سجدي ته لاړو [٧] او وروستني صف (چې په مخکني رکعت کې مخکې وو) د دښمن په مقابله کې ودريدلو [٨] بيا چې حضور ﷺ او د حضور ﷺ سره نزدې ټول خلق د سجدي څخه فارغ شو [٩] نو وروستني صف سجده وکړه [١٠] بيا د دې څخه وروسته حضور ﷺ او مونږ ټولو (يعني دواړو صفونو التحيات ويلو سره) سلام وګرځوي. (مسلم)

**تسهيلات**: - **قوله** : الصَّفُّ الَّذِي يَلِيهِ:

**د صلاة الخوف بله طريقه**: - دَ صلوة خوف دايوه بله طريقه ده. په دې کښې دا صورت وو چه دښمن دَ قبلې طرف ته وو نودې وخت کښې دَ اسلام لښکر بل طرف ته دَ متوجه کولو ضرورت نه وو په دې وجه ټول صحابه کرامو ﷺ حضورپاک ﷺ پسې په صلوة خوف کښې دَ قبلې طرف ته مخ کړواودريدل. وسله ورسره وه دښمن ګنړل چه دا خلق ټول زمونږ په مقابله کښې ولاړدي. دَ رکوع پورې خو ټول صحابه کرام يوشان ولاړوو خوچه کله حضورپاک ﷺ رکوع ته لاړو نودَ صحابه کرامو دوه ډلې شوې کوم خلق چه حضورپاک ﷺ سره خواکې صفونوکښې وو هغه حضورپاک ﷺ سره رکوع ته لاړل اودَ روستو صفونووالا صحابه کرام ولاړ پاتې شو اودښمن ته ئې سترګ برندې کړې وې کله چه يورکعت پوره شو نوچه کوموخلقويورکعت اوکړو هغوی شاته صفونوته لاړل اوکوم چه شاته وو هغوی وړاندې شو او حضورپاک ﷺ سره ئې يورکعت اوکړو اودَ شاته صفونووالا دَ دښمن په مقابله کښې ولاړوو. کله چه دَ حضورپاک ﷺ مونځ مکمل شو نوصحابه کرامو خپل باقی رکعتونه پوره کړل. حضورپاک ﷺ په عسفان کښې داشان صلوة خوف کړې دې.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [١٤٢٤] د ماسپخين په مانځه کښې دَ صلوة الخوف طريقه

١٤٢٣ - (١)[٥] [١] عَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ: [٢] «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ يُصَلِّي بِالنَّاسِ صَلَاةَ الظُّهْرِ فِي الْخَوْفِ بِبَطْنِ نَخْلٍ، [٣] فَصَلَّى بِطَائِفَةٍ رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ سَلَّمَ، [٤] ثُمَّ جَاءَ طَائِفَةٌ أُخْرَى، فَصَلَّى بِهِمْ رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ سَلَّمَ». رَوَاهُ فِي "شَرْحِ السُّنَّةِ".

**ترجمه**: [١] حضرت جابر ﷺ راوي دي [٢] چې رسول الله ﷺ په مقام بطن نخل کې د خوف په وخت د ماسپښين مونځ وکړو [٣] حضور ﷺ خلقو ته داسې مونځ ورکړو چې يو

[١] ) اخرجه النسائي كتاب صلاة الخوف (رقم-١٥٥١) والدار قطني في باب صفة صلاة الخوف وأقسامها

جماعت ته يې دوه رکعاته مونځ ورکولو سره سلام وګرځولو [٤] بيا چې دويم جماعت راغې نو هغه ته يې هم دوه رکعاته مونځ ورکولو سره سلام وګرځولو. (شرح السنه)

**حل اللغات:-** ① بِبَطْنِ نَخْلٍ: دَ مکې او طائف په مينځ کښې دَ يو مقام نوم دې.

**تسهيلات:- قوله: بِبَطْنِ نَخْلٍ:**

**په احنافو باندې اعتراض:-** په دې حديث کښې چه دَ صلوة خوف کومه طريقه ده داعجيبه ګرانه طريقه ده. دَ حنفيه دَپاره ګرانه داده چه په دې کښې څلور رکعته صلوة خوف شوې دې که دادَ سفر مونځ وو نو څلور رکعته ولې شوی او که چرې دَ حضر مونځ وو نو دَ دوو رکعتونه پس سلام ولې اوګرځولې شو؟

دَ شوافع حضراتو دَپاره خو دَ پريشانئ څه خبره نه ده ځکه چه هغوی فرمائی حضور دوه رکعته دَ قصرَ اوکړل دَ خلقو يوې ډلې دَهغوی اقتدا اوکړه بيا حضور پاک ﷺ دوه رکعته نفل اوکړل بلې ډلې حضور پاک ﷺ پسې شاته دوه رکعته فرض اوکړل او نفل کونکی پسې دَ فرض کونکی مونځ صحيح دې لهذا هيڅ پريشانی نشته دې.

**داعتراض درې جوابات:-**

① دامونځ نه دَ سفر وو نه دَفرض کونکی مونځ نفل کونکی پسې وو بلکه دادَحضر مونځ وو بيا په دې کښې چه کله په دوو رکعتونو باندې سلام اوګرځولې شو احناف فرمائی چه دادَ حضور پاک ﷺ خصوصيت وو دَ نورو دَپاره جائز نه دې.

② دَ صلوة خوف دَ ١٦ يا ٢٤ طريقونه يوه طريقه داهم ده کوم چه معمول به ده لکه چه په شروع کښې ليکلې شوی دی.

③ امام طحاوی رحمه الله دَدې حديث ډيره ښکلې توجيه فرمائيلې ده هغه فرمائی چه دادَهغه وخت خبره ده کوم وخت چه يو فرض مونځ دوه ځل کولې شو لهذا اوس اشکال پاتې نه شو.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[١٤٢٥] د صلاة الخوف ښودلو دپاره د جبريل عليه السلام راتلل**

١٤٢٥ -()[٦] [١] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ: [٢] «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - نَزَلَ بَيْنَ ضَجْنَانَ وَعُسْفَانَ، [٣] فَقَالَ الْمُشْرِكُونَ: لِهٰؤُلَاءِ صَلَاةٌ هِيَ أَحَبُّ إِلَيْهِمْ مِنْ آبَائِهِمْ وَأَبْنَائِهِمْ، [٤] وَهِيَ الْعَصْرُ فَأَجْمِعُوا أَمْرَكُمْ، [٥] فَتَمِيلُوا عَلَيْهِمْ مَيْلَةً وَاحِدَةً،

**ترجمه:** [١] ابوهريره رضي الله عنه وايي [٢] چې رسول الله ﷺ (د جهاد د پاره) د ضجنان او عسفان په مينځ کې ښکته شو [٣] نو مشرکانو (په خپل مينځ کې) اوويل چه د مسلمانانو يو مونځ دي چې د هغوئ په نيز د پلار او زوي څخه هم دوي ته زيات محبوب دي [٤] او هغه دمازيګر

[1]) اخرجه النسائی کتاب صلاة الخوف (رقم-١٥٤٩)

مونځ دي نو تاسو د خپل مقصد (يعني جنګ) د پاره تيار اوسي ⑤ (نو هر کله چې مسلمانان په هغه مانځه کې مشغول شی نو) په يو خل پرې حمله وکړئ.

**حل اللغات:** - ① ضَجْنَانَ: دَمکې اومدينې په مينځ کښې دَ يوغرنوم دې. ② عُسْفَانَ: د مکه او جده په مينځ کښې دَ يوې علاقې نوم دې. ③ مَيْلَةً: په يوخل.

> ① وَإِنَّ جِبْرِيلَ أَتَى النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ② فَأَمَرَهُ أَنْ يَقْسِمَ أَصْحَابَهُ شَطْرَيْنِ، فَيُصَلِّيَ بِهِمْ ③ وَتَقُومَ طَائِفَةٌ أُخْرَى وَرَاءَهُمْ ④ وَلْيَأْخُذُوا حِذْرَهُمْ وَأَسْلِحَتَهُمْ، ⑤ فَتَكُونَ لَهُمْ رَكْعَةٌ، وَلِرَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - رَكْعَتَانِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ① نو حضور ﷺ ته جبرائيل ﷤ راغې ② او وې فرمايل چې خپل اصحاب په دوو حصو کې تقسيم کړه يوې حصې ته خو مونځ ورکړه ③ اودويمه حصه دې په هغوئ پسې د هغوئ شخه وروسته د دښمن د خطرناکو ارادو جواب ورکولو د پاره ودرېږي دغسې دويمې حصې ته مونځ ورکړه نو اولنې حصه دې د دښمن مد مقابل وي ④ او ټولو مونځ کونکو ته پکار دي چې د خپل دفاع سامان (يعني ډهال او هتيار وغيره) د خپل ځان سره ساتي ⑤ دغسې د خلقو خو به (د امام سره) يو يو رکعت شی او د حضور ﷺ به دوه رکعاته شي، (ترمذي، نسايي)

**حل اللغات:** - ④ شَطْرَيْنِ: د شطر جمعه ده، دوه حصې.

**تسهيلات:** - **قوله:** فَأَمَرَهُ أَنْ يَقْسِمَ أَصْحَابَهُ:

**دجهاد اهميت:** - بهرحال دَ ويرې دَ مونځ پوره منظر او پوره بحث نه دا خبره واضح کيږی چه جهاد دَ الله تعالى ډيره لويه فريضه ده اودَدې قيام سره دَ باقى فرائض حفاظت کيږی. لهذا دا په هرحالت کښې به قائم ساتلې شی که دَدې دَ وجې نه دَ نورو عباداتو نقشې بدلې ولې نه شی. چنانچه دَ مونځ کولو نقشې بدلې شوې دَ مونځ دَ اوقاتو نقشې بدلې شوې لکه څنګه چه په خندق کښې اوشو. دَ روژې نقشې بدلې شوې مګر جهادباقی اوساتلې شو. نن صبا مسلمانان دَهرڅه دَپاره تياردې مګر دَ جهاد دَپاره نه دې. اوکافران دَ ټولو عباداتو دَ مراعاتو دَ اجازت ورکولودَپاره تياردی بلکه په کوشش کښې دی ليکن دَ جهاد قطعاً هيڅ ګنجائش او اجازت ورکولوته تيارنه دی.

# [٤٧/٦٣] بَابُ صَلَاةِ الْعِيدَيْنِ

## دَاخترونو دَ مونځونو بيان

**خلاصة الباب:-**

**فيه ستة وعشرون حديثاً مشتملة على ثلاث عشرة مسئلة:**

① الإبتداء بالصلوة والخطبة بعد ها: ١، ٣، ٩، ١٦، ٢٠، ٢٦-

② تعجيل الصلاة يوم الأضحى وتاخيرها يوم الفطر: ٢٣-

③ الخروج إلى المصلى: ١، ٥-

④ جواز الصلوة فى المسجد لعذر: ٢٢-

⑤ كون العيدين للمسلمين: ١٣-

⑥ جواز تاخير الصلوة إلى اليوم الثاني لعذر: ٢٤-

⑦ أداء صلوة العيدين بلا أذان وإقامة: ٢، ٣، ٢٠، ٢٥-

⑧ النهى عن الصلوة التطوع قبل صلاة العيدين وبعدها: ٤-

⑨ جواز الدف يوم العيد: ٦-

⑩ آداب الخروج والرجوع فى الفطر والأضحى: ٧، ٨، ١٤، ٢١-

⑪ التكبيرات في صلوة العيدين: ١٥، ١٦، ١٧-

⑫ وقت الذبح و مكانه: (٩، ١٠، ١١، ١٢-

⑬ الاعتماد على شئ وقت الخطبة: ١٨، ١٩، ٢٠-

**د صلاة العيدين ثبوت:-** قال الله تعالى ﴿اللّٰهُمَّ رَبَّنَآ اَنْزِلْ عَلَيْنَا مَآئِدَةً مِّنَ السَّمَآءِ تَكُوْنُ لَنَا عِيْدًا لِّاَوَّلِنَا وَاٰخِرِنَا﴾ [سورت مائده] وقال الله تعالى ﴿فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَانْحَرْ۝﴾ [سورت الكوثر] وقال الله تعالى ﴿وَلِتُكَبِّرُوا اللّٰهَ عَلٰى مَا هَدٰىكُمْ﴾

**د عيدينو د مشروعيت پس منظر:-** رسول الله ﷺ چه كله دَ مكې نه مديني منورې ته هجرت اوكړو نوحضورپاك هلته اوكتل چه خلق په يوه ورځ خوشحالي كوى. حضورپاك تپوس اوكړو دادَ څه ورځ ده او په كوم كښې چه تاسو لوبې كوئى اوخوشحالي كوئى؟ هغوى جواب وركړو چه دَ اسلام نه وړاندې به مونږ دې دوو ورځو يعنى نيروز اومهرجان كښې دَ جاهليت په زمانه كښې لوبې كولې اوخوشحالى به موكوله. په دې باندې حضورپاك اوفرمائيل چه اوس الله تعالى ستاسو دَدې دواړو ورځو په بدله كښې تاسو ته دوه بهترين ورځې دركړې په هغې كښې يوه دَ وړوكى اختر ورځ او دويمه دَ لوئى اختر ورځ ده.

د دې تفصیل د مشکاة په حدیث نمبر کښې موجود دې چې الفاظ ئې دا دی.

عَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: «قَدِمَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- الْمَدِينَةَ، وَلَهُمْ يَوْمَانِ يَلْعَبُونَ فِيهِمَا، فَقَالَ: (مَا هَذَانِ الْيَوْمَانِ)؟ قَالُوا: كُنَّا نَلْعَبُ فِيهِمَا فِي الْجَاهِلِيَّةِ. فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَدْ أَبْدَلَكُمُ اللّٰهُ بِهِمَا خَيْرًا مِنْهُمَا: يَوْمَ الْأَضْحَى، وَيَوْمَ الْفِطْرِ» رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**د مسلمانانو او غیر مسلمو په اخترونو کښې فرق:** - اسلام چونکه کامل مکمل بلکه اکمل دین دې په دې وجه په دې کښې د خوشحالئی اوغم ټول قواعد او احکام موجود دی. د دنیا خلق څوك د دیوالی په ورځ خوشحالی کوی څوك د کرسمس په ورځ او څوك په نورونومونوسره په نورو ورځوکښې د خوشحالو اهتمام کوی. په اسلام کښې هم الله تعالی د مسلمانانو دپاره په کال کښې دوه ورځې د خوشحالئی مقرر کړی دی. خو اسلام چه مسلمانانوته کوم د اختر ورځې ورکړې دی هغه د نورو قومونو د اخترونو په شان نه ده په کوم کښې چه د الله تعالی نافرمانئی کیږی عیاشئی او بدمعاشئی کولې شی او د غفلت پوره انتظامات وی. د مسلمانانو د اختر شروع د الله تعالی د اطاعت نه کیږی په کوم کښې چه سحروختی ټول مسلمانان یك جان او یك زبان کیدو سره د الله تعالی د کورونو یعنی جماتونو طرف ته متوجه کیږی او د خپل مذهبی مشرانو نه خوشحالئی کولو او خوشحالئی خپلولو د هدایت اولارخودلې خبرې اوری بیا د اختر مونځ کوی. د محبت اظهار کوی د الله تعالی شکر اداکوی د یوبل کوتاهئی معاف کوی. د مشرانو احترام کوی قبرستان کښې د خپلو مړو د ایصال ثواب د پاره ځی دعاګانې کوی بیا په شرعی حدودو کښې ټوله ورځ خپلې خوشحالیانې کوی څکه چه دا دواړه تاریخی ورځې دی.

**د وړوکی اختر خوشحالی:** - د وړوکی اختر په ورځ مسلمانان څکه خوشحالی کوی چه دې نه وړاندې د پوره رمضان مسلمانانو روژې ساتلی وی او د الله تعالی د رضا د پاره ئې یو ګران عبادت پوره کړې وی. اوس هغوی ته د خوشحالئی کولو اجازت ورکړې شو څکه چه هغوی د الله تعالی حکم پوره کړو نو اوس په هغې باندې د الله تعالی شکر اداکوی.

**د لوئې اختر خوشحالی:** - په لوئی اختر کښې مسلمانانوته د حضرت ابراهیم علیه السلام د هغه لوئی قربانئی د یادګارپه توګه د خپلولو حکم ورکړې شوې دې د پاره چه مسلمانان د خپلو بزرګانو او مذهبی مشرانو سره تړلې پاتې شی او لکه څنګه چه د هغوی مذهبی مشران په لوئی امتحان کښې کامیاب شو او هغوی د الله تعالی شکر اداکړو او د خوشحالئی اظهارئی اوکړو دغه شان د هغوی منونکی هم د الله تعالی د راضی کولو د پاره او د قربانئی کولو عادت پیدا کولو د پاره قربانی اوکړی او په هغې کښې کامیابیدو باندې په هغه ورځ په شرعی حدود کښې د ننه خوشحالی اوکړی.

## د صلاة العيدين په حكم كښې مذاهب

① دَ امام مالك رحمه الله امامِ شافعي رحمه الله او امام احمدبن حنبل رحمه الله په نيزدَ اخترونو مونځ سنت مؤكده دې صاحبين هم دسنت مؤكده قائل دی دَامام احمد رحمه الله يوقول دَ فرض كفايه هم دې.
② دَ امام ابوحنيفه رحمه الله په نيزدَاخترونو مونځ واجب دې

**دَ اول فريق اول دليل :-**

① دَ اخترونودَ مونځ دَپاره اذان اواقامت نشته دې دادَ سنت كيدو دليل دې.

**دَ اول فريق دَ اول دليل جوابونه :-**

① دَ دليل دَ موجود كيدوسره حضورپاك اذان اواقامت اونه كړو دَ حضورپاك عمل نه كول دَ نه جائزكيدو دليل دې دَ اخترو جوب سره دَ اذان هيڅ تعلق نشته دې اونه په يوحديث كښې دَاذان ممانعت راغلې دې
② اذان دَ فرض اعتقادی دپاره وی دَ اختر مونځ فرض اعتقادی نه دې بلكه فرض عملی يعنی واجب دې.
③ دَ ضمام بن ثعلبه رضي الله عنه روايت دې په كوم كښې چه دا الفاظ دی "الاان تطوع" يعنی دَ پنځو مونځونو نه علاوه ټول نفل او سنت دی.

**دَاول فريق دَ دويم دليل جوابونه :-**

① دادَ اسلام دَ شروع دَزمانې خبره ده هغه وخته پورې دَ اختر وجوب نه وو شوې
② يا دا چه په دې حديث كښې دَ فرائض قطعيه خبره ده عيدين ته مونځ فرض قطعی نه وايو بلكه واجب ورته وايو.

**دَ دويم فريق دلائل :-**

① ﴿فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَانْحَرْ﴾ نه هم دَ اختر مونځ مراد دې اوامردَ وجوب دَپاره دې لهذادا مونځ واجب دې دادَ امام ابوحنيفه رحمه الله دويم دليل دې.
② دغه شان دَ قرآن پاك آيت ﴿وَلِتُكَبِّرُوا اللَّهَ عَلَى مَا هَدَاكُمْ﴾ د دوی مستدل دې دَدې آيت مطلب دَ اخترونودَ مونځونو تكبيرونه دی. كله چه تكبيرات دَ امر صيغې سره واجب اوګرځولې شو نوپه تكبيرات باندې مشتمل دَاختر مونځ هم واجب شو.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[١٤٢٦] دَاخترونو مونځ په عيدګاه كښې اداكول**

١٤٢٦-(١)[١] ① عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ② «كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَخْرُجُ يَوْمَ الْفِطْرِ وَالْأَضْحَى إِلَى الْمُصَلَّى، ③ فَأَوَّلُ شَيْءٍ يَبْدَأُ بِهِ الصَّلَاةُ، ثُمَّ يَنْصَرِفُ، ④ فَيَقُومُ مُقَابِلَ النَّاسِ، ⑤

---

[1]) اخرجه البخاري في كتاب الجمعة/باب الخروج إلى المصلى بغير منبر (رقم-٩٥٦) ومسلم في كتاب صلاة العيدين (رقم-٩ - (٨٨٩)والنسائي كتاب صلاة العيدين/باب استقبال الإمام الناس بوجهه في الخطبة (رقم-١٥٧٦) وابن ما جة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب ما جاء في الخطبة في العيدين (رقم-١٢٨٨)

وَالنَّاسُ جُلُوسٌ عَلَى صُفُوفِهِمْ فَيَعِظُهُمْ، [٦] وَيُوصِيهِمْ، وَيَأْمُرُهُمْ، [٧] وَإِنْ كَانَ يُرِيدُ أَنْ يَقْطَعَ بَعْثًا قَطَعَهُ، [٨] أَوْ يَأْمُرَ بِشَيْءٍ أَمَرَ بِهِ، [٩] ثُمَّ يَنْصَرِفُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] ابو سعید خدري رضی الله عنه راوي دي [٢] چې رسول الله ﷺ چې به د عید الفطر او عید الاضحٰي (وړوکی او لوي آختر) د لمانځه د پاره تشریف راوړلو [٣] نو هلته به یې د ټولو څخه مخکې دا کار کولو چې (د خطبې څخه) مخکې به یې مونځ اداء کولو بیا چې د لمانځه څخه به فارغ شو [٤] نو د خلقو په مخکې به ودریدلو [٥] او خلق به په خپلو صفونو کې ناست وو نو هغوئ ته به یې وعظ کولو [٦] او نصیحت به یې کولو او احکام به یې بیانول [٧] او که د جهاد د پاره به چیرته لښکر لیږل وو نو دهغې د روانګئ حکم به یې ورکولو [٨] دغسې که (د خلقو د معاملاتو او مقدماتو په باره کې) څه حکم به ورکول وو نو حکم به یې فرمایلو [٩] بیا به (کور ته) واپس راتلو. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① بَعْثًا: لښکر ، جماعت ته بعث وائی. ② قَطَعَهُ: تشکیل به ئې اوکړو. اوبه ئې لیږلو.

**تسهیلات:**

**قوله: إِلَى الْمُصَلَّى:**

**په عیدګاه کښې د اختر د مونځ حکم:** - دَ اختر دَ مونځ افضلیت په عیدګاه کښې دې په وجه دَمجبورئی نه په جمات کښې جائز دې. نن صبا دوه مجبورئی مخې ته دی یودا چه خلق دومره زیات شوی دی چه دَ جماتونونه علاوه دَټولودَپاره اجتماعی ځائی نشته دې اوکه چرې ځائی پیداهم شی نونن صبا مسلمانان دَدومره فتنو ښکارشوی دی چه دَهغوی په خپل مینځ کښې دَ یو بل لریوالې هم پیداشوې دې اوعقیدې هم خرابې شوې دی. بدعتیان بریلیان دیوبندیان او غیرمقلدین جدا جدا عقیدې دی په دې وجه دَ بعضبو سره بغض هم پیدا شوې دې. اوس یوبریلی ا
مام پسې مونږ دیوبندیان مونځ نه شو کولې نومغوی مونږ پسې هم نه کوی لهذا دَ خپل خپل مسلك جماتونوته ځی اومونځ کوی.

**قوله: ثُمَّ يَنْصَرِفُ:**

**دعیدین او جمعې په خطبه کښې فرق:** - دَ جمعې خطبه فرض ده دَ اخترونو خطبې سنت دی دویم فرق دادې چه دَجمعې خطبه دَمونځ نه مخکښې ده اودَ اخترونو خطبه روستو ده.

**قوله: أَنْ يَقْطَعَ بَعْثًا قَطَعَهُ:**

**د اختر د مونځ په اجتماع کښې د اجتماعی کارونو آسانتیا:** -. دَ جمعې اودَ اخترونو اهم مقاصد نه یومقصد داهم دې چه په مسلمانانو باندې جهاد هروخت فرض دې اوجمعه او اخترونو کښې مختلف خلق حاضریدو سره اجتماع جوړیږی. نورسول الله ﷺ به دَدغه اجتماع په موقع باندې که چرې ضرورت محسوس کولو نودَ جهادټولی به ئی روانول.

**[١٤٢٧] د اخترونو د مانځه دپاره د اذان عدم مسنونيت**

١٤٢٧-()[٢][١] «وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: [٢] صَلَّيْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- الْعِيدَيْنِ غَيْرَ مَرَّةٍ وَلَا مَرَّتَيْنِ بِغَيْرِ أَذَانٍ وَلَا إِقَامَةٍ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] جابر ابن سمره ﷛ فرمايي [٢] چې ما د رسول الله ﷺ سره د وړوکی او لوي اختر مونځ بغير د اذان او تکبير څخه يو ځل دوه نه بلکه ډير ځله اداء کړي دي. (مسلم)

**تسهيلات: قوله : بِغَيْرِ أَذَانٍ وَلَا إِقَامَةٍ:**

**د اختر دپاره د اذان د عدم مشروعيت وجه :-** چونکه دخلقود راغوښتلو دپاره دليل موجود وو او د دليل د ضرورت باوجود حضورپاك اذان اونه کړو نود حضورپاك عمل نه کول د عدم جواز دليل دي ګنی په يوقولی حديث کښې نښته دي چه اذان منع دي. دغه شان په عيدګاه کښې د سحرپه وخت د چاشت يا اشراق مونځ هم جائزنه دي. نه داخترد مونځ نه وړاندې جائز دي اونه روستو جائزدي اود اخترنه پس په کورکښې جائزدي.

**[١٤٢٨] د اخترونو په مونځونوکښې د خطبې محل**

١٤٢٨-()[٣][١] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- قَالَ: [٢] كَانَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- وَأَبُو بَكْرٍ، وَعُمَرُ، يُصَلُّونَ الْعِيدَيْنِ قَبْلَ الْخُطْبَةِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] حضرت ابن عمر ﷠ وايي [٢] چه رسول الله ﷺ حضرت ابوبکر ﷛ او حضرت عمر ﷛ به د آخترونو مونځ د خطبې څخه مخکې کولو. (بخاري مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله : يُصَلُّونَ الْعِيدَيْنِ قَبْلَ الْخُطْبَةِ:**

**د اخترونو خطبه د مانځه نه روسته :-** د ابن المنذر ﷫ قول دي چې د فقهاء کرامو په دي خبره باندې اتفاق دي چې د وړوکی اختبر او لوئي اختر خطبه د مونځ نه پس وئيل پکاردی. د مونځ نه وړاندې خطبه وئيل جائز نه دی. ليکن که يو کس د مونځ نه وړاندې خطبه اووئيله نو د ټولو علماء کرامو په نزد به مونځ جائز وی. منقول دی چې مروان ابن حکم چې کله دمدينې منورې حاکم جوړ شو او هغه خطبه د مونځ نه وړاندې اووئيله نو دده دا فعل صحابه کرامو ډير بد اوګڼړلو.

[١]) اخرجه مسلم فی کتاب صلاة العيدين (رقم) ٧ - (٨٨٧) وابوداود کتاب الصلاة،باب ترک الأذان فی العيد (رقم -١١٤٨)
[٢]) اخرجه البخاری فی کتاب العيدين /باب الخطبة بعد العيد (رقم-٩٦٣) ومسلم ٨ - (٨٨٨) والنسائی کتاب صلاة العيدين /باب صلاة العيدين قبل الخطبة (رقم-١٥٦٤) وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب ما جاء فی صلاة العيدين (رقم-١٢٧٦) ومالک فی الموطا کتاب العيدين/باب الأمر بالصلاة قبل الخطبة فی العيدين (رقم-٣)

## [١٤٢٩] د اخترونو د مانځه د پاره د اذان او اقامت عدم مشروعيت

١٤٢٩-( )[٣] ١ «وَسُئِلَ ابْنُ عَبَّاسٍ: أَشَهِدْتَ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - الْعِيدَ؟ ٢ قَالَ: نَعَمْ، خَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَصَلَّى، ثُمَّ خَطَبَ، ٣ وَلَمْ يَذْكُرْ أَذَانًا وَلَا إِقَامَةً، ٤ ثُمَّ أَتَى النِّسَاءَ فَوَعَظَهُنَّ، وَذَكَّرَهُنَّ ٥ وَأَمَرَهُنَّ بِالصَّدَقَةِ، ٦ فَرَأَيْتُهُنَّ يَهْوِينَ إِلَى آذَانِهِنَّ، وَحُلُوقِهِنَّ، ٧ يَدْفَعْنَ إِلَى بِلَالٍ، ٨ ثُمَّ ارْتَفَعَ هُوَ وَبِلَالٌ إِلَى بَيْتِهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ (روايت دي چې يو ځل) د حضرت ابن عباس ﷠ څخه پوښتنه وشوه چې آيا تاسو د رسول الله ﷺ سره د اختر په لمانځه کې شريك شوې يئ؟ ٢ هغه وفرمايل چې هو (بيا هغه دا تفصيل بيان کړو چې) حضور ﷺ عيدګاه ته تشريف يوړو هلته يې د اختر مونځ ورکړو بيا يې خطبه وفرمايله ٣ ابن عباس ﷠ (د حضور ﷺ د لمانځه د تفصيل د بيانولو په دوران کې) د تکبير او اذان ذکر ونه کړو ٤ (بيا يې وفرمايل چې) د دې څخه وروسته حضور ﷺ د ښځو د جماعت طرف ته راغې [حضرت بلال ﷠ هم ورسره وو] حضور ﷺ هغوئ ته نصيحت وکړو د دين احکام يې ورياد کړل او د ثواب او عذاب په باره کې ورته اووئيل ٥ او هغوئ ته يې د صدقې (يعني د سرسايي، د زکوٰة يا محض د الله ﷻ په نوم) د ورکولو حکم وفرمايلو ٦ نو ما ښځې وليدلې چې هغوئ به خپل لاسونه د غوږونو او غاړو طرف ته اوږده کول او زيورات يې راخلاصول ٧ او حضرت بلال ﷠ ته به يې حواله کول (چې هغه يې د هغوئ د طرف څخه په فقراؤ تقسيم کړي) ٨ د دې څخه وروسته حضور ﷺ او بلال ﷠ خپل کور ته تشريف راوړو. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① يَهْوِينَ: دَ ضرب يضرب نه دَجمع مؤنث صيغه ده. دَ ټيټيدو او ګکيدو په معنی کښې ده. ② وَحُلُوقِهِنَّ: دَحلق جمع ده دې نه مرئ مراد دی.

**تسهيلات: قوله : يَهْوِينَ:**

**د يهوين صرفی تحقيق:-** مراد دَغوږونو دَ والوطرف ته لاسونه اوچتول دی. علامه طيبی ﷫ دا صيغه دَ باب افعال نه دَ جمع مؤنث صيغه ګرځولې ده. مګر شيخ عبدالحق ﷫ دَ دواړو ابوابو نه ګرځولی دی ليکن ضرب سره به يهوين په ياء باندې فتحه وی. [اشعة المعات]

**دزنانو دپاره د غوږونو سورې کولو حکم:-** علماؤ دَدې حديث نه استدلال کړې دې چه دَښځودَپاره غوږونه سورې کول جائز دی ځکه چه که غوږ سورې کول جائز نه وو نو صحابياتو به غوږو نه سورې کولوسره کالی څنګه استعمالول؟ دغه شان په يو روايت کښې دَ پوزې سورې کولو ذکرهم ملاويږی لهذا داهم جائز دی.

---

[1] ) اخرجه البخاری فی کتاب العيدين /باب المشی والرکوب إلی العيد، والصلاة قبل الخطبة بغير أذان ولا إقامة (رقم-٩٦١) ومسلم کتاب صلاة العيدين (رقم) ٢ - (٨٨٤) وابوداود کتاب الصلاة،باب ترک الأذان فی العيد (رقم-١١٤٦) وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب ما جاء فی صلاة العيدين (رقم-١٢٧٣) والدارمی فی باب، الحث علی الصدقة يوم العيد

**[١٤٢٠] د اختر د مانځه نه مخکښې او روستو د نفلو حکم**

١٤٣٠-(١)[٥] [١] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا: [٢] «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - صَلَّى يَوْمَ الْفِطْرِ رَكْعَتَيْنِ [٣] لَمْ يُصَلِّ قَبْلَهُمَا وَلَا بَعْدَهُمَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] ابن عباس رضی الله عنهما راوي دي چې رسول الله ﷺ به د وړوکی آختر په ورځ (د آختر لمونځ) دوه رکعاته کولو [٣] نه به يې د دې څخه مخکې نفل کول او نه وروسته. (بخاري مسلم)

**تسهيلات: قوله: لَمْ يُصَلِّ قَبْلَهُمَا وَلَا بَعْدَهُمَا:**

**د اختر په ورځ د نفلي مونځ کراهت:-** يعنې دَ عيدګاه تلو نه مخکښې خونفل نه په جمات کښې جائز دی نه په کورکښې جائز دی نه په عيدګاه کښې جائز دی. او دَ اختر دَ مونځ نه پس په عيدګاه کښې کول مکروه دی مګر کورته راتلو سره کولې شی. دليل هم دغه دې چه حضورپاک نه دی کړی.

**[١٤٢١] عيدګاه ته د ښځو د تلو حکم**

١٤٣١-(٢)[٦] [١] «وَعَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا - قَالَتْ: [٢] أُمِرْنَا أَنْ نُخْرِجَ الْحُيَّضَ يَوْمَ الْعِيدَيْنِ، [٣] وَذَوَاتِ الْخُدُورِ فَيَشْهَدْنَ جَمَاعَةَ الْمُسْلِمِينَ وَدَعْوَتَهُمْ، [٤] وَتَعْتَزِلُ الْحُيَّضُ عَنْ مُصَلَّاهُنَّ، [٥] قَالَتِ امْرَأَةٌ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ، إِحْدَانَا لَيْسَ لَهَا جِلْبَابٌ؟ [٦] قَالَ: "لِتُلْبِسْهَا صَاحِبَتُهَا مِنْ جِلْبَابِهَا» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] بي بي ام عطيه رضی الله عنها فرمايي [٢] چې مونږ ته حکم شوې وو چې مونږ د دواړو اخترونو په ورځ هغه ښځې هم چې ايام والا وي (يعني په حيض کې وي [٣] يا دا چې بالغې وي) او هغه ښځې هم چې پرده نشيني وي (لکه چې ټولې ښځې) عيدګاه ته بوځو او دا ټولې د مسلمانانو په جماعت او په دعا کې شريکې شي [٤] او کومې ښځې چه په حيض کښې (د حيض جامو کيدو په ورځو کې) وي هغوی دې د لمانځه کولو د ځاي څخه جدا وي [٥] يو ښځې عرض وکړو چې يا رسول الله ﷺ په مونږ کې چې د چا سره څادر (پړوني) نه وي (هغه څه وکړي؟) [٦] حضور ﷺ ورته وفرمايل چې خپله ملګرې دې هغه په خپل څادر کې دې ځان سره پټه کړي. (بخاري مسلم)

[١] ) اخرجه البخاری فی کتاب العيدين /باب الخطبة بعد العيد (رقم-٩٦٤) ومسلم کتاب صلاة العيدين /باب ترک الصلاة قبل العيد وبعدها فی المصلی (رقم) ١٣ - (٨٨٤) وابوداود کتاب الصلاة،باب الصلاة بعد صلاة العيد (رقم-١١٥٩) والترمذی کتاب العيدين /باب لا صلاة قبل العيدين ولا بعدها (رقم-٥٣٧) والنسائی کتاب صلاة العيدين /باب الصلاة قبل العيدين وبعدها (رقم-١٥٨٧)

[٢] ) اخرجه البخاری فی کتاب العيدين /باب خروج النساء والحيض إلى المصلى (رقم-٩٧٤) ومسلم کتاب صلاة العيدين /باب ذکر إباحة خروج النساء فی العيدين إلى المصلى وشهود الخطبة، مفارقات للرجال (رقم) ١٠ - (٨٩٠) وابوداود کتاب الصلاة،باب خروج النساء فی العيد (رقم-١١٣٦) والترمذی کتاب العيدين /باب فی خروج النساء فی العيدين (رقم-٥٣٩) والدارمی فی باب خروج النساء فی العيدين

**حل اللغات:-** ① الْحُيَّضَ: دَ حائض جمع ده. دَمياشتې په بيمارئ كښې اخته ښځو ته وئيلى شي او په بالغه ښځه باندې هم دَدې اطلاق كيږي. ② ذَوَاتَ الْخُدُورِ: خدر بكسر الخاء په كوركښې دننه دَ پردې والاكمرې ته وائي. دلته ترې پرده كونكې ښځې مراد دى. ③ تَعْتَزِلُ: جدا دې اوسيږى، ④ جِلْبَابٌ: پروني، غټ څادر.

**تسهيلات: قوله: وَدَعْوَتَهُمْ:** معلومه شوه چه دَ مسلمانانو په اجتماع كښې عام مسلمانان، سړى ښځې او په سرحدونو باندې مصروف مجاهدين په دعاكښې يادولې شي.

**قوله: جِلْبَابٌ:** دا لوئى څادرته وائي. معزز ښځې دا اچوى. دادَ سرنه ترخپو پورې وى. دَ درنې كپړې نه جوړولې شي. دَ تور رنګ كپړه وى دَدې په غاړو باندې سرې پټئى وى او ښځې په دې كښې پوره رانغښتې وى.

**اشكال:-** دَدې حديث نه په واضحه توګه باندې معلوميږى چه مسلمانانې ښځې دَ اخترونو په مونځونوكښې عيدګاه ته دَمونځ دَپاره تللې اوس علماء ولې اجازت نه وركوى؟

**دَاشكال جواب:-** دَ حضورپاك په زمانه كښې به دَ احكام اسلام نازليدل دَسړو په شان ښځوله دَ احكام زده كولو ضرورت وو. دَخلقو ګڼړه به كمه وه. دَوحي دَ نزول بركات عام وو. دَ جبرائيل آمين به دَ مدينې منورې پاكې زمكې ته تلل راتلل وو. دَحضورپاك وجود مبارك موجود وو. دَ صحابه كرامو ﷺ پاك جماعت وو اودَ ټولو احتياطى تدابيرو نه پس ښځو له عامو مونځونو اودَ اختر مونځونو كښې دَ شركت اجازت وو. بياهم دَ صحابه كرامو په دوركښې په دې باندې پابندى اولګيدله. حضرت عائشه ﷺ دَ ممانعت حمايت اوكړه په دې وجه علماؤ مساجد او عيدګاه ته دَ ښځو تلل په وجه دَ فساد دَ زمانې غيرمستحب اوګرځول. دَدې نه باوجود كه چرې اوس هم په يومقام بائدې دَ پردې مكمل انتظام وى نودې ته بالكل ممنوع نه شي وئيلې كيدې.

**[١٤٣٢]دَاخترونوپه موقع دسندرو وئيلو حكم**

٣٣٢-()[٧] ⓵ «وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - قَالَتْ: ⓶ إِنَّ أَبَا بَكْرٍ دَخَلَ عَلَيْهَا وَعِنْدَهَا جَارِيَتَانِ فِي أَيَّامِ مِنًى ⓷ تُدَفِّفَانِ وَتَضْرِبَانِ. ⓸ وَفِي رِوَايَةٍ: تُغَنِّيَانِ بِمَا تَقَاوَلَتِ الْأَنْصَارُ يَوْمَ بُعَاثَ ⓹ وَالنَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مُتَغَشٍّ بِثَوْبِهِ ⓺ فَانْتَهَرَهُمَا أَبُو بَكْرٍ، فَكَشَفَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنْ وَجْهِهِ، فَقَالَ: ⓻ "دَعْهُمَا يَا أَبَا بَكْرٍ، فَإِنَّهَا أَيَّامُ عِيدٍ. ⓼ وَفِي رِوَايَةٍ: يَا أَبَا بَكْرٍ، إِنَّ لِكُلِّ قَوْمٍ عِيدًا، وَهَذَا عِيدُنَا» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ⓵ ام المؤمنين (د مؤمنانو مور) بي بي عائشه صديقه ﷺ فرمايي ⓶ چې د منې په ورخوكې (يعني په كومو ورځو كې چې حاجيان صاحبان په منې كې قيام كوي او ايام تشريق

[1] ) اخرجه البخاري فى كتاب العيدين /باب سنة العيدين لأهل الإسلام (رقم-٩٥٢) ومسلم كتاب صلاة العيدين/باب الرخصة فى اللعب الذى لا معصية فيه فى أيام العيد (رقم) ١٦ - (٨٩٢) والنسائى كتاب صلاة العيدين/باب الرخصة فى الاستماع إلى الغناء وضرب الدف يوم العيد (رقم-١٥٩٧)

ورته ويل کيږي د هغې څخه د بقر عيد (لوي اختر) په ورځ يا د هغې څخه په وروسته ورځو کې) حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه زما طرف ته تشريف راوړو هغه وخته زما سره (د انصارو د جينکو څخه) دوه ورې جينکۍ ناستې وې ٣ تنبل به يې غږولو ٤ او په بل روايت کې (د دې الفاظو په ځاې يا دا چې مزيد) دا الفاظ دې چې جينکو هغه اشعار ويل چې انصارو د بعاث د جنګ متعلق) ويلې وو ٥ او حضور صلى الله عليه وسلم (هغه وخت) په مخ مبارک کپړه اچولې (پورت) وو ٦ حضرت ابوبکر رضي الله عنه هغه جينکۍ اوټلې (يعني د سندرو د ويلو څخه يې منع کړې) نو حضور صلى الله عليه وسلم خپل مخ مبارک ښکاره کړو او وې فرمايل ٧ چې اې ابوبکرا رضي الله عنه دوې پريږده (هيڅ ورته مه وايه) ځکه چه دا د اختر (د خوشحالۍ) ورځې دې ٨ په يو بل روايت کې دا الفاظ دې چې حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې اې ابوبکره! د هر قوم اختر وي دا زمونږ اختر دې. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① تُدَفِّفَانِ: تنبل ئې وهلو، ② تُغَنِّيَانِ: لوبې او شعرونه ئې وئيل، ③ تَقَاوَلَتِ: وئيلې وو، ④ يَوْمَ بُعَاثَ: بُعاث د يوځاې نوم دې دلته دجاهليت په زمانه کښې د قبيله اوس او خزرج په مينځ کښې جنګ شوې وو هغه ورځ ته يوم بُعاث وائي. ⑤ مُتَغَشٍّ: د اسم فاعل صيغه ده، يعنى په کپړه کښې ئې مخ پټ کړې وو. ⑥ انْتَهَرَهُمَا: منع ئې کړې دواړه، اوئې رټلې.

**تسهيلات:**

**قوله: فِي أَيَّامِ مِنًى تُدَفِّفَانِ:**

**دا اختر د خوشحالۍ اظهار:-** داد ايام تشريق او منٰى کښې دَ جمراتو دَ ويشتلو دَ ورځو ذکر دې چه په دې ورځو کښې دوو ماشومانو جينکو تنبل وهلو اوحضورپاك خاموش وو. صديق اکبر رضي الله عنه راغلو او هغوى اورټلې. حضورپاك اوفرمائيل پريږده دا دَ اختر ورځې دى.

**د تنبل وهلو حکم:-** اوس مسئله داسې ده چه يوصرف په ژبه سره اشعار وئيل دى دغه داسې معامله ده چه که چرې اشعار ښه دى نووئيل ئى ښه دى اوکه چرې اشعار خراب دى نو وئيل ئى هم بد دى. لکه چه اشعاردَ خبرو په شان څيز دې. "حسنه حسن وقبيحه قبيح" بل که چرې اشعارو باجې ډولکى شپيلئى ستارونه ربابونه هارمونيم او ميوزك وى نودَهغې په حراموالى کښې هيڅ شك نشته دې. دَ رسول الله صلى الله عليه وسلم ارشاد دې ((الغناء حرام فى الاديان كلها)) يو بل حديث دې ((الغناء ينبت النفاق فى القلب كما ينبت الماء البقل)).

فتاوى قاضى خاص کښې ليکلى دى چه: "استماع صوت الملاهى حرام ومعصية لقوله عليه السلام استماع الملاهى معصية والجلوس عليها فسق والتلذذ بها من الكفر".

**د ګانو بجانو د حرمت په باره کښې مفيد کتابونه:-** په دې سلسله کښې "كتاب كف الرعاع عن محرمات اللهو والسماع لابن حجر الهيتمى" ډيرښکلې کتاب دې او په لويه پيمانه باندې ميوزك سره متعلق

احادیث په دې کښې جمع دی. حضرت مولانا محمد شفیع رحمه الله هم احکام القرآن جز خامس کښې دَ سورت لقمان په شروع کښې په دې مسئله باندې ډیر تفصیل سره کلام کړې دې. ما تسهیلات څلورم جلد کښې کتاب النکاح کښې څه لیکلی دی او څه به انشاء الله باب الشعر کښې لیکلې کیږی. مظاهرحق کښې دَدې حدیث لاندې ډیر تفصیل سره لیکلی دی زه تفصیل دلته نه شم کولې. پورته ذکرشوې دَ دوو صورتونونه علاوه دریم صورت دَ دغه تنبل غږولو دې کوم سره چه اشعار وی خوچه په دغه تنبل کښې څه دَ شرنګاری او غږیدونکی څیزنه وی. ګنی که لویوتوقو آلې ورسره وی نودا تنبل دَ اخترونو په موقعو کښې سنتونو ودونو او دَ خوشحالو ورځو کښې جائز دې اګرچه بچ کیدل دَدې نه هم بهتر دی خوبیا هم مباح دی لکه څنګه چه دلته دغه ماشومانو وهلو او صدیق اکبر رضي الله عنه پوهه کولې چه حضورپاك ته پته اونه لګی په دې وجه نی هغوی اورټلې. نو رسول الله ﷺ دَ اختر ذکر اوکړو او اجازت نی ورکړو. چونکه دلته ساده تنبل وو دَ کوم آواز چه دف دف وی، بل ورې جینکئی وې او شعرونه هم دَ مرانې او بهادرئی درس ورکونکې وو په دې وجه حضورپاك منع نه کړې. په دې باندې دَ غټو بنځو ګډاګانې سرودونه اوباجې ډانسونه نه شی قیاس کولې لکه څنګه چه اهل باطل قیاس کولوسره دَ ډانس دپاره دَ جواز پیداکولو کوشش کوی. باقی دَ اوریدو یوه بله مسئله ده دکوم تفصیل چه به ان شاء الله باب الشعر کښې راځی.

**قوله**: بِمَا تَقَاوَلَتِ الْأَنْصَارُ يَوْمَ بُعَاثَ:

**د یوم بعاث تاریخی پس منظر**:- دَجاهلیت دَ جنګونونه دَ یوجنګ طرف ته اشاره ده چه دَحضورپاك دَ هجرت نه وړاندې دَمدینې دَ انصارو دوو قبیلو اوس او خزرج په مینځ کښې مقام بعاث کښې شوې وو. دَ شپږشلو کالوپورې اوږد راروان وو په کوم کښې چه ډیرې لونی وینې تونی شوې وې. اوچه کله اسلام راغلو نودَ هغې رحمت عام شو او په حضوراکرم ﷺ باندې ایمان راوړلوسره په عربو کښې دَ دغه اوږد جنګ صلح اوشوه دَ کوم طرف ته چه قرآن پاك داشان اشاره کوی. ﴿فَأَصْبَحْتُم بِنِعْمَتِهِ إِخْوَانًا﴾ دَمقام بعاث باره کښې شیخ عبدالحق رحمه الله لمعات کښې لیکلی دی چه دا مقام دَمدینې منورې نه دَدوو ورځو په فاصله باندې واقع دې یا دادَ قبیله اوس دَ یوې قلعه نوم دې او یا دَ بنوقریظه دَ علاقو نه دَ یوځائی نوم دې. [اشعة المعات: ١/ ٦٤٠]

**[١٤٣٣]په ورڅ کی اختر کښی د مانځه څخه وړاندې خوراك كول**

١٣٣٣-( )[٨] [١] وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: [٢] «كَانَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- لَا يَغْدُو يَوْمَ الْفِطْرِ [٣] حَتَّى يَأْكُلَ تَمَرَاتٍ، [٤] وَيَأْكُلُهُنَّ وِتْرًا». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

[١] اخرجه البخاری فی کتاب العیدین / باب الأکل یوم الفطر قبل الخروج (رقم-٩٥٣) والترمذی کتاب العیدین /باب فی الأکل یوم الفطر قبل الخروج (رقم-٥٤٣)

**ترجمه:** ١ حضرت انس ﷛ فرمايي ٢ چي رسول الله ﷺ به د ووړوکی اختر په ورځ عيدګاه ته تلو ٣ نو مخکې به يې کجوري (خورما) خوړلي ٤ او طاق کجوري به يي خوړلي (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① وترًا: طاق، ناتکې،

**تسهيلات:**

**قوله**: لَا يَغْدُو يَوْمَ الْفِطْرِ حَتَّى يَأْكُلَ تَمَرَاتٍ:

**د اختر د مانځه څخه وړاندې د خوراک کولو وجه:** - حضرت رسول کريم ﷺ به د اختر په ورځ عيدګاه تګ نه وړاندې کهجورې خوړلې يعنې په خوراك کښې ئې به جلدي کوله چې د مخکښې ورځو يعنې ايام رمضان کښې امتياز راشي څکه چې په رمضان کښې نه خوړل واجب دي داشان د اختر په ورځ خوراك کول پکار وي.

**قوله**: وَيَأْكُلُهُنَّ وِتْرًا:

**ناتکې قجورې خوړل:** - حضرت رسول اکرم ﷺ به کهجورې طاق يعنې درې ، پنځه ، اووۀ يا ددې نه کم او زياتې خوړلې . چونکه په هر کار کښې د طاق رعايت ساتل بهتر دی په دې وجه حضرت رسول اکرم ﷺ به په دې معامله کښې هم د طاق لحاظ ساتلو. او ددې وجه داده چې (إن الله وتر يحب الوتر) يعنې الله ﷻ طاق دې او طاق لره خوښوی .

**دقجورو خوړلو وجوهات:** -

① د اختر به ورځ په حضرت رسول اکرم ﷺ کهجورې په دې و جه خوړلې چې هم دا به موجودې وی.

② کهجورې خوږې وی او خوږ څيز د بصر د تقويت ذريعه ګرځي. خصوصا د خلو معده په وخت خو دا نظر ته ډير زيات تقويت ورکوی او ډير زود اثر دی. لهذا د روژو په وجه به چې کوم ضعف راغلې وی د کهجوروائر په هغه ختميږی .

**د خوږ څيز فائده:** - بيا دا شرينی يعنې خوږوالی د مقتضاء ايمان موافق دې. چنانچه علماء کرام ليکی چې کوم کس په خوب کښې اووينی چې خوږ څيز خوری نو ده ته به د ايمان حلاوت نصيب کيږی. خوږ څيز زړه نرموی ، په دې وجه خوږ څيز سره افطار کول افضل دی.

**[١٤٢٤] داختر په ورځ عيدګاه ته په تګ راتګ کښې د لارې بدلول**

١٤٢٣-()[٩] ١ وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ٢ «كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا كَانَ يَوْمُ عِيدٍ خَالَفَ الطَّرِيقَ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

[1]) اخرجه البخاری فی کتاب العيدين /باب من خالف الطريق إذا رجع يوم العيد (رقم-٩٨٦) والترمذی کتاب العيدين /باب ما جاء فی خروج النبی صلی الله عليه وسلم إلی العيد فی طريق، ورجوعه من طريق آخر (رقم-٥٤١) وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها /باب ما جاء فی الخروج يوم العيد من طريق والرجوع من غيره (١٣٠١)

**ترجمه:** ١ حضرت جابر رضي الله عنه فرمايي ١ چې هر کله به د اختر ورځ شوه نو رسول الله ﷺ به په لارو کې فرق کولو. (بخاري)

**حل اللغات:** - ① خَالَفَ الطَّرِيقَ: لار به ئې بدلوله.

**تسهیلات:**

**قوله: إِذَا كَانَ يَوْمُ عِيدٍ خَالَفَ الطَّرِيقَ:**

**د اختر په ورځ د لارې په بدلولو کښې حکمت:** - يعنی عيدګاه ته دتلو په وخت په يوه لاره تشريف اوړلو ليکن واپس به په بله لار راتلو. په دې کښې حکمت داوو چه مختلف لارې په عبادت باندې ګواه جوړې شی او په دې لاروکښې فرښتې او جنات او ملاويدونکی انسانان ګواه جوړشی. بعضې علماؤ څه نور وجوهات ليکلی دی ليکن دا ټولې اندازې دی حقيقت دادې چه دَدې حقيقت دَ شارع عليه السلام نه بغير بل هيچا سره نشته دې.

**[١٤٢٥] په لوئی اختر کښې دَ قربانئ وخت**

٣٣٥ — ( ) [١٠] ١ «وَعَنِ الْبَرَاءِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ٢ خَطَبَنَا النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَوْمَ النَّحْرِ فَقَالَ: ٣ إِنَّ أَوَّلَ مَا نَبْدَأُ بِهِ فِي يَوْمِنَا هَذَا أَنْ نُصَلِّيَ، ٤ ثُمَّ نَرْجِعَ فَنَنْحَرَ، ٥ فَمَنْ فَعَلَ ذَلِكَ فَقَدْ أَصَابَ سُنَّتَنَا، ٦ وَمَنْ ذَبَحَ قَبْلَ أَنْ نُصَلِّيَ، ٧ فَإِنَّمَا هُوَ شَاةُ لَحْمٍ، ٨ عَجَّلَهُ لِأَهْلِهِ لَيْسَ مِنَ النُّسُكِ فِي شَيْءٍ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ حضرت براء رضي الله عنه راوي دي ٢ چې رسول الله ﷺ د يوم النحر (يعني د قرباني په ورځ) زمونږ په مخکې په خطبه کې ارشاد وفرمايل ٣ چې په دي ورځ اولني کوم کار چې مونږ ته کول پکار دي هغه دا دي چې مونږ (د لوي اختر) مونځ اوکړو ٤ بيا کور ته واپس راشو او قرباني اوکړو ٥ نو کوم سړي چې داسې عمل وکړو (چي د قرباني څخه مخکې د لمانځه او د خطبي څخه فراغت حاصل کړي) هغه زمونږ سنت اختيار کړل ٦ او کوم سړي چې د لمانځه څخه مخکې قرباني وکړه ٧ هغه قرباني نه ده بلکه هغه د غوښو والابزه ده ٨ چې هغه د خپل کور والو د پاره په تلواري سره ذبح کړي ده د قرباني سره د دې هيڅ تعلق نشته. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① فَنَنْحَرَ: چه مونږ قربانی اوکړو. ② النُّسُكِ: قربانی.

**تسهیلات: نوټ:** - د قربانئ باره کښې د مذاهبو بيان به په «(باب الأضحية)» کښې راشی.

**د اختر په احکامو کښې ترتيب:** - دَ لوئی اختر شرعی ترتيب داسې دې چه دَ قربانئ په ورځ اول مونځ اوکړې شی بيا خطبه واورېدې شی بيا لاړشی قربانی اوکړی. قربانی دَ مونځ نه پس ده. که چرې چا اول اوکړه نوهغه قربانی نه ده بلکه دَ خوراك غوښه ده. په ښارکښې چه کله په يو ځائی دَ اختر مونځ اوشی نودَ ټولو ښاروالودپاره اوس قربانی کول جائز شو. کوم

---

[١] اخرجه البخاری فی کتاب العيدين/باب التکبير إلی العيد (رقم-٩٦٨)

خلق چه په کلوکښې اوسيږی او هلته دَاختر مونځ نه کيږی نوهغه خلق دَ سحر دَمونځ نه پس قربانی کولې شی.

**د قربانۍ ورځې:**- دَ احنافو په نيز دَ قربانۍ تولې ورځې لسم ذوالحجه يولسم دولسم ذوالحجه درې ورځې دی. ليکن شوافع او غيرمقلدين لسونه ديارلسو ورځوپورې قربانی کولوته جائز وائی. په آخری ورځ اوښ ذبح کوی او تماشه ښکاره کوی.

**[١٤٣٦] دَ قربانۍ د وجوب دليل**

١٤٣٦-(١)[١١] ① وَعَنْ جُنْدَبِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ الْبَجَلِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ② «مَنْ ذَبَحَ قَبْلَ الصَّلَاةِ فَلْيَذْبَحْ مَكَانَهَا أُخْرَى، ③ وَمَنْ لَمْ يَذْبَحْ حَتَّى صَلَّيْنَا ④ فَلْيَذْبَحْ عَلَى اسْمِ اللَّهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① جندب ابن عبدالله بجلي راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② کوم سړي چې (د قرباني حيوان) د اختر د لمانځه څخه مخکې ذبح کړي نو هغه ته پکار دي چې د هغې په بدله کې (د قرباني د پاره) دويم حيوان ذبح کړي ③ او کوم سړي چې د لمانځه کولو پورې ذبح ونه کړي ④ نوهغه ته پکار دي چې هغه [د لمانځه څخه وروسته] د الله تعالیٰ ﷻ په نامه (د قرباني حيوان) ذبح کړي (دا قرباني به درست وي چې د هغې به ورته ثواب حاصليږي) (بخاري مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله:** فَلْيَذْبَحْ مَكَانَهَا أُخْرَى:

**د اختر د مانځه څخه وړاندې د قربانۍ کولو عدم جواز:**-يعنی کوم کس چې قربانی د مونځ نه وړاندې اوکړه نوهغه له پکار دی چې ددې په ځائې بله قربانی اوکړی. او چا چې مونځ نه پس اوکړه هغه صحيح ده دارنګ قربانۍ والاله پکار دی چې د قربانۍ ذبح کولو په وخت کښې دالله ﷻ نوم واخلی.

**[١٤٣٧] دمانځه څخه مخکښې قربانی کول**

١٤٣٧-(٢)[١٢] ① وَعَنِ الْبَرَاءِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② «مَنْ ذَبَحَ قَبْلَ الصَّلَاةِ، فَإِنَّمَا يَذْبَحُ لِنَفْسِهِ، ③ وَمَنْ ذَبَحَ بَعْدَ الصَّلَاةِ، فَقَدْ تَمَّ نُسُكُهُ، ④ وَأَصَابَ سُنَّةَ الْمُسْلِمِينَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① حضرت براء ؓ راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② کوم سړي چې (د قرباني

---

[1]) اخرجه البخاري في كتاب الذبائح والصيد/باب قول النبي صلى الله عليه وسلم: «فليذبح على اسم الله» (رقم-٥٥٠٠) ومسلم كتاب الأضاحي/باب وقتها (رقم) ٢ - (١٩٦٠) والنسائي كتاب الضحايا/باب ذبح الناس بالمصلى (رقم-٤٣٦٨) وابن ماجة باب النهي عن ذبح الأضحية، قبل الصلاة (رقم-٣١٥٢)

[2]) اخرجه البخاري في كتاب الأضاحي/باب سنة الأضحية (رقم-٥٥٤٦) ومسلم كتاب الأضاحي/باب وقتها (رقم) ٤ -(١٩٦١)

حيوان) د لمانځه څخه مخکې ذبح کړې نو لکه چې هغه محض د خوراک د پاره ذبح اوکړه (څکه چې هغه ته د قرباني ثواب حاصل نشو)[۳] اوکوم سړي چې دلمانځه څخه وروسته ذبح کړه نوييشکه دهغه قرباني ادا شوه [۴] او (دغسې) هغه د مسلمانانو طريقه اختيار کړه.(بخاري مسلم)

**تسهيلات: قوله: فَإِنَّمَا يَذْبَحُ لِنَفْسِهِ:**

**د مانځه څخه وړاندې قربانۍ باندې عدم ثواب:**- کوم کس چې قرباني د مونځ نه وړاندې اوکړه نوهغه خپل ځان دپاره اوکړه يعنی هغه ته به څه ثواب نه ملاويږی. او چا چې د اختر دمونځ نه پس قرباني اوکړه نو هغه ته به ثواب ملاويږی. او قرباني ئې هم اوشوه. زمونږ په نيز د اختر د مانځه وړاندې چې کومه قرباني اوشوه دهغې اعاده واجب ده . د مونځ نه وړاندې ذبيحه عادت دې. او دمونځ نه روستو ذبيحه عبادت دې.

**[۱۴۲۸]په عيدګاه کښې قرباني کول**

۱۴۲۸-()[۱۳][۱]وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ-رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا-قَالَ:[۲]«كَانَ رَسُولُ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-يَذْبَحُ وَيَنْحَرُ بِالْمُصَلَّى».رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:**[۱] حضرت ابن عمر رضي الله عنهما راوي دې[۲] چې رسول الله ﷺ به په عيدګاه کې ذبح او نحر کولو. (بخاري)

**تسهيلات:**

**قوله: وَيَنْحَرُ:**

**د قربانۍ څاروی او د نحر طريقه:**-دَ قربانئ دَپاره په شريعت کښې ګډه ، چيلئی، ګډه، غوا ، ميخه او اوښ متعين دی که هغه نر وی اوکه ښځه هيڅ فرق نه کوی. دَدې څناورو نه علاوه بل دَ هيڅ قسم څناور قرباني نه شی کيدې.

دَ اوښ نه علاوه دَ نورو څناوروَدپاره ذبح مقرر ده چه سملولې شی اودَهغې په مرئی چاړه راښکلې شی البته دَ اوښ دَپاره نحر دې اودَ نحر طريقه داده چه دَ اوښ په وړاندينو خپوکښې يوه راکړه کړې شی زنګون سره اوتړلې شی. دې وخت کښې اوښ تختيدې نه شی ولاړ به وی نوبيا دې سړې نيزه يا چاړه يا دَتورې په څوکه باندې دَ اوښ مرئی وهی اودَ هغه دَ مرئی نه وينه بهيږی. دَ زياتې وينې بهيدو سره بيا اوښ پخپله راپريوځی اومړشی. دا دَ نحر طريقه ده.

[۱] اخرجه البخاري في كتاب العيدين /باب النحر والذبح يوم النحر بالمصلى (رقم-۹۸۲)

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [١٤٢٩]دَمسلمانانو دوه اخترونه

١٤٢٩ –()[١٣] ١ عَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: ٢ «قَدِمَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - الْمَدِينَةَ، وَلَهُمْ يَوْمَانِ يَلْعَبُونَ فِيهِمَا، ٣ فَقَالَ: (مَا هَذَانِ الْيَوْمَانِ) ؟ ٤ قَالُوا: كُنَّا نَلْعَبُ فِيهِمَا فِي الْجَاهِلِيَّةِ. ٥ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَدْ أَبْدَلَكُمُ اللّٰهُ بِهِمَا خَيْرًا مِنْهُمَا: ٦ يَوْمَ الْأَضْحَى، وَيَوْمَ الْفِطْرِ» رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ١ حضرت انس رضي الله عنه فرمايي ٢ چې رسول الله ﷺ چې مدينې منورې ته تشريف راوړو نو اهل مدينه دوه ورځې مقررې کړې وې چې په هغې کې به هغوئ لهو ولعب کول (لوبې تماشې او خوشحالي کولې) ٣ (د دې په ليدو سره) حضور ﷺ پوښتنه وکړه چې دا دوه ورځې دڅه دي؟ ٤ صحابه و رضي الله عنهم عرض وکړو چې په دې ورځو کې به مونږ د جاهليت په زمانه کې لوبې تماشې کولې ٥ حضور ﷺ ورته وفرمايل چې الله تعالى جل جلاله ستاسو د پاره د دې دوو ورځو په بدله کې د دې څخه بهترې دوه ورځې مقررې کړې دي ٦ اوهغه د عيد الاضحٰی او عيد الفطر (د لوي اختر او وړوکی اختر) ورځې دي. (ابوداؤد)

**تسهيلات:**

**قوله:** كُنَّا نَلْعَبُ فِيهِمَا فِي الْجَاهِلِيَّةِ:

**داسلام څخه وړاندې د عربو دوه اخترونه:-** دَاسلام نه وړاندې به دَ مدينې خلقو په کال کښې دوه دَ خوشحالئى ورځې مناوولې دَ يوې ورځ نوم نوروز وو اودَ بلې مهرجان وو. دادَ فارس والو دَاختر اوخوشحالئى ورځې وې په کوم کښې چه به هوا معتدل اوموسم مزيدار وو. دَ فارس والودا ورځې په عربو کښې هم راغلې اوهغوى هم دا دَ اختر په توګه مناوول شروع کړې لکه نن صبا ايران شام اوعراق وغيره بعضې ملکونو کښې دَدې رواج دې.

رسول الله ﷺ دَمدينې والونه دَدې دَحقيقت باره کښې معلومات غوښتل نوهغوى صفا اووئيل په دې باندې حضورپاك په جواب کښې اوفرمائيل چه اوس الله تعالى تاسو ته دَدې په بدله کښې دوه جدا ورځې دَ خوشحالئى کولودَپاره درکړې دى يودَ عيدالفطريعنى وړوکى اختر ورځ او دويم دَ عيدالاضحى يعنى دَ قربانئى اختردې.

**د غيرمسلمو په رسوماتو کښې د مسلمان د شرکت حکم:-** اوس يومسلمان دَپاره جائزنه دى چه هغه دې دَغيرمسلمو په اخترونو کښې شرکت اوکړى ياهغوى ته تحفه ورکړى يا هغوى ته مبارکى ورکړى ځکه چه په دې سره به دَ غيرمسلمو دَ تهوارونو يعنى ميلو تعظيم اوشى کوم چه حرام دې بلکه د کفرخطره ده. ځکه چه که يومسلمان دَ کافرانو په ميله کښې دَتعظيم په توګه شريك شى نوهغه به کافرشى اوکه صرف دَ لوبوتوقو په توګه شرکت کوى

[1] اخرجه ابوداود كتاب الصلاة،باب صلاة العيدين (رقم-١١٣٤) والنسائي كتاب صلاة العيدين (رقم-١٥٥٦)

نو بیا هم مکروه تحریمي دی ځکه چه په دې سره دَ کافرانو مشابهت راځي.

**د غیر مسلمو په رسوماتو کښې د شرکت حرمت:-** فتاویٰ ذخیره کښې لیکلي دي چه کوم سړي دَ هولي او دیوالي دَ کتلو دَپاره په خاص توګه اوځي هغه د کفرحدود ته ورنیږدې کیږي. نوادرالفتاویٰ کښې لیکلي دي کوم سړي چه دَ غیرمسلم رسومات ښه ګڼړي هغه کافر کیږي. بهرحال په مسلمانانو باندې لازم دي چه هغوی دې دَغیرمسلمو په محبت کښې وړاندې کیدو سره دَهغوی په رسمونو کښې شرکت نه کوي. دا ډیر خطرناك دي او نه دَهغوی دَ تهوارونو او میلو څه اهمیت شته .دا دَهغې نه زیات خطرناك دي. روافظ او اهل بدعت او دَ اهل باطل محافل او مجالس او جلوسونو کښې شرکت کول هم سخت منع دي. څوك چه نه منع کیږي هغه دې نه منع کیږي دَهغوی خپل نقصان دي. دَهدایت دروازې کولاؤ دي که څوك راځي او که نه راځي.

[۱٤٤۰] په وړوکی او لوئی اختر کښې د خوراك کولو وختونه

١٤٤٠-()[١٥] [۱] وَعَنْ بُرَيْدَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: [۲] «كَانَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- لَا يَخْرُجُ يَوْمَ الْفِطْرِ حَتّٰى يَطْعَمَ، [۳] وَلَا يَطْعَمُ يَوْمَ الْأَضْحٰى حَتّٰى يُصَلِّيَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [۱] حضرت بریده ﷺ راوي دي [۲] چې نبي کریم ﷺ به په وړوکی اختر کې بغیر د څه خوړلو څښلو عیدګاه ته تشریف نه وړو [۳] او د لوي اختر په ورځ به یې بغیر د لمانځه کولو څه خوړل څښل نه. (ترمذي، ابن ماجه، دارمي)

**تسهیلات: قوله :** لَا يَخْرُجُ يَوْمَ الْفِطْرِ حَتّٰى يَطْعَمَ:

**د وړوکی او لوئي اختر په ورځ د خوراک په وختونو کښې د فرق وجه:-** دَ پوره رمضان روژې ساتلو نه پس سړې دَ وړوکی اختر په ورځ دَ اختردَ مونځ نه وړاندې خوراك ته ډیر په شوق سره ګوري. په دې وجه شریعت اجازت ورکړو چه دا سړې خوراك کولې شي. چونکه دَ اختر دَ مونځ نه پس بل څه شغل نه وي لهذا دَ اختردَ مونځ نه مخکښې چه سړې خوراك اوکړي اودَ روژې ماتي مزه اخستو سره مونځ له ځي. لیکن په لوئی اختر کښې دَمونځ نه پس دَ قربانئی لوئی کار دې لهذا بهترهم دغه ده چه مونځ په تادئی سره هم وي او دې نه مخکښې خوراك کول هم نه وي روستو دَ خپلې قربانئی دَ غوښې نه څه پخه کړي پخپله هم اوخوري او میلمنو باندې دې هم اوخوري.

---

[۱] ) اخرجه الترمذی کتاب العیدین /باب فی الأکل یوم الفطر قبل الخروج (رقم-٥٤٢) وابن ماجة کتاب الصیام /باب فی الأکل یوم الفطر قبل أن یخرج (رقم-١٧٥٦)

## [١٤٤١] ذَاخترونو دَتکبیرونو شمیر

٣٣١ –()[١٦] ١ وَعَنْ كَثِيرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ: ٢ «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَبَّرَ فِي الْعِيدَيْنِ فِي الْأُولَى سَبْعًا قَبْلَ الْقِرَاءَةِ ٣ وَفِي الْآخِرَةِ خَمْسًا قَبْلَ الْقِرَاءَةِ» . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ١ کثیر ابن عبدالله د خپل پلار څخه او هغه د کثیر د نیکه یعنی د خپل پلار بزرګوار څخه نقل کوي ٢ چې نبي کریم ﷺ به د اخترونو په لمانځه کې په اولني رکعت کې د قراءت څخه مخکې اوه تکبیرونه ویل ٣ او په دویم رکعت کې به یې د قراءت څخه مخکې پنځه تکبیرونه ویل. (ترمذي، ابن ماجه، دارمي)

**تسهیلات:**

**قوله:** فِي الْأُولَى سَبْعًا:

### دعیدینو د تکبیراتو په تعداد کښې مذاهب

په دې باندې دَ ټولو اتفاق دې چه دَاخترونو په مونځونو کښې څه زیاتی تکبیرات دی مګر په دې کښې اختلاف شوې دې چه په هر رکعت کښې دَ دغه تکبیراتو شمیر څه دې؟

① امام مالك رحمه الله امام احمد بن حنبل رحمه الله او امام شافعي رحمه الله په نیزدَ اخترونو په مونځونو کښې په اول رکعت کښې دَ فاتحې وئیلونه مخکښې تکبیر تحریمه سره اووه تکبیرات دی او په دویم رکعت کښې پنځه تکبیرات دی. دَ جمهورو په خپل مینځ کښې دومره فرق ضرور دې چه امام مالك رحمه الله په نیز اووه او پنځه تکبیراتو سره اصل تکبیر هم شامل دې یعنی تکبیرتحریه او تکبیر رکوع لیکن امام شافعي رحمه الله په نیز اووه اوپنځه تکبیرات زیاتی دی. تکبیرتحریمه او رکوع په دې کښې شمیر نه دی.

② امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز په اول رکعت کښې دَ فاتحې دَ وئیلو نه مخکښې درې تکبیرات دی اودریواړه زیاتی دی او دویم رکعت کښې دَ قرأت نه پس رکوع ته تلونه مخکښې په ولاړه ولاړه زیاتی تکبیرونه درې دی یعنی ټول شپږ تکبیرات زوائد دی.

**داول فریق دلیل:**– زیر بحث د کثیر بن عبدالله رضي الله عنه روایت د دوی مستدل دې چه په خپله مدعا باندې واضح دلیل دې.

**داول فریق د دلیل جوابونه:**–

① زیاتی تکبیرونه کیدې شی دَ بیان دَ جواز دَپاره شوې وی

② دَحضورپاك دَ شروع معمول وی. هسې خودا عجیبه ده چه کثیر بن عبدالله رضي الله عنه شوافع

---

[١] اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة،باب التکبیر فی العیدین (رقم-١١٥١) والترمذی کتاب العیدین/باب فی التکبیر فی العیدین (رقم-٥٣٦) وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة، والسنة فیها/باب ما جاء فی کم یکبر الإمام فی صلاة العیدین (رقم-١٢٧٧) والدارمی باب التکبیر فی العیدین

پخپله کمزورې ګرځوی بعضې په هغوی باندې دَ دروغژن الزام لګولې دې اوبیا هم دَ هغه دَ روایت نه استدلال کوی. دا امر هم دَحیرانتیا نه خالی نه ده چه دَدې متفق علیه ضعیف راوی دې روایت ته امام ترمذی رحمه الله حسن وئیلې دې کوم چه دَ ترمذی رحمه الله دپاره دَ حیرانتیا سبب دې.

**د دویم فریق دلائل :-**

① حدیث نمبر(١٤٤٣)د دوی مستدل دې چه دَحضرت سعیدبن العاص رضی الله عنه روایت دې او په کوم کښې چه دَ سوال اوجواب او پوره بحث اوتحقیق نه پس دَلوئې شان صحابی حضرت ابوموسٰی اشعری رضی الله عنه ډیر په وضاحت سره اوخودل چه حضورپاك دَ جنازې دَ مونځ په شان په اخترونو کښې څلور تکبیرونه وئیل یعنی یو اصل تکبیر او درې زیاتی تکبیرونه وو. حضرت حذیفه رضی الله عنه اوفرمائیل چه صدق یعنی ابوموسٰی رضی الله عنه رښتیا اووئیل هم داسې معامله وه.

② دغه شان دَ مغیره بن شعبه رضی الله عنه روایت هم د دوی مستدل دې په کوم کښې چه دَ دریو زیاتی تکبیرونو ذکر دې. نصب الرایه

③ دَحضرت ابن مسعود رضی الله عنه یوروایت هم د دوی مستدل دې (نصب الرایه)

④ دغه شان امام طحاوی رحمه الله یوه واقعه نقل کړې ده چه حضرت عمر رضی الله عنه صحابه کرام راجمع کړل اودَ اخترونو تکبیرونه په شمیر باندې خبرې اترې اوشوې اتفاق په څلورو تکبیراتو باندې اوشو لکه چه په څلورو تکبیراتو باندې اجماع منعقد شوې ده.

⑤ دغه شان امام طحاوی دَ قاسم بن عبدالرحمان رضی الله عنه حدیث نقل فرمائیلې دې په کوم کښې چه هغوی په ګوتو باندې شمیرلوسره اوخودل چه په اخترونو کښې څلور څلور تکبیرات دی یو اصل او درې زیاتی دی.

⑥عقلی دلیل هم د دوی مستدل دې چه زیاتی تکبیرات دَ عام مونځونو برعکس دی اوکوم څیز چه دَ عام معمول برعکس وی په هغې کښې په قلیل باندې اکتفا کول زیات بهتردی. لهذا دَ اووه په ځائی په څلورو باندې اکتفاء زیاته بهتر ده یو تکبیر اصلی او درې زیاتی دی.

### [١٤٤٢]دَاخترونوپه مونځونوکښې په قراءت باندې جهرکول

١٤٤٣—(¹)[١٧] ١ وَعَنْ جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدٍ مُرْسَلًا: ٢ «أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- وَأَبَا بَكْرٍ، وَعُمَرَ، كَبَّرُوا فِي الْعِيدَيْنِ وَالِاسْتِسْقَاءِ سَبْعًا وَخَمْسًا، ٣ وَصَلَّوْا قَبْلَ الْخُطْبَةِ، ٤ وَجَهَرُوا بِالْقِرَاءَةِ» . رَوَاهُ الشَّافِعِيُّ.

**ترجمه:** ١ حضرت جعفر ابن محمد مرسلاً روایت کوي ٢ چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم اوحضرت ابوبکر رضی الله عنه او حضرت عمر رضی الله عنه به د اخترونو او استسقاء په لمانځه کې اوه او پنځه

¹) اخرجه الشافعی فی کتاب العیدین /باب کبروا فی العیدین والاستسقاد سبعا وخمسا، وصلوا قبل الخطبة... رقم الحدیث ٣١٣

تكبيرونه ويل ③ او (د اخترونو او د استسقاء) مونځ به يي د خطبي څخه مخکې کولو ④ او قراءت به يي په پورته آواز سره کولو. (شافعي)

**حل اللغات:** - ① الاِسْتِسْقَاءِ: دباران دپاره دعا كول، يعني د الله نه باران غوښتل.

**تسهيلات:**

**قوله: جَعْفَرِبْنِ مُحَمَّدٍ:**

**دجعفر مصداق:** - جعفر نه مراد امام جعفر رحمه الله بن صادق ابن محمد باقر رحمه الله ابن علي يعني امام زين العابدين ابن حضرت امام حسين رضي الله عنه ابن علي رضي الله عنه دي.

**قوله: سَبْعًا وَخَمْسًا:**

**د اختر په مانځه کښې د اووؤ تکبیرونو روایت:** - دې حدیث مبارك كښې د پنځواو اووؤ وضاحت دماقبل حدیث د تاکید دپاره دې چې په اول رکعت کښې به ئې قراءت نه اول اووۀ تکبیرونه او په دویم رکعت کښې بۀ ئې د قراءت نه اول پنځه تکبیرونه وئیل. او دا دامام شافعي مسلك دې.

**[١٤٤٢] داخترونو د تکبیرونو تعداد**

١٤٤٣ - (١) [١٨] ① وَعَنْ سَعِيدِ بْنِ الْعَاصِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ② «سَأَلْتُ أَبَا مُوسَى وَحُذَيْفَةَ: كَيْفَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يُكَبِّرُ فِي الْأَضْحَى وَالْفِطْرِ؟ ③ فَقَالَ أَبُو مُوسَى: كَانَ يُكَبِّرُ أَرْبَعًا تَكْبِيرَهُ عَلَى الْجَنَائِزِ. ④ فَقَالَ حُذَيْفَةُ: صَدَقَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① حضرت سعید ابن عاص فرمايي ② چې ما د حضرت ابو موسى رضي الله عنه او حذيفه رضي الله عنه څخه پوښتنه وکړه چې رسول الله صلى الله عليه وسلم به د وړوکی او لوي اختر په لمانځه کې څو تکبیرونه ویل؟ ③ نو ابو موسی رضي الله عنه په جواب کې اوویل چې څنګه رسول الله صلى الله عليه وسلم به د جنازي په لمانځه کې څلور تکبیرونه وئیل دغسې د اخترونو په لمانځه کې به یې هم څلور تکبیرونه ویل ④ (د دې په اوریدو سره) حضرت حذیفه رضي الله عنه اوویل چې ابو موسی رښتیا وویل. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① الأَضْحَى: قرباني (دلته د لوئې اخترمونځ مراد دې). ② الفِطْر: وړوکې اختر (دلته د وړوکی اختر مونځ مراد دې).

**تسهيلات: قوله: كَانَ يُكَبِّرُ أَرْبَعًا:**

**د تكبيراتو تعداد:** - اصلي تکبیرونه پریخودوسره دَ احنافو په نیزدَ اخترونو ټول زیاتي تکبیرونه شپږ دي. امام مالك رحمه الله اوامام احمد رحمه الله په نیززیاتي تکبیرونه ټول لس دي. دَ امام شافعي رحمه الله په نیزټول زیاتي دولس دي.

---

[1]) اخرجه ابوداود في كتاب الصلاة، باب التكبير في العيدين (رقم-١١٥٣)

[١٤٤٤] د خطبې په دوران کښې په همسا تکيه وهل

٣٣٤ ـ (١) [١٩] ١ وَعَنِ الْبَرَاءِ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ -: ٢ «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - نُووِلَ يَوْمَ الْعِيدِ قَوْسًا ٣ فَخَطَبَ عَلَيْهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ١ حضرت براء رضي الله عنه راوي دي ٢ چې د رسول الله ﷺ په خدمت کې يوه لينده پيش کړل شوه ٣ نو حضور ﷺ د هغې په اډانه سره خطبه اوفرمايله. (ابوداؤد).

**حل اللغات:** - ① نُووِلَ: پيش کړې شوه، ② قَوْسًا: لينده.

**تسهيلات: قوله: نُووِلَ يَوْمَ الْعِيدِ قَوْسًا:**

**د خطبې په دوران کښې د همسا وغيره نيولو حکم:** - رسول الله ﷺ مبارك نيزه يا کمان په لاس کښې صرف دَدې دپاره نه ده اخستې چه حضورپاك دَخطبې دپاره دَ تکيه اخستلونه بغير اودريدې نه شو بلکه حضورپاك په دې ځيزونوسره اشاره اوفرمائيله چه دَاسلامی احکاماتو دَ حفاظت دپاره جهادضروری دې اودَ جهاددپاره توره نيزه اوکمان ضروری دې. هم دغه وجه ده چه حضور پاك وسله او اوزار په استعمال کښې راوړلې دی ګنی دَ تکيه دپاره خو همساوی دَ کوم ملاويدل چه څه ګران کار نه دې. علماء ليکلی دی چه مسلمانانو کومې علاقې دَجهادپه ذريعه فتح کړی دی هلته نيزه او لنده په لاس کښې ساتل پکاردی اوپه نورو علاقوکښې دې دَ همسانه کار واخلی. بهرحال نَن صبا په حرمين شريفين کښې ائمه په لاس کښې همسا اخلی دادَ تکيه دپاره نه بلکه صرف دَ سنت پوره کولودپاره وی.

**علامه آلوسی او د قرآن پاک ادب:** - علامه روح المعانی رحمه الله دَ قرآن کريم يوحرف ته چه کله زائد وئيلې دې نو دَ ادب په توګه دَدې تشبيه دَخطيب تورې سره ورکوی چه هذاالحرف سيف خطيب يعنی صرف دَ خودلوتوره ده دَ کارنه ده. په راتلونکی روايت کښې عنزه نوم راغلې دې يعنی نيزه، دا نيزه هم تارخی نيزه وه چه دَحضرت زبير رضي الله عنه وه. په بدرکښې يومشهورکافر په سترګه وهلې وو اودا په هغې کښې انختې وه. په راويستلوکښې په زور سره دا ککه شوه کومه چه نوره تاريخی جوړه شوه. حضورپاك دَ سُترې وغيره دپاره دا ډيره زياته استعمال کړې بيا خلفاء راشدين رضي الله عنهم استعمال کړه.

[١٤٤٥] د خطبې په دوران کښې په ليزه باندې تکيه وهل

٣٣٥ ـ (٢) [٢٠] ١ وَعَنْ عَطَاءٍ مُرْسَلًا: ٢ «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ إِذَا خَطَبَ ٣ يَعْتَمِدُ عَلَى عَنَزَتِهِ اعْتِمَادًا». رَوَاهُ الشَّافِعِيُّ.

**ترجمه:** ١ حضرت عطاء بطريق ارسال روايت کوي ٢ چې نبي کريم ﷺ چې به خطبه

---

(١) اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة، باب ترک الأذان فی العيد (رقم-١١٤٥)

(٢) اخرجه الشافعی فی کتاب العيدين /باب کان اذا خطب... رقم الحديث ٣١٨

ارشاد فرمایله [٣] نو په خپله نیزه باندې تیك (تكیه) لګولو سره به ودریدلو (شافعي)

**حل اللغات:-** ① يَعْتَمِدُ: تكیه او سهاره به ئې اخستله، ② عَنَزَة: نیزه.

**تسهیلات:**

**نوټ:** د دې حدیث تشریح په مخکې حدیث نمبر ۱۴۴۴ کښې اوګورئ صرف دومره فرق دې چې هلته د عصا ذکر دې اودلته د عنزه باقی د دواړو حکم یو دې.

**[١٤٤٦] د اذان او اقامت څخه بغیر د اخترونو مونځونه کول**

١٤٤٦-(١)[٢١] [١] «وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [٢] شَهِدْتُ الصَّلَاةَ مَعَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي يَوْمِ عِيدٍ، [٣] فَبَدَأَ بِالصَّلَاةِ قَبْلَ الْخُطْبَةِ، بِغَيْرِ أَذَانٍ وَلَا إِقَامَةٍ، [٤] فَلَمَّا قَضَى الصَّلَاةَ قَامَ مُتَّكِئًا عَلَى بِلَالٍ، [٥] فَحَمِدَ اللَّهَ، وَأَثْنَى عَلَيْهِ، [٦] وَوَعَظَ النَّاسَ، وَذَكَّرَهُمْ، [٧] وَحَثَّهُمْ عَلَى طَاعَتِهِ، [٨] وَمَضَى إِلَى النِّسَاءِ وَمَعَهُ بِلَالٌ، [٩] فَأَمَرَهُنَّ بِتَقْوَى اللَّهِ، [١٠] وَوَعَظَهُنَّ، وَذَكَّرَهُنَّ». رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [١] حضرت جابر رضي الله عنه راوي دي [٢] چې د اختر په ورځ زه د نبي کریم ﷺ سره په لمانځه کې شریك شوم [٣] حضور ﷺ د اذان او تکبیر څخه بغیر د خطبې څخه مخکې یې مونځ شروع کړو [٤] کوم وخت چې د لمانځه څخه فارغ شو نو (د خطبې د پاره) د بلال رضي الله عنه سهاره اخستو سره ودریدلو [٥] حضور ﷺ د الله تعالی جل جلاله حمد او د هغه تعریف بیان کړو [٦] خلقو ته یې نصیحت وکړو او د عذاب او ثواب احکام یې ورياد کړل [٧] او د الله تعالی جل جلاله د بندګي کولو ترغیب یې ورکړو [٨] بیا حضور ﷺ د ښځو د جماعت طرف ته متوجه شو بلال رضي الله عنه هم د حضور ﷺ سره وو [٩] (هلته هم) حضور ﷺ ښځو ته د الله تعالی جل جلاله څخه د ویرېدو حکم ورکړو [١٠] اوهغوئ ته یې نصیحت وکړو او هغوئ ته یې د عذاب او ثواب (احکام) ورياد کړل. (نسايي)

**حل اللغات:-** ① وَحَثَّهُمْ: تیزول ئې هغوی، ترغیب ئې ورکولو هغوی ته.

**تسهیلات:**

**نوټ:-** د دې حدیث تشریح په حدیث نمبر ۱۴۲۹ کښې تیره شوې ده.

**[١٤٤٧] عیدګاه ته د تلو طریقه**

١٤٤٧-(٢)[٢٢] [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [٢] «كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا خَرَجَ يَوْمَ الْعِيدِ فِي طَرِيقٍ [٣] رَجَعَ فِي غَيْرِهِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ.

---

[1]) اخرجه البخاري فى كتاب العيدين /باب المشى والركوب إلى العيد، والصلاة قبل الخطبة بغير أذان ولا إقامة (رقم-٩٦١) ومسلم كتاب صلاة العيدين (رقم) ٤ - (٨٨٥) والنسائى كتاب صلاة العيدين/باب قيام الإمام فى الخطبة متوكئا على إنسان (رقم-١٥٧٥)

[2]) اخرجه الترمذى كتاب العيدين/باب ما جاء فى خروج النبى صلى الله عليه وسلم إلى العيد فى طريق، ورجوعه من طريق آخر (رقم-٥٤١) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب ما جاء فى الخروج يوم العيد من طريق والرجوع من غيره (١٣٠١)

**ترجمه:** [١] حضرت ابوهريره رضي الله عنه فرمايي [٢] چې نبي كريم ﷺ به د اختر په ورځ (عيدګاه ته) په يوه لاره تشريف يوړلو [٣] نو په دويمه لار به واپس راتلو. (ترمذي دارمي)

**حل اللغات:** - ① رَجَعَ فِي غَيْرِهِ: په بله لار به واپس كيدلو.

**تسهيلات: قوله:** رَجَعَ فِي غَيْرِهِ:

**عيدګاه ته د تلو آداب:** - عيدګاه ته د تللو دپاره يوه لاره او د واپس راتلو دپاره دويمه لار اختيار كول پكاردي. ددې حكمت او وجه مخكښې حديث نمبر۱۳۲۳ كښې بيان كړې شوې ده.

**عيدګاه ته د پيدل تلو استحباب:** - فقهاؤ ليكلي دي چه عيدګاه پورې پيدل تلل مستحب دي سوريدل بغيرد ضرورت نه غيراولى دي. د اختر مونځ دپاره په تلو راتلو كښې په اوچت آواز سره تكبيرات تشريق وئيل بهتر دي. په لوئي اختر كښې خود تولو اتفاق دې البته په وړوكى اختر كښې صاحبين ددې قائل دي او امام ابوحنيفه رحمه الله قائل نه دې هغه فرمائي چه په مزه مزه وئيل پكار دي.

**[١٤٤٨] دعذر په وجه په جمات كښې د اختر د مونځ كولو جواز**

١٤٣٨ - (١) [٢٣] [١] وَعَنْهُ: [٢] «أَنَّهُ أَصَابَهُمْ مَطَرٌ فِي يَوْمِ عِيدٍ، [٣] فَصَلَّى بِهِمُ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - صَلَاةَ الْعِيدِ فِي الْمَسْجِدِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [١] حضرت ابوهريره رضي الله عنه راوي دي [٢] چې (يو ځل) د اختر په ورځ باران وشو [٣] نو نبي كريم ﷺ صحابه ؤ رضي الله عنهم ته په مسجد كې مونځ وركړو. (ابوداؤد، ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① مَطَرٌ: باران.

**تسهيلات:**

**قوله:** صَلَاةَ الْعِيدِ فِي الْمَسْجِدِ:

**په جمات كښې د اختر د مونځ جواز:** - مطلب دادې چې نبى كريم ﷺ به د اخترونو مونځ بهر په صحرا (په فراخه ميدان كښې) ادا كولو خو چې كله به باران وغيره وو نو نبى كريم ﷺ به مسجد نبوى كښې مونځ ادا كولو. ددې نه معلومه شوه چې د اختر مونځ دې په عيدګاه كښې ادا كړې شي او كه څه عذر وي نو بيا په جمات كښې هم ادا كول جائز دي.

**[١٤٤٩] په وړوكى اختر كښې د تاخير اولوئي اختر كښې د تعجيل مسنونيت**

١٤٣٩ - (٢) [٢٤] [١] وَعَنْ أَبِي الْحُوَيْرِثِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ -: [٢] «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَتَبَ إِلَى عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ وَهُوَ بِنَجْرَانَ: [٣] عَجِّلِ الْأَضْحَى، وَأَخِّرِ الْفِطْرَ، [٤] وَذَكِّرِ النَّاسَ». رَوَاهُ الشَّافِعِيُّ.

[1]) اخرجه ابوداود فى كتاب الصلاة،باب يصلى بالناس العيد فى المسجد إذا كان يوم مطر (رقم-١١٦٠) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب ما جاء فى صلاة العيد فى المسجد إذا كان مطر (رقم-١٣١٣)

[2]) اخرجه الشافعى فى كتاب العيدين /باب ان عجل الاضحى... رقم الحديث ٢٩٩

**ترجمه:** [١] حضرت ابو الحويرث ﷺ راوي دي [٢] چې رسول الله ﷺ عمرو ابن حزم ته چې په نجران کې وو دا (حکم) ليکلي اوليږلو [٣] چې د لوي اختر مونځ په تلواري سره او د وړوکی اختر مونځ په تاخير سره اداء کوه [٤] او (په خطبه کې) خلقو ته پند او نصيحت کوه. (شافعي)

**حل اللغات:** - ① نَجْرَانَ: په يمن کښې د يو ځای نوم دې. ② عَجِّلِ: جلتې کوئ (يعنې وختې کوئ). ③ أَخِّرِ: روسته کوه.

**تسهيلات:**

**قوله: عَجِّلِ الْأَضْحَى، وَأَخِّرِ الْفِطْرَ:**

**په عيد الفطر کښې د تاخير او عيد الاضحى کښې د تعجيل صلاة حکمت:** - نجران دَ يو ښار نوم دې دې وخت کښې دَ سعودی عرب په حکومت کښې دې. حضورپاك حضرت عمرو بن حزم ﷺ دَهغه ځائی ګورنر مقرر کړې وو دَهغوی عمر هغه وخت اوياکاله وو. حضورپاك هغه ته حکم ورکړو چه دَ وړوکی اختر مونځ په تاخيرسره اداکړو مقصد دا وو چه خلق صدقه فطر دَمانځه نه وړاندې اداکړی روژه ماتې هم اوکړی او دَ لوئی اختر مونځ په تادئی سره اداکړی مقصد دا وو چه خلق روستو قربانئی دَپاره فارغ شي.

**[١٤٥٠] دَ زوال څخه روسته دا اختر د مياشتې ليدلو په صورت کښې دا اختر د مونځ ادا کولو ورځ**

١٤٥٠-()[٢٥] [١] وَعَنْ أَبِي عُمَيْرِ بْنِ أَنَسٍ، عَنْ عُمُومَةٍ لَهُ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] «أَنَّ رَكْبًا جَاءُوا إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٣] يَشْهَدُونَ أَنَّهُمْ رَأَوُا الْهِلَالَ بِالْأَمْسِ، [٤] فَأَمَرَهُمْ أَنْ يُفْطِرُوا، [٥] وَإِذَا أَصْبَحُوا أَنْ يَغْدُوا إِلَى مُصَلَّاهُمْ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.[1]

**ترجمه:** [١] ابو عمير ابن انس د خپلو ترونو څخه چې د نبي کريم ﷺ د صحابه وُ ﷺ څخه وو نقل کوي [٢] چې يوه قافله د نبي کريم ﷺ په خدمت کې حاضره شوه [٣] او دا شهادت يې ورکړو چې هغوئ پرون د اختر مياشت ليدلې ده [٤] نو حضور ﷺ صحابه وُ ﷺ ته د روژې ماتولو حکم ورکړو [٥] او وې فرمايل چې صبا عيدګاه ته لاړشي. (ابوداؤ نسايي)

**حل اللغات:** - ① رَكْبًا: جمع د راکب ده مراد ترې قافله ده.

**تسهيلات: قوله: فَأَمَرَهُمْ أَنْ يُفْطِرُوا:**

**په عهد رسالت کښې په يکم شوال د اختر اعلان:** - دَ رمضان په ديرشم تاريخ دَ شپې مدينه منوره کښې دَ رسول الله ﷺ په زمانه کښې سپوږمئی ښکاره نه شوه په دې وجه دَ مدينې خلقو ديرشم رمضان روژه اوساتله. اتفاقی توګه باندې هم په هغه ورځ دَ بهرنه يوه قافله

[1] ) اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة /باب إذا لم يخرج الإمام للعيد من يومه يخرج من الغد (رقم-١١٥٧) وابن ماجة کتاب الصيام/باب ما جاء فی الشهادة علی رؤية الهلال (رقم-١٦٥٣) والنسائی کتاب صلاة العيدين/باب الخروج إلی العيدين من الغد (رقم-١٥٥٧)

مدینې منورې ته راغله او هغوی د حضور پاك په وړاندې شهادت ورکړو چه مونږ پرون میاشت لیدلې ده.

**د اختر په دویمه ورځ د اختر مونځ:** - حضور پاك د دغه قافلې شهادت قبول کړو او صحابه کرامو ته ئې حکم ورکړو چه روژې ماتې کړئې خو د اختر د زوال نه پس راغلې وو په دې وجه حضور پاك د اختر د مونځ باره کښې او فرمائیل چه مونځ به صباله اداکیږي ځکه چه د اختر د مونځ وخت پاتې شوې نه وو په دې وجه حضور پاك په هغه ورځ د اختر مونځ ورنه کړو. هم په دې باندې د امام ابوحنیفه رحمه الله مسلك قائم دې چه د نمر د زوال نه پس که تیره شوې شپه باندې د میاشت د لیدو خبر راشي نو د اختر مونځ به صباله اداکولې شي ځکه چه د اختر د مونځ وخت د نمر د راوچتیدو نه واخله تر زوال پورې دې. دغه شان که څه عذر پیښ شي نو د اختر مونځ په دویمه ورځ اداکولې شي په دریمه ورځ جائزنه دې او د لوئې اختر مونځ د دویمې دریمې ورځې پورې اداکولې شي سره د دې نه چه مکروه دې مګر جائز دې.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [١٤٥١] د اخترونو په مونځونو کښې د اذان او اقامت نشتوالې

١٤٥١ – (١)[٢٦] [١] عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ: أَخْبَرَنِي عَطَاءٌ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَجَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَا: [٢] لَمْ يَكُنْ يُؤَذَّنُ يَوْمَ الْفِطْرِ وَلَا يَوْمَ الْأَضْحٰى، [٣] ثُمَّ سَأَلْتُهُ - يَعْنِي عَطَاءً - بَعْدَ حِينٍ عَنْ ذٰلِكَ، فَأَخْبَرَنِي قَالَ: [٤] أَخْبَرَنِي جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ: أَنْ لَا أَذَانَ لِلصَّلَاةِ يَوْمَ الْفِطْرِ حِينَ يَخْرُجُ الْإِمَامُ، [٥] وَلَا بَعْدَ مَا يَخْرُجُ وَلَا إِقَامَةَ، [٦] وَلَا نِدَاءَ وَلَا شَيْءَ، لَا نِدَاءَ يَوْمَئِذٍ وَلَا إِقَامَةَ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] ابن جریج رحمه الله وایې چه عطاء رحمه الله د ابن عباس رضي الله عنهما او جابر ابن عبدالله رضي الله عنهما څخه نقل کړې دې چې هغوی اوویل [٢] نه خو به د وړوکی اختر په ورځ (د اختر د لمانځه د پاره) اذان کیدو او نه د لوې اختر په ورځ [٣] ابن جریج رحمه الله وایې چې څه موده وروسته بیا ما دوباره د عطاء رحمه الله څخه د دې مسئلې پوښتنه وکړه نو هغه وفرمایل [٤] ما ته جابر ابن عبدالله رضي الله عنه ویلې دي چې د وړوکی اختر په ورځ د اختر د لمانځه د پاره اذان نشته نه خو د امام د بهر راوتلو په وخت [٥] او نه د امام راتلو نه پس او نه تکبیر [٦] او نه نداء شته او نه څه بل څه په دې ورځ نه نداء شته او نه تکبیر. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① نِدَاءٌ: آواز.

**تسهیلات:**

**قوله: ثُمَّ سَأَلْتُهُ - يَعْنِي عَطَاءً:**

[١] ) اخرجه البخاری فی کتاب العیدین /باب المشی والرکوب إلی العید، والصلاة قبل الخطبة بغیر أذان ولا إقامة (رقم-٩٦٠) ومسلم کتاب صلاة العیدین (رقم) ٥ - (٨٨٦)

**دټپوس او جواب پس منظر:** - دَدې جملې مطلب دادې چه ابن جريج رحمه الله دَ خپل استاذ شيخ عطاء رحمه الله نه دَدې مسئلې پوښتنه کړې وه نوعطاء رحمه الله جواب ورکړې وو چه حضرت ابن عباس اوحضرت جابر رضي الله عنهما دواړوفرمائيلې ووچه اذان خوبه نه وړوکي اخترکښې کولې شو اونه په لوئي اخترکښې. ابن جريج رحمه الله کيدې شي دَ تفصيل معلومولوپه غرض دوباره هم دغه مسئله بيا دَحضرت عطاء رحمه الله نه پوښتنه اوکړه نودې وخت کښې شيخ عطاء رحمه الله صرف دَ جابر رضي الله عنه په حواله سره حديث بيان کړو اودَ ابن عباس رضي الله عنهما نوم ئې وانخستلو.

دغه شان جابربن عبدالله رضي الله عنه دې ځل صرف دَ عيدالفطرذکر اوکړو او دَعيدالاضحی ذکرئې اونه کړوځکه چه دَ دواړو مسئله اوذکرهم يوشان وو.

**يو اشکال او په دوه طريقو د هغې حل:** - ليکن دلته په دې حديث کښې باربار تاکيدونه راغلی دی دَدې څه وجه ده؟ چنانچه يوتاکيد خو ولانداءولاشيئ کښې دې کوم چه ان لااذان ولااقامة کښې دې داجملہ لانداء ولاشيئ په تاکيدکښې راغلې ده. اوس سوال دادې چه دَدغه تاکيداتووجه څه ده آخردَدې تاکيداتومقصدڅه دې؟

په دې سوال دَ پوهيدلودَپاره بلکه په دې حديث باندې دَ پوهيدلودَپاره شيخ عبدالحق محدث دهلوی رحمه الله اوملاعلی قاری رحمه الله تحقيق طرف ته رجوع کول ضروری دی دَدواړو خان خانله تحقيق دې.

**داشکال د دفع کولو اوله طريقه:** - شيخ عبدالحق رحمه الله فرمائي چه په دې حديث کښې "نداء" نه الصلوة الصلوة يادغه شان نور الفاظ مراددی چه دَ مونځ دَ خبرداری ورکولودَپاره کولې شي. دې نه پس لاشيئ لانداء دَتاکيددَپاره راوړلې شوې دې بياهم دَدغه تاکيددَپاره دَحديث آخری الفاظ لانداءيومئذولااقامة راوړلې شوې دې.

دَحديث مطلب دادې چه دَ اخترونودَمونځونودَپاره نه اذان شته اونه اقامت اونه دَدې نه علاوه دَ الصلوة الصلوة وغيره اعلانونه دی داټول ناجائزدی. دَشيخ عبدالحق رحمه الله مقصد دا دې چه په خلقوکښې کوم رواج دې چه اذان خونه کوی ليکن دَاخترونو دَمونځونودَپاره نور اعلانونه کوی په دې حديث سره ټول ممنوع ګرځی. دَ شيخ عبدالحق رحمه الله داتحقيق ډيرښکلې دې اوپه حديث باندې دَ پوهيدلودَپاره يوصفاکلام دې. [اشعة اللمعات: ١/٩٤۶]

**داشکال د دفع کولو دويمه طريقه:** - دَدې په مقابله کښې دَ ملاعلی قاری رحمه الله تحقيق چه دَدې برعکس دې هغه فرمائي چه "ولانداء" نه واخله ترآخره پورې جمله دَ رومبی کلام دَپاره تاکيددې اودابه زيات مناسب وی چه نداءنه اذان مراد واخستې شی اوهم دَ اذان دَ نفی بار بار تاکيدمقصوددې ځکه چه دَاذان نه علاوه الصلوة الصلوة جامعة وغيره په الفاظ سره خلق دَ اختر دَ مونځ دَپاره راغوښتل مستحب دی لهذا دَدې نفی نه ده کيدل پکار نودَ نداء

نه اذان مراد اخستل زیات بهتر دی.

دَملاعلی قاری رحمه الله دَ تشریح مقصد دادې چه بار بار کومه نفی شوې ده دا صرف دَ اذان اواقامت نفی ده دې نه علاوه دَاعلاناتو نفی نه ده.

**په دواړو اقوالو کښې تطبیق:-** اوس دا دواړه اقوال په خپل مینځ کښې متضاد دی. دَدې دَ تطبیق دَپاره دا وئیلې شی چه شیخ عبدالحق رحمه الله چه دکومې نفی حکم ورکړې دې هغه دَ دغه نداء نفی ده کومه چه په التزام سره عیدګاه کښې کولې شی په عیدګاه کښې دننه دغه شان په یوساڅغې وهل جائزنه دی. اودَ ملاعلی قاری رحمه الله مطلب به داشی چه دَ عیدګاه نه بهر کله کله دغه شان الصلوة جامعة آواز لګولو سره خلق راغوښتې شی نو زیات حرج نشته دې.

بهرحال دَ ملاعلی قاری رحمه الله تحقیق دَ ظاهر حدیث موافق نه دې. دَ شیخ عبدالحق رحمه الله تحقیق واضح او بهتر دې. نن صبا دا بدعت پاکستان کښې موجود نه دې کیدې شی نورو ملکونو کښې وی.

**[١٤٥٢] په اخترونو کښې د خطبې محل**

٣٥٣-(١)[٤٧] ١ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-: ٢ «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- كَانَ يَخْرُجُ يَوْمَ الْأَضْحَى وَيَوْمَ الْفِطْرِ فَيَبْدَأُ بِالصَّلَاةِ، ٣ فَإِذَا صَلَّى صَلَاتَهُ، قَامَ فَأَقْبَلَ عَلَى النَّاسِ، ٤ وَهُمْ جُلُوسٌ فِي مُصَلَّاهُمْ، ٥ فَإِنْ كَانَتْ لَهُ حَاجَةٌ ببعث ذَكَرَهُ لِلنَّاسِ، ٦ أَوْ كَانَتْ لَهُ حَاجَةٌ بِغَيْرِ ذَلِكَ أَمَرَهُمْ بِهَا، ٧ وَكَانَ يَقُولُ: تَصَدَّقُوا، تَصَدَّقُوا، تَصَدَّقُوا، ٨ وَكَانَ أَكْثَرَ مَنْ يَتَصَدَّقُ النِّسَاءُ. ثُمَّ يَنْصَرِفُ»،

**ترجمه:** ١ ابو سعید خدري رضي الله عنه فرمایي ٢ چې رسول الله صلی الله علیه وسلم به د وړوکی او لوي اختر په ورځ (عیدګاه ته) تللو نو (مخکې) به یې مونځ کولو ٣ د لمانځه څخه چې به فارغ شو نو (د خطبې دپاره) به اودریدلو خلقو ته به متوجه شو ٤ خلق به د خپل لمانځه په ځاي ناست وو ٥ نو که حضور صلی الله علیه وسلم به چرته لښکر لیږلو نو (هغه وخت به یې) د خلقو په مخکې د هغې ذکر کولو (اولښکر به یې لیږلو) ٦ یا دخلقو به څه بل حاجت وو (یعني د مسلمانانو د څه فائدې خبره به وه) نو د هغې په باره کې به یې حکم ورکولو ٧ او حضور صلی الله علیه وسلم به (د خپلې خطبې په دوران کې) دا فرمایل صدقه ورکړئ صدقه ورکړئ صدقه ورکړئ ٨ نو ښځو به زیاته صدقه او خیرات ورکولو د دې څخه وروسته به حضور صلی الله علیه وسلم خپل مکان ته تشریف راوړو.

١ فلم يزل كَذَلِكَ حَتَّى كَانَ مَرْوَانُ بْنُ الْحَكَمِ، ٢ فَخَرَجْتُ مُخَاصِرًا مَرْوَانَ حَتَّى أَتَيْنَا الْمُصَلَّى، ٣ فَإِذَا كَثِيرُ بْنُ الصَّلْتِ قَدْ بَنَى مِنْبَرًا مِنْ طِينٍ وَلَبِنٍ، ٤ فَإِذَا مَرْوَانُ يُنَازِعُنِي يَدَهُ، ٥ كَأَنَّهُ يَجُرُّنِي نَحْوَ الْمِنْبَرِ وَأَنَا أَجُرُّهُ نَحْوَ الصَّلَاةِ، ٦ فَلَمَّا رَأَيْتُ ذَلِكَ مِنْهُ قُلْتُ: ٧ أَيْنَ الِابْتِدَاءُ بِالصَّلَاةِ؟! ٨ فَقَالَ: لَا يَا أَبَا سَعِيدٍ، قَدْ تُرِكَ مَا تَعْلَمُ. ٩ قُلْتُ: كَلَّا وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ، ١٠ لَا تَأْتُونَ بِخَيْرٍ مِمَّا أَعْلَمُ ثَلَاثَ مِرَارٍ ١١ ثُمَّ انْصَرَفَ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

(١) اخرجه مسلم كتاب صلاة العيدين (رقم) ٩ - (٨٨٩)

**ترجمه:** [١] [د حضور ﷺ زمانه مباركه او د حضور ﷺ څخه وروسته د څلور خلفاؤ ﷺ په دور خلافت کې او د هغې څخه وروسته هم] دا معمول جاري وو (چې خطبه به د لمانځه څخه وروسته وه او خطبه به په منبر نه بلکه په زمکه ودريدو سره ويل کيده) تر دي چې (د امير معاويه ﷺ د طرف څخه د مديني حاکم) مروان ابن حکم مقرر شو[٢] (يو ځل د اختر په ورځ) ما د مروان ابن حکم لاس په خپل لاس کې نيولي عيدګاه ته راغلو[٣] کوم وخت (چې عيدګاه ته راورسيدو نو څه ګورو چې) هلته کثير ابن صلت د خاورو او کچه خښتو منبر جوړ کړي وو[٤] ناڅاپه مروان زه پخپل لاس سره راکښ کړم[٥] لکه چې هغه زه د منبر طرف ته ورکښولم (چې د لمانځه څخه مخکې خطبه اووائي) او ما هغه د لمانځه طرف ته کښولو (چې هغه مونځ مخکې وکړي او د هغه څخه وروسته خطبه اووائي)[٦] هر کله چې ما ؤليدل (چې هغه په خطبه ويلو باندې ټينګ دي) نو ما اوويل [٧] د اختر په ورځ مخکې د لمانځه کولو هغه عمل چرته دي؟ (چې په هغې د حضور ﷺ او خلفاء راشدينو د زماني څخه عمل کيدو)[٨] مروان اوويل چې اي ابوسعيده! ﷺ جګړه مه کوه کومه خبره چې تا ته معلومه ده اوس هغه متروك ده (يعني ما د مصلحت په خاطر د خطبي څخه مخکې مونځ کول پريښي دي او مصلحت دا دي چه که خطبه د لمانځه څخه وروسته اوويل شی نو خلق به په ودريدو ودريدو سره تلل شروع کړي)[٩] ما ورته اوويل هيڅ کله نه، قسم دي په هغه ذات چې د هغه قبضه کې زما ساه ده[١٠] کوم شي چې زه پيژنم تاسو د هغې څخه بهتر شي نه شئ راوړلي ما دا خبره دري ځله هغه ته وکړه [١١] بيا (د مروان د دې فعل په وجه) ابوسعيد ﷺ (د عيدګاه څخه) لاړو او په جماعت کې شريك نشو. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① مُخَاصِرًا: لاس په لاس اچول اودَ دوو سرو تللوته محاصره وائی چه لاس ئی ددی ته نيزدې وی. ② طِينٍ: ختيه، ③ لَبِنٍ: خښته، ④ يُنَازِعُنِي: نزاع جګړې ته وائی خو دلته تري نه په زور راښکل مراد دی.

**تسهيلات:**

**قوله: تَصَدَّقُوا:**

**د تكرار وجه:** - تکرار دَتاكيد دَپاره دې ياد مختلف اقوالوطرف ته اشاره ده. يعنی ① صدقه ورکړه دَخپل ژوند دَ پاره ② صدقه ورکړه دَخپل مرګ دَپاره ③ اوصدقه ورکړه دَخپل آخرت دَپاره.

**قوله: مَرْوَانُ بْنُ الْحَكَمِ:**

**د مروان تعارف او بدكرداري:** - داسړې دَ مدينې منورې ګورنروو دَحضرت معاويه ﷺ دَ خلافت زمانه وه . مروان دَحضرت عثمان ﷺ په زمانه کښې ډيرزيات نقصانات کړی دی. په جنګ جمل کښې ئی ډير نقصان اوکړو داډير هوښيار سړې وو اول ګورنروو بيابادشاه

شو. حضرت ابوسعيد خدری ﷺ يو ډير بهادر اوحق ويونکې انسان وو اوډ صحابی هم دغه شان وی.

ډ مروان خطبه به ډ يوڅو شکايتونو غيبتونو مجموعه وه الاماشاء الله خلق به ډ مانځه نه پس اوريدو ته نه کيناستل. اوس خطبه اوتقرير په زور باندې اوريدلو ډپاره مروان دا کوشش اوکړو چه خطبه ډ اخترډ مانځه نه وړاندې اوشی. صحابی ئی په راښکلو باندې ډممبر طرف ته بوتللو چه اول تقرير اوشی اوبيا مونځ. حضرت ابوسعيد خدری h هغه ته اوفرمائيل چه هغه ډ مانځه ډ شروع څه چل اوکړو؟ نو هغه اوونيل چه اول به هم دغه شان ووچه مونځ به اول اوخطبه به روستو کيدله ليکن اوس دغه طريقه پريخودې شوې ده. په دې باندې حضرت ابوسعيد خدری h اوفرمائيل په الله قسم ته ډ سنت په مقابله کښې هيڅ کله هم څه خيرنه شی راوړلې. ډدغه صحابی بهادرئی اوحق وينا ته پوره سلام کول پکاردی. هم دغه هغه خلق دی ډ چاباره کښې چه الله تعالی ارشاد فرمائيلې دې ﴿وَلَا يَخَافُوْنَ لَوْمَةَ لَآئِمٍ﴾ مروان په دو هجری کښې پيداشوې وو دا صحابی نه دې.

# [۴۸/۴۴] بَابٌ فِي الأُضْحِيَّةِ

## ډقربانئی بيان

**خلاصة الباب:-**

**فيه ثلاثة وعشرون حديثاً مشتملة على احدى عشر مسئلة:**

① آداب الأضحية: ۱، ۲، ۳.
② لبوة الأضحيم عن عن النبي ﷺ : ۱، ۲، ۵، ۹، ۲۲.
③ ما تجوز به الأضحية : ۱، ۲، ۳، ۴، ۶، ۹، ۱۰، ۱۶، ۱۷.
④ افضل مكان الأضحية: ۵.
⑤ بعض الأداب عند إرادة الأضحية : ۷.
⑥ لضيلة الأيام العشرمن شهر ذالحجة: ۸، ۱۹.
⑦ جواز الأضحية عن الميت: ۱۰.
⑧ أوصاف الأضحية لبوتا ولفيا: ۱، ۹، ۱۱، ۱۲، ۱۳، ۱۴
⑨ عدد الشركاء ل الأضحية: ۶، ۱۷.
⑩ لضيلة الأضحية : ۱۸، ۲۳.
⑪ وقت الأضحية وأيامها: ۲۰، ۲۱.

**د ماقبل سره ربط:-** صاحب مشکوة چه کله ډ عيدين په باب کښې ډدې اعمال اوافعال تذکره مکمل کړه او چونکه په عيدين کښې عيدالاضحی په اعمالو کښې ډټولونه اهم عمل

دَ قربانئ عمل وويه دې وجه ئې دَهغې بيان شروع کړو.

**د قربانئ ثبوت د قرآن پاک څخه :-**

① قال الله تعالى ﴿ إِذْ قَرَّبَا قُرْبَانًا فَتُقُبِّلَ مِنْ أَحَدِهِمَا وَلَمْ يُتَقَبَّلْ مِنَ الْآخَرِ ﴾ [سورة المائدة:۲۷]

② وقال الله تعالى وقال الله تعالى ﴿فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَانْحَرْ﴾ [سورة الكوثر:۲]

③ ﴿ قُلْ إِنَّ صَلَاتِي وَنُسُكِي وَمَحْيَايَ وَمَمَاتِي لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ ۝ لَا شَرِيكَ لَهُ ﴾ [سورة الانعام:۱۶۲]

**د الاضحية په لفظ کښې لغات مختلفه :-** شيخ اصمعي رحمه الله فرمائي چه په لفظ اضحيه کښې مختلف لغات دي:

① اضحيه دَهمزه دَ ضمه سره

② اضحيه کسره سره دَدې دوارو لغتونو جمع اضاحي راځي.

③ ضحية په ضمه دَ ضاد دَدې جمع ضحايا راځي.

④ اضحاة بفتح الهمزة.

## د قربانئ په حکم کښې مذاهب

په دې خبره باندې دَ ټولو اتفاق او اجماع ده چه دَالله تعالى په نيزپه يوم الاضحى کښې قرباني يو ډير زيات محبوب او مقبول عمل دې مګر دَفقهاؤ په دې کښې اختلاف دې چه آيا قرباني کول واجب دي که سنت.

① دَعلامه ابن رشد رحمه الله دَتحقيق مطابق دَائمه ثلاثه په نيزدَقربانئ عمل سنت مؤکده دې.

② دَ ائمه احناف په نيزپه مالدار او مقيم باندې قرباني واجب ده البته امام طحاوي رحمه الله فرمائيل چه دَ امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز واجب ده اودَ صاحبين حضرات په نيزسنت مؤکده ده.

**داول فريق دلائل :-**

① دَ دې باب دَ فصل اول حضرت ام سلمه رضي الله عنها حديث نمبر ۱۳۵۹ د دوی مستدل دې. په کوم کښې چه دا الفاظ راغلی دی (اذا دخل العشر وارادبعضكم ان يضحي الخ) په دې حديث کښې دَارادَ الفاظونه معلوميږي که څوك دَ قربانئ اراده اونه کړي نو ضروري نه دی. دا دَ سنت کيدو دليل دې.

**داول فريق د اول دليل جواب :-** د اراد الفاظ سره دَ وجوب نفی مراداخستل مناسب نه دی. په يو حديث کښې دی حضور پاك فرمائيلی (من اراد الحج فليعجل) دلته دَ اراد نه نفی دَ وجوب څنګه اخستلې شي؟ يو حديث کښې راغلی دی چه (ومن اراد الجمعة فليغتسل) دلته دَ جمعې په باره کښې دِ اراد لفظ راغلې دې.

**داول فريق دويم او دريم دليل :-**

② دَدې باب حديث نمبر ۱۳۷۶ د دوی مستدل دې (سنة ابيكم ابراهيم) کښې دَ سنت اطلاق

شوي دي. په کوم کښې چه په قربانئی باندې دَ سنت دَ لفظ اطلاق شوې دې
③ دَ حضرت براء بن عازب رضی الله عنه روایت نمبر۲۳ د دوی مستدل دې (اصاب سنة المسلمین) په کوم کښې چه په قربانئی باندې دَ سنت دَ لفظ اطلاق شوې دې

**داول فریق د دویم او دریم دلیل مجموعی جواب:-** دَ سنت نه اصطلاحی سنت مرادنه دې بلکه سنت دَ طریقې په معنی کښې اخستې شوې دې دادَوجوب منافی نه دې.

**د دویم فریق دلائل:-** دَ قرآن کریم آیت دې ﴿فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَانْحَرْ۞﴾ [سورة الکوثر:۲] د دوی مستدل دې.دلته داصیغه دَ امرده اودَ قربانئی حکم دې اوامردَوجوب دَپاره دې. لهذا قربانی واجب ده.

② دَ حضرت ابوهریره رضی الله عنه حدیث د دوی مستدل دې دَ کوم الفاظ چه دادی (من کان سعة ولم یضح فلایقربن مصلانا) (ابن ماجه)
په قربانئی نه کولوباندې داسې سخت وعیدنه اندازه کیږی چه قربانی کول واجب دی سنت نه دی.

③ دَدې باب فصل ثالث حدیث نمبر۱۴۷۵ دې په کوم کښې چه دا الفاظ راغلی دی (من کان ذبح قبل ان نصلی فلیذبح مکانها اخری) دلته امرهم دې کوم چه دَ وجوب دلیل دې. دَ یوې قربانئی په خرابیدوباندې حضورپاك دَهغې په ځائی دَ دویمې قربانئی کولوحکم ورکړې داقضاکول هم دَ وجوب دلیل دې.

④ دَمشکوة دَ فصل ثالث حدیث نمبر۱۴۷۶ هم د دوی مستدل دې. چه حضوراکرم په مدینه منوره کښې لس کالوپورې مسلسل قربانی کړې ده اودائی کله هم نه ده پریخودې داهم دَ وجوب دلیل دې.

⑤ دَحضرت انس رضی الله عنه مرفوع حدیث الفاظ دای (من ذبح قبل الصلوة فلیعد) [بخاری کتاب العیدین ص ۱۸۹] دَ قربانئی دَ دوباره کولو دا حکم دَ قربانئی دَواجب کیدو دلیل دې.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[١٤٥٢] د قرباني څاروي په خپل لاس قرباني کول**

| ۱۴۵۳ —(¹)[۱] [۱] عَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «ضَحَّى رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِكَبْشَيْنِ |
|---|

¹) اخرجه البخاری فی کتاب الأضاحی/باب وضع القدم علی صفح الذبیحة (رقم-٥٥٦٤) ومسلم کتاب الأضاحی/باب استحباب الضحیة، وذبحها مباشرة بلا توکیل، والتسمیة والتکبیر(رقم-١٧ - (١٩٦٦) وابوداود کتاب الضحایا/باب ما یستحب من الضحایا (رقم-٢٧٩٤)والترمذی کتاب الأضاحی عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الأضحیة بکبشین (رقم-١٤٩٤) والنسائی کتاب الضحایا/باب الکبش (رقم-٤٣٨٧) وابن ماجة کتاب الأضاحی/باب أضاحی رسول الله صلی الله علیه وسلم (رقم-٣١٢٠) والدارمی من کتاب الأضاحی/باب السنة فی الأضحیة

أَمْلَحَيْنِ أَقْرَنَيْنِ، [٣] ذَبَحَهُمَا بِيَدِهِ وَسَمَّى وَكَبَّرَ [٤] قَالَ: رَأَيْتُهُ وَاضِعًا قَدَمَهُ عَلَى صِفَاحِهِمَا وَيَقُولُ: بِسْمِ اللَّهِ، وَاللَّهُ أَكْبَرُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] حضرت انس رضي الله عنه راوي دي [١] چې رسول الله ﷺ د دوو ښکرونو والا پسونو (يعني چې د هغې ښکرونه اوږده وو يا دا چې ښکرونه يې مات نه وو) او کمر (برگ يعني د تور او سپين رنگ وو) قرباني وکړه [٣] رسول الله ﷺ بسم الله والله اکبر ويلو سره په خپل لاس مبارك سره هغه ذبح کړل [٤] حضرت انس رضي الله عنه فرمايي چې ما وليدل چې رسول الله ﷺ د هغې په اړخ يا په غاړه باندې پښه مبارکه ايښي وه او بسم الله والله اکبر يې ويل. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① كَبْشَيْنِ: دکبش تثنيه ده. دوه گډان، ② أَمْلَحَيْنِ: برگى دوه گډان، دتور اوسپين رنگ برگى ته املح وائى. ③ أَقْرَنَيْنِ: ښکرونو والا دوه گډان، ④ صِفَاحِهِمَا: صفاح اړخ ته هم وئيلې شى اوهم دغه شان صفاح مخ او اننگى ته هم وئيلې شى.

**تسهيلات:**

**قوله: ذَبَحَهُمَا بِيَدِهِ:**

دَ قربانئى کونکى دپاره مستحب دى چه که هغه دَ قربانئى کولو آداب پيژنى نوهغه دې په خپل لاس باندې پخپله ذبح اوکړى گنى په بل صورت کښې دې په يوبل سړى باندې ذبح اوکړى او پخپله دې هلته موجود وى يا چه دَهغه دَ طرف نه اجازت وى.

**قوله: وَسَمَّى وَكَبَّرَ:**

**د قربانۍ په وخت بسم الله او تکبير وئيل:** - باقى دَ ذبح کولو په وخت بسم الله وئيل دَ احنافو په نيز شرط دې او الله اکبر وئيل دَ ټولو علماؤ په نيز مستحب ده. بسم الله والله اکبر واؤ سره اداکول زيات بهتر دى. دَ ذبح په وخت درودشريف وئيل دَ جمهورفقهاؤ په نيز مکروه دى.

**[١٤٥٤] دَقربانئى دگډ صفات**

١٣٥٣ - (١) [٢] [١] وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - : [٢] «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَمَرَ بِكَبْشٍ أَقْرَنَ، [٣] يَطَأُ فِي سَوَادٍ، [٤] وَيَبْرُكُ فِي سَوَادٍ، [٥] وَيَنْظُرُ فِي سَوَادٍ، [٦] فَأُتِيَ بِهِ لِيُضَحِّيَ بِهِ، [٧] قَالَ: يَا عَائِشَةُ، هَلُمِّي الْمُدْيَةَ، [٨] ثُمَّ قَالَ: اشْحَذِيهَا بِحَجَرٍ، فَفَعَلَتْ، [٩] ثُمَّ أَخَذَهَا وَأَخَذَ الْكَبْشَ، [١٠] فَأَضْجَعَهُ ثُمَّ ذَبَحَهُ، ثُمَّ قَالَ: [١١] بِسْمِ اللَّهِ اللَّهُمَّ تَقَبَّلْ مِنْ مُحَمَّدٍ، وَآلِ مُحَمَّدٍ، [١٢] وَمِنْ أُمَّةِ مُحَمَّدٍ، [١٣] ثُمَّ ضَحَّى بِهِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] بي بي عائشه رضي الله عنها راويت کوي [٢] چې رسول الله ﷺ (د قرباني د پاره) د يو داسې ښکرور پسه د راوستلو حکم وکړو [٣] چې په سياهې کې گرځي (يعني د هغې پښې

[١] ) اخرجه مسلم فى كتاب الأضاحى/باب سن الأضحية (رقم) ١٩ - (١٩٦٧) وابوداود كتاب الضحايا/باب ما يستحب من الضحايا (رقم-٢٧٩٢)

توري وي) [٤] په سياهۍ کې کيني (يعني د هغې نس او سينه توره وي)[٥] او په سياهۍ کې ويني (يعني د هغه د سترګو شاوخوا توروالي وي)[٦] نو (هر کله) چې د قرباني د پاره ورته دغسې پسه راوستل شو [٧](نو) وي فرمايل چې اي عائشه! رضي الله عنها چاړه راوړه [٨] (کله چې چاړه راوړل شوه نو) وي فرمايل چې دا په کاڼي (مښولو سره) ښه تيره کړه ما چاړه تيره کړه [٩] نو حضور ﷺ هغه چاړه واخسته او پسه يي اونيولو [١٠] هغه يي څملولو بيا چې د هغې د ذبح کولو اراده يي وکړه نو دا يي وفرمايل:[١١] بِسْمِ اللّٰهِ اَللّٰهُمَّ تَقَبَّلْ مِنْ مُحَمَّدٍ وَآلِ مُحَمَّدٍ وَمِنْ أُمَّةِ مُحَمَّدٍ (اي الله! دا قبوله کړې د محمد (ﷺ) او آل محمد (ﷺ) د طرف څخه [١٢] او د امت محمد (ﷺ) د طرف څخه قبول کړې)[١٣] بيا يي هغه ذبح کړو. (مسلم)

**حل اللغات:-** ①كَبْش: ګډ، پيسه، ②أَقْرَنَ: ښکرونو والا، ③يَطَأُ: دَ خپولاندې کولو په معنى کښې دې مراد تلل دی. ④يَبْرُكُ: دَ کيناستو په معنى کښې دې. ⑤هَلُمِّي: راوړه، ⑥الْمُدْيَةَ: چاړه، ⑦اشْحَذِيهَا: چاړه تيره کولو ته تشحيذ وائى. ⑧فَأَضْجَعَهُ: هغه ئې څملولو.

**تسهيلات: قوله: يَطَأُ فِي سَوَادٍ:**

**دحديث دبعضې جملو وضاحت:-**

①فِي سَوَادٍ: يعنى هغه ګډ برګ وو دَ خپو غاړې ئې تورې وې باقى سپين وو. خلهٔ اودَ سترګو دائرې ئې تورې وې اوباقى سپين وو. سينه وغيره ښکته حصه ئې توره وه باقى سپين وو. ددې رنګ څاروې دَ ټولونه زيات ښائسته ښکارى.

②اشْحَذِيهَا: فقهاؤ ليکلى دى چه دَ يوڅاروى مخامخ بل څاروې ذبح کول مکروه دى. دغه شان چاړه تيره کول اوذبح کول مستحب دى.

③ أُمَّةِ مُحَمَّدٍ: دَامت په ثواب کښې دَ شرکت دعاغوښتلې شوې ده ګنى دَ يوګډ په قربانئ کښې پوره امت څنګه شريکيدې شى؟

**[١٤٥٥] په ګډو کښې د عمر حد**

> ١٣٥٥-()[٣][١] وَعَنْ جَابِرٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-:[٢]«لَا تَذْبَحُوا إِلَّا مُسِنَّةً [٣] إِلَّا أَنْ يَعْسُرَ عَلَيْكُمْ، فَتَذْبَحُوا جَذَعَةً مِنَ الضَّأْنِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:**[١] حضرت جابر رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل[٢] تاسو (په قرباني کې) يوازې مسنه (يوکلن حيوان ذبح کوئ[٣] که مسنه نه وي نو بيا د پسه جذعه (شپږ مياشتو بچي) ذبح کوئ. (مسلم)

[١] اخرجه مسلم فى كتاب الأضاحى/باب سن الأضحية (رقم) ١٣ - (١٩٦٣) وابوداود كتاب الضحايا/باب ما يجوز من السن فى الضحايا (رقم-٢٧٩٧) والنسائى كتاب الضحايا/باب السنة والجذعة (رقم-٤٣٧٨) وابن ما جة كتاب الأضاحى/باب ما تجزئ من الأضاحى (رقم-٣١٤١)

**حل اللغات:-** ① مُسِنَّةً: دعمر په لحاظ سره مختلفو څاروو ته مسنه وائي لکه پنځه کليز اوښ، دغه شان نورڅاروی چې تفصيل ئې لاندې په شرح کښې راځي. ② جَذَعَةً: ديو کال څخه کم او د شپږو مياشتو څخه زيات عمر والا څرب ګډ، ③ الضَّأْن: ګډ.

**تسهيلات: قوله: مُسِنَّةً:**

**د جذعه او مسنه تعريفونه:** - جذعۀ او مسنۀ دَ څه خاص څاروی نوم نه دې بلکه اصطلاحي الفاظ دی چه دَ قربانئي دَ څاروی دَعمر دَ پاره استعمالولې شي. چنانچه دَحنفي مذهب مطابق دَدې الفاظ تشريح داسې ده چه په اوښانو کښې مسنۀ هغه اوښ وی چه دَ کوم دَ عمر پنځه کاله چه پوره شوی وی او هغه په شپږم کال کښې داخل شوې وی. په غوا غوئی او ميخه کښې مسنه هغه وی چه دوه کاله ئې پوره کړې وی او په دريم کښې داخل شوې وی. چيلئی ګډه او ګډ کښې مسنه هغه وی چه دَخپل عمر يوکال ئې پوره کړې وی او په دويم کښې داخل شوې وی او که دَ ګډ او ګډې چرته جذعه هم وی نو دَهغې قرباني هم جائز ده. جذعه دَ ګډې او ګډ هغه بچې وی دَ کوم عمر چه دَ يوکال نه کم مګر شپږ مياشتې يا دَدې نه زيات وی. داتفصيل دَ احنافو دَ مسلك مطابق دې.

بعضې علماء فرمائي چه جذعه يعنی دَ ګډې دَ شپږو مياشتو بچې دې دَهغې قرباني په هغه صورت کښې جائز کيږی چه هغه دومره څورب اوچاق وی چه که دَ يوکال بچې هغې سره اودرولې شي نو هغه بالکل دَهغې برابر معلوميږی.

**[١٤٥٦]دَ چيلئی دَبچی قربانی کول**

١٣٥٦-()[٣] [١] «وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ -: [٢] أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَعْطَاهُ غَنَمًا يُقَسِّمُهَا عَلَى صَحَابَتِهِ ضَحَايَا [٣] فَبَقِيَ عَتُودٌ، فَذَكَرَهُ لِرَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٤] فَقَالَ: ضَحِّ بِهِ أَنْتَ. [٥] وَفِي رِوَايَةٍ قُلْتُ: يَارَسُولَ اللَّهِ أَصَابَنِي جَذَعٌ. [٦] قَالَ: (ضَحِّ بِهِ)» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] حضرت عقبه ابن عامر ﷺ څخه روايت دې [٢] چې نبي کريم ﷺ هغه ته د بزو يوه رمه ورکړله چې هغه په صحابه ؤ ﷺ کې د قرباني د پاره تقسيم کړي نو هغه تقسيم کړه [٣] د تقسيم څخه وروسته د بزي (چيلئ) يو بچي باقي پاتې شو هغه په دي باره کې حضور ﷺ ته ذکر وکړو [٤] نو حضور ﷺ وفرمايل چې هغه ته قرباني کړه [٥] او د يو روايت الفاظ دا دي چې ما عرض وکړو يا رسول الله ﷺ ماته يو بچي ملاو شوې دي [٦] حضور ﷺ وفرمايل هغه قرباني کړه. (بخاري مسلم)

[١]) اخرجه البخاری فی کتاب الأضاحی/باب قسمة الإمام الأضاحی بين الناس (رقم-٥٥٤٧) ومسلم کتاب الأضاحی/باب سن الأضحية (رقم-١٦ - (١٩٦٥) والترمذی کتاب الأضاحی عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی الجذع من الضأن فی الأضاحی (رقم-١٥٠٠) والنسائی کتاب الضحايا/باب المسنة والجذعة (رقم-٤٣٧٩) وابن ماجة کتاب الأضاحی/باب ما تجزئ من الأضاحی (رقم-٣١٣٨)

**حل اللغات:-** ① عَتُودٌ: دَ چيلئ هغه بچى ته عتود وائى چه چاق اوتازه وى اودَ يوكال وى. ② جَذَعٌ: دشپړو مياشتوڅخه زيات عمر والاځرب ګډورې.

**تسهيلات: قوله: فَبَقِيَ عَتُودٌ:**

**ه عتوه په تشريح كښې اقوال:-**

① ددې حديث نه معلومه شوه چه دَ چيلئ دَ يوكال بچى قربانى جائز ده او هم دغه دَ امام ابوحنيفه رحمه الله مذهب دې خو امام شافعى رحمه الله دَ چيلئ دپاره دوو كالوعمر ضروى ګنړى.

② بعضې علماء فرمائى چه عتوددَ چيلئى هغه بچى ته وائى چه دَ شپړو مياشتونه زيات وى اودكال نه كم وى.

**په عتود باندې ه قربانى ه جواز خصوصى حكم:-** په دې صورت كښې دَ عتود دَ قربانئى دپاره قبلول دَحضوراكرم ﷺ خصوصيت هم وو اودَ دغه سړى خصوصيت هم وو. دَعامو مسلمانانودپاره دَ چيلئى دَ دغه شان بچى قربانى كول جائز نه دى لكه څنګه چه دَ نورو روايتونو نه په واضح توګه معلوميږى چه دادَې سړى دَپاره خصوصى حكم وو.

**[١٤٥٧] په عيدګاه كښې د قربانى افضليت**

| |
|---|
| ٣٥٧-(١)[٥] [١] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا-قَالَ: [٢] «كَانَ النَّبِيُّ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-يَذْبَحُ وَيَنْحَرُ بِالْمُصَلَّى». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. |

**ترجمه:** [١] ابن عمر رضي الله عنهما فرمايي [٢] چې رسول الله ﷺ به په عيدګاه کې د قرباني حيوان ذبح او نحر کولو. (بخاري)

علماء ليکي چې په عيدګاه کې قرباني کول افضل دي.

**حل اللغات:-** ① يَنْحَرُ: د اوښ ذبح كولو ته نحر وائى. ② الْمُصَلَّى: دمونځ ځاى (عيدګاه مراد ده).

**تسهيلات:**

**قوله: وَيَنْحَرُ بِالْمُصَلَّى:**

**د مصلى څخه مراد:-** مصلى نه مراد قرب مصلى دى يعنى عيدګاه ته نې نزدې ذبح كړه.

**[٣٥٨] په يواوښ كښې داووه كسانو شركت**

| |
|---|
| ٣٥٨-(٢)[٦] [١] وَعَنْ جَابِرٍ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-: أَنَّ النَّبِيَّ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-قَالَ: [٢] «الْبَقَرَةُ عَنْ سَبْعَةٍ، [٣] وَالْجَزُورُ عَنْ سَبْعَةٍ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ. وَأَبُودَاوُدَ، وَاللَّفْظُ لَهُ. |

[١] ) اخرجه البخارى فى كتاب العيدين /باب النحر والذبح يوم النحر بالمصلى (رقم-٩٨٢)

[٢] ) اخرجه مسلم فى كتاب الحج /باب الاشتراک فى الهدى واجزاء البقرة والبدنة كل منهما عن سبعة (رقم-٣٥٢-١٣١٨) وابوداود كتاب الضحايا/باب فى البقر والجزور عن كم تجزئ؟ (رقم-٢٨٠٨)والنسائى كتاب الضحايا/باب ما تجزئ عنه البقرة فى الضحايا (رقم-٤٣٩٣)

**ترجمه:** ① حضرت جابر رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل② د قرباني د پاره يو غوا د اوو سړو د طرف څخه کافي ده③ او يو اوښ د اوو سړو د طرف څخه کافي دي. (مسلم ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① الْبَقَرَةُ: غوا ، ② الْجَزُورُ: اوښ

**تسهیلات: قوله:** وَالْجَزُورُ عَنْ سَبْعَةٍ

## د اوښ د قربانئ د شرکاؤ په تعداد کښې مذاهب

ګډه چيلئ کښې صرف يوسړې قرباني کولې شي. غوا غوئې او ميخه کښې اووه کسان شرکت کولوسره قرباني کولې شي.

اوس مسئله دَ اوښ پاتې شوه نودې کښې دَ فقهاؤ اختلاف دې.

① دَامام مالك رحمه الله او غير مقلدينو په نيزپه يواوښ کښې دکورنئ لس کسان شريکيدو سره قرباني کولې شي.

② دَ جمهورو په نيزدا صحيح نه ده بلکه اوښ غوا غوئې اوميخه کښې صرف اووه کسان قرباني کولې شي.

**داول فريق دلائل:** - دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما روايت حديث نمبر١٣٦٩ د دوى مستدل دې په دې کښې په اوښ کښې دَ لسوکسانو دَ شرکت سره دَ قربانئ کولوواضح ثبوت موجوددې.

**داول فريق د اول دليل جوابونه:** -

① دا نفلي قرباني ده واجب قرباني نه ده مثلاً دَحصول ثواب دَپاره څه خلق جمع شي اوقرباني اوکړي دغه شان قربانئ کښې لس دولس کسان شريکيدلې شي.

② دَ اوښ دَ قربانئ باره کښې مختلف روايتونه دي. بعضې کښې دَ اووه کسانوذکر دې بعضې کښې دَ لسو ذکردې نواحتياط په دې کښې دې چه اووه واخستې شي اودَ لسوصورت اختلافي دې هغه دې نه اخلي.

③ دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما روايت دَ زيربحث روايت مقابله نه شي کولې بلکه په دې سره هغه منسوخ شوې دې لهذا دغه د پريخودې شي اوَزير بحث حديث به قبلولې شي. بهرحال دَ لسو کسانو شرکت په هغه قرباني کښې جائزدې کومه قرباني چه دَ ثواب په توګه وی دَ وجوب په توګه نه وی. اوکه دَ ثواب په توګه په يواوښ کښې لس کسان شريك شي نوتيك ده مقصدئې صرف ثواب دې قرباني واجب نه ده.

**د دويم فريق دليل:** - زيربحث حديث نمبر١٣٥٨ د دوى مستدل دې چه په خپل مطلب باندې واضح دې.

[١٤٥٩] دَ قرباني کونکي دَپاره د ويښتو او نوکانو نه کټ کول

٣٥٩-(١)[٧] [١] وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] «إِذَا دَخَلَ الْعَشْرُ، وَأَرَادَ بَعْضُكُمْ أَنْ يُضَحِّيَ [٣] فَلَا يَمَسَّ مِنْ شَعْرِهِ وَبَشَرِهِ شَيْئًا» [٤] وَفِي رِوَايَةٍ: فَلَا يَأْخُذَنَّ شَعْرًا [٥] وَلَا يَقْلِمَنَّ ظُفْرًا» [٦] وَفِي رِوَايَةٍ: مَنْ رَأَى هِلَالَ ذِي الْحِجَّةِ وَأَرَادَ أَنْ يُضَحِّيَ [٧] فَلَا يَأْخُذْ مِنْ شَعْرِهِ وَلَا مِنْ أَظْفَارِهِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] بي بي ام سلمه رضي الله عنها راويه ده چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] هر کله چې د ذي الحجه اولني عشره شروع شي نو په تاسو کې چې کوم سړي د قرباني اراده کوي [٣] هغه (دې تر هغه وخته پورې چې قرباني ونه کړي) خپل ويښتان او نوکونه دې بالکل نه پرې کوي [٤] په يو روايت کې داسې دي چې نه دې ويښتان کټ کوي [٥] او نه دې نوکونه کټ کوي [٦] د يو بل روايت الفاظ دا دي چې کوم سړي د لوي اختر مياشت ووينې او هغه د قرباني کولو اراده لري [٧] نو هغه (دې تر قرباني کولو پورې) خپل ويښتان او نوکونه نه پرې کوي. (مسلم)

**حل اللغات:-** ①شَعْر: ويښته، ②بَشَر: څمرې ته وائي يعنى خپل بدن نه دې څه نه اخلي، (دلته نوکان مراد دي) ③لَا يَقْلِمَنَّ: نه دې کټ کړي، ④ظُفْرًا: نوکان، ⑤أَظْفَارِهِ: نوکان.

**تسهيلات:**

**قوله: فَلَا يَمَسَّ مِنْ شَعْرِهِ:**

**د نهي محمل:-**

په حديث کښې چې کومه نهي راغلې ده چې څوک د قرباني اراده لري نو اولسمه ذي الحجه داخله شي نو خپل نوکان وغيره دې نه کټ کوي علامه ظفر عثماني رحمه الله فرمائيلي دي چې دا په نهي تنزيهي باندې حمل ده که څوک د لسمې ذالحجې د داخليدو نه پس نوکان وغيره د خپل بدن زياتي حصې نه کټ کړي نودا مستحب خبره ده. څه واجب نه ده. (فتاوى دارالعلوم ديوبند بتغير)

[١٤٦٠] د لسمې ذي الحجه د نيکو اعمالو فضيلت

٣٦٠-(٢)[٨] [١] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] «مَا مِنْ أَيَّامٍ الْعَمَلُ الصَّالِحُ فِيهِنَّ أَحَبُّ إِلَى اللَّهِ مِنْ هَذِهِ الْأَيَّامِ الْعَشَرَةِ [٣] قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، وَلَا الْجِهَادُ فِي سَبِيلِ

[١] ) اخرجه مسلم فى كتاب الأضاحى /باب نهى من دخل عليه عشر ذى الحجة وهو مريد التضحية ان يأخذ من شعره، أو أظفاره شيئا(رقم) ٣٩ - (١٩٧٧) وابوداود كتاب الضحايا /باب الرجل يأخذ من شعره فى العشر وهو يريد أن يضحى (رقم-٢٧٩١) والترمذى كتاب الأضاحى عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ترک أخذ الشعر لمن أراد أن يضحى (رقم-١٥٢٣) والنسائى كتاب الضحايا (رقم-٤٣٦٣)

[٢] ) اخرجه البخارى فى كتاب العيدين /باب فضل العمل فى أيام التشريق (رقم-٩٦٩) وابوداود كتاب الصوم /باب فى صوم العشر (رقم-٢٤٣٨) والترمذى كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء فى العمل فى ايام العشر (رقم-٧٥٧) وابن ماجة كتاب الصيام /باب صيام العشر (رقم-١٧٢٧)

اللهِ؟ [٣] قَالَ: وَلَا الْجِهَادُ فِي سَبِيلِ اللهِ، [٥] إِلَّا رَجُلٌ خَرَجَ بِنَفْسِهِ وَمَالِهِ فَلَمْ يَرْجِعْ مِنْ ذٰلِكَ بِشَيْءٍ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [١] ابن عباس رضي الله عنهما راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] په ورځو کښې داسې هیڅ ورځ نشته چې په هغې کې نیك عمل کول د الله ﷻ په نیز د دې لسو ورځو (د ذي الحجه اولني عشره) څخه زیات محبوب وي [٣] صحابه وُ رضي الله عنهم عرض وکړو چې یا رسول الله ﷺ (د دي ورځو څخه علاوه په نورو ورځو کې) د الله ﷻ په لار کې جهاد کول هم (د دي ورځو د نیك اعمالو برابر) نه دي؟ [٤] وي فرمایل چې هو، د الله ﷻ په لار کې جهاد کول هم (د دي ورځو د نیك اعمالو برابر) نه دي [٥] مګرد هغه سړي جهاد چې د خپل سر ومال سره (د الله په لار کې د جنګ د پاره) وتلي وو او بیا راواپس نشو (د دي ورځو د نیک اعمالو څخه هم زیات افضل دي) (بخاري)

**تسهیلات:**

**قوله: وَلَا الْجِهَادُ:**

**د عشر ذی الحجې په جهاد فوقیت:-** دَ صحابه کرامو په زړه اودماغوکښې دَ جهادنقشه ډیره اوچته وه. چونکه دَدې فضائل ډیرزیات دی په دې وجه شك پیدا شو چه آیا دَ جهادنه هم دَدې عشرې اعمال اوچت دی؟ رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه اودَ جهاد نه هم افضل دی. الاّ دا چه مجاهد جهاد ته لاړشی او پخپله شهیدشی او اس ئی هم مړشی. دَ پوره سرمایه قربانی اولګوی دکوم باره کښې چه دا اووئیلې شی:

**دعشر ذی الحجه او د رمضان آخری عشرې په فضیلت کښې متضاد روایات اوپه هغې تطبیق:-** اوس دلته دا بحث دې چه دَ رمضان آخری عشره دَ زیات فضیلت والاده کـه دَ ذوالحجهَ اول عشره زیاته دَ فضیلت والاده. دَ زیر بحث حدیث نه خومعلومیږی چه دَ ذوالحجه عشره دَ رمضان دَعشرې نه افضل ده. مګر علماؤ دَتطبیق په توګه داسې لیکلی دی چه ممکن ده چه دَ ذوالحجې دَ عشرې فضیلت دَ رمضان نه علاوه ایام باندې وی دَ عشره رمضان سره ئی مقابله نه وی. دویمه توجیه داده چه دواړه عشرې په جدا جدا حیثیت سره په یوبل باندې اوچتوالې حاصل وی. مثلاً عشره ذوالحجه په دې اعتبارسره افضل اوغوره ده چه په دې کښې دَ عرفې ورځ ده اودَ رمضان آخری عشره په دې اعتبارسره غوره ده چه په دې کښې شب قدر دې. که دَعشرې ذوالحجې نه دَ عرفې ورځ اخوا شی نوعشره رمضان غوره ده اوکه دَعشره دَ رمضان نه شب قدر اخواشی نو دَ عشره دَ ذوالحجې افضل ده.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [١٤٦١]د قرباني دعا

١٤٦١ –()[٩] [١] عَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: [٢] «ذَبَحَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَوْمَ الذَّبْحِ كَبْشَيْنِ أَقْرَنَيْنِ، [٣] أَمْلَحَيْنِ، مَوْجُوءَيْنِ، [٤] فَلَمَّا وَجَّهَهُمَا قَالَ: إِنِّي وَجَّهْتُ وَجْهِيَ لِلَّذِي [٥] فَطَرَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ عَلَى مِلَّةِ إِبْرَاهِيمَ حَنِيفًا، [٦] وَمَا أَنَا مِنَ الْمُشْرِكِينَ، [٧] إِنَّ صَلَاتِي وَنُسُكِي وَمَحْيَايَ وَمَمَاتِي لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ [٨] لَا شَرِيكَ لَهُ، وَبِذَلِكَ أُمِرْتُ وَأَنَا مِنَ الْمُسْلِمِينَ،

**ترجمه:** [١] حضرت جابر رضي الله عنه راوي دي [٢] چې نبي كريم ﷺ د ذبح په وخت (يعني د لوي اختر په ورځ) دوه پسونه ذبح كړل وغوښتل چې هغه ښكرور وو [٣] اوكمر (برګ) او خصي وو [٤] نو هغه يي مخ په قبله كړل او دا يي اوويل: إِنِّي وَجَّهْتُ وَجْهِيَ لِلَّذِي فَطَرَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ عَلَى مِلَّةِ إِبْرَاهِيمَ حَنِيفًا وَمَا أَنَا مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ إِنَّ صَلَاتِي وَنُسُكِي وَمَحْيَايَ وَمَمَاتِي لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ لَا شَرِيْكَ لَهُ وَبِذَلِكَ أُمِرْتُ وَأَنَا مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ اللّٰهُمَّ مِنْكَ وَلَكَ عَنْ مُحَمَّدٍ وَأُمَّتِهِ بِاسْمِ اللّٰهِ وَاللّٰهُ أَكْبَرُ (يعني زه خپل مخ د هغه ذات طرف ته متوجه كوم [٥] چې هغه آسمانونه او زمكه پيدا كړل په دې حال كې چې زه په دين ابراهيم يم چې توحيد منونكي وو[٦] او زه هم دمشركينو څخه نه يم [٧] بيشكه زما مونځ، زما ټول عبادتونه، زما ژوند او زما مرګ (هرڅه) الله جل جلاله لره دي چې د ټولو جهانو پروردګار دي[٨] د هغه څوك شريك نشته او ما ته د دې حكم شوې دي او زه د مسلمانانو څخه يم.

**حل اللغات:**- ① أَقْرَنَيْنِ: ښكرونو والا، ② أَمْلَحَيْنِ: برګې دوه ګډان، دَتور اوسپين رنګ برګې ته املح وائي، ابلق هم ورته وائي. ③ مَوْجُوءَيْنِ: وجأيوجأووجاءًفهوموجوء: دَ ټكولو او ټكړې كولو په معنى كښې دې، دوه خصي ګډان مراد دي. ④ حَنِيفًا: په حق دين باندې كلك اودريدونكې ⑤ نُسُك: د نسک څخه دلته قرباني مراد ده.

[١] اللّٰهُمَّ مِنْكَ وَلَكَ، [٢] عَنْ مُحَمَّدٍ وَأُمَّتِهِ، [٣] بِسْمِ اللّٰهِ، وَاللّٰهُ أَكْبَرُ، ثُمَّ ذَبَحَ». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ. [٤] وَفِي رِوَايَةٍ لِأَحْمَدَ، وَأَبِي دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيِّ: «ذَبَحَ بِيَدِهِ وَقَالَ: بِسْمِ اللّٰهِ، وَاللّٰهُ أَكْبَرُ، [٥] اللّٰهُمَّ هَذَا عَنِّي وَعَمَّنْ لَمْ يُضَحِّ مِنْ أُمَّتِي».

**ترجمه:** [١] اي الله دا قرباني ستا د وركړې څخه ده او خالص ستا د رضا د پاره ده [٢] ته دا دمحمد ﷺ او د هغه د امت د طرف څخه قبوله كړي [٣] د الله جل جلاله په نامه سره او الله جل جلاله ډير لوي دي) د دې څخه وروسته حضور ﷺ ذبح وكړه، احمد ابوداؤد ابن ماجه دارمي، [٤] او د احمد، ابوداؤد او ترمذي په يو روايت كې دا الفاظ دي چې رسول الله ﷺ (دواړه

[١] ) اخرجه ابوداود فى كتاب الضحايا/باب ما يستحب من الضحايا (رقم-٢٧٩٥) والترمذى كتاب الأضاحى/باب (رقم-١٥٢١) وابن ماجة كتاب الأضاحى/باب أضاحى رسول الله صلى الله عليه وسلم (رقم-٣١٢١)



پسونه) په خپل لاس مبارك سره ذبح كړل او بسم الله والله اكبر يې وويل،٥ او وې ويل اې الله دا قرباني زما د طرف څخه ده او زما د امت د هغه فرد د طرف څخه ده چې هغه قرباني نه ده كړې.

**تسهيلات:** "مَوْجُوءَيْنِ" هګئي چه كله دَ دوو كانړو په مينځ كښې بنه اوټكولې شي هغې ته وجاء وائي دلته هم دغه مراد دې. موجوء دَ اسم مفعول صيغه ده او موجوئين دَدې تثنيه ده.

**دحديث مطلب:**- مطلب دا چه هغه دواړه ګډان خصي وو. چه كله يو څناور دواړه هګئي اوويستلې شي هغې ته په عربي كښې خصي وائي. مګر چه كله هګئي په كانړي اوټكولې شي هغې ته وجاء وائي. بهرحال په دې عمل سره دَ قربانئي په څاروي كښې غوښه كميږي نه بلكه مزيداره كيدوسره زياتيږي په دې وجه جائز بلكه احسن دى.

**قوله: عَمَّنْ لَمْ يُضَحِّ مِنْ أُمَّتِي:**

**غريبانو خلقو ته تسلي:**- دَ دې مطلب دادې چه زما دَ امت دَ كسانونه چه كوم خلق غريب اوبې وسه دي اودَ قربانئي طاقت نه لري دَهغوى دَ طرف نه دا قرباني ده چه ماسره هغوى له هم ثواب وركړې شي. دَدې جملې دا مطلب نه دې چه دا قرباني دَهغوى دَ طرف نه هم قرباني ده ځكه چه پوره امت په يوه قربانئي كښې شريكيدې نه شي. البته په ثواب كښې شركت كيدې شي. او كه چرې دَ ټولو فقيرانو او غريبانانودَ طرف نه حقيقي قرباني مراد واخستې شي نوبيا دا دَ رسول الله ﷺ دَ خصوصياتونه به شميرلې كيږي. دَ نورو دَپاره به قاعده نه جوړيږي.

**[١٤٦٢]دَمړو دپاره د قربانۍ جواز**

١٤٦٢ –()[١٠] ١ وَعَنْ حَنَشٍ قَالَ: ٢ رَأَيْتُ عَلِيًّا -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- يُضَحِّي بِكَبْشَيْنِ، ٣ فَقُلْتُ لَهُ: مَا هٰذَا؟ ٤ فَقَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- أَوْصَانِي أَنْ أُضَحِّيَ عَنْهُ، ٥ فَأَنَا أُضَحِّي عَنْهُ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَرَوَى التِّرْمِذِيُّ نَحْوَهُ.

**ترجمه:** ١ حضرت حنش فرمايي ٢ چې ما حضرت علي كرم الله وجهه دوه پسونه قرباني كونكي وليدلو ٣ نو ما هغه ته اوويل چې دا څه دي؟ (يعني هر كله چې د يو پسه قرباني كافي ده نو دوه پسونه ولي قرباني كوې؟) ٤ هغه وفرمايل چې رسول الله ﷺ ما ته دا وصيت كړي وو چې (د هغه د وصال څخه وروسته) د هغه ﷺ د طرف څخه قرباني وكړم ٥ نو زه د هغه ﷺ د طرف څخه قرباني كوم. (ابوداؤد ترمذي)

[١] اخرجه ابوداود كتاب الضحايا/باب الأضحية عن الميت (رقم-٢٧٩٠) والترمذى كتاب الأضاحى عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى الأضحية عن الميت (رقم-١٤٩٥)

**تسهيلات:**

**قوله: فَأَنَا أُضَحِّي عَنْهُ:**

**د حضرت علی په قربانۍ کښې دوه احتمالات:-**

① حضرت علی ﷺ د خپلې قربانۍ نه علاوه دوه ګډان د حضرت رسول کريم ﷺ د طرفه قربانی کول لکه څنګه چې به حضرت رسول کريم ﷺ په خپل ژوند مبارک کښې دوه ګډان قربانی کول.

② حضرت علی ﷺ به يوه قربانی د خپل طرفه کوله او يو ګډ به نې د حضرت رسول کريم ﷺ د طرفه قربانی کولو. او په ظاهره دا معلوميږی چې دحضرت علی ﷺ دا د هميشه معمول وو چې هغوئ به هر کال د حضرت رسول کريم ﷺ د طرفه قربانی کوله.

**د مړی د طرفه په قربانۍ کښې د ابن مبارک قول:-** دا حديث مبارک په دې خبره باندې دلالت کوی چې د مړی طرفنه قربانی کول جائز دی. اګرچې ځينې علماء کرام دا جائز نه ګڼړی. د ابن مبارک ﷫ قول دې چې ما ته دا خوښ دی چې د مړی دطرفه د الله ﷻ په لار کښې خرج اوکړې شی. دهغه د طرفه دې قربانی اونه کړې شی ، او که د مړی د طرفه قربانی اوکړې شی نو هغه غوښه دې پخپله بالکل نه خوری بلکه ټوله دې دالله ﷻ په نوم تقسيم کړی.

**[١٤٦٣] دَعيب دار څاروی د قربانۍ عدم جواز**

> ١٤٦٣-(١)[١١] [١] «وَعَنْ عَلِيٍّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: [٢] أَمَرَنَا رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- أَنْ نَسْتَشْرِفَ الْعَيْنَ وَالْأُذُنَ، [٣] وَأَلَّا نُضَحِّيَ بِمُقَابَلَةٍ وَلَا مُدَابَرَةٍ [٤] وَلَا شَرْقَاءَ وَلَا خَرْقَاءَ». [٥] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، [٦] وَانْتَهَتْ رِوَايَتُهُ إِلَى قَوْلِهِ: وَالْأُذُنَ.

**ترجمه:** [١] حضرت علي کرم الله وجهه فرمايي [٢] چې رسول الله ﷺ مونږ ته حکم کړي دي چې مونږ د قرباني د حيوان سترګي او غوږ په ښه شان وګورو (چي څه داسې عيب او نقصان خو به پکي نه وي چې د هغې په وجه قرباني درست نه وي [٣] او دا حکم يې هم کړي دي چې) مونږ دهغه حيوان قرباني وکړو چې د هغه غوږ د مخ طرف څخه يا د شا د طرف څخه پري شوې نه وي [٤] او نه د هغه حيوان چې د هغه غوږ په اوږدوالي کې څيرل شوې وي او نه په ګولايي (پلن والي) کې شليدلي وي، [٥] دا روايت ترمذي، ابوداؤد، نسايي، دارمي او ابن ماجه نقل کړي دي [٦] ليکن د ابن ماجه روايت په لفظ والأذن باندې ختم شوې دي.

**حل اللغات:-** ① نَسْتَشْرِفَ: استشراف وراوچتيدو سره کتل اودَ لټون په معنی کښې دې. ② بِمُقَابَلَةٍ: هی التی قطع من قبل اذنها شئ لم يترك معلقاً: يعنی مقابله هغه څناور دې دَکوم دَ غوږ دَ وړاندې طرف نه چه څه حصه پرې کړې شوې وی اوبيا زوړند کړې شوې پريخودې شوی وی. ③ لَا مُدَابَرَةٍ: مدابر هغه

---

[١] ) اخرجه الترمذى كتاب الأضاحى عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما لا يجوز من الأضاحى (رقم-١٤٩٨) والنسائى كتاب الضحايا/باب المقابلة: وهى ما قطع طرف أذنها (رقم-٤٣٧٢)

څناور دې د کوم دغوږ د شاتنۍ حصې نه څه حصه پرې کړې شوې وی اوبیا زوړند کړې شوې پرېخودې شوې وی. ④لَا شَرْقَاءَ: اي المشقوقة الاذن باثنين: یعنی چه د څناور غوږ په اوږدوالی څیرلې شوې وی. ⑤لَا خَرْقَاءَ: المثقوبة الاذن لها مستديرا: یعنی د کوم غوږونه په ګولائی کښې شلیدلې وی او په هغې کښې ګول سورې کړې شوې وی.

تسهیلات: قوله : أَنْ نَسْتَشْرِفَ الْعَيْنَ وَالْأُذُنَ:

## د غوږکټ شوی څناور په قربانی کښې مذاهب

① شوافع حضرات فرمائی چه دکوم څناور غوږ لږشان هم پرې شوې وی دهغې قربانی جائز نه ده.
② احناف فرمائی که نصف یا د نصف نه زیات غوږ پرې شوې وی نوقربانی جائز نه ده او که دَدې نه کم پرې شوې وی نو دهغې قربانی جائز ده البته که ښکرئی مات وی نود تېولو په نیز قربانی جائز ده.

**په کومو څارووچې قربانی جائز نه ده:-** د احنافو چه کوم مسلك دې په هغې کښې دی چه دَداسې څاروی قربانی جائزنه ده د کوم غوږ چه دریمه حصه یا دَدې نه زیات پرې شوې وی اودکوم څاروی چه پیدائشی نه وی دهغې هم جائزنه ده. دغه شان لکئی یا پوزه که دریمه حصه یا دَدې نه زیات پرې شوی وی د هغې قربانی هم جائز نه ده. د ړوند اوکُنړ څاروی قربانی صحیح نه ده. دغه شان دریمه حصه یا دَدې نه زیات نظر ئی که تلې وی نودهغې هم جائز نه ده.

**دحدیث الباب څخه جواب:-** که چرې غوږ ئی پرې شوې وی او زوړندوی نودهغې قربانی جائز ده. د احنافو په کتابونوکښې هم دغه شان لیکلی دی. لیکن په زیربحث حدیث کښې دَدې ممانعت معلومیږی. احناف فرمائی په داسې صورت کښې دَدې حدیث ممانعت په کراهت تنزیهی باندې محمول دې.

### [١٤٦٤] د ښکرماتی اوغوږکټ شوی څاروی د قربانی حکم

۱۴۶۳—(¹)[١٣] ١ وَعَنْهُ قَالَ: ٢ «نَهَى رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- أَنْ نُضَحِّيَ بِأَعْضَبِ الْقَرْنِ وَالْأُذُنِ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ١ حضرت علي کرم الله وجهه راوي دي ٢ چې رسول الله ﷺ منع فرمایلي ده چې مونږدې داسې حیوان قرباني کړوچې د هغه ښکرمات وي اوغوږیې پرې شوي وي. (ابن ماجه)

**حل اللغات:-** ① أَعْضَبِ: ضرب یضرب نه اعضب هغه څاروی ته وائی د کوم ښکرچه مات وی یاغوږئی پرې شوې وی. ② الْقَرْنِ: ښکر.

---

¹) اخرجه ابوداود فی کتاب الضحایا/باب ما یکره من الضحایا (رقم-٢٨٠٥) والنسائی کتاب الضحایا/باب العضباء (رقم-٤٣٧٧) وابن ماجة کتاب الأضاحی/باب ما یکره، أن یضحی به (رقم-٣١٤٥)

**تسهیلات: قوله: بِأَعْضَبِ الْقَرْنِ:**
**د ښکر ماتې څاروي د قربانۍ حکم:**- دَ احنافو دَ مسلك مطابق دَداسې څاروي قرباني جائزده دَ کوم چه ښکر پیدائشي توګه باندې نه وي یا مات شوې وي یا دَ ښکرقوله دېره نه لرې شوې وي یاکه چرې ښکر دومره دَ بیخ نه وتلې وي په کوم سره چه دَ څاروي غوښه متاثر شوې وي نودَهغې قرباني جائزنه ده. دَ مذکوره حدیث په ممانعت سره کیدې شي چه داسې څاروې مراد وي دَ کوم ښکرچه دَ بیخ نه مات شوې وي نودَ احنافو مسلك به دَ حدیث موافق شي یا دامما نعت کراهت تنزیهي یعني په خلاف اولی باندې محمول دې.

**[١٤٦٥] دَ څلورقسم څاروود قربانۍ ممانعت**

١٤٦٥- (١)[١٣] ١ وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ -: ٢ «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - سُئِلَ: مَاذَا يُتَّقَى مِنَ الضَّحَايَا؟ ٣ فَأَشَارَ بِيَدِهِ فَقَالَ: أَرْبَعًا: ٤ الْعَرْجَاءُ الْبَيِّنُ ظَلْعُهَا، ٥ وَالْعَوْرَاءُ الْبَيِّنُ عَوَرُهَا، ٦ وَالْمَرِيضَةُ الْبَيِّنُ مَرَضُهَا، ٧ وَالْعَجْفَاءُ الَّتِي لَا تُنْقِي». رَوَاهُ مَالِكٌ، وَأَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ١ حضرت براء ابن عازب ﷺ راوي دي ٢ چې د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وشوه چې کوم حیوان د قرباني لائق نه دي؟ ٣ نو حضور ﷺ د لاس په ګوتو سره اشاره کولو سره وفرمایل چې څلور قسمه حیوانات د قرباني کولو قابل نه دي ٤ ① ګوډ چې د هغې ګډ توب ظاهر وي یعنی چې تلي نشي ٥ ② په سترګه ړوند چې د هغه ړوندوالي ظاهر وي یعنی په یوه سترګه بالکل نهویني یا نیمه یا د نیمي څخه زیاته رڼا یي تلي وي ٦ ③ بیمار چې بیماري یي ظاهره وي چې د هغه بیماري په وجه واښه نشي خوړلي ٧ ④ داسې ډېر کمزوري حیوان چې په هډوکو کې یي نلي(ماغزه) نه وي. (مالك، احمد، ترمذي، ابوداؤد، نسایي، ابن ماجه، دارمي)

**حل اللغات:**- ① الْعَرْجَاءُ: ګوډ څاروې، ② الْبَيِّنُ: چه ښکاره وی. ③ عرجها: دَ ګوډ څاروی ګوډوالی ته ظلع وائی. ④ الْعَوْرَاءُ: دَ اعور نه دې هغه څاروی ته وائی چه کاڼړا وی. ⑤ الْعَجْفَاءُ: دَ بیمارئ دَ وجې نه چه کله څاروې اوچ شی مانده شي هغې ته عجفاء وائی. ⑥ لَاتُنْقِي: دَباب افعال نه دې. نِقْيٌ: دَ هډونکی په مینځ کښې مغزته وائی. دَلاتنقی معنی داشوه دکوم په هډوکوکښې چه مغز ختم شوې وی.

**تسهیلات:**

**قوله: فَقَالَ: أَرْبَعًا:**

**په څلورقسمه څاروو باندې د قربانۍ عدم جواز:**- په دې حدیث کښې نبی علیه السلام فرمائی

---

(١) اخرجه ابوداود في كتاب الضحايا/باب ما يكره من الضحايا (رقم-٢٨٠٢) والترمذي كتاب الأضاحي عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما لا يجوز من الأضاحي (رقم-١٤٩٧) وابن ماجة كتاب الأضاحي/باب ما يكره. أن يضحى به (رقم-٣١٤٤) ومالك في الموطا كتاب الضحايا/باب ما ينهى عنه من الضحايا (رقم-١)

چې په څلور قسمه څاروو باندې قرباني نه کيږي.

① الْعَرْجَاءُ: په گوډ څاروي چې گوډ والې ئې ښکاره وي په تگ کښې ئې پته لگي.

② الْعَوْرَاءُ: کانړې څاروي چې په نظر کښې ئې فرق وي ښکاره معلوميږي چې نظر ئې نه لگي.

③ الْمَرِيضَةُ: داسې بيمار څاروې چې بيماري ئې ښکاره وي او گياه نشي خوړلې.

④ الْعَجْفَاءُ: داسې څاروې چې د تښې والی د وجې ئې په هډوکو کښې مغز نه وي. (خيرالتوضيح)

**[۱٤٦٦] دَ څرب څاروی قربانی کول**

۱۳۶۶ - (ا) [۱۳] [۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يُضَحِّي بِكَبْشٍ أَقْرَنَ فَحِيلٍ، [۳] يَنْظُرُ فِي سَوَادٍ، [۴] وَيَأْكُلُ فِي سَوَادٍ [۵] وَيَمْشِي فِي سَوَادٍ» . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابو سعيد فرمايي [۲] چې رسول الله ﷺ به د داسې ښکرور او چاغ پسه قرباني کوله [۳] چې په سياهي کې به يې ليدل يعنی د سترگو شاوخوا به يې سياهي (توروالي) وو [۴] په سياهي کې به يې خوړل يعنی د هغې مخ به تور وو [۵] او په سياهي کې به تلو يعنی د هغه پښي به هم توري وي. (ترمذي، ابوداؤد، نسايي، ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① كَبْشٍ: گډ، ② أَقْرَنَ: ښکرنو والا، ③ فَحِيلٍ: ککريم وزناً ومعناً هوالقوي خلقة والكثيرلحماً يعنی چاق اوډك ښکلې ښائسته صورت والاطاقتور نر گډ، ④ سَوَادٍ: يعنی دَ خپو غاړې ئی توري وې، د خله اودَ سترگو دائرې ئی توري وې، باقی سپين وو (يعنی ښائسته برگ گډ وو).

**تسهيلات:**

**قوله: فَحِيلٍ:**

**د يو څرب څاروی قربانی د دوو لاغرو قربانو څخه افضليت:** - دښائسته صورت والاطاقتور نر گډ قربانی به حضورپاك ﷺ کوله. فقهاؤ ليکلی دی چه چاق تازه اودَ ښکلی څاروی قربانی مستحب ده. لکه چاقه تازه يوه چيلئی وی او کمزورې مانده چيلئی دوه وی نودَ يوقربانی دَ داسې کمزوری اومانده څاروی نه بهتر ده.

**د غلام په آزادولو کښې د کثرت عدد افضليت:** - ليکن که دَ غلامانودَ آزادئی خبره وی نوهلته دَ دوو کمزورو غلامانو آزادول دَ يو چاق تازه غلام دَ آزادولونه بهتردی.

دَدې وجه داده چه دَځناور قربانی په حقيقت دَ حضرت اسماعيل عليه السلام دَ ځان دَقربانئی په بدله کښې الله تعالی په انسانانوباندې مهربانی کولوسره قبوله کړې ده. لهذا دَ ځناور بدن

[1] ) اخرجه ابوداود في كتاب الضحايا/باب ما يستحب من الضحايا (رقم-۲۷۹۶) والترمذی كتاب الأضاحی عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء ما يستحب من الأضاحی (رقم-۱٤۹۶) وابن ماجة كتاب الأضاحی/باب ما يستحب من الأضاحی (رقم-۳۱۲۸)

او ښائست کښې دَدې صفاتو خيال ساتل ضروري دی کوم چه دَ بدنی اودَ ښائست صفات چه دَ حضرت اسماعيل عليه السلام دَ قربانئی په وخت کښې وو.

**[١٤٦٧]دَشپږو مياشتو دګډ قرباني کولو جواز**

١٣٦٧-(¹)[١٥][١]وَعَنْ مُجَاشِعٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- مِنْ بَنِي سُلَيْمٍ: [٢]«أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- كَانَ يَقُولُ: [٣]إِنَّ الْجَذَعَ يُوفِي [٤]مِمَّا يُوفِي مِنْهُ الثَّنِيُّ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:**[١] د قبيله بني سليم (يو سړي) مجاشع رحمه الله راوي دي[٢] چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل[٣] چې جذع (يعني هغه وري يا ګډوري چې د هغه عمر د شپږ مياشتو څخه زيات وي)کافي دي[٤] د هغه بچي څخه چې کفايت وکړي هغه ته ثني. (ابوداود ،نسايي،ابن ماجه)

**حل اللغات:**- ① الْجَذَعَ: دشپږو مياشتو څرب ګډوري، ②يُوفِي: چه کفايت اوکړی، ③الثَّنِيُّ: دعمر په لحاظ سره مختلفو ځاروو ته ثنی وائی لکه يو کليز ګډ، وغيره،

**تسهيلات:**

**قوله: إِنَّ الْجَذَعَ يُوفِي مِمَّا يُوفِي مِنْهُ الثَّنِيُّ:**

**د جزع د لفظ تحقيق:**- دَ شپږومياشتوګډې ته جذع وائی دَدې عمردَ ګډې قربانی جائزده. دَ چيلئی جائزنه ده اوکه چيلئی دَ يوکال وی نودَهغې قربانی جائزده. خلاصه داچه څنګه دکال دَ چيلئی قربانی کول جائز ده دغه شان دَ شپږومياشتو دَ ګډې قربانی هم جائزده. په دې حديث کښې هم دامسئله بيان کړې شوې ده. اودَ "يوفی" ترجمه اومطلب هم دغه دې چه دَ شپږو مياشتوګډه دَ کال دَ چيلئی په شان کافی ده.

**قوله: الثَّنِيُّ:**

**د ثنی د لفظ تحقيق:**- داهم يواصطلاحی لفظ دې چيلوکښې ثنی هغې ته وائی کومې چه يوکال پوره کړې وی او په دويم کښې ئی قدم کيخودې وی. په غوا او غوئې کښې ثنی هغه وی دَ کوم چه دوه کاله عمر پوره شوې وی او په دريم کال کښې ئی قدم کيخودې وی او په اوښ کښې ثنی هغه دې چه دَ پنځوکالوپوره کولونه پس ئی په شپږم کال کښې داخل شوې وی.

**[١٤٦٨]دشپږمياشتيزې ګډې قرباني**

١٣٦٨-(²)[١٦][١]وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: [٢]سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: [٣]«نِعْمَتِ الْأُضْحِيَةُ الْجَذَعُ مِنَ الضَّأْنِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

---

¹) اخرجه ابوداود في كتاب الضحايا/باب ما يجوز من السن في الضحايا (رقم-٢٧٩٩) والنسائي كتاب الضحايا/باب المسنة والجذعة (رقم-٤٣٨٤) وابن ماجة كتاب الأضاحی/باب ما تجزئ من الأضاحی (رقم-٣١٤٠)

²) اخرجه الترمذی فی کتاب الأضاحی عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الجذع من الضأن فی الأضاحی (رقم-١٤٩٩)

**ترجمه:** [١] ابوهریره ﷺ وایي [٢] چې ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي [٣] چې د پسه د جذع (یعني د شپږو میاشتو د بچي) قرباني بهتره ده. (ترمذي).

**حل اللغات:** - ① الْجَذَعُ: دشپږو میاشتو خرب ګډوري، ② الضَّأْنِ: ګډ، پیسه.

**تسهیلات:**

**قوله:** نِعْمَتِ الْأُضْحِيَّةُ الْجَذَعُ مِنَ الضَّأْنِ:

**د ګډ په شپږمیاشتیز بچی د قربانی جواز:** - د شپږ میاشتیز ګډ د قربانی بیانولو مقصد خلقته دا بیانول دی چې د ګډ دشپږو میاشتو بچی باندې قربانی جائز ده په خلاف د چیلی د جذع چې دهغې قربانی جائز نه ده.

**[١٤٦٩] په اوښ کښې د لسو کسانو د شرکت حکم**

١٣٦٩ —(١)[١٧] [١] «وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: [٢] كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي سَفَرٍ، فَحَضَرَ الْأَضْحَى، [٣] فَاشْتَرَكْنَا فِي الْبَقَرَةِ سَبْعَةً، وَفِي الْبَعِيرِ عَشَرَةً» . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [١] ابن عباس ﷺ فرمایي [٢] چې د رسول کریم ﷺ سره (مونږ) په یو سفر کې وو چې د قرباني اختر راغي [٣] نو د غوا په قرباني کې مونږ اوه سړي او د اوښ په قرباني کې زمونږ لس سړي شریك شو. (ترمذي، نسایي، ابن ماجه، امام ترمذي فرمایي چې دا حدیث حسن غریب دي)

**حل اللغات:** - ① الْبَعِيرِ: اوښ.

**تسهیلات:** **قوله:** وَفِي الْبَعِيرِ عَشَرَةً:

**(نوټ)** د اوښ په قربانی کښې د شرکاؤ په تعداد کښې د مذاهبو بیان هم په دې باب کښې وړاندې تیر شوی دی.

**[١٤٧٠] د قربانی کولو فضیلت**

١٣٧٠ —(٢)[١٨] [١] وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] «مَا عَمِلَ ابْنُ آدَمَ مِنْ عَمَلٍ يَوْمَ النَّحْرِ أَحَبَّ إِلَى اللَّهِ مِنْ إِهْرَاقِ الدَّمِ، [٣] وَإِنَّهُ لَيُؤْتَى يَوْمَ الْقِيَامَةِ، بِقُرُونِهَا وَأَشْعَارِهَا وَأَظْلَافِهَا، [٤] وَإِنَّ الدَّمَ لَيَقَعُ مِنَ اللَّهِ بِمَكَانٍ قَبْلَ أَنْ يَقَعَ بِالْأَرْضِ، [٥] فَطِيبُوا بِهَا نَفْسًا» . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

---

[1] ) اخرجه الترمذی فی کتاب الأضاحی عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الاشتراک فی الأضحیة (رقم-١٥٠١) والنسائی کتاب الضحایا/باب ما تجزئ عنه البقرة فی الضحایا (رقم-٤٣٩٣) وابن ماجة کتاب الأضاحی/باب عن کم تجزئ البدنة والبقرة (رقم-٣١٣١)

[2] ) اخرجه الترمذی فی کتاب الأضاحی عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی فضل الأضحیة (رقم-١٤٩٣) وابن ماجة کتاب الأضاحی/باب ثواب الأضحیة (رقم-٣١٢٦)

**ترجمه:** [١] بي بي عائشه رضي الله عنها فرمايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] د ابن آدم د نحر (يعني د قرباني كولو د ورځي) داسې هيڅ عمل نشته چې د الله ﷻ په نيز د وينې بهيولو (يعني قرباني كولو) څخه زيات محبوب وي [٣] او (د قرباني) هغه ذبحه شوي حيوان به د قيامت په ورځ د خپلو ښكرونو، ويښتانو او نوكونوسره راشي [٤] اودقرباني وينه قبل د دې څخه چې په زمكه وغورځيږي (يعني د ذبح كولو د ارادي په وخت) په بارگاه الهي كې قبليږي [٥] نو تاسو د دې په وجه (يعني په قرباني كولو سره) خپل نفس خوشحاله كړئ. (ترمذي ابن ماجه)

**حل اللغات:-** ① إِهْرَاقِ: بهيول، تويول، ② أَظْلَافِهَا: نوكان، ③ طِيبُوا: خوشحاله كړئ.

**تسهيلات:**

**قوله: مِنْ إِهْرَاقِ الدَّمِ:**

**د اخترپه ورځ محبوب عمل:-** دحديث مبارك حاصل دادې چې د قربانۍ په ورځ الله ﷻ ته محبوب ترين څيز د قربانۍ عمل دې. ددې نه علاوه بل څه كار محبوب نه دې.

**د قربانۍ د ځاروي ښكرونو سره د راتلو په مفهوم كښې دوه اقوال:-**

① د قيامت په ورځ به هغه قرباني شوې ځناور خپلو ښكرو ، ويښتو سره راځي يعنى دا كنايه ده د ثواب نه ② دا په حقيقت باندې محمول دى.

**د قربانۍ مقصد:-** ددې نه معلومه شوه چې په قربانۍ كښې مقصود وينه تويول دى. لهذا كه يو كس د قربانۍ د ځناورقيمت ادا كړي يا ددې ځناور نه دوچنده غوښه خيرات كړي نو دده قرباني به بالكل ادا نه وى. ځكه چې قربانى خو نقل دې د حضرت ابراهيم عليه السلام هغوئ وينه توې كړې وه، رقم ئې نه وو ادا كړې يائې غوښه نه وه خيرات كړې. لهذا كوم خلق چې دا وائى چې د قربانۍ په ځائې غريبانانوسره تعاون زيات بهتر دى نو دا غلط سوچ دې.

**[١٤٧١] دَذوالحجې دَلسوشپوورځوفضيلت**

١٤٧٣-()[١٩] [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] «مَا مِنْ أَيَّامٍ أَحَبُّ إِلَى اللَّهِ أَنْ يُتَعَبَّدَ لَهُ فِيهَا مِنْ عَشْرِ ذِي الْحِجَّةِ، [٣] يَعْدِلُ صِيَامُ كُلِّ يَوْمٍ مِنْهَا بِصِيَامِ سَنَةٍ، [٤] وَقِيَامُ كُلِّ لَيْلَةٍ مِنْهَا بِقِيَامِ لَيْلَةِ الْقَدْرِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: إِسْنَادُهُ ضَعِيفٌ.

**ترجمه:** [١] ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] داسې هيڅ ورځ نشته چې په هغې كې عبادت كول د عشرة ذي الحجه څخه زيات افضل وي [٣] په دي كې د هري ورځي روژه د يو كال د روژو برابر گرځول كيږي [٤] او په دي كې د هري شپې عبادت د شب قدر د عبادت برابر گرځول كيږي، [مطلب دادي چې د الله ﷻ په نزد په دي ورځو

[١] اخرجه الترمذى فى كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى العمل فى أيام العشر(رقم-٧٥٨) وابن ماجة كتاب الصيام/باب صيام العشر (رقم-١٧٢٨)

کې عبادت کول د نورو ورځو د عبادت کولو څخه زيات محبوب دي.] (ترمذي ابن ماجه، امام ترمذي فرمايي چې د دې اسناد ضعيف دی)

**تسهيلات: قوله: مِنْ عَشْرِ ذِي الْحِجَّةِ**

**د ذوالحجې د لسو ورځو فضيلت:-** په دې حديث مبارك كښې د ذوالحجه د ورځو باره كښې فضيلت راغلې دې. د ذوالحجې د لسو ورځو روژې د يو كال د روژو برابر دی. او د هرې شپې قيام دليلة القدر د قيام برابر دې.

**اشكال:-** په ظاهره خو په دې كښې درمضان په فضيلت كمې ښكاری ، يعنى چې دا لس ورځې د رمضان نه بهترې دی؟

**داشكال دوه جوابونه:-**

① دا د رمضان د ورځو نه ماسوا باندې محمول دی.

② ددې فضيلت جزوی دې. او د رمضان فضيلت كلی دې.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[١٤٧٢] دَلوئی اخترد مانځه څخه وړاندې د قربانی کولو عدم صحت**

١٤٧٢-()[٢٠] ①«عَنْ جُنْدَبِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: ② شَهِدْتُ الْأَضْحَى يَوْمَ النَّحْرِ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ③ فَلَمْ يَعْدُ أَنْ صَلَّى وَفَرَغَ مِنْ صَلَاتِهِ وَسَلَّمَ، ④ فَإِذَا هُوَ يَرَى لَحْمَ أَضَاحِي قَدْ ذُبِحَتْ قَبْلَ أَنْ يَفْرُغَ مِنْ صَلَاتِهِ، ⑤ فَقَالَ: مَنْ كَانَ ذَبَحَ قَبْلَ أَنْ يُصَلِّيَ - أَوْ نُصَلِّيَ - فَلْيَذْبَحْ مَكَانَهَا أُخْرَى

**ترجمه:** ① حضرت جندب ابن عبدالله ﷺ فرمايي ② چې (يو ځل) په لوي اختر کې چې د نحر (يعني د قرباني) ورځ وه زه د رسول الله ﷺ سره په عيدګاه کې حاضر شوم ③ اوس لا حضور ﷺ د لمانځه او خطبې څخه په پوره طور سره فارغ شوې نه وو (يعني لا خطبه يې نه وه شروع کړې) ④ څه ګوری چې د قرباني غوښه پرته ده او د لمانځه کولو څخه مخکې قرباني شوې ده ⑤ حضور ﷺ وفرمايل چا چې قبل د دې څخه چې مونځ وکړي يا دا يې وفرمايل چې قبل د دې څخه چې مونږ مونځ وکړو (د قرباني حيوان) ذبح کړي دي هغه ته پکار دي چې هغه د دې په ځاي دويم حيوان ذبح کړي

① وَفِي رِوَايَةٍ: قَالَ: صَلَّى النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَوْمَ النَّحْرِ، ② ثُمَّ خَطَبَ، ثُمَّ ذَبَحَ، وَقَالَ: ③ مَنْ كَانَ ذَبَحَ قَبْلَ أَنْ يُصَلِّيَ، فَلْيَذْبَحْ أُخْرَى مَكَانَهَا، ④ وَمَنْ لَمْ يَذْبَحْ فَلْيَذْبَحْ بِاسْمِ اللّٰهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

[1] ) اخرجه البخاری فی كتاب العيدين /باب كلام الإمام والناس فی خطبة العيد، وإذا سئل الإمام عن شیء وهو يخطب(رقم-٩٨٥) ومسلم كتاب الأضاحی/باب وقتها (رقم) ١ - (١٩٦٠)والترمذی كتاب الأضاحی عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی الذبح بعد الصلاة (رقم-١٥٠٨) والنسائی كتاب الضحايا/باب ذبح الناس بالمصلی (رقم-٤٣٦٨) وابن ماجة باب النهی عن ذبح الأضحية، قبل الصلاة (رقم-٣١٥٢)

**ترجمه:** [١] او په يو روايت کې دي چې جندب ﷺ اوويل چې رسول الله ﷺ د بقر عيد (لوي اختر) په ورځ مونځ اوکړو [٢] او خطبه يې وفرمايله بيا (د قرباني حيوان يې) ذبح کړو او وې فرمايل [٣] چا چې قبل د دې څخه چې مونځ وکړي ذبح وکړي نو هغه ته پکار دي چې هغه د دې په بدله کې دويم حيوان ذبح کړي [٤] او کوم سړي چې د لمانځه څخه مخکې ذبح ونکړه نو هغه ته پکاردي چې (د لمانځه څخه وروسته د قرباني حيوان) د الله په نامه سره ذبح کړي. (بخاري، مسلم)

**تسهيلات: قوله: قَبْلَ أَنْ يُصَلِّيَ:**

**د اختر د مونځ څخه وړاندې د قربانۍ عدم جواز:** - يعني ترکومې پورې چه دَ لوئی اختر مونځ نه وی شوې دَهغې ته مخکښې قرباني جائز نه ده. که چرې چامخکښې قرباني اوکړه نو هغه قرباني نه ده بلکه دَ غوښې دپاره به خاروې ذبح کول شميرلې کيږي.

علماء کرامو فرمائيلي دی چه پوره ښارکښې دَ صحيح وخت مطابق که يوځائی کښې هم مونځ اوکړې شی نودَ ښار په هريوځائی کښې به دَ قربانئی کولواجازت اوشی او په کومو علاقو کښې چه دَ اختر مونځ نه کيږی هلته قرباني دَ سحر دَ مونځ نه پس کول جائز کيږي.

**[١٤٧٣] دقرباني ورځې (ايام قرباني)**

١٤٧٣ - (١) [٢١] [١] وَعَنْ نَافِعٍ: أَنَّ ابْنَ عُمَرَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: [٢] الْأَضْحَى يَوْمَانِ بَعْدَ يَوْمِ الْأَضْحَى. رَوَاهُ مَالِكٌ.

**ترجمه:** [١] نافع رحمه الله راوي دي چې حضرت ابن عمر ﷺ وفرمايل [٢] چې د بقر عيد د ورځې څخه وروسته د قرباني دوه ورځې وي. (مالک)

**تسهيلات: قوله: الْأَضْحَى يَوْمَانِ بَعْدَ يَوْمِ الْأَضْحَى:**

**د لوئي اختر د قربانئ د جواز په آخری وخت کښې مذاهب**

① دَعلامه ابن سيرين رحمه الله اوځه نورو علماؤ په نيزدَ لوئی اختردَ قربانئی صرف يوه ورځ ده اوهغه هم دغه دَاختر ورځ ده.

② دَامام شافعی رحمه الله حسن بصری رحمه الله او اهل ظواهر په نيزدَ لوئی اختر نه پس درې ورځې قربانی جائزده يعنی ١١، ١٢ او ١٣ ذوالحجه پورې جائز ده.

③ دَجمهورو په نيزدَاختردَ ورځې نه پس صرف دوه ورځې ١١، ١٢ ذوالحجه پورې قربانی جائزده.

**داول فريق دليل:** - دې حضراتو سره څه صريح حديث نشته دې. صرف رائې او اجتهاددې لهذا دَدوی قول نه دَ التفات قابل دې اونه دَ جواب قابل دې.

[١] ) اخرجه مالک فی الموطا کتاب الضحايا/باب الضحية عما فی بطن المراة وذکر أيام الأضحی (رقم-١٢)

**د دویم فریق دلائل:-**

① دَحضرت جبیربن معطم رضي الله عنه روایت د دوی دلیل دې کوم چه ابن حبان رحمه الله په خپل صحیح کښې نقل کړې دی الفاظ دادی: (قال النبی صلی الله علیه وسلم وفی کل ایام التشریق ذبح) (رواه ابن حبان)

ایام تشریق دَاخترنه پس ١١، ١٢ او١٣ درې ورځې وی او یوه ورځ دَ اخترشوه نو ټولې څلور ورځې شوې.

**جواب:-** دَ جبیربن معطم رضي الله عنه روایت منقطع دې. (کماقال البزار)

② دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما روایت دې (قال الاضحی ثلاثة ایام بعد ایام النحر) (رواه البیهقی)

**جواب:-** دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما دَ روایت په مقابله کښې پخپله هم دَحضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه امام طحاوی رحمه الله په سند جید سره دا روایت نقل کړې دې دَ کوم الفاظ چه پورته ذکر دی. په دې وجه شوافع دَحضرت ابن عباس رضي الله عنهما دَ روایت نه استدلال نه شی کولې.

③ (عن ابی سعید الخدری انه علیه الصلوة والسلام قال ایام التشریق کلها ذبح) (رواه ابن عدی فی الکامل)

**جواب:-** دا روایت یحیی بن معین، نسائی او علی بن مدینی ضعیف ګرځولې دې. بلکه ابن ابی حاتم رحمه الله دَ خپل والد په حواله سره وئیلی دی چه داحدیث په دې سند سره موضوع دې. بهرحال زیربحث حدیث چه دَ مرفوع حدیث په حکم کښې دې داپه شوافع باندې حجت دې.

**د دریم فریق دلائل:-** زیربحث دَ حضرت ابن عمر رضي الله عنهما روایت د دوی دلیل دې چه په خپل مطلب باندې ډیر واضح دې.

② دَحضرت علی رضي الله عنه روایت دلیل دې (قال ایام النحر ثلثة اولهن افضلهن) (مختصر کرخی)

③ دَحضرت ابن عباس رضي الله عنهما روایت دلیل دې الفاظ دادی (وعن ابن عباس قال الاضحی ثلاثه ایام یومان بعد یوم النحر) (رواه الطحاوی بسند جید)

④ دَحضرت انس رضي الله عنه روایت دلیل دې (وعن انس قال الذبح بعد یوم النحر یومان) (رواه البیهقی)

⑤ دَ حضرت ابن عمر اوحضرت ابن عباس رضي الله عنهم مشترکه روایت دلیل دې (قال النحر ثلاثة ایام اولها افضلها)

| |
|---|
| ١٤٧٣—()[٥] [١] وَقَالَ: وَبَلَغَنِي عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ مِثْلُهُ. |

**ترجمه:** [١] امام مالك دا روایت نقل کولو سره فرمایلي دي چې ماته د حضرت علي ابن ابي طالب کرم الله وجهه څخه هم د دې قسم روایت رارسیدلي دي.

[1] هاخرجه مالک فی الموطا ٢/ ٢٨٧

[١٤٧٥]په مدني دور کښې د رسول الله ﷺ په قرباني کولو هميشوالې

١٤٧٥-(١)[٢٢] ١ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - قَالَ: ٢ «أَقَامَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِالْمَدِينَةِ عَشْرَ سِنِينَ يُضَحِّي». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ١ ابن عمر ﷺ فرمايي ٢ چې رسول الله ﷺ په مدينه منوره کې لس کاله قيام وکړو او هر کال به يې قرباني کوله. (ترمذي)

**تسهيلات: قوله: يُضَحِّي:**

**د قربانۍ د وجوب دليل:-** دَدې حديث نه په واضحه توګه باندې دا خبره ثابتيږي چه قرباني واجب ده سنت نه ده ځکه چه په کوم اهتمام اوپه کوم استمرار اوهميشه والي سره حضورپاك په مدينه منوره کښې لس کالوپورې په دې باندې عمل کړې دې داد وجوب دليل دې. دَدې حديث نه دويمه خبره دا ثابته شوه چه حضورپاك په مدينه منوره کښې په هميشه والي سره قرباني کړې ده په دې سره په هغه خلقو باندې رد کيږي دَ چاچه فاسد خيال دې چه حضورپاك په مدني دور کښې دَ قربانئ عمل پريخودې وو.

[١٤٧٦]قرباني سنت ابراهيمي

١٤٧٦-(٢)[٢٣] ١ وَعَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: «قَالَ أَصْحَابُ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ٢ يَا رَسُولَ اللّٰهِ، مَا هَذِهِ الْأَضَاحِيُّ؟ ٣ قَالَ: سُنَّةُ أَبِيكُمْ إِبْرَاهِيمَ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ٤ قَالُوا: فَمَا لَنَا فِيهَا يَا رَسُولَ اللّٰهِ؟ ٥ قَالَ: بِكُلِّ شَعْرَةٍ حَسَنَةٌ. ٦ قَالُوا: فَالصُّوفُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ؟ ٧ قَالَ: بِكُلِّ شَعْرَةٍ مِنَ الصُّوفِ حَسَنَةٌ». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ١ زيد ابن رقم ﷺ راوي دي چې د رسول الله ﷺ اصحابو ﷺ پوښتنه وکړه ٢ چې يا رسول الله ﷺ دا قرباني څه شي ده؟ ٣ حضور ﷺ ورته وفرمايل چې ستاسو د پلار ابراهيم ﷺ طريقه (يعني د هغه سنت) ده ٤ صحابه ؤ ﷺ عرض وکړو چې يا رسول الله ﷺ بيا په دي کې زمونږ دپاره څه ثواب دي؟ ٥ وي فرمايل د غوا او بزي (چيلۍ) په قرباني کولو کې چې د هغې څومره ويښتان وي د هر ويښته په بدله کې يوه نيکي ده ٦ هغوئ عرض وکړو چې صوف (يعني دپسه ميږي او اوښ وړئ اودهغې په بدله کې څه ثواب حاصليږي؟) ٧ وي فرمايل چې د وړي (اون) د هر ويښته په بدله کې يوه نيکي. (احمد، ابن ماجه)

**حل اللغات:-** ① شَعْرَةٍ: ويښته، ② الصُّوفُ: وړئ.

١) اخرجه الترمذي في كتاب الأضاحي عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب الدليل على أن الأضحية سنة (رقم-١٥٠٧)
٢) اخرجه ابن ماجة كتاب الأضاحي/باب ثواب الأضحية (رقم-٣١٢٧)

**تسهیلات: قوله: سُنَّةُ أَبِيكُمْ إِبْرَاهِيمَ:**

**قربانی سنت ابراهیمی:** - قربانی یوعظیم یادګاردې چه دَحضرت ابراهیم علیه السلام په امتحان کښې دَ لوئی کامیابئ دَ یاد دَپاره دَ عبادت په توګه مسلمانان کوی. اصل بنیاد دَ قربانئ هم دغه دې اوهم دَدې طرف ته په دې حدیث کښې اشاره هم ده لیکن مسلمانان چه دَ لوئی اختر په ورځ په دې عمل کوی هغه دَ نبی کریم سنت اودَهغوی ﷺ اطاعت اودَ حضور پاك دَ فرمان په نتیجه کښې کوی چه په حقیقت کښې دَ شریعت محمدی یوه حصه ده.

# [۴۹/۶۵] بَابُ الْعَتِيرَةِ

**دَ عتیره بیان**

| |
|---|
| **خلاصة الباب:-** |
| **فيه ثلاثة احاديث مشتملة على مسئلتين:** |
| ① النهي عن ذبح العتيرة والمنيحة : ۱، ۳. |
| ② وجوب العتيرة: ۲. |

قال الله تعالى ﴿ فَذَرْهُمْ وَمَا يَفْتَرُونَ ۝ ﴾ [سورة الانعام الایه:۱۳۷]

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۱۴۷۷] دَ فرع اوعتیره ممانعت**

| |
|---|
| ۱۴۷۷ -([1]) [۱] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ -، «عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] لَا فَرَعَ وَلَا عَتِيرَةَ. [۳] قَالَ: وَالْفَرَعُ: أَوَّلُ نِتَاجٍ كَانَ لَهُمْ، [۳] كَانُوا يَذْبَحُونَهُ لِطَوَاغِيتِهِمْ، [۴] وَالْعَتِيرَةُ: فِي رَجَبٍ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |

**ترجمه:** [۱] ابوهریره رضی الله عنه راوي دي چې نبي کریم ﷺ وفرمايل [۲] د فرع او عتیره په اسلام کې هیڅ حقیقت نشته [۳] ابوهریره رضی الله عنه فرمايي چې فرع د حیوان هغه اولني بچي دي چې د کافرانو په نیز پیدا شي [۳] نو هغه به يې د بتانو په نامه ذبح کولو [۴] او عتیره هغه حیوان دي چې په رجب کې به يې ذبح کولي. (متفق علیه)

**حل اللغات:** - ① فَرَعَ: دَ جاهلیت په زمانه کښې چه به د څاروی رومبی بچې پیدا کیدو نوهغه به دَ بتانو په نوم باندې ذبح کیدو دې ته به ئې فرع وئیلې، ② عَتِيرَةً: دَ جاهلیت په زمانه کښې به دَرجب په شروع کښې دَ خپلو باطل معبودانو دَ خوشحالولو دَپاره یو چیلئ ذبح کوله. دې ته به ئې عتیره وئیلې. ③ نِتَاجٍ: د څاروی بچې، ④ لِطَوَاغِيتِهِمْ: "طواغیت" دَ طاغوت جمع ده مراد بت دي.

[1]) اخرجه البخاری فی کتاب العقیقة/باب العتیرة (رقم-۵۴۷۴) ومسلم کتاب الأضاحی/باب الفرع والعتیرة (رقم-۳۸-(۱۹۷۶) وابوداود کتاب الضحایا/باب فی العتیرة (رقم-۲۸۳۱)

**تسهیلات:**

**قوله: لَافَرَعَ وَلَاعَتِيرَةَ:** دَ جاهلیت په وخت کښې دا طریقه وه چه چاکره به کله دَ څاروی رومبې بچې پیدا کیدو نوهغه به دَ بتانو په نوم باندې ذبح کیدو. دَ اسلام په شروع کښې دَ فرع رواج جاري وو مګر مسلمانانو به دغه فرع دَ الله تعالی په نوم باندې ذبح کولو. لیکن چونکه په دې عمل کښې دَ جاهلیت او اهل جاهلیت سره مشابهت راتلو په دې وجه په اسلام کښې دَ فرع رواج منع او ګرځولې شو لکه دَ دې حکم منسوخ کړې شو.

**د عتیره تعریف:**- دَ جاهلیت په دور کښې یو رسم وو چه عامو خلقو به دَرجب دَ شروع عشره کښې دَ خپلو باطل معبودانو دَ خوشحالولو دَپاره یو چیلئی ذبح کوله. هم دا به ئی دَ عتیره په نوم باندې یادوله. هغه خلقو به په دې سره دَ بتانو تقرب حاصلولو. دَ اسلام په شروع کښې به مسلمانانو هم عتیره دَ ماه رجب په اوله عشره کښې ذبح کوله لیکن کافرانو چه به دا دَخپلو بتانو په نوم باندې ذبح کوله مسلمانانو به دا دَ الله تعالی دَ تقرب ذریعه ګڼړلو سره ذبح کوله. څه مودې پورې دا سلسله روانه وه بیا عتیره هم دَ فرع په شان منسوخ شوه.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

### [۱۴۷۸] دعتیره عدم جواز

۱۴۷۸ –()[۲] [۱] «عَنْ مِخْنَفِ بْنِ سُلَيْمٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] كُنَّا وُقُوفًا مَعَ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِعَرَفَةَ، فَسَمِعْتُهُ يَقُولُ: [۳] يَا أَيُّهَا النَّاسُ، إِنَّ عَلَى كُلِّ أَهْلِ بَيْتٍ فِي كُلِّ عَامٍ أُضْحِيَةً وَعَتِيرَةً، [۴] هَلْ تَدْرُونَ مَا الْعَتِيرَةُ؟ [۵] هِيَ الَّتِي تُسَمُّونَهَا الرَّجَبِيَّةَ» . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، [۶] وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، ضَعِيفُ الْإِسْنَادِ، [۷] وَقَالَ: أَبُو دَاوُدَ: وَالْعَتِيرَةُ مَنْسُوخَةٌ.

**ترجمه:** [۱] مخنف ابن سلیم وایي [۲] مونږ د رسول الله ﷺ سره (د حج په موقع) په عرفات کې ولاړ وو ما واوریدل چې حضور ﷺ فرمایل [۳] چې اي خلقو په هر کوروالا باندې هر کال قرباني کول او عتیره کول واجب دي [۴] او تاسو ته پته شته چې عتیره څه ده؟ [۵] عتیره هغه ده چې تاسو ورته رجبیته وایئ. (ترمذي ابوداؤد نسایي ابن ماجه) [۶] امام ترمذي رحمه الله فرمایلي دي چې دا حدیث غریب او ضعیف الاسناد دی [۷] ابوداؤد رحمه الله فرمایي چې عتیره منسوخ شوې ده (اوس دا جائز نه ده).

**حل اللغات:**- ① عَتِيرَةً: دَ جاهلیت په زمانه کښې به دَرجب په شروع کښې دَ خپلو باطل معبودانو دَ خوشحالولو دَپاره یو چیلئ ذبح کوله. دې ته به ئی عتیره وئیلې. ② الرَّجَبِيَّةَ: عتیره ته به ئې رجبیه هم وئیلې.

[۱] اخرجه ابوداود کتاب الضحایا/باب ما جاء فی إیجاب الأضاحی (رقم-۲۷۸۸) والترمذی کتاب الأضاحی عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۱۵۱۸) وابن ماجة کتاب الأضاحی/باب الأضاحی، واجبة هی أم لا (رقم-۳۱۲۵)

**تسهيلات: قوله :بِعَرَفَةَ:**

**اشكال:**- دا حديث دحجة الوداع دي ، په هغه وخت کښې خو ټول احکامات نازل شوی وو نو بيا عتيره څنګه منسوخ شوه؟

**داشکال دووه جوابونه :-**

① د ابوهريره ﷺ حديث (لافرع ولاعتيرة) ددې نه پس دې.

② ددې حديث پاك آخر کښې فرمائيلې شوی دی چې هذا حديث غريب ضعيف. نو دا حديث ضعيف شو.

**قوله :عَلَى كُلِّ أَهْلِ بَيْتٍ فِي كُلِّ عَامٍ أُضْحِيَةٌ**

**اشکال:**- ټول کور والو باندې يوه قرباني څنګه کيږي؟

**جواب:**- دا حکم هم منسوخ شوې دې په دې وجه دا حديث پاك قابل د استدلال نه دي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[١٤٧٩] په غريب د قربانۍ عدم وجوب**

١٤٧٩-()[٣] ①عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② أُمِرْتُ بِيَوْمِ الْأَضْحَى عِيدًا جَعَلَهُ اللّٰهُ لِهٰذِهِ الْأُمَّةِ. ③ قَالَ لَهُ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ، أَرَأَيْتَ إِنْ لَمْ أَجِدْ إِلَّا مَنِيحَةً أُنْثَى، أَفَأُضَحِّي بِهَا؟ ④ قَالَ: لَا. وَلٰكِنْ خُذْ مِنْ شَعْرِكَ وَأَظْفَارِكَ ⑤ وَتَقُصُّ مِنْ شَارِبِكَ، ⑥ وَتَحْلِقُ عَانَتَكَ، ⑦ فَذٰلِكَ تَمَامُ أُضْحِيَّتِكَ عِنْدَ اللّٰهِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ① عبدالله ابن عمرو ﷺ راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② ماته حکم شوې دې چې زه د بقر عيد (د قرباني د اختر) په ورځ اختر وګرځوم او الله تعالى ﷻ دا ورځ د دې امت د پاره اختر مقرر کړې ده ③ يو سړي عرض وکړو چې يا رسول الله ﷺ که ماته ماده منيحه څخه علاوه بل (حيوان) ميسر نشي نو آيا زه هغه قرباني کړم؟ ④ حضور ﷺ ورته وفرمايل نه، خو که ته خپل ويښتان جوړ کړې، خپل نوکونه پرې کړې ⑤ او د شونډو ويښتان [بريت] صفا کړې ⑥ او تر نامه لاندې ويښتان صفا کړې ⑦ نو د الله تعالى ﷻ په نيز به دا ستا قرباني شي يعنى تا ته به د قربانۍ په مثل ثواب حاصل شي. (ابوداؤد نسايي)

**حل اللغات:**- ① مَنِيحَةً: دالفظ دَ منح نه مشتق دې دَ دې معنى ورکړه اوبخشش ده. ② أُنْثَى: ماده چيلۍ، ③ شَارِبِكَ: د شونډو ويښتان، بريت ④ عَانَتَكَ: دنامه نه لاندې ويښتان.

**تسهيلات:**

**قوله :مَنِيحَةً:** دَ عربوداعادت وو چه هغوی به دَ همدردئی په توګه خپل دَ پيئووالا چيلئی يا

[١] ) اخرجه ابوداود كتاب الضحايا/باب ما جاء فى إيجاب الأضاحى (رقم-٢٧٨٩)

اوښه وغیره محتاج او غریبانانو ته حواله کولې هغه سړی به دې نه پئې څکل او دَ هغې دَ ورئې نه به ئې فائده اوچتوله په هغې سره به ئې دَ بچوپالنه کوله او دَ دې نه به ئې فائده اوچتوله او بیا به ئې دا واپس کوله.

**په منیحه د قربانۍ د عدم جواز وجه:**- چونکه دَ منیحة لفظ په مؤنث او مذکر دواړو باندې یادولې شی په دې وجه دغه سړی دا مقید کولو سره سوال اوکړو چه ماسره یو مؤنث منیحة دې آیا په هغې باندې قربانی کولې شم. رسول الله ﷺ دغه سړې منع کړو ځکه چه منیحة دَ قاعدې مطابق دَ دغه سړی ذاتی مال نه وو بلکه دَ څه مودې دَپاره دَ دې نه فائده اوچتول اوبیا واپس ورکول وو. په دې وجه دَ هغې دَ قربانی کولو اجازت ئې ورنه کړو ځکه چه دا دَ بل مال وو. دویمه وجه دا چه کوم سړې پخپله دَمنیحة اخستلو محتاج وی نو هغه به قربانی څنګه اوولې کوی؟ معلومه شوه چه په غریب سړی قربانی نشته دې.

بهرحال دَ جمهور علماؤ مسلك دادې چه غریب اولاس تنګې سړی باندې قربانی واجب نه ده البته دَ احنافو په نیز دَ قربانئی دَپاره دَ دومره زیات مال ضرورت نشته دې معمولی شان مالداری کافی ده مګرچه فقیرخونه وی.

# [٥٠/٦٦] بَابُ صَلَاةِ الْخُسُوفِ

**دَ خسوف دَ مونځ بیان**

| |
|---|
| **خلاصة الباب:-** |
| **فيه ثلاثة عشر حديثاً مشتملة على ست مسائل:** |
| ① ثبوت صلوة الخسوف : ١، ٣، ٤، ٦، ٧، ٨، ١٠، ١٢، ١٣- |
| ② كيفية صلاة الحسوف من حيث الركعات والسجدات: ٦،٥،٣،١،٧، ١٢، ١٣- |
| ③ القراة في صلاة الحسوف سراً وجهراً: ١، ١، ١٠- |
| ④ الخطبة بعدصلاة الحسوف: ٣، ٤، ٥، ١٣- |
| ⑤ فضل التصدق يوم الكسوف : ٤، ٩- |
| ⑥ صلوة الكسوف عند رؤية آيات الكسوف: ١١- |

قال الله تعالى ﴿ وَمَا نُرْسِلُ بِالْاٰيٰتِ اِلَّا تَخْوِيْفًا ﴾ [بنی اسرائیل:٥٩]

**په خسوف او کسوف کښې فرق:**- خسوف او کسوف دوه لفظونه دی ائمه دَ لغت په دې دواړو لفظونو کښې فرق بیان کړې دې. امام لغت شیخ ثعلب رحمه الله فرمائی چه دکسوف اطلاق زیات تر دَ نمر په تندر باندې کیږی او دَ خسوف زیات تر اطلاق دَ سپوږمئی په تندر باندې کیږی. علامه جوهری رحمه الله دا افصح ګرځولې دې.

فقهاء کرامو دَ فقه کتابونوکښې هم دغه طريقه اختيار کړې ده چه دَ نمر تندرنيولو دَپاره کسوف او دَ سپوږمئ تندر دَپاره دَ خسوف الفاظ استعمال کړی دی. هسې هم خسف په زمکه کښې ورننوتلو ته وائی دَدې سپوږمئ سره څه نه څه علاقه هم ده چه زمکه د سپوږمئ او نمر په مينځ کښې راځی نو دَ سپوږمئ رڼا ختميږی. په قرآن کښې آيت دی (فَإِذَا بَرِقَ الْبَصَرُ وَخَسَفَ الْقَمَرُ ) [سورة القيامة الايه:٧]

**د خسوف او کسوف د ترادف قول:-** بعضې اهل لغت په دې دواړو الفاظو کښې دَترادف قول کړې دې څکه چه دَدې په يوبل باندې اطلاق کيږی. دلته دَ زيربحث باب بعضې احاديثو کښې دَخسوف لفظ استعمال کړې شوې دې په بعضې کښې دَ کسوف لفظ يادکړې شوې دې. حالانکه په ټولو احاديثو کښې دَ نمردَتندر کيدوواقعه بيان کړې شوې ده. دَ سپوږمئ دَ تندر نيولو ذکر په صراحت سره په يوحديث کښې نشته. او په حديث نمبر٣٨ صرف احتمال دې لهذا صاحب مشکوة له پکاروو چه هغه دَ صلوة الخسوف په ځائی دَ صلوة الکسوف عنوان لګولې وې ليکن کيدې شی چه دَهغه په ذهن کښې دَ ترادف تصور وواودا اشاره کول وو چه په احاديثو کښې دَخسوف لفظ په حقيقت دَ کسوف په معنی کښې راغلې دې. لهذا په عنوان کښې هم دَخسوف لفظ دَ کسوف په معنی کښې دې. محدثين حضرات په عام توګه په دې دواړو لفظونو کښې فرق نه کوی. محدثين حضرات په عام توګه په دې دواړو لفظونو کښې فرق نه کوی.

**په عهد نبوی کښې د کسوف الشمس وقوع:-** مشهورماهرفلکيات علامه محمودپاشا مصری رحمه الله په خپل کتاب "نتائج الافهام فی تقويم العرب قبل الاسلام" کښې تصريح ده چه دَ قواعد رياضيه په رڼاکښې دَحضورپاك په مبارکه زمانه کښې کسوف شمس يعنی دَنمر تندر نيول صرف يو ځل شوی دی دَدې نه زيات ممکن نه ده. دَ اکثرعلماؤ هم دغه قول دې البته دَ سپوږمئ دَ تندر نيولو واقعه دَ رسول الله ﷺ په زمانه کښې ډير ځل شوې ده. دَ کسوف الشمس موقع باندې په حضورپاك باندې دَ ويريدوکيفيت راغلودَې څه وجه ده؟ بيا دَ نمر تندر نيول او دَ سپوږمئ تندر نيولوپه موقع باندې حضورپاك څنګه مونځ اداکړو؟ په جاهليت کښې دَ نمرتندر نيولوپه موقع باندې به عربوڅه تصور قائم کولو؟ دا ټول مباحث به راتلونکی احاديثو په ضمن کښې راتلونکی دی اوګورئ.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [١٤٨٠]د نمر توریدو په وخت دوه رکعته مونځ کول

١٤٨٠-()[١] ١ عَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا- قَالَتْ: ٢ «إِنَّ الشَّمْسَ خُسِفَتْ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ٣ فَبَعَثَ مُنَادِيًا: اَلصَّلَاةُ جَامِعَةٌ، ٤ فَتَقَدَّمَ فَصَلَّى أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ فِي رَكْعَتَيْنِ، ٥ وَأَرْبَعَ سَجَدَاتٍ. ٦ قَالَتْ عَائِشَةُ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا-: مَا رَكَعْتُ رُكُوعًا قَطُّ ٧ وَلَا سَجَدْتُ سُجُودًا قَطُّ كَانَ أَطْوَلَ مِنْهُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ بي بي عائشه صدیقه ﷺ فرمايي ٢ چې د رسول الله ﷺ په مبارکه زمانه کې (د هجرت څخه وروسته يو ځل) نمر ترنځ (تندر) ونيولو ٣ نو حضور ﷺ يو اعلان کونکي (خلقو ته) وليږلو چې هغه دي اعلان وکړي چې اَلصَّلٰوةُ جَامِعَةٌ يعني مونځ جمع کونکي دي (ټول خلق راجمع شو نو) ٤ حضور ﷺ مخکي شو او دوه رکعاته مونځ يي ورکړو چې په هغې کې يي څلور رکوع وکړې ٥ او څلور سجدي يي وکړې ٦ بي بي عائشه ﷺ فرمايي (چې څومره طويل رکوع او سجدي چې ما په هغه ورځ په نماز کسوف کې کړيدي) د هغې څخه زياته وړده چېرته ما نه رکوع کړي ده ٧ او نه مي چېرته سجده کړيده. (بخاري مسلم)

**تسهیلات:**

**قوله: فَبَعَثَ مُنَادِيًا:**

**د کسوف دپاره د اذان عدم مشروعیت:**- دَ صلوة کسوف دپاره اذان او اقامت نشته دې اودَ خلقودَ رايوځائی کولو دَپاره په اوچت ځائی باندې داسې آواز کول پکاردی. "الصلوة جامعة" چنانچه نن صبا حرمین شریفین کښې دَدې قسم آواز په لاؤډ سپيکر باندې ورکولې شی په حديث کښې هم دې طرف ته اشاره ده.

**قوله: عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:**

**د ابرهيم ولد محمد ﷺ وفات او کسوف الشمس:**- دَ رسول الله ﷺ په مبارکه زمانه کښې هم يو ځل نمرتندرنيولې وو او په اتفاق سره په هغه ورځ دَ حضورپاك دَ ځوئی حضرت ابراهيم ﷺ انتقال شوې وو. دا دَ کال ١٠ هجری واقعه وه. دَ عربودَ جاهليت دا عقيده وه چه دَ سپوږمئی اونمر تندر نيول چرته دَ يولوئی سړی دَ مړکيدودَ وجې نه کيږی. دَ ابراهيم ﷺ په وفات سره دا غلطه عقيده نوره پخه کيدې شوه. لکه بعضې نوی مسلمانانو يا دَ کمزورې عقيدې والا مسلمانانو وېناهم شروع کړې وه. په دې باندې حضورپاك دَ دوو رکعتو مونځ نه پس يوه اوږده خطبه ورکړه او دَ جاهليت ددې عقيدې په سختئی سره ترديد اوکړو.

[١] ) اخرجه البخاری فی کتاب الجمعة/باب طول السجود فی الکسوف (رقم-١٠٥١) ومسلم کتاب الکسوف/باب ذکر النداء بصلاة الکسوف الصلاة جامعة (رقم-٢٠ - (٩١٠) وابوداود کتاب الصلاة،باب ينادی فيها بالصلاة (رقم-١١٩٠)

**قوله :** فَصَلّٰى أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ:

### د صلاة الکسوف په حکم کښې مذاهب

① دَ صلوة کسوف مشروعيت اوجواز کښې دَ چا اختلاف نشته ځکه چه احاديث او دجماع امت نه دا مونږ ثابت دي بلکه بعضې فقهاء دَ دې دَ وجوب قائل شوې هم دی.

② جمهور فقهاء فرمائی چه صلوة کسوف سنت دې

### د صلاة الکسوف د ادا کولو په کيفيت کښې مذاهب

دَ جمهورو په خپل مينځ کښې دَدې مونځ دَ کولو په طريقه کښې اختلاف دې اودَ اختلاف وجه داده چه په مختلف احاديثو کښې دَ مختلف طريقوذکر دې. دَ يونه واخله تر پنځو رکوع پورې ثبوت ملاويږی.

① د امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائی چه په احاديثو کښې چه دَ څومره طريقو ذکر راغلې دې ټولې جائز دی. دَ موقع او محل په اعتبارسره کومه طريقه هم ملاؤ شوه خپلولې شی ترکومې پورې چه نمر روښانه نه شی دغه طريقې استعمالول پکاردی او په رکوع کښې مشغول کيدل پکاردی.

② امام مالک رحمه الله او امام شافعی رحمه الله په نيزبه يورکعت کښې صرف دوه رکوع کول پکار دی دې نه زيات نه.

③ د احنافو په نيز چه دَ صلوة کسوف طريقه دَ عامو مونځونو په شان ده په يورکعت کښې هم يوه رکوع ده.

**داول فريق دلائل :-** امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائی چه په کومو احاديثو کښې دَ څومره رکوع ګانو ذکر راغلې دې ټولې طريقې جائز دی ترکومې پورې چه په نمر کښې رونړوالې نه راځی ترهغه وخته پورې په رکوع ګانو کښې مشغل کيدل پکاردی.

**د دويم فريق دليل :-** دَدوی دليل د باب اول حديث دې چه په خپله دعویٰ باندې واضح دې.

**داول او دويم فريق د دلائلو څخه معاً جوابونه :-**

① صلاة کسوف کښې په يو مقام باندې نه په ډيرومقاماتو باندې داسې افعال ښکاره شوی دی مونږ دا سوادَ پيغمبرئی دَ خصوصيت نه نور هيڅ نه شو وئيلې. مونږ تپوس کوو چه په دې مونځ کښې حضور اکرم ﷺ وړاندې تلې دې روستو راغلې دې په دوارو لاسونو کښې دَ څه څيز دَ نيولوکوشش کړې دې. که دا افعال دَ بل چا نه ښکاره شی نوهم دَحضورپاک په حکم سره دَدغه سړی مونځ فاسد کيږی. معلومه شوه چه دلته معامله دَ پيغمبرئی دَ خصوصيت وه نودَ ډيرو رکوع ګانو په حالت کښې هم کتل پکاردی چه صلوة کسوف کښې حضورپاک کوم عمل کړې دې هغه بيشکه دې ليکن مونږ ته چه کوم حکم راکړې شوې دې مونږ په هغې باندې دَ عمل کولو پابند يو. دَ قول اوفعل دَ تضاد په وخت

ترجيح قول ته ورکولې شي.

② چه دَ صلوة کسوف واقعه دَ حضوراکرم ﷺ په زمانه کښې يوځل پيښه شوې ده او په دې کښې فعلي احاديثو نه خپل مينځ کښې متعارض دي. اوس داخو ممکن نه دي چه دا متعارض فعلي روايات په يوه واقعه باندې منطبق کړې شي لهذا ممکن حل صرف دادې چه دا فعلي روايات په وجه دَ تعارض اوتضاد پريخودې شي او دَ حضورپاك په قولي روايت باندې عمل اوکړې شي او په قولي روايت کښې تصريح ده چه تاسو اوس داکوم مونځ کړې دې هم دغه شان دَ کسوف مونځ کوئي اوهغه دَ سحر مونځ وو.

احناف فرمائي چه مونږ په واضح الفاظو کښې وئيل غوارو چه صلوة کسوف کښې دَ يو نه زيات رکوع ګانې شوي دي. دَ يو نه واخله دوه درې څلور پنځو پورې ذکردې چه حضوراکرم ﷺ دغه شان عمل کړې دې. مونږ له دَدې نه قطعاً انکار نشته اونه زمونږ په دې کښې څه شك دې ليکن حضورپاك چه مونږ ته کوم حکم راکړې دې مونږ به هم په هغې باندې تګ کوو او کوم چه حضورپاك پخپله عمل کړې دې هغه په حضورپاك باندې پريږدو.

③ دَ حضورپاك په خصوصي توګه کوم په کثرت سره رکوع ګانې کړې دي دا رکوع ګانې دَ مونځ نه وې بلکه دَ آياتونو رکوع ګانې وې چه دَ الله تعالى عظيم آيات په صلوة کسوف کښې کتلو باندې بار بار رکوع فرمائيلې دي کوم چه خالص خصوصيت دې. خلاصه دا چه دَمونځ رکوع حضورپاك صرف يوه کړې ده دې نه زياتي چه څومره رکوع ګانې وو هغه رکوع ګانې دَ مونځ نه بلکه دَ آياتونو رکوع ګانې وې. والله اعلم.

**د دريم فريق دلائل:** -دَ حضرت قبيصه هلالي ﷺ روايت د دوی دليل دې کوم چه امام ابوداؤد رحمه الله او امام نسائي رحمه الله په خپل خپل کتاب کښې ذکرکړې دې. الفاظ دادي: ((اذا رأيتموها فصلوا كاحدث صلوة صليتموها من المكتوبة)) (ابوداؤد)

② دحضرت نعمان بن بشير ﷺ روايت دليل دې فرمائي ((ان النبي صلى الله عليه وسلم كان يصلي في كسوف الشمس كما تصلون ركعة وسجدتين)) (ابوداؤد نسائي وطحاوي)

③ ډير زيات روايات دي په کوموکښې چه دَ يورکوع ذکر دې. امام طحاوي رحمه الله هم دَدې ذکر کړې دې او زجاجة المصابيح هم دَ لسو نه زيات رواياتو ذکرکړې دې. په ټولو کښې نيزدې نيزدې هم دغه الفاظ دي: ((فصلى كما تصلون بأمثل صلوتكم بأحوا من صلوتكم)) حضرت نعمان بن بشير ﷺ فرمائي ((ان رسول الله صلى الله عليه وسلم صلى في كسوف الشمس نحوا من صلوتكم يركع ويسجد رواه احمد ونسائي)) (زجاجة المصابيح ج١ ص ٤١٥)

[١٤٨١] په صلاة کسوف کښې د قراءت حکم

٣٨١–()[٢] [١] وَعَنْهَا قَالَتْ: [٢] «جَهَرَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فِي صَلَاةِ الْخُسُوفِ بِقِرَاءَتِهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] بي بي عائشه صدیقه رضي الله عنها فرمایي [٢] چې نبي کریم ﷺ په نماز خسوف کې یعنی دسپوږمي په تندر نیولو لمانځه کې په اوچت آواز سره قراءت کړي وو. (بخاري مسلم)

**تسهیلات:**

**قوله: جَهَرَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي صَلَاةِ الْخُسُوفِ بِقِرَاءَتِهِ:**

**په صلاة الکسوف کښې د قراءت په جهراً او سراً کښې مذاهب**

په صلوٰة کسوف کښې د قرآءت په اوچت آواز سره قرأت او په مزه آواز سره قراءت کولو کښې د روایاتو د اختلاف په وجه د فقهاؤ هم لږ شان اختلاف دې.

① امام احمدبن حنبل رحمه الله اسحاق بن راهویه او صاحبینو په نیز صلوٰة کسوف کښې جهری قرأت سره مونځ کول پکار دی.

② جمهور فقهاء فرمائی چه نماز کسوف کښې په مزه قرأت کول پکار دی.

**د اول فریق دلیل:** – زیر بحث بخاری او مسلم حدیث نمبر ٣٨١ دلیل دې چه خپله دعوی باندې ډیر واضح دلیل دې.

**د دویم فریق دلیل:** – دَ دویم فریق دلیل دَ دویم فصل حضرت سمره رضي الله عنه حدیث نمبر ١٣٩٠ دې. دکوم الفاظ چه دا دی: «صلی بنا رسول الله صلی الله علیه وسلم فی کسوف لانسمع له صوتا» (ترمذی. ابوداؤد)

**د دواړو طریقو د جواز انصافی خبره:** – دَ احنافو کتابونو کښې لیکلی دی چه دواړه شان عمل جائز دې. خو امام احمد رحمه الله او صاحبین حضراتو دلیل دَ بخاری او مسلم حدیث دې چه په خپله دعویٰ باندې بنه واضحه دې او په روایاتو کښې بنه قوی دې. جمهورو سره مضبوط دلیل نشته دې ځکه چه دَ "لانسمع له صوتا" نه دا خو ثابتیږی چه مونږ نه اوریدو لیکن نه اوریدل خودَ جهرنه کولو قطعی دلیل نه دې. ډیر ممکن دی چه قرأت جاری وی او دَ لرې والی دَ وجې نه ئې بنده نه اوري. دواړه طریقې جائز دی د جواب ورکولو څه ضرورت نشته.

[١٤٨٢] دَ نمر تندر نیولو حقیقی سبب

٣٨٢–()[٣] [١] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- قَالَ: [٢] «انْخَسَفَتِ الشَّمْسُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللّٰهِ،

[١]) اخرجه البخاری فی کتاب الجمعة/باب الجهر بالقراءة فی الکسوف (رقم-١٠٦٥) وابوداود کتاب الصلاة،باب القراءة فی صلاة الکسوف (رقم-١١٨٨) والنسائی کتاب الکسوف/باب نوع آخر (رقم-١٤٨٢) والترمذی کتاب السفر/باب: کیف القراءة فی الکسوف (رقم-٥٦٣) والنسائی کتاب الکسوف/باب الجهر بالقراءة فی صلاة الکسوف (رقم-١٤٩٤)

[٢]) اخرجه البخاری فی کتاب الجمعة/باب صلاة الکسوف جماعة وصلی ابن عباس لهم فی صفة زمزم وجمع علی بن عبد الله بن عباس وصلی ابن عمر (رقم-١٠٥٢) ومسلم کتاب الکسوف/باب ما عرض علی النبی صلی الله علیه وسلم فی صلاة الکسوف منّ أمر الجنة والنار(رقم-١٧ - (٩٠٧) وابوداود کتاب الصلاة،باب القراءة فی صلاة الکسوف (رقم-١١٨٩) والنسائی کتاب الکسوف/باب نوع آخر (رقم-١٤٨٢) وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة، والسنة فیها/باب ما جاء فی صلاة الکسوف (رقم - ١٢٦٥) ومالک فی الموطا کتاب صلاة الکسوف/باب العمل فی صلاة الکسوف (رقم-٢)

٣ فَصَلَّى رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَالنَّاسُ مَعَهُ، ٤ فَقَامَ قِيَامًا طَوِيلًا نَحْوًا مِنْ قِرَاءَةِ سُورَةِ الْبَقَرَةِ، ٥ ثُمَّ رَكَعَ رُكُوعًا طَوِيلًا، ٦ ثُمَّ رَفَعَ فَقَامَ قِيَامًا طَوِيلًا، ٧ وَهُوَ دُونَ الْقِيَامِ الْأَوَّلِ ثُمَّ رَكَعَ رُكُوعًا طَوِيلًا وَهُوَ دُونَ الرُّكُوعِ الْأَوَّلِ ٨ ثُمَّ رَفَعَ، ثُمَّ سَجَدَ، ثُمَّ قَامَ فَقَامَ قِيَامًا طَوِيلًا، ٩ وَهُوَ دُونَ الْقِيَامِ الْأَوَّلِ، ١٠ ثُمَّ رَكَعَ رُكُوعًا طَوِيلًا، وَهُوَ دُونَ الرُّكُوعِ الْأَوَّلِ، ١١ ثُمَّ رَفَعَ ثُمَّ سَجَدَ ثُمَّ انْصَرَفَ ١٢ ثُمَّ انْصَرَفَ وَقَدْ تَجَلَّتِ الشَّمْسُ،

**ترجمه:** ١ عبدالله ابن عباس ﷠ فرمايي ٢ چې د رسول الله ﷺ په زمانه کې نمر ترنخې (تندر) ونيولو ٣ حضور ﷺ خلقو سره (داسې) مونځ وکړو ٤ چې د سورة بقره د قراءت په قدر يې قيام وفرمايلو (يعني تر دومره وخت پورې ولاړ وو تر څومره وخت پورې چې سورة بقره ويل کيږي) ٥ بيا حضور ﷺ رکوع وکړه رکوع هم دومره طويل وه ٦ د رکوع څخه يې سر مبارك اوچت کې او تر ډير وخته پورې ولاړ وو ٧ او دا قيام د اولني قيامه څخه کمه وو ٨ بيا (دوباره) يې رکوع وکړه دا رکوع هم طويل وه خو د مخکنې رکوع څخه کموه بيا ودريدلو او سجده يې وکړه بيا (د دويم رکعت د پاره) ودريدلو او ډير طويل قيام يې وکړو ٩ خو دا قيام د اولني قيام څخه کم وو ١٠ بيا رکوع ته لاړو دا رکوع هم اوږده وه خو د اولنې رکوع څخه کمه ١١ بيا ئې سجده يې وکړه ١٢ د دې څخه وروسته (يعني د التحيات او سلام څخه وروسته) د لمانځه څخه فارغ شو نو نمر روښانه شوې وو.

١ فَقَالَ: إِنَّ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ آيَتَانِ مِنْ آيَاتِ اللّٰهِ، ٢ لَا يَخْسِفَانِ لِمَوْتِ أَحَدٍ وَلَا لِحَيَاتِهِ، ٣ فَإِذَا رَأَيْتُمْ ذٰلِكَ فَاذْكُرُوا اللّٰهَ. ٤ قَالُوا: يَا رَسُولَ اللّٰهِ، رَأَيْنَاكَ تَنَاوَلْتَ شَيْئًا فِي مَقَامِكَ هٰذَا، ٥ ثُمَّ رَأَيْنَاكَ تَكَعْكَعْتَ، ٦ فَقَالَ: إِنِّي رَأَيْتُ الْجَنَّةَ، ٧ فَتَنَاوَلْتُ مِنْهَا عُنْقُودًا، ٨ وَلَوْ أَخَذْتُهُ لَأَكَلْتُمْ مِنْهُ مَا بَقِيَتِ الدُّنْيَا، ٩ وَرَأَيْتُ النَّارَ فَلَمْ أَرَ كَالْيَوْمِ مَنْظَرًا قَطُّ أَفْظَعَ، ١٠ وَرَأَيْتُ أَكْثَرَ أَهْلِهَا النِّسَاءَ. ١١ قَالُوا: بِمَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ؟ قَالَ: بِكُفْرِهِنَّ. ١٢ قِيلَ: يَكْفُرْنَ بِاللّٰهِ؟! ١٣ قَالَ: يَكْفُرْنَ الْعَشِيرَ، وَيَكْفُرْنَ الْإِحْسَانَ، ١٤ لَوْ أَحْسَنْتَ إِلَى إِحْدَاهُنَّ الدَّهْرَ ثُمَّ رَأَتْ مِنْكَ شَيْئًا قَالَتْ: ١٥ مَا رَأَيْتُ مِنْكَ خَيْرًا قَطُّ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ حضور ﷺ وفرمايل چې نمر او سپوږمي د الله ﷻ (د قدرت) د نښو څخه دوه نښانې دي ٢ نه دا د چا د مرګ په وجه ترنخ (تندر) نيسي او نه د چا د پيدا کيدو په وجه ٣ هر کله چې تاسو ووينې (چې دا تندر نيولي دي) نو د الله ﷻ په ياد کې مشغول شئ ٤ صحابه و ﷡ عرض وکړو چې يا رسول الله ﷺ (د لمانځه په دوران کې) مونږ وليدل چې تا ﷺ د خپل ځاي څخه د څه شي د اخستلو اراده وکړه ٥ بيا مونږ ته ﷺ په وروسته کيدو وليدلې؟ ٦ حضور ﷺ وفرمايل چې (کله تاسو زه د څه شي آخستو د پاره په مخکې کيدو ليدلي ووم) هغه وخت ما جنت ليدلي وو ٧ او د هغې څخه مې د انګورو يوه غنچه شوکولو اراده کړې وه ٨ که ما د انګورو هغه غنچه شوکولې وې نو بلاشبه تاسو به هغه خوړلې ترڅو چې دنيا پاتې وې ٩ او کله چې تاسو زه به وروسته کيدو ليدلې ووم (هغه وخت) ما دوزخ ليدلې وو (د هغې د ګرمې د رسيدو د ويرې څه شاته شوې ووم) او د نن ورځ

په شان په هيڅ ورځ کې ما داسې هولناك څاي [سخته] هيڅ کله نه وو ليدلي ⑩ او په دوزخ کې ما زياتې ښځي وليدلو⑪ صحابه ؤ ﷺ عرض وکړو چې يا رسول الله ﷺ په څه وجه؟ حضور ﷺ وفرمايل چې د هغوئ د کفر په وجه ⑫ صحابه ؤ ﷺ عرض وکړو چې آيا ښځي د الله ﷻ په کفر کې مبتلا دي؟⑬ وي فرمايل چې نه بلکه هغوی د خاوندانو د نعمتو او د احسان کفران کوي (يعني د خاوندانو ناشکري او نافرماني کوي او د چا احسان نه مني)⑭ که تاسو په هغوئ کې د چا سره تر مودو پورې نيکي کوئ خو هر کله چې هغه څه شي [د خپلي مرضئ خلاف] ووينې نو دا وايي ⑮ چې ما هيڅ کله ستا څخه خير نه دي ليدلي. (بخاري مسلم)

**حل لغات:** ① **تَكَعْكَعْتَ**: تاسووړاندې وروسته کيدئ.

**تسهيلات:**

**قوله: تَكَعْكَعْتَ**: چونکه حضورپاك دَ کسوف په مونځ کښې وړاندې روستو تلې راغلې وو لهذا هم دغه سوال صحابه کرامو اوکړو.

**قوله: لَا يَخْسِفَانِ لِمَوْتِ أَحَدٍ وَلَا لِحَيَاتِهِ**:

**د خلقو دغلطي عقيدې اصلاح**: - لکه څنګه چه اول ليکلې شوی دی چه دَ جاهليت په زمانه کښې دَ عربو داغلطه عقيده وه چه نمر تندر څکه نيسی چه څوك لوئی سړې مړکيږی. په اتفاق سره په هغه ورځ دَ حضرت ابراهيم ﷺ انتقال شوې وو چه دَ ماريه قبطيه ﷺ نه پيدا شوې وو کومه چه دَحضورپاك وينځه وه. په دې انتقال سره دَ جاهليت دا عقيده نوره هم پخه کيدې شوه چه واقعی دَ يولوئی سړی په مړکيدو سره نمرتندر نيسی. په دې وجه حضورپاك دَ هغه خلقو دَ ترديد دَپاره باقاعده خطبه ورکړه اواعلان ئی اوکړو چه په نمر سپوږمئی کښې بدلون راوستل دَ الله تعالی کاردې. دَ الله تعالی دَ وحدانيت او قدرت کامله نښې دی. دا بدلون دَ يو سړی دَ مرګ دَ وجې نه نه راځی بس په تاسو باندې لازم دی چه کله په سپوږمئی يا نمر کښې داسې بدلون اوګورئی نومونځونه کوئی دَ الله تعالی ذکرکوئی او دَ الله تعالی په مخکښې زاری کوئی.

**د صلاة الکسوف دپاره د خطبې حکم**: - دَ سپوږمئی معامله دَ شپې وی په دې وجه په هغې کښې په جمع سره مونځ نشته بلکه په کورونوکښې ځان ځانله مونځ کولې شی. لهذا دَدې مسائل جدا اوکم دی اودَنمر تندر نيول چونکه دَ ورځې وخت کښې وی او په ورځ کښې دَ دې دَ پاره جمع وی لهذا دَدې مسائل زيات دی. باقی دَ امام ابو حنيفه ﷫ په نيز صلوة کسوف کښې خطبه نشته دې. چرته چه حضورپاك خطبه ورکړې ده نوهغه دَ اهل جاهليت دَ رسوماتو اودَ نمر تندر نيولو باره کښې دَعربو دَ غلطې عقيدې ترديد مقصود وو. دَ شوافع حضراتو په نيز کسوف خطبه ده. خو په ظاهر احاديثو کښې دَ خطبې ذکرموجود دې.

## [١٤٨٢] په صلاة كسوف كښې د رسول الله ﷺ خطبه

١٤٨٣ -(١)[٣] ١ «وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهَا - نَحْوُ حَدِيثِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَقَالَتْ: ٢ ثُمَّ سَجَدَ فَأَطَالَ السُّجُودَ، ٣ ثُمَّ انْصَرَفَ وَقَدِ انْجَلَتِ الشَّمْسُ، ٤ فَخَطَبَ النَّاسَ، فَحَمِدَ اللهَ، وَأَثْنَى عَلَيْهِ، ٥ ثُمَّ قَالَ: إِنَّ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ آيَتَانِ مِنْ آيَاتِ اللهِ، ٦ لَا يَخْسِفَانِ لِمَوْتِ أَحَدٍ وَلَا لِحَيَاتِهِ،

**ترجمه:** ١ او بي بي عائشه ﷺ څخه (هم) د حضرت ابن عباس ﷺ د مذكوره بالا روايت پشان روايت منقول دي په هغې كې يې دا هم فرمايلي دي ٢ چې بيا حضور ﷺ سجدي ته لاړو نو ډيره طويله سجده يې وكړه ٣ بيا چې د لمانځه څخه فارغ شو نو (نمر) روښانه شوي وو ٤ د دې څخه وروسته حضور ﷺ د خلقو په مخكې خطبه وفرمايله نو (مخكې حضور ﷺ) د الله ﷻ حمد وثنا بيان كړه ٥ بيا يې وفرمايل چې نمر او سپوږمي د الله ﷻ دنښو څخه دوه نښاني دي ٦ نه خو د چا د مرګ په وجه يې ترنخ (تندر) نيسي او نه د چا د پيدا ايش په وجه.

١ فَإِذَا رَأَيْتُمْ ذَلِكَ فَادْعُوا اللهَ، ٢ وَكَبِّرُوا، وَصَلُّوا، وَتَصَدَّقُوا، ٣ ثُمَّ قَالَ: يَا أُمَّةَ مُحَمَّدٍ، وَاللهِ مَا مِنْ أَحَدٍ أَغْيَرُ مِنَ اللهِ ٤ أَنْ يَزْنِيَ عَبْدُهُ أَوْ تَزْنِيَ أَمَتُهُ. ٥ يَا أُمَّةَ مُحَمَّدٍ وَاللهِ لَوْ تَعْلَمُونَ مَا أَعْلَمُ ٦ لَضَحِكْتُمْ قَلِيلًا، وَلَبَكَيْتُمْ كَثِيرًا» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ هركله چې تاسو تندر نيول وويني نو د الله ﷻ څخه دعا غواړئ ٢ تكبير وائي او مونځ كوئ او د الله په لار كې خيرات كوئ ٣ بيا يې وفرمايل چې اي امت د محمد (ﷺ) قسم دي د پروردګار د الله تعالى ﷻ څخه زيات هيڅ څوك غيرت مند نشته ٤ هر كله چې د هغه يو غلام [بنده] زنا كوي يا د هغه يوه وينزه (بندي) په زنا كې مبتلا كيږي ٥ او اي امت د محمد (ﷺ) قسم دي په الله ﷻ كه تاسو خلق هغه شي وپيژنئ كوم چې زه پيژنم (يعني د آخرت د ورځي هولناكي او د پرودرګار غضب) ٦ نو په دې كې هيڅ شك نشته چې ستاسو خندا به كمه شي او ژړا به مو زياته شي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① نَحْوُ: په معنى د مثل سره يعنى پشان، ② انْجَلَتْ: روښانه شو.

**تسهيلات:**

**قوله: مَا مِنْ أَحَدٍ أَغْيَرُ مِنَ اللهِ:**

**د الله تعالى د غيرت مفهوم:** - دغيرت اصلى معنى ده ، خپل حق كښې د غير شركت لره بد ګنړل. او دالله ﷻ د غيرت مطلب دادې چې په خپلو احكاماتو كښې د بندګانو نافرمانى

(١) اخرجه البخارى فى كتاب الجمعة/باب الصدقة فى الكسوف (رقم-١٠٤٤) ومسلم كتاب الكسوف/باب صلاة الكسوف (رقم-٣ - (٩٠١) والنسائى كتاب الكسوف/نوع آخر من صلاة الكسوف (رقم-١٤٧٤) ومالک فى الموطا كتاب صلاة الكسوف/باب العمل فى صلاة الكسوف (رقم-١)

اود امراونهی خلاف کول بد ګڼل. دديې ارشاد حاصل دادې چې د الله ﷻ يو بنده نارينه يا زنانه کله چې زنا اوکړي نو دې معامله کښې چې تاسو څومره غيرت محسوسوئی او ددې دواړو نه چې ستاسو څومره نفرت کوي ، دالله ﷻ غيرت ددې نه زيات شديد او د هغه نفرت ستاسو د نفرت نه زيات سخت دې.

**قوله: وَاللّٰهِ لَوْتَعْلَمُوْنَ مَا أَعْلَمُ:**

**په روايت الباب کښې زيات:**- په دې روايت کښې د سجدې د طوالت د خطبې، دعا، تکبير، د مونځ اود خيرات کولو ذکر او حکم دې اوپه دې حديث آخرې څه الفاظ نور زياتی هم منقول دی، حالانکه د ابن عباس ﷜ په روايت کښې ددې ذکر نشته دې.

**[١٤٨٤] د کسوف په وخت کښې د نبی عليه السلام کيفيت**

٣٨٣-()[٥] ١ وَعَنْ أَبِي مُوسَى - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: ٢ «خُسِفَتِ الشَّمْسُ، فَقَامَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَزِعًا ٣ يَخْشَى أَنْ تَكُونَ السَّاعَةَ ٤ فَأَتَى الْمَسْجِدَ، فَصَلَّى بِأَطْوَلِ قِيَامٍ وَرُكُوعٍ وَسُجُودٍ، ٥ مَا رَأَيْتُهُ قَطُّ يَفْعَلُهُ، ٦ وَقَالَ: هَذِهِ الْآيَاتُ الَّتِي يُرْسِلُ اللّٰهُ، ٧ لَا تَكُونُ لِمَوْتِ أَحَدٍ وَلَا لِحَيَاتِهِ، ٨ وَلَكِنْ يُخَوِّفُ اللّٰهُ بِهَا عِبَادَهُ، ٩ فَإِذَا رَأَيْتُمْ شَيْئًا مِنْ ذَلِكَ، ١٠ فَافْزَعُوا إِلَى ذِكْرِهِ وَدُعَائِهِ وَاسْتِغْفَارِهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ ابو موسیٰ ﷜ فرمايي ٢ چې کوم وخت چې نمر ترنخ (تندر) ونيولو نو نبي کريم ﷺ خوف زده ودريدلو ٣ او داسې خوف به ورياندې خور شو لکه چې قيامت راغلې وي ٤ حضور ﷺ مسجد ته تشريف راوړو او د طويل قيام، رکوع او سجود سره يې مونځ وکړو ٥ ما هيڅ کله حضور ﷺ (په دومره طويل قيام، رکوع او سجود کولو باندې نه دې ليدلي) ٦ بيا رسول الله ﷺ وفرمايل چې دا نښاني چې الله تعالیٰ ﷻ راليږي ٧ نه خو د چا د مرګ په سبب ظاهريږي اونه دچا د پيدائش په وجه دي ٨ ليکن د دې په ذريعه الله تعالیٰ ﷻ خپل بندګان ويروي ٩ هر کله چې تاسو د دې نښو څخه څه نښه ووينئ ١٠ نو د الله تعالیٰ ﷻ څخه خوف کولو سره د هغه ذکر کوئ دعا غواړئ او په استغفار کې مشغوليږئ. (بخاي مسلم)

**حل اللغات:**- ① فَزِعًا: د ويرې نه، ② يَخْشَى: ويريدلو، ③ يُخَوِّفُ: ويروی، ④ افْزَعُوا: اويريږئ.

**تسهيلات:**

**قوله: فَقَامَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَزِعًا:** يعنی کله چه دنمر تندر نيول شروع شو نوحضورپاك ويريدو سره اودريدو او په حضورپاك باندې داسې ويره راغله لکه چه قيامت قائم شوې وی.

[1] اخرجه البخاری فی کتاب الجمعة/باب الذکر فی الکسوف (رقم-١٠٥٩) ومسلم کتاب الکسوف/باب ذکر النداء بصلاة الکسوف الصلاة جامعة (رقم) ٢٤ - (٩١٢) وابوداود کتاب الصلاة،باب صلاة الکسوف (رقم-١١٧٧) والنسائی کتاب الکسوف/باب الأمر بالاستغفار فی الکسوف (رقم-١٥٠٣) وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب ما جاء فی صلاة الکسوف (رقم - ١٢٦٣)

**اشكال:** - دَ نمر تندر نيول خو يو عادى امر دې چه "حيلولة الارض بين الشمس والقمر" كيږي په دې كښې دَ ويريدو څه خبره وه اودَ دومره پريشانه كيدو څه ضرورت وو؟

**داشكال جواب:** - كسوف الشمس دَ قيامت دَ نښانونه يوه نښه ده په كوم كښې چه دا اشاره ده چه دا لوئى لوئى غرونه دا لوئى لوئى دريابونه اودا نظام علوى او سفلى اودا نظام سماوى به دَ سترګو په رف كښې ذره ذره شى. دا ستورى او دا سپوږمئى نمر اودَدې دغه شان بې نوره كيدل دا دَ قيامت دَ علاماتو يوه نمونه دَه اودَ قيامت ويره يوعكس دې څكه حضورپاك اوويريدو اودَ جمات طرف ته راغلو اوامت ته ئى هم حكم وركړو چه تاسو هم ويريدو سره جمات ته لاړشئى او مونځ اوكړئى ذكركوئى چرته هم دَ دغه وخت نه قيامت قائم كيدل شروع نه شى.

[١٤٨٥] دَ كسوف په مونځ كښې دَ ركوع اوسجدو تعداد

١٤٨٥-()[٦] [١] وَعَنْ جَابِرٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: [٢] «انْكَسَفَتِ الشَّمْسُ فِي عَهْدِ رَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَوْمَ مَاتَ إِبْرَاهِيمُ بْنُ رَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [٣] فَصَلَّى بِالنَّاسِ سِتَّ رَكَعَاتٍ بِأَرْبَعِ سَجَدَاتٍ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] حضرت جابر رضي الله عنه فرمايي [٢] چې د رسول الله ﷺ په زمانه كې په كومه ورځ چې د حضور ﷺ صاحبزاده حضرت ابراهيم وفات شوي وو نمر ترنځ (تندر) نيولي وو [٣] نو حضور ﷺ خلقو ته په شپږ ركوع او څلورو سجدو سره مونځ وركړو. (مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله:** مَاتَ إِبْرَاهِيمُ:

**د ابراهيم تعارف:** - دا ماريه قبطيه رضي الله عنها دَ بطن نه وو دَاتلسو مياشتو په عمر كښې دَ هغه انتقال شوې وو. په كال ٨ هجرى كښې پيداشوې وو او په ١٠ هجرى كښې په ماشوموالى كښې وفات شو. په دې روايت كښې په يوركعت كښې درې ركوع كولويان دې.

[١٤٨٦] په صلاة كسوف كښې څلور ركوعګانې اودوه سجدې

١٤٨٦-()[٧] [١] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- قَالَ: [٢] «صَلَّى رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- حِينَ كُسِفَتِ الشَّمْسُ ثَمَانِ رَكَعَاتٍ فِي أَرْبَعِ سَجَدَاتٍ».

**ترجمه:** [١] ابن عباس رضي الله عنهما فرمايي [٢] چې رسول الله ﷺ د نمر ترنځ (تندر) نيولو په وخت دوه ركعاته مونځ د اتو ركوع او څلورو سجدو سره داسې وركړو [چې په هر ركعت كې څلور

[١] ) اخرجه مسلم فى كتاب الكسوف/باب ما عرض على النبى صلى الله عليه وسلم فى صلاة الكسوف من أمر الجنة والنار(رقم) ١٠ - (٩٠٤)

[٢] ) اخرجه مسلم فى كتاب الكسوف/باب ذكر من قال: إنه ركع ثمان ركعات فى أربع سجدات (رقم) ١٨ - (٩٠٨) كتاب الكسوف/باب ذكر النداء بصلاة الكسوف الصلاة جامعة (رقم) ٢٦ - (٩١٣)

څلور رکوع او دوه دوه سجدي يي وکړلي]

**حل اللغات:** - ① کُسِفَتْ: تندر اونيولو.

۳۸۷—( )[۰] ① وَعَنْ عَلِيّ مِثْلُ ذٰلِكَ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او دغسې د حضرت علي ﷺ څخه منقول دي. (مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله:** وَعَنْ عَلِيّ مِثْلُ ذٰلِكَ:

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال: -**

① حضرت علی ﷺ هم دا روايت نقل کړې دې چې حضرت رسول کريم ﷺ داشان مونځ کړې دي

② د حضرت علی ﷺ باره کښې دامنقول دی چې هغوئ دا شان مونځ ادا کړو.

**[۱۴۸۸] دکسوف په وخت کښې د نبی عليه السلام طريقه**

۳۸۸—( )[۸] ① «وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ سَمُرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - قَالَ: ② كُنْتُ أَرْتَمِي بِأَسْهُمٍ لِي بِالْمَدِينَةِ فِي حَيَاةِ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ③ إِذْ كُسِفَتِ الشَّمْسُ، فَنَبَذْتُهَا فَقُلْتُ: ④ وَاللّٰهِ لَأَنْظُرَنَّ إِلَى مَا حَدَثَ لِرَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي كُسُوفِ الشَّمْسِ.

**ترجمه:** ① حضرت عبدالرحمٰن ابن سمره ﷺ فرمايي ② چې ما به د رسول کريم ﷺ په ژوند مبارك کې د خپلو غشو سره تير اندازي کوله (يوه ورځ په تير اندازي کې مشغول ووم) ③ چې نمر ترنځ (تندر) ونيولو ما غشي وغورځول او په زړه کې مي اوويل ④ چې قسم په الله زه به ضرور ګورم چې نمر ترنځ (تندر) نيولو سره د حضور ﷺ څه حالت وی (يعني دا به ګورم چې حضور ﷺ په دې وخت کې څه کوي؟)

**حل اللغات:** - ① أَرْتَمِي: تير اندازی مي کوله، ② نَبَذْتُهَا: اومي غورزول دا غشی، ③ حَدَثَ: څه نوې خبره راپيښه شوه،

① قَالَ: فَأَتَيْتُهُ وَهُوَ قَائِمٌ فِي الصَّلَاةِ رَافِعٌ يَدَيْهِ ② فَجَعَلَ يُسَبِّحُ وَيُهَلِّلُ، وَيُكَبِّرُ وَيَحْمَدُ، ③ وَيَدْعُو حَتَّى حُسِرَ عَنْهَا، ④ فَلَمَّا حُسِرَ عَنْهَا قَرَأَ سُورَتَيْنِ وَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ». ⑤ رَوَاهُ مُسْلِمٌ فِي صَحِيحِهِ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ سَمُرَةَ، ⑥ وَكَذَا فِي شَرْحِ السُّنَّةِ عَنْهُ. ⑦ وَفِي نُسَخِ الْمَصَابِيحِ عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ.

**ترجمه:** ① عبدالرحمٰن ﷺ وايي چې (په دې سوچ) زه د حضور ﷺ په خدمت کې حاضر شوم (نو ومي ليدل) چې حضور ﷺ دواړه لاسونه پورته کړي وو او په لمانځه کې ولاړ وو ② بيا (ما واوريدل چې) حضور ﷺ سبحان الله، لااله الاالله، الله اکبر او الحمد لله ويل

[1]) اخرجه مسلم کتاب الکسوف/باب ذکر من قال: إنه رکع ثمان رکعات فی أربع سجدات (رقم) ۱۸ - (۹۰۸)

[2]) اخرجه مسلم فی کتاب الکسوف/باب ذکر النداء بصلاة الکسوف الصلاة جامعة (رقم) ۲۶ - (۹۱۳)

[٣] او دعا يي كوله تر دي چې نمر د تندر نيولو څخه راوتلو[۴] كوم وخت چې د نمر څخه تور والي [ظلمت] لرې شو نو حضور ﷺ دوه سورتونه اوويل او دوه ركعاته مونځ يي اداء كړو (يعني حضور ﷺ دوه ركعاته مونځ وكړو چې په هغې كې يي دوه سورتونه قراءت كړل) [٥] دا حديث مسلم رحمه الله په خپل صحيح مسلم كې د عبدالرحمٰن ابن سمره رضي الله عنه څخه نقل كړي دي [٦] او په شرح السنة كې هم دا روايت دغسې د عبدالرحمٰن رضي الله عنه ابن سمره څخه منقول دي [٧] او د مصابيح په نسخو كې دا روايت د جابر ابن سمره څخه نقل شوې دي.

**حل اللغات:-** ④ يُهَلِّلُ: تهليل يعنى لَاإِلٰهَ إِلَّاالله، وئيل. ⑤ حُسِرَ: لرې شو (تور والي دنمر) يعنى روښانه شو.

**تسهيلات:**

**قوله: فَأَتَيْتُهُ وَهُوَ قَائِمٌ فِي الصَّلَاةِ:**

**د مذكوره جملې په مفهوم كښې دوه اقوال:-**

① حضور نبى كريم ﷺ دواړه لاسونه اوچت كړې وو او د مونځ په انداز كښې ولاړ وو او قبلې ته ئې مخ وو. او خلقو صفونه جوړ كړى وو.

② دې ځائې د صلوة نه مراد دعا ده. داتاويل په دې وجه كيږى چې د يو مسلك نه هم دا نه معلوميږى چې حضور نبى كريم ﷺ دنمر تندر نيولو په وخت كښې د مونځ په حالت كښې ذكر كولو او لاسونه ئې اوچت كړى وو.

**د تعدد ركوع د رواياتو ضعف:-** دكسوف دمونځ د ركوع دشمير باره كښې مختلف احاديث مروى دى. كومو روايتونو نه چې په هر ركعت كښې د ډيرو ډيرو ركوع ګانو اثبات كيږى هغه ټول مضطرب دى. هم دا وجه ده چې دې باره پخپله راويان هم مضطرب دې.ځينو دريو ركوع ګانې بيان كړى دى ، ځينو څلور او ځينو دا شمير پنځه بيان كړې دې او دا قاعده ده چې اضطراب موجب دضعف وى. نو د هغه رواياتو ترك كول واجب شو كوم چې د تعدد د ركوع ثابتوى.

**[١٤٨٩] دَكسوف په وخت كښې د غلام آزادول**

| |
|---|
| ١۴٨٩-(٩)[١] وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- قَالَتْ: [٢] «لَقَدْ أَمَرَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- بِالْعَتَاقَةِ فِي كُسُوفِ الشَّمْسِ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. |

**ترجمه:** [١] د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه لور بي بي اسماء رضي الله عنها فرمايي[٢] چې نبي كريم ﷺ د نمر په تندر نيولو كې د غلام د آزادولو حكم فرمايلي دي. (بخاري)

**حل اللغات:-** ① الْعَتَاقَة: غلام آزادول.

[١] ) اخرجه البخارى فى كتاب الجمعة /باب من أحب العتاقة فى كسوف الشمس(رقم-١٠٥٤)

**تسهيلات:**

**قوله: بِالْعَتَاقَةِ فِي كُسُوفِ الشَّمْسِ:**

**د كسوف په وخت كښې د غلام آزادولو ترغيب:**- د نمر تندر نيولو په وخت دنورو عملونو هم ذكر دې چې مونځ سره سره دې څه صدقه هم وركړى. څكه چې صدقې سره هم مصيبتونه رفع كيږى. او اعلى صدقه داده چې غلام آزاد كړې شي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[١٤٩٠] دَ كسوف په مونځ كښې د قراءت بالجهر او بالسر حكم**

١٤٩٠-(١)[١٠] ١ عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدَبٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: ٢ «صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فِي كُسُوفٍ ٣ لَا نَسْمَعُ لَهُ صَوْتًا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ١ سمره رضی الله عنه ابن جندب فرمايي ٢ چې رسول الله ﷺ د نمر د تندر نيولو په وخت مونږ ته داسې مونځ راكړو ٣ چې مونږد حضور ﷺ آواز نه اوريدلو. (ترمذي، ابوداود، نسايي ابن ماجه)

**تسهيلات:**

**قوله: لَا نَسْمَعُ لَهُ صَوْتًا:**

**په صلاة الكسوف په قراءت عدم:**-دا حديث مبارك او ددې په شان نور احاديث په دې خبره باندې دلالت كوى چې د كسوف د مونځ په وخت كښې به د امام قرآءت په اوچت آواز نه وى.

**[١٤٩١] د عجيبه واقعه په ظهور سجده كول**

١٤٩١-(٢)[١١] ١ وَعَنْ عِكْرِمَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قِيلَ لِابْنِ عَبَّاسٍ: ٢ مَاتَتْ فُلَانَةُ، بَعْضُ أَزْوَاجِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ٣ فَخَرَّ سَاجِدًا، ٤ فَقِيلَ لَهُ: تَسْجُدُ فِي هَذِهِ السَّاعَةِ؟! ٥ فَقَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ- صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: «إِذَا رَأَيْتُمْ آيَةً فَاسْجُدُوا» ٦ وَأَيُّ آيَةٍ أَعْظَمُ مِنْ ذَهَابِ أَزْوَاجِ النَّبِيِّ- صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -؟! رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ١ عكرمه رضی الله عنه راوي دي چې ابن عباس رضی الله عنهما ته اوويل شو ٢ چې د نبي كريم ﷺ د بيبيانو مباركو څخه فلاني بي بي (يعني بي بي صفيه رضی الله عنها) وفات شوه ٣ نو هغه (د دې عظيمې حادثې د خبر په اوريدو سره) په سجده پريوتلو (يا دا چې هغه مونځ وكړو) ٤ هغه

[١] اخرجه ابوداود فى كتاب الصلاة،باب من قال أربع ركعات (رقم-١١٨٤) والترمذى كتاب السفر/باب: كيف القراءة فى الكسوف (رقم-٥٦٢) والنسائى كتاب الكسوف/باب نوع آخر (رقم-١٤٨٤) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب ما جاء فى صلاة الكسوف (رقم - ١٢٦٤)

[٢] اخرجه ابوداود فى كتاب الصلاة،باب السجود عند الآيات (رقم-١١٩٧) والترمذى كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب فى فضل أزواج النبى صلى الله عليه وسلم (رقم-٣٨٩١)

ته عرض وشو چې ته دا وخت سجده ولې کوې؟[٥] هغه وفرمايل چې د رسول الله ﷺ ارشاد گرامي دي چې هرکله تاسو څه نښه (يعني کرشمهٔ الهي) ووينئ نو سجده کوئ[٦] او دحضور ﷺ د بيبيانو مبارکو د دائمي جداوالي څخه زياته لويه نښه بله کومه کيدې شي. (ترمذي ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ① خَرَّ: پريوتلو (په سجده). ② ذَهَاب: تلو ته وائی دلته ترې وفات کيدل مراد دی.

**تسهيلات: قوله : مَاتَتْ فُلَانَةُ بَعْضُ أَزْوَاجِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَخَرَّ سَاجِدًا:**

**د حادثې په وخت سجده کول:-** دې نه ام المؤمنين حضرت صفيه ﷺ مراد ده. دا چه کله وفات شوه نوچا حضرت ابن عباس ﷺ ته خبر اوکړو نوهغه په سجده کښې راپريوتلو. دغه سړی تپوس اوکړو چه داکوم وخت دې اوڅه سبب دې چه تاسو سجده اوکړه؟ په دې باندې حضرت ابن عباس ﷺ اوفرمائيل چه دَحضورپاك ارشاد دې چه کله تاسو څه نښه اوڅه نشانی اوگورې نو فوری توگه باندې سجده کوه او دَ رسول الله ﷺ دَ بی بی دَ انتقال نه بل څه لويه نښه کيدې شی.

**د سجدې په مراد کښې دوه احتمالات:-** علامه طيبی ﷫ ليکی چه په حديث کښې "اية" لفظ مطلق مذکور دې

① اوس که چرته دا دَ سپوږمئی او نمر په تندر باندې حمل کړې شی نو دَ سجدې نه مراد به مونځ وی چه دکسوف مونځ اوکړه ② اوکه دَ آيت نه نورې نښې مثلاً طوفان سلئی يا زلزله مراد وی نوبيابه دَ سجدې نه هم سجده مراد اخستې شی مونځ به مراد نه وی.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [١٤٩٢] دَکسوف په مونځ کښې رکوع

١٤٩٢ —( )[١٣][١] عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ:[٢] «انْكَسَفَتِ الشَّمْسُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَصَلَّى بِهِمْ،[٣] فَقَرَأَ بِسُورَةٍ مِنَ الطُّوَلِ،[٤] وَرَكَعَ خَمْسَ رَكَعَاتٍ،[٥] وَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ،[٦] ثُمَّ قَامَ الثَّانِيَةَ فَقَرَأَ بِسُورَةٍ مِنَ الطُّوَلِ،[٧] ثُمَّ رَكَعَ خَمْسَ رَكَعَاتٍ، وَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ،[٨] ثُمَّ جَلَسَ كَمَا هُوَ مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ يَدْعُو[٩] حَتَّى انْجَلَى كُسُوفُهَا». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] حضرت ابي ابن کعب ﷺ فرمايي [٢] چې د رسول الله ﷺ په زمانه مبارکه کې نمر ترنخ (تندر) ونيولو نو حضور ﷺ صحابه ؤ ﷺ ته مونځ ورکړو [٣] چې په هغې کې حضور ﷺ په اولني رکعت کې د طويل سورتونو څخه يو سورت قراءت وفرمايلو [٤] او پنځه رکوعي يې وکړې [٥] او دوه سجدې يې وکړې [٦] بياد دويم رکعت د پاره ودريدلو

---

[١] اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة،باب من قال أربع ركعات (رقم-١١٨٢) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب ما جاء في صلاة الكسوف (رقم - ١٢٦٢)

نو په هغې کې هم د طويل سورتونو څخه يو سورت يې قراءت کړو [٧] او پنځه رکوعې او دوه سجدې يې وکړې [٨] بيا دغسې قبله رخ (قبله ته مخامخ) ناست وو او دعا يې غوښتله [٩] تر دې چې نمر روښانه شو. (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ① انْجَلَى: چه روښانه شو.

**تسهيلات:**

**قوله: وَرَكَعَ خَمْسَ رَكَعَاتٍ:**

**په لسو رکعتونو کښې لس رکوع ګانې:-** په دې حديث پاك کښې پنځه رکوع ګانې په يو رکعت کښې ذکر شوې دي. يعنې په لسو رکعتونو کښې لس رکوع ګانې دي.

**[١٤٩٢]د احنافو مستدل**

٣٣-()[١٣] [١] وَعَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: [٢] «كُسِفَتِ الشَّمْسُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٣] فَجَعَلَ يُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ رَكْعَتَيْنِ، [٤] وَيَسْأَلُ عَنْهَا، حَتَّى انْجَلَتِ الشَّمْسُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ. [٥] وَفِي رِوَايَةِ النَّسَائِيِّ: أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - «صَلَّى حِينَ انْكَسَفَتِ الشَّمْسُ مِثْلَ صَلَاتِنَا: يَرْكَعُ وَيَسْجُدُ».

**ترجمه:** [١] نعمان ﷛ ابن بشير فرمايي [٢] چې د رسول الله ﷺ په زمانه کې نمر ترنغ (تندر) ونيولو [٣] نو حضور ﷺ دوه دوه رکعاته مونځ کول شروع کړل (يعني دوه رکعاته مونځ کولو سره به يې کتل که ترنغ (تندر) به ختم نه وو نو بيا به يې دوه رکعاته مونځ کولو دغسې د تندر تر ختميدو پورې يې مونځ کولو) [٤] او د الله تعالى ﷻ څخه يې دا دعا غوښتله [چې الله نمر روښانه کړي يا دا چې د هر دوه رکعاته څخه وروسته خلقو څخه به يې د تندر نيولو په باره کې پوښتنه کوله چې تندر ختم شو که نه؟ که خلقو به اوويل چې اوس لا باقي دي نو بيا به لمانځه کې مشغول شو] تر دې چې نمر روښانه شو، ابوداؤد، [٥] او د نسايي يو روايت دې چې نمر ترنغ (تندر) ونيولو نو حضور ﷺ زمونږ په شان مونځ وکړو چې په هغې کې يې رکوع او سجده کوله.

**حل اللغات:-** ① انْجَلَتْ: چه روښانه شو،

[١] وَلَهُ فِي أُخْرَى: أَنَّ «النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - خَرَجَ يَوْمًا مُسْتَعْجِلًا إِلَى الْمَسْجِدِ [٢] وَقَدِ انْكَسَفَتِ الشَّمْسُ، [٣] فَصَلَّى حَتَّى انْجَلَتْ، [٤] ثُمَّ قَالَ: إِنَّ أَهْلَ الْجَاهِلِيَّةِ كَانُوا يَقُولُونَ: [٥] إِنَّ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ لَا يَنْخَسِفَانِ إِلَّا لِمَوْتِ عَظِيمٍ مِنْ عُظَمَاءِ أَهْلِ الْأَرْضِ، [٦] وَإِنَّ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ لَا يَنْخَسِفَانِ لِمَوْتِ أَحَدٍ وَلَا لِحَيَاتِهِ، [٧] وَلَكِنَّهُمَا خَلِيقَتَانِ مِنْ خَلْقِهِ، [٨] يُحْدِثُ اللَّهُ فِي خَلْقِهِ مَا شَاءَ، [٩] فَأَيُّهُمَا انْخَسَفَ فَصَلُّوا حَتَّى يَنْجَلِيَ، [١٠] أَوْ يُحْدِثَ اللَّهُ أَمْرًا».

[1] ) اخرجه ابوداود فى كتاب الصلاة،باب من قال: يركع ركعتين (رقم-١١٩٣) والنسائى كتاب الكسوف/باب نوع آخر (رقم-١٤٨٧)

**توجمه:** ١ د نسايي د يو بل روايت الفاظ دا دي چې يو ورځ حضور ﷺ په تلواري سره مسجد ته تشريف راوړو ٢ چې نمر ترنګ (تندر) نيولي وو ٣ نو مونځ يې وکړو تر دې چې نمر روښانه شو ٤ بيا حضور ﷺ وفرمايل چې د جاهليت د زماني خلقو به ويل ٥ چې په زمکه اوسيدونکو کې د لويو سړيو څخه د يو سړي د مرګ په وجه نمر او سپوږمي ته تندر لګی ٦ حالانکه (حقيقت دا دي چې) نمر او سپوږمي نه د چا د مرګ په وجه ترنګ (تندر) نيسي او نه د چا د پيدايش په وجه، ٧ دا دواړه د الله ﷻ د مخلوقاتو څخه دوه مخلوق دي ٨ الله تعالى ﷻ چې څنګه غواړي په خپل مخلوق کې تغير [مثلًا تندر نيول رڼا او تياره] پيدا کوي ٩ هر کله چې په دې کې يو تندر ونيسي نو تاسو مونځ کول شروع کړئ تر دې چې هغه روښانه شی ١٠ يا د الله تعالى ﷻ څه حکم ظاهر شی (يعني عذاب راشي يا قيامت شروع شي) (نسايي) .

**حل اللغات:**- ⓶ مُسْتَعْجِلًا: په جلتئ سره.

**د راوي مختصر تعارف:**- نوم نعمان ابوعبدالله کنيت دَ پلار نوم ئی بشير اودې دَ ډيرو اوچتو صحابه کرامو نه وو.دَ هغوی دَ پلار عبدالله بن رواحه خور وه.دَ هجرت نه پس انصاروکښې دَ ټولونه اول هم دا پيداشوې وه.بيا شپږ مياشتې پس حضرت عبدالله بن زبير رضي الله عنه پيدا شوي وو.کله چه څه قدرې هوښيار شو نو منبر سره نيزدې به کيناستو او وعظ به ئی اوريدو. (٥)

په ٥٩ ھ کښې اميرمعاويه رضي الله عنه هغه دَ کوفې حاکم مقرر کړو بيادَ حمص هم اميرمقرر شو.دَ هغوی باره کښې صاحب قهری فرمائی کان حليمًا ناسكًا يحب العافية هغه بوج اوچتونکې،عابداو عافيت خوښونکې وو. دې سره دَبهادرئی او بسالت هم مثال نه لرلو.

**وفات:**- ٦٥ ھ حمص په خواشا کښې په بيران نومې کلی کښې وو دَ ابن زبير رضي الله عنه مروان سره جنګ کيدلو په کوم کښې چه هغه دَ ابن زبير رضي الله عنه ملګرتيا اوکړه.په دې باندې دَ مروان سړی خالد بن عدی الکلامی هغه قتل کړو اودَ هغه سر ئی پرې کړو.دَ هغه بی بی دَ هغه سر په خپله غيږ کښې اونيولو هغه وخت دَ ده عمر ٦٤ کاله وو.(١)

**روايات:**- دَهغه نه ١٢٤ روايات نقل دی.٥ کښې بخاری اومسلم دواړه متفق دی. بخاری په يو کښې او مسلم په څلورو کښې منفرد دې.

---

(١) استيعاب ٣١٠)ـ (٢) فی الإستيذان باب لاتترک النار فی البيت عند النوم رقم، ٥٨٢٠، ومس، فی الأشربة باب الأمر بتغطية الإناء وإيكاء السقاء إلخ، رقم، ٣٧٦٠، وكذا،حم، اول مسند الكوفيين رقفم، ١٨٧٤٩). (٣)فتح الباری شرح بخاری. (٤) روضة المتقين ٢٠٦/١. (٥)ابوداوٗد.

**تسهیلات:**

**قوله: مِثْلَ صَلَاتِنَا:**

**په صلاة الکسوف کښې د مسلک حنفی تائید:-** داحدیث په واضح توګه دَ احنافودَمسلك تائیدکوی وائی چه دَ کسوف مَونځ دَعام مونځونو په شان یومونځ دي دَدي څه جدا طریقه نشته. مونږ له قولی حدیث ته کتل پکاردی اوعام ضابطه داده چه دَ مونځ یورکعت کښې هم یوه رکوع ده.

# [ ۶۷/۵۱ ]بَابٌ فِي سُجُودِ الشُّکْرِ

## وهذا الباب خال عن الفصل الأول والثالث

### دَشکردَسجدې بیان

| **خلاصة الباب:-** |
|---|
| **فیه ثلاثة أحادیث مشتملة علی مسئلة واحدة:** |
| ① ثبوت سجود الشکر عن النبي ﷺ : ۱، ۲، ۳. |

**د سجدې قسمونه:-** په مانځه کښې دننه سجدو نه علاوه دَ مونځ نه بهرڅوقسم سجدې دی تفصیل ته اوګورئی:

① یوه سجده سهوده دادَ مونځ دَ صحیح کولودَپاره ده کوم چه دَ صلوة په حکم کښې ده په دې کښې هیڅ اختلاف نشته دې.

② دویمه سجده دَتلاوت ده دا سجده دَ قرآن دَ تلاوت په وخت واجب وی دَدې په جوازکښې هم څه کلام نشته دې.

③ دریمه سجده دَمناجات ده کومه چه دَ مانځه نه بهر وی. دَ اکثرو علماؤدَ ظاهری اقوال نه معلومیږی چه دا مکروه ده. عوام الناس دَمانځه نه پس داکوی. بعضې خلق دواړه لاسونه په زمکه باندې الټه کیخودوسره دَ دعا شکل جوړه وی دامکروه ده.

④ څلورمه سجده دَ شکرده چه دَ حصول نعمت یا مصیبت لرې کیدو په وخت کولې شی په دې کښې دَ علماؤ اختلاف دې.

### د سجده شکر په حکم کښې مذاهب

① امام شافعی رحمه الله امام احمدبن حنبل رحمه الله اودَ احنافو نه امام محمد رحمه الله فرمائی چه کله څه دَ خاص خوشحالئی موقع راشی نوسجده دَ شکرکول سنت ده.

② امام مالك رحمه الله اوامام ابوحنیفه رحمه الله دَ بعضې اقوال نه معلومیږی چه سجده دَ شکرمکروه ده.

**د اول فریق دلائل:-**

①دَدې باب مذکوره دریواړه احادیث د دوی مستدلات دی په کومو کښې چه دَ سجدې دَ شکر واضح ثبوت موجود دې.

② دَ جنګ بدر په موقع چه کله دَ ابوجهل سر دَ حضورپاك مخې ته راوړلې شو نوحضورپاك دَ شکرسجده ادا کړه اوبیانی اوفرمائیل چه دَدې امت فرعون مړکړې شو "فخرساجدا" الفاظ راغلی دی.

③ دغه شان صدیق اکبر ﷺ ته چه کله دَ مسلمه کذاب دَ قتل خبر اورسیدو نوهغوی دَ شکر سجده دَ شکراداکړه.

④ دغه شان په ډیروموقعو باندې حضرت عمر فاروق ﷺ دَ شکرسجده ادا کړې ده کله چه به هغوی ته دَمسلمانانو دَ فتح خبر رسیدلو.

⑤ دغه شان کله چه دَ خوارج مشر قتل کړې شو نوحضرت علی ﷺ دَ شکرسجده اداکړه داټول دَ سجدۀشکردَ مسنون کیدو دلائل دی.

**د دویم فریق دلائل:-** دَالله تعالی نعمتونه بې شمیره دی اوهروخت رابنکاره کیږی که په هریونعمت باندې مسلمانانوته دَ سجدۀشکر کولو حکم کړې دې نودا به یوډیر لوئی تکلیف شی.

**دامام ابوحنیفه د قول په تشریح کښې مختلف اقوال:-** امام محمد رحمه الله دَ امام ابوحنیفه رحمه الله متعلق په دې سلسله کښې یوه جمله نقل کړې ده (انه کان لایراهاشیأ) (کذافی الذخیرة) یعنی امام صاحب سجدۀ شکر هیڅ نه ګڼړله. دَ امام ابوحنیفه رحمه الله دَدې کلام څه مطلب دې په دې کښې دَ احنافودَعلماؤ مختلف رائې دی. چې دامام صاحب د دې قول مطلب او مراد څه دې.

① د دې د مسنونیت نفی ده.

② دَ سجدۀ شکر دَ وجوب نفی ده.

③ دَ سجدۀ شکر دَ جواز نفی ده.

④ دَ شکرتام نفی کول غواړی چه صرف سجده کول پوره شکر نه دې بلکه کامل شکردادې چه دوه رکعته دَ شکرانې مونځ اداکړی. داټول اقوال په خپل ځائی

**د احنافو په نیزمفتی به قول:-** لیکن دَ احنافو فتوی په دې باندې ده چه سجده دَ شکرکول مستحب دی ځکه چه په ډیرو احادیثو کښې دَدې ثبوت موجود دې او امت دا قبول کړی دی. او په هریونعمت باندې سره دَدې چه تکلیف مالایطاق دې لیکن په لویولویو نعمتونو باندې کله کله دَ شکرسجده کول څه ګران کار نه دې.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

داعجیبه باب دې چه په دې کښې فصل اول هم نشته دې او فصل ثالث هم نشته دې صرف فصل ثانی دې په کوم کښې چه صرف درې احادیث دی کوم چه حاضر خدمت دی.

**[١٤٩٤] ذَ خوشحالئ په وخت سجده د شکر**

١٤٩٣-(١)[١] ١ عَنْ أَبِي بَكْرَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: ٢ «كَانَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- إِذَا جَاءَهُ أَمْرٌ سُرُوراً -٣ أَوْ يُسَرُّ بِهِ -٤ خَرَّ سَاجِداً، شَاكِراً للهِ تَعَالَى». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ ٥ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ١ حضرت ابوبکره ﷛ فرمايي ٢ چې رسول الله ﷺ ته چې به څه خوشحالي پيښيه شوه ٣ يا راوي د لفظ سُرُوراً په ځاي يُسَرُّبِهِ ويلي دي يعنى حضور ﷺ ته چې به څه داسې امر پيښ شو چې په هغې سره به خوشحاله شو ٤ نو د الله ﷻ د شکر اداء کولو د پاره به په سجده پريوتلو، ابوداؤد ترمذي، ٥ امام ترمذي ﷫ ويلي دي چې دا حديث حسن غريب دي.

**حل اللغات:-** ① سُرُوراً: دا لفظ منصوب دې دَدې فعل "يوجب" محذوف دې. يا حال دې يعنى ساراً. خوشحالئ ته وائي. ② خَرَّ: پريوتلو (په سجده).

**تسهيلات:**

**قوله: خَرَّ سَاجِداً:**

**د سجده شکر دپاره دليل:-** کوم حضرات چه سجده شکر سنت ګرځوی هغوی دَ دې حديث نه استدلال کوی. حضرت امام ابوحنيفه ﷫ "خرساجدا" نه دوه رکعته مونځ مراد اخلی اودَحديث په الفاظو کښې دَدې مفهوم پوره پوره ګنجائش شته دې. خو احناف په نيزفتوىٰ په دې باندې ده چه ځان له سجده دَشکر اداکول مستحب دی.

**[١٤٩٥] د مصيبت زده په ليدو سره سجدهٔ شکر اداکول**

١٤٩٥-(٢)[٢] ١ وَعَنْ أَبِي جَعْفَرٍ: أَنَّ «النَّبِيَّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- رَأَى رَجُلاً مِنَ النُّغَاشِيِّينَ ٢ فَخَرَّ سَاجِداً». ٣ رَوَاهُ الدَّارَقُطْنِيُّ مُرْسَلاً، وَفِي شَرْحِ السُّنَّةِ لَفْظُ الْمَصَابِيحِ.

**ترجمه:** ١ ابو جعفر ﷛ فرمايي چې نبي کريم ﷺ يو پست قد (لنډي) سړي وليدلو ٢ نو په سجده پريوتلو، ٣ دارقطني دا روايت بطريق ارسال نقل کړي دي او په شرح السنة کې د

---

[١]) اخرجه ابوداود فی کتاب الجهاد/باب فی سجود الشکر (رقم-٢٧٧٤) والترمذی کتاب السير عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی سجدة الشکر (رقم-١٥٧٨) وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب ما جاء فی الصلاة والسجدة عند الشکر (رقم-١٣٩٤)

[٢]) اخرجه الدار قطنی باب السنة فی سجود الشکر(رقم-١٥٢٨)

مصابیح په الفاظو سره منقول دي.

**حل اللغات:-** ① النُّغَاشِيِّنَ: النغاش هغه سړی ته وائی دَ چا قد چه ډیرزیات وړوکې وی او هغه ناقص الخلقت او ضعیف الحرکت وی.

**د راوي مختصر تعارف:-** نوم عبدالله، ابوجعفر کنیت. دا دَ رسول الله ﷺ دَ تره خوئ حضرت جعفر طیار رضي الله عنه خوئی دې. کله چه دَهغه پلار حضرت جعفر رضي الله عنه دَحبشه طرف ته هجرت اوکړو نوعبدالله رضي الله عنه دَهجرت په دوران کښې حبشه کښې پیداشو. کله چه په ۷ھ کښې حضرت جعفر رضي الله عنه مدینې منورې ته راغلونودَحضرت عبدالله رضي الله عنه عمر هم اووه کاله وو په هغه وخت رسول الله ﷺ دَ هغه نه بیعت هم اوفرمائیلو. (۲)

بیا څه موده پس حضرت جعفر رضي الله عنه په غزوه موته کښې شهیدکړې شوپه دې وجه رسول الله ﷺ به حضرت عبدالله رضي الله عنه سره ډیره زیاته مینه کوله. حضور ﷺ په یوموقع باندې فرمائیلی وو چه عبدالله بن جعفر رضي الله عنه خوصورتًا او سیرةً زما په شان دې. علامه ابن عبدالبر رحمه الله فرمائی عبدالله بن جعفر کریم النفس فیاض، خوش طبع خوش اخلاق پرهیزګار او پاك دامن او رښتوني وو. (۳)

بیاچه کله ابن ملجم حضرت علی رضي الله عنه شهیدکړو نودَهغوی په قصاص کښې هم عبدالله بن جعفر رضي الله عنه دَ هغه پښې لاسونه پرې کولوسره بدله اخستې وه.(۴)

**وفات:-** ۸۰ھ کښې په مدینه منوره کښې وفات شو. دَمدینې ګورنر ابان بن عثمان په خپل لاس هغه ته کفن واچولو او جنازې له ئی اوګه ورکړه. په جنت البقیع کښې خښ کړې شو. دَ هغوی په جنازه کښې ډیره زیاته ګڼړه وه. (۵)

**مرویات:-** کله چه دَ رسول الله ﷺ وفات اوشونوهغه وخت کښې دَحضرت عبدالله بن جعفر رضي الله عنه عمر تقریبًا لس کاله وو خودَ وړوکوالی په دې زمانه کښې هم هغه یوڅو احادیث یادکړی وو. د هغې نه دوه په بخاری اومسلم کښې هم دی. دَنوروحالاتودپاره اوګورئی ① اسدالغابة ۱۳۴/۳ ② اصابه ۴۸/۴ ③ مستدرك ۵۲۷/۳ ④ استیعاب ۳۵۴/۱ ⑤ تهذیب الکمال ۱۹۳ وغیره.

**تسهیلات:**

**قوله: مِنَ النُّغَاشِيِّنَ:**

**د نغاشین د لفظ تحقیق او معنی:-** په یوروایت کښې نغاشین هم دې اوالنغاشی هم دې په دې صیغه کښې په نون باندې ضمه ده او په غین باندې شدنشته دې بلکه زیر دې. النغاش هغه سړی ته وائی دَ چا دَ قدحدچه ډیرزیات وړوکې وی او دَ هغه ناقص الخلقت او ضعیف الحرکت وی هم دَدې قسم یوسړې چه حضورپاك اولیدلو نودَالله تعالی په دربارکښې دَ شکرانې په

توګه په سجده پریوتلو. ښکاره ده چې د اوږد قدسرې کله په لار روان وی نوخومره ښائسته اوښکلې ښکاریږی لکه دَ سروې ونه یادَ صنوبر اوږد ښاخ په زمکه باندې روانیدوسره وراندې کیږی. په دې باندې دَالله تعالی شکر په ځانی راوړل خو ډیر په ځائی دې.

**د سجدهٔ شکر مقصد:** -لیکن علماؤ لیکلی دی چه دَ داسې سړی په مخکښې دې دَ شکرسجده نه کوئی دې دَپاره چه هغه ته تکلیف اونه رسی ځکه چه دَدې سجده دَ شکرمطلب دانه دې چه په نورو باندې فخراوکړې شی بلکه دَدې مقصددادې چه پخپله دَالله تعالی دَنعمت شکر اداکړې شی اودَالله تعالی دَ عظمتونو اعتراف اوکړې شی. علماؤ دا هم لیکلی دی چه دَ داسې فاسق اوفاجر په مخکښې سجده کول پکاردی چه الله تعالی زه دَدې فسق نه محفوظ اوساتلم خوبیاهم دَ فاسق مخې ته سجده کول زیات بهتردی دې دَپاره چه هغه ته تنبیه اوشی. دَ شیخ شبلی رحمه الله باره کښې مشهور دی چه هغه کله یوفاسق فاجر په خوندونوکښې ډوب اولیدلو نودَهغه په وړاندې ئی اوفرمائیل (الحمدلله الذی عافانی مماابتلاك به) یعنی په کوم فسق اوفجورکښې چه الله تعالی ته راګیرکړې اوزه ئی محفوظ کړم په دې باندې دَالله تعالی په لاکهونو لاکهونو شکردې.

**[١٤٩٦] دَامت دپاره دَ رسول الله ﷺ دعا**

٣٢ -( )[٣] ١ وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ٢ «خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مِنْ مَكَّةَ نُرِيدُ الْمَدِينَةَ، ٣ فَلَمَّا كُنَّا قَرِيبًا مِنْ عَزْوَزَاءَ، ٤ نَزَلَ ثُمَّ رَفَعَ يَدَيْهِ، فَدَعَا اللَّهَ سَاعَةً، ٥ ثُمَّ خَرَّ سَاجِدًا، فَمَكَثَ طَوِيلًا، ٦ ثُمَّ قَامَ فَرَفَعَ يَدَيْهِ سَاعَةً، ٧ ثُمَّ خَرَّ سَاجِدًا، فَمَكَثَ طَوِيلًا ٨ ثُمَّ قَامَ فَرَفَعَ يَدَيْهِ سَاعَةً، ثُمَّ خَرَّ سَاجِدًا،

**توجمه:** ١ حضرت سعد ابن ابي وقاص رضي الله عنه فرمايي ٢ چې مونږ د رسول الله ﷺ سره د مديني په اراده د مکي څخه روان شو ٣ کوم وخت چې مونږ عزوزاء ته نژدې (چې د مکي او مديني په مينځ کې يو مقام دي) ورسيدو ٤ نو حضور ﷺ (د اوښي څخه) راښکته شو او دواړه لاسونه يي پورته کړه د لږ ساعت د پاره خپل لاسونه يي پورته کړي وو (دعا يي غوښتله) ٥ بيا په سجده پريوتلو او تر ډير وخته پوري په سجده کې وو ٦ بيا ودريدلو او تر لږ وخته پوري يي خپل دواړه لاسونه پورته کړه او دعا يي غوښتله ٧ بيا په سجده پريوتلواوډير وخت ئې تير کړو ٨ بيا اودريدلو نوڅه وخته پورې ئې لاسونه پورته کړی وو. ٩ اوبيا په سجدې کښې پريوتلو.

**حل اللغات:** - ① عَزْوَزَاءَ: دَمکې اومدينې په مينځ کښې جحفه سره نيزدې دَ يومقام نوم عزوزا دې.

[1] ) اخرجه ابوداود كتاب الجهاد/باب في سجود الشكر (رقم-٢٧٧٥)

١ قَالَ: إِنِّي سَأَلْتُ رَبِّي، وَشَفَعْتُ لِأُمَّتِي، ٢ فَأَعْطَانِي ثُلُثَ أُمَّتِي، ٣ فَخَرَرْتُ سَاجِدًا لِرَبِّي شُكْرًا، ٤ ثُمَّ رَفَعْتُ رَأْسِي، فَسَأَلْتُ رَبِّي لِأُمَّتِي، ٥ فَأَعْطَانِي ثُلُثَ أُمَّتِي، ٦ فَخَرَرْتُ سَاجِدًا لِرَبِّي شُكْرًا، ٧ ثُمَّ رَفَعْتُ رَأْسِي، فَسَأَلْتُ رَبِّي لِأُمَّتِي، ٨ فَأَعْطَانِي الثُّلُثَ الْآخِرَ، ٩ فَخَرَرْتُ سَاجِدًا لِرَبِّي شُكْرًا». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ١ بيا د هغې څخه وروسته يې وفرمايل چې ما د خپل پروردګار څخه دعا وغوښتله او د خپل امت (د ګناهونو د بخشش، د عيبونو د پرده پوشۍ او د درجاتو د بلند کيدو) دپاره مې شفاعت وکړو ٢ نو ماته د دريمې برخې د امت [مغفرت] راکړل شو ٣ زه د خپل رب د شکر د اداء کولو دپاره په سجده پريوتم ٤ بيا ما خپل سر پورته کړو او د خپل پروردګار څخه مې د خپل امت د پاره (د هغه د رضا او د مغفرت) خواست وکړو ٥ نو الله تعالى ﷻ ماته د نورو دريمې حصې امت مغفرت عطا کړو ٦ زه د خپل رب د شکر د اداء کولو د پاره په سجده پريوتم ٧ بيا ما سر پورته کړو او د خپل پروردګار څخه مې د خپل امت د پاره دعا وغوښتله ٨ نو الله تعالى ﷻ ماته د باقي دريمې حصې امت مغفرت هم راکړو ٩ نو زه د خپل پروردګار د شکر اداء کولو د پاره په سجده کښې پريوتم. (احمد ابوداؤد)

**تسهيلات: قوله:** ثُمَّ رَفَعَ يَدَيْهِ:

**د دعا په وخت د لاسونو پورته کولو حکم:-** دَدعا په دې موقع باندې حضورپاك باربار دواړه لاسونه اوچت کړي دي دَ کوم نه چه معلوميږي دَ دعا په موقع باندې لاسونه اوچتول دَ دعا دَ آداب نه دي لکه چه فقهاؤ ليکلي دي په دې سره دَعربو مسلمانانوله په هوش کښې راتلل پکاردي چه لاسونه اوچتول لکه چه ګناه ئې ګڼړي اودَ سلفيت په فتنه کښې دَ ايمان دَ حلاوت نه محروم شوي دي.

**قوله:** فَأَعْطَانِي الثُّلُثَ الْآخِرَ:

**درې ځله دالله په دربار کښې سوال کول:-** يعنې درې ځل ئې دَالله تعالى نه دعا اوغوښتله هرځل الله تعالى ماته زما دَ امت دريوکښې يوه حصه راکړه چه داخلق به دَ عذاب نه محفوظ وي. کله چه درې په دريوحصوکښې پوره راکړه نومادَشکر په توګه سجده اداکړه. الله تعالى دَاعلى درجې خلق په ړومبي ځل سوال باندې معاف کړل. درميانه درجې خلق ئې په دويم ځل سوال کولوپه موقع معاف کړل اودَادنى درجې خلق ئې په دريم ځل سوال باندې معاف کړل.

**اشکال:-** دَ قرآن اوحديث نه په واضحه توګه معلوميږي چه دَ قيامت په ورځ به بعضې مسلمانان ګناهګاران دوزخ ته ځي اودَخپلو کړو سزابه خوري ليکن دَدې حديث نه معلوميږي چه پوره امت معاف شوي دي.

**جوابونه:-**

① دَ دغه شفاعت اودَحضورپاك دَدي دعا تعلق دَدنيا سزاګانو اودَهغې عذاب سره دي يعنې په دې امت باندې داسې په زمكه كښې دَ نورتلوعذاب يادَ شكلونودَ مسخ كيدلو عذاب دې يانور عذابونه دې. دَدې نه به دا امت په مجموعي توګه باندې محفوظ پاتې وي اولكه څنګه چه سابقه امتونودې قسم عذابونوتباه كړي وو. په دې امت باندې خسف اوقذف اومسخ اوغرق اجتماعي عذابونه هم نه راځي. دَدې شفاعت او دعا مطلب دانه دې چه دَ قيامت په ورځ كښې به دَدې امت ګناهګاران دوزخ ته نه ځي.

② دَدې شفاعت اودعا تعلق بيشكه دَ آخرت عذاب سره نه دې ليكن دَحضورپاك شفاعت اودعاسره داګارنټي ملاؤ شي چه څوك مسلمان ګناهګار كوم چه دوزخ ته تلې دې هغه به هميشه دَپاره دوزخ ته نه ځي بلكه الله تعالى وعده اوفرمائيله چه دَ سزا تيرولونه پس به دې دَ دوزخ نه راويستلې شي.

## [۶۸/۵۲] بَابُ الإِسْتِسْقَاءِ

### دَاستسقاء دَمونځ بيان

**خلاصة الباب:-**

**فيه أربعة عشر حديثاً مشتملة على ثماني مسائل:**

① ثبوت صلوة الاستسقاء: ١-

② تحويل الرداء في صلاة الاستسقاء: ١، ۶، ٧، ١٢-

③ كيفية رفع اليدين فی الاستسقاء: ٢، ٣، ١٢-

④ الدعاء وقت المطر: ۴-

⑤ العمل المسنون وقت المطر: ۵-

⑥ الدعاء في الاستسقاء وكلماتها: ١، ۶، ٧، ٨، ١٠، ١١، ١٢-

⑦ التضرع إلى الله تعالى فی الاستسقاء: ٩-

⑧ استسقاء الحيوانات : ١۴-

قال الله تعالى ﴿ اسْتَغْفِرُوا رَبَّكُمْ إِنَّهُ كَانَ غَفَّارًا ۝ يُرْسِلِ السَّمَاءَ عَلَيْكُمْ مِدْرَارًا ۝﴾ [سورت نوح: ١١-١٠]

**دَ استسقاء لغوي معنى:-** استسقاء باب دَاستفعال مصدر دې په مجرد كښې دَدې مصدر "السقي" دې چه دَ څروبوالي په معنى كښې دې. په استسقاء كښې سين اوتاء دَ طلب دَپاره دي. مطلب داشوچه "طلب السقي" يعنې څروبوالې او باران غوښتل.

**د استسقاء شرعي تعريف:**- دَ شريعت په اصطلاح کښې دَ استسقاء تعريف داسې دې. (طلب السقي بوجه مخصوص بانزال المطر ودفع الجدب والقحط) په پښتو کښې تعريف داسې دې چه په اوچ کالئ کښې دَ باران دَ غوښتلو دَپاره دَ خودلې شوې طريقې مطابق مونځ کول اودعا کول.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[١٤٩٧] دَحضورپاکﷺ دَاستسقاء دَمونځ طريقه**

١٤٩٧ – ( ) [١] [١] عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ زَيْدٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا - قَالَ: [٢] «خَرَجَ رَسُولُ اللهِ بِالنَّاسِ إِلَى الْمُصَلَّى يَسْتَسْقِي، [٣] فَصَلَّى بِهِمْ رَكْعَتَيْنِ، جَهَرَ فِيهِمَا بِالْقِرَاءَةِ، [٤] وَاسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ يَدْعُو، وَرَفَعَ يَدَيْهِ، [٥] وَحَوَّلَ رِدَاءَهُ حِينَ اسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] حضرت عبدالله بن زيد رضي الله عنه فرمايي [٢] چې رسول الله ﷺ د خلقو سره د باران د طلب د پاره عيد ګاه ته تشريف يوړلو [٣] حضور ﷺ هلته دوه رکعاته مونځ ورکړو چې په هغې کې په اوچت آواز سره يې قراءت وکړو [٤] او مخ په قبله کيدو سره يې دعا وغوښتله او حضور ﷺ (د دعا د پاره) دواړه لاسونه اوچت کړي وو [٥] او قبلې ته مخ ګرځولو په وخت يې خپل څادر واړولو. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:**- ① يَسْتَسْقِي: باران ئې غوښتلو، ② حَوَّلَ: واې ړولو، ③ رِدَاءَ: څادر.

**تسهيلات:**

**قوله: يَسْتَسْقِي:**

**د استسقاء درې صورتونه:**- دَ قرآن اوحديث نه دَ استسقاء درې صورتونه معلوميږي.

① دَ مونځ کولو نه بغير صرف استغفار کول اودعا غوښتل.

② دَ جمعې دَ خطبې دوران کښې اودَ فرض مونځونو نه پس دَباران دَ پاره دعا کول.

③ دَ باران دَپاره باقاعده توګه باندې دَ استسقاء مونځ کول اودَې نه پس دعا کول.

**داستسقاء غوره صورت:**- بهرحال دَ استسقاء درې طريقې دې دَموقع اومحل په اعتبار سره چه کومه موجود شي په هغې باندې عمل کول جائز دې. البته بهتريه استسقاء کښې ښه صورت هم دغه دې چه ټول خلق کولاو ميدان ته راوځي دکافرانو او ذمي خلقو نه علاوه ټول مسلمانان ميدان ته راشي او په ډيرښکلي انداز او په عاجزئې سره مونځ اوکړي او ښه توبه او استغفار اوکړي اوبيا دَ باران دَپاره دعا اوغواړي اوصدقه اوخيرات اوکړي.

---

[١] ) اخرجه البخاري في كتاب الجمعة/باب الجهر بالقراءة في الاستسقاء (رقم-١٠٢٤) ومسلم كتاب صلاة الاستسقاء (رقم-١ - (٨٩٤) وابوداود كتاب الصلاة/باب في أي وقت يحول رداءه إذا استسقى (رقم-١١٦٦) والترمذي كتاب السفر/باب ما جاء في صلاة الاستسقاء (رقم-٥٥٦) والنسائي كتاب الاستسقاء/باب تحويل الإمام ظهره إلى الناس عند الدعاء في الاستسقاء (رقم-١٥٠٩)

**دَ مسنون استسقاء په صورت کښې مذهب:-**

دَ استسقاء دغه پورته ذکرشوې دریواړه صورتونه دَ ټولو په نیز ثابت هم دی او جائز هم. اختلاف په دې کښې دې چه اعلی درجه کومه یوه ده اوآیا دَ استسقاء سنت صرف مونځ سره مخصوص دې که نه، په دې کښې دَ فقهاؤ اختلاف دې.

① دَ جمهورو فقهاؤ او صاحبینو په نیز دَ استسقاء سنت پوره کېدل صرف په مونځ کښې داخل دی که چرې مونځ اونه شي نودَ استسقاء سنت پاتې شواودَ مونځ طریقه داده چه اول دې امام دوه رکعته مونځ ورکړی اوبیادې ښه په زارئی سره دعا اوغواړی او څادر دې اولټه واړوی.

② امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی چه استسقاء صرف په مانځه کښې منحصر نه ده. یعنی دَ استسقاء سنت کېدل په مانځه کښې بند نه دی بلکه دا سنت په دعاسره هم پوره کیږی او پوره ذکر شوو دریواړو طریقوسره هم دَاستسقاء عمل پوره کیږی.

**داول فریق دلائل:-**

① هغه ټول احادیث د دوی مستدلات دی په کومو کښې چه دَمانځه ذکردې لکه زیر بحث حدیث په دی. کښې دَ مونځ ذکرموجود دې.

② دې نه علاوه یوڅو احادیث داسې هم دی چه حضورپاك دَ استسقاء دَپاره عیدګاه ته تشریف اوړلې دې دَمونځ کولو ذکر خونشته دې لیکن دَعیدګاه تللو نه هم دا معلومیږی! چه هم مونځ ئی مقصود وو.

③ دغه شان دَ فصل الثالث حدیث نمبر۱۵۰۸ کښې "فصلی رکعتین" سره دَ مونځ ذکرکړې شوې دې.

**د دویم فریق دلائل:-**

①دَ قرآن کریم دا آیت دې: ﴿اسْتَغْفِرُوْا رَبَّكُمْ إِنَّهُ كَانَ غَفَّارًا ۝ يُرْسِلِ السَّمَاءَ عَلَيْكُمْ مِدْرَارًا ۝﴾ د دوی مستدل دې. په دې آیت کښې دَ باران غوښتو دَپاره صرف دَ استغفارذکر کړې شوې دې اوباران صرف استغفار سره معلق کړې شوې دې.

② دغه شان دَبخاری دَ اعرابی والاحدیث خومشهوردې چه هغه دَ اوچ کالئی شکایت اوکړو نوحضورپاك لاسونه مبارك اوچت کړل او په خطبه کښې دعااوفرمائیله په هغې کښې هم دَ مونځ ذکرنشته دې.

③ سعید بن منصور رحمه الله دَ امام شعبی رحمه الله نه نقل کوی چه: "اخرج عمر یستسقی فلم یزد علی الاستغفار فقالوا ما رئیناك استسقیت فقال لقد طلبت الله الغیث بمجادیح السماء الذي یتنزل به المطر ثم قرأ ﴿اسْتَغْفِرُوْا رَبَّكُمْ إِنَّهُ كَانَ غَفَّارًا ۝ يُرْسِلِ السَّمَاءَ عَلَيْكُمْ مِدْرَارًا ۝﴾" دَدې روایت نه هم معلومه شوه چه حضرت عمرفاروق رضی الله عنه دَ استسقاء دَپاره صرف استغفار کافی ګڼرلې وو مونځ ئی لازم نه وګڼرلې. داعمل دَ ټولو صحابه کرامو په مخکښې وو لکه چه په دې باندې دَ صحابه

کرامو اجماع اوشوه.

④ په دې باب کښې هم صاحب مشکوة دَ اکثرو احادیثو داسې نقل کړی دی په کوم کښې چه صرف دَ دعا ذکر دې اودَ مانځه هیڅ تذکره نشته دې. معلومه شوه چه دَ استسقاء دَپاره صرف مونځ متعین نه دې بلکه دې نه علاوه هم څه داسې طریقې دی په کوم سره چه دَ استسقاء سنت پوره کیږی. مصنف ابن ابی شیبه کښې یو روایت داسې دې: ((وعن عطاء بن ابی مروان الاسلمی عن ابیه قال خرجنا مع عمر بن الخطاب یستسقی فما زاد علی الاستغفار))(ابن ابی شیبه زجاجة المصابیح ج۱ص۴۲۲)

**مفتی به قول:** - امام ابوحنیفه رحمه الله دَ استسقاء هیڅ کله انکار نه کوی بلکه هغه په مونځ کښې دَ استسقاء داخلیدلو او بندیدلو قائل نه دې. دَدې نه باوجود دَ احنافو فتوىٰ دَ صاحبینو په مسلك باندې ده دَ امام صاحب رحمه الله په قول باندې نه ده ځکه چه په استسقاء کښې دَ رسول الله ﷺ نه مونځ ثابت دې. طریقه هم هغه ده په کومه کښې چه دَ مانځه په ضمن کښې استسقاء وی اوهم په دې باندې دَ احنافو فتوىٰ ده.

**قوله:** جَهَرَ فِيهِمَا بِالْقِرَاءَةِ:

**د استسقاء په مونځ کښې جهر بالقراءة:** - معلومه شوه چه دَ استسقاء په مونځ کښې قرأت په اوچت آواز سره دې.

**قوله:** وَرَفَعَ يَدَيْهِ:

**په دعا کښې د لاسونو پورته کولو ادب:** - دلته دَ دعادَپاره حضور پاك دَ حد نه زیات لاسونه مبارك اوچتولو سره دعا غوښتې ده. معلومه شوه چه لاسونه اوچتول دَ دعا دَ آدابو نه یو ادب دې. دَ غیرمقلدینو دَ لیونتوب دَ وجې نه په جزیرة العرب کښې په دعا کښې لاسونه اوچتول ختم کړې شوی دی نو دَهغوی دَ زړونو نه دَ ایمان خوړوالې هم تلې دې ځکه چه سلفیت هغوی خراب کړی دی. دَ استسقاء په مونځ کښې افضل دادی چه په اول رکعت کښې سورت ق یا سورت اعلیٰ نه یو سورت اووئیلې شی اوپه دویم رکعت کښې غاشیه اووئیلې شی.

**قوله:** وَحَوَّلَ رِدَاءَهُ:

**په صلاة الاستسقاء کښې د څادر اړول:** - څادر راښکل دَ استسقاء څه لازمی حصه نه ده. دَ احنافو په نیز څادر اولټه کول دَ مونځ په توګه نه دی بلکه دَ تفاول اوحالات بدلولو طرف ته اشاره ده. دَ څادر ګرځولو طریقه معروف ده مګر لږه شان مشکل ده..

[١٤٩٨]دَ استسقاء په دعاکښې لاسونه اوچتول

٣١٨-()[٢]١وَعَنْ أَنَسٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ:٢«كَانَ النَّبِيُّ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-لَا يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي شَيْءٍ مِنْ دُعَائِهِ إِلَّا فِي الإِسْتِسْقَاءِ٣فَإِنَّهُ يَرْفَعُ حَتَّى يُرَى بَيَاضُ إِبِطَيْهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**١ حضرت انس ﷺ فرمايي٢ چې نبي کريم ﷺ به د استسقاء څخه علاوه په بله موقع باندې د دعا د پاره لاسونه دومره زيات نه پورته کول٣ او د استسقاء د پاره د دعا په وخت لاسونه مبارك به يې دومره زيات پورته کول چې د حضور ﷺ د بغلونو [ترخونو] سپين والي به په نظر راتلو. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:**- ①الإِسْتِسْقَاءُ: باران غوښتل، ②إِبِطٌ: ترخ.

**تسهيلات: قوله : لَا يَرْفَعُ يَدَيْهِ:**

**اشکال:**- سوال دادې چه رسول الله ﷺ دَ استسقاء نه علاوه په ډيرو موقعو کښې لاسونه اوچت کړي دی دلته دَنفی څه مطلب دې؟

**جواب:**- دَدې جواب علماؤ دا ورکړې دې چه دلته په دې حديث کښې دَصرف لاس اوچتولو نفی مراد نه ده بلکه چه په استسقاء کښې به ئې څومره لاسونه اوچتول هغه شان به ئې په نورو موقعوکښې نه اوچتول.

**قوله : حَتَّى يُرَى بَيَاضُ إِبِطَيْهِ:**

**دترخونو د سپين والی مطلب:**- هم دغه وجه ده چه په دې روايت کښې د ترخونو په نظر راتلو ذکر راغلې دې. راوی دا بيانول غواړی چه حضورپاك په استسقاء کښې لاسونه دومره اوچت کړل چه دَ رسول الله ﷺ دَ ترخونو مبارکو سپينوالي ښکاره شو. دادَ ډير زيات ښائست دَ وجې نه يو چمك وو حالانکه دَ خلقو ترخونه سپين نه وی. دَدې نه دَ رسول الله ﷺ ډير زيات ښائست ثابتول هم مقصود دی اودَ استسقاء په دعاکښې دَ غيرمعمولی لاسونو اوچتولو بيان هم مقصود دې.

[١٤٩٩]دَدعا په وخت دَلاسونوکيفيت اوحالت

٣١٩-()[٣]١وَعَنْهُ: أَنَّ النَّبِيَّ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-اسْتَسْقَى٢فَأَشَارَ بِظَهْرِ كَفَّيْهِ إِلَى السَّمَاءِ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:**١ حضرت انس ﷺ فرمايي چې نبي کريم ﷺ د باران د پاره دعا وغوښتله ٢ نو د خپلو دواړو لاسونو شا يي د آسمان طرف ته کړه. (مسلم)

**حل اللغات:**- ①اِسْتَسْقَى: باران ئې اوغوښتلو.

---

[1] ) اخرجه البخاری فی کتاب الجمعة /باب رفع الإمام يده فی الاستسقاء (رقم-١٠٣١)ومسلم صلاة الاستسقاء /باب رفع اليدين بالدعاء فی الاستسقاء (رقم-(٨٩٥) وابوداود کتاب الصلاة،باب رفع اليدين فی الاستسقاء (رقم-١١٧٠) والنسائی کتاب الاستسقاء /باب کيف يرفع (رقم-١٥١٣) والدارمی-کتاب الصلاة /باب رفع الأيدی فی الاستسقاء

[2] ) اخرجه مسلم فی کتاب صلاة الاستسقاء /باب رفع اليدين بالدعاء فی الاستسقاء (رقم)٧ - (٨٩٥)

**تسهیلات: قوله : بِظَهْرِ كَفَّيْهِ:**

**د استسقاء په دعا کښې د لاسونو اتله کولو حکمت:-** په استسقاء کښې دَ لاسونوشا دَ آسمان طرف ته کول هم یوتفاول دې چه دې طرف ته اشاره ده چه څنګه لاسونه اولټه شوی دی اوتلی دَ زمکې طرف ته شوی دی. دغه شان دَاوریځو حالت بدلولوسره باران اووره وه.

**[١٥٠٠]دَباران په وخت دَحضورپاک یوه دعا**

١٥٠٠-( )[٣] ① وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهَا- قَالَتْ: ② إِنَّ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- «كَانَ إِذَا رَأَى الْمَطَرَ قَالَ: ③ اللَّهُمَّ صَيِّبًا نَافِعًا». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① بې بې عائشه صدیقه رضي الله عنها فرمايي ② چې رسول الله ﷺ چې به باران وليدلو نو دا دعا به يې کوله: ③ اللَّهُمَّ صَيِّبًا نَافِعًا (يعنې اې الله نفع رسونکې باران وورَوي) (بخاري)

**حل اللغات:-** ① صَيِّبًا: راؤ رسوې مونږ ته (باران).

**تسهیلات: قوله : قَالَ: اللَّهُمَّ صَيِّبًا نَافِعًا:**

**د باران د نافعیت دعا:-** یعنې د باران په وخت کښې دالله ﷻ رحمت راوریږي. په دې وجه په دې وخت کښې دباران نه د نفع حاصلیدو دپاره دعا اوکړئ.

**[١٥٠١]دَباران په وخت کښې دَحضورپاک یو عمل**

١٥٠١-( )[٥] ① وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: ② «أَصَابَنَا وَنَحْنُ مَعَ رَسُولِ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- مَطَرٌ ③ قَالَ: فَحَسَرَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ثَوْبَهُ ④ حَتَّى أَصَابَهُ مِنَ الْمَطَرِ. ⑤ فَقُلْنَا: يَا رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- لِمَ صَنَعْتَ هَذَا؟! ⑥ قَالَ: لِأَنَّهُ حَدِيثُ عَهْدٍ بِرَبِّهِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① حضرت انس رضي الله عنه فرمايي ② چې [يو ځل] مونږ د رسول الله ﷺ سره وو چې باران شروع شو ③ حضرت انس رضي الله عنه فرمايي چې حضور ﷺ (د خپل سر يا د شا څخه) کپړه لرې کړه ④ تر دې چې د حضور ﷺ (په سر مبارك يا په شا مبارکې) د پاسه د باران اوبه غورځيدې ⑤ دې ليدو سره مونږ عرض وکړو چې يا رسول الله ﷺ تاسې داسې ولې وکړل؟ ⑥ حضور ﷺ وفرمايل څکه چې دا اوبه د خپل پروردګار څخه اوس اوس راغلې دي. (مسلم)

**حل اللغات:-** ① حَسَرَ: لرې ئې کړه (کپړه) يعنې د بدن څه حصه ئې رابښکاره کړه. ② حَدِيثُ عَهْدٍ بِرَبِّهِ: اوس اوس (دَېره نه) دَالله تعالى دَ خوانه راغلې دي.

---

[1] اخرجه البخاری فی کتاب الجمعة/باب ما یقال إذا مطرت (رقم-١٠٣٢) والنسائی کتاب الاستسقاء/باب القول عند المطر (رقم-١٥٢٣) وابن ماجة کتاب الدعاء/باب ما يدعو به الرجل إذا رأى السحاب والمطر (رقم-٣٨٩٠)

[2] اخرجه مسلم فی کتاب صلاة الاستسقاء /باب الدعاء فی الاستسقاء (رقم-١٣ - (٨٩٨) وابوداود کتاب الأدب/باب ما جاء فی المطر (رقم-٥١٠٠)

**تسهيلات:**

**قوله: لِأَنَّهُ حَدِيثُ عَهْدٍ بِرَبِّهِ:**

**په ميدان جهاد او باران کښې د دعا قبليدل:** -باران کښې حضورپاك اودريدو اوزياتي کپړې ني اخواکړې مثلاً په سرمبارك ني توپئي پاتې نه شوه اودَمتيونه ني کپړه اخواکړه اوباران دَ حضورپاك په بدن مبارك باندې نيغ په نيغه وريدلو. صحابه کرامو دَ دې عمل دَ وجې معلومول اوغوښتل نو حضورپاك په جواب کښې اوفرمائيل چه دا باران اوس اوس دَبره نه دَالله تعالى دَ ذات دَخوانه راغلې دې دَدې اوبه مبارکې دى په دې وجه داحضورپاك په خپل بدن باندې اومړلې بل دَدې اوبوسره تراوسه پورې دَ يوګناهګار لاس نه دې لګيدلې. يوحديث کښې دى چه دَ جهادپه ميدان کښې په جنګ کښې يادَ باران لاندې دعاقبليږى.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[١٥٠٢]په استسقاء کښې د څادراړولو طريقه**

١٥٠٢-(١)[٦] [١] عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ زَيْدٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا-قَالَ: [٢] «خَرَجَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- إِلَى الْمُصَلَّى فَاسْتَسْقَى، [٣] وَحَوَّلَ رِدَاءَهُ حِينَ اسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ، [٤] فَجَعَلَ عِطَافَهُ الْأَيْمَنَ عَلَى عَاتِقِهِ الْأَيْسَرِ، [٥] وَجَعَلَ عِطَافَهُ الْأَيْسَرَ عَلَى عَاتِقِهِ الْأَيْمَنِ، [٦] ثُمَّ دَعَا اللّٰهَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] عبدالله ابن زيد ﷺ فرمايي [٢] چې رسول الله ﷺ عيدګاه ته تشريف يوړلو او هلته يي باران وغوښتو [٣] کوم وخت چې حضور ﷺ قبله رخ (مخ په قبله) شو نو خپل څادر يي راتاؤ کړو [٤] نود خپل څادر ښي طرف ګرخولو سره يې په خپلي ګسه اوږې باندې راوستو [٥] او د څادر ګس طرف ګرځولو سره يې په خپلې ښي اوږې باندې راوستو [٦] بيا الله تعالى ﷻ څخه يي (د باران د پاره) دعا وغوښتله. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① عِطَافَهُ: دڅادر يو اړخ ته عطاف وائي.

**[١٥٠٣]په صلاة استسقاء کښې د څادراړولو طريقه**

١٥٠٣-(٢)[٧] [١] وَعَنْهُ أَنَّهُ قَالَ: [٢] «اسْتَسْقَى رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [٣] وَعَلَيْهِ خَمِيصَةٌ لَهُ سَوْدَاءُ، [٤] فَأَرَادَ أَنْ يَأْخُذَ أَسْفَلَهَا فَيَجْعَلَهُ أَعْلَاهَا، [٥] فَلَمَّا ثَقُلَتْ قَلَبَهَا عَلَى عَاتِقِهِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] حضرت عبدالله ﷺ فرمايي [٢] چې (يو ځل) رسول الله ﷺ د باران طلب کولو د پاره دعا وکړه [٣] نو هغه وخت د حضور ﷺ په بدن مبارك د تور رنګ څادر وو [٤] حضور ﷺ دا اراده وکړه چې د څادر د لاندي پلسکي (څاک) ګرځولو سره هغه پورته طرف

[١] اخرجه ابوداود كتاب الصلاة/جماع أبواب صلاة الاستسقاء وتفريعها (رقم-١١٦٣)

[٢] اخرجه ابوداود كتاب الصلاة/جماع أبواب صلاة الاستسقاء وتفريعها (رقم-١١٦٤) والنسائى كتاب الاستسقاء/باب الحال التي يستحب للإمام ان يكون عليها إذا خرج (رقم-١٥٠٧)

ته راولي (څنګه چې د څادر ګرځولو طريقه ده) [٥] خو په دې کې چې کله حضور ﷺ ته تکليف محسوس شو نو حضور ﷺ په خپلې اوږې باندې څادر وګرځوو. (احمد ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① خَمِيصَةٌ: څادر، ② ثَقُلَتْ: دروند شو، په تکليف شو. ③ قَلَبَهَا: واړې رولو.

**تسهيلات:**

① فَأَرَادَ أَنْ يَأْخُذَ أَسْفَلَهَا فَيَجْعَلَهُ أَعْلَاهَا:

**د څادر اړته کول:** دې ته د فقهاء په اصطلاح کښې تحويل الرداء وائي.

څادر اړته کول دَ استسقاء څه لازمي حصه نه ده. دَ احنافو په نيز څادر اولټه کول دَ مونځ په توګه نه دی بلکه دَ تفاول اوحالات بدلولو طرف ته اشاره ده. دَ څادر ګرځولو طريقه معروف ده مګر لږه شان مشکل ده.

**دحديث دبعضي جملو وضاحت:** -

② وَعَلَيْهِ خَمِيصَةٌ، دَ يمن ښانسته نقش دار څادر ته خميصه وئيلی شي په مقامات حريری نومی کتاب کښې خميصه ذکر راغلي دي.

③ فَلَمَّا ثَقُلَتْ چونکه دَ څادر اولټه کيدو عمل مشکل شو نو حضورپاك څادر په اوګو باندې په آسانه طريقه سره واچول او معامله ختمه شوه.

**[١٥٠٤] په صلاة استسقاء کښې د لاسونو داوچتولو مقدار**

١٥٠٣ – ( ) [٨] [١] وَعَنْ عُمَيْرٍ مَوْلَى آبِي اللَّحْمِ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ -: [٢] أَنَّهُ «رَأَى النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَسْتَسْقِي عِنْدَ أَحْجَارِ الزَّيْتِ، [٣] قَرِيبًا مِنَ الزَّوْرَاءِ، [٤] قَائِمًا يَدْعُو يَسْتَسْقِي، [٥] رَافِعًا يَدَيْهِ قِبَلَ وَجْهِهِ لَا يُجَاوِزُ بِهِمَا رَأْسَهُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَرَوَى التِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ نَحْوَهُ.

**ترجمه:** [١] حضرت عمير ؓ چې د آبي اللحم آزاد کړي غلام وو روايت کوي [٢] چې هغه نبي کريم ﷺ داحجار الزيت سره د باران په غوښتلو باندې وليدلو [٣] چې د زوراء سره نژدې دي [٤] حضور ﷺ ولاړ وو د باران د پاره يې دعا غوښتله [٥] او خپل دواړه لاسونه مبارك يې خپل د مخ طرف ته اوچت کړي وه چه د سر څخه اوچت نه وه. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① أَحْجَارُ الزَّيْتِ: کانړيزې زمکه، په مدينه کښې د يو ځاې نوم وو. ② الزَّوْرَاءُ: په مدينه کښې د يو ځاې نوم دي.

**تسهيلات:**

**قوله:** لَا يُجَاوِزُ بِهِمَا رَأْسَهُ: يعنی دواړه لاسونه ئی دومره نه وو اوچت کړی چه دَ سرنه ئی لاسونه اړولوسره بره لاړشی.

[١] ) اخرجه ابوداود کتاب الصلاة،باب رفع اليدين فی الاستسقاء (رقم-١١٦٨) والترمذی کتاب السفر/باب ما جاء فی صلاة الاستسقاء (رقم-٥٥٧) والنسائی کتاب الاستسقاء/باب کيف يرفع (رقم-١٥١٤)

**اشکال:** - حديث نمبر۳۹۸کښې دَ حضرت انس رضي الله عنه دَ روايت نه معلوميږي چه رسول الله ﷺ به په استسقاء کښې ډير زيات لاسونه اوچتول اودلته په دې روايت کښې لاسونه دومره نه اوچتول بلکه دَ سرنه به ئې ښکته وو په دې دواړو روايتونوکښې تضاد او تعارض دې. بل په دې روايت کښې دا دی چه دَ حضورپاك لاسونه به دَمخ طرف ته وو خودَ حضرت انس رضي الله عنه په حديث نمبر۳۹۹کښې دی چه لاسونه به ئې دَ زمکې طرف ته او شاګانې به ئې پورته دَ آسمان طرف ته وې؟

**د اشکال جواب:** - په استسقاء کښې چه کومې طريقې حضورپاك اختيارکړی دی ټولې جائز دی. کله ئې يوه طريقه اختيارکړې ده اوکله بله. په دې کښې دَ تضاد څه خبره نشته دې بلکه دَ وسعت او رحمت خبره ده.

**[١٥٠٥]دَاستسقاء په وخت دَرسول الله ﷺ عاجزی**

١٥٠٥-()[٩] [١] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - قَالَ: [٢] «خَرَجَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَعْنِي فِي الِاسْتِسْقَاءِ - [٣] مُتَبَذِّلًا، مُتَوَاضِعًا، [٤] مُتَخَشِّعًا، مُتَضَرِّعًا»، رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُودَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [١] حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمايي [٢] چې رسول الله ﷺ د استسقاء د پاره بهر ووتلو [٣] او هغه وخت د حضور ﷺ کيفيت دا وو چې [په ظاهر کې يې] زينت ترک کړي وو او متواضع وو [٤] (په باطن کې) عاجزي او بيچارګي او (په ذکر الله کې د ژبې د مشغوليت سره) تضرع يې اختيار کړي وه. (ترمذي، ابوداؤد، نسايي، ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① - مُتَبَذِّلًا: زړې کپړې، ② مُتَوَاضِعًا: په ظاهری اندامونوسره عاجزی کولوته تواضع وائی. ③ مُتَخَشِّعًا: په باطنی اندامونوسره هم ئې مکمل عاجزی اختيارکړې وه. ④ مُتَضَرِّعًا: عاجزی کونکې.

**تسهيلات:**

**قوله:** مُتَبَذِّلًا: يعنی زړې کپړې اچولې وې دَ شان اوشوکت والالباس نه وو بلکه چه دَ محنت په وخت کوم لباس وی هغه ئې اغوستې وو.

**قوله:** مُتَخَشِّعًا: يعنی دَ باران دَدعادَپاره چه به کله حضورپاك بهر وتلو نودَ حضورپاك ظاهر اوباطن اودَ ژبې او زړه لکه چه پوره وجود مبارك دَ سادګئی او عاجزئی نمونه جوړيدلو دې دَپاره چه الله تعالی ئې دعا قبوله کړی.

**د عاجزئ انتهاء:** - رسول الله ﷺ چه يو طرف ته دَ شان اوشوکت ترك کولوسره دَ سر نه ترخپو پورې دَ عاجزئی يوه نمونه جوړشوې وو نو بل طرف ته په باطنی توګه باندې هم دَ

---

[١]) اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة/جماع أبواب صلاة الاستسقاء وتفريعها (رقم-١١٦٥) والترمذی کتاب السفر/باب ما جاء فی صلاة الاستسقاء (رقم-٥٥٨) والنسائی کتاب الاستسقاء/باب جلوس الإمام علی المنبر للاستسقاء (رقم-١٥٠٨) وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب ما جاء فی صلاة الاستسقاء (رقم-١٢٦٦)

حضورپاك زړه مبارك دَ الله تعالى دَ ويرې نه ړچيدلو او ژبه مبارکه ئې په تضرع عاجزئې او زارئې کښې مشغوله وه.

**[١٥٠٦] دَباران غوښتلو دپاره دعا**

١٥٠٦ – ()[١٠] ١ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ قَالَ: ٢ «كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا اسْتَسْقَى قَالَ: ٣ اللَّهُمَّ اسْقِ عِبَادَكَ، وَبَهِيمَتَكَ، ٤ وَانْشُرْ رَحْمَتَكَ، ٥ وَأَحْيِ بَلَدَكَ الْمَيِّتَ». رَوَاهُ مَالِكٌ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ١ عمرو ابن شعيب د خپل پلار څخه او هغه د خپل نيکه (يعني حضرت عبدالله صحابي ﷺ) څخه روايت کوي ٢ چې نبي کريم ﷺ به چه کله باران غوښتلو نو دا دعا به يې کوله: ٣ اللَّهُمَّ اسْقِ عِبَادَكَ وَبَهِيمَتَكَ وَانْشُرْ رَحْمَتَكَ وَأَحْيِ بَلَدَكَ الْمَيِّتَ (يعني اي الله! خپل بندګان او خپل حيوانات په اوبو سره اوبه کړې ٤ خپل رحمت وغوړوي ٥ او خپلو مړو (وچو) زمکو ته ژوند (يعني ښانسته والي او سرسبزي) راکړې. (مالك ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① اسْقِ: اوبه کړې، خړوب کړې، ② بَهِيمَة: حيوانات، ③ انْشُرْ: خور کړې، ④ الْمَيِّتَ: مړ، (دلته اوچه زمکه مراد ده).

**تسهيلات:** **قوله:** اللَّهُمَّ اسْقِ عِبَادَكَ، وَبَهِيمَتَكَ:

**اشکال:** - په دې حديث پاك کښې د څناور ذکر دې ، څناورو په بندګانو کښې څنګه داخل دی ، دا خود مقام عبديت خلاف دی. بيا په انسان او څناور کښې څه فرق دې؟

**داشکال جواب:** - څناورئې د بندګانو په دعا کښې ځکه شامل کړو چې څناور بې ګناه دی، مونږ ګناه ګار يو ،د هغوئ د بې ګناهۍ په وجه مونږ باندې رحمتونه راوريږی او زمونږ د ګناهونو په وجه هغوئ ته تکليف رسی . په دې وجه ئې د څناورو ذکر اوکړو.

**[١٥٠٧] دَباران غوښتلو دپاره يوه بله عجيبه دعا**

١٥٠٧ – ()[١١] ١ وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: ٢ «رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يُوَاكِئُ فَقَالَ: ٣ اللَّهُمَّ اسْقِنَا غَيْثًا مُغِيثًا، ٤ مَرِيئًا مُرِيعًا، ٥ نَافِعًا، غَيْرَ ضَارٍّ، ٦ عَاجِلًا غَيْرَ آجِلٍ ٧ قَالَ: فَأَطْبَقَتْ عَلَيْهِمُ السَّمَاءُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ١ حضرت جابر ﷺ فرمايي ٢ چې ما وليدل چې نبي کريم ﷺ د استسقاء د پاره لاس مبارك اوچت کړي وو او دا دعا يې کوله: ٣ اللَّهُمَّ اسْقِنَا غَيْثًا مُغِيثًا مَرِيئًا مُرِيعًا نَافِعًا غَيْرَ ضَارٍّ

[1]) اخرجه ابوداود فى كتاب الصلاة،باب رفع اليدين فى الاستسقاء (رقم-١١٧٦) ومالک فى الموطا كتاب الاستسقاء/باب ما جاء فى الاستسقاء(رقم-٢)

[2]) اخرجه ابوداود فى كتاب الصلاة،باب رفع اليدين فى الاستسقاء (رقم-١١٦٩) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة، والسنة فيها/باب ما جاء فى الدعاء فى الاستسقاء (رقم-١٢٧٠)

عَاجِلًا غَيْرَ آجِلٍ (يعني اي الله ته مونږ په باران سره سيراب کړي چې فرياد رسي وکړي [٤] او د هغې انجام بهتر وي او ارزاني کونکي وي [٥] او نفع رسونکي وي ضرر رسونکي نه وي [٦] او زر راتلونکي وي په تاخير سره راتلونکي نه وي [٧] حضرت جابر رضي الله عنه وايي چې د دې دعا څخه وروسته په آسمان باندې وريځ خوره شوه. (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ① بَوَاكِيْ: واکی بواکی مواکاة د باب مفاعله نه دې د دعا د پاره دواړه لاسونه داسې اوچتول لکه چه په دې باندې تکيه لګولې شي. ② غَيْثًا: اى مطرًا: باران، غيث هغه باران ته وائى چه د سختې ګرمئ او اوچ کالئ نه پس ډير فريادونه او دعاګانو په نتيجه کښې راغلې وي. ③ مُغِيْثًا: اى مشبعا منقذا من الشدة: چه د ډيروالى په وجه خړوبونکې، اوچ کالى لرې کونکې وي. ④ مَرِيْئًا: داسې باران وي د کوم انجام چه ښه وي. ⑤ مُرِيْعًا: اى آتيا بالريع والخصب) داسې باران چه ارزانى اوښه شينوالې راوړونکې وي. ⑥ عَاجِلًا: زر راتلونکې، ⑦ آجِلٍ: تاخير سره راتلونکې، ⑧ فَأَطْبَقَتْ: څلورو واړو طرفونو ته اوريځو په خپله ګيره کښې واخستلو. مراد ترې نه ګنړې اوريځې راتلل او باران کيدل دي.

**تسهيلات:**

**قوله: اللّٰهُمَّ اسْقِنَا غَيْثًا مُغِيثًا:**

**په باران باندې مجازاً د مغيث اطلاق:-** اصل فرياد رس الله تعالى دې باران ته مجازاً مغيث فرمائيلې شوې دې.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [١٥٠٨] د استسقاء د دعا تفصيل

١٥٠٨-()[١٢] [١] عَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا- قَالَتْ: [٢] «شَكَا النَّاسُ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قُحُوطَ الْمَطَرِ [٣] فَأَمَرَ بِمِنْبَرٍ فَوُضِعَ لَهُ فِي الْمُصَلَّى، [٤] وَوَعَدَ النَّاسَ يَوْمًا يَخْرُجُونَ فِيهِ، [٥] قَالَتْ عَائِشَةُ: فَخَرَجَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- حِينَ بَدَا حَاجِبُ الشَّمْسِ، [٦] فَقَعَدَ عَلَى الْمِنْبَرِ، فَكَبَّرَ وَحَمِدَ اللّٰهَ، [٧] ثُمَّ قَالَ إِنَّكُمْ شَكَوْتُمْ جَدْبَ دِيَارِكُمْ، [٨] وَاسْتِئْخَارَ الْمَطَرِ عَنْ إِبَّانِ زَمَانِهِ عَنْكُمْ، [٩] وَقَدْ أَمَرَكُمُ اللّٰهُ أَنْ تَدْعُوهُ، [١٠] وَوَعَدَكُمْ أَنْ يَسْتَجِيبَ لَكُمْ

**ترجمه:** [١] بي بي عائشه صديقه رضي الله عنها فرمايي [٢] چې خلقو رسول الله ﷺ ته د باران نه کيدو شکايت وکړو [٣] نو حضور ﷺ حکم وکړو چې په عيدګاه کې دې منبر کيښودل شي کله چې په عيدګاه کښې منبر کيښودل شو [٤] نو حضور ﷺ خلقو ته د يوې ورځې په باره کې وفرمايل چې ټول عيدګاه ته لاړ شي [٥] بي بي عائشه رضي الله عنها فرمايي چې (په مقرره ورځ) حضور ﷺ د نمر څنډه ظاهريدو سره عيدګاه ته تشريف يوړلو [٦] او په منبر باندې کيناستل تکبير يې وويلو او د الله تعالى جل جلاله حمد وثناء يې بيان کړه [٧] او وې فرمايل چې

[١] اخرجه ابوداود فى كتاب الصلاة، باب رفع اليدين فى الاستسقاء (رقم-١١٧٣)

تاسو (د الله او د هغه د رسول څخه) د خپلو ښارونو د قحط سالي شكايت كړې وو ٨ او تاسو په وخت د باران نه كيدو شكايت كړي وو ٩ اوس الله تعالى ﷻ تاسو ته دا حكم دركوي چې تاسو د هغه څخه (د باران د پاره) دعا وغواړئ ١٠ او هغه وعده كړې ده چې ستاسو دعا به قبوله كړي.

**حل اللغات:-** ① قُحُوطَ الْمَطَرِ: اوچ كالى، باران نه كيدل، ② بَدَا: ښكاره شوه، ③ حَاجِبُ: طرف، ④ جَدْبَ: ⑤ وَاسْتِئْخَارَ: اى تأخير المطر تاخيرا بعيدا: يعنى ډيرې مودې پورې باران اونه شو. ⑥ إِبَّانِ: ابان الشئ حينه" يعنى ابان حين او وخت په معنى كښې دې.

١ ثُمَّ قَالَ: الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ، ٢ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيمِ، ٣ مَالِكِ يَوْمِ الدِّينِ، ٤ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ يَفْعَلُ مَا يُرِيدُ، ٥ اللّٰهُمَّ أَنْتَ اللّٰهُ، ٦ لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ الْغَنِيُّ، وَنَحْنُ الْفُقَرَاءُ، ٧ أَنْزِلْ عَلَيْنَا الْغَيْثَ، ٨ وَاجْعَلْ مَا أَنْزَلْتَ لَنَا قُوَّةً وَبَلَاغًا إِلَى حِينٍ، ٩ ثُمَّ رَفَعَ يَدَيْهِ، فَلَمْ يَتْرُكِ الرَّفْعَ حَتَّى بَدَا بَيَاضُ إِبِطَيْهِ، ١٠ ثُمَّ حَوَّلَ إِلَى النَّاسِ ظَهْرَهُ، وَقَلَبَ أَوْحَوَّلَ رِدَاءَهُ، ١١ وَهُوَ رَافِعٌ يَدَيْهِ،

**ترجمه:** ١ بيا حضور ﷺ وفرمايل چې ټول تعريفونه د الله تعالى ﷻ د پاره دي چې د ټول جهانونو پروردګار دي ٢ مهربان او بخشش كونكي دي ٣ او د جزاء د ورځې مالك دي ٤ د الله ﷻ څخه سوا بل معبود نشته هغه چې څه غواړي هغه كوي ٥ اي الله ﷻ ته معبود يي ٦ ستا څخه سوا بل معبود نشته ته غني (بي پروا) يي او مونږ فقيران او محتاج يو ٧ په مونږ باران ووروي ٨ او كوم شي چې ته نازل كړي (يعني باران) هغه د يوي اوږدې مودي د پاره زمونږ قوت (دخوراك ذريعه) او (د هغې په ذريعه خپلو مقاصد او منافع ته) د رسيدو سبب جوړ كړي ٩ د دې څخه وروسته حضور ﷺ خپل دواړه لاسونه مبارك اوچت كړل او دومره يي اوچت كړل چې د بغلونو [ترخونو] سفيدي يي په نظر راغله ١٠ بيا خپله شا مباركه يي خلقو ته ګرځولو سره خپل څادر يي واړولو يا دا چې وي ګرځولو ١١ او خپل لاس يي دغسې اوچت كړي وو

**حل اللغات:-** ⑦ بَلَاغًا: رسونكې، سبب، ⑧ حِينٍ: زمانه، اوږده موده، ⑨ الرَّفْعَ: اوچتول، ⑩ قَلَبَ أَوْ حَوَّلَ: الفاظ بدل دى خو معنى ئې يوشان ده، اړول،

١ ثُمَّ أَقْبَلَ عَلَى النَّاسِ وَنَزَلَ، فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ، ٢ فَأَنْشَأَ اللّٰهُ سَحَابَةً، ٣ فَرَعَدَتْ وَبَرَقَتْ، ٤ ثُمَّ أَمْطَرَتْ بِإِذْنِ اللّٰهِ، ٥ فَلَمْ يَأْتِ مَسْجِدَهُ حَتَّى سَالَتِ السُّيُولُ، ٦ فَلَمَّا رَأَى سُرْعَتَهُمْ إِلَى الْكِنِّ ضَحِكَ حَتَّى بَدَتْ نَوَاجِذُهُ، ٧ وَقَالَ: أَشْهَدُ أَنَّ اللّٰهَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ، ٨ وَأَنِّي عَبْدُ اللّٰهِ وَرَسُولُهُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ١ بيا د خلقو طرف ته مخ كولو سره (د منبر څخه) ښكته يي تشريف راوړو او دوه ركعاته مونځ يي وكړو ٢ نو الله تعالى ﷻ وريځ راوستله ٣ چې ګړځيدله او بريښنا پكې ځليدله ٤ د الله تعالى ﷻ په حكم سره باران شروع شو ٥ تر دې چې حضور ﷺ خپل مسجد ته لا راغلي نه وو چې نالي وبهيدلي ٦ هر كله چې حضور ﷺ خلق د پناه ځاي

(یعني د باران څخه د بچ کیدو د پاره د محفوظ مقام) په تلاش کولو کې تلواري کونکي ولیدل نو په خندا شو (یعني په مُسکا شو) تر دي چې د حضور ﷺ مخکني غاښونه مبارك ښکاره شول ⑦ بیا یي وفرمایل چې زه ګواهي ورکوم چې الله تعالیٰ ﷻ په هر شي باندې قادر دي ⑧ او دا چې زه د الله تعالیٰ ﷻ بنده او د هغه رسول یم. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** -⑪ رَعَدَتْ: ګرځیدله، ⑫ بَرَقَتْ: بریښنا ني کوله، ⑬ السُّیُولُ: نالئ، لختئ، ⑭ الکِنِّ: دَدې جمع اکتان دې، پناه ګاه، ⑮ نَوَاجِذُهٗ: هغه غاښونه چه په وخت دخندا کښې ښکاري.

**تسهیلات:**

**قوله:** "عَنْ إِبَّانٍ" په همزه باندې زیردې او باء باندې شد دې نون دَ اصلي کلمې حصه ده دَ ابان اضافت دَ زماني طرف ته اضافت خاص الی العام دې یعني یو مودې نه دَباران په خپل وخت نه وریدلو تاسو شکایت اوکړو. په یوبل حدیث کښې دَ ابان لفظ دَ وخت دَپاره داسې استعمال کړې شوې دې. "هذاإبان نجومه ای وقت ظهوره" یعنی دا وخت دَ محمد عربی ﷺ دَ ظهور اوبعثت وخت دې.

**قوله:** إِلَى الْكِنِّ: په کاف زیردې او په نون شد دې دَدې جمع اکتان دې. په قرآن کریم کښې دَ اکتان لفظ راغلې دې. په غرونوکښې چه کوم قدرتی غار جوړشوې وی په اصل کښې دَ کن اطلاق هم په دې اداکیږی بیادا دَهرهغه څیزدَپاره اووئیلې شو دَ کوم په وجه چه انسان خپل خان ګرمئی اویخنئی او دَ واورې او باران نه بچ کوی که هغه قدرتی پناه ګاه وی یا دَ انسان تعمیرکړې شوې مقامات اومکانات وی.

**د استسقاء څخه روسته د خطبو لوستلو حکم:-**

① حضرت امام مالك رحمه الله امام شافعی رحمه الله او امام احمد رحمه الله یوروایت فرمائی چه دَ استسقاء دَ مونځ نه پس دوه خطبې لوستل سنت دی البته دَ استسقاء دَ خطبو په شروع کښې استغفار لوستل پکاردی. لکه څنګه چه دَ اخترونوکښې دَ خطبو په شروع کښې تکبیرات عیدین لوستل مناسب دی یعنې دَ خطبې شروع هم دَ دغه مناسب څیزونوسره کول پکاردی.

② دَ ائمه احناف په نیزاستسقاء کښې خطبه نه وه صرف په دعااو استغفارباندې اکتفاکول پکاردی.

**قوله:** ضَحِكَ:

**د نبی کریم ﷺ د خندا وجه:** -حضورپاك دَدې دَپاره مسکې شوچه انسان څومره کمزورې دې. اوس خوتا فریادکولوچه باران نشته او اوس چه باران اوشو نوچه کوم څیزپه ډیرو سفارشونو غوښتې وو هم دَ هغې نه تختی.

په يوروايت کښې دی چه کله ښه باران شروع شونوحضورپاك اوفرمائيل که ابوطالب ژوندې وې نود باران دې نظارې کتلوسره د خوشحاليدو وجه داده چه ابوطالب د حضورپاك په شان کښې يوه ښکلې قصيده وئيلې ده.

وابيض يُستقى الغمام بوجهه     ثمال اليتامى عصمة للارامل

**ترجمه**: [١] هغه داسې ښائسته دې چه د هغه د ښکلی مخ د خاطره د اوريځونه اوبه غوښتلې شی هغه د يتيمانو غمخوار او د کونډو محافظ دې.

**[١٥٠٩] په وسيله سره د باران د پاره دعا**

١٥٠٩–(١)[١٣] [١] وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ -: [٢] أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - كَانَ إِذَا قُحِطُوا اسْتَسْقَى بِالْعَبَّاسِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ فَقَالَ: [٣] اللّٰهُمَّ إِنَّا كُنَّا نَتَوَسَّلُ إِلَيْكَ بِنَبِيِّنَا فَتَسْقِيْنَا، [٤] وَإِنَّا نَتَوَسَّلُ إِلَيْكَ بِعَمِّ نَبِيِّنَا فَاسْقِنَا. [٥] قَالَ: فَيُسْقَوْنَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه**: [١] حضرت انس رضي الله عنه راوي دي [٢] چې کله به د باران نه کيدو په وجه قحط سالي وه نو امير المؤمنين حضرت عمر ابن خطاب رضي الله عنه به د حضرت عباس رضي الله عنه ابن عبد المطلب په وسيله د باران د پاره دعا کوله هغه به فرمايل [٣] چې اي الله مونږ به ستا د نبي په وسيله ستا څخه دعا غوښتله نو تا به مونږ سيراب کولو [٤] اوس مونږ ستا د نبي د تره (اکا) په وسيله دعا کوو نو ته مونږ سيراب کړي (په اوبو مو اوبه کړي) [٥] حضرت انس رضي الله عنه فرمائی چه [دي دعا سره به] باران کيدلو. (بخاري)

**حل اللغات**: - ① نَتَوَسَّلُ: مونږ وسيله نيسو.

**تسهيلات: قوله**: نَتَوَسَّلُ إِلَيْكَ:

**په نيکو اعمالو سره د وسيلې نيولو جواز**: - د نيکواعمالو په وسيله کولو کښې د چا اختلاف نشته دې اود حديث الغار واقعه په دې باندې واضح دليل دې. په دريوکسانو کښې هريو د خپل نيك عمل په وسيله سره د الله تعالى نه دعا اوغوښتله چه دا ناګهانی آفت لرې شی نوهغه آفت لرې شو. نود نيکو اعمالو وسيله جوړولو کښې د هيچا اختلاف نشته دې. او ذوات فاضله وسيله جوړول څنګه دی په دې کښې اختلاف دې

حضرت مولانا محمديوسف لدهيانوی شهيد رحمه الله په اختلاف امت او صراط مستقيم کښې دا مسئله ښه په تفصيل سره بيان کړې ده.هغې مراجعت اوکړئ.

**د حضرت عباس رضی الله عنه دعا**: - نقل دی چه صحابه کرامو او حضرت عمر رضي الله عنه کوم وخت د حضرت عباس رضي الله عنه په وسيله سره د باران دعا د الله تعالى نه غوښتله نو حضرت عباس رضي الله عنه به داسې دعا غوښتله. اې زما پروردګاره ستاد پيغمبر امت زما وسيله اختيار کړې ده اې کريم ذات ته زما دا بوډاوالي مه رسوا کوې اوما د دې خلقو په مخکښې د شرمندګئ نه

[١] ) اخرجه البخاري فی کتاب الجمعة/باب سؤال الناس الإمام الاستسقاء إذا قحطوا (رقم-١٠١٠)

بېج کړي نوچه دا الفاظ دَ حضرت عباس رضي الله عنه دَ خلې نه وتل او بل طرف ته باران شروع کيدل.(لمعات)[اشعة المعات: ١/٦٦٩]

**[١٥١٠]دَاستسقاء په سلسله کښې دَ يونبي او ميږي واقعه**

١٥١٠-()[١٣][١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: [٢]«خَرَجَ نَبِيٌّ مِنَ الْأَنْبِيَاءِ بِالنَّاسِ يَسْتَسْقِي،[٣] فَإِذَا هُوَ بِنَمْلَةٍ رَافِعَةٍ بَعْضَ قَوَائِمِهَا إِلَى السَّمَاءِ[٣] فَقَالَ: ارْجِعُوا فَقَدِ اسْتُجِيبَ لَكُمْ مِنْ أَجْلِ هَذِهِ النَّمْلَةِ». رَوَاهُ الدَّارَقُطْنِيُّ.

**ترجمه:**[١] حضرت ابوهريره رضي الله عنه فرمايي چې ما د نبي کريم صلى الله عليه وسلم څخه دا اوريدلي دي چې په انبياؤ کې يو نبي د خلقو سره د استسقاء د پاره اوتلو نو هغه نبي ناڅاپه يو ميږي وليدلو چې خپلي پښي يي د آسمان طرف ته اوچتي کړي ولاړ وو، د دې په ليدو سره هغه نبي وفرمايل واپس راځئ د دې ميږي په وجه ستاسو دعا قبوله شوه. (دارقطني)

**حل اللغات:-** ① نَمْلَةٍ: ميږي، ② قَوَائِمِهَا: د قائمة جمع ده، خپې.

**تسهيلات: قوله: خَرَجَ نَبِيٌّ مِنَ الْأَنْبِيَاءِ:**

**د حديث فوائد:-**

① وئيلى شي چه دانبى حضرت سليمان عليه السلام وو. دَدې واقعه نه يوه خبره داثابته شوه چه دَالله تعالى ډيرلوئى شان دې اودَهغه رحمت دَ کائنات په ذره ذره باندې راخوردې که هغه انسان وى يادَ حشرات الارض نه يوه ذره دَ ميږى برابروى.

② مسبب الاسباب اوقاضى الحاجات صرف يودَ الله تعالى ذات دې.

③ دَالله تعالى علم دکائنات ذره ذره راګيره کړې ده اوهغه دَ کائنات ټول موجوداتواحوال اوکوائف باندې محيط دې..

④ دَدغه ميږى دَ دعاالفاظ داوو.(اللهم اناخلق من خلقك لاغنئ بناعن رزقك فلاتهلكنابذنوب بنى آدم)

**ترجمه:**[١] اې پروردګارا ستاپه مخلوقاتوکښې مونږ هم يومخلوق يو ستادَ رزق نه مونږ مستغنى اوبې نيازه نه وو لهذا دَ اولاد آدم دَ ګناهونودَ وجې نه مونږ تباه برباد مه کړې.

[١] ) اخرجه الدارقطنى فى السنن رقم الحديث ١ من كتاب الاستسقا

# [٦٩/٥٣] بَابٌ فِي الرِّيَاحِ وَالْمَطَرِ

د هواګانو او باران بیان

**خلاصة الباب:-**

**فيه اربعة عشر حديثاً مشتملة على ثماني مسائل:**

① ثبوت صلوة الاستسقاء: ١۔

② تحويل الرداء في صلاة الاستسقاء: ١، ۶، ٧، ١٢۔

③ كيفية رفع اليدين فى الاستسقاء: ٢، ٣، ١٢۔

④ الدعاء وقت المطر: ۴۔

⑤ العمل المسنون وقت المطر: ۵۔

⑥ الدعاء في الاستسقاء وكلماتها: ١، ۶، ٧، ٨، ١٠، ١١، ١٢۔

⑦ التضرع إلى الله تعالى فى الاستسقاء: ٩۔

⑧ استسقاء الحيوانات: ١۴۔

قال الله تعالى ﴿ وَأَرْسَلْنَا الرِّيَاحَ لَوَاقِحَ ﴾ [سورت الحجر: ٢٢] وقال الله تعالى ﴿ أَنْ يُرْسِلَ الرِّيَاحَ مُبَشِّرَاتٍ ﴾ [سورت روم: ۴۶] وقال الله تعالى ﴿ أَرْسَلْنَا عَلَيْهِمُ الرِّيحَ الْعَقِيمَ ﴾ [سورت ذاريات: ۴١]

**د مشكاة د نسخو اختلاف:-** دَمشکوة شریف په اکثرو نسخو کښې دلته صرف لفظ بابٌ دې تنوین سره لیکلې شوې دې. دَصاحب مشکوة عادت دې چه کله کله هغه صرف لفظ باب کیخودلوسره عنوان قائم کوی. دا په حقیقت کښې دَ وړاندینی باب مُتَمِّمات او مکملات نه وی څه مستقل باب نه وی دلته هم ممکن ده چه معامله هم دغه شان وی. لیکن دَ مشکوة په یوه صحیح نسخه کښې دلته دَ باب في الرياح عنوان موجود دې اودَ شارحینو حضراتو نه تقریباً ټولو دَ باب سره هم دَ ریاح عنوان لګولې دې. لهذا په دې باب کښې په مستقل توګه باندې دَ هواګانو بیان وی.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

[١٥١١] هوا رحمت هم دې او عذاب هم

١٥١١-(١)[١] ١ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ٢ «نُصِرْتُ بِالصَّبَا، ٣ وَأُهْلِكَتْ عَادٌ بِالدَّبُورِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

[١] ) اخرجه البخارى فى كتاب الجمعة/باب قول النبى صلى الله عليه وسلم نصرت بالصبا (رقم-١٠٣٥) ومسلم كتاب صلاة الاستسقاء/باب فى ريح الصبا والدبور(رقم) ١٧ - (٩٠٠)

**ترجمه:** ١ ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ د جنوب (يا د سوئيل) د غاړي د هوا په ذريعه زما مدد وکړل شو ٣ او قوم عاد د دبور هلاکونکي هوا په ذريعه هلاك شو. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① الصَّبَا: باد صبا هغه هوا کومه چه د مشرق طرف نه راځي، ② الدَّبُور: هغه هوا کومه چه د مغرب طرف نه راځي.

**تسهيلات:**

**قوله: نُصِرْتُ بِالصَّبَا:**

**دهوا په ذريعه د امت مدد:-** هوا دَ الله تعالى تابعدار مخلوق دې دَ الله تعالى په حکم او فرمان مطابق چليږي اوهم دَ هغه په حکم باندې بنديږي هم دَ هغه په حکم سره چاته راحت رسوی اوځوك سخت عذاب سره مخ کوی. په غزوه خندق کښې چه کوم وخت کافرانو يو لوئی طاقت راوستو اودَ مدينې منورې نه ئی ٢٨ ورځې سخته محاصره کړې وه نو په دې موقع باندې الله تعالى دَ مسلمانانو امداد اوکړو اودَ بادصبا په ذريعه سره کافران ذليل اوخوار کړل. هغه هوا دومره سخته اوچليدله چه ٢٧ ورځو پورې بې يارومددګار دَ سترګې ستومانه کافرانو سردار ابوسفيان اودَ هغه دَ لښکر په تابوت کښې آخری ميخ ټکوهلې شو اوهغه ټول اوتختيدل. رسول الله ﷺ په ټول ژوند کښې دَ الله تعالى دَ دې انعام شکر اداکولو او په اکثر مقاماتو کښې ئی دَدې په خاص توګه ذکر کړې دې.

**قوله: وَأُهْلِكَتْ عَادٌ بِالدَّبُورِ:**

**په هوا باندې د قوم عاد هلاکت:-** دغه شان قوم عاد په پخوانو قومونو کښې ډير سرکش او طاقتور قوم تيرشوې دې. دَ دغه خلقو دولس دولس ګزه اوږده قدونه وو. کله چه دا قوم دَ الله تعالى په نافرمانئی اوسرکشئی کښې راغلو اودَ الله تعالى عذاب له ئی دعوت ورکړو نو الله تعالى په هغوی باندې راخلاصونکې هوا مسلط کړه کومې چه دا دَ لوئی قد والا بدنونه په هواګانو کښې لکه دَ ډکو په شان والوزول او په زمکه ئی راخلاص کړل په کومې سره چه دَهغوی خيټې اوشليدلې اودَ هغوی سرونه چوری چوری شو.

**[١٥١٢] وريځ اوهواليدو سره د نبی عليه السلام کيفيت بدليدل**

> ١٥١٢-(٢) [٢] ١ وَعَنْ عَائِشَةَ-رَضِيَ اللهُ عَنْهَا-قَالَتْ: ٢ «مَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-ضَاحِكًا ٣ حَتَّى أَرَى مِنْهُ لَهَوَاتِهِ، إِنَّمَا كَانَ يَتَبَسَّمُ ٤ فَكَانَ إِذَا رَأَى غَيْمًا أَوْ رِيحًا عُرِفَ فِي وَجْهِهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ بي بي عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي ٢ چې ما رسول الله ﷺ هيڅ کله داسې په خندا نه

[١] اخرجه البخاری فی کتاب تفسير القرآن/باب قوله: «فلما رأوه عارضا مستقبل أوديتهم قالوا: هذا عارض ممطرنا بل هو ما استعجلتم به ريح فيها عذاب أليم» [الأحقاف: ٢٤] (رقم-٤٨٢٨) ومسلم کتاب صلاة الاستسقاء /باب التعوذ عند رؤية الريح والغيم، والفرح بالمطر (رقم-١٤-(٨٩٩)) وابوداود فی کتاب الأدب/باب ما يقول إذا هاجت الريح (رقم-٥٠٩٨)

دي ليدلي [٣] چې ما ته دحضور ﷺ ژبئ (چې په مرۍ کې اويزانده وي) په نظر راغلې وي حضور ﷺ به صرف مُسکي کيدلو [٤] او کله چې به يې وريځ يا هوا وليده نو د مخ مبارك تغير به يې (صفا) معلوميدو. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① لَهَوَاتِهِ: په حلق کښې ورې ژبې ته وائي. ② غَيْمًا: وريځ.

**تسهيلات:**

**قوله: عُرِفَ فِي وَجْهِهِ:**

**د هواء تيزۍ په وخت د نبی کريم ﷺ د ويرې وجه:** - دَ هواګانو او اوريځو په وخت به دَ حضورپاك پريشاني په دې وجه سره وه چه هم دَ دې اوريځو اوهواګانو نه په تيرو شوو قومونو باندې قسم قسم عذابونه نازل شوي وو. په دې وجه دَ عامو انسانانودَ کفر او ګناه په وجه سره به رسول الله ﷺ دَ عذاب دَ نزول دَ وجې نه پريشان کيدو. کله چه به باران شروع شو نودَ حضورپاك طبيعت به خوشحال شو لکه څنګه چه دې سره حديث کښې بيان کړې شوې دې.

**[١٥١٢] دَتيزې هوا په وخت دَرسول الله ﷺ دعا**

١٥١٢ - (٣) [١] وَعَنْهَا، قَالَتْ: [٢] كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - «إِذَا عَصَفَتِ الرِّيحُ قَالَ: [٣] اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ خَيْرَهَا، وَخَيْرَ مَا فِيهَا، [٤] وَخَيْرَ مَا أُرْسِلَتْ بِهِ، [٥] وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّهَا، وَشَرِّ مَا فِيهَا، [٦] وَشَرِّ مَا أُرْسِلَتْ بِهِ». [٧] وَإِذَا تَخَيَّلَتِ السَّمَاءُ، تَغَيَّرَ لَوْنُهُ، [٨] وَخَرَجَ وَدَخَلَ، [٩] وَأَقْبَلَ وَأَدْبَرَ، [١٠] فَإِذَا مَطَرَتْ سُرِّيَ عَنْهُ،

**ترجمه:** [١] بي بي عائشه ﵂ فرمايي [٢] چې هر کله تيزه هوا به چليده نو حضور ﷺ به دا دعا کوله [٣] (ترجمه: اي الله زه ستا څخه خير غواړم د هغه څيز چې د دې (هوا) په ذات کې دي او خير د هغه شي چې په دې کې دي (يعني د دې منافع) [٤] او خير د هغه شي چې د هغې د پاره دا هوا راليږل شوې ده (يعني د دې مدد) [٥] او پناه غواړم ستا په ذريعه د دې د بدي او د هغه شي د بدي څخه چې په دې کې ده (يعني دا د عذاب باعث نشي) [٦] او د هغه شي د بدئ نه چه د څه د پاره دا راليږلې شوې دي [٧] او هر کله چې به په آسمان وريځ خوره شوه نو د حضور ﷺ د مخ مبارك رنګ به بدل شو [٨] نو د اضطراب او خوف په وجه به يو ځاي نه پاتې کيدلو بلکه کله به د کور څخه بهر وتلو او کله به د بهر څخه دننه راتلو [٩] دغسې به تلو او بيا به راتلو [١٠] او کله چې به باران شروع شو نو د حضور ﷺ خوف او اضطراب به ختم شو.

**حل اللغات:** - ① عَصَفَتِ: عصف يعصف عصفاً وعصوفاً فهي عاصفة په سختئ سره چليدو ته وائي.
② تَخَيَّلَتِ: خيلت وتخيلت دَ آسمان باران دَپاره تياريدو ته وائي.

---

[١] ) اخرجه البخاري في كتاب بدء الخلق/باب ما جاء في قوله: (وهو الذي أرسل الرياح نشرا بين يدي رحمته) (رقم-٣٢٠٦)

١ فَعَرَفَتْ ذٰلِكَ عَائِشَةُ فَسَأَلَتْهُ ٢ فَقَالَ: "لَعَلَّهُ يَا عَائِشَةُ، كَمَا قَالَ قَوْمُ عَادٍ: ٣ ﴿فَلَمَّا رَأَوْهُ عَارِضًا مُّسْتَقْبِلَ أَوْدِيَتِهِمْ ٤ قَالُوا هٰذَا عَارِضٌ مُّمْطِرُنَا﴾ [الأحقاف: ٢٤]» ". ٥ وَفِي رِوَايَةٍ: وَيَقُولُ إِذَا رَأَى الْمَطَرَ: "رَحْمَةٌ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ (يو ځل) بي بي عائشي رضي الله عنها چې دا (تغير او اضطراب) محسوس کړو نو د حضور ﷺ څخه يې د دې د سبب پوښتنه وکړه ٢ حضور ﷺ ورته وفرمايل چې اي عائشي! څه خبر دا وريځ هغسي نه وي چې د هغې په نسبت قوم عاد ويلي وو ٣ هر کله هغوئ وريځ خپلو خوړونو ته راتلونکي وليده ٤ نو هغوئ اوويل چې دا وريځ ده چې په مونږ به وريږي (نو په دې آيت کې د قوم عاد حال بيان شوې دې چې هر کله هغوئ وريځ خپلو خوړونو ته راتلونکي وليده نو هغوئ اوويل چې دا وريځ ده چې په مونږ به وريږي) ٥ او په يو روايت کې په ځاي د فَإِذَا مُطِرَتْ سُرِّيَ عَنْهُ دا الفاظ دي چې هر کله به حضور ﷺ باران وليدلو نو دا به يې فرمايل چې دا باران دې د رحمت باعث وي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ③ مُسْتَقْبِلَ: مخامخ راروانه ده، ④ عَارِضٌ: وريځ.

**تسهيلات:** -

**قوله: هٰذَا عَارِضٌ مُّمْطِرُنَا:**

**د عاديانو د هلاکت منظر:** - حضرت هود عليه السلام چه دکوم قوم طرف ته نبي جوړولوسره ليګلې وو دَهغه قوم عاد وو. دَ دغه قوم دَ سرکشئی دَ وجې نه الله تعالى په هغوی باندې دَ آسمان نه باران بند کړو اودا قوم په اوچ کالئی اوقحط کښې راګيرشو. حضرت هود عليه السلام هغوی ته دَ عذاب دَ نازليدو ويره هم واؤروله ليکن هغوی دَ هغه په خبره باندې غوږ اونه لګولو. يوځل دَ دغه قوم يومعزز وفد دَ مکې مکرمې طرف ته په دې غرض سره لاړو چه هلته به دَ الله تعالى نه بيت الله سره دَ باران دعا اوغواړي. کله چه دا وفد مکې مکرمې ته اورسيدو نودَهغې ځائی بعضې عقلاء او عرفاء هغوی ته اووئيل تاسو واپس لاړشئی او په خپل نبی باندې دَ باران دعا اوکړئی. دغه خلقو وئيل هغه سره زمونږ دښمنی ده مونږ هغه منونه نودعا به پرې څنګه اوغواړو. دې نه پس په آسمان باندې درې قسمه اوريځې راښکاره شوې يعنی سپينه توره او سره. بيا دوی ته اووئيلې شو چه په دې کښې يوه اوريځ خوښه کړئی هغوی وئيل چه په تورو اوريځو کښې اوبه کمې وی او په سره اوريځ کښې عموماً عذاب وی نوسپينې اوريځې ئی خوښې کړې. دا خلق وړاندې روان وو اوشاته ورپسې اوريځې راتلې. دا خلق دَ وخت دَ پيغمبر په توهين او سپکاوی باندې راغله چه ګورئی دَ ده نه بغيرڅنګه اوريځې مونږ سره راروانې دی. کله چه خپلو ښارونو ته اورسيدل نو هم دَ دغه اوريځو نه عذاب نازل شو او ټول ئی نيست او نابود کړل. هم دَ دغه واقعې طرف ته په قرآن

عظیم کښې بار بار اشاره کړې شوې ده کومه چه حضورپاك وئیلو سره واورولهٔ ﴿هٰذَا عَارِضٌ مُّمْطِرُنَا ۚ بَلْ هُوَ مَا اسْتَعْجَلْتُم بِهِ ۖ رِيحٌ فِيهَا عَذَابٌ أَلِيمٌ ۝ تُدَمِّرُ كُلَّ شَيْءٍ بِأَمْرِ رَبِّهَا﴾ خلاصه دا چه مونږ له پکاردی چه مونږ دَ الله تعالی دَعذاب نه بې ویرې او بې غوره نه شو.

**[١٥١٤] دَغیبو پنځه خزانې**

١٥١٣-(١)[٣] ① وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② "«مَفَاتِيحُ الْغَيْبِ خَمْسٌ» ③ ثُمَّ قَرَأَ: ﴿إِنَّ اللَّهَ عِنْدَهُ عِلْمُ السَّاعَةِ ④ وَيُنَزِّلُ الْغَيْثَ﴾ [لقمان: ٣٤] الْآيَةَ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① ابن عمر ﷺ وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② چې د غیبو پنځه خزانې دي ③ بیا حضور ﷺ دا آیت اوونیلو [چې د هغې ترجمه دا ده] الله ته د قیامت علم دي ④ او هغه باران ورروي. (بخاري)

**حل اللغات:** - ① مَفَاتِيحُ: دمفتاح جمع ده، چابی، ② السَّاعَةِ: قیامت، ③ الْغَيْثَ: باران.

**تسهیلات:**

**قوله:** إِنَّ اللَّهَ عِنْدَهُ عِلْمُ السَّاعَةِ:

**د خزانو څیزونو وضاحت:** - دغیبو پنځه خزانې دی چې دهغې علم صرف الله ﷻ ته دي. بل هیچا ته ددې علم نشته دي. همدغه پنځه څیزونه ئې په دې آیت مبارك بیان فرمائیلی دی (إِنَّ اللَّهَ عِنْدَهُ عِلْمُ السَّاعَةِ ۚ وَيُنَزِّلُ الْغَيْثَ ۚ وَيَعْلَمُ مَا فِي الْأَرْحَامِ ۖ وَمَا تَدْرِي نَفْسٌ مَّاذَا تَكْسِبُ غَدًا ۖ وَمَا تَدْرِي نَفْسٌ بِأَيِّ أَرْضٍ تَمُوتُ ۚ إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ خَبِيرٌ ۝)

① د قیامت د قائمیدو علم

② د باران د کیدو علم دي

③ د (دمور په) خیټه کښې څه دی (یعنی هلك دي که جینۍ ، تور دي که سپین ، نیمګړې دي که پورا وغیره وغیره)

④ صبا ته به یو کس څه کوی ، (یعنی دنیا کښې به ښیګړه کوی یا بدی ، او آخرت کښې به ورته ثواب ملاویږی که عذاب)

⑤ دا چې یو کس به په کومه زمکه باندې مری ،

**[١٥١٥] حقیقی قحط**

١٥١٥-(٢)[٥] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② "«لَيْسَتِ السَّنَةُ بِأَنْ لَا تُمْطَرُوا ③ وَلَكِنِ السَّنَةُ أَنْ تُمْطَرُوا وَتُمْطَرُوا وَلَا تُنْبِتُ الْأَرْضُ شَيْئًا» "رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

[١] اخرجه البخاری فی کتاب تفسیر القرآن/باب «وعنده مفاتح الغیب لا یعلمها إلا هو» [الأنعام: ٥٩] (رقم-٤٦٢٧)

[٢] اخرجه مسلم فی کتاب الفتن وأشراط الساعة/باب فی سکنی المدینة وعمارتها قبل الساعة (رقم-٤٤-(٢٩٠٤)



**ترجمه:** [١] حضرت ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] سخت قحط د دې نوم نه دې چې په تاسو باران نه کيږي [٣] بلکه سخت قحط دا دې چې په تاسو باران کيږي خو زمکه هيڅ نه زرغونوي. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① السَّنَةُ: قحط، اوچ کالي. ② لاَ تُمْطَرُوا: چه په تاسو باران اونه کړې شي.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَلَا تُنْبِتُ الْأَرْضُ شَيْئًا:

**د قحط حقيقت:** -نبی کريم صلى الله په دې حديث کښې فرمائي چې حقيقي قحط دا دې چې باران کيږي او زمکه څه نه راټوکوي. لکه څنګه چې نبی کريم په يو بل حديث کښې فرمائيلي دی پهلوان هغه نه دې چې بل څوک راوغورځوي. بلکه حقيقي پهلوان هغه دې چې د غصې په وخت کښې خپله غصه اوزغمي. اود غصې په مقتضا عمل اونکړي.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [١٥١٦] هواته د کنځلو کولو ممانعت

١٥١٦ -()[٢][١] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: " [٢] «الرِّيحُ مِنْ رَوْحِ اللَّهِ تَعَالَى [٣] تَأْتِي بِالرَّحْمَةِ وَبِالْعَذَابِ، [٤] فَلَا تَسُبُّوهَا وَسَلُوا اللَّهَ مِنْ خَيْرِهَا، [٥] وَعُوذُوا بِهِ مِنْ شَرِّهَا» " رَوَاهُ الشَّافِعِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي "الدَّعَوَاتِ الْكَبِيرِ".

**ترجمه:** [١] حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي [٢] چې هوا د الله تعالى جل جلاله د رحمت څخه ده [٣] هغه رحمت هم راولي او عذاب هم [٤] نو که (تاسو ته د هغې څخه څه نقصان ورسيږي) نو هغې ته بد مه وايئ تاسو د الله جل جلاله څخه د هغې خير طلب کوئ [٥] او په الله جل جلاله سره د هغې د نقصان څخه پناه غواړئ. (شافعي، ابوداؤد، ابن ماجه، بيهقي)

**حل اللغات:** - ① تَسُبُّوهَا: د سبّ يسبّ نه، سبّ کنځلو ته وائي. ② عُوذُوا: د عاذ يعوذ نه، پناه غوښتل.

**تسهيلات:**

**قوله:** الرِّيحُ مِنْ رَوْحِ اللَّهِ تَعَالَى:

**د روح الله مطلب:** - دا مصدر دې په معنی د اسم فاعل الرائح يعنی راتلونکې. يعنی هوا د هغه څيزونو څخه ده چې دا د الله تعالى د طرفه راځي. يو ځائې کښې رحمت شي نو په بل ځائې ترې عذاب جوړ شي. او کله په يو ځائې کښې هم عذاب نه جوړيږي. لهذا په اجمال او تفصيل کښې به مطابقت راشي.

[1] ) اخرجه ابوداود في كتاب الأدب/اب ما يقول إذا هاجت الريح (رقم-٥٠٩٧) وابن ماجة كتاب الأدب/باب النهي عن سب الريح (رقم-٣٧٢٧)

**قوله: تَأْتِي بِالرَّحْمَةِ:**

**اشكال:**- په هوا كښې خو عذاب وى نو دې ته ئې رحمت څنګه اووئيل؟

**داشكال جواب:**- هغه هوا چې په چا باندې مسلط كړې شوه نو هغه دهغوئ دپاره عذاب دې يعنى : كافرانو او منكرينو دپاره. اود مسلمانانو دپاره داشان رحمت دې چې دكافرانو نه ورته نجات ملاؤ شو.

**د هواګانو اته قسمونه:**- مرقات كښې دى چې دهوا ګانو اته اقسام دى. څلور قسمه رحمت دې ① ناشرات. ② ذاريات. ③ مرسلات. ④ مبشرات او دا څلور قسمه دعذاب دى. ⑤ عاصف. ⑥ قاصف. ⑦ صرصر. ⑧ عقيم. عاصف ، قاصف دواړه سمندرونو كښې عذاب راولى . او صرصر ، عقيم په اوچه باندې عذاب راولى.

**[١٥١٧] په هوا د لعنت ليږلو ممانعت**

١٥١٧-(١)[٤] [١] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا -: [٢] «أَنَّ رَجُلًا لَعَنَ الرِّيحَ عِنْدَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: [٣] "لَا تَلْعَنُوا الرِّيحَ; فَإِنَّهَا مَأْمُورَةٌ، [٤] وَإِنَّهُ مَنْ لَعَنَ شَيْئًا لَيْسَ لَهُ بِأَهْلٍ، [٥] رَجَعَتِ اللَّعْنَةُ عَلَيْهِ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [١] ابن عباس رضي الله عنهما فرمايي [٢] چې (يو خل) د نبي كريم ﷺ په مخكې يو سړي په هوا لعنت ووېلو نو حضور ﷺ ورته وفرمايل [٣] چې په هوا لعنت مه وايه ځكه چې هغه (خو د رحمت يا عذاب د پاره) د الله جل جلاله د طرف څخه ماموره ده [٤] او كوم سړي چې په داسې شي باندې لعنت كوي چې هغه د لعنت مستحق نه وي [٥] نو هغه لعنت هغه لعنت كونكي ته واپس ګرځي. (دا روايت امام ترمذي رحمه الله نقل كړي دي او ويلي يې دى چې دا حديث غريب دي)

**حل اللغات:**- ① مَأْمُورَةٌ: اى محكومة، د الله دحكم تابع ده.

**تسهيلات:**

**قوله: لَا تَلْعَنُوا الرِّيحَ:**

**قابل لعنت درې څيزونه:**- حضرت امام غزالى رحمه الله فرمائى چې د لعنت باعث درې څيزونه دى. ① كفر ② بدعت ③ فسق. او ظاهره خبره ده چې په هوا كښې په دې درې واړو څيزونو كښې يو هم موجود نه دې. په دې وجه رسول كريم ﷺ په هوا باندې د لعنت وئيلو نه منع فرمائيلې ده.

[١] ) اخرجه ابوداود فى كتاب الأدب/باب فى اللعن (رقم-٤٩٠٨) والترمذى كتاب البر والصلة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى اللعنة (رقم-١٩٧٨)

[١٥١٨] د هوا او طوفان په وخت کښې دعا

١٥١٨-(١)[٨] ١ وَعَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ٢ "«لَا تَسُبُّوا الرِّيحَ، ٣ فَإِذَا رَأَيْتُمْ مَا تَكْرَهُونَ فَقُولُوا: ٤ اللَّهُمَّ إِنَّا نَسْأَلُكَ مِنْ خَيْرِ هَذِهِ الرِّيحِ، وَخَيْرِ مَا فِيهَا، ٥ وَخَيْرِ مَا أُمِرَتْ بِهِ، ٦ وَنَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ هَذِهِ الرِّيحِ، وَشَرِّ مَا فِيهَا، ٧ وَشَرِّ مَا أُمِرَتْ بِهِ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ١ ابي ابن کعب رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ هوا ته بد مه وايئ ٣ هو هر کله چې تاسو دا ووينئ چې (د هغې د سوځونکو چپو يا يخو هواګانو په وجه) تاسو ته هغه ناګوار محسوسيږي (يا د هغې د تيزي وتندي په وجه تاسو ته تکليف يا نقصان کيږي) نو دا دعا کوئ ٤ چې يا الله مونږ ستا څخه د دې هوا د خير او څه چې په دې کې دي د هغې د خير ٥ او د څه شي د پاره چې دا ماموره کړل شوې ده د هغې خير غواړو ٦ او مونږ ستا څخه د دې هوا د بدي څخه او څه چې په دې کې دي د هغې بدي څخه ٧ او د څه شي د پاره چه دا ماموره کړې شوې د هغې د بدئ څخه پناه غواړو، (ترمذي)

**تسهيلات:**

**قوله: فَقُولُوا: اللَّهُمَّ إِنَّا نَسْأَلُكَ:**

**د هوا راتلو په وخت کښې دعا:-** يعنې هوا ته بد وئيل نه دي پکار، بلکه کله چې هوا راشي نو دا دعاغوښتل پکار دي. (اللَّهُمَّ إِنَّا نَسْأَلُكَ مِنْ خَيْرِ هَذِهِ الرِّيحِ، وَخَيْرِ مَا فِيهَا، وَخَيْرِ مَا أُمِرَتْ بِهِ، وَنَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ هَذِهِ الرِّيحِ، وَشَرِّ مَا فِيهَا، وَشَرِّ مَا أُمِرَتْ بِهِ

[١٥١٩] دتيزې هوا په وخت مسنون دعا

١٥١٩-[٩] ١ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا- قَالَ: ٢ «مَا هَبَّتْ رِيحٌ قَطُّ إِلَّا جَثَا النَّبِيُّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- عَلَى رُكْبَتَيْهِ وَقَالَ: ٣ "اللَّهُمَّ اجْعَلْهَا رَحْمَةً، وَلَا تَجْعَلْهَا عَذَابًا، ٤ اللَّهُمَّ اجْعَلْهَا رِيَاحًا، وَلَا تَجْعَلْهَا رِيحًا» ٥". قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ فِي كِتَابِ اللهِ تَعَالَى: ﴿إِنَّا أَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِيحًا صَرْصَرًا﴾ [القمر: ١٩] ٦ وَ: ﴿أَرْسَلْنَا عَلَيْهِمُ الرِّيحَ الْعَقِيمَ﴾ [الذاريات: ٤١] ٧ وَ: ﴿وَأَرْسَلْنَا الرِّيَاحَ لَوَاقِحَ﴾ [الحجر: ٢٢] ٨ وَ: ﴿أَنْ يُرْسِلَ الرِّيَاحَ مُبَشِّرَاتٍ﴾ [الروم: ٤٦]. رَوَاهُ الشَّافِعِيُّ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي "الدَّعَوَاتِ الْكَبِيرِ".

**ترجمه:** ١ ابن عباس رضي الله عنهما فرمايي ٢ چې کله به تيزه هوا چليده نو نبي کريم ﷺ [به د الله تعالی په مخکې د عجز وانکساري اظهار، د امت د طرف څخه د خوف او تعليم په خاطر چې نور خلق هم داسې وکړي] په زنګونانو کيناستلو او دا دعا به يې کوله ٣ اي الله دا هوا رحمت جوړ کړې، عذاب يې جوړه مه کړي ٤ اي الله دا هوا رياح (يعني درحمت هواګانې) جوړه کړې ريح (يعني عذاب) يې جوړه مه کړي ٥ ابن عباس رضي الله عنهما فرمايي چې د قرآن کريم دا آيت کريمه (چې د هغې ترجمه دا ده) او مونږ په هغوئ تيزه او تنده هوا وليږله

(١) اخرجه الترمذي في كتاب الفتن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في النهي عن سب الرياح (رقم-٢٢٥٢)

٦ او مونږ په هغوئ شنډه هوا ولیږله (یعني داسې هوا چې ونې به یې میوه کولو ته نه پریښودلې) ٧ او مونږ په هغوئ وریځې دکوونکي هواګانې ولیږلې ٨ او دا چې الله تعالی ﷻ (د باران) زیرې راوړونکي هواګانې رالیږي. (شافعي بیهقي)

**حل اللغات:** - ① هَبَّتْ: تیزه هوا به اوچلیده، ② جَثَا: جلس علی رکبتیه: په زنګونانو کیناستل. ③ رِيَاحًا: دې جمع ریاح ده، هوا ته وائی. ④ صَرْصَرًا: تیزه او تنده هوا، طوفان، ⑤ الْعَقِيمَ: شنډه هوا، خشکه هوا، ⑥ لَوَاقِحَ: دکونکې،

**تسهیلات:**

**قوله: وَلَا تَجْعَلْهَا رِيحًا:**

**د ریح او ریاح په استعمال کښې فرق:** - دلته دا بحث اوتحقیق دې چه دَ ریح اوریاح په مواقع استعمال کښې څه فرق شته که نشته؟ په زیر بحث حدیث کښې دَحضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما تحقیق دادې چه په دواړو الفاظو کښې دافرق دې چه کوم ځائې په قرآن کریم کښې دَ ریاح لفظ دَ جمع دَ صیغې سره راغلې دې هغه دَ رحمت اوبشارت دَپاره استعمال کړې شوې دې اوچرته چه دَ ریح لفظ مفرد راغلې دې دَعذاب دَپاره استعمال کړې شوې دې. چنانچه زیربحث روایت کښې دَ استشهادپه توګه دَ قرآن کریم آیاتونه پیش کړې دی او په دې سره ئې په دې خبره باندې استدلال کړې دې چه ریح دَ عذاب دَپاره دې اوریاح دَ رحمت او بشارت دَپاره استعمال کولې شی.

**دامام طحاوی اختلاف:** - امام طحاوی رحمه الله دَحضرت ابن عباس رضي الله عنهما دې تحقیق سره اختلاف کړې دې اودااشکال ئې پیش کړې دې چه په قرآن کریم کښې ریح دَمفرد صیغې سره دَ رحمت اوبشارت دَپاره استعمال شوې دې. لکه ﴿وَجَرَيْنَ بِهِمْ بِرِيحٍ طَيِّبَةٍ﴾ هم دغه شان په بعضې احادیثو کښې الریح من روح الله الفاظ راغلی دی دکوم نه چه معلومیږی چه دَ ریح لفظ دَ رحمت او ښیګړې دَپاره استعمالیږی.

**د اختلاف تطبیق:** - دَدې اختلاف په تطبیق کښې علامه خطابی رحمه الله فرمائیلی چه په زیر بحث حدیث کښې دا تاویل ممکن دې چه حضوراکرم چه دَ ریح کومه نفی اوریاح دعاغوښتې ده. دَدې مطلب دا چه په یوریح کښې کمه ښیګړه راځی او ریاح چه کله جمع شی نو په دې مجموعه کښې زیاته ښیګړه راځی په دې وجه حضورپاك دَ ریح نفی اوفرمائیله. دا جواب دَ زړه ورتیا نه زیات حیثیت نه لری او په دې کښې یو ډیر بعید تاویل کړې شوې دې لهذا دا تطبیق مفیدنه دې.

**د امام طحاوی داشکال جواب:** - علامه طیبی رحمه الله دَ ابن عباس رضي الله عنهما رائې راجح ګرځولې ده اودَ امام طحاوی رحمه الله دَ اشکال ئې دا جواب ورکړې دې چه دَ قرآن کریم په عمومی اصطلاح په خپل ځائې صحیح ده اوحضرت ابن عباس رضي الله عنهما دَ قرآن عظیم اصطلاح واضح کړې ده اودَ

قرآن عظیم اصطلاح داده چه کله لفظ صرف ریح ذکرشي اودي سره څه قیدنه وي نوداد عذاب دپاره استعمالیږي او ریاح په عام توګه رحمت ښیګړي او بشارت دپاره استعمالیږي.

**ریح سره د طیبة قید لګولو:-** کبعضي روایاتو کښي ریح مطلق مذکورنه دي بلکه طیبه سره مقیددي او په احادیثو کښي هم مطلق ریح دَ رحمت دَپاره استعمال نه کړي شو بلکه (الریح من روح الله) مقیدجمله ده یاکه داسي اوونیلي شي حضرت ابن عباس رضي الله عنهما دَ قرآن پاك اصطلاح بیان کړي ده. دَحدیث نه بهرحال دَحضرت ابن عباس رضي الله عنهما رائي بهترده. والله اعلم

**[١٥٢٠] دَاوریځي دَوخت دعا**

١٥٢٠—(١)[١٠] [١] وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا - قَالَتْ: [٢] «كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا أَبْصَرْنَا شَيْئًا مِنَ السَّمَاءِ - تَعْنِي السَّحَابَ - [٣] تَرَكَ عَمَلَهُ وَاسْتَقْبَلَهُ، وَقَالَ: [٤] "اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ مَا فِيهِ". [٥] فَإِنْ كَشَفَهُ حَمِدَ اللّٰهَ [٦] وَإِنْ مَطَرَتْ قَالَ: "سَقْيًا نَافِعًا"». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالشَّافِعِيُّ وَاللَّفْظُ لَهُ.

**توجمه:** [١] بي بي عائشه رضي الله عنها فرمايي [٢] چي رسول الله ﷺ چي به په آسمان وريځ ولیده [٣] نو (مباح) کار پریښودلو سره اخوا به متوجه کیدو او دا دعا به یي کوله [٤] چه اي الله څه چي په دي کي شر وي د هغي څخه ستا پناه غوارم [٥] که الله تعالی (به بغیر د ورولو) آسمان صفا کړو نو حضور ﷺ به د الله جل جلاله حمد بیانولو [٦] او که به باران شروع شو نو دا دعا به یي کوله چي اي الله نفع ورکونکي اوبه ووروي. (ابوداؤد، نسايي، ابن ماجه، شافعي الفاظ د شافعي دي)

**حل اللغات:-** ① كَشَفَهُ: ښکاره به ئې کړو، صفا به ئې کړو آسمان. ② سَقْيًا: باران،

**تنبیه:-** په دي حديث کښي ناشئا لفظ راغلي دي په نشاء ينشاء نه پيدا کيدو په معنى کښي دي. کاتبانو دَي په ليکلو کښي ډير ګړبړ کړي دي. په اصل کښي ابصرجدا صيغه ده اوناشئا جدا اسم فاعل دي دَ کوم تفسير حضرت عائشه رضي الله عنها السحاب سره فرمائيلي دي.

**[١٥٢١] دَبريښنا په وخت کښي دعا**

١٥٢١—(٢)[١١] [١] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا -: [٢] أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - «كَانَ إِذَا سَمِعَ صَوْتَ الرَّعْدِ وَالصَّوَاعِقِ قَالَ: [٣] "اللّٰهُمَّ لَا تَقْتُلْنَا بِغَضَبِكَ، [٤] وَلَا تُهْلِكْنَا بِعَذَابِكَ، [٥] وَعَافِنَا قَبْلَ ذٰلِكَ"». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**توجمه:** [١] ابن عمر رضي الله عنهما فرمايي [٢] چي نبي کريم ﷺ چي به (د بجلي) د تنا (د ګرزهار)

[1] ) اخرجه ابوداود فى كتاب الأدب/باب ما يقول إذا هاجت الريح (رقم-٥٠٩٩) والنسائى كتاب الاستسقاء/باب القول عند المطر (رقم-١٥٢٣) وابن ماجة كتاب الدعاء/باب ما يدعو به الرجل إذا رأى السحاب والمطر (رقم-٣٨٨٩)

[2] ) اخرجه الترمذى فى كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما يقول إذا سمع الرعد (رقم-٣٤٥٠)

آواز واوریدو او بریښنیا [تندر پریوتل] به یي ولیدله نو دا دعا به یي کوله [٣] چې اې الله مونږ په خپل غضب سره هلاك مه کړې [٤] او په خپل عذاب سره مو هلاك مه کړې [٥] او مونږ په عافیت کې لري (یعني مونږ ته د عافیت مرګ راکړې) مخکې د دې څخه (چې ستا عذاب نازل شي) (ترمذي رحمه الله، او ترمذي ویلي دي چې دا حدیث غریب دي)

**حل اللغات:** - ① الرَّعْدِ: ګرزار، ② الصَّوَاعِقِ: د صاعقة جمع ده، تندرونه. ③ عَافِنَا: د امر صیغه ده یعنی عافیت راکړې مونږ ته.

**تسهیلات:**

**قوله: إِذَا سَمِعَ صَوْتَ الرَّعْدِ وَالصَّوَاعِقِ**

**په آسمان کښې د ګړکا حقیقت:** - کله چې فرښته وریځې په کوړا باندې وهی نو آواز راځي، کله چې ئې اووهی نو دا ګړقیږي کوم چې مونږ ته ښکاري. بیا د وریځو نه آواز راځي. څومره زور سره چې ئې هغوئ وهی دومره زور سره ترې آواز راځي. څینې وختونو کښې د تندر هغه ګړق ونې هم سوزی. په دې وجه به نبی کریم په سخت تندر او ګړقاری کښې دعا غوښته. مونږ ته هم پکار دی چې ددې دعاګانو اهتمام اوکړو.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[١٥٢٢] دَ رعد فرښتې تسبیح**

١٥٢٢ — ( ) [١٢] [١] عَنْ عَامِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الزُّبَيْرِ: [٢] أَنَّهُ كَانَ إِذَا سَمِعَ الرَّعْدَ تَرَكَ الْحَدِيثَ وَقَالَ: [٣] سُبْحَانَ الَّذِي يُسَبِّحُ الرَّعْدُ بِحَمْدِهِ [٤] وَالْمَلَائِكَةُ مِنْ خِيفَتِهِ. رَوَاهُ مَالِكٌ.

**ترجمه:** [١] د عبدالله ابن زبیر رضي الله عنه په باره کې منقول دي [٢] چې هغه به د بجلي د ګرزهار آواز واوریدو نو خبري اتري کول به یي پریښودل او دا کلمات به یي ویل [٣] چې پاك دي هغه ذات چې رعد د هغه تسبیح کوي د هغه د ثنا سره [٤] او فرښتي د هغه د خوف څخه د هغه ثنا وایي. (مالك)

**حل اللغات:** - ① الرَّعْدَ: ګرزارې، ② خِيفَتِهِ: د ویرې دالله نه.

**تسهیلات:** **قوله: إِذَا سَمِعَ الرَّعْدَ:**

**د رعد په تفسیر کښې دوه ډلې:** -

① دَ قرآن کریم په تفسیرکولو کښې دَمفسرینودوه طبقې دی. طبقه اولی اثری دې یعنی چه کوم حدیث او اثرنه دَ قرآن کریم تفسیرکوی اوهغه خالص نقل تابع ګرځی لکه ابن جریرابن کثیر او قرطبی وغیره رحمهم الله مفسرین دی.

[١] اخرجه مالک فی الموطا کتاب الکلام/باب القول إذا سمعت الرعد (رقم-٢٦)

② دويمه طبقه فلسفي ده داهغه مفسرين دي كوم چه نقل سره فلسفيانه عقل ته هم دخل وركوي لكه فخرالدين رازي رحمه الله قاضي بيضاوي رحمه الله وغيره دي.

**د اولې طبقې تفسير:** - اوس په قرآن كښې ﴿ وَيُسَبِّحُ الرَّعْدُ ﴾ كښې رعد لفظ راغلې دې. دَدې لفظ باره كښې اَثري مفسرين فرمائي لكه څنګه چه په احاديث اوآثار كښې راغلي دي چه دادَ يوې فرښتې نوم دې چه دَ اوريځو په شړلواو روانولو باندې مقرردی. دَهغې په لاس كښې يو چمكداره كوړه ده هغه څوزه وي په اوريځوكښې پړق او بجلي راځي اوپخپله دا فرښته دَالله تعالى تسبيح لولي دكوم نه چه دَ ګړزګړوز آواز پيدا كيږي. زيربحث حديث هم دَدغه مفسرينو دليل اوتائيد دې.

**د دويمې طبقې تفسير:** - فلسفي مفسرين فرمائي چه دَاوريځو په خپل مينځ كښې يو كيفيت دې كله چه دَ ګرم اونرم مزاج اوريځې خپل مينځ كښې جنګيږي نودَدې نه دَ بجلئ دكرنټ په شان پړق هم راپيدا كيږي اوهم دَدې نه دا سخت آواز راوځي.

**د رعد د آواز په وخت دعائيه كلمات:** - بهرحال صحابه كراموكښې دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه يوروايت نقل دې چه په حالت دَ سفركښې يوځل مونږ ګړزګړوز پړق پړوق او يخنئ راګير كړو نوحضرت كعب رضي الله عنه اوفرمائيل چه كوم سړې دَ ګړزګړوز آواز واورې درې ځل دې دا اولولي هغه به دَ آفات او خطرات نه محفوظ اومامون اوسيږي. نوچه مونږ لوستل شروع كړه ويره لاړه هغه كلمات دادي. (سبحان الله من يسبح الرعد بحمده والملائكة من خيفته) (موطامالك)

دَدې نه معلومه شوه چه رعددَ فرښتې نوم دې او ګړزګړوز دَهغې آواز دې. دَدې حديث نه داهم معلومه شوه چه دَ اوريځې پړق او ګړزګړوز اودَ بجلئ اوتندر آواز دې كه چرې ويره اواضطراب يوه چپه دَ چاپه زړه كښې پيدا كړي نودا مبارك كلمات اودغه بابركت معمولات نه به ډيره فائده كيږي.

# [٥]كِتَابُ الْجَنَايِزِ]

## دجنازې بيان

**د جنازې ثبوت:-** قال الله تعالى ﴿ كَلَّآ إِذَا بَلَغَتِ التَّرَاقِيَ ۙ وَقِيلَ مَنْ ۜ رَاقٍ ۙ وَظَنَّ أَنَّهُ الْفِرَاقُ ۙ وَالْتَفَّتِ السَّاقُ بِالسَّاقِ ۙ ﴾ [سورت قيامة الايه:٢٧] وقال الله تعالى ﴿ وَلَا تُصَلِّ عَلَىٰٓ أَحَدٍ مِّنْهُم مَّاتَ أَبَدًا وَلَا تَقُمْ عَلَىٰ قَبْرِهِ ۖ ﴾ [سورت توبه:٨٤]

**د جنازې لغوي تحقيق:-** جنائزد جنازة جمع ده او په جنازه كښې په جيم باندې كسره هم ده اوفتحه هم ده مګركسره سره لوستل فصيح لغت دې دواړه جائزدي. بعضې اهل لغت ليكلي دي چه د جيم فتحه سره د مړي په كټ باندې ونيلې شي اودجيم كسره سره دمړي نعش ته ونيلى شي. داخبره يادساتئي چه جنائزجمع په لفظ كښې په جيم باندې صرف فتحه جائزده كسره نه ده.

**د جنازې حكم:-** جنازه واجب على الكفايه ده البته چه كله حاضرشي نوبياپه حاضرينوباندې فرض عين كيږي.

# [ ١ ]بَابُ عِيَادَةِ الْمَرِيضِ وَثَوَابِ الْمَرَضِ]

## دمريض د پوښتنې بيان

**خلاصة الباب:-**

**فيه أربع وسبعون حديثاً مشتملة على ثلاث عشر مسئلة:**

① الأمر بعيادة المريض وكونها حق المسلم: ١، ٢، ٣، ۴، ۶،
② ثواب العيادة: ۵، ٢٨، ٣٠، ۵٢، ۵٩-
③ كيفية العيادة: ٧، ٨، ٣١، ٣۴، ۵٠، ۶٢، ۶۵، ۶۶، ۶٧، ۶٨، ۶٩-
④ ثبوت الرقية والدواء للأمراض: ٨، ٩، ١٠ ، ١١، ١٢ ،١٣، ، ٢، ٣٢، ٣۴، ۶٠-
⑤ فضيلة الصبرعلى الأمراض والمصائب: ١۴، ١۵، ١۶، ٢١، ٢٢، ٢٣، ٢۴، ٢۵، ٢٧، ٣۵، ٣٧، ٣٧، ٣٨، ٣٩، ۴٠ ، ۴٣، ۴۴، ۴۵، ۴۶، ۴٨، ۴٩ ،۵١، ۵۵، ۵۶، ۵٧، ۵٨، ۶١، ۶٢، ۶٣، ۶۴، ٧٠، ٧١، ٧٢، ٧٣، ٧۴-
⑥ أشدية المصائب على المقربين: ١٧، ١٨، ١٩، ٢٠ ، ۴٠، ۴١، ۴٢، ۴۵،
⑦ عدم القدوم إلى أرض الطاعون: ٢۶، ٧۵ -
⑧ العيادة عن الأمراض المخصوصة: ٢٩-
⑨ أسباب المصائب والأمراض: ٣۶، ۴٣، ۴۶-
⑩ لزوم المصائب مع حياة بني آدم: ۴٧-
⑪ عيادة الكفار: ۵٢-
⑫ كيفية الإخبار عن المريض بعد عيادته: ۵۴-
⑬ إطعام المريض ما يشتهي: ۶٩-

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [١٥٢٣] د مريض پوښتنه کول

١٥٢٣ - (١) [١] ١ عَنْ أَبِي مُوسَى - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ٢ "«أَطْعِمُوا الْجَائِعَ، ٣ وَعُودُوا الْمَرِيضَ، ٤ وَفُكُّوا الْعَانِيَ»". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ١ حضرت ابوموسي ﷺ راوي دي چې رسول اکرم ﷺ وفرمايل ٢ په اوږي (يعني مضطر او مسکين او فقير) باندې طعام خوری؛ ٣ د بيمار پوښتنه کوئ؛ ٤ او قيدی (د دښمن د قيد څخه) خلاصوئ. (بخاري)

**حل اللغات:** - ① الْجَائِعَ: اوږي، ② عُودُوا: عيادت او پوښتنه کوئ، ③ فُكُّوا: فك يفك دَنصر نه دَامر صيغه ده دَ قيدی راخلاصول، ④ الْعَانِيَ: دَمعانات نه دي دا هغه قيدی ته وائی چه دَقيد دَ وجې نه ذليل او خوار شي.

**تسهيلات: قوله: أَطْعِمُوا الْجَائِعَ:**

**وږی ته روټی ورکول:** - په دې حديث کښې درې پريشان حال خلقو امداد کول په مسلمانانو باندې لازم ګرځولې شوی دی. په دې کښې اول سړی فقيراومجبورمسلمان دې په هغه خوراك کول په ټولو مسلمانانو باندې فرض کفايه درجه کښې ده په دې شرط چه دغه سړی په حالت دَ اضطرار اومخمصه کښې وی ګنی سنت دی اوکه چرې په محله کښې يوسړی مالدار وی باقی مفلس وی او اوږې سړی داسې مجبور وی چه دَهغه دَمرکيدوخطره وی نوپه دغه مالدار سړی باندې خوراك ورکول فرض عين کيږی. دادَ هغه مقاماتو خبره ده چرته چه دَ هوټل انتظام نه وی ياکه هوټل خو وی ليکن دغه اوږی سړی سره پيسې نه وی. [الکاشف: ٢٩٧/٣]

**قوله: وَعُودُوا الْمَرِيضَ:**

**د بيمار تپوس کول:** - دادَ پوښتنې نه دې. دَمريض تپوس کول سنت او دَ ثواب کار دې ليکن دا په هغه صورت کښې دی چه کله دَ بيمار خوك تپوس کونکې موجودنه وی اودَ خدمت دَپاره څوك موجود نه وی او بيماری سخته وی. هغه وخت په عامو مسلمانانو باندې دَ هغه تپوس کول واجب علی الکفايه دی.

**قوله: وَفُكُّوا الْعَانِيَ:**

**د قيدی څخه مراد:** - ابن ملك فرمائی چه دَدې نه مراد دَ کافرانو په قيد کښې ګرفتار مسلمان وی. په دې حديث کښې چه کوم اوامردی دا دَ لازم علی الکفايه په درجه کښې دی. مطلب دادې چه بعضې مسلمانانو دا کار اوکړو نو باقی نه ذمه ساقط کيږی ګنی ټول به ګناهکار وی. (کذا فی تعليق الصبيح). په يوحديث کښې دی حضورپاك ﷺ فرمائی

(١) اخرجه البخاری فی کتاب المرضی /باب وجوب عيادة المريض (رقم-٥٦٤٩) والدارمی باب: فی باب فکاک الأسير

چاچه څوك قیدی د کافرانو د قیدنه راخلاص کړو نوزه هم پخپله دغه قیدی یم یعنی هغه دومره لوئی ثواب اوګټلو لکه چه زه ئی د قید نه راخلاص کړم.

**[١٥٢٤] د یو مسلمان په بل مسلمان باندې پنځه حقوق**

١٥٢٣ــ()[٣][١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "[٢] «حَقُّ الْمُسْلِمِ عَلَى الْمُسْلِمِ خَمْسٌ: [٣] " رَدُّ السَّلَامِ، [٤] وَعِيَادَةُ الْمَرِيضِ، [٥] وَاتِّبَاعُ الْجَنَائِزِ، [٦] وَإِجَابَةُ الدَّعْوَةِ، [٧] وَتَشْمِيتُ الْعَاطِسِ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] ابوهریره ﷺ راوي دي چې رسول ﷺ وفرمایل [٢] د یو مسلمان په بل مسلمان پنځه حقونه دي [٣] ① د سلام جواب ورکول [٤] ② د بیمار پوښتنه کول [٥] ③ د جنازې سره تلل [٦] ④ د دعوت قبلول [٧] ⑤ د تریچلو (انتوشې، پرنجې، نوړې) جواب ورکول. (بخاري ومسلم)

**حل اللغات:-** ① تَشْمِیتُ: د انتوشې کونکی د الحمد لله په ونیلو باندې یرحمك الله سره جواب ورکولوته تشمیت وائی. ② العَاطِس: انتوشې یعنی پرنجې کونکې،

**تسهیلات: قوله: حَقُّ الْمُسْلِمِ:**

**د سلام اچول:-** دلته په دې حدیث کښې د پنځو حقونو ذکرکړې شوې دې چه په مسلمانانو باندې خپل مینځ کښې لازم کړې شوی دی. راتلونکو روایاتو کښې څه نور حقوق هم ذکر دې. د یومسلمان بل مسلمان ته سلام کول سنت او د ثواب کاردې لیکن د دې سلام جواب ورکول واجب دی. په راتلونکی باب السلام کښې ان شاء الله تفصیل راتلونکې دې. دلته دا حقوق د جنازې په ضمن کښې بالتبع مذکوردی.

**تنبیه:-** په سلام کولوکښې داخیال ساتل پکاردی چه مخې ته سرې فاسق مجاهر نه وی رافضی اوبدعتی نه وی. که چرته داسې وی نو بیا په سلام کښې رومبې والې نه دی کول پکار. بل په داسې حالاتوکښې هم سلام نه دی کول پکار په کوم کښې چه جواب ورکول مشکل کیږی

**قوله: وَعِيَادَةُ الْمَرِيضِ:**

**عیادت کول:-** دې نه هم داسې مریض مراد دې چه مسلمان وی رافضی آغاخانی یا بدعتی یا قادیانی وغیره نه وی ګنی د داسې خلقو جنازه او تپوس کول لازم نه دی.

**قوله: وَإِجَابَةُ الدَّعْوَةِ:**

**د مسلمان دعوت قبلول:-** د خوراك دعوت قبول کول واجب دی لیکن شرط دادې چه دعوت په اختیاری توګه باندې وی او په دعوت کښې غیرشرعی کارونه نه وی اوچاته چه دعوت

---

[١]) اخرجه البخاری فی کتاب الجنائز/باب الأمر باتباع الجنائز (رقم-١٢٤٠) ومسلم کتاب السلام/باب من حق المسلم للمسلم رد السلام (رقم-٤ - (٢١٦٢) وابوداود فی کتاب الأدب/باب فی العطاس (رقم-٥٠٣٠)وابن ماجة کتاب الجنائز/باب ما جاء فی عیادة المریض (رقم-١٤٣٥)

ورکولې شي هغه پخپله په شرعي توګه معذور اومجبور نه وي. اصل وجه داده چه دَدې څيزونو قائم کولوسره په مسلمانانوکښې محبت زياتيږي او دَدغه څيزونو په پريښودو سره نفرت پيدا کيږي. په دې وجه اسلام صحيح لازخودنه اوکړه. اودَ تپوس پوښتنې کولو او سلام کولو اودَ دعوت قبلولوترغيب ئې ورکړې دې. [الکاشف: ٢٩٨/٣.]

**قوله: وَتَشْمِيتُ الْعَاطِسِ:**

**دانتوشي جواب ورکول:**- د انتروشې کونکی د الحمد لله په ونيلو باندې يرحمك الله سره جواب ورکولوته تشميت وائي. دا جواب ورکول هم واجب دی ليکن شرط دادې چه انتروشې کونکې سړې په انتروشی باندې الحمد لله ونيلې وی ګنی څه لازم نه دی. داخبره هم ياد ساتئی چه دَ انتروشی جواب يوځل واجب دې دويم ځل اودريم ځل لازم نه دی.

**[١٥٢٥] دَمسلمان په مسلمان باندې شپږ حقوق**

١٥٢٥-( )[٣] [١] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] «حَقُّ الْمُسْلِمِ عَلَى الْمُسْلِمِ سِتٌّ» [٣] قِيلَ: مَا هُنَّ يَا رَسُولَ اللّٰهِ؟ [٤] قَالَ: «إِذَا لَقِيتَهُ فَسَلِّمْ عَلَيْهِ، [٥] وَإِذَا دَعَاكَ فَأَجِبْهُ، [٦] وَإِذَا اسْتَنْصَحَكَ فَانْصَحْ لَهُ، [٧] وَإِذَا عَطَسَ فَحَمِدَ اللّٰهَ فَشَمِّتْهُ، [٨] وَإِذَا مَرِضَ فَعُدْهُ، [٩] وَإِذَا مَاتَ فَاتَّبِعْهُ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.[١]

**ترجمه:** [١] حضرت ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول ﷺ وفرمايل [٢] د يو مسلمان په بل مسلمان شپږ حقونه دي [٣] عرض وشو چې يا رسول الله ﷺ هغه څه دي؟ [٤] وي فرمايل چې ① هر کله چې ته د يو مسلمان سره ملاقات وکړې نو هغه ته سلام کوې [٥] ② هر کله چې تا څوك (د خپل مدد يا ضيافت د پاره) وبلي نو هغه قبول کړې [٦] ③ هر کله چې ستا څخه څوك خيرخواهي وغواړي نو د هغه په حق کې خيرخواهي وکړه [٧] ④ هر کله چې څوك وترچې ((انتوشې، پرنجې، نوړی) اوکړی او الحمد لله اووائي نو (يرحمك الله ويلو سره) د هغه جواب ورکړه [٨] ⑤ هر کله چې څوک مريض (ناجوړه) شي نو د هغه پوښتنه کوه [٩] ⑥ هر کله چې څوك مړشي نو(د هغه دجنازې مونځ اوددفن کولو دپاره) ورسره لاړ شي. (مسلم)

**حل اللغات:**- ① اِسْتَنْصَحَكَ: استنصاح دَ باب استفعال نه دَ نصيحت طلب کولو په معنی کښې دې. ② عَطَسَ: انتوشې اوکړی، ③ فَشَمِّتْهُ: دهغه دالحمد لله جواب ورکړه يعنی يرحمک الله اووايه، ④ فَعُدْهُ: دهغه عيادت، پوښتنه اوکړه، ⑤ فَاتَّبِعْهُ: ورسره لاړ شه يعنی کفن دفن او جنازه ئې اوکړه.

**تسهيلات: قوله: حَقُّ الْمُسْلِمِ عَلَى الْمُسْلِمِ سِتٌّ:**

**اعتراض:**- په زيربحث حديث کښې شپږوحقونوذکردې خودَدې نه وړاندې په حديث کښې دَ پنځوذکر وو دا تعارض دې دَدې څه جواب دې؟

---

[١] ) اخرجه مسلم فی کتاب السلام/باب من حق المسلم للمسلم رد السلام (رقم) ٥ - (٢١٦٢) والنسائی کتاب الجنائز/باب النهي عن سب الأموات (رقم-١٩٣٨) وابن ماجة کتاب الجنائز/باب ما جاء في عيادة المريض (رقم-١٤٣٣)

**جوابونه:-** ① داتعارض نه دې ځکه چه یوعدد دَ بل عدد منافي نه وی.
② داچه په دې احادیثوکښې حصربیان کول مقصودنه بلکه مختلف مواقع کښې مختلف شیګړې اوحقوق ذکر دې.
③ داچه څنګه حضورپاك ته دَ وحی په ذریعه سره دَحقوق اوخودلې شو. حضورپاك امت ته اوخودل نواول دَ الله تعالی په نیز حقوقو تعداد کم اوخودلې شو روستو اضافه اوشوه.

**[١٥٢٦] دَاووه څیزونو حکم کول اودَاووه منع کول**

١٥٢٦-(١)[٣] [١] وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: [٢] «أَمَرَنَا النَّبِيُّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- بِسَبْعٍ، وَنَهَانَا عَنْ سَبْعٍ. [٣] أَمَرَنَا: بِعِيَادَةِ الْمَرِيضِ، [٤] وَاتِّبَاعِ الْجَنَائِزِ، [٥] وَتَشْمِيتِ الْعَاطِسِ، [٦] وَرَدِّ السَّلَامِ، [٧] وَإِجَابَةِ الدَّاعِي، [٨] وَإِبْرَارِ الْمُقْسِمِ، [٩] وَنَصْرِ الْمَظْلُومِ، [١٠] وَنَهَانَا عَنْ خَاتَمِ الذَّهَبِ، [١١] وَعَنِ الْحَرِيرِ، [١٢] وَالْإِسْتَبْرَقِ، [١٣] وَالدِّيبَاجِ، [١٤] وَالْمِيثَرَةِ الْحَمْرَاءِ وَالْقَسِّيِّ»، [١٥] وَآنِيَةِ الْفِضَّةِ - [١٦] وَفِي رِوَايَةٍ: - وَعَنِ الشُّرْبِ فِي الْفِضَّةِ؛ [١٧] فَإِنَّهُ مَنْ شَرِبَ فِيهَا فِي الدُّنْيَا لَمْ يَشْرَبْ فِيهَا فِي الْآخِرَةِ - مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] اوحضرت براء بن عازب رضی الله عنه فرمايي [٢] چې نبي کريم ﷺ مونږ ته د اوو څيزونو حکم را کړي دي او د اوو څيزونو څخه يې منع کړی يو هغه دا دي چې [٣] ① د مريض پوښتنه کول [٤] ② د جنازي سره تلل [٥] ③ ترڅلو (انتوشي کونکی) ته جواب ورکول [٦] ④ د سلام جواب ورکول [٧] ⑤ د بلونکي دعوت قبلول [٨] ⑥ د قسم خوړونکي قسم پوره کول [٩] ⑦ د مظلوم مدد کول، [١٠] او د کومو څيزونو څخه چې منع فرمايلي ده هغه دا دي ① د سروز رو ګوتمي په ګوته کول [١١] ② ريښميني جامي اچول ③ [١٢] د اطلس جامي اچول [١٣] ④ لاهی (ديباج) جامي اچول [١٤] ⑤ سور زين پوښ استعمالول [١٥] ⑥ د سپينو زرو د لوښو استعمالول [١٦] او په يو روايت کې دا الفاظ هم دي چې د سپينو زرو په لوښو کې د څکلو څخه يې (هم منع فرمايلی ده) [١٧] ځکه چې کوم سړي د سپين زرو په لوښی کې په دنيا کې اوبه څکي په آخرت کې به يې د سپينو زرو په لوښي کې څکل نصيب نه شي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① تَشْمِيت: د انتوشی کونکی د الحمد لله په وئيلو باندي يرحمك الله سره جواب ورکولوته تشميت وائی. ② الْعَاطِس: انتوشي، پرنجي کونکې، ③ إِبْرَارُ الْمُقْسِمِ: دَ قسم خوړونکی قسم پوره کول او ريښتيا کول. ④ خَاتَم: ګتمه، ⑤ الْإِسْتَبْرَق: اعلی ريښموته وائی. ⑥ الدِّيبَاج: د استبراق يعنی اعلی ريښمو پسې دويم نمبر ريښم دی يعنی درميانه ريښم، ⑦ الْمِيثَرَة: هغه زين اوکټي يعنی ګدئ ته وائی په کوم کښې چه مالوچ ډك کړې شوې وی. ⑧ الْقَسِّيّ: د ديباج نه پس

---

[١] اخرجه البخاری فی کتاب الجنائز/باب الأمر باتباع الجنائز (رقم-١٢٣٩) ومسلم باب تحريم استعمال إناء الذهب والفضة على الرجال والنساء، وخاتم الذهب والحرير على الرجل، وإباحته للنساء، وإباحة العلم ونحوه للرجل ما لم يزد على أربع أصابع (رقم) ٣ - (٢٠٦٦) والترمذی کتاب الأدب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی کراهية لبس المعصفر للرجل والقسی (رقم-٢٨٠٩) والنسائی کتاب الجنائز/باب الأمر باتباع الجنائز (رقم-١٩٣٩)

ددې درجه ده، یعنی دا د ریښمو په دریم نمبر کښې دی یعنی بیکاره ریښم. دَ ریښم او کتان نه جوړې شوې جامو ته هم قسی وائی. ⑨آنیة: لوښی یعنی کاسه، پیالی وغیره.

**قوله: والإستبرق**: دا قول دَ حریر یعنی ریښمو قسمونه دی چه دَ ښخودَپاره جائز اودَ سړودَپاره حرام دی.

**قوله: والمیثرة الحمراء**: میثره دَهغه زین اوکتې اولمسی نوم دې په کوم کښې چه مالوچ ډك کړې شوې وی او وړه شان وی کوم چه دَ اس وغیره په زین باندې اچولې شی او په هغې باندې کینی هغې ته نمده هم وائی. دَ دنیادارو عادت دې چه دَ کبر لوئیئی او فخر اومباهات دَ وجې نه دَ ریښمونه میثره جوړولوسره په هغې باندې کینی.

**قوله: والقسی**: دَ ریښم او کتان یعنی ټاسرې سره مخلوط کولوسره یوه کپړه به جوړولې شوه دا دَ قس طرف ته منسوب دې چه په مصرکښې دَ سمندر په غاړه دَ یوځائی نوم دې. په ریښمینه کپړه کښې به دا بیکاره کپړه وه.

**تسهیلات: قوله: وإبرار المقسم**:

**د ابرار المقسم په تفسیر کښې دوه اقوال:-**

①په دې حدیث کښې دَ ابرار المقسم اضافه ده یعنی دَ قسم خوړونکی قسم پوره کول او رښتیاکول مثلاً یوسړی بل سړی ته اووئیل ترکومې پورې چه ته زما خبره نه منې په الله قسم خوراك به اونه کړم. اوس دغه سړی له دَده خبره منل پکاردی دې دَپاره چه دَ هغه قسم پوره شی اوهغه حانث نه شی. په دې کښې شرط دادې چه هغه کاردَ دې سړی په وس او طاقت کښې وی که هغه په دې باندې قادرنه وی نوهغه به مجبوره کولې نه شی.

② بعضې علماؤ دَدې دا مطلب هم بیان کړې دې چه یوسړې بل ته قسم ورکړی چه ته به نن شپه مونږ سره تیره وې یا تاله زه قسم درکوم چه مونږ سره خوراك اوکړه نودَدې سړی دَپاره مستحب دی چه حصار شی اوخوراك اوکړی. دَ حدیث دَ الفاظونه دواړه مطلبونه اخستې شی.

**قوله: ونصر المظلوم**:

**مظلوم سره مدد کول**:- دَ مظلوم نه مراد مسلمان او غیرمسلم ذمی دواړه کیدې شی. اودا امداد کول دَخپل طاقت مطابق واجب دې. بیا داامدادهم عام دې چه قول سره وی که فعل سره یا بل څه صورت وی. "الاتفعلوه تکن فتنة فی الارض وفساد عریض" [الکاشف: ٢٩٩/٣.] یعنی که چرې تا دَ مظلوم امداد اونه کړو نو په زمکه کښې فتنه خور شی او اوږدفساد به خورشی.

**قوله: وَنَهَانَا عَنْ خَاتَمِ الذَّهَبِ:**

**د سرو دپاره د ګوتمې اچولو حکم:-** دَ سرو زرو ګوتې اچول دَ ښځودَپاره جائز دی مګر دَ سړو دَپاره حرام دی. دَ سرو دَ پاره دَ اوسپنې ګوتمه هم ناجائز ده. شوافع ئی جائز ګنړی. علامه خطابی رحمه الله فرمائی چه دَدې څیزونو دَ حرمت اوحلت مختلف درجات دی. چنانچه دَ سړو دَپاره دَ چاندئی ګوتمه جائز ده اودَ سرو زرو او سپینوزرو لوښی دَ سړو او ښځو ټولو دَپاره حرام دی. [الکاشف:٢٩٩/٣.]

**د ریښمو ه لمسی حکم:-** اوس مسئله داده چه که دغه زین او لمسې دَ ریښمو وی نودَ هغې استعمال حرام دې که دَهغې رنګ سور وی اوکه سپین یا تور لیکن که ریښم نه وی نوبیا دَ سور رنګ دَ استعمال نه ممانعت راغلې دې ځکه چه سور رنګ کپړه باندې کیناستل مکروه دی حرام نه دی. چنانچه دَ ارجوان قید هم دَدې دَپاره دې په کوم کښې چه ریښم نه وی. قاضی عیاض رحمه الله فرمائی په حدیث کښې دَ ارجوان لفظ دَ غالب استعمال په توګه راغلې دې ځکه چه عجمو به هم سور رنګ استعمالولو کوم چه به دَ ریښمو وو. [الکاشف:٣.]

**قوله: "لَمْ يَشْرَبْ فِيهَا فِي الْآخِرَةِ:**

**اعتراض:-** دَدې حدیث دَ ظاهری الفاظونه معلومیږی چه دا سړې به جنت ته نه ځی ځکه چه دا نعمتونه دَ جنت دی دکوم نه چه دا سړې محروم شو حالانکه په ارتکاب دَ کبیره ګناه سړې کافر کیږی نه؟

**جوابونه:-** ① علامه مظهری رحمه الله فرمائی چه کوم سړی دَدې استعمال حلال اوګنړلو پوهه شه چه هغه کافرشو اوکه یوسړی حلال اونه ګنړل نوبیا داحدیث په زجر توبیخ تشدید اوتغلیظ باندې محمول دې.

② جنت ته دَ داخلیدو نه پس به څه موده داسړې دَ دغه نعمتونونه محروم پاتې وی دهمیشه دَپاره به نه وی.

③ دا سړې جنت ته داخلیدوسره به دَدې نعمت نه محروم وی اوهغه داسې چه دَدې سړی دَ زړه اودماغونه به دَ دغه څیزونو خیال او تصور ویستلې شی نو نه به ئی خواهش وی اونه به څیز ملاویږی. [الکاشف:٣٠٠/٣.]

**[١٥٢٧] دَعیادت یعنی پوښتنې فضیلت**

١٥٢٧ -(١)[٥] ١ وَعَنْ ثَوْبَانَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ٢ "«إِنَّ الْمُسْلِمَ إِذَا عَادَ أَخَاهُ الْمُسْلِمَ ٣ لم يزل فِي خُرْفَةِ الْجَنَّةِ حَتَّى يَرْجِعَ» "رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

[١] اخرجه مسلم فی كتاب البر والصلة والآداب/باب فضل عيادة المريض (رقم)٤١ - (٢٥٦٨) والترمذی فی كتاب الجنائز عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما جاء فی عيادة المريض (رقم-٩٦٧) وابن ماجة كتاب الجنائز/باب ما جاء فی ثواب من عاد مريضاً (رقم-١٤٤٢)

**ترجمه:** [١] حضرت ثوبان رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] هر كله چې يو مسلمان د يو (مريض) ورور پوښتنه كوي [٣] نو (لكه چې) هغه د جنت په ميوو خوړلو كې (مشغول) وي څو پورې چې هغه (د عيادت څخه) واپس رانه شي. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① خُرْفَةِ: په اصل باغ كښې په ديوال باندې كيناستو سره ميوې شوكول اوډ چانړ كولو په معنى كښې راځي اوكله په مجازى توګه باندې باغ ته هم وائي.

**تسهيلات: قوله: فِي خُرْفَةِ الْجَنَّةِ:**

**وحديث مطلب:** - دلته دَ باغ معنى اخستل زيات واضح دى. يعنى دَ يو مسلمان دَ پوښتنې دپاره تلل عبادت كول اوهلته كيناستل داسې دى چه لكه دا سړې دَ جنت په باغ كښې كيناستل ميوه شوكول اوخورى. تركومې چه په عيادت كښې اوسيږى دَ جنت هم په دې ميوو خوړلو كښې به وى.

**[١٥٢٨] دَ عيادة المريض لولى اهميت**

١٥٢٨ —(٢)[١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [٢] «إِنَّ اللهَ تَعَالَى يَقُولُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ: [٣] يَا ابْنَ آدَمَ، مَرِضْتُ فَلَمْ تَعُدْنِي. [٤] قَالَ: يَا رَبِّ، كَيْفَ أَعُودُكَ وَأَنْتَ رَبُّ الْعَالَمِينَ؟ [٥] قَالَ: أَمَا عَلِمْتَ أَنَّ عَبْدِي فُلَانًا مَرِضَ فَلَمْ تَعُدْهُ، [٦] أَمَا عَلِمْتَ أَنَّكَ لَوْ عُدْتَهُ لَوَجَدْتَنِي عِنْدَهُ؟

**ترجمه:** [١] حضرت ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] الله تعالى جل جلاله به د قيامت په ورځ (بنده ته) فرمايي [٣] چې اې بني آدمه! زه مريض شوم او تا زما پوښتنه ونه كړه؟ [٤] بنده به عرض وكړي چې زما ربه ما ستا پوښتنه څرنګه كړي وی، ته خو د دوارو جهانونو پروردګار يې (او د مريضۍ څخه پاك يې) [٥] الله تعالى جل جلاله به وفرمايي چې آيا تا ته معلومه شوي نه وه چې زما فلاني بنده مريض وو؟ او تا د هغه پوښتنه ونه كړه [٦] تا ته معلومه نه وه كه تا د هغه مريض بنده پوښتنه كړي وی، نو زه (يعني زما رضا) به دې د هغه سره موندلې وی.

[١] يَا ابْنَ آدَمَ، اسْتَطْعَمْتُكَ فَلَمْ تُطْعِمْنِي. [٢] قَالَ: يَا رَبِّ، كَيْفَ أُطْعِمُكَ وَأَنْتَ رَبُّ الْعَالَمِينَ؟ [٣] قَالَ: أَمَا عَلِمْتَ أَنَّهُ اسْتَطْعَمَكَ عَبْدِي فُلَانٌ فَلَمْ تُطْعِمْهُ؟ [٤] أَمَا عَلِمْتَ أَنَّكَ لَوْ أَطْعَمْتَهُ لَوَجَدْتَ ذَلِكَ عِنْدِي؟ [٥] يَا ابْنَ آدَمَ، اسْتَسْقَيْتُكَ فَلَمْ تَسْقِنِي. [٦] قَالَ: يَا رَبِّ، كَيْفَ أَسْقِيكَ وَأَنْتَ رَبُّ الْعَالَمِينَ؟ [٧] قَالَ: اسْتَسْقَاكَ عَبْدِي فُلَانٌ فَلَمْ تَسْقِهِ، [٨] أَمَا إِنَّكَ لَوْ سَقَيْتَهُ وَجَدْتَ ذَلِكَ عِنْدِي؟» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] (بيا به الله تعالى جل جلاله وفرمايى چه) اې ابن آدم! ما ستا څخه طعام (رو ټی وغيره) وغوښته او تا په ما باندې طعام ونه خوړلو؟ [٢] بنده به عرض وكړي چې اې زما ربه ما په تا باندې طعام څرنګه خوړلي وی، ته خو د دوارو جهانونو پروردګار يې (او د څه شي

(١) اخرجه مسلم فى كتاب البر والصلة والآداب/باب فى فضل الحب فى الله (رقم-٤٣ - (٢٥٦٩)

محتاج نه يې)[٣] الله تعالی ﷻ به وفرمايي آيا تا ته ياد نه دي چې ستا څخه زما فلانې بنده طعام وغوښتلو او تا په هغه باندې طعام نه وو خوړلي[٤] آيا تاته معلومه نه وه چه که تا په هغه باندې طعام خوړلي وی، نو هغه به دي (يعني هغه ثواب به دي) بيا ما سره موندلې وو[٥] (بيا به الله تعالی ﷻ فرمايي چه) اي بني آدمه! ما ستا څخه اوبه وغوښتلې او تا په ما باندې اوبه ونه څکلې؟[٦] بنده به عرض وکړي چې اي زما پرورد ګاره ما په تا اوبه څرنګه څکلې وی؟ ته خو د دوارو جهانو پروردګار يې (تا ته خو د اوبو څکلو ضرورت نشته او نه د بل يو شي)[٧] الله تعالی ﷻ به وفرمايي ستا څخه زما فلانې بنده اوبه وغوښتلې او تا په هغه باندې اوبه ونه څکلې [٨] آيا تا ته معلومه نه وه که تا پرې اوبه څکلې وي نو هغه به دي (يعني د هغې ثواب به دي) ما سره موندلې وو. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① اسْتَسْقَيْتُكَ: زه طلب د اوبو کومه ستانه،

**تسهيلات: قوله: لَوَجَدْتَنِي عِنْدَهُ؟:**

**الله تعالی لره د خوشحاله کولو درې مواقع:** - يعنی که دَ دغه مجبورئی عيادت کولونو دَهغه دَ خفه اومات زړه سره به ئی زه ليدلم. يوحديث کښې دی (اناعندالمنکسرة قلوبهم لاجلی). په دې حديث کښې دَ دريوخبرو بيان دې. ① دَ مريض عيادت ② اوګی باندې خوراك کول ③ اوتګی باندې اوبه څکول ليکن ثواب بيانولو کښې فرق دې ځکه چه خوراك اوڅښاك ورکونکې ته اووئيل چه "لوجدت ذلك عندی". يعنی ماسره به دَدې ثواب تاته ملاويدو ليکن عيادت والاته ئی اوفرمائيل چه تابه هلته زه ليدلم.

**اشکال او دهغې جواب:** - په دې حديث کښې په څو مقاماتو کښې داسې الفاظ راغلی دی کوم چه دَ باری تعالی دَصفات منافی دې. نودَدې جواب دادې چه دا ټول هرڅه "مايليق بشأنه" لاندې به وی يعنی چه څه دَالله تعالی دَ شايان شان وی هم هغه مراد دې. [الکاشف: ۳/۳۰۱.]

**[١٥٢٩] مريض ته تسلی ورکول**

١٥٢٩ — ( ) [٧] [١] عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا: [٢] أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ عَلَى أَعْرَابِيٍّ يَعُودُهُ [٣] قَالَ: وَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَخَلَ عَلَى مَرِيضٍ يَعُودُهُ فَقَالَ لَهُ: [٤] «لَا بَأْسَ، طَهُورٌ إِنْ شَاءَ اللَّهُ» [٥] قَالَ: قُلْتَ: كَلَّا، بَلْ هِيَ حُمَّى تَفُورُ، عَلَى شَيْخٍ كَبِيرٍ [٦] تُزِيرُهُ الْقُبُورَ، [٧] فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «فَنَعَمْ إِذًا»

**ترجمه:** [١] د ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت د[٢]ې چې نبي کريم ﷺ (يو ځل) د يو اعرابي (صحرايي) د مريضی د حال پوښتلو د پاره تشريف يوړلو [٣] د حضور ﷺ (دا طريقه وه چه)

[١]) اخرجه البخاري في کتاب المرضی /باب ما يقال للمريض، وما يجيب (رقم-٥٦٦٢)

کله به يي د يو بيمار پوښتنې لره تشريف وړلو نو هغه ته به يي فرمايل ④ چې هيڅ پروا نشته (يعني د بيمارۍ څخه غم مه کوه خکه چه) دا مريض (د ګناهونو څخه) پاکونکي ده که الله ﷻ وغواړي ⑤ نو حضور ﷺ (هغه وقت) هغه ديهاتي ته هم دا وفرمايل چې هيڅ خوف نشته دا مريض (د ګناهونو څخه) پاکونکي ده که الله ﷻ وغواړي ⑥ ديهاتي اوويل چې هيڅ کله نه بلکه دا تبه ده چې په يو بوډا (زاړه) راغلې ده ⑦ نو د قبر زيارت به پرې کوي (يعني مرګ ته يي رسوي)⑦ حضور ﷺ (د دي آوريدو سره) ورته وفرمايل چې ښه دي (که ته داسې ګڼې نو) هم دغه شان به شي. (بخاري)

**حل اللغات:** - ①لَابَأْسَ: هيڅ باک او پرواه نشته، ②طَهُورٌ: پاک به شي (دګناهونونه).

**تسهيلات:**

**قوله: دَخَلَ عَلَى أَعْرَابِيٍّ:**

**فائده:** - د اعراب معنیٰ کلي وال ده په دې سره امت ته دا تعليم ورکړې شو چه اعلیٰ او ارفع انسان له پکاردی چه کله کله دې د ادنیٰ حقير کمزور فقير تپوس هم کوی لکه څنګه چه نبی کريم ﷺ د ناپيژندګلو کلی وال تپوس اوکړو.

**قوله:** قال كلا:

**د نبی کریم نصیحت نه قبلول:** - دا شار شپړ جټ کلی وال وو چه د تپوس پوښتنې د آداب د تعلق ساتلو د آداب نه پوره خبر نه وو. هغه د حضورپاك نصيحت قبول نه کړو بلکه د بې صبرئی مظاهره کولوسره لکه د کاهنانو په شان ئی مسجع کلام استعمال کړو او هغه نعمت ئی قبول نه کړو چه حضورپاك څه اوفرمائيل چه زه تيك يم اوګناهونه به مې اووينځلې شی بلکه په هغه بوډها باندې خو د تبې زور وو چه هم اوس به قبرونه د هغه زيارت اوکړی يعنی زردې چه دې به د قبر زيارت اوکړی يعنی مړبه شی.

**قوله:** فنعم اذا:

**د فنعم اذا مطلب:** - دلته د دغه سرې د جواب پوره مضمون دې يعنی ما تاته د صبر کولواووئيل او تبه مې د اجر او ثواب ذريعه اوخودله مګر تا هغه قبول نه کړه نوتيك ده تبه به ستا د ګناهونو کفاره نه جوړيږی اوته به مړشې. حضورپاك دغه کلی وال غصه کړو نو رسول الله ﷺ دا کلام ارشاد اوفرمائيلو. "فنعم اذا" ترجمه داده يعنی ښه ده چه که ته هم دا ګڼړې نودغه شان صحيح ده، "اذا" په يوه نسخه کښې "اذن" نون سره دې.

**[١٥٣٠] د مریض د پاره د شفاء دعا کول**

١٥٣٠—(١)[٨] ١ وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهَا- قَالَتْ: ٢ «كَانَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- إِذَا اشْتَكَى مِنَّا إِنْسَانٌ، مَسَحَهُ بِيَمِينِهِ، ٣ ثُمَّ قَالَ: " أَذْهِبِ الْبَاسَ رَبَّ النَّاسِ، ٤ وَاشْفِ أَنْتَ الشَّافِي ٥ لَا شِفَاءَ إِلَّا شِفَاؤُكَ، شِفَاءً لَا يُغَادِرُ سَقَمًا» "مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ ام المؤمنين بي بي عایشه صدیقه رضي الله عنها فرمایي ٢ چې د رسول الله ﷺ (دا طریقه وه چه) په مونږ کې به څوك مریض شو نو حضور ﷺ به په هغه خپل ښي لاس مبارك راتیرولو ٣ او دا (دعا) به یې کوله (ترجمه) اي د خلقو پروردګاره مریض لرې کړې ٤ او شفاء ورکړې ته شفاء ورکونکې یې ٥ ستا څخه سوا د هیچا شفاء داسې نشته چې مریض لرې کړي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① مَسَحَهُ: راښکلوبه ئې په هغه، ② أَذْهِبْ: بوځې، لرې کړې، ③ الْبَاسَ: بیماری، ④ يُغَادِرُ: چه لرې کړی، ⑤ سَقَمًا: بیماری.

**تسهیلات: قوله: مَسَحَهُ بِيَمِينِهِ:**

کله چې به نبی کریم ﷺ د یو مریض عیادت کولو نو نبی کریم ﷺ به خپل ښې لاس مبارك په مریض باندې راښکلو او دا پورتنی دعا به ئې وئیله. (اذهب الباس، ای شدة المرض) اې ربه! د مرض شدت لرې کړه.

**قوله: أَذْهِبِ الْبَاسَ:**

**د مرض د شدت لرې کولو دعا:** - کله چې به نبی کریم ﷺ د یو مریض عیادت کولو نو نبی کریم ﷺ به خپل ښې لاس مبارك په مریض باندې راښکلو او دا پورتنی دعا به ئې وئیله.

**قوله: لَا شِفَاءَ إِلَّا شِفَاؤُكَ، شِفَاءً لَا يُغَادِرُ سَقَمًا:**

**د مذکوره جملې مطلب:** - شفاء اوسقماً مفعول مطلق دي. د ((شفاءک شفاء)) مطلب دا دې چې د ډاکتراوطبیب دوائی بیمار او زنځور ته ترهغه وخته پورې شفاء نشی ورکولې ترڅو پورې چې ستاسو قدرت ورسره شامل حال نه وی.

**[١٥٣١] په مریض باندې دم اچول**

١٥٣١—(٢)[٩] ١ وَعَنْهَا قَالَتْ: ٢ كَانَ «إِذَا اشْتَكَى الْإِنْسَانُ الشَّيْءَ مِنْهُ ٣ أَوْ كَانَتْ بِهِ قَرْحَةٌ أَوْ جُرْحٌ ٤ قَالَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- بِإِصْبَعِهِ: ٥ "بِسْمِ اللهِ، تُرْبَةُ أَرْضِنَا بِرِيقَةِ بَعْضِنَا ٦ لِيُشْفَى سَقِيمُنَا، بِإِذْنِ رَبِّنَا»

---

(١) اخرجه البخاری فی کتاب المرضی/باب دعاء العائد للمريض (رقم-٥٦٧٥) وابوداود فی کتاب الطب/باب کیف الرقی (رقم-٣٨٩٠) والترمذی کتاب الجنائز عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ ما جاء فی التعوذ للمریض (رقم-٩٧٣) وابن ماجة کتاب الجنائز/باب ما جاء فی ذکر مرض رسول الله صلی الله علیه وسلم (رقم-١٦١٩)

(٢) اخرجه البخاری فی کتاب الطب/باب رقیة النبی صلی الله علیه وسلم (رقم-٥٧٤٥) ومسلم کتاب السلام/باب استحباب الرقیة من العین والنملة والحمة والنظرة (رقم-٥٤ - (٢١٩٤) وابوداود کتاب الطب/باب کیف الرقی (رقم-٣٨٩٥) وابن ماجة کتاب الطب/باب ما عوذ به النبی صلی الله علیه وسلم، وما عوذ به (رقم-٣٥٢١)

". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ بي بي عايشه صديقه رضي الله عنها فرمايي ٢ چې هر کله يو سړي به د خپل بدن په يوه حصه کې د درد شکايت کولو ٣ يا د هغه د بدن په يو آندام به دانه ‹وړکی دانه يا چينجکی› يا زخم وو ٤ نو نبي کريم ﷺ به د خپلې ګوتې په اشارې سره دا دعا کوله ٥ د الله تعالی په نامه سره زه برکت حاصلوم، دا خاوره زمونږ د بعضو سړو د خلې د لاړو سره ککړه ده ٦ ‹دا مونږ څکه وايو چه› د پروردګار په حکم سره زمونږ مريض روغ او جوړ شي. ‹بخاري مسلم›

**حل اللغات:** - ① قَرْحَةٌ: دانه، ② جُرْحٌ: زخم، ③ تُرْبَةٌ: خاوره، ④ رِيقَةٌ: لاړې،

**تسهيلات:**

**قوله: بِأُصْبُعِهِ:** يعني په ګوته سره به ئې اشاره کوله او دَ تبرك په توګه به ئې بسم الله وئيله.

**قوله: تُرْبَةُ أَرْضِنَا:** ممکن ده چه دا خاص دَمديني زمکه مراد وی اوکيدې شی چه عام زمکه مراد وی.

**د دم اچولو حکم:** - علامه قرطبي رحمه الله فرمائی چه دَدې حديث نه ثابته شوه چه دَهرقسم درددَپاره دم کول او پوك وهل جائز دی اودا خبره په صحابه کرامو کښې عام وه اوټولو ته دَدې علم وو. علامه اشرف علي تهانوي رحمه الله فرمائی دَدې حديث نه دَ دم پوك وهل ثابتيږی په دې شرط چه په دې کښې څه دَ جادو کلماتو استعمال نه وی.

علماؤ ليکلی دی چه دکومو کلماتو معنی واضح نه وی يا دَ شرك په معنی سره وی په داسې کلماتو باندې دم کول هم جائزنه دی. اوکه حضورپاك دَ يو دم اجازت ورکړې وی او په هغې کښې څه دَ شرك کلمه هم نه وی مګر معنی ئی معلومه نه وی هغه جائز دی لکه حضورپاك دَ لړم دَمنتر اجازت ورکړې دې. "شجة قرنية ملحة بحر". دَ حضورپاك دَ دم کولو طريقه داسې وه چه هغوی به اول په ګوته باندې دَ خلې لاړې مبارکې لګولې بيابه ئی دا په خاوره کيخوده کله چه به دې سره خاوره اولګيده نودا به ئی دَ بيمار دَ درد په ځائی باندې کيخوده او په حديث کښې ذکرشوې دعابه ئی وئيله. بهرحال دغه پورتنې عمل په يقين سره کول پکاردی فائده به ضرور کيږی.

**د دم د اثر يوه واقعه:** - يوځل پخوا زمانه کښې يو الله والا يوبيمار دم کولو چه په دې کښې يو مشهور فلسفی راغلو او فوری ئی دَ مسخرې په توګه اووئيل "اذاترفض فتلاشی" يعنی دا پوکې وهې نودا پوکې وهل خو هوا ده کله چه دَخلې نه اوځی نوختمه به شی دَدې څه اثر وی دغه الله والابنده دې فلسفی ته دَ مور پلار ډير سخا کنځل اوکړه هغه ډير غصه شو او مخ ئی تك سور شو دَ سټ رګونه ئی اوپړسيدل. هغه الله والاورته اووئيل په تا څه چل اوشو او دا دومره غصه ولې؟ دا سترګې دې ولې دومره سرې شوې؟ هغه ورته وئيل چه لاتپوس

هم كوي دا تا څومره سختي كنځلي اوكړي الله والا ورته اووئيل "اذاترفض فتلاشی" يعنى داكنځلي خو هم هوا ده دَخلي نه وتلو سره ختميږي. فلسفي وئيل نه جي زما په بدن باندې خو ډير زيات اثر اوشو. نوبيا ورته الله والا اووئيل چه كله زما دكلام او خبرې په تا باندې دومره اثر اوشو نودَ الله تعالى په كلام كښې به څومره لوئى اثر وى؟

**[١٥٣٢] په قرآنى آياتو نوسره د دم كولو جواز**

١٥٣٢-()[١٠] ١ وَعَنْهَا قَالَتْ: ٢ «كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا اشْتَكَى نَفَثَ عَلَى نَفْسِهِ بِالْمُعَوِّذَاتِ ٣ وَمَسَحَ عَنْهُ بِيَدِهِ، ٤ فَلَمَّا اشْتَكَى وَجَعَهُ الَّذِي تُوُفِّيَ فِيهِ، ٥ كُنْتُ أَنْفِثُ عَلَيْهِ بِالْمُعَوِّذَاتِ الَّتِي كَانَ يَنْفِثُ، ٦ وَأَمْسَحُ بِيَدِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -» - مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. وفى رواية لمسلم: قالت: كان اذا مرض احد من اهل بيته نفث عليه بالمعوذات

**ترجمه:** ١ بي بي عايشه صديقه رضي الله عنها فرمايي ٢ چې نبي كريم ﷺ چې به مريض شو نو معوذات ويلو سره به يې په ځان دم كولو ٣ او خپل لاس به يې په ځان (تر كومه چې رسيدو به) تيرولو ٤ نو هر كله چې حضور ﷺ په هغه مريضۍ كې مبتلا وو په كوم كې چې وفات شو ٥ نو ما به معوذات ويلو سره په حضور ﷺ دم كولو ځرنګه چې حضور ﷺ به پخپله معوذات ويلو سره په ځان دم كولو ٦ [دغه شان ما به معوذات ويلو ويلو سره د حضور ﷺ په لاسونو مباركو دم كولو او بيا به د حضور ﷺ دواړه لاسونه مبارك به مې د حضور ﷺ په بدن مبارك ګرځول]. او مسلم په روايت كښې دى چې كله به ناجوړه شو يو كس د نبى عليه السلام د كورد خلقو څخه نوبوك وهلو به نبى عليه السلام په هغه باندې معوذات.

**حل اللغات:-** ① نَفَثَ: دم سره توكانړې ملاوول اودَ توكانړو څاڅكى وركولو ته نفث وائى يعنى دمول. ② وَجَعَهُ: درد، تكليف.

**تسهيلات: قوله : نَفَثَ عَلَى نَفْسِهِ بِالْمُعَوِّذَاتِ:**

**په سورة فلق اوناس باندې د معوذتين د اطلاق وجه:-** دې نه سورت فلق او سورت الناس مراد دي. دا دوه سورتونه دى په حديث كښې دا دَ جمع په صيغه سره ياد كړې شوى دى. دا دَدې سورتونو دَ آياتونودَ وجې نه دى كوم چه يوولس دى. بعضې معوذات كښې قل هو الله احد هم شامل كړې دې لهذا دَ جمع صيغه صحيح ده. بعضې سورت الكافرون هم شامل كړې دي. [الكاشف]

**قوله : بِيَدِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:**

**د عايشې رضي الله عنها د كمال ادب مظاهره:-** دادَ كمال ادب اوكمال بركت طرف ته اشاره ده چه

[١] اخرجه البخارى فى كتاب الطب/باب رقية النبى صلى الله عليه وسلم (رقم-٥٧٤٥) ومسلم كتاب السلام/باب استحباب الرقية من العين والنملة والحمة والنظرة (رقم-٥٤ - (٢١٩٤) وابوداود كتاب الطب/باب كيف الرقى (رقم-٣٨٩٥) وابن ماجة كتاب الطب/باب ما عوذ به النبى صلى الله عليه وسلم، وما عوذ به (رقم-٣٥٢١)

عائشه صدیقه رضي الله عنها به پخپله وئیل لیکن کوم برکت چه دحضورپاك په لاسونو مبارکوکښې وو هغه بل ځائی کښې نه وو. لهذا هم د حضورپاك په لاسونو مبارکوباندې به ئې دم پوك وهلو اودحضورپاك مبارك لاس به ئې د هغوی په بدن مبارك باندې راښکلو. دَدې حدیث نه دم کول ثابتیږی. انکار کونکی بې کاره خلق دی. [ الکاشف: ٣/٣٠٥.]

**[١٥٢٢] دَ هرقسم دردد ختمولودَپاره نبوی دعا**

١٥٢٢-( )[١] [١] «وَعَنْ عُثْمَانَ بْنِ أَبِي الْعَاصِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ -: [٢] أَنَّهُ شَكَا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَجَعًا يَجِدُهُ فِي جَسَدِهِ، [٣] فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " ضَعْ يَدَكَ عَلَى الَّذِي يَأْلَمُ مِنْ جَسَدِكَ [٤] وَقُلْ: بِسْمِ اللَّهِ ثَلَاثًا، وَقُلْ سَبْعَ مَرَّاتٍ: [٥] أَعُوذُ بِعِزَّةِ اللَّهِ وَقُدْرَتِهِ [٦] مِنْ شَرِّ مَا أَجِدُ وَأُحَاذِرُ " [٧] قَالَ: فَفَعَلْتُ. فَأَذْهَبَ اللَّهُ مَا كَانَ بِي». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] د حضرت عثمان رضي الله عنه ابن ابي العاص په باره کې روایت دي[٢] چې هغه (یو ځل) رسول الله ﷺ ته د درد شکایت اوکړو چې هغه د خپل بدن په یوه حصه کې محسوسولو [٣] حضور ﷺ هغه ته وفرمایل چې ستا د بدن په کومه حصه کې چې درد دي هلته خپل لاس کیږده [٤] (اول) درې ځله بسم الله الرحمٰن الرحیم اووایه او (بیا) اووه ځله دا (کلمات) اووایه [٥] (ترجمه) زه د الله جل جلاله ښخه د هغه د عزت او د هغه د قدرت په ذریعه پناه غواړم [٦] د هغه بدئ (یعني درد) ښخه چې زه یي (دا وقت) محسوسوم او (آینده د) دې د ډیریدو ښخه) یریږم، [٧] حضرت عثمان رضي الله عنه فرمایي چې د حضور ﷺ د ارشاد مطابق ما دغه شان وکړل نو الله تعالی جل جلاله زما تکلیف لرې کړو. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① وَجَعًا: درد ، تکلیف، ② ضَعْ: کیږده، ③ أُحَاذِرُ: ویریږم.

**تسهیلات:**

**قوله: ضَعْ يَدَكَ عَلَى الَّذِي يَأْلَمُ مِنْ جَسَدِكَ:**

**دخپل ځان پخپله د دم اچولوجواز:** - د حدیث مبارك دادې چې د حضور ﷺ په وړاندې حضرت عثمان بن ابی العاص رضي الله عنه د یو بیمارۍ د تکلیف شکایت اوکړو. نبی کرم ﷺ حضرت عثمان رضي الله عنه ته اوفرمائیل چې د تکلیف په ځائې باندې لاس کیږده او دا مذکوره دعا اووایه. په دې باندې حضرت عثمان رضي الله عنه فرمائی چې ما هم دا سې اوکړل نو زما تکلیف ختم شو. ددې نه معلومه شوه چې انسان خپل ځان هم دم کولې شی بلکه دا بهتر دی.

[١] اخرجه مسلم فی کتاب السلام/باب استحباب وضع یده علی موضع الألم مع الدعاء (رقم-٦٧ - (٢٢٠٢)وابوداود فی کتاب الطب/باب کیف الرقی (رقم-٣٨٩١)وابن ماجة کتاب الطب/باب ما عوذ به النبی صلی الله علیه وسلم، وما عوذ به . (رقم-٣٥٢٢)

## [١٥٢٤] دَ حضرت جبرائيل عليه السلام دم

١٥٢٤ - (١)[١٢] ① وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ -: ②«أَنَّ جِبْرِيلَ أَتَى النَّبِيَّ فَقَالَ: ③ يَا مُحَمَّدُ، أَشْتَكَيْتَ؟ فَقَالَ: "نَعَمْ". ④ قَالَ: بِسْمِ اللَّهِ أَرْقِيكَ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ يُؤْذِيكَ، ⑤ مِنْ شَرِّ كُلِّ نَفْسٍ، أَوْعَيْنِ حَاسِدٍ اللَّهُ يَشْفِيكَ، ⑥ بِسْمِ اللَّهِ أَرْقِيكَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه راوي دي ② چې (يو ځل) حضرت جبرايل عليه السلام نبي كريم صلى الله عليه وسلم ته راغې او (د مزاج پرسي په طور يې) اوويل ③ چې اي محمده! (صلى الله عليه وسلم) آيا ته ناروغه يې؟ حضور صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل چې هو ④ جبرايل عليه السلام اوويل چې د الله جل جلاله په نامه سره په تا دم اچوم د هر هغه څيزونو نه چې تا ته تكليف رسوي ⑤ او د هر هغه سړي د بدي او هر حاسد د سترګي (نظر) څخه دي الله تا ته شفاء دركړي ⑥ د الله په نامه سره په تا دم اچوم. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① أَرْقِيكَ: دَ رقيه نه دي دَ دم كولو په معنى كښې دي.

**تسهيلات:**

**قوله: مِنْ شَرِّ كُلِّ نَفْسٍ، أَوْعَيْنٍ:**

**د او په نوعيت كښې دوه اقوال:** - دا جمله دَ ماقبل جملي سره بدل واقع شوې دي. دَ نفس نه خبيث نفس مراد دي.

① په دې جمله كښې دا احتمال دې چه دَ "او" لفظ دَ شك دپاره وى ځكه چه راوى ته په نقل كولو كښې شك شوې چه حضوراكرم كوم كوم لفظ اداكول فرمائيلې وو.

② په تعليق الصحيح كښې ليكلى دى چه ښكاره خبره داده چه "او" حرف دَ تنويع دپاره دې.

**د نفس په مصداق كښې دوه اقوال:** - ① بل خوا نفس نه دَ انسان نفس مراد اخستې شى

② داهم ممكن ده چه دَ نفس نه سترګه مراد وى ځكه چه په سترګه باندې دَ نفس اطلاق كيږى. ونيلى شى "رجل منفوس" يعنى دَ چابدنظر ورته اولګيدو په دې صورت كښې "اوعين" به دَ تاكيد دپاره شى.

**قوله: بِسْمِ اللَّهِ أَرْقِيكَ:** داجمله دَ مبالغه په توګه راسردوباره كړې ده.

**د دعا د قبوليت بعضې ضروري خبرې:** - پورتنى حديث كښې دَ رسول الله صلى الله عليه وسلم عجيبه دعاذكرده چه دَ هرقسم دردونودپاره اكسيردې. په دې حديث كښې دَ حضرت جبرائيل عليه السلام هغه دعامذكور ده كومه چه هغوى دَ حضورپاك دَ بيمارئى په وخت دَ علاج په توګه لوستلوسره په حضورپاك باندې دم كړې وه. دا هم اكسيرحيات دې مګردَ دې دعاګانودپاره

[1]) اخرجه مسلم فى كتاب السلام/باب الطب والمرض والرقى (رقم-٤٠ - (٢١٨٦))وابن ماجة كتاب الطب/باب ما يعوذ به من الحمى (رقم-٣٥٢٧)

يو خو د يقين كامل ضرورت دي ځكه چه د تردد او شبه په وخت هيڅ يوه دعا اثر نه كوي. دويمه خبره دا ضروري ده چه سړي دې دا دعاګانې هروخت لولي. دا نه چه يو ځل دوه ځل لوستلو سره د اثر انتظار شروع كړي ځكه چه په دنياوي دوايانو كښې تجربه داده چه دا يو شان استعمالولې كيږي نو د روحاني دعاګانو د پاره هم ضروري ده چه كم نه كم سړي د اووه ورځو پورې او زيات نه زيات څلويښتو ورځو پورې د دې استعمال اوكړي او بيا دې د اثرانتظار كوي دا دعاګانې كله بې اثره نه ځي. مفسرينو ليكلي دي چه د حضرت موسى عليه السلام دعا الله تعالى قبوله كړه مګر د دې اثر څلويښت كاله نه پس ښكاره شو.

**[١٥٢٥] د بد نظرې څخه د حفاظت مجربه استعاذه**

١٥٢٥-()[١٣] ١ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- قَالَ: ٢ «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يُعَوِّذُ الْحَسَنَ وَالْحُسَيْنَ: ٣ " أُعِيذُكُمَا بِكَلِمَاتِ اللَّهِ التَّامَّةِ، ٤ مِنْ كُلِّ شَيْطَانٍ وَهَامَّةٍ، ٥ وَمِنْ كُلِّ عَيْنٍ لَامَّةٍ " ٦ وَيَقُولُ: " إِنَّ أَبَاكُمَا كَانَ يُعَوِّذُ بِهَا إِسْمَاعِيلَ وَإِسْحَاقَ» . رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ، ٧ وَفِي أَكْثَرِ نُسَخِ " الْمَصَابِيحِ ": " بِهِمَا " عَلَى لَفْظِ التَّثْنِيَةِ.

**ترجمه:** ١ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمايي ٢ چې رسول الله صلى الله عليه وسلم به حضرت حسن او حضرت حسين رضي الله عنهما د دى الفاظو په ذريعه (د الله جل جلاله) په پناه كې وركول ٣ زه تاسو د كلمات الله تعالى په ذريعه چې كامل دي ٤ د هر شيطان د بدي، هر هلاكوونكي هر زهرجن ځاروى ٥ او د هر نظر لګونكي سترګي څخه (د الله جل جلاله) په پناه كې وركوم. ٦ او حضور صلى الله عليه وسلم به دا (هم) فرمايل چې ستاسو پلار (حضرت ابراهيم عليه السلام) به د دې كلماتو په ذريعه خپل بچي حضرت اسماعيل عليه السلام او حضرت اسحاق عليه السلام د الله جل جلاله په پناه كې وركول (بخاري) ٧ د مصابيح په اكثرو نسخو كې (د لفظ بها په ځاي) بهما د تثنيه په ضمير سره راغلي دي. (بخاري)

**حل اللغات:** - ① يُعَوِّذُ: د الله په پناه كښې وركول، يعنى دمول. ② التَّامَّةِ: كامل او پوره (دهر نقص نه پاک دی). ③ شَيْطَانٍ: دې نه مراد انسانى او جنى دواړه قسم شيطانان مراددی. ④ هَامَّةٍ: د دې جمع "هوام" ده. دا هرهغه ځناورته وائى په كوم كښې چه شر او خراب قسم زهر وى. ⑤ لَامَّةٍ: لَمْ وَالَمْ دميم شد سره، د جمع كولو په معنى كښې راځي.

**تسهيلات: قوله: "وَهَامَّةٍ"** په ميم باندې شد دې، په حشرات الارض كښې چه په كومو ځيزونو كښې زهر قاتل وى هغې د پاره هامه وئيلى كيږى كله مطلق حشرات الارض باندې د هوام اطلاق كيږى.

---

[1] اخرجه البخارى فى كتاب أحاديث الأنبياء/باب قول الله تعالى: {واتخذ الله إبراهيم خليلًا_ [النساء: ١٢٥]}(رقم-٣٣٧١) والترمذى كتاب الطب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-٢٠٦٠) وابن ماجة كتاب الطب/باب ما عوذ به النبى صلى الله عليه وسلم، وما عوذ به (رقم-٣٥٢٥)

دَ "وهامر" مطلب دادي "اي من شرهما" يعنى دَ شيطان اوانسان دواړو دَ شر نه پناه غواړم. دلته دَ يوبزرګ يوه جمله ډيره مفيد اوكارآمد ده فرمائى چه كله چرته ځې نودا دعا كوه اې الله ستادَ هرمخلوقاتو دَ هرمكروه نه ستا پناه غواړم.

**قوله**: لَامَّةٍ "اي جامعة للشرعلى المعيون، لامه په اصل كښې دَ باب افعال نه ملمه اسم فاعل وو ليكن دَهامه مناسبت او سجع دَ وجې نه لامه اووئيلې شو.

**قوله**: يُعَوِّذُ الْحَسَنَ: حضوراكرم ﷺ په توګه دَ تعوذ او پناه دا دعا وئيلوسره حضرت حسن اوحضرت حسين رضي الله عنهما دم كړې دې. وړاندې يو روايت راځى چه حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنه به دَدې تعويذ جوړولوسره دَ وړو ماشومانو په غاړه كښې اچولو دې نه دَ تعويذاتودَ جائز كيدو ثبوت ملاويږى.

**قوله**: بِكَلِمَاتِ اللهِ:

**د ,, كلمات،، څخه مراد**: - دكلمات نه دلته دَ الله تعالى ښكلې نومونه مراد دى. هسې كلمات الله دَ توحيد په دلائلو او الله تعالى په خصوصى صفاتو باندې يادولې شى اودَ الله تعالى په معلوماتو باندې هم يادولې شى.

**قوله**: "التَّامَّةِ" دَ الله تعالى كلمات ته تامه ځكه اوفرمائيلې شو چه دَ انسان په كلمات كښې په يونه يو اړخ كښې نقص كيدې شى اودَ الله تعالى كلمات دَهرنقص نه پاك دى په دې وجه كامل اومكمل دى.

**قوله**: وَفِي أَكْثَرِ نُسَخِ "الْمَصَابِيحِ":

**د نسخو اختلاف**: - په دې كلام سره دې خبرې طرته اشاره كول دى چه مصابيح په اكثر نسخو كښې "بها" دَمفرد ضمير په ځائى دَ "بهما" تثنيه ده. علامه طيبى رحمه الله فرمائى چه دَتثنيې ضمير مراد كول بې ځايه تكلف دې دَ يوكاتب نه سهوشوې ده دلته "بها" دَمفرد ضمير دې كوم چه په دې دعاكښې دَ كلمات طرف ته راګرځى. [ الكاشف: ٣٠٤/٣]

**[١٥٣٦] د الله تعالى د چا د پاره د خير اراده كول**

١٥٣٦ — (١) [١٣] ١ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ٢ "«مَنْ يُرِدِ اللَّهُ بِهِ خَيْرًا يُصِبْ مِنْهُ»". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه**: ١ حضرت ابوهريره رضي الله عنه راوي دې چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ الله تعالى جل جلاله چې كوم سړي ته د خير رسولو اراده كوي نو هغه (د هغه د خير د حاصلولو د پاره) په مصيبت كې مبتلا كوي. (بخاري)

**حل اللغات**: - ① يُصِبْ: دَ باب افعال نه ده، په مصيبت كښې دَ اخته كيدو په معنى كښې ده.

---

(١) اخرجه البخارى فى كتاب المرضى /باب ما جاء فى كفارة المرض (رقم-٥٦٤٥)

**تسهیلات: قوله: يُصِبْ مِنْهُ:** دا صیغه علامه طیبی رحمه الله فرمائی چه په صاد باندې فتحه زیاته بهتر ده. په دې صورت کښې دا دَ مجهول صیغه ده. علامه میرك رحمه الله فرمائی چه دا صیغه مجزوم ده دَ شرط په جواب کښې ده. [الکاشف: ٣/٢٠٧.]

**یعنې تکلیف د درجاتو پورته کیدو ذریعه:** - قاضی عیاض رحمه الله فرمائی چه دَ حدیث مطلب دادې چه الله تعالی کله یو بنده سره دَ نیکئی اراده غواړی نوهغه په مصیبت کښې راګیر کړی دې دَپاره چه په دې سره دَ هغه ګناه اووینځلې شی او درجات ئې اوچت شی.
بهرحال مصیبت عام دې که دَ بیمارئی په صورت کښې وی یا دَ څه حادثه وی یا دَ څه غم وی اودا ټول صورتونه انسان ته صرف په دې وجه نه پیښیږی چه دا دَ الله تعالی دَ طرف نه دَ څه عذاب په شکل کښې وی بلکه اکثر وخت الله تعالی دَ یوسړی دَ درجاتو اوچتولودَپاره په هغه باندې مصیبتونه راولی دې دَپاره چه هغه صبر اوکړی او درجات حاصل کړی. نوچه کوم سړې په مصیبت راتلو باندې صبر کوی او الله تعالی نه شکایت اوګیلې نه کوی نو دا دَدې خبرې دلیل وی چه دامصیبت دَهغه دَپاره دَ رحمت سبب وی اوکه چرې هغه شکایت اوګیلې کوی چغې صورې وی جزع اوفزع کوی نودا دَ دې خبرې علامت دې چه دا مصیبت رحمت نه بلکه دَهغه دَپاره زحمت اوعذاب دې. (بحواله مظاهرحق، اشعة المعات)
بهرحال نه هرمصیبت وهلې محبوب وی او نه هرمصیبت وهلې معتوب وی.

**[١٥٣٧] دَ مؤمن هرمصیبت دَ اجر او ثواب سبب کیدل**

١٥٣٧-([1])[١٥] [١] وَعَنْهُ، وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [٢] "«مَا يُصِيبُ الْمُسْلِمَ مِنْ نَصَبٍ، وَلَا وَصَبٍ، وَلَا هَمٍّ، وَلَا حُزْنٍ، وَلَا أَذًى، وَلَا غَمٍّ، [٣] حَتَّى الشَّوْكَةُ يُشَاكُهَا، [٤] إِلَّا كَفَّرَ اللَّهُ بِهَا خَطَايَاهُ»" مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] حضرت ابوهریره او حضرت ابوسعید خدري رضي الله عنهما راویان دي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل [٢] مسلمان ته چې کله څه پریشاني، درد، تکلیف، حزن، ایذا او غم رسي [٣] تر دې که ازغي یې په پښه کې مات شي [٤] نو الله تعالی جل جلاله دهغې په ذریعه دهغه ګناهونو نه لرې کوي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① يُصِيبُ: دَ باب افعال نه ده، په مصیبت کښې دَ اخته کیدو په معنی کښې ده. ② نَصَبٍ: نصب دَهغه تکلیف نوم دې کوم چه دَ انسان په اندامونو باندې راځی لکه زخم وغیره چه وی. ③ وَصَبٍ: اوږدې بیمارئ ته وائی. ④ هَمٍّ: هغه غم ته وائی چه سړې ویلی کوی، کمزورې کوی. ⑤ حُزْنٍ: دَ زړه هغه پریشانی چه دَ "هَمّ" نه لږ شان سپك وی دَ کوم سبب چه معلوم نه وی صرف

---

[1]) اخرجه البخاری فی کتاب المرضی/باب ما جاء فی کفارة المرض (رقم-٥٦٤١) ومسلم کتاب البر والصلة والآداب/باب ثواب المؤمن فیما یصیبه من مرض، أو حزن، أو نحو ذلک حتی الشوکة یشاکها (رقم) ٥٢ - (٢٥٧٣) والترمذی کتاب الجنائز عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء فی ثواب المریض (رقم-٩٦٦)

پریشانی وی. ⑥أَذًى: هره بیماری چه نفس ورسره موافقت نه خوری یعنی تولوبیماروته شامل دي ⑦غَمٌّ: هغه تکلیف چه دانسان په زړه باندې راځی مثلاً مال اولاد ضائع کیدو باندې چه کوم غم راځی هغې ته غم وائی مثلا "مغمى عليه" یعنی بې هوشه جوړوی. ⑧الشَّوْكَةُ: ازغی، ⑨كَفَّرَ: رژوی،

**تسهیلات: قوله: وَلَاحُزْنٍ**: دا دَ زړه دَ پریشانئ نوم دې چه دَ "هم" نه لږ شان سپك وی دکوم سبب چه معلوم نه وی صرف پریشانی وی یا مفسرین لیکی چه خوف او حزن کښې دا فرق دې چه حزن په مافات باندې وی او خوف په مایاتی باندې وی یعنی مثلاً رور ئی بیمار دې دَهغه دَ مرګ چه کوم فکر دې داویره ده خوف دې اوکله چه مړ شی او روستو کوم خفګان وی دا حزن دې. [الکاشف: ٣٠٨/٣.]

**قوله: حَتَّى الشَّوْكَةُ يُشَاكُهَا:**

**د ترکیب حل**:-شوکة ازغی ته وائی دا لفظ مرفوع هم کیدې شی نوهغه وخت به مبتداء وی او مجرور هم کیدې شی نو دَ حتی کلمه "الی ان" په معنی کښې به شی. [١٩/۴ الکاشف: ٣٠٨/٣.]

**قوله: يُشَاكُهَا**:-دا ضمیر دَمفعول ثانی دې اومفعول اول مضمر دې کوم چه دَ فاعل قائمقام دې. عبارت داسې دې "حتى الشوكة يشاك المسلم تلك الشوكة" یعنی دَمسلمان په یو اندام کښې چه ازغې لاړشی نو دَهغې هم ثواب ملاویږی. [الکاشف: ٣٠٨/٣.]

**[١٥٢٨] دَ پیغمبرانو د مصیبتونو دوچندی**

١٥٢٨-()[١] [١] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: [٢] «دَخَلْتُ عَلَى النَّبِيِّ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- وَهُوَ يُوعَكُ، [٣] فَمَسِسْتُهُ بِيَدِي فَقُلْتُ: يَارَسُولَ اللّٰهِ، [۴] إِنَّكَ لَتُوعَكُ وَعْكًا شَدِيدًا. [٥] فَقَالَ النَّبِيُّ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "أَجَلْ، إِنِّي أُوعَكُ كَمَا يُوعَكُ رَجُلَانِ مِنْكُمْ". [٦] قَالَ: فَقُلْتُ: ذٰلِكَ لِأَنَّ لَكَ أَجْرَيْنِ؟ فَقَالَ: "أَجَلْ". [٧] ثُمَّ قَالَ: "مَا مِنْ مُسْلِمٍ يُصِيبُهُ أَذًى مِنْ مَرَضٍ فَمَا سِوَاهُ، [٨] إِلَّا حَطَّ اللّٰهُ تَعَالَى بِهِ سَيِّئَاتِهِ، [٩] كَمَا تَحُطُّ الشَّجَرَةُ وَرَقَهَا» "مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: [١] حضرت عبدالله ابن مسعود رضی الله عنه فرمايي [٢] چې (یو ځل) زه د نبي کریم ﷺ په خدمت اقدس کې حاضر شوم هغه وخت دحضور ﷺ تبه وه [٣] ما خپل لاس په حضور ﷺ راتیرولو سره عرض وکړو چې یا رسول الله ﷺ [۴] ستا ډیره سخته تبه وی؟ [٥] حضور ﷺ وفرمایل هو زما ستاسو د دوه سړو برابر تبه وي [٦] ابن مسعود رضی الله عنه فرمايي چې ما عرض وکړو چې دا به په دې وجه وي چې تا ته دوچنده ثواب حاصلیږي؟ حضور ﷺ وفرمایل چې هو [٧] بیا یې وفرمایل چې کوم مسلمان ته د مریضي په وجه یا د دې څخه علاوه په یوه بله وجه څه تکلیف رسي [٨] نو الله تعالی د هغې په ذریعه د هغه ګناهونه

[١] اخرجه البخاری فی کتاب المرضی/باب: أشد الناس بلاءً الأنبياء. ثم الأمثل فالأمثل (رقم-٥۶۴٨) ومسلم فی کتاب البر والصلة والآداب/باب فضل عيادة المريض (رقم)۴١ - (٢٥٧١) والدارمی فی باب: أجر المريض

(داسي) لري کوي [٩] څرنګه چې ونه خپلې پاڼې رژوي. (بخاري)

**حل اللغات:-** ① يُوعَكُ: أي حَرَارَةُ الحُمّى وَأَلَمُهَا: يعني د تبې ګرمي او تکليف، ② فَمَسِسْتُهُ: لاس مې پرې کيخودو، ③ أَجَلْ: أي: نَعَمْ، په معنی د نعم سره يعنی آو، ④ حَطَّ: رژوی، ⑤ وَرَقَهَا: د ورق جمع ده، د ونو پاڼې.

**تسهيلات:**

**قوله: إِنِّي أُوعَكُ كَمَا يُوعَكُ رَجُلَانِ مِنْكُمْ:**

**دتبې ګرموالی او شدت:-** دنبی کريم ﷺ تبه دومره زياته وه چې وې فرمائيل چې څومره تبه د دوؤ کسانو وی دومره زما تبه هم وی. خو دې سره ګناهونه معاف کيږی. حالانکه نبی کريم ﷺ دګناهونو نه پاك وو. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چې ددې نه رفع درجات مراد دی او امت ته د صبر تلقين دې.

**قوله: إِلَّا حَطَّ اللهُ بِهِ سَيِّئَاتِهِ:**

**د ګناهونو معاف کيدو تشبيه:-** په حديث مبارك کښې تشبيه ده. دې دلته په حديث پاك کښې د مريض حالت او ددۀ د مرض نه محو سئيات مراد اخستې شوی دی. دې ته تيزې هوا سره او د ونې نه پاڼې غورزيدلو سره تشبيه ورکړې شوې ده. لکه څنګه د ونې پاڼې په تيزی سره رژيږی داشان د انسان بيمارئی سره دده ګناهونه رژيږی يا ئې د رجات اوچتيږی. او ددې نه معلومه شوه چې هيڅ يو انسان هم د بيمارئی نه خالی نه دې.

**[١٥٣٩] دمرګ سختی د درجاتو اوچتوالي**

١٥٣٩ـ()[١٧][١] وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: [٢] «مَا رَأَيْتُ أَحَدًا الْوَجَعُ عَلَيْهِ أَشَدُّ مِنْ رَسُولِ اللهِ ـ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ» ـ مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] بي بي عايشه صديقه رضي الله عنها فرمايي [٢] چې ما يو داسې سړې نه دې ليدلې چې د هغه مريضې د حضور ﷺ د مريضی څخه زياته سخته او شديده وي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① الوَجَعُ: درد، تکليف.

**تسهيلات:**

**قوله: مَا رَأَيْتُ أَحَدًا الْوَجَعُ عَلَيْهِ أَشَدُّ مِنْ رَسُولِ اللهِ ـ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:**

**د مذکوره جملې ترکيب:-** امام طيبی رحمه الله فرمائی چې الوجع مبتداء او اشد خبر دې. مبتداء چې خبر سره يوځائې شی نو د رأيت مفعول ثانی به وی. او من زائده دې. عبارت به داشان

[1] اخرجه البخاری فی کتاب المرضی/باب شدة المرض (رقم) ٥٦٤٦ ومسلم کتاب البر والصلة والآداب/باب ثواب المؤمن فيما يصيبه من مرض، أو حزن، أو نحو ذلک حتی الشوکة يشاکها (رقم) ٥٢ - (٢٥٧٠) وابن ماجة کتاب الجنائز/باب ما جاء فی ذکر مرض رسول الله صلی الله عليه وسلم (رقم-١٦٢٢)

وی (أی ما رأیت أحداً أشد وجعاً من رسول الله ﷺ) ما د نبی کریم ﷺ نه زیات په تکلیف کښې څوك نه دی لیدلی.

**د مذکوره روایت پشان بل حدیث:**- داشان روایت بیهقی په شعب الایمان کښې دابو سعد ﷺ نه روایت کړې دې چې هغه نبی کریم سره ناست وو. د نبی کریم ﷺ ډیره زیاته تبه وه نو هغه خپل لاس د نبی کریم ﷺ په څادر مبارك کیښودو (کوم چې نبی کریم ﷺ اغوستې وو) نو د تبې ګرموالې د څادر دپاسه هم محسوسیدو. وې فرمائیل چې ستاسو ﷺ خو ډیره زیاته تبه ده. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې د انبیاء علیهم السلام جماعت په دوچند آزمیښت کښې اچولې کیږی. او هغوئ ته اجر هم دوچند ملاویږی. ما عرض اوکړو چې یارسول الله ﷺ انبیاء کرامو نه پس کومو خلقو باندې زیات آزمیښت کیږی ، نبی کرم ﷺ اوفرمائیل چې الأنبیاء ثم الصالحون ، اول انبیاء کرام او بیا صالحین. یو حدیث پاك کښې فرمائی چې علماء کرامو ته. (مرقاة ج/٣ ص/٢٥۶).

**[١٥٤٠] د مرګ سختې د درجاتو د بلندی ذریعه**

١٥٣٠-()[١٨] [١] وَعَنْهَا قَالَتْ: [٢] «مَاتَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بَيْنَ حَاقِنَتِي وَذَاقِنَتِي، [٣] فَلَا أَكْرَهُ شِدَّةَ الْمَوْتِ لِأَحَدٍ أَبَدًا بَعْدَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [١] بي بي عایشه صدیقه ﷺ فرمایي[٢] چې نبي کریم ﷺ زما د سینې او د غاړې په مینځ کې وفات شو[٣] زه د نبي کریم ﷺ څخه روسته د یو سړي د مرګ سختي هیڅ کله بده نه ګنم. (بخاري)

**حل اللغات:**- ① حَاقِنَتِي: دَ ذاقنه نه ښکته (یعنی د سینې نه ښکته) چه کومه حصه راځی هغه "حاقنه" ده. ② ذَاقِنَتِي: دَ انسان زنه چه دَ سینې کومې حصې پورې رسیږی هغه حصې ته "ذاقنه" وائی. دَ ستې او حلقوم حصه.

**تسهیلات: قوله:** حَاقِنَتِي وَذَاقِنَتِي:

**د نبی کریم وفات د عائشې په غیږ کښې:**- دَ حضرت عائشه صدیقه ﷺ مقصد دا بیانول دی چه دَ حضورپاك انتقال دَهغې په غیږ کښې شوې هغه داسې چه رسول الله ﷺ حضرت عائشه صدیقه ﷺ ته ډډه لګولې وه اودَ حضرت عائشه صدیقه ﷺ دَ مرئی او سینې په مینځ کښې حضورپاك سرمبارك کیخودې وو. لکه څنګه چه عام عادت دې چه مریض په بستره باندې پروت وی او خیال ساتونکې او خدمت کونکې دَهغه سر په خپله غیږه کښې اخلی. حضرت عائشه ﷺ داخودل غواړی چه دَوصال په وخت په حضورپاك باندې دَ زنکندن دَحالت دَ پوره کیفیت ماته ښه اندازه ده چه په حضورپاك باندې څومره تکلیف وو.

() اخرجه البخاری فی کتاب المرضی/باب ما جاء فی کفارة المرض (رقم-٥۶٤٣) ومسلم باب مثل المؤمن کالزرع ومثل الکافر کشجر الأرز (رقم-٥٩ - (٢٨١٠)

**قوله : فَلَا أَكْرَهُ شِدَّةَ المَوْتِ:**

**د زنکدن سختئ د ګناه وجه نه ده:-** دا دې ځايه حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها داخودل غواړی چه ما به دا دې نه مخکښې ګنړل چه د مرګ آساني د ګناهونو د نه کيدو نښه ده او د مرګ سختی د ګناهونوعلامت دې ليکن رسول الله ﷺ خو معصوم وو د هغه د زنکدن تکليف چه کله ما اوليدلو نوماته اندازه اوشوه چه د زنکدن تکليف د درجات اوچتولو د پاره هم وی ګنی حضورپاك ته به کله هم تکليف نه وو. دې نه مخکښې حديث نمبر ۱۵۲۸ او ۱۵۲۹ کښې هم دغه بيان کړې شوې دی چه د حضورپاك د بيمارئی شان هم جدا وو چه تبه به ئی دوچند وه. دا د حضورپاك د اوچت شان علامت وو او د درجات د اوچتيدو ذريعه وه.

**[١٥٤١] د دنياوی مصيبتونو په اعتبارسره د مؤمن او منافق مثال**

١٥٤١ -()[١٩] [١] وَعَنْ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " [٢] «مَثَلُ الْمُؤْمِنِ كَمَثَلِ الْخَامَةِ مِنَ الزَّرْعِ، [٣] تُفَيِّئُهَا الرِّيَاحُ، [٤] تَصْرَعُهَا مَرَّةً وَتَعْدِلُهَا أُخْرَى، [٥] حَتَّى يَأْتِيَهُ أَجَلُهُ، [٦] وَمَثَلُ الْمُنَافِقِ كَمَثَلِ الْأَرْزَةِ الْمُجْذِيَةِ الَّتِي لَا يُصِيبُهَا شَيْءٌ [٧] حَتَّى يَكُونَ انْجِعَافُهَا مَرَّةً وَاحِدَةً» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] حضرت کعب ابن مالك رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] د مومن مثال د فصل (کيتی) د ترو تازه او نرم ځانګي په شان دي [٣] چې بادونه يي راټيټوي [٤] کله يي راغورځوي او کله يي سيده کوي [٥] تر دي چې د هغې وخت پوره شي [٦] او د منافق مثال د صنوبر د اوني په شان دي چې کلکه ولاړه وي هغه ته څه جټکه نه لګی (يعني نه خو هغه د هوا و باد څخه نړيږي اونه راټيټيږي) [٧] تر دي چې هغه دفعةً په زمکه راوغورځيږي. (بخاري او مسلم)

**حل اللغات:-** ① الْخَامَةِ: د هري بوټې ونې شين نباخ اونرم وانبه اوګلدستې ته خامه وائی. دلته شين اوتازه فصل مراد دې. ② الزَّرْعِ: فصل، وونی بوټی، ③ تُفَيِّئُهَا: د باب تفعيل او تفعل نه دې ښی طرف اوګس طرف اړولو راړولو اوښکته کولو په معنی کښې دې. ④ تَصْرَعُهَا: صرع وتصريع د ښکته راغورزولو په معنی کښې دې ګس طرف اوښی طرف ته تاوول او ښکته کول مراد دی. ⑤ تَعْدِلُهَا: د باب افعال نه هم لوستې کيدې شی او د باب تفعيل نه هم د نيغ او برابرولو په معنی کښې ده. ⑥ أَجَلُهُ: نيته، آخر وخت، ⑦ الْأَرْزَةِ: د ځنګل يو مضبوطې ونې ته وائی چه په خپل مضبوطيا کښې د غوز د ونې په شان مضبوط وی. ⑧ الْمُجْذِيَةِ: د جذا د يجزو نه دې په مضبوطه زمکه کښې استقامت سره قائم داسې ونې ته وائی چه په زمکه کښې کلکه ولاړه وی. ⑨ انْجِعَافُهَا: انقطاع او انقلاع او د بيخه راوتو په معنی کښې دې.

[١] اخرجه البخاری فی کتاب المرضی/باب ما جاء فی کفارة المرض (رقم-٥٦٤٢) ومسلم باب مثل المؤمن کالزرع ومثل الکافر کشجر الأرز

**تسهیلات: قوله: مَثَلُ الْمُؤْمِنِ كَمَثَلِ الْخَامَةِ:**

**د مومن ژوند او مشکلات:** - دَ حدیث مطلب دادې چه دَمؤمن مسلمان دَ ژوند مثال داسې دې چه کله خوشحاله او تازه اوسیږی او کله په مصیبتونو اوتکلیفونو کښې راګیریږی لکه څنګه چه دَ هوا په چپو کښې شنه بناخونه کله پریوځی او کله راؤچتیږی. لیکن دَ منافق په ژوند کښې په هغه باندې په ظاهری توګه مصیبتونه اوتکلیفونه نه راځی هغه هروخت خوشحاله اوسیږی او مضبوط او په صحت کښې وی هیڅ یو مصیبت هغه نه خوزوی. لکه څنګه چه دَ صنوبر، غوز مضبوطې ونې هواګانې نه شی خوزولې لکه چه دې هم دَ قربانئ سندا او ګډ دې کوم چه تازه اوچاق ساتلې شی لیکن چه کله دَ ده مرګ راځی نو صحیح سالم دې دَبیخ نه راویستوسره غورزولې شی. او ټول ګناهونه خپل ځان سره اوړی. نو مسلمان دَ مصیبتونو مرضونودَ وجې نه دَ ګناهونونه پاکیږی او منافق سره دَ ګناه اوچتولې شی اوځی. لهذا دَ مرضونو ډیروالې دَ الله تعالی دَ ناراضګئی علامت نه دې او نه همیشه صحت مند پاتې کیدل دَ مقبولیت نښه ده. [الکاشف: ٣/٢١١.]

**د یوې ښځې د خاوند نه د طلاق مطالبه:** - یوې صحابیه بی بی دَخپل خاوند نه دَ طلاق مطالبه اوکړه لیکن ناڅاپې په خاوند باندې څه مصیبت راغلونوښځې خپله مطالبه ترک کړه او ورته ئی اوویل چه کله ما اوکتل چه په تا باندې څه بیماری نه راځی نوزما شک شو چه ته چرته منافق خو نه ئی لیکن اوس راته معلومه شوه چه ته مؤمن ئی ځکه چه دا مصیبت دَ ایمان نښه ده. دې سره چه کوم حدیث دې دَدې هم دغه مطلب دې. [الکاشف. ٣/٢١١.]

**[١٥٤٢] د مؤمن او منافق فرق**

١٥٣٢—()[٢٠] [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [٢] "«مَثَلُ الْمُؤْمِنِ كَمَثَلِ الزَّرْعِ [٣] لَا تَزَالُ الرِّيحُ تُمِيلُهُ» [٤] وَلَا يَزَالُ الْمُؤْمِنُ يُصِيبُهُ الْبَلَاءُ [٥] وَمَثَلُ الْمُنَافِقِ كَمَثَلِ شَجَرَةِ الْأَرْزَةِ [٦] لَا تَهْتَزُّ حَتَّى تَسْتَحْصِدَ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] حضرت ابوهریره ﷛ وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] د مؤمن مثال د فصل (کیتی) په شان دي [٣] چې (څرنګه) بادونه هغه همیشه راټیټوي [٤] (دغه شان) مؤمن همیشه بلاګانو راګیرکړي وي [٥] او د منافق مثال د صنوبر د ونې په شان دي [٦] اګر چې هغه د بادونو د زور څخه خوزي هم نه خو (آخر د ویخ څخه) راوغورځیږي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① الزَّرْعِ: فصل، وونې بوټی، ② تُمِيلُهُ: مائل کوی او راټیټوی ئې (زمکې ته) ③ الْبَلَاءُ: مصیبتونه، ④ الْأَرْزَةِ: دَ ځنګل یو مضبوطې ونې ته وائی چه په خپل مضبوطیاکښې دَ غوز دَ ونې

---

() اخرجه البخاری فی کتاب المرضی/باب ما جاء فی کفارة المرض (رقم-٥٦٤٤) ومسلم باب مثل المؤمن کالزرع ومثل الکافر کشجر الأرز (رقم-٥٨ - (٢٨٠٩) والترمذی کتاب الأمثال عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی مثل المؤمن القاری للقرآن وغیر القاری(رقم-٢٨٦٦)

په شان مضبوط وی. ⑤لَا تَهْتَزُّ: نه خوزیږی، ⑥تَسْتَحْصِدَ: د بیخه کټ کړې شي.

**تسهیلات:**

**قوله: مَثَلُ الْمُؤْمِنِ كَمَثَلِ الزَّرْعِ لَا تَزَالُ الرِّيحُ تُمِيلُهُ:**

**دحدیث مقصد:** - مطلب دادې چې منافق په دنیاوی ژوند کښې د مصیبتونو او تکلیفونو سره زیات نه مخ کیږی او تکلیفونه او سختی په ده باندې زیات اثر نه کوی ، او ددې وجه دا ده چې ددې خائې د مصیبتونو په بدله کښې ورته دآخرت عذاب سپك یا کم نه شی ، او د مسلمان په دنیا کښې په مصیبتونو او غمونوکښې اخته کیدل ددې خبرې علامت دې چې هغه ته به په آخرت کښې پرسکون او د خوشحالی ژوند ملاویږی.

**[١٥٤٢] بیمارئی ته د کنځلو کولو ممانعت**

١٥٤٢ - ()[٢١] ① وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ② «دَخَلَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَلَى أُمِّ السَّائِبِ فَقَالَ: ③ مَا لَكِ تُزَفْزِفِينَ؟! " ④ قَالَتِ: الْحُمَّى - لَا بَارَكَ اللَّهُ فِيهَا - ⑤ قَالَ: " لَا تَسُبِّي الْحُمَّى ; فَإِنَّهَا تُذْهِبُ خَطَايَا بَنِي آدَمَ ⑥ كَمَا يُذْهِبُ الْكِيرُ خَبَثَ الْحَدِيدِ» " رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① حضرت جابر رضی الله عنه راوي دي ② چې (یو ځل) حضور ﷺ بي بي ام سایب رضی الله عنها ته چې (سره تبه کې مبتلا وه) تشریف راوړو او (د هغې حالت لیدلو سره یې) وفرمایل ③ چې په تا څه شوي دي چې ته کپیږې [رپیږې] ؟ ④ هغې عرض وکړو چې یا رسول الله ﷺ زما تبه ده الله دې دې ته برکت نه ورکوي ⑤ حضور ﷺ وفرمایل چې تبې ته بد مه وایه ځکه چې تبه د بني آدم (انسان) ګناهونه داسې لرې کوی ⑥ څرنګه چې بهټې د اوسپنې خیرې صفا کوي. (مسلم)

**حل اللغات:** - ①تُزَفْزِفِينَ: باب فعلله دحرج په شان دَ واحد مؤنث صیغه ده دَ رچیدلو شروع کیدو په معنی کښې دې. ②الْحُمَّى: تبه، ③الْكِيرُ: هوا ورکونکې مشکیزې ته کیروائی، بهټې. ④الْحَدِيدِ: اوسپنه.

**تسهیلات: قوله: كَمَا يُذْهِبُ الْكِيرُ:** دا یوه آله ده چه دوه مشکیزې یوې نلکې سره یوځائی کړې اودَ کوئلې ډیرې طرف ته ئی مخ کړی اوپه دې سره هوا ورکولې شی دې دَپاره چه په کوئله کښې دننه اوسپنه ګرمه شی اودَهغې نه کالی او اوزار جوړکړې شی. په دې عمل سره دَ اوسپنې زنګ وغیره ختم شی او اوسپنه صفاشی، بهټې. [الکاشف: ٣/٣١١]

بهرحال دَ حدیث مطلب دادې چه یوې بیمارئی ته کنځلې مه کوئی بلکه صبرکوئی دادَ انسان دَ ګناهونودَپاره کفاره جوړیږی.

---

[1] اخرجه مسلم فی کتاب البر والصلة والآداب/باب ثواب المؤمن فیما یصیبه من مرض، أو حزن، أو نحو ذلک حتی الشوکة یشاکها (رقم) ٥٢ - (٢٥٧٣)

**[١٥٤٤] په بيمارۍ کښې دَ صحت د اعمالو ثواب ملاوېدل**

١٥٤٤—(١)[٢٢] [١] وَعَنْ أَبِي مُوسَى - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٢] إِذَا مَرِضَ الْعَبْدُ أَوْسَافَرَ [٣] كُتِبَ لَهُ بِمِثْلِ مَا كَانَ يَعْمَلُ مُقِيمًا صَحِيحًا» . رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [١] حضرت ابوموسي ﷺ راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] هر کله چې يو بنده مريض شي يا په سفر ځي (او د هغه د مريضى يا د سفر په وجه د هغه اوراد او نوافل فوت شي) [٣] نو د هغه په عمل نامه کې هغومره عمل ليکل کيږي کوم چې به هغه د مقيموالي په حالت کې او د تندروستي په زمانه کې کول. (بخاري)

**تسهيلات: قوله: كُتِبَ لَهُ بِمِثْلِ مَا كَانَ يَعْمَلُ:**

**د صحت د معمولاتو ثواب په مرض کښې:** - دَحديث مطلب دادې چه مثلاً يوسړې دَ سخت او تندرستئى په وخت دَ فرضو نه علاوه سنت او نفلونه عبادتونه او په خپلو وظائفو کښې او تهجد کښې ښه محنت کوي. ليکن چه کله بيمار شي يا دَ سفر په حالت کښې وي نو دَهغه معمولات قضاء کيږي هغه خپل معمولات پوره کولې نه شي. نو په دې حديث کښې اوخودلې شوه چه دې سړي ته به په مرض او سفر کښې دَهغه اعمالو پوره ثواب ملاويږي کوم چه هغه په صحت کښې کول. دَمعمولاتو پاتې کيدو نه ثواب نه کټ کيږي بلکه جاري پاتې کيږي

**[١٥٤٥] په طاعون کښې دَ مرګ راتلو فضيلت**

١٥٤٥—(٢)[٢٣] [١] وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] «الطَّاعُونُ شَهَادَةٌ لِكُلِّ مُسْلِمٍ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] حضرت انس ﷺ راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] په طاعون (کې مړ کيدل) د هر مسلمان د پاره شهادت دي. (بخاري ومسلم)

**حل اللغات:** - ① الطَّاعُونُ: طاعون يو وبائى مرض دې چه په دې کښې په بدن مثلاً ترخ، پنډئى اوخيته وغيره باندې زخم پيداکيږي.

**تسهيلات: قوله: الطَّاعُونُ شَهَادَةٌ:**

**د طاعون علامات او اثرات:** - دا وبائى بيمارى چه په کومو علاقو کښې خوره شى نو دَهغه ځائى ټولو څيزونو باندې اثرکيږي. دَ انسانى بدن نه علاوه اوبه او هوا هم خرابوى. غرض داچه په هرڅيزکښې دَهغې جراثيم داخليږي. دَ طاعون علامت هم بعضې شارحينو دا ليکلي دې چه دَدې بيمارئى په وجه سره دَ بدن نرمې حصې مثلاً ترخ، پنډئى اوخيته وغيره باندې زخم پيداکيږي اودَدې زخمونو چاپيره تور يا سرې يا شنې دائرې جوړيږي.

---

(١) اخرجه البخارى فى كتاب الجهاد والسير/باب يكتب للمسافر مثل ما كان يعمل فى الإقامة (رقم-٢٩٩٦)
(٢) اخرجه البخارى فى كتاب الطب/باب ما يذكر فى [ص:١٣٠] الطاعون (رقم-٥٧٣٢) ومسلم كتاب الإمارة/باب بيان الشهداء (رقم-١٦٦ - (١٩١٦)

**په طاعون کښې مرګ شهادت ولې؟:-** په طاعون کښې مړکیدونکی ته دَ شهادت درجه ځکه ملاویږی چه دا واقعی شهید دې. دا ځکه چه په حقیقت کښې دَ څه جناتو یا شیطانانو دَ نیزې وهلو سره دازخم لګی نو ښکاره خبره ده چه دې قتل کړې شوې دې لهذا شهید دې. تفصیل وړاندې راځی.

**[١٥٤٦] حقیقی اوحکمی شهیدان**

١٥٤٦-(١)[٣٣] [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " [٢] «الشُّهَدَاءُ خَمْسَةٌ: الْمَطْعُونُ، [٣] وَالْمَبْطُونُ، [٤] وَالْغَرِيقُ، [٥] وَصَاحِبُ الْهَدْمِ، [٦] وَالشَّهِيدُ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] حضرت ابوهریره ﷛ راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] شهیدان په پنځه قسمه دي ① طاعون څپلی [٣] ② د خیټې مریضي (یعني په دست او استقاء) کې مړ کیدونکي [٤] ③ په اوبو کې بی اختیاره ډوبیدو سره مړکیدونکي [٥] ④ د دیوال یا چت لاندې راتلو سره مړ کیدونکي [٦] ⑤ د الله ﷻ په لار کې شهید کیدونکي. (بخاری مسلم)

**حل اللغات:-** ① اَلْمَطْعُوْنُ: د طاعون مریض ته مطعون وائی په دې مرض کښې په بدن مثلاً ترخ، پنډنی اوخیټه وغیره باندې زخم پیدا کیږی، او مریض پکښې مړکیږی. ② اَلْمَبْطُوْنُ: دَ خیټې په مرض لکه هیضه وغیره سره مړکیدونکی ته وائی. ③ اَلْغَرِیْقُ: دریاب نهر یا سمندر کښې ډوبیدو سره مړکیدونکې. ④ اَلْهَدْمِ: هغه سړې چه دَ اوچت ځای نه یعنی غر یا دیوال وغیره نه راپریوځی او مړشی.

**تسهیلات: قوله:** اَلشُّهَدَاءُ خَمْسَةٌ:

**د شهید قسمونه:-** یو شهید حقیقی دې او بل حکمی دې. حقیقی شهید هغه دې څوک چه کافرانو سره په جنګ کښې اووژلې شی یا په ظلم سره دَ یوظالم دَ لاسه په تیره آله سره مړ کړې شوې وی او دَ دنیاوی فائدې اوچتولونه بغیر دَ دنیا نه تلې وی. حقیقی شهید به بغیر دَ غسل نه اوبغیر دَ کفن نه په خپلو اغوستې شوو کپړوکښې ښخولې شی دا دَ دنیا اوآخرت دواړو شهید دې. شهید حکمی هغه وی چه دَ دې نه علاوه په یوڅو خاص احوالو او افعالو کښې وفات شی. په دې حدیث کښې دَ څلور قسم حکمی شهیدانو ذکر کړې شوې دې. لیکن په نورو احادیثوکښې دَ دې نه علاوه ډیر خلق حکمی شهیدان ګرځولې شوی دی. مثلاً **"ذات الجنب، نمونیه"** کښې مړکیدونکې، په اور کښې سوزیدونکې، دَ بچې پیدا کیدو په وخت کښې مړه کیدونکې ښځه، دَ سفرپه حالت کښې مړکیدونکې، په جهاد کښې په خپل مرګ باندې مړکیدونکې، دَ شهادت رښتونې خواهش کونکې، میعادی تبه سره مړکیدونکې، دَ ځناورو په شلولو سره مړکیدونکې، دَ یوظالم دَظلم دَ تشدد په نتیجه کښې دَ زخمونو طاقت نه لرونکې مړکیدونکې، دَ ظالم په جیل کښې بې ګناه مړ

---

[١]) اخرجه البخاری فی کتاب الجهاد والسیر/باب: الشهادة سبع سوی القتل (رقم-٢٨٢٩) ومسلم کتاب الإمارة/باب بیان الشهداء (رقم) ١٦٤ - (١٩١٤) والنسائی کتاب الجنائز/باب الشهید (رقم-٢٠٥٤)

کیدونکي او په علمي شغل کښې مړکیدونکي. په نورو احادیثوکښې ذکرشوي يوڅو نيک اعمال کولونه پس مړکیدونکي دا ټول خلق حکمي شهیدان دی.

**د حکمي شهید احکام:-** دَدوی حکم دادې چه دوی به دَ آخرت شهیدان شمیرلې کیږی اودَ دنیا شهیدان نه دی. لهذادَ دوی جنازه به کیږی دوی ته به غسل ورکولې کیږی او کفن کولو سره به خښیږی. لکه چه دَحقیقی شهیدانو دَ ثواب په شان به ورته یوه درجه ثواب ورکولې شی. دَحدیث مطلب دانه دې چه دا ټول خلق حقیقی شهیدان دی. دې خلقو ته دَ شهیدانو ثواب څکه ورکړې شو چه شهید ډیر مشقتونه اوچتولو سره مړکیږی. دَدې خلقو مرګ هم چونکه په ډیره سختئی او سختو مصیبتونو سره راځی لهذا دوی هم شهید سره يوځائی اوګرځولې شو. دَمطعون تفصیل تیرشوې دې.

**[١٥٤٧] په طاعون ځیلې علاقه کښې د صبر او ثبات فضیلت**

١٥٤٧-(١)[٢٥] ١ وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهَا - قَالَتْ: ٢ «سَأَلْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنِ الطَّاعُونِ فَأَخْبَرَنِي: ٣ "أَنَّهُ عَذَابٌ يَبْعَثُهُ اللهُ عَلَى مَنْ يَشَاءُ، ٤ وَأَنَّ اللهَ جَعَلَهُ رَحْمَةً لِلْمُؤْمِنِينَ، ٥ لَيْسَ مِنْ أَحَدٍ يَقَعُ الطَّاعُونُ فَيَمْكُثُ فِي بَلَدِهِ صَابِرًا مُحْتَسِبًا، ٦ يَعْلَمُ أَنَّهُ لَا يُصِيبُهُ إِلَّا مَا كَتَبَ اللهُ لَهُ، ٧ إِلَّا كَانَ لَهُ مِثْلُ أَجْرِ شَهِيدٍ» "رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ".

**ترجمه:** ١ بي بي عايشه رضي الله عنها فرمايي ٢ چې ما د حضور ﷺ څخه د طاعون حقیقت وپوښتلو نو حضور ﷺ ماته وفرمايل ٣ چې (هسې خو) دا عذاب دي الله جل جلاله چې په چا يې غواړي ليږي يي ٤ (ليكن) الله تعالى جل جلاله دا د مومنانو د پاره د رحمت باعث ګرځولي دي (کوم چې په دي کې د مبتلا کیدو په وخت صبرکوي) ٥ او په کوم ښار یا ځاي کې چې طاعون وي او (یو مومن) په خپل ښارکي پاتې شي او صبرکونکي او د الله جل جلاله څخه د ثواب طالب وي (يعني په هغه طاعون ځیلې علاقه کې د یو بل غرض او مصلحت څخه نه بلکه محض د ثواب په خاطر پاتې شوی وي) ٦ او په دي پوهیږي هم چې هغه ته هیڅ شي (يعنی هیڅ اذیت او مصيبت) نه رسیږي خو هغه چې الله جل جلاله (د هغه په مقدر کي) ليکلی وي ٧ او د هغې څخه هیڅ چیرته مفر (تیښته) نشته نو هغه مؤمن ته به د شهيد په مثل ثواب حاصليږي. (بخاري)

**حل اللغات:-** ① صَابِرًا: صبرکونکي، ② مُحْتَسِبًا: دثواب دپاره.

**تسهیلات:**

**قوله** :عَنِ الطَّاعُونِ:

**د طاعون په راتلو کښې حکمت:-** حضرت عائشه صديقه رضی الله عنها فرمائی چې د ما نبی کریم ﷺ نه د طاعون د حکمت په باره کښې تپوس اوکړو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې دا

(١) اخرجه البخاری فی كتاب الطب /باب أجر الصابر فی الطاعون (رقم-٥٧٣٤)

د الله ﷻ د طرفه عذاب دي د مؤمنانو نه وي او كه د كافرانو نه چې په چا غواړي نو راليږي نې خو دا د مؤمنانو دپاره رحمت جوړوي

**قوله: فَيَمْكُثُ فِي بَلَدِهِ صَابِرًا مُحْتَسِبًا:**

دا دواړه د يمكث د ضمير فاعل نه حال دي يعنى هغه د ښار نه په وتلو قادر دي خو الله ﷻ باندې بهروسه كوى او د ثواب په نيت نه اوځى او هغه په دې خبره باندې عقيده لرى چې ده هغه ځيز نه شى رسيدلې چې كوم الله تعالى دده دپاره نه وى مقدر كړې نوده دپاره دشهيد د اجر برابر اجر ليكلې كيږى

**قوله: يَعْلَمُ:** دا ديمكث دريم حال دي يا ددې بدل دي

**قوله: إِلَّا كَانَ لَهُ مِثْلُ أَجْرِ شَهِيدٍ إِلَّا:** مستثنى مفرغ دي.

**[١٥٤٨] طاعونى علاقې څخه دتيښتې او هغې ته د ورتګ ممانعت**

١٥٤٨-(١)[٢٦] [١] وَعَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "[٢] «الطَّاعُونُ رِجْزٌ أُرْسِلَ عَلَى طَائِفَةٍ مِنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ، [٣] أَوْ عَلَى مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ [٤] فَإِذَا سَمِعْتُمْ بِهِ بِأَرْضٍ فَلَا تَقْدَمُوا عَلَيْهِ [٥] وَإِذَا وَقَعَ بِأَرْضٍ، وَأَنْتُمْ بِهَا، [٦] فَلَا تَخْرُجُوا فِرَارًا مِنْهُ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] حضرت اسامه ابن زيد رضي الله عنه راوي دي چې حضور ﷺ وفرمايل [٢] طاعون عذاب دي چې د بني اسرائيلو په يو جماعت ليږل شوي وو [٣] يا وي فرمايل په هغه خلقو باندې چې ستاسو څخه مخكې وو (يعني راوي ته شك شوي دي چې حضور ﷺ مخكني جمله ارشاد فرمايلي وه يا دويمه) [٤] هر كله چې تاسو د يوي علاقي په باره كې واورئ چې هلته طاعون خور شوي دي نو هلته مه ځئ [٥] او په كومه طاعون خپلى علاقه كې چې تاسو (د مخكې څخه) موجود يي [٦] نو د هغه ځايه مه وځئ. (بخاري ومسلم)

**حل اللغات:-** ① رِجْزٌ: عذاب، ② فِرَارًا: تختيدل.

تسهيلات: **قوله: الطَّاعُونُ رِجْزٌ:**

يعنى طاعون يو آسمانى عذاب دې الله تعالى په بنى اسرائيلو باندې دا عذاب هغه وخت مسلط كړې وو كوم وخت چه هغوى نافرمانى اوكړه او په بيت المقدس كښې ئى دَ جهاد كولونه انكاراوكړو. په قرآن پاك كښې دا آيت هم دې باره كښې دې ﴿فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِجْزًا مِنَ السَّمَاءِ﴾ [الاعراف الآية: ١٦٢] يعنى په هغوى باندې طاعون راؤليګلو.

**د وبائى علاقې څخه د تيښتې ممانعت:-** په دې حديث كښې امت ته دوه حكمونه وركړې شوى دى. يوحكم دادې چه دَ طاعون دَعلاقونه دَتختيدو كوشش مه كوئى مرګ په مقرر وخت باندې دَ تقدير

(١) اخرجه البخارى فى كتاب الحيل/باب ما يكره من الاحتيال فى الفرار من الطاعون (رقم-٦٩٧٤) ومسلم كتاب السلام/باب الطاعون والطيرة والكهانة ونحوها (رقم-٩٢ - (٢٢١٨)

مطابق راځي. نوچه كوم سرې دَ طاعون نه تختي هغه لكه چه دَتقدير باره كښې دَ تذبذب ښكار دې اودَ تقدير دَ فيصلې نه دَ تيختې لار اختياروي. دويم حكم په دې حديث كښې دا بيان كړې شوي دې چه كوم ځائې كښې طاعون او يا بل څه وبائي مرض خورشوې وي نوخامخا هلته دَ تلو كوشش مه كوئى دا خپل ځان په هلاكت كښې دَ اچولو په شان دى كوم چه منع دې. بل په دې سره دَ عقيدې دَخرابيدو خطره هم ده خلق به دا وائي چه كه دغه ځائې ته تلې نه وې نومرګ به ورله نه راتلو. دا خبره په ذهن كښې ساتل پكاردي چه دَ وبائي مرض نه علاوه دَ نورو خطرناكو مواقع نه تختيدل جائز دى. مثلاً چرته اور لګيدلې دې يا سيلاب راروان دې يا زلزله ده يا چت راپريوځي دَ هغه ځائي نه تختيدل منع نه دى.

**[١٥٤٩] په ړوندتوب باندې د نابينا د صبر فضيلت**

١٥٣٩-(١)[٢٧] ١ وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: ٢ "«قَالَ اللَّهُ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَى: إِذَا ابْتَلَيْتُ عَبْدِي بِحَبِيبَتَيْهِ ثُمَّ صَبَرَ ٣ عَوَّضْتُهُ مِنْهُمَا الْجَنَّةَ» "يُرِيدُ عَيْنَيْهِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ١ حضرت انس ﷠ وايي چې ما د نبي كريم ﷺ څخه واوريدل ٢ چې الله سبحانه وتعالى فرمايي هر كله چې زه كوم بنده د هغه په دوو محبوبو څيزونو كې مبتلا كړم او هغه صبر پرې وكړي ٣ نو زه د هغه دواړو په بدله كې هغه لره جنت وركوم (راوي وايي چې د دوو محبوب څيزونو څخه) د حضور مراد د هغه دوه سترګي دي. (بخاري)

**حل اللغات:** - ① بِحَبِيبَتَيْهِ: دې نه مراد هغه محبوب سترګې دى چه هغه دَ "كريمتيه" په نوم سره هم يادولې شى.

**تسهيلات: قوله: عَوَّضْتُهُ مِنْهُمَا الْجَنَّةَ:**

**په نابينا توب باندې د صبر بدله:** - دَ حديث مطلب دادې چه كله الله تعالى دَ يو بنده نه سترګې واخلي هغه نابينا كړي اوهغه په دې باندې صبركوي نه دَ الله تعالى نه څه ګيله كوي اونه څوك ملامته كوي بلكه دا خيال كوي چه دا مصيبت الله تعالى زما دَ ګناهونو دَ ختمولو دَ پاره اودَ درجو دَ اوچتولو دَپاره په ما باندې اچولې دې. داسې سړي ته به الله تعالى دَ هغه دَ سترګو په بدله جنت وركوي. [ الكاشف: ٣/٣١۴.]

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[١٥٥٠] دَبيمار په پوښتنه داويا زره فرښتو دعا**

١٥٥٠-(٢)[٢٨] ١ عَنْ عَلِيٍّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: ٢ "«مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَعُودُ مُسْلِمًا غُدْوَةً ٣ إِلَّا صَلَّى عَلَيْهِ سَبْعُونَ أَلْفَ مَلَكٍ حَتَّى يُمْسِيَ، ۴ وَإِنْ عَادَهُ عَشِيَّةً إِلَّا صَلَّى عَلَيْهِ

[١] اخرجه البخاري فى كتاب المرضى/باب فضل من ذهب بصره (رقم-٥٦٥٣)

[٢] اخرجه ابوداود فى كتاب الجنائز/باب فى فضل العيادة على وضوء (رقم-٣٠٩٨) والترمذى كتاب الجنائز عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما جاء فى عيادة المريض (رقم-٩٦٩) وابن ماجة كتاب الجنائز/باب ما جاء فى ثواب من عاد مريضًا (رقم-١٤٤٢)

سَبْعُونَ أَلْفَ مَلَكٍ حَتَّى يُصْبِحَ، ٥ وَكَانَ لَهُ خَرِيفٌ فِي الْجَنَّةِ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ١ حضرت علي كرم الله وجهه راوي دي چې ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي ٢ چې كوم مسلمان (د بل مريض) مسلمان د ورځې په اولنې حصه كې (يعني د سحر په وخت كې) عيادت كوي ٣ نو اويا زره فرښتې هغه د پاره تر ماښام كيدو پورې د رحمت او مغفرت دعاء كوي ٤ او كوم مسلمان چې د ورځې په آخرى حصه كې يعنى د زوال څخه روسته عيادت كوى نو اويا زره فرښتې تر سحره د هغه د پاره د رحمت او مغفرت دعاء كوي ٥ او په جنت كې د هغه د پاره يو باغ مقررولې شى. (ترمذي ابوداود)

**حل اللغات:** - ① يَعُودُ: چه عيادت پوښتنه كوى، ② غُدْوَةً: د ورځې اول وخت يعنى دسحروخت، ③ يُمْسِيَ: چه ماښام شى، ④ عَشِيَّةً: دشپې اوله حصه، ⑤ خَرِيفٌ: باغ.

**تسهيلات:**

**نوټ:** - د ترجمې څخه مطلب ښكاره دې.د شرحې ضرورت نشته.

**[١٥٥١] دستركو په مرض كښې عيادت**

١٥٥١ - (١) [٢٩] ١ «وَعَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ٢ عَادَنِي النَّبِيُّ مِنْ وَجَعٍ كَانَ بِعَيْنِي». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ١ حضرت زيد رضي الله عنه ابن ارقم فرمايي ٢ چې نبي كريم ﷺ زما عيادت (پوښتنه) وكړه كله چې زما په ستركو كې درد وو. (احمد ابوداود)

**حل اللغات:** - ① وَجَعٍ: درد.

**تسهيلات: قوله :** عَادَنِي النَّبِيُّ مِنْ وَجَعٍ:

**په معمولى بيمارئ كښې د تپوس كولو سنتيت:** - دَدې حديث نه معلومه شوه چه حضورپاك په يومعمولى بيمارئى هم دَ زيدبن ارقم رضي الله عنه پوښتنه كړې وه يعنى چه كوم وخت دَ هغه ستركه خوږيدله هغه وخت حضورپاك پوښتنه اوكړه. په دې سره امت ته داتعليم ملاؤشو چه بيمارى كه وړه ولې نه وى تپوس سنت دې ثواب ملاويږى.

**اشكال:** - جامع صغيركښې يوروايت راغلې دې په كوم كښې چه دَ دريوبيمارو په وخت دَ بيمار تپوس نه كولو وئيلې شوى دى. يعنى كوم وخت چه دَ چاستركه خوږيږى يا ئى غاښ خوږيږى يا چرته پولئى دانه وى حالانكه دلته حضور پاك دَ ستركې دَ درددَ وجې نه عيادت كړې دې؟

**د اشكال جواب:** - په كوم روايت كښې چه دَدې دريواړو بيمارو په وخت دَ عيادت نه منع راغلې ده هغه عام نه ده بلكه خاص هغه خلق ئى دَ تپوس كولونه منع كړى دى دَ كوم دَ

(١) اخرجه ابوداود فى كتاب الجنائز /باب فى العيادة من الرمد (رقم-٣١٠٢)

وجې نه چه بیمارته د نور تکلیف خطره وی مثلاً که یوداسې مشر د تپوس دپاره لاړشی د چاد پاره چه مریض له سترګې کولاوولو باندې مجبوره کیږی یا په خبره کولوباندې مجبور کیږی او په نیغ کیناستو باندې مجبورکیږی. په دې دریواړو صورتونوکښې د مریض د سترګو، غابنونو تکلیف زیاتیدې شی په دې وجه منع کړې شوې ده. لهذا د دواړو احادیثو مطلب جدا جدا دې نوتعارض نشته دې.

### [١٥٥٢] په اودس کښې د عیادت کولو فضیلت

١٥٥٢-(١)[٣٠] [١] وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [٢] "«مَنْ تَوَضَّأَ فَأَحْسَنَ الْوُضُوءَ، [٣] وَعَادَ أَخَاهُ الْمُسْلِمَ مُحْتَسِبًا، [٤] بُوعِدَ مِنْ جَهَنَّمَ مَسِيرَةَ سِتِّينَ خَرِيفًا»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] حضرت انس رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل [٢] کوم سړي چې په ښه شان (یعنی پوره) اودس وکړی [٣] او بیا د ثواب (حاصلولو) په اراده د خپل مسلمان ورور عیادت (پوښتنه) یي وکړه [٤] نو هغه به د دوزخ څخه د شپیتو کلونو (د مسافت یعنی فاصلي) په اندازه لرې ساتل کیږي، (ابوداود)

**حل اللغات:**- ① مُحْتَسِبًا: دثواب دپاره، ② بُوعِدَ: لرې به اوساتلې شی. ③ مَسِيرَةَ: مسافت، فاصله، ④ خَرِيفًا: خریف د خزان موسم ته وائی اودا موسم په کال کښې یوځل راځی لهذا یوخریف د یو کال برابر دې.

**تسهیلات: قوله: فَأَحْسَنَ الْوُضُوءَ:**

**د عیادت دپاره د اودس کولو استحباب:** -اودس کول ښه څیزدې هرمسلمان له په هرممکن وخت کښې په اودس کښې پاتې کیدل پکاردی. دغه شان که د چا پوښتنې دپاره تلل وی نواودس کولوسره تلل مستحب دی ځکه چه هلته د دعا کولوضرورت راتلې شی د څه د پاره چه اودس ډیر ښه دې. بل د مونځ د ادا کولوصورت هم پیښیدې شی نوتیارتلل پکاردی.

**فائده:** د دې حدیث څخه معلومه شوه چې د عیادت د پاره اودس کول سنت دي او غالبًا د دې حکمت دادي چې فرمایلي یي دي چې عیادت (پوښتنه) عبادت دي اودا ظاهره ده چې په اودس سره عبادت کامل او افضل کیږي علماء لیکي چې که په داسې حالت کې دعاء وکړل شي نو هغه قبلیږي.

### [١٥٥٣] د عیادت په وخت کښې د مریض د پاره دعا

١٥٥٣-(٢)[٣١] [١] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [٢] "«مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَعُودُ مُسْلِمًا فَيَقُولُ سَبْعَ مَرَّاتٍ: [٣] أَسْأَلُ اللهَ الْعَظِيمَ، رَبَّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ [٤] أَنْ يَشْفِيَكَ، إِلَّا شُفِيَ [٥]

(١) اخرجه ابوداود فی کتاب الجنائز /باب فی فضل العیادة علی وضوء (رقم-٣٠٩٧)

(٢) اخرجه ابوداود فی کتاب الجنائز. باب الدعاء للمریض عند العیادة (رقم-٣١٠٦) والترمذی کتاب الطب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-٢٠٨٣)

إِلَّا أَنْ يَكُونَ قَدْ حَضَرَ أَجَلُهُ»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:**[١] حضرت ابن عباس ﷺ راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل[٢] هر کله چې یو مسلمان د یو مریض عیادت کوي او اوه ځله دا کلمات اووائي [٣] أَسْأَلُ اللّٰهَ الْعَظِيمَ رَبَّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ أَنْ يَشْفِيَكَ يعنى زه د الله بزرګ وبرتو څخه چې د عرش عظيم مالك دي دعا غواړم [٤] چې هغه تا ته شفاء درکړي نو الله تعالى ﷻ هغه ته شفاء ورکوي [٥] په شرط د دی چې د هغه (د مرګ) وخت نه وی راغلې (یعني د هغه مرض لاعلاجه نه وي) (ابوداؤد ترمذي)

**حل اللغات:-** ① أَجَلُهُ: نیټه دده یعنی آخرت وخت،

**تسهيلات:**

**قوله:** إِلَّا شُفِيَ:

**د شفاء نه ملاویدو وجه:-** دا حکم تغلیبی دې چې عام طور شفا ملاویږی که چرته شفا او نشی نو دا به زمونږ د کوتاهئ په وجه وی یا به ددې وخت ختم شوې وی

**قوله:** أن يكون قد حضر أجله:

**د مذکوره دعا دوه فائدې:-** ① ملا علی قاری ﷫ فرمائی که چرې دا دعا په قریب المرګ باندې اووئیلې شی نو ددې دعا په برکت سره به دهغه ساه په آسانه سره اوځی
② او خاتمه به ئې بالایمان اوشی.

**[١٥٥٤] د تبې او دردونو د پاره یو عجیبه دم**

١٥٥٤-(١)[٣٢][١] وَعَنْهُ: [٢] «أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يُعَلِّمُهُمْ مِنَ الْحُمَّى وَمِنَ الْأَوْجَاعِ كُلِّهَا أَنْ يَقُولُوا: [٣] "بِسْمِ اللّٰهِ الْكَبِيرِ، أَعُوذُ بِاللّٰهِ الْعَظِيمِ، [٤] مِنْ شَرِّ كُلِّ عِرْقٍ نَعَّارٍ، [٥] وَمِنْ شَرِّ حَرِّ النَّارِ» " [٦] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، [٧] لَا يُعْرَفُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ إِبْرَاهِيمَ بْنِ إِسْمَاعِيلَ، وَهُوَ يُضَعَّفُ فِي الْحَدِيثِ.

**ترجمه:**[١] ابن عباس ﷠ راوي دي[٢] چې نبي کريم ﷺ به صحابه ؤ ته ښودل چې هغوی (یعني مریض خلق دي) د تبې بلکه د هر درد (څخه د شفاء د پاره) دا رنګه دعا کوي [٣] بِسْمِ اللّٰهِ الْكَبِيرِ أَعُوذُ بِاللّٰهِ الْعَظِيمِ مِنْ شَرِّ كُلِّ عِرْقٍ نَعَّارٍ وَمِنْ شَرِّ حَرِّ النَّارِ (یعني زه د الله بزرګ وبرتر په نامه سره برکت غواړم او پنا غواړم د الله بزرګ وبرتر [٤] او د هر رګ جوش وهونکي د بدي (یعنی تکلیف) څخه[٥] او د اور د بدي څخه [د الله بزرګ وبرتر پناه غواړم]، [٦] امام ترمذي ﷫ دا حديث نقل کړي دي او فرمايلي يي دي چې دا حديث غريب دي[٧] ځکه چې مونږ دا حديث د ابراهيم ابن اسمعيل څخه علاوه په بلې ذريعي سره نه پيژنو او هغه (یعني ابراهيم) د حديث د روايت په باره کې ضعيف شميرل کيږي.

(١) اخرجه الترمذی فی کتاب الطب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-٢٠٧٥) وابن ماجة کتاب الطب/باب ما یعوذ به من الحمی (رقم-٣٥٢٦)

**حل اللغات:-** ① الْحُمّى: تبه، ② الْأَوْجَاعِ: د وجع جمع ده، هرقسم درد، ③ عِرْقٍ: رګ، ④ نَعَّار: وينې سره دَ جوش وهلو په معنی کښې دې.

**تسهیلات: قوله: مِنْ شَرِّ كُلِّ عِرْقٍ نَعَّارٍ:**

**د نعار وضاحت:-** عرب وائي "نعرالعرق" يعنی په رګ کښې وينې جوش اوهلو يا په تبه کښې هم داسې کيږي چه په رګونو کښې دَ وينې دباؤ زياتيږي کوم چه خطرناك دې. دغه شان "جرح نعار" دَ زخم نه چه کله وينه دَ فوارې په شان راؤځي او آواز اوچتيږي دې ته نعار وائي.

**[١٥٥٥] دَ هرې بيمارۍ دپاره مجرب عمل**

١٥٥٥-()[٣٣] ① وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-يَقُولُ: ② "«مَنِ اشْتَكَى مِنْكُمْ شَيْئًا أَوِ اشْتَكَاهُ أَخٌ لَهُ، فَلْيَقُلْ: ③ رَبُّنَا اللَّهُ الَّذِي فِي السَّمَاءِ، ④ تَقَدَّسَ اسْمُكَ، أَمْرُكَ فِي السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ، ⑤ كَمَا رَحْمَتُكَ فِي السَّمَاءِ، ⑥ فَاجْعَلْ رَحْمَتَكَ فِي الْأَرْضِ، ⑦ اغْفِرْ لَنَا حُوبَنَا وَخَطَايَانَا، ⑧ أَنْتَ رَبُّ الطَّيِّبِينَ، ⑨ أَنْزِلْ رَحْمَةً مِنْ رَحْمَتِكَ، ⑩ وَشِفَاءً مِنْ شِفَائِكَ، عَلَى هَذَا الْوَجَعِ ⑪ فَيَبْرَأَ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① حضرت ابو درداء ﷺ راوي دي چې ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي ② چې په تاسو کې چې کوم سړي ته څه مريضی وي يا د هغه يو ورو مريض وي نو هغه ته پکار دي چې دا دعا وايي ③ (ترجمه) زمونږ پروردګار الله دي داسې الله چې په آسمان کې دي ④ (د ټولو نقصاناتو څخه) ستا نوم پاك دي، ستا حکومت په آسمان او زمکه (دواړو) کې دي ⑤ څرنګه چې ستا رحمت په آسمان کې دي ⑥ دغه شان ته خپل رحمت په زمکه نازل کړي ⑦ زمونږ وړوکي او لوي ګناهونه وبخښې ⑧ ته د پاکيزه خلقو پروردګار يي [يعني د هغوئ محب او کار جوړونکی يي] ⑨ او ته د خپل رحمت څخه (چې په هر څيز باندې خور دي) رحمت عظيمه نازل کړي ⑩ او د دې مريضی څخه خپله شفاء ورکړي ⑪ (د دی دعا د په ويلو سره به بيمار انشاء الله) ښه شي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ① تَقَدَّسَ: پاک دې دهرقسم عيب نه، ② حُوبَنَا: لوئې ګناه ته حوب وائي. ③ خَطَايَانَا: خطاء وړه او لويه، پټه، ښکاره ټولو ګناهونو ته وائي. ④ الْوَجَعِ: درد، ⑤ فَيَبْرَأَ: نوښه شي.

**تسهیلات:**

**قوله: اغْفِرْ لَنَا حُوبَنَا وَخَطَايَانَا:**

**په حوب او خطايا کښې فرق:-** حوب: لوئې ګناه ده حوب وائي خطايا نورو وړوګناهونو ته وائي يعنی زمونږ لوئې واړه ټول ګناهونه معاف کړې که هغه په قصد سره وی او که خطأ سره وی.

[1]) اخرجه ابوداود في كتاب الطب/باب كيف الرقى (رقم-٣٨٩٢)

**[١٥٥٦] دَ جهاد دَپاره دَ صحت دعا**

١٥٥٦-(١)[٣٤] [١] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-" [٢] «إِذَا جَاءَ الرَّجُلُ يَعُودُ مَرِيضًا فَلْيَقُلْ: [٣] اللّٰهُمَّ اشْفِ عَبْدَكَ يَنْكَأُ لَكَ عَدُوًّا، [٤] أَوْ يَمْشِي لَكَ إِلَى جِنَازَةٍ» ". رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] حضرت عبد الله ابن عمرو رضي الله عنهما راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] کله چې څوک د يو سړي (د يو مريض) عيادت ته ورشي نو هغه ته دي دا دعا کوي [٣] اللّٰهُمَّ اشْفِ عَبْدَكَ يَنْكَأُ لَكَ عَدُوًّا أَوْ يَمْشِي لَكَ إِلَى جِنَازَةٍ (يعني اې الله خپل بنده ته شفاء ورکړې چې هغه ستا دښمن ته تکليف ورسوي (يعني د دين د دښمنانو سره جنګ وجدال کولو سره هغه زخمي او قتل کړي) [٤] يا ستا د خوښې او رضا د خاطره جنازې طرف ته (يعني د جنازې د مانځه د پاره) لاړ شي. (ابوداود)

**حل اللغات:-** ① اشف: دَ شفانه دَ امرصيغه ده "عبدك" دې نه بيمار او ناجوړه بنده مراددې. ② يَعُودُ: عيادت اوپوښتنه کوی، ③ يَنْكَأُ: باب فتح يفتح نه دښمن وژل او عبرتناك سزا ورکولو په معنى کښې ده.

**تسهيلات:**

**قوله:** اللّٰهُمَّ اشْفِ عَبْدَكَ يَنْكَأُ لَكَ عَدُوًّا:

**د صحت دپاره الله تعالى ته جهاد وسيله کول:-** مطلب داچه حضورپاك دَ دغه مريض دَ صحت دَپاره جهاد وسيله اوذريعه جوړه کړې ده. اې الله دې بنده ته شفا ورکړه دې به ستا په لارکښې جهادکوی دَ جهاد په برکت باندې ده ته صحت ورکړې. داسړې به ستادښمنانوته سزا ورکوی زخمي کوی به ئې اوهغوی سره به جنګيږي. اوکه دَ نوبت رانغلو نوکم نه کم دَ يومسلمان جنازې ته به لاړشي يابه دَ يوشهيدجنازه اوکړي. دَدې حديث نه دَ جهاددَ عظمت اندازه لګی چه حضورپاك دې وسيلې اوذريعې جوړولوسره دَالله تعالى نه دَ قبليدو دعا درخواست اوکړو چه که دابنده تيك شو نودې به دَ جهاد په شان غټ کار کوی اودَ الله تعالى دَ دښمنانوسره بنکته کوی.

**[١٥٥٧] دَ بيمار تکليف اودَ ګناهونوکفاره**

١٥٥٧-(٢)[٣٥] [١] وَعَنْ عَلِيِّ بْنِ زَيْدٍ، «عَنْ أُمَيَّةَ: أَنَّهَا سَأَلَتْ عَائِشَةَ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا-عَنْ قَوْلِ اللّٰهِ-عَزَّ وَجَلَّ-: [٢]: ﴿وَإِنْ تُبْدُوا مَا فِي أَنْفُسِكُمْ أَوْ تُخْفُوهُ يُحَاسِبْكُمْ بِهِ اللّٰهُ﴾ [البقرة:٢٨٤] [٣] وَعَنْ قَوْلِهِ: ﴿مَنْ يَعْمَلْ سُوءًا يُجْزَ بِهِ﴾ [النساء:١٢٣] "، [٤] فَقَالَتْ: مَا سَأَلَنِي عَنْهَا أَحَدٌ مُنْذُ سَأَلْتُ رَسُولَ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-، [٥] فَقَالَ: " هَذِهِ مُعَاتَبَةُ اللّٰهِ الْعَبْدَ بِمَا يُصِيبُهُ مِنَ الْحُمَّى وَالنَّكْبَةِ [٦] حَتَّى الْبِضَاعَةِ يَضَعُهَا فِي يَدِ قَمِيصِهِ، [٧] فَيَفْقِدُهَا،

[١] اخرجه ابوداود فى كتاب الجنائز، باب الدعاء للمريض عند العيادة (رقم-٣١٠٧)

[٢] اخرجه الترمذى فى كتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ باب: ومن سورة البقرة (رقم-٢٩٩١)

فَيَفْزَعُ لَهَا، ٨ حَتَّى إِنَّ الْعَبْدَ لَيَخْرُجُ مِنْ ذُنُوبِهِ ٩ كَمَا يَخْرُجُ التِّبْرُ الْأَحْمَرُ مِنَ الْكِيرِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ١ حضرت علي ابن زيد (بصري تابعي) د اُميه څخه روايت کوي چې هغه د بي بي عايشي صديقي رضي الله عنها څخه د الله تعالى د دې ارشاد معني وپوښتله ٢ إِنْ تُبْدُوا مَا فِي أَنْفُسِكُمْ أَوْ تُخْفُوهُ يُحَاسِبْكُمْ بِهِ اللَّهُ (که تاسو هغه څيز چې ستاسو په زړونو کې دي ظاهروئ يا پټوئ الله جل جلاله به ستاسو څخه د هغې حساب اخلي) ٣ او د دې آيت معنى هم وپوښتله وَمَنْ يَعْمَلْ سُوءًا يُجْزَ بِهِ (کوم سړي چې بد عمل کوي (يعني خواه صغيره گناه کوي خواه کبيره گناه) نو د هغې سزا (يعني د هغې سزا په دنيا او آخرت کې) ورکول کيږي) ٤ بي بي عايشي رضي الله عنها وفرمايل چې د څه وخت څخه ما په دې باره کې د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه پوښتنه کړې وه د هغه وخت څخه هيچا زما څخه د دې مسئلي په باره کې پوښتنه نه ده کړې ٥ نو حضور صلى الله عليه وسلم (زما په سوال کولو) وفرمايل چې دا (يعني محاسبه او سزا چې په دواړو آيتونه کې مذکور دي) د الله تعالى جل جلاله عتاب دي چې په هغې کې بنده د تبې او رنځ (د تکليف) په صورت کې مبتلا کيږي ٨ تر دې چې يو بنده خپل څه مال د خپل قميص په لستوڼي (يا جيب) کې ايږدي او (بيا هغه مال ورك شي چه) هغه يې پيدا نه کړي نو هغه د هغې د نه پيدا کيدو څخه غمجن کيږي (نو د دې په وجه د هغه گناه لرې کيږي او هميشه دا سلسله جاري وي چې بنده په څه تکليف او رنځ کې مبتلا وي) ٨ تر دې چې هغه بنده د خپلو گناهونو څخه داسې پاك شي لکه سره او سپين زر چه د بټې څخه (د اُور رسيدلو د وجهی څخه) صفا راوځي. (ترمذي)

**حل اللغات:-** ① مُعَاتَبَةُ: دَ دوو دوستانو په مينځ کښې دَ محبت باوجود زړتې ته عتاب وئيلى شي. ② النَّكْبَةِ: تکليف او مصيبت اودَ حادثاتو په معنى کښې دې. ③ الْبِضَاعَةِ: معمولى سامان ته وائى. ④ يَدِ قَمِيصِهِ: دَ قميص دَ لاس نه مراد لستوڼې دې. ⑤ فَيَفْقِدُهَا: ورک شى هغه يعنى پيدا ئې نه کړى، ⑥ فَيَفْزَعُ: أَيْ: يَحْزَنُ: هغه غمجن شى، خفه شى، ⑦ التِّبْرُ: سره او سپين زر.

**تسهيلات:**

**قوله: يَدِ قَمِيصِهِ:** پخوانئ زمانه کښې به دَ سامان کيخودودپاره په لستوڼى کښې جيب وو په هغې کښې به سامان کيخودې شو. بيا جيب مخامخ په سينه راغلو بيا په ترخ کښې راغلو او اوس په پرتوگ کښې هم راغلو.

**د دوو آياتونو په وجه اشكال:-** دې صحابى دَ دوو آياتونو باره کښې دَ حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها نه دَدې دپاره سوال اوکړوچه دَ دغه آياتونو په مطلب کښې هغه په يو پريشانئ کښې اخته وو. لکه هغه صحابى گنړل چه په اول آيت کښې دى چه دَ زړه دَ پټوخبره به حساب کيږى نودېره گرانه ده ځکه چه دَ زړه دَخيالاتو او وسوسو نه بچ کيدل ممکن نه دى. دَ دويم آيت مطلب دادې چه دا سړې کوم عمل هم

کوي د هغې بدله به ورکولې شي. نو په دې سره به سړې په ورو ګناهونو کښې اخته کېدو د وجې نه په عذاب کښې راګېرېږي حالانکه د صغائر نه بچ کېدل ډېر ګران دي

**د عائشې جواب:** - د دې په جواب کښې حضرت عائشه صدیقه ﷺ اوفرمائیل چه د کله نه ما د دې آیاتونو باره کښې د رسول الله ﷺ نه تپوس کړې وو د هغې نه پس مانه چا د دې باره کښې پوښتنه نه ده کړې صرف تا تپوس اوکړو. حضورپاك ماته په جواب کښې اوفرمائیل "هذه" یعنی دا محاسبه اودا سزا کوم چه په دواړو آیاتونو کښې ذکر دی په دې سره د الله تعالی د هغه رټنې طرف ته اشاره ده چه سړی ته د تبې په شکل کښې کیږی یا د بل څه مصیبت په صورت کښې کیږی. تردې چه د قمیص په لستونړی کښې که څه معمولی شان څیز کیخودې وی او هغه پریوتو سره ورك شی او سړې په دې وجه باندې پریشانه شی نو دا تول څیزونه د هغه زړه د خیالاتو او وړوکو اعمالو بدله ده . تردې چه په دې وړو سزاګانو سره سړې د ګناهونونه داسې پاك شی اوپرقیږی لکه چه سره زر د بهټئی نه پاك او صفا راوځی.

**[۱۵۵۸] د تکلیفونو اسباب**

۱۵۵۸-() [۳۶] [۱] وَعَنْ أَبِي مُوسَى - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ -: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] " «لَا يُصِيبُ عَبْدًا نَكْبَةٌ فَمَا فَوْقَهَا أَوْ دُونَهَا إِلَّا بِذَنْبٍ» [۳] وَمَا يَعْفُو اللَّهُ عَنْهُ أَكْثَرُ، وَقَرَأَ: [۴] ﴿وَمَا أَصَابَكُمْ مِنْ مُصِيبَةٍ فَبِمَا كَسَبَتْ أَيْدِيكُمْ وَيَعْفُو عَنْ كَثِيرٍ﴾ [الشورى: ۳۰]» . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابو موسی ﷺ راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] بنده ته چې څه معمولي ضرر رسيږی يا څه تکليف ورته رسيږی خواه هغه د دی څخه کم وي يا زيات وي دا د هغه د ګناهونو نتيجه وي [۳] او هغه ګناهونه چې الله تعالی ﷻ (بغير د سزا ورکولو) په دنيا او آخرت کې بخښي د هغه ګناهونو څخه ډېر زيات وي چې په هغې هغه ته سزا ورکوي اوحضور ﷺ دا آيت تلاوت کړو [۴] وَمَا أَصَابَكُمْ مِنْ مُصِيبَةٍ فَبِمَا كَسَبَتْ أَيْدِيكُمْ وَيَعْفُوا عَنْ كَثِيرٍ (او هر قسم مصيبت کوم چې تاسو ته رسيږي هغه ستاسو د لاسونو پيدا کرده دي او الله تعالی ﷻ ډير (ګناهونه يا ګنهګاران) معاف کوي) (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① نَكْبَةٌ: تکليف اومصيبت اود حادثاتو په معنی کښې دي.

**تسهیلات:**

**قوله: لَا يُصِيبُ عَبْدًا نَكْبَةٌ فَمَا فَوْقَهَا أَوْ دُونَهَا إِلَّا بِذَنْبٍ:**

**د عافیت د پاره د ګناهونو پریښودل:** - یعنی کوم تکلیف چه تاته رسیدلې دې داستاد بدو اعمالو د وجې نه دې او الله تعالی د ډېرو زیاتو ګناهونو نه معافی کوی. لهذا که راحت او

(۱) اخرجه الترمذی فی کتاب تفسیر القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /باب: ومن سورة حم عسق (رقم-۳۲۵۲)

سکون غواړي نود ګناهونونه منع شه. دَدې نه معلومه شوه چه ازمیښت او حادثې دَ ګناهونودَ وجې نه راځي. لیکن کوم خلق چه په ظاهر باندې دَ لویوګناهونو مرتکب کیږي نه نوکه په هغوی باندې څه مصیبت راځي نو هغه دَهغوی دَپاره په توګه دَ امتحان او دَ درجوَ اوچتیدو ذریعه وي. علماؤ لیکلي دي چه بعضې آسماني آفتونه داسې وي دکوم دَپاره چه څه ظاهري سبب وي دا دَ انسان دَخپل طرف نه دَ څه کوتاهو نتیجه وي.

**[١٥٥٩] د صحت د عمل په بیمارئ کښې ثواب**

١٥٥٩–()[٣٧] [١] وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: " [٢] «إِنَّ الْعَبْدَ إِذَا كَانَ عَلَى طَرِيقَةٍ حَسَنَةٍ مِنَ الْعِبَادَةِ، [٣] ثُمَّ مَرِضَ، قِيلَ لِلْمَلَكِ الْمُوَكَّلِ بِهِ: [٤] اكْتُبْ لَهُ مِثْلَ عَمَلِهِ إِذَا كَانَ طَلِيقًا [٥] حَتَّى أُطْلِقَهُ، أَوْ أَكْفِتَهُ إِلَيَّ» ".

**ترجمه:** [١] حضرت عبدالله ابن عمرو ﷠ راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] هر کله چې بنده د عبادت په نیکه لار وي [٣] او بیا مریض شي (او د هغه عبادت په کولو باندې قادر نه وي) نو هغه فرشتي ته چې د هغه بنده (د هغه د نیکو اعمالو په لیکلو) مقرره وي وئیل کیږي [٤] یعني الله تعالی ﷻ ورته فرماي چه) د دې بنده د پاره (د هغه په اعمال نامه کې) د هغه عمل په مثل ولیکه چې هغه به د تندرستي په حالت کې کول [٥] تر دې چې زه ده ته تندرستي ورکړم (صحت ورکړم) یا دې (خان ته) را وغواړم.

**حل اللغات:** - ① الْمُوَكَّلِ: چه مقررده (هغه فرشته مراد ده چه دده د نیکو لیکلو دپاره مقررده). ② طَلِيقًا: طلیق اومطلق دَ آزاد په معنی کښې دې. یعنی کوم وخت چه داسړې دَبیمارئی نه آزادوو، ③ أُطْلِقَهُ: دَباب افعال نه دَ واحد متکلم صیغه ده. یعنې دې دَبیمارئی نه خلاص کړه اودې آزاد کړه. ④ أَكْفِتَهُ: همزه مفتوح ده کفت ضرب یضرب سره دَ راغونډولو معنی کښې دې مراد مرګ ورکول دي.

**تسهیلات:**

**قوله: اكْتُبْ لَهُ مِثْلَ عَمَلِهِ إِذَا كَانَ طَلِيقًا:**

**د صحت د اعمالو ثواب په بیمارۍ کښې:** - دَدې قسم حدیث وراندې ٢٢ تیرشو اودَهغې توضیح هم شوې ده. مطلب داچه دَ بیماربـاره کښې الله تعالی دَ عمل نامې لیکونکو فرښتو ته حکم ورکوی چه دې بیماربه په صحت کښې عبادت کولو دَهغې لیکل اوس هم جاري اوساتئی سره دَدې چه هغه عمل اوس نه کیږي. دادَالله تعالی ډیر لوئی احسان دې. "اكفته" دادَ ضرب یضرب نه واحد متکلم صیغه ده دَ یوځیز راغونډولو ته وائی مراد مرګ دې.

[1] اخرجه الدارمی فی السنن ٢/٤٠٧ حدیث رقم ٢٧٧٠

[١٥٦٠] په بيمارۍ کښې د صحت نيک اعمال ليکل

١٥٦٠ -(١)[٣٨] [١] وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ -: أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [٢] «إِذَا ابْتُلِيَ الْمُسْلِمُ بِبَلَاءٍ فِي جَسَدِهِ، [٣] قِيلَ لِلْمَلَكِ: اكْتُبْ لَهُ صَالِحَ عَمَلِهِ الَّذِي كَانَ يَعْمَلُ، [٤] فَإِنْ شَفَاهُ غَسَلَهُ وَطَهَّرَهُ، [٥] وَإِنْ قَبَضَهُ غَفَرَ لَهُ وَرَحِمَهُ». رَوَاهُمَا فِي "شَرْحِ السُّنَّةِ".

**ترجمه:** [١] حضرت انس ﷛ راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] کله چې يو مسلمان په جسماني مرض کې مبتلا کيږي [٣] نو الله تعالى ﷻ (د هغه بنده نيکي ليکونکي) فرشتي ته فرمايي چې د ده په عمل نامه کې ته هغه نيک عمل ليکه چې ده (د دې مريضي څخه مخکې) کولو [٤] که الله تعالى ﷻ هغه مسلمان ته شفاء ورکړي نو د هغه ګناهونه وينځي او پاکوي يي [٥] او که هغه واخلي (وفات شي) نو هغه بخښي او په هغه رحم کوي، دا دواړه روايتونه بغوي ﷫ په شرح السنه کې نقل کړي دي.

**حل اللغات:** - ① بَلَاءٍ: تکليفونه، جسماني مرضونه مراد دی.

**تسهيلات:**

**قوله:** اكْتُبْ لَهُ صَالِحَ عَمَلِهِ الَّذِي كَانَ يَعْمَلُ:

**د نيک عمل په ليکلو کښې دوه اقوال:** - ① ددې حديث مبارک تشريح واضح ده (الذي كان يعمل أنه يكتب له نفس العمل) يعنی دده دپاره به نفس عمل ليکلې کيږي

② بعضې عالمانو وئيلی دی چې ثواب به ليکلې کيږي اول مطلب زيات أبلغ دي

[١٥٦١] د شهيدانو قسمونه

١٥٦١ -(٢)[٣٩] [١] وَعَنْ جَابِرِ بْنِ عَتِيكٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " [٢] «الشَّهَادَةُ سَبْعٌ سِوَى الْقَتْلِ فِي سَبِيلِ اللهِ: [٣] الْمَطْعُونُ شَهِيدٌ، [٤] وَالْغَرِيقُ شَهِيدٌ، [٥] وَصَاحِبُ ذَاتِ الْجَنْبِ شَهِيدٌ، [٦] وَالْمَبْطُونُ شَهِيدٌ، [٧] وَصَاحِبُ الْحَرِيقِ شَهِيدٌ " [٨] وَالَّذِي يَمُوتُ تَحْتَ الْهَدْمِ شَهِيدٌ، [٩] وَالْمَرْأَةُ تَمُوتُ بِجُمْعٍ شَهِيدٌ» " رَوَاهُ مَالِكٌ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [١] حضرت جابر ﷛ ابن عتيک راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] د هغه شهادت څخه علاوه چې د الله ﷻ په لارکې وي د شهادت نور اووه قسمونه دي [٣] ① کوم سړي چې په طاعون کې مړ شي هغه شهيد دي [٤] ② کوم سړي چې ډوبيدوسره مړ شو هغه شهيد دي [٥] ③ کوم سړي چې په ذات الجنب (يعني نمونيا (يو زخم دي چې دانسان په اړخ کې ترغوبښي لاندي پيدا کيږي) کې) مړ شو هغه شهيد دي [٦] ④ کوم سړي چې د خيټې په

---

[1]) اخرجه احمد فی المسند ١٤٨/٣

[2]) اخرجه ابوداود فی کتاب الجنائز /باب فی فضل من مات فی الطاعون (رقم-٣١١١) والنسائی کتاب الجنائز /باب النهی عن البکاء علی المیت (رقم-١٨٤٦) ومالک فی الموطا کتاب الجنائز /باب النهی عن البکاء علی المیت (رقم-٣٦)

مريضي (يعني په دست او وباء كې) مړ شي هغه شهيد دي[٧] ⑤ کوم سړي چې سوځيدلو سره مړ شي هغه شهيد دي[٨] ⑥ کوم سړي چې د ديوال وغيره لاندې کيدو سره مړ شي هغه شهيد دي[٩] ⑦ او هغه ښځه چې د حمل په حالت کې يا پيغله وي مړه شي هغه شهيده ده، مالك ابوداود نسائي.

**حل اللغات:-** ① الْمَطْعُوْنُ: د طاعون مريض ته مطعون وائي په دې مرض کښې په بدن مثلاً ترخ، پندنى اوخيته وغيره باندې زخم پيداکيږي، او مريض پکښې مړکيږي. ② الْغَرِيْقُ: درياب نهر يا سمندر کښې ډوبيدو سره مړکيدونکې. ③ ذَاتِ الْجَنْبِ: دَ نمونيه بيمارئ ته وائي په دې سره په پوښتئ، سينه او زړه سره پولئي پيداکيږي په کوم سره چه مريض توخيږي اوساه ئې بنديږي. ④ الْمَبْطُوْنُ: دَ خيټې په مرض لکه هيضه وغيره سره مړکيدونکې ته وائي. ⑤ الْحَرِيْقُ: چه په اور اوسوزي او مړشي. ⑥ الْهَدْمِ: هغه سړي چه دَ اوچت ځاى نه يعنى غر يا ديوال وغيره نه راپريوځي او مړشي. ⑦ جُمْعٍ: بِمَعْنَى الْمَجْمُوْعِ: دا لفظ مجموعي طرف ته اشاره کوي مرادهغه ښځه ده چه په خيټه کښې بچي سره مړه شي.

**تسهیلات:**

**قوله: وَالْمَرْأَةُ تَمُوْتُ بِجُمْعٍ شَهِيْدٌ:** دې نه دَ بچي پيداکيدو ټول احوال مراددي که هغه دَ پيدائش نه وړاندې حالت دَحمل کښې مړه شي يادَ بچي پيداکيدوپه وخت مړه شي اويا دَ پيدائش نه پس څلويښت ورځوکښې دننه مړه شي داټول صورتونه دَ حکمي شهادت دي.

**د حکمي شهيدانو شمير:-** مطلب داچه حقيقي شهيدخوهغه وي چه کافرانوسره په مقابله کښې اووژلې شي ليکن دَدې نه علاوه دَ حکمي شهيدانو شميراوه دي.

**[١٥٦٢] مصيبت په اندازه د مرتبې**

١٥٦٢-()[٣٠][١] وَعَنْ سَعْدٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: «سُئِلَ النَّبِيُّ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [٢] أَيُّ النَّاسِ أَشَدُّ بَلَاءً؟ [٣] قَالَ: " الْأَنْبِيَاءُ، ثُمَّ الْأَمْثَلُ فَالْأَمْثَلُ [٤] يُبْتَلَى الرَّجُلُ عَلَى حَسَبِ دِينِهِ، [٥] فَإِنْ كَانَ فِي دِينِهِ صُلْبًا اشْتَدَّ بَلَاؤُهُ، [٦] وَإِنْ كَانَ فِي دِينِهِ رِقَّةٌ هُوِّنَ عَلَيْهِ، [٧] فَمَا زَالَ كَذٰلِكَ حَتّٰى يَمْشِيَ عَلَى الْأَرْضِ مَا لَهُ ذَنْبٌ» " [٨] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ، وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.

**ترجمه:** [١] حضرت سعد رضي الله عنه فرمايي چې د نبي کريم ﷺ څخه پوښتنه وشوه [٢] چې په خلقو کې کوم سړي (د محنت او مصيبت) په زياتي سختي بلا کې مبتلا کيږي؟ [٣] حضور ﷺ وفرمايل چې انبياء بيا هغه خلق چې د انبياؤ سره ډير زيات مشابه وي بيا هغه خلق چه دوى سره زيات مشابهه وى [٤] (بيا حضور ﷺ وفرمايل چه) انسان د خپل دين مطابق (په مصيبت کې) مبتلا کيږي [٥] که يو سړي په خپل دين کې سخت وي نو د هغه مصيبت هم

---

١) اخرجه الترمذى فى كتاب الزهد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى الصبر على البلاء (رقم-٢٣٩٨) وابن ماجة كتاب الفتن/باب الصبر على البلاء (رقم-٤٠٢٣) والدارمى فى باب: فى أشد الناس بلاءً (رقم-٢٨٢٥)

سخت وي ⑥ او که یو سړي په خپل دین کې نرم وي نو د هغه مصیبت هم معمولي وي ⑦ [نو په خپل دین کې سخت سړي] دغه شان همیشه په مصیبت او بلا کې ګرفتار وي [چې د هغې په وجه د هغه مغفرت کیږي] تر دې چې هغه په زمکه باندې په داسې حال کې ګرځي چې د هغه په عمل نامه کې څه ګناه نه وي، ⑧ ترمذي، ابن ماجه، دارمي، امام ترمذي رحمه الله فرمایي چې دا حدیث حسن صحیح دی.

**حل اللغات:-** ① بَلَاءٌ: تکلیفونه، جسماني مرضونه مراد دي. ② الْأَمْثَلُ فَالْأَمْثَلُ: أي: الْأَشْبَهُ بِهِمْ، وَالْأَمْثَلُ لِلْأَمْثَلِ رُتْبَةً وَمَنْزِلَةً، یعنی څوک چه په مرتبه کښې ددوی پشان وی یا ددوی نه په مرتبه کښې زیات وی ③ صُلْبًا: دَسختئ اومضبوطیا په معنی کښې دې چه په دین کښې مضبوط دی. ④ رِقَّةٌ: یعنی دین نرم دې ایمان کمزورې دې معیار کم دې. ⑤ هُوْنَ: نرمی کول او آساني ورکولو په معنی کښې دې.

**تسهیلات: قوله : يُبْتَلَى الرَّجُلُ عَلَى حَسَبِ دِينِهِ:**

**مصیبت په قدر د عظمت:-** دَدې حدیث مطلب دادې چه په انبیاء کرامو باندې دَ ټولو نه زیات مصیبتونه راځی. په هغوی کښې چه کوم یو هم په زیات اوچت مقام باند وی په هغوی باندې زیات مشقتونه راځی. چنانچه نبی کریم ﷺ دَټولو نه زیات په تکلیفونو کښې وو خکه چه دَ حضورپاك مقام ډیر اوچت وو. نوحصه په قدر دَ جثه وی اودَ درجود اوچتوالی په بنیاد مصیبتونه راځی. لکه څنګه چه دَ دورۂ حدیث دَ طلباء امتحان دَهغوی دَ معیار مطابق وی اودَ درجه اولی دَ طلباء امتحان دَهغوی دَ معیارمطابق وی. دغه شان دَ انبیاؤ کرامونه پس دَ انبیاء کرامو دَ وارثینو علماؤ، اولیاؤ اوصلحاؤ معامله ده.

**قوله: يُبْتَلَى الرَّجُلُ عَلَى حَسَبِ دِينِهِ:**

**د مصیبتونو په اعتبار سره نیک اونافرمان سره جدا جدا معامله:-** د دنیا سزا بهر صورت د آخرت د سزا نه بهتر ده په دې وجه کوم نیکان خلق چې په څه ګناه کښې اخته شي نو الله ﷻ دا خپل بندګان په د نیاوی مصیبت او تکلیف یا بیماري وغیره کښې اخته کوی او په دې صورت کښې ورته سزا ورکوی او داسې چې د دنیا عذاب آسان دې او په دې و جه چې ددنیا وخت کم دې او په څه نه څه صورت کښې به تیر شی خو هغه خلق چې مسلسل دالله ﷻ نافرماني کوی او په دې وجه دالله ﷻ په عذاب کښې ګرفتاریږی او د آخرت په بدبختۍ کښې اخته کیږی الله ﷻ دوئ ته په دنیا کښې سزا نه ورکوی بلکه دوئ باندې پرېږدي ورسست کړی چې دوئ د آخرت په عذاب کښې ګرفتار کړی کوم چې ددنیا د عذاب نه ډیر زیات دردناك او شدید دې.

[١٥٦٣] د ژلکدن د سختئ عدم قباحت

١٥٦٣ - (١) [٤١] [١] «وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهَا - قَالَتْ: [٢] مَا أَغْبِطُ أَحَدًا بِهَوْنِ مَوْتٍ [٣] بَعْدَ الَّذِي رَأَيْتُ مِنْ شِدَّةِ مَوْتِ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [١] بي بي عايشه رضي الله عنها فرمايي [٢] زه په هيچا د مرګ د آساني غبطه نه کوم [٣] د کله نه چي ما د رسول ﷺ د مرګ سختي ليدلي ده. (ترمذي نسايي)

**حل اللغات:** - ① أَغْبِطُ: دَ پسنبيدو په معنی کښې دی. ② بِهَوْنِ: دا دَ نرمئ آسانتیا او سهولت په معنی کښې دی.

**تسهيلات: قوله:** بَعْدَ الَّذِي رَأَيْتُ مِنْ شِدَّةِ مَوْتِ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

**د ژلکدن سختی او مسلمان:** - دَحضرت عائشه صديقه رضي الله عنها دکلام مطلب دادی چه ما به مخکښی دَمرګ سختی او دَ ژنکدن دَحالت تکليف دَ مسلمانانودپاره خراب څیز ګڼړلو خوچه کله مې دَ حضورپاك دَ ژنکدن دَ حالت تکليف اوليدلو نو اوس زه دَ چا دَ مرګ په آسانتیا سره نه پسنبیږم ځکه چه دا دَ درجو دَ اوچتیدو ذریعه ده.

[١٥٦٤] په ژنکدن کښې د نبی علیه السلام عمل

١٥٦٤ - (٢) [٤٢] [١] وَعَنْهَا قَالَتْ: [٢] «رَأَيْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَهُوَ بِالْمَوْتِ، [٣] وَعِنْدَهُ قَدَحٌ فِيهِ مَاءٌ، [٤] وَهُوَ يُدْخِلُ يَدَهُ فِي الْقَدَحِ، [٥] ثُمَّ يَمْسَحُ وَجْهَهُ، ثُمَّ يَقُولُ: [٦] (اللَّهُمَّ أَعِنِّي عَلَى غَمَرَاتِ الْمَوْتِ [٧] أَوْ سَكَرَاتِ الْمَوْتِ») رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [١] بي بي عايشه رضي الله عنها فرمايي [٢] چي ما نبي کريم ﷺ وليدلو چي کوم وخت په سکرات الموت کې مبتلا وو [٣] نو يوه پياله ورسره پرته وه چې په هغې کې اوبه وې [٤] حضور ﷺ به په پياله کې خپل لاس مبارك اچولو [٥] بيا به يې په خپل مخ مبارك تيرولو او دا به يې فرمايل: [٦] اللَّهُمَّ أَعِنِّي عَلَى غَمَرَاتِ الْمَوْتِ أَوْ سَكَرَاتِ الْمَوْتِ (اي الله جل جلاله د مرګ د سختي په لرې کولو کې زما مدد وکړې [٧] يا د مرګ د سختي په ځاي يې د مرګ شدت فرمايلی) (ترمذي ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① قَدَحٌ: غټه پيالی، ② مُنْكَرَاتِ الْمَوْتِ: تکليفونه د مرګ، ③ سَكَرَاتِ الْمَوْتِ:

**تسهيلات: قوله:** سَكَرَاتِ الْمَوْتِ:

**په نبی کريم ﷺ د ژلکدن د سختئ حکمت:** - دَ سکرة جمع ده دې نه مراد دَمرګ سختی ده. رسول الله ﷺ به دَ پيالئ نه اوبه اخستو سره لوند لاس په مخ مبارك باندې ځکه رابنکلو

---

(١) اخرجه الترمذی فی كتاب الجنائز عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما جاء فی التشديد عند الموت (رقم-٩٧٩)

(٢) اخرجه الترمذی فی كتاب الجنائز عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما جاء فی التشديد عند الموت (رقم-٩٧٨) وابن ماجة كتاب الجنائز/باب ما جاء فی ذكر مرض رسول الله صلى الله عليه وسلم (رقم-١٦٢٣)

دي د پاره د سختئ د وجې نه چه په بدن مبارك كښې ګرمائش پيدا شوې وو په هغې كښې كمې راشي. په رسول الله ﷺ باندې د زنكدن دا تكليف ځكه راغلو چه په دې كښې امت ته يوه نمونه ملاؤ شي چه د زنكدن تكليف يو طبعي څيز دې كه چرې په چا باندې راشي نوهغه دې د حضورپاك تكليف اوحالت يادولوسره تسلي حاصله كړي اود نااميدئ ښكار نه شي.

**[١٥٦٥]د آخرت په مقابله كښې د دنيا د سزا بهتري**

١٥٦٥-()[٣٣][١] وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-:[٢] "«إِذَا أَرَادَ اللَّهُ تَعَالَى بِعَبْدِهِ الْخَيْرَ[٣] عَجَّلَ لَهُ الْعُقُوبَةَ فِي الدُّنْيَا،[٤] وَإِذَا أَرَادَ اللَّهُ بِعَبْدِهِ الشَّرَّ[٥] أَمْسَكَ عَنْهُ بِذَنْبِهِ[٦] حَتَّى يُوَافِيَهُ بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:**[١] حضرت انس رضی الله عنه راوي دي چې رسول اكرم ﷺ وفرمايل[٢] كله چې الله تعالى جل جلاله د خپل بنده د خير اراده كوى [٣] نو د هغه د ګناهونو سزا زر په دنيا كې وركوى [٤] او كله چې د يو بنده د بدئ اراده كوى [٥] نو د هغه د ګناهونو سزا مؤخركوي [٦] تر دى پورى چې د قيامت په ورځ به هغه ته د هغه د ګناهونو پوره پوره سزا وركوى. (ترمذي)

**حل اللغات:-** ① عَجَّلَ: زر وركوى (په دنيا كښې)، ② الْعُقُوبَةَ: سزاګانې، ③ يُوَافِيَهُ: پوره بدله وركوى (موافق د عمل).

**تسهيلات: قوله : إِذَا أَرَادَ اللَّهُ تَعَالَى بِعَبْدِهِ الْخَيْرَ:**

**ګناهونه رژيدلې الله تعالى سره ملاويدل:-** الله تعالى چې كوم مؤمن بنده ته يا مؤمنې بندې ته څه تكليف يا مصيبت اورسى او هغه هم په دغه تكليف كښې مړ شي يا مړۀ شي نو الله ﷻ ته به په داسې حالت كښې پيش كيږي چې دۀ ګنى ګناه نه ده كړې ددې نه معلومه شوه چې مصيبتونه او انسانى حالات د ګناهونو كفاره دى.

**د ګناهونو په سزا كښې نيك اوبدسره دالله تعالى معامله:-** ددنيا سزا بهر صورت د آخرت د سزا نه بهتر ده. په دې وجه كوم نيكان خلق چې په څه ګناه كښې اخته شي نو الله ﷻ دا خپل بندګان په د نياوى مصيبت او تكليف يا بيمارى وغيره كښې اخته كوى او په دې صورت كښې ورته سزا وركوى. او داسې چې د دنيا عذاب آسان دې. او په دې وجه چې ددنيا وخت كم دې او په څه نه څه رنګ به تير شي . خو هغه خلق چې مسلسل دالله ﷻ نافرمانى كوى الله ﷻ دوئ ته په دنيا كښې سزا نه وركوى بلكه دوئ باندې پرې ورسست كوى چې دوئ د آخرت په عذاب كښې ګرفتار كړى . كوم چې ددنيا د عذاب نه ډير زيات دردناك او شديد دې.

[1] اخرجه الترمذي في كتاب الزهد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في الصبر على البلاء (رقم-٢٣٩٦)

**[١٥٦٦] دَ الله تعالی په قضا راضي اوسيدل**

١٥٦٦ - (١) [٣٤] [١] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] " «إِنَّ عِظَمَ الْجَزَاءِ مَعَ عِظَمِ الْبَلَاءِ، [٣] وَإِنَّ اللَّهَ - عَزَّ وَجَلَّ - إِذَا أَحَبَّ قَوْمًا ابْتَلَاهُمْ، [٤] فَمَنْ رَضِيَ فَلَهُ الرِّضَا، [٥] وَمَنْ سَخِطَ فَلَهُ السَّخَطُ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [١] د حضرت انس ﷛ څخه روايت دي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي [٢] د غټو مصيبتونو اجر غټ دي [٣] او کوم قوم چې د الله تعالی ﷻ ډير خوښ وي نو هغه (قوم په مصيبتونه کی) مبتلا کوی [٤] نو څوک چې (په مصيبتونو او بلاګانو) کښې راضي وي نو د هغه د پاره د الله تعالی ﷻ رضا ده [٥] او څوک چې (د مصيبتونو د ابتلاء څخه ناراضه وي) نو د هغه د پاره د الله ﷻ ناراضګی ده. (ترمذي او ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① عِظَمَ الْجَزَاءِ: أَيْ: عَظَمَةُ الْأَجْرِ وَكَثْرَةُ الثَّوَابِ، ډيرې بدلې او ثوابونه، ② عِظَمِ الْبَلَاءِ: لوئې مصيبتونه، ③ السَّخَطُ: ناراضګی.

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّ عِظَمَ الْجَزَاءِ، مَعَ عِظَمِ الْبَلَاءِ:

**مصيبت او خوشحالی امتحان خداوندی:** - په دې حديث کښې دَ مصيبت په وخت دَ انسان دَ ژوند دوه اړخونه ذکرکړې شوی دی چه الله تعالی کله دَ يوانسان نه خوشحاله شی نوهغه هم په مصيبت کښې راګيروی اوچانه چه خفه شی هغه هم په مصيبت کښې راګيروی.
په دې کښې صرف دَ اول اړخ ذکرکړې شوې دې ليکن دويم طرف ئې هم دَ مخکنی حکم نه معلوميږی. دَحديث حاصل مطلب دادې چه دَ مصيبت په وخت که چرې بنده دَ الله تعالی په رضا باندې راضی وی نودادَې خبرې علامت دې چه الله تعالی دَدې بنده نه خوشحاله او راضی دې او که دَ خفګان اظهارکوی نودادَې خبرې دليل دې چه الله تعالی دَدې بنده نه خوشحال نه دې. خلاصه دا چه دَالله تعالی محبوب سړې په مصيبتونوکښې راګيروی اوهغه په دې باندې صبرکوی اواجرحاصلوی.

**[١٥٦٧] په دنياوی مصيبت سره د ګناه وينځلې کيږی**

١٥٦٧ - (٢) [٣٥] [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] " «لَا يَزَالُ الْبَلَاءُ بِالْمُؤْمِنِ أَوِ الْمُؤْمِنَةِ فِي نَفْسِهِ وَمَالِهِ وَوَلَدِهِ، [٣] حَتَّى يَلْقَى اللَّهَ تَعَالَى وَمَا عَلَيْهِ مِنْ خَطِيئَةٍ» ". [٤] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَرَوَى مَالِكٌ نَحْوَهُ، [٥] وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.

**ترجمه:** [١] حضرت ابوهريره ﷛ څخه روايت دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] د مومن

[١] اخرجه ابن ماجة فی کتاب الفتن /باب الصبر علی البلاء (رقم-٤٠٣١)
[٢] اخرجه الترمذی فی کتاب الزهد عن رسول الله صلی الله عليه وسلم /باب ما جاء فی الصبر علی البلاء (رقم-٢٣٩٩)

سړي یا مومني ښځي ځان اود هغه مال او د هغه اولاد ته همیشه مصیبت او بلا رسي [٣] تر دې چې (کله) هغه (د مرګ څخه پس) د الله تعالی جل جلاله سره ملاقات کوي نو په هغه (یعنی د هغه په عمل نامه کې) هیڅ ګناه نه وي [ځکه چه د مصیبت او بلاء په وجه د هغه ټول ګناهونه بخښل کیږي]، [٤] امام ترمذي رحمه الله دا روایت نقل کړي دي او امام مالك رحمه الله هم دغه شان روایت نقل کړي دي [٥] او امام ترمذي رحمه الله فرمايي چې دا حدیث حسن صحیح دي.

**تسهیلات:**

**قوله: حَتَّى يَلْقَى اللهَ تَعَالَى وَمَا عَلَيْهِ مِنْ خَطِيئَةٍ:**

**په مصیبتونو د ګناهونو رژیدل:-** کوم مؤمن بنده ته یا مؤمنې بندې ته څه تکلیف یا مصیبت اورسي نو او هغه هم په دې تکلیف کښې مړ شي یا مړه شي نو الله ﷻ ته به په داسې حالت کښې پیش کیږي چې دهٔ ګنی ګناه نه ده کړې. ددې نه معلومه شوه چې مصیبتونه او انساني حالات د ګناهونو کفاره دي.

**[١٥٦٨] د بیمارۍ په ذریعه لوړې درجات ملاویدل**

١٥٦٨-()[٣٦] [١] وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ خَالِدٍ السُّلَمِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [٢] " «إِنَّ الْعَبْدَ إِذَا سَبَقَتْ لَهُ مِنَ اللهِ مَنْزِلَةٌ لَمْ يَبْلُغْهَا بِعَمَلِهِ، [٣] ابْتَلَاهُ اللهُ فِي جَسَدِهِ، أَوْ فِي مَالِهِ، أَوْ فِي وَلَدِهِ، [٤] ثُمَّ صَبَّرَهُ عَلَى ذَلِكَ [٥] حتى يُبْلِغَهُ الْمَنْزِلَةَ الَّتِي سَبَقَتْ لَهُ مِنَ اللهِ» " رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] محمد ابن خالد سلمي د خپل پلار څخه او هغه د هغه د نیکه (یعني د خپل والد مکرم) څخه نقل کوي چې رسول ﷺ وفرمايل [٢] د بنده د پاره د الله تعالی جل جلاله د جانب څخه (په جنت کې) چې کومه عظیمه درجه مقدر وي او هغه د خپل عمل په ذریعه هغه نشي حاصلولې [٣] نو الله تعالی جل جلاله هغه د بدن یا د مال یا د اولاد (په مصیبت کې) مبتلاء کوي [٤] او بیا هغه ته د صبر توفیق ورکوي [٥] تر دې چې هغه هغه درجې ته رسوي چې د هغه د پاره د الله تعالی جل جلاله د جانب څخه مقدر وي، (احمد، ابوداود)

**حل اللغات:-** ① مَنْزِلَةٌ: أي: الْمَرْتَبَةُ الْعُلْيَا یعنی لویه مرتبه.

**تسهیلات:**

**قوله: إِنَّ الْعَبْدَ إِذَا سَبَقَتْ لَهُ مِنَ اللهِ مَنْزِلَةٌ لَمْ يَبْلُغْهَا بِعَمَلِهِ:**

**مصیبت د رفعې درجې سبب:-** دحدیث مطلب دادې چه یوسړی دَ یوې اندازې مطابق نیك اعمال کوی لیکن دَالله تعالی په نیز په جنت کښې دَهغه دومره اوچته درجه مقررشوې وی

---

[١] اخرجه ابوداود فی کتاب الجنائز، باب الأمراض المكفرة للذنوب (رقم-٣٠٩٠)

چه هغه دَخپلو نيکواعمالو په وجه دغه درجه نه شي حاصلولې نوالله تعالى دغه سړي په بيماروکښې راګير کړی دې دپاره چه هغه دَ جنت هغه اوچت مقام حاصل کړی کوم چه الله تعالى دَده دپاره دَوړاندې نه مقرر کړې دې.

**[١٥٦٩] دَبوډاوالى څخه نه خلاصيدل**

١٥٦٩- ()[٣٧] [١] وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الشِّخِّيرِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " [٢] «مُثِّلَ ابْنُ آدَمَ وَإِلَى جَنْبِهِ تِسْعٌ وَتِسْعُونَ مَنِيَّةً [٣] إِنْ أَخْطَأَتْهُ الْمَنَايَا وَقَعَ فِي الْهَرَمِ حَتَّى يَمُوتَ» ". [٤] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [١] د حضرت عبدالله ابن شخير رضي الله عنه روايت دي چې حضور ﷺ وفرمايل [٢] ابن آدم (انسان) په داسې حال کې پيدا شوي دي چې د هغه په اړخ کې (يعني هغه ته نزدي) يو کم سل ٩٩ دهلاکت ځايونه او بلاګاني دي [٣] که هغه بلاګاني هغه ته نه رسي نو په بوډاتوب کې مبتلا کيږي تر دي چې مړ شي، [٤] ترمذي رحمه الله دا روايت نقل کړي دي او ويلې يې دی چې دا حديث غريب دي.

**حل اللغات:-** ① مُثِّلَ: أَيْ: صُوِّرَ وَخُلِقَ: يعنى پيدا کړې شوې دي، ② جَنْبِهِ: أَيْ: بِقُرْبِهِ: دهغه په اړخ کښې يعنى هغه ته نزدې، ③ الْمَنَايَا: جَمْعُ مَنِيَّةٍ: أَي بَلِيَّةٌ مُهْلِكَةٌ: هلاکونکى مصيبتونه، ④ الْهَرَمِ: بوډاتوب.

**قوله:** عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الشِّخِّيرِ:

**د راوي مختصر تعارف:-** دَ دوی پوره نوم عبدالله بن الشخير بن عوف بن کعب بن وفدان وو. دَدوی شمير په بصريانوکښې کيدلو. دې دَنبى کريم ﷺ په خدمت کښې دَ بنى عامر قبيلې په وفدکښې حاضريدودپاره شامل شوې وو. دَده دوه ځامن وو ① مطرف ② يزيد هم دا دواړه دَده نه روايت کوی.

**رويات:** دَده نه شپږ روايات نقل دی.بعضې اسماء الرجال عالمانو وئيلې دی دَده نه نهه (٩) احاديث نقل دی.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَقَعَ فِي الْهَرَمِ حَتَّى يَمُوتَ:

**د مرګ څخه نه بچ کيدل:-** مطلب دادې الله تعالى انسان په داسې حال کښې پيدا کړې دې چه دَ ده نه چاپيره ٩٩ هلاکونکې او تباه کونکې بلاګانې ګرځى. که چرې فرض کړه دې دَ دغه ټولو بلاګانونه بچ شو نو بوډاوالې داسې مصيبت او بلا ده چه دې نه بچ کيدل ممکن نه دی. بوډاوالې به راشی او بيا به دا سړې مړشی.

[١]) اخرجه الترمذى فى كتاب القدر عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-٢١٥٠)

**[١٥٧٠] د صحت مندو خلقو د قیامت په ورځ د بیمارئ خواهش کول**

١٥٧٠-(١)[٣٨] [١] وَعَنْ جَابِرٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [٢] "«يَوَدُّ أَهْلُ الْعَافِيَةِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، [٣] حِينَ يُعْطَى أَهْلُ الْبَلَاءِ الثَّوَابَ، [٤] لَوْ أَنَّ جُلُودَهُمْ كَانَتْ قُرِضَتْ فِي الدُّنْيَا بِالْمَقَارِيضِ» " [٥] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [١] حضرت جابر ﷺ روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] اهلِ عافیت (یعني هغه خلق چې په دنیا کې د مصیبت او بلاګانو څخه محفوظ وو او د هغوئ ژوند په ډیر عیش او عشرت سره تیر شو) به د قیامت په ورځ دا ارزو کوي [٣] کله چې په مصیبت او بلاء کې مبتلاء خلق په زیات اجر او ثواب سره ونازول شي [٤] [دا آرزو به کوی چې] کاشکي په دنیا کې د هغوئ د بدن څمړې په قینچیانو سره کټ کړل شوي وي (چې څرنګه په مصیبت کې مبتلاء نن په دومره زیات اجر او ثواب سره نازول کیږی دغه شان به مونږ ته هم زیات ثواب حاصلیدی) [٥] امام ترمذي رحمه الله دا روایت نقل کړي دي او فرمایلي یې دي چې دا حدیث غریب دي.

**حل اللغات:** - ① أَهْلُ الْعَافِيَةِ: هغه خلق چې په دنیا کې مصیبتونو او تکلیفونو څخه محفوظ وو. ② قُرِضَتْ: دَمجهول صیغه ده. قرض دَ پرې کولو په معنی کښې دې. ③ الْمَقَارِيضِ: دَمقراض جمع ده چه دَ قینچئ په معنی کښې دې.

**تسهیلات:**

**قوله: يَوَدُّ أَهْلُ الْعَافِيَةِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ:**

**د مصیبت ثواب په آخرت کښې:** - مطلب دادې چه کله دَ قیامت په ورځ بیمارانو خلقو ته دَ بیمارئ دَوجې نه ثواب ملاویدل شروع شی نو هغه خلق چاته چه په دنیا کښې کله څه تکلیف او بیماری نه ده رسیدلې هغوی به خواهش کوی چه افسوس په دنیا کښې دَ بیمارئ دَ وجې نه زمونږ څرمنې په قینچو باندې پرې کړې شوې وې دې دَپاره چه نن مونږ ته دا اجر ملاویدلو لیکن دا خواهش کول بې فائدې دی.

**[١٥٧١] بیماری د عبرت سبب**

١٥٧١-(٢)[٣٩] [١] وَعَنْ عَامِرٍ الرَّامِ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: [٢] ذَكَرَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- الْأَسْقَامَ، فَقَالَ: [٣] "«إِنَّ الْمُؤْمِنَ إِذَا أَصَابَهُ السَّقَمُ، ثُمَّ عَافَاهُ اللّٰهُ -عَزَّ وَجَلَّ- مِنْهُ، [٤] كَانَ كَفَّارَةً لِمَا مَضَى مِنْ ذُنُوبِهِ، [٥] وَمَوْعِظَةً لَهُ فِيمَا يَسْتَقْبِلُ [٦] وَإِنَّ الْمُنَافِقَ إِذَا مَرِضَ ثُمَّ أُعْفِيَ، [٧] كَانَ كَالْبَعِيرِ إِذَا عَقَلَهُ أَهْلُهُ ثُمَّ أَرْسَلُوهُ، [٨] فَلَمْ يَدْرِ لِمَ عَقَلُوهُ، وَلِمَ أَرْسَلُوهُ" [٩] فَقَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ، وَمَا الْأَسْقَامُ؟ [١٠] وَاللّٰهِ مَا مَرِضْتُ قَطُّ. [١١] فَقَالَ: "قُمْ

[1] اخرجه الترمذی فی کتاب الزهد عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-٢٤٠٢)
[2] اخرجه ابوداود فی کتاب الجنائز، باب الأمراض المكفرة للذنوب (رقم-٣٠٨٩)

عَنَّا فَلَسْتَ مِنَّا» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:**[١] عامر رامي ﷺ وايي [٢] چې رسول الله ﷺ د بعضو مرضونو ذکر اوفرمايلو نو وېې فرمائيل:[٣] مومن چې کله په مريضي کې مبتلاء شي اوبيا الله تعالیٰ ﷻ د هغه مريضي څخه نجات ورکړي [٤] نو هغه مرض (نه يواځې دا چه) دهغه د تيرو ګناهونو کفاره شي [٥] (بلکه) د آينده زماني دپاره د نصحيت (هم) باعث شي[يعنی مرض هغه متنبه کوي يعني خبرداره کوي يي نو هغه آينده ګناهونوڅخه بچ کيږي][٦] او کله چې منافق مريض شي او بيا د هغه مريضی څخه نجات ورکول شي [٧] نو د هغه مثال د هغه اوښ په شان وي چې هغه مالك تړلي وي او بيا يي پريږدي [٨] نو اوښ په دي نه پوهيږي چې مالك هغه ولي تړلی وو او ولي يي پريخودو؟[٩] (د دی په اوريدو سره) يو سړي عرض وکړو چې يا رسول الله ﷺ مرض څه څيز ده؟[١٠] زه خو هيڅکله نه يم مريض شوي؟[١١] حضور ﷺ ورته وفرمايل چې زمونږ څخه پاسه څکه چې ته زمونږ څخه نه يي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ①الْأَسْقَامَ: أَيِ الْأَمْرَاضَ، مرضونه، ②السَّقَمُ:مرض، بيماری، ③عَافَـاهُ: محفوظ ئې کړی، ④كَفَّارَةً: مَـا يستغفر بـه الآثـم: څـه سره چه ګناهونـه معـاف کيـږی هغې تـه وائی لکـه صدقه وغيره، ⑤الْبَعِيرِ: اوښ، ⑥عَقَلَهُ: أَيْ: شَدُّوهُ وَقَيَّدُوهُ: يعنی اوښ تړی.

**تسهيلات:**

**قوله: ذَكَرَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- الْأَسْقَامَ:**

**د بيماری اثر په مومن او منافق:-** دَي حديث مطلب دادي چه دَ حضورپاك دَ ارشاد مبارك خلاصه داده يوه ورځ رسول پاك ﷺ دَ بيمارو تذکره اوکړه اودَ مؤمن اومنافق بيماری اوبيا دَ صحت منديدو ذکرئې اوفرمائيلو چه دَ مؤمن بيماری دَ هغه دَ تيرو شوو ګناهونوکفاره وی اودَ بيادپاره دَ عبرت اونصيحت سبب جوړيږی اوهغـه توبـه اواستغفارکوی. خوچه منافق کله بيماری اوبيا صحت مندشی نوهغه دَ دغه بيمارئی نه هيڅ عبرت نه حاصلوی بلکه دَ يوځناور يعنی اوښ په شان وی چه هغه مالك اوتړلو نوولې؟ اوچه خلاص ئې کړو نوولې؟ منافق نه توبه کوی اونه عبرت حاصلوی اونه استغفار کوی. دَ حضورپاك په مجلس کښې يوسړی تپوس اوکړو يارسول الله ﷺ دا بيماری څه څيزوی؟ زه خوکله هم بيمار شوې نه يم. حضورپاك اوفرمائيل زمونږ نه لاړشه څکه چه ته دَ مصيبتونو او آفتونو په اعتبارسره زمونږ په طريقه نه ئې يعنی سره دَدې چه باقی په اسلام باندې قائم ئې کافرنه ئې ليکن په دې خاص شعبه کښې دَ مسلمانانو په طريقه نه ئې څکه چه مسلمان پـه آفتونو اوبلاګانو کښې راګيروی. [ الکاشف: ٣/٣٢٦.]

## [١٥٧٢] دَ پوښتنې په وخت بيمارته تسلي وركول

١٥٧٢-( )[٥٠] [١] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] " «إِذَا دَخَلْتُمْ عَلَى الْمَرِيضِ فَنَفِّسُوا لَهُ فِي أَجَلِهِ [٣] فَإِنَّ ذَلِكَ لَا يَرُدُّ شَيْئًا، وَيَطِيبُ بِنَفْسِهِ» ". [٤] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ. وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [١] حضرت ابو سعيد ﷺ روايت كوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] كله چې تاسو مريض ته (د هغه د حال د پوښتلو د پاره) ورشئ نو د هغه د زندگى په باره كې د هغه غم لرې كړئ (يعني تسلي او تشفي وركړئ چې فكر او غم مه كوه ته به ډير زر صحت ياب شي او ستا عمر به اوږدوي) [٣] ځكه چې دا (تسلي او تشفي اگر كه) يو څيز ته (يعني د مقدر ليك ته) تال نشي وركولي (وروسته كولي نشي) خود مريض زړه (ضرور) خوشحاليږي [٤] ترمذي، ابن ماجه، امام ترمذي رحمه الله فرمايلى دى چې دا حديث غريب دي.

**حل اللغات:-** ① فَنَفِّسُوا: تنفيس دلته دَ غم لرې كولو او تسلئى وركولو په معنى كښې دى.

**تسهيلات: قوله : فَنَفِّسُوا لَهُ فِي أَجَلِهِ:**

**د مريض غم غلطولو حكمت:-** مطلب دا چه كله تاسو دَ يو مريض پوښتنه كوئى نودَ پوښتنې په وخت مريض ته دَ هغه دَ ژوند باره كښې تسلي وركوئى چه تـه خو بالكل تيـك ئى هيڅ دَ فكر خبره نشته دې. تاتـه بـه الله تعالى ډير زر صحت دركړى. پـه دې تسلئى سره دَ تقدير فيصله نه بدليږى ليكن مريض خوشحاليږى اوتسلئ وركونكى هيڅ پيسې هم نه خرچ كيږى.

دَ انسان طبيعت عجيبه دې چه څه اورى دَ هغې نـه څه نـه څه اثر قبلوى او "من يسمع يخل" يومتل دې كله چه څه اوريدې شى نو څه نه څه په سوچ كښې پريوځى. هم دغه وجه ده چه ډاكټر او هوښيار طبيب مريض دَ خطرناك صورت حال نه نه خبروى.

**نفسياتى اثر قبلول:-** دَ حضرت اشرف على تهانوى رحمه الله متعلق يوه قصه مشهوره ده چه دَهغوى خادم دَهغوى دَ بيمارئى كيفيت دَ يو طبيب مخې تـه بيـان كړو. طبيب اووئيـل چه دَدې كيفيت سړې تر دې وخته پورې څنگه ژوندې دې؟ دا خو سخت تشويشناك صورت حـال دې. خـادم راغلـو او حـضرت تهـانوى رحمه الله تـه ئـى هـم هغـه الفـاظ واؤرول. حـضرت تهانوى رحمه الله ډير پريشان شو او وئى فرمائيل چه دا طبيب بې عقله دې. دَ مريض بـاره كښې داسې نه دى وئيل پكار. اوس ته لاړشه او لږ شان لرې تلو نـه پس واپس راشـه اوماتـه اووايـه چه طبيب وئيلى دى چه ستاسو حالت ښه دې دَ هيڅ پريشانئى ضرورت نشتـه دې. كلـه چـه دَ حضرت تهانوى رحمه الله په مخكښې خادم راغلو اودا خبرې ئى اوكړې نوهغوى ترو تازه شو اوخوشحال شو. دا زير بحث حديث هم په دې حكمت باندې دې.

---

[١] اخرجه الترمذى فى كتاب الطب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-٢٠٨٧) وابن ماجة كتاب الجنائز/باب ما جاء فى عيادة المريض (رقم-١٤٣٨)

## [١٥٧٢] د خيټې په مرض کښې مرګ د عذاب قبر څخه حفاظت

١٥٧٢-()[٥١] [١] وَعَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ صُرَدٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "[٢] «مَنْ قَتَلَهُ بَطْنُهُ لَمْ يُعَذَّبْ فِي قَبْرِهِ» ". [٣] رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [١] سلیمان ابن صرد ﷺ روایت کوي چې حضور ﷺ وفرمایل [٢] کوم سړي چې د خیټې په مریض (مثلاً په دست او استسقاء وغیره) کې مړ شي نو هغه به د قبر د عذاب څخه خلاص وي، [٣] احمد ترمذي، او امام ترمذي ﷫ ویلي دي چې دا حدیث غریب دي.

**حل اللغات:** - ① بَطْنُهُ: بطن خیټې ته واني دلته خیټې طرف ته دمرګ نسبت مجازی دي د خیټې امراض او تکلیف مراد دي.

**د راوي مختصر تعارف:** د حدیث د راوی نوم سلیمان دپلار نوم صرد کنیت ئې ابو معرف دي د مکې دفتحې نه وړاندې مسلمان شوې وو د جاهلیت په زمانه کښې د ده نوم یسار وو. نبی کریم ﷺ ورته نوم بدل کړو او سلیمان ئې کیخودو د اسلام راوړلو نه پس د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې اورسیدلو.

په جنګ صفین کښې د حضرت علي ﷺ په پرجوش ملګرو کښې وو. په دې جنګ کښې دوی زخمی شوی هم وو. او په کوفه کښې د حضرت حس ؛ حامیانو په ډله کښې وو. د حضرت حسین ﷺ د راغوستلو خطونه به هم د دوی د کور نه لیکلی شو کله چه د کربلا واقعه پیښنه شوه نو دوی ډیر زیات خفه شو دا عجیبه اتفاق وو چه د حضرت حسین ﷺ په راتلو باندې دوی د هغه مدد اونکړې شو دحضرت حسین ﷺ د قتل د انتقام اخستلو دپاره ئې څلور زره کسان واخستل او د مروان بن حکم د فوخ سره اوجنګیدوتردې چه شهید شو د دوی سر کټ کړې شوی او د مروان بن حکم ته اولیږلې شو په دغه وخت کښې د دوی عمر ٩٣ کاله وو. (٢)

د دوی نه پنځلس احادیث منقول دی بخاری او مسلم په پورتنی حدیث باندې اتفاق کړې دې او په بخاری کښې د دې نه علاوه یو بل حدیث دې په سنن کښې څلور روایات مذکور دی اوباقی د حدیثو په نورو کتابونو کښې ذکر دی.

**تسهیلات:**

**قوله: وَمَنْ قَتَلَهُ بَطْنُهُ لَمْ يُعَذَّبْ فِي قَبْرِهِ**

**بطن ته د قتل په نسبت کښې دوه وجوهات:** - ① ددې لفظی ترجمه داده چې چا لره دهغه خیټې

---

(١) اخرجه الترمذی فی کتاب الجنائز عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ ما جاء فی الشهداء من هم (رقم-١٠٦٤)
(٢) استیعاب (٥٧٤١١)-(٢) روضة الصاحین (١٨٣١١)- (٣) رواه ابوداود فی الأدب باب من کظم غیظاً رقم ٤١٤٧، والترمذی فی صفة القیامة باب فضل الرفق بالضعیف والوالدین والسلوک رقم ٢٤١٧. وکذا جه فی الزهد رقم ٤١٧٦، وحم، مسندالمکیین رقم ١٥٠٥٦٦) - (٤) جامع الصغیر (١٧٩١٢)

قتل کړو حالانکه خيټه څوك نه شي قتل کولي نو مطلب به دا وي چې (أي من مات من وجع بطنه) يعنی څوك چې د خيټې د بيمارۍ په وجه مړ شي لکه اسهال استطلاق بطن وغيره

④ ځينې حضراتو وئيلي دي چې چاچې خپله خيټه د حراماو ومشتبه څيزونو نه په حفاظت کښې اوساتله ګويا چې دده خيټې دې قتل کړو مطلب دادې چې هر کله ده خيټه کښې دحلال څيز اچولو کوشش اوکړو او هغه ورته کم ملاؤ شو يا ورته ملاؤ هم نشو نو ګويا چې د اولږې په وجه ددۀ خيټې دې قتل کړو (تعليق الصبيح ج/٢ص/٢٧٠)

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [١٥٧٤] دَغير مسلم دَ عيادت جواز

١٥٧٤ –(¹) [٥٢] [١] عَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: [٢] «كَانَ غُلَامٌ يَهُودِيٌّ يَخْدُمُ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [٣] فَمَرِضَ فَأَتَاهُ النَّبِيُّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَعُودُهُ، [٤] فَقَعَدَ عِنْدَ رَأْسِهِ، فَقَالَ لَهُ: "أَسْلِمْ". [٥] فَنَظَرَ إِلَى أَبِيهِ وَهُوَ عِنْدَهُ، [٦] فَقَالَ: أَطِعْ أَبَا الْقَاسِمِ، فَأَسْلَمَ. [٧] فَخَرَجَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- وَهُوَ يَقُولُ "الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي أَنْقَذَهُ مِنَ النَّارِ» "رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [١] حضرت انس ﷛ فرمايي [٢] چې يو يهودي هلك وو چې د حضور ﷺ خدمت به يې کولو [٣] کله چې هغه ناجوړه شو نو حضور ﷺ د هغه پوښتنې ته تشريف يوړو [٤] او د هغه سر ته نزدې کيناستلو او هغه ته يې وفرمايل چې ته مسلمان شه [٥] هلك د پلار طرف ته وکتل چې د هغه سره نزدې ناست وو [٦] پلار ورته اوويل چې د ابو القاسم (يعني د حضور ﷺ) حکم ومنه نو هغه هلك په اسلام مشرف شو [٧] بيا حضور ﷺ د دې فرمايلو سره ووتلو چې د هغه الله حمد او ثناء ده چې دې هلك ته يې (داسلام په ذريعه) د اورڅخه خلاصون ورکړو. (بخاري)

**حل اللغات:-** ① أَطِعْ: اطاعت اوکړه، اومنه، ② أَبَا الْقَاسِمِ: دا کنيت دې حضور ﷺ، ③ أَنْقَذَهُ: أي: خَلَّصَهُ وَنَجَّاهُ: يعنی نجات ئې ورکړو.

**تسهيلات: قوله : فَنَظَرَ إِلَى أَبِيهِ:**

**د يهودي ماشوم ايمان راوړل:-** دې ځوان دَخپل پلار دَطرف نه دَهغوی نه دَ اجازت اخستلو په غرض سره اوکتل پلار ئې سره دَدې چه يهودي وو مګر هغه دَ حضورپاك حقانيت پيژندلو اودَ زنکدن په حالت کښې دَخوئی دَپاره دَ هغه زړه نرم شوې هم وو په دې وجه هغه دَمسلمانيدو اجازت خوئی ته ورکړو.

**د حديث فوائد:-** دَدې حديث نه يوڅو فائدې معلوميږي:

(¹) اخرجه البخاري في كتاب الجنائز/باب إذا أسلم الصبي فمات، هل يصلى عليه، وهل يعرض على الصبي الإسلام(رقم-١٣٥٦) وابوداود كتاب الجنائز/باب في عيادة الذمي (رقم-٣٠٩٥)

① داده چه دَ پوښتنې کونکی له پکاردی چه دَ مریض سر طرف ته کینی ځکه چه حضوراکرم ﷺ کیناستو.
② داچه دَ ذمی یهودی پوښتنه کول جائز دی بلکه دَعام یهودی په پوښتنه کښې ګناه نشته دې. کتاب خزانه کښې هم داسې لیکلی دی. البته دَ مجوسیانو په پوښتنه کښې دَ علماؤ اختلاف دې بعضې ورته جائز اوبعضې ناجائز وائی. دغه شان راجح دادی چه دَ فاسق دَ پوښتنې دَپاره تلوکښې هیڅ ګناه نشته دې.
③داده چه دَخپل طاقت مطابق دَ یوانسان خیرخواهی کول پکاردی. دَ ژوند په آخری لمحه کښې هدایت نصیب کیدې شی.
④ داده چه دَخدمت دَپاره څوك یهودی ساتل جائز دی په دې شرط چه څه دَ بهرنه منع کونکې خبره نه وی.
⑤ داده چه مشرانوله په خپلو کشرانو باندې زور نه دی کول پکار.
⑥ دا چه کشرانوله پکاردی چه دَمشرانونه په هره فیصله کښې دَ اجازت اخستلو کوشش اوکړی.
⑦ داده چه دَ نابالغ اسلام قبلول معتبر دی لکه چه دَ امام ابوحنیفه رحمه الله مسلك دې دَ دغه خوش قسمت هلك نوم عبدالقدوس وو.
⑧ دا چه دَ یوکافر په مسلمان کیدو باندې دَ الله تعالی شکر اداکول پکاردی.

**[١٥٧٥] دَبیمارتپوس کونکی دپاره د فرښتو دعا**

١٥٧٥-()[٥٣] [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [٢] "«مَنْ عَادَ مَرِيضًا نَادَى مُنَادٍ فِي السَّمَاءِ: [٣] طِبْتَ وَطَابَ مَمْشَاكَ، [٤] وَتَبَوَّأْتَ مِنَ الْجَنَّةِ مَنْزِلًا»". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [١] ابوهریره رضی الله عنه روایت کوي چې حضور ﷺ وفرمایل [٢] کله چې سړي د یو مریض عیادت کوي نو آواز کونکي (یعني فرښته) د آسمان څخه آواز کوي [٣] چې په دنیا او آخرت کې دي تا ته خوشحالي وي ستا تلل ښه وی (په آخرت کې یا په دنیا کې) [٤] او تا ته دي په جنت کې لویه درجه او مرتبه حاصله وي. (ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① عَادَ: پوښتنه ئې اوکړه، ② مُنَادٍ: آواز کونکي (فرښته)، ③ طِبْتَ: په دنیا او آخرت کې دي تا ته خوشحالي وی. ④ طَابَ: ښه شو، ⑤ مَمْشَاكَ: تلل ستا (کنایه ده د آخرت دلارې نه)، ⑥ تَبَوَّأْتَ: أَيْ: تَهَيَّأْتَ: تا ځان له ځای جوړ کړو.

**تسهیلات: قوله: نَادَى مُنَادٍ فِي السَّمَاءِ:**

**دحدیث د بعضې جملو وضاحت: -**

① نَادَى مُنَادٍ فِي السَّمَاءِ: کله چې څوك دبیمار تپوس ته ځی نو هغه دپاره فرښتې دعا کوی.

[١] اخرجه الترمذی فی کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی زیارة الإخوان (رقم-٢٠٠٨) وابن ماجة کتاب الجنائز/باب ما جاء فی ثواب من عاد مریضا (رقم-١٤٤٣)

① طِبْتَ: چې په دنيا کښې او آخرت کښې خوشحالي سره پاتې شې
② وَطَابَ مَمْشَاكَ: دا کنايه ده د آخرت په منزلونو کښې د سيل کولو نه امام طيبي رحمه الله فرمائي چې په آخرت کښې د خوشحاله اوسيدو دعا ده چې لکه څنګه ته په دنيا کښې خوشحاله يې داشان په آخرت کښې خوشحاله اوسې دا ټول فضائل به هله وي چې کله په عيادت سره دالله ﷻ رضا مقصود وي دنياوي مفاد او لالچ نه وي.

**[١٥٧٦] دَ مريض باره کښې د صحت د ښه کيدو خبر ورکول**

١٥٧٦-()[٥٤] ١ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- قَالَ: ٢ «إِنَّ عَلِيًّا خَرَجَ مِنْ عِنْدِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فِي وَجَعِهِ الَّذِي تُوُفِّيَ فِيهِ، ٣ فَقَالَ النَّاسُ: يَا أَبَا الْحَسَنِ، كَيْفَ أَصْبَحَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-؟ ٤ قَالَ: أَصْبَحَ بِحَمْدِ اللَّهِ بَارِئًا». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ١ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمايي ٢ چې کوم وخت حضور ﷺ په مرض الموت ‹د مرګ په مرض› کې مبتلا وو حضرت علي کرم الله وجهه چې کله د حضور ﷺ څخه پاڅيدو سره بهر تشريف راوړو ٣ نو خلقو ځني پوښتنه وکړه چې اي ابو الحسن ‹دا د حضرت علي کرم الله وجهه کنيت وو› په حضور ﷺ باندې سحر څرنګه تيرشو ٤ هغه وفرمايل چې د الله تعالیٰ شکر دي حضور ﷺ د مريضي څخه د ښه کيدونکو په شان سحر تير کړو ‹يعني شکر دي چې حضور ﷺ نن ښه دي› ‹بخاري›

**حل اللغات:** - ① أَبَا الْحَسَنِ: کنيت دې دحضرت على کرم الله وجهه، ② بَارِئًا: اسْمُ فَاعِلٍ مِنَ الْبُرْءِ، يعنى نن ډيرښه دي.

**تسهيلات: قوله: أَصْبَحَ بِحَمْدِ اللَّهِ بَارِئًا بَارِئًا:**

**د حضرت على د نبى کريم د طبيعت باره کښې خبر ورکول:** - يعنى حضورپاك نن ټيك دي صحت مند دې دَ بيمارئى حالت ئې ښه دې. داخبره حضرت على هغه وخت اوخودله کوم وخت چه خلقو دَهغوى نه دَ حضورپاك دَ بيمارئى متعلق معلومات غوښتل. حضرت على رضي الله عنه دَ خلقو حوصله راکلکه کړه چه حضورپاك ټيك دي. داجمله حضرت على رضي الله عنه دَ خپلې اندازې نه فرمائيلې اويا دَ نااميدئى نه باوجود په توګه دَ نيك فالئى حضرت على رضي الله عنه داسې اوفرمائيل حالانکه هم په غه ورځ دَ حضورپاك وصال شوې وو.

**[١٥٧٧] د صحت په مقابله کښې په بيمارئى د صبر افضليت**

١٥٧٧-()[٥٥] ١ وَعَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي رَبَاحٍ قَالَ: قَالَ لِيَ ابْنُ عَبَّاسٍ: ٢ «أَلَا أُرِيكَ امْرَأَةً مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ؟ قُلْتُ: بَلَى. ٣ قَالَ: هَذِهِ الْمَرْأَةُ السَّوْدَاءُ أَتَتِ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَقَالَتْ: ٤ يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي أُصْرَعُ، وَإِنِّي

[١] اخرجه البخارى فى كتاب الاستئذان/باب المعانقة، وقول الرجل كيف أصبحت (رقم-٦٢٦٦)
[٢] اخرجه البخارى فى كتاب المرضى/باب فضل من يصرع من الريح (رقم-٥٦٥٢) ومسلم كتاب البر والصلة والآداب/باب ثواب المؤمن فيما يصيبه من مرض، أو حزن، أو نحو ذلك حتى الشوكة يشاكها (رقم) ٥٤ - (٢٥٧٦)

أَتَكَشَّفُ. فَادْعُ اللّٰهَ لِي،٥ فَقَالَ: " إِنْ شِئْتِ صَبَرْتِ وَلَكِ الْجَنَّةُ،٦ وَإِنْ شِئْتِ دَعَوْتُ اللّٰهَ أَنْ يُعَافِيَكِ ". فَقَالَتْ: أَصْبِرُ.٧ فَقَالَتْ: إِنِّي أَتَكَشَّفُ، فَادْعُ اللّٰهَ أَنْ لَا أَتَكَشَّفَ،٨ فَدَعَا لَهَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**١ عطاء بن ابي رباح وايي چې (يوه ورځ) ابن عباس رضي الله عنهما ماته وفرمايل ٢ چې آيا زه تا ته يوه جنتي ښځه اونه ښايم؟ ما عرض وکړو هو، ضرور يي را وښايه ٣ هغه وفرمايل چې دا توره ښځه ده (بيا يي وفرمايل چې يو ځل) دا ښځه د حضور ﷺ په خدمت کې حاضره شوه او دې اوويل ٤ چې يا رسول الله ﷺ زه د ميرګي په مرض کې مبتلا يم (هر کله چې ميرګي پورته شي) نو زه يريږم چې چيرته په حالت د بيهوشي کې زما ستر خلاص نشي نو ته ﷺ د الله تعالى جل جلاله څخه زما د پاره دعا وغواړه (چې زما مريضي ختمه شي) ٥ حضور ﷺ ورته وفرمايل چې که غواړې نو صبرکوه چې جنت درته حاصل شي ٦ او که غواړې نو زه درته دعا کوم چې الله تعالى جل جلاله تا ته شفاء درکړي دې ښځې عرض وکړو چې زه صبرکوم ٧ بيا يي اوويل خو زه د ستر د کولاويدو څخه يريږم ته ﷺ د الله جل جلاله څخه بس دا دعاء وغواړه چې (د مرض د شدت او د بيخودئ په حالت کې) زما ستر کولاؤ نه شي ٨ نو حضور ﷺ د دې د پاره دعاء وکړله. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① الْمَرْأَةُ السَّوْدَاءُ: توره ښځه، ددې نوم شُعَيْرَةُ، يا شُقَيْرَةُ، يا شُكَيْرَةُ، وو، او بی بی خديجې لـه بـه نې سر ګمنزولو. ② أُصْرَعُ: د متکلم صيغه ده، صرع ميرګی ته وائي، دې مرض کښې په انسان بې هوشی راځی راغورزيږی اوپه ځان نه پوهيږی، ③ أَتَكَشَّفُ: دمتکلم صيغه ده، کشف ښکاره کيدو ته وائی يعنی بدن مې ښکاره شی.

**تسهيلات: قوله:** أَلَا أُرِيكَ امْرَأَةً مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ؟:

**د مذکوره ښځې نوم:-** دَ هغـه مبـارکې بی بی نـوم سعيره يـا سقيره يـا سکيره وه. دې بـه دَ حضرت خديجې رضي الله عنها ګمنزه کوله. دغه ښځې ته حضورپاك دَ صبر تلقين اوکړو او پـه صبر کولوباندې ورتـه دَ جنت زيرې ورکړو.

**د علاج او ترک علاج په افضليت کښې اقوال:-** دَ علماؤ او صوفيانو يوه طبقه دې طرف ته تلې ده چه ترک علاج افضل دې علاج نه دی کول پکار ليکن دَ امت عام فقهاء دې طرف تـه تلی دی چـه عـلاج کـول سنت او جـائز دی. او واجب او لازم نـه دی. اصـل خبره داده چـه دَ خلقـو طبيعتونه او شغلونه مختلف وی. دَ بعضې طبيعتونودَپاره علاج کول بهتـر دی اودَ بعضې دَپاره نه کول بهتر دی. بله خبره دا چه بعضې خلق دَ نورو دَپاره نافع وی مثلاً علمـاء چـه دی نودَداسې خلقو دَپاره دَ بيمارئی په ځائی روغ اوجوړ اوسيدل زيات بهتر دی دې دَپاره چـه دَ الله تعالى مخلوق ته نفع اورسوی. دَدې حديث نه دا هم معلومه شوه چـه عـلاج کـول جـائز او مسنون دی.

دې ښځې صبر کول او بيمار پاتې کيدلو ته ترجيح ورکړه دې دَپاره چه جنت ورتـه مـلاؤ شـی

لیکن یو خبره نی عرض کړه چه دَدې مرګی دورې راتلو په وخت زه خپلې کپړې شلوم په کوم سره چه ستر ښکاره کیږی. رسول الله ﷺ دَ الله تعالی نه دعا اوغوښتله چنانچه هغه ښځه بیماره خو وه لیکن کپړې به نی نه شلولې.

### [١٥٧٨] د مرګ څخه وړاندې د بیمارۍ راتلو فضیلت

١٥٧٨ – (١)[٥٦] [١] وَعَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ قَالَ: [٢] «إِنَّ رَجُلًا جَاءَهُ الْمَوْتُ فِي زَمَنِ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٣] فَقَالَ رَجُلٌ: هَنِيئًا لَهُ، مَاتَ وَلَمْ يُبْتَلَ بِمَرَضٍ. [٤] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " وَيْحَكَ، [٥] وَمَا يُدْرِيكَ لَوْ أَنَّ اللَّهَ ابْتَلَاهُ بِمَرَضٍ فَكَفَّرَ عَنْهُ مِنْ سَيِّئَاتِهِ» " رَوَاهُ مَالِكٌ مُرْسَلًا.

**ترجمه:** [١] یحیی ابن سعید رحمه الله فرمایي [٢] چې د رسول کریم ﷺ په زمانه کې یو سړی اچانک مړ شو [٣] یو دویم سړي اوویل چې د ده دې مرګ مبارک وي داسې مړ شو چې په څه مرض کې مبتلاء نه شو [٤] دې اوریدو سره رسول الله ﷺ وفرمایل چې په تا افسوس دې [٥] تا ته څه معلومه ده (یعني بغیر د مرض او مریضي اچانک مرګ ښه مه ګڼه) که الله تعالی جل جلاله ده ته د مرض سره مرګ ورکړي وی نو (د مرض څخه روسته په بدله کې به یې) د ده خطاګانې معاف کړي وی، دا رویت امام مالك رحمه الله بطریق ارسال نقل کړي دي.

**حل اللغات:-** ① هَنِيئًا: مبارک دې وی، ② لَمْ يُبْتَلَ: مبتلا نه شو (په بیمارئ کښې)، ③ وَيْحَكَ: په تا افسوس دې، ④ كَفَّرَ: رژولی وې، وران کړې وې (ګناهونه).

**تسهیلات:** قوله: وَيْحَكَ وَمَا يُدْرِيكَ:

**د مذکوره جملې مطلب:-** دا کلمه د ترحم ده مطلب دادې چې دده په عدم المرض باندې تعریف مه کوئ بلکه که دې بیمار وې نو دده دپاره بهتره وه څکه چې بیماری دده د ګناهونو کفاره جوړیږی یا د رفع درجات سبب جوړیږی

### [١٥٧٩] دَصابر مریض فضیلت

١٥٧٩ – (٢)[٥٧] [١] وَعَنْ شَدَّادِ بْنِ أَوْسٍ، وَالصُّنَابِحِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا -: [٢] أَنَّهُمَا دَخَلَا عَلَى رَجُلٍ مَرِيضٍ يَعُودَانِهِ [٣] فَقَالَا لَهُ كَيْفَ أَصْبَحْتَ [٤] قَالَ: أَصْبَحْتُ بِنِعْمَةٍ). [٥] قَالَ شَدَّادٌ: أَبْشِرْ بِكَفَّارَاتِ السَّيِّئَاتِ، وَحَطِّ الْخَطَايَا؛ [٦] فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: " «إِنَّ اللَّهَ - عَزَّ وَجَلَّ - يَقُولُ: [٧] إِذَا أَنَا ابْتَلَيْتُ عَبْدًا مِنْ عِبَادِي مُؤْمِنًا [٨] فَحَمِدَنِي عَلَى مَا ابْتَلَيْتُهُ، [٩] فَإِنَّهُ يَقُومُ مِنْ مَضْجَعِهِ ذَلِكَ كَيَوْمِ وَلَدَتْهُ أُمُّهُ مِنَ الْخَطَايَا، [١٠] وَيَقُولُ الرَّبُّ - تَبَارَكَ وَتَعَالَى -: أَنَا قَيَّدْتُ عَبْدِي وَابْتَلَيْتُهُ، [١١] فَأَجْرُوا لَهُ مَا كُنْتُمْ تُجْرُونَ لَهُ وَهُوَ صَحِيحٌ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** [١] د شداد بن اوس او صنابحي رضي الله عنهما په باره کې روایت دي [٢] چې دا دواړه یو مریض سړي ته ورغلل او د هغه عیادت یي وکړو [٣] دواړو د مریض څخه پوښتنه وکړه چې

---

(١) اخرجه مالک فی الموطا کتاب العین /باب ما جاء فی أجر المریض (رقم -٨)
(٢) اخرجه احمد فی المسند ١٢٣/٤

تا څنګه سحر کړو؟ [په تا شپه څرنګه تیره شوه] [٤] مریض اوویل چې ما (د رضاء او تسلیم او د صبر او د شکر) په نعمت سره سحر کړو (یعني د مرض او تکلیف په وجه زه پریشانه نه یم بلکه درضاء بالتقدیر او د صبر لمن می نیولي ده چې د هغې په وجه زما زړه خوشحاله او مطمئن دي) [٥] حضرت شداد وفرمایل چې د ګناهونو د رژیدو او د خطاګانو د لرې کیدو په بشارت سره خوشحاله شه [٦] څکه چې ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي چې الله ﷻ فرمايي [٧] هر کله چې زه په خپلو بنده ګانو کې یو مومن بنده (په مریضي او مصیبت کې) مبتلا کوم [٨] (او هغه بنده په دي ابتلاء دلګیر او ناخوښه نه وي بلکه) زما تعریف کوي [٩] نو هغه د مریضي د بستر څخه داسې پاك صفا پاڅیږي څرنګه چې هغه په هغه ورځ د ګناهونو څخه پاك صاف وو په کومه ورځ چې د مور څخه پیدا شوي وو [١٠] او پروردګار بزرګ وبرتر (فرشتو ته) فرمايي چې ما خپل بنده په قید کې اچولي دي او هغه مې په آزمایش کې مبتلاء کړي دي [١١] نو تاسو [د ده په اعمال نامه کې] هغه نیك اعمال لیکل جاري ساتئ کوم چې تاسو د ده د تندرستي په زمانه کې لیکل جاري ساتل. (احمد)

**حل اللغات:-** ①كَفَّارَاتِ: رژونکي (دګناهونو). ②السَّيِّئَاتِ: ګناهونه، ③حَطِّ: لرې کونکي، ④الْخَطَايَا: خطاګاني چه په طاعاتو او عباداتو کښي کوم نقصان شوي وي، ⑤ابْتَلَيْتُ: مبتلا کړم، ⑥مَضْجَعِهِ: د ملاستې ځای، بستره، ⑦قَيَّدْتُ: قید کړې مې وو (په مرض کښي)، ⑧فَأَجْرُوا: أَمْرٌ مِنَ الْإِجْرَاءِ: یعنی جاری ساتئ (نیک اعمال دده).

**تسهیلات:**

**قوله: شَدَّادِ بْنِ أَوْسٍ:**

**د شداد بن اوس تعارف:**-دا دحسان بن ثابت ﷺ ورارهٔ دې عبیده بن صامت ﷺ او حضرت درداء ﷺ ددې باره کښي اوفرمائیل چې دهٔ ته علم اوحکمت ورکړې شو

**قوله: وَالصُّنَابِحِيِّ:**

**د عبدالله صنابحی مصداق:**-د صنابحی نوم عبدالله دې ځینو وئیلی دی چې ابو عبدالله ئې نوم دې دلته د صنابحی نه مراد ابو عبدالله تابعی دې عبدالله صحابی مراد نه دې ددوئ نه امام مالك رحمه الله په موطا او امام نسائی رحمه الله په سنن نسائی کښي روایت کړې دې.

**قوله: أَصْبَحْتُ بِنِعْمَةٍ:**

**بیماری نعمت خداوندی:**-یعنی زه اګر چې بیمار یم خو دالله ﷻ د یاد نه غافله نه یم مصیبت کښي ګرفتار یم دمعصیت نه آزاد یم دالله ﷻ نیك بندګان په معصیت باندې مصیبت لره ترجیح ورکوی د حضرت شیخ الهند رحمه الله باره کښي راځی چې کله انګریز حکومت دې ګرفتار کړونو شکر ئې اوویستلو چې د مصیبت په وجه ګرفتار شوم د معصیت په وجه نه یم زمونږ اکابر لکه حضرت یوسف علیه السلام دعا اوکړه چې (رب السجن أحب إلى) اې الله

ﷺ ! څه جیل لره په معصیت باندې ترجیح ورکوم ددې نه معلومه شوه چې درب طرفه کومه بیماری راځي نو هغه هم نعمت دې ځکه چې دا بیماری د مختلفو کفاراتو مجموعه ده باقي د حدیث پاك حاصل دادې چې بیماری د ګناهونو کفاره ده خو هرکله چې په دې باندې فریاد اونه کړې شي بلکه صبر اوکړې شي

**[١٥٨٠] د ګناهونو د مغفرت دپاره د تکلیفونو راتلل**

١٥٨٠-(١)[٥٨] [١] وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] "«إِذَا كَثُرَتْ ذُنُوبُ الْعَبْدِ، [٣] وَلَمْ يَكُنْ لَهُ مَا يُكَفِّرُهَا مِنَ الْعَمَلِ، [٤] ابْتَلَاهُ اللَّهُ بِالْحَزَنِ لِيُكَفِّرَهَا عَنْهُ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** [١] بي بي عایشه صدیقه رضي الله عنها روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] هر کله چې د یو بنده ګناهونه زیات شي [٣] او د هغه په اعمالو کې څه داسې نیك عمل نه وي چې د هغه ګناهونه لرې کړي [٤] نو الله تعالی جل جلاله هغه په غم او حزن کې مبتلا کوي چې د دې په ذریعه د هغه بنده ګناهونه لرې کړي. (احمد)

**حل اللغات:** - (١) ذُنُوبٌ: ګناهونه، (٢) الْحَزَنِ: پریشانۍ او غمونه، تکلیفونه.

**تسهیلات:**

**قوله: ابْتَلَاهُ اللَّهُ بِالْحَزَنِ:**

**په غمونو سره د ګناهونو معاف کیدل:** -د کوم کس نه چې ګناهونه ډیر اوشي نو الله ﷻ د ده د ګناهونو د بخښنې دپاره دې په غم کښې مبتلا کړي. د طبراني په روایت کښې دی الله ﷻ ته غمګین زړه خوښ دې. په دې وجه علماء کرام فرمائي چې په غم کښې درود او استغفار کثرت سره وائې ځکه چې غم د ګناهونو د وجې راځي. او د درود او استغفار په برکت سره ګناهونه ختمیږي. هرکله چې ګناه ختمه شوه نو غم هم ختم شو.

**[١٥٨١] عیادت کونکي د الله تعالی په رحمت کښې**

١٥٨١-(٢)[٥٩] [١] وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] "«مَنْ عَادَ مَرِيضًا، لَمْ يَزَلْ يَخُوضُ الرَّحْمَةَ حَتَّى يَجْلِسَ، [٣] فَإِذَا جَلَسَ اغْتَمَسَ فِيهَا» ". رَوَاهُ مَالِكٌ، وَأَحْمَدُ.

**ترجمه:** [١] حضرت جابر رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] هر کله چې یو سړي د یو مریض پوښتنې ته ورځي نو تر څو پورې چې هغه ناست نه وي د رحمت په دریاب کې ننوزی [٣] او هر کله چې د مریض سره کیني نو د رحمت په دریاب کې غوپه شي. (احمد مالك)

**حل اللغات:** - (١) يَخُوضُ: ور ننوځی (په دریاب د رحمت کښې)، (٢) اغْتَمَسَ: غوپه وهي.

(١) اخرجه احمد في المسند ٦
(٢) اخرجه مالک في الموطا کتاب العین /باب عیادة المریض والطیرة (رقم-١٧)

**تسهيلات:**

**قوله: مَنْ عَادَ مَرِيضًا:**

**په عيادت سره د ګناهونو معاف کيدل:** - يعنى کله چې دې د مريض د عيادت کولو دپاره ورځي نو تر کومې چې کور ته واپس نشي نو تر هغه وخت پورې رحمت دې پخپله ګيره کښې اخستې وى او د ګناهونو نه ئې پاکوى.

**[١٥٨٢] د تبې د علاج دپاره نبوی نسخه**

١٥٨٢-()[٦٠] [١] وَعَنْ ثَوْبَانَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ -، «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ [٢] إِذَا أَصَابَ أَحَدَكُمُ الْحُمَّى فَإِنَّ الْحُمَّى قِطْعَةٌ مِنَ النَّارِ، [٣] فَلْيُطْفِئْهَا عَنْهُ بِالْمَاءِ، [٤] فَلْيَسْتَنْقِعْ فِي نَهْرٍ جَارٍ وَلْيَسْتَقْبِلْ جِرْيَتَهُ، [٥] فَيَقُولُ: بِسْمِ اللَّهِ، اللَّهُمَّ اشْفِ عَبْدَكَ، وَصَدِّقْ رَسُولَكَ. [٦] بَعْدَ صَلَاةِ الصُّبْحِ قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ، [٧] وَلْيَنْغَمِسْ فِيهِ ثَلَاثَ غَمَسَاتٍ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ [٨] فَإِنْ لَمْ يَبْرَأْ فِي ثَلَاثٍ فَخَمْسٍ، [٩] فَإِنْ لَمْ يَبْرَأْ فِي خَمْسٍ فَسَبْعٍ، [١٠] فَإِنْ لَمْ يَبْرَأْ فِي سَبْعٍ فَتِسْعٍ، [١١] فَإِنَّهَا لَا تَكَادُ تُجَاوِزُ تِسْعًا بِإِذْنِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ» "[١٢] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [١] حضرت ثوبان ﷺ راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] هر کله چې په تاسو کې يو سړي په تبه کې مبتلا وي او تبه چونکه د اور يوه ټکړه ده [٣] نو څکه هغه په اوبو سره وژل پکار دي [٤] نو هغه سړي چې په تبه کې مبتلا دي پکار دي چې هغه په جاري نهرکي خکته شي او د اوبو بهيدلو طرف ته ودريږي [٥] او دا دعاوايي بِسْمِ اللَّهِ اللَّهُمَّ اشْفِ عَبْدَكَ وَصَدِّقْ رَسُولَكَ (د الله په بابرکت نامې سره زه شفاء طلب کوم اي الله خپل بنده ته شفاء ورکړې او خپل رسول يعنى د هغه قول رښتني کړې (په دې طور چې ماته شفاء راکړې) [٦] او دا عمل دې د سحر د مانځه څخه روسته د نمرختلو څخه مخکې وکړې [٧] او تر دريو ورځو پورې دې په اوبو کې غوپه (غوټه) وهي [٨] که په دريو ورځو کې ښه نه شو نو بيا (دا عمل) دې تر پنځو ورځو پورې وکړى [٩] که په پنځو ورځو کې هم ښه نشو نو بيا دې تر اووه ورځو پورې (دا عمل) وکړي [١٠] او که په اووه ورځو کې هم ښه نه شو نو بيا دې تر نهو ورځو پورې (دا عمل) وکړي [١١] د الله تعالى ﷻ په حکم سره به تبه د نهو ورځو څخه تجاوز نه کوي (يعني ددې عمل څخه روسته به تبه لاړه شي) [١٢] امام ترمذي رحمه الله دا روايت نقل کړي دي او ويلي يي دي چې دا حديث غريب دي.

**حل اللغات:** - ① فَلْيُطْفِئْهَا: مره کړئ دا (ګرمائش د تبې)، ② فَلْيَسْتَنْقِعْ: استنقاء په اوبو کښې دَ کوزيدو په معنى کښې ده، ③ جِرْيَتَهُ: کوم طرف ته چه اوبه بهيږى، ④ غَمَسَاتٍ: دغمسة جمع ده، غوپې وهل.

**تسهيلات: قوله: فَلْيُطْفِئْهَا عَنْهُ بِالْمَاءِ:** يعنى تبه دَ اور ټکړه ده. په دې سره دَ بدن په ګرمائش ډيره زياته تيزى کيږى په کوم سره چه دَ د ماغو دَ رګونو شليدو خطره کيږى. په دې وجه

---
[١] اخرجه الترمذي في كتاب الطب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-٢٠٨٤)

ګرمانش د اوبو په ذریعه مړ کړئی.

**قوله:** "وَلْيَسْتَقْبِلْ" یعنی د اوبو تلو طرف ته دې تبې نیولې سړې اودریږی او دغه ذکرشوې دعادې اووائی. داعمل د سحر د مونځ نه پس د نمر د راختونه مخکښې اوکړی.

**قوله:** وَلْيَنْغَمِسْ فِيهِ ثَلَاثَ غَمَسَاتٍ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ:

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:** - "ثلاثه ایام" ① د دې جملې یومطلب دادې چه دریو ورځو پورې دې روزانه درې درې غوپې لګوی

② دا احتمال هم دې چه دریو ورځو پورې روزانه یوه یوه غوپه لګوی. که چرې په دې سره تېك نه شو نوپنځو ورځو پورې دې داعمل اوکړی که تېك نه شو نو اووه ورځو پورې دې دا عمل اوکړی. بیا که چرې تېك نه شو نو نهه ورځو پورې دې دا عمل اوکړی او د نهوو ورځو نه به ان شاء الله تبه نه زیاتیږی.

**تنبیه:** - دلته دا خبره د یاد ساتلو ده چه د تبې ډیرزیات قسمونه وی. د هرې تبې د پاره دا علاج نه دې. بعضې تبه کښې غسل کولوسره مرض زیاتیږی اوسړې مړکیږی. دا د یو مخصوص تبې متعلق دا علاج خودلې شوې دې کومه چه به په حجاز کښې وه کومې ته چه صفراوی تبه وائی. د دې د پاره اوبو سره غسل ډیر فائده مند وی. ما یوخل کراچئی کښې د تبې په حالت کښې غسل اوکړو. اوس لا د غسل نه فارغ شوې نه ووم چه تبه ختمه شوه.

**د یو قسم تبې علاج په اوبو سره:** - بهرحال په دې جدید دور کښې هم د تبې سختئی په اوبوسره کمولې شی. او ماهرین ډاکټران د دوائی په ځائی اوبه او واوړې سره مریض د یخولو د پاره ویناکوی. تولیه لمدولوسره په تندی او سټ باندې اینغښتلې شی او ډیره فائده ورسره کیږی. بهرحال د مذکوره علاج نه د طبیب نه معلومول پکار دی چه تبه د کوم قسم ده. که چرې صفراوی حجازی تبه وی نو بیا هم دغه علاج دې کوم چه ډیرکامیاب دې اوکه چرې بل څه تبه وی او په غسل سره زیاته شی نوبیا په حدیث باندې ملامتیا مه کوه بلکه خپله ناپوهی او بې تدبیری ملامته کړه.

**[١٥٨٢] تبې ته د کنځلوکولو ممانعت**

١٥٨٣ - (١)[٦١] [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [٢] «ذُكِرَتِ الْحُمَّى عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَسَبَّهَا رَجُلٌ; [٣] فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "لَا تَسُبَّهَا [٤] فَإِنَّهَا تَنْفِي الذُّنُوبَ كَمَا تَنْفِي النَّارُ خَبَثَ الْحَدِيدِ» " رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [١] حضرت ابوهریره ﷺ فرمايي [٢] چې (یو ځل) د رسول الله ﷺ په مخکې د تبې ذکر وشو نو یو سړي هغې ته بد اوویل [٣] (په دې آوریدو سره) حضور ﷺ وفرمایل چې

[١] اخرجه ابن ماجة في كتاب الطب /باب الحمى (رقم-٣٤٦٩)

تبی ته بد مه وایه [٣] ځکه چې تبه ګناهونه داسې لرې کوي څرنګه چې اُور د اوسپنې خځه زنګ لرې کوي. (ابن ماجه)

**حل اللغات:-** ① لَاتَسُبَّهَا: کنځل نې ورته اوکړل، بدرد نې ورته اوونیل، ② تَنْفِي: لرې کوی، ③ الذُّنُوبَ: ګناهونه، ④ خَبَثَ الْحَدِيدِ: أَيْ: وَسَخَهُ. یعنی زنګ د اوسپنې.

**تسهیلات:**

**قوله: لَاتَسُبِّيهَا فَإِنَّهَا تَنْفِي الذُّنُوبَ:**

**تبې ته کنځلو کولو څخه ممانعت:-** مطلب دادې چې هرکله تبه ګناه لره لرې کوی نو د عقل دا تقاضا پکار ده چې شکر اوباسی ، ناشکرې دې نه کوی مشائخ کرامو لیکلی دی چې په مصیبت او تکلیف کښې هم دې هغه شان شکر ادا کړې شی څنګه چې په نعمت او راحت باندې شکر ادا کیږی . ځکه چې کله الله ﷻ په چاباندې څه مصیبت نازلوی نو په دې مصیبت کښې هم د هغه لوې ذات څه نه څه حکمت پټ وی.

**[١٥٨٤] په تبه کښې د مبتلاء کېدو غرض**

١٥٨٣—()[٦٢][١] وَعَنْهُ قَالَ: «إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَادَ مَرِيضًا [٢] فَقَالَ: "أَبْشِرْ; فَإِنَّ اللَّهَ تَعَالَى يَقُولُ: [٣] هِيَ نَارِي أُسَلِّطُهَا عَلَى عَبْدِي الْمُؤْمِنِ فِي الدُّنْيَا [٤] لِتَكُونَ حَظَّهُ مِنَ النَّارِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ".

**ترجمه:** [١] حضرت ابوهریره رضي الله عنه فرمایي چې رسول الله ﷺ د یو مریض عیادت وکړو (چې په تبه کې مبتلاء وو) [٢] او هغه ته یي وفرمایل چې تا ته دي زیرې وي ځکه چې الله تعالی ﷻ فرمایي [٣] تبه زما یو اور دي زه یي په خپل بنده ځکه مسلط کوم [٤] چې تبه د هغه په حق کې د قیامت په ورځ د دوزخ د اُور بدله او حصه شي. (احمد ، ابن ماجه، بیهقي)

**حل اللغات:-** ① حَظَّهُ: أَيْ: نَصِيبَهُ: خپله حصه،

**تسهیلات:**

**قوله: هِيَ نَارِي أُسَلِّطُهَا عَلَى عَبْدِي الْمُؤْمِنِ فِي الدُّنْيَا:**

مطلب دادې چې په قران کریم کښې دالله ﷻ ارشاد دې (وَإِنْ مِّنكُمْ إِلَّا وَارِدُهَا) یعنی تاسو کښې داسې هیڅوك نشته دې چې (دقیامت په ورځ به) دوزخ کښې داخل نشی ، لهذا مؤمن بنده په دنیا کښې کښې ددې داخلیدو نه د بچ کیدو دپاره په تبه کښې اخته کولې شی . داشان دېددې تبې په وجه دهغه عذاب نه کوم چې به ده ته دوزخ ته په داخلیدو ورکړې کیږی بچ شی اګر چې داخلیدل به تولو دپاره وی چې پل صراط باندې به د دوز دپاسه تیریږی کوم

[1]) اخرجه الترمذي في كتاب الطب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-٢٠٨٨) وابن ماجة كتاب الطب/باب الحمى (رقم-٣٤٧٠)

چې ددوزخ دپاسه جوړ شوې دې.

ددې پورتنۍ تشریح پیش نظر د مؤمن لفظ سره د کامل لفظ لګول پکار وو، ددې مطلب به داوی چې د حدیث دمفهوم تعلق د مؤمن کامل سره دې. ځکه ځینې ګناهګار مؤمنان به هم د دوزخ اوور کښې اچولې کیږي. داشان هغه مؤمن چې به دخپلو ګناهونو په وجه د دوزخ په عذاب کښې اچولې کیږي، هغه ددې حدیث د مفهوم او مصداق نه به خارج شي.

**[١٥٨٥] فقيرئ اوبيمارئ دګناهونو د کفارې سبب**

١٥٨٥-()[٦٣] [١] وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ -: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [٢] "«إِنَّ الرَّبَّ - سُبْحَانَهُ وَتَعَالَى - يَقُولُ: وَعِزَّتِي وَجَلَالِي، [٣] لَا أُخْرِجُ أَحَدًا مِنَ الدُّنْيَا أُرِيدُ أَنْ أَغْفِرَ لَهُ، [٤] حَتَّى أَسْتَوْفِيَ كُلَّ خَطِيئَةٍ فِي عُنُقِهِ بِسَقَمٍ فِي بَدَنِهِ، [٥] وَإِقْتَارٍ فِي رِزْقِهِ». رَوَاهُ رَزِينٌ.

**ترجمه:** [١] د انس رضي الله عنه څخه روایت دې چې رسول الله ﷺ وفرمایل الله بزرګ وبرتر فرمایي [٢] چې زما دې په خپل عزت او بزرګي قسم وي [٣] کوم بنده چې زه بخښل غواړم هغه زه د دنیا څخه تر هغه وخته پورې نه اوچتوم [٤] تر څو پورې چې د هغه د هرې ګناه بدله چې د هغه په ذمه وي ورنکړم د هغه بدن په مریضي کې مبتلا کولو سره [٥] او هغه د رزق په تنګي کې مبتلا سره. (رزين)

**حل اللغات:** - ① أَسْتَوْفِيَ: پوره بدله به ورکړم (دهرې ګناه). ② عُنُقِهِ: أي فِي ذِمَّتِهِ په څټ کښې یعنی چه دهغه په ذمه وی. ③ سَقَمٍ: بیماری، ④ إِقْتَارٍ: أي: تَضْيِيقِ د رزق تنګسیا، یعنی بدنی مرضونه لوګې تندې سره به دهغه ګناه معاف کوم.

**تسهیلات:**

**نوټ:** - د دې حدیث تسهیل په بل ځای کښې ذکر شوې ده.

**[١٥٨٦] دَ حضرت ابن مسعود رضي الله عنه د ژړلو واقعه**

١٥٨٦-()[٦٤] [١] وَعَنْ شَقِيقٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [٢] مَرِضَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - فَعُدْنَاهُ [٣] فَجَعَلَ يَبْكِي، فَعُوتِبَ. [٤] فَقَالَ: إِنِّي لَا أَبْكِي لِأَجْلِ الْمَرَضِ ; [٥] لِأَنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: "«الْمَرَضُ كَفَّارَةٌ» " [٦] وَإِنَّمَا أَبْكِي لِأَنَّهُ أَصَابَنِي. عَلَى حَالِ فَتْرَةٍ، [٧] وَلَمْ يُصِبْنِي فِي حَالِ اجْتِهَادٍ [٨] لِأَنَّهُ يُكْتَبُ لِلْعَبْدِ مِنَ الْأَجْرِ إِذَا مَرِضَ مَا كَانَ يُكْتَبُ لَهُ قَبْلَ أَنْ يَمْرَضَ ; [٩] فَمَنَعَهُ مِنْهُ الْمَرَضُ. رَوَاهُ رَزِينٌ.

**ترجمه:** [١] شقيق فرمايي [٢] کوم وخت چې عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه مریض شو نو مونږ خلق پوښتنې ته ورغلو [٣] نو هغه په ژړا شو [خلقو دا ګمان وکړو چې هغه دمریضی د تکلیف او د مریضی په وجه نه ژاړم [٥] ځکه چې ما پخپله د حضور ﷺ څخه اوریدلي دي چې د ژوند سره د محبت په وجه ژاړي] نو په هغه د ناګواری [٤] ابن مسعود رضي الله عنه وفرمایل چې زه

[١]) اخرجه البيهقي في شعب الايمان رقم الحديث ٩٨٤٥
[٢]) رواه رزين

مريضى د ګناهونو د لري کولو سبب دي [٦] خو دي د پاره ژاړم چې زه د بوډاتوب په حالت کې مريضي کې مبتلا شوم [٧] د خواني په حالت کې په مريضي کې ولې مبتلا نه شوم [٨] ځکه چې بنده مريض شي نو د هغه د مريضي په ورځو کې د هغه اعمال ليکل کيږي کوم چې د هغه د مريض کيدو څخه مخکې ليکل کيدل [٩] او اوس مريضي هغه د هغه عمل څخه منع کړي وي. (رزين)

**حل اللغات:-** ① تُعُوتِبَ: ملامته کړې شو. ② فَتْرَة: کڅ کيدو او منقطع کيدو ته وائي، يعنی خواني ختمه شوه او بوډاتوب شروع شو. مراد بوډاتوب دي.

**تسهيلات:**

**قوله: فَجَعَلَ يَبْكِي:**

**د عبدالله بن مسعود د ژړا وجه:-** حضرت ابن مسعود رضی الله عنه دبيمارئی په حالت کښې ژړل چاملامته کړوچه ته دومره لوئی سړي ئی اوبيمارئی ته ژاړې. هغوی اوفرمائيل دَ بيمارئی دَ وجې نه نه ژاړم بلکه په دې وجه ژاړم چه دَدې بيمارئی نه وړاندې زه بوډا اوکمزورې ووم نوکم عمل به مې کولو. افسوس چه زه خوان ووم او په عبادت کښې مې ښه محنت کولو اوبيابيمار شوې ووم نودَ بيمارئی په حالت کښې به راته زيات ثواب ملاويدلو اوس به ماته کم ثواب ملاويږی ځکه چه دَ بوډاوالی دَ وجې نه دَ صحت په حالت کښې مې زيات محنت نه دې کړې ځکه چه دَحضورپاك ارشادمبارك مطابق بيمارته دَ بيمارئی په حالت کښې هم هغه ثواب ملاويږی کوم چه به هغه په صحت کښې کولو.

**[١٥٨٧] درې ورځې پس د مريض عيادت کول**

١٥٨٧-()[٦٥] [١] وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: [٢] «كَانَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- لَا يَعُودُ مَرِيضًا إِلَّا بَعْدَ ثَلَاثٍ»). رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ".

**ترجمه:** [١] انس رضی الله عنه فرمايي [٢] چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم به درې ورځې وروسته د مريض پوښتنه کوله. (ابن ماجه بيهقي)

**تسهيلات: قوله: إِلَّا بَعْدَ ثَلَاثٍ:**

**درې ورځې پس د بيمار عيادت کولو حکم:-** دَدې روايت ظاهری حکم هم دغه دې چه حضورپاك به دَ يومريض پوښتنه درې ورځې پس کوله دې نه وړاندې به نه ورتللو. ترکومې چه دَ مسئلې تعلق دې نودَ عيادت حکم څه زمانې سره مقيدنه دې هروخت سړې دَ بيمار پوښتنې دَپاره تللې شی.

ترکومې چه دَحديث تعلق دې نوعلماء وائی دا ضعيف غيرمعمول به دې. بلکه بعضې

[١] اخرجه ابن ماجة فی کتاب الجنائز/باب ما جاء فی عيادة المريض (رقم-١٤٣٧)

علماء وائی چه دا حدیث موضوعی دې یعنی د ځان نه دې او په مشکوة کښې هم دغه یو حدیث موضوعی دې. "لکل جواد کبوة ولکل سیف نبوة" یعنی هر ښکلې اس کله تندك خوری او د هرې ښکلې تورې کله مخ اوړی.

**[١٥٨٨] د بیمار دعا د فرښتو د دعا په شان**

١٥٨٨ -(¹)[٦٦] [١] وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " [٢] «إِذَا دَخَلْتَ عَلَى مَرِيضٍ فَمُرْهُ يَدْعُو لَكَ، [٣] فَإِنَّ دُعَاءَهُ كَدُعَاءِ الْمَلَائِكَةِ» " رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [١] حضرت عمر فاروق رضی الله عنه روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] هر کله چې ته مریض ته ورشې نو هغه ته اووایه چې ستا د پاره دعاء وکړی [٣] ځکه چې د هغه دعاء د فرښتو د دعاء په شان ده. (ابن ماجه)

**تسهیلات:** بیمار له پکاردی چه هغه دې هروخت د ځپل ځان د پاره او د ځپلو رشته دارانو د پاره او د عام مسلمانانو د پاره دعا کوی او پوښتنه کونکوله هم پکاردی چه په هغه باندې دعا کوی ځکه چه هغه د ځپلو مخصوص حالاتو په ذریعه سره فرښتوته نیزدې شوې هم دې او د هغوی په شان شوې هم دې په دې وجه د هغه دعا د فرښتو په شان مقبول ده.

**[١٥٨٩] مریض سره د شور کولو ممانعت**

١٥٨٩ -(²)[٦٧] [١] «وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: مِنَ السُّنَّةِ تَخْفِيفُ الْجُلُوسِ، [٢] وَقِلَّةُ الصَّخَبِ فِي الْعِيَادَةِ عِنْدَ الْمَرِيضِ. [٣] قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لَمَّا كَثُرَ لَغَطُهُمْ وَاخْتِلَافُهُمْ: قُومُوا عَنِّي». رَوَاهُ رَزِينٌ.

**ترجمه:** [١] ابن عباس رضی الله عنهما فرمایې چې سنت دی د مریض سره کم کیناستل [٢] او شور او غوغا نه کول د عیادت په وخت کې [٣] او د ابن عباس رضی الله عنهما روایت دې چې رسول الله ﷺ هغه وخت هر کله چې په صحابه ؤ رضی الله عنهم کې شور او غوغا او اختلاف زیات شو وفرمایل چې زما څخه پا څئ. (رزین)

**حل اللغات:** - ① تَخْفِيفُ الْجُلُوسِ: کم کیناستل، ② قِلَّةُ الصَّخَبِ: شور، آواز کمول، ③ لَغَطُهُمْ: شور او غوغا، په داسې حالت څوک دچا په خبره نه پوهیږی دې اللغط وائي.

**تسهیلات:** **قوله: مِنَ السُّنَّةِ تَخْفِيفُ الْجُلُوسِ:**

**بیمار سره د ناستې په باره کښې دوه صورتونه:** - ① حضرت ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی چه پوښتنه کښې سنت طریقه داده چه مریض سره کم کیناستل پکاردی. دا هغه وخت دی کوم وخت چه مریض ته د تپوس کونکی نه بوج محسوس کیږی او کوروالوته تکلیف کیږی. ② که پوښتنه کونکې څوك داسې سړې وی چه بیمارته ترې سکون اوراحت حاصلیږی نو بیا د ډیر وخت

¹) اخرجه ابن ماجة فی کتاب الجنائز/باب ما جاء فی عيادة المريض (رقم-١٤٤١)
²) رواه رزین

پورې کیناستل پکاردی. "الصخب" شور شغب اوچغو ته صخب وائی. دا په هرحالت کښې ناجائز دی. حضرت ابن عباس رضي الله عنهما په خپله دعوی باندې دحدیث قرطاس نه استدلال کړې دې چه هغه وخت کوم شور شو نوحضورپاك اوفرمائیل زما نه لاړشئ. دحدیث قرطاس واقعه دمشکوة دویم جلد آخری ابواب کښې "باب النبی ﷺ" لاندې راځی بیا اوګورئ.

**[١٥٩٠] په عیادت کښې داختصار مسنونیت**

١٥٩٠-(١)[٦٨] [١] وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [٢] "«الْعِيَادَةُ فَوَاقُ نَاقَةٍ»"

**ترجمه:** [١] د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دې چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] د عیادت افضله مرتبه د اوښې د دوه څله د لوشلو د درمیاني وقفې په قدر ده

١٥٩١-(٢)-[١] وَفِي رِوَايَةِ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ مُرْسَلًا: [٢] «أَفْضَلُ الْعِيَادَةِ سُرْعَةُ الْقِيَامِ» . رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ اهـ.

**ترجمه:** [١] او د سعید بن مسیب د روایت چې بطریق ارسال منقول دي دا الفاظ دي چې [٢] بهترین عیادت هغه دي چې په هغې کې عیادت کونکي زر پاځیږي. (بیهقی)

**حل اللغات:**- ① فَوَاقُ نَاقَةٍ: د اوښې دوه څله د لشلو په مینځ کښې وقفې ته فواق وائي.

**تسهیلات: قوله : فَوَاقُ نَاقَةٍ:**

**د فواق ناقه تحقیق:**- ددې جمله تشریح به ان شاء الله کتاب الجهاد کښې راځی دلته دا اوګڼرئی چه د اوښې دپیئو د راویستو دپاره چه کله سړې ورځی اود اوښې بچې دهغې غولانزې ته وریږدی نواوښه دخپل بچې دپاره پیئې راپریږدی خوانسان کوم چه چالاك دې هغه ورشی اود اوښې بچې جدا کړی اوپیئې راؤباسی. دغولانزې نه راوتلې پیئې واپس تینوته نه شی تللې خواوښه نور پیئې بند کړی دې دپاره چه پیئې دهغې بچی ته ملاؤشی. انسان داوښې نه زیات چالاك دې دې بیاداوښې بچې تینوته وریږدی اوښه بیا د بچې دپاره پیئې راپریږدی ولې انسان بیاورشی اوپیئې ترې راوباسی. دغه شان دوه یا درې ځل داعمل کیږی. دپیئوراویستو اود بچې پریخودو مینځ کښې چه کومه وقفه ده هم دهغې وقفې نوم فواق ناقه دې. دا مختصر وخت دې په دې وجه دقیامت د شپیلئی باره کښې دالله تعالی ارشاد دې ﴿ وَمَا لَهَا مِنْ فَوَاقٍ ﴾ یعنی د فواق په اندازه وقفه به هم نه وی.

**[١٥٩١] دبیمار د خواهش پوره کول**

١٥٩٢-(٣)[٦٩] [١] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: «أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- عَادَ رَجُلًا [٢] فَقَالَ لَهُ: مَا تَشْتَهِي قَالَ أَشْتَهِي خُبْزَ بُرٍّ. [٣] قَالَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "مَنْ كَانَ عِنْدَهُ خُبْزُ بُرٍّ فَلْيَبْعَثْ إِلَى أَخِيهِ [٤] ثُمَّ قَالَ

(١) اخرجه البیهقی فی شعب الایمان حدیث رقم ٩٢٢٢
(٢) اخرجه البیهقی فی شعب الایمان حدیث رقم ٩٢٢١
(٣) اخرجه ابن ماجة کتاب الجنائز /باب ما جاء فی عیادة المریض (رقم-١٤٣٩)

النَّبِيُّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "إِذَا اشْتَهَى مَرِيضُ أَحَدِكُمْ شَيْئًا فَلْيُطْعِمْهُ» ". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [١] ابن عباس رضي الله عنه فرمايي چې نبي كريم ﷺ د يو سړي عيادت وكړو [٢] بيا يي ترې نه پوښتنه وكړه چې زړه دي كوم شي خوړل غواړي؟ هغه اوويل د غنمو روټۍ. ته مي زړه كيږي [٣] حضور ﷺ وفرمايل چې د چا سره چې د غنمو روټۍ وي هغه ته پكار دي چې خپل ورور (يعني دي مريض) ته يي راوليږي [٣] بيا حضور ﷺ وفرمايل چې هر كله چې په تاسو كښې څوك مريض شي او د يو شي خواهش اوكړي نو هغه څيز پرې خوړل پكار دي. (ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① خُبْزٌ: روټۍ، ② بُرٌّ: غنم.

**تسهيلات:**

**قوله: إِذَا اشْتَهَى مَرِيضُ أَحَدِكُمْ شَيْئًا فَلْيُطْعِمْهُ:**

يعنى يوسړې سخت بيماردې اودېرې مودې نه دَ پرهيزژوند تيره وى. ده دَ څه څيزدَ خوړلوسخته تمنا شوه او په كامله اشتهاء سره دَدغه څيزمطالبه كوى نوپه دې حديث كښې خودلې شى چه په هغه باندې دغه څيزاوخورئى اودَ هغه دَ پرهيزپرواه مه كوئى.

**اعتراض:** - دلته داسوال پيداكيږى چه دَ طب دَ اصولوقاعده خوداده چه دَ بيماردَپاره پرهيزېرضرورى دې اوبعضې وخت دَ مريض دَ خواهش مطابق څه وركولوسره هغه ته نقصان هم كيږى حالانكه دَحديث نه اجازت ثابتيږى؟

**جوابونه:** - ① علماء كرامودَ دې سوال داجواب وركړې دې كله چه دَبيمارطلب صادق وى اودَخواهش مطابق لږ شان څيز وركړې شى نوعموماً هغه دَمريض دَپاره نقصانى نه وى بلكه فائده مندثابتيږى. داحديث څه عام ضابطه نه ښائى او نه عام حكم وركوى بلكه دَدې حكم په جزوى او انفرادى توګه باندې دې. لهذا مريض دَپاره بدپرهيزئى معامله نه دى كول پكار. اګرچه بعضې وخت دغه بدپرهيزئى سره دَ بيمار بيمارى ختميږى.

**يو حكايت:** - مولانا فضل محمد صاحب فرمائى. ماپخپله يوځل دَدې تجربه اوكړه. هغه داسې چه زمونږ يوخپلوان بيمارشو. ما چه كله دَهغه پوښتنه اوكړه نوهغه بالكل دَ ژوندپه آخرى مرحله كښې وو اوفريادكولوسره دَ څكلودَپاره لسى غوښتله. مادَ ده كور والوته اوويل چه داسړې خوهسې هم مرى نودَ ده خواهش پوره كړئى اوده باندې لسى اوڅكئى دَ كورخلقو په بيمار باندې ښه لسى اوڅكله څنګه چه هغه لسى اوڅكله دَ بيمارئى نه ښه شو اودَ ډيروكالونوپورې ژوندې وو. آخره كښې بيا مرګ حاضرى اولګوله او هغه ئى يوړو. معلومه شوه چه زير بحث حديث بعضې جزئى احوالوسره متعلق دې

② علامه طيبى رحمه الله دا جواب وركړې دې چه داحديث دَهغه سړى متعلق دې دَ چادَ ژوندنه چه ټول خلق نااميده شوى وى اوهغه پخپله هم نااميده شوې وى. نودَداسې سړى دَ پرهيز

هيڅ ضرورت نشته دي. دَهغه دَ خواهش والاخيز په هغه خوروني اوڅکوني دي دپاره چه هغه په خپل ژوند کښې خپل ارمان پوره کړي مخکښې الله مالك دې. [الكاشف: ٣/٣٣٥]

[١٥٩٣] دَ سفر په حالت کښې دَ مرګ راتللو فضيلت

١٥٩٣ –()[٤٠] [١] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: [٢] «تُوُفِّيَ رَجُلٌ بِالْمَدِينَةِ مِمَّنْ وُلِدَ بِهَا ; فَصَلَّى عَلَيْهِ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٣] فَقَالَ: يَا لَيْتَهُ مَاتَ بِغَيْرِ مَوْلِدِهِ. [٤] قَالُوا: وَلِمَ ذَاكَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ؟ [٥] قَالَ: "إِنَّ الرَّجُلَ إِذَا مَاتَ بِغَيْرِ مَوْلِدِهِ [٦] قِيسَ لَهُ مِنْ مَوْلِدِهِ إِلَى مُنْقَطَعِ أَثَرِهِ فِي الْجَنَّةِ» ". رَوَاهُ النَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [١] عبدالله ابن عمرو ﷺ فرمايي [٢] چې يو سړي په مدينه کښې وفات شو چې په مدينه کښې پيدا شوي وو نبی کريم ﷺ د هغه د جنازې مونځ ورکړو [٣] بيا يې وفرمايل آرمان چې دا سړي د خپل پيدا کيدو د ځاي څخه علاوه په يو بل ځاي کښې مړ شوي وي [٤] صحابؤ ﷺ عرض اوکړو چې يا رسول الله ﷺ دا ولې؟ [٥] حضور ﷺ وفرمايل کوم سړي چې د خپل وطن څخه علاوه په يو بل ځاي کښې مړي [٦] نو د هغه د وطن څخه د هغه د مړکيدو تر مقام پورې د هغه د پاره په جنت کې پيمايش کيږي. (نسايي ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① يَا لَيْتَهُ: هاي افسوس، ② قِيسَ: پيمائش کيږي، ③ إِلَى مُنْقَطَعِ أَثَرِهِ: أي إِلَى مَوْضِعِ قَطْعِ أَجَلِهِ، د مړکيدو مقام پورې،

**تسهيلات: قوله: يَا لَيْتَهُ مَاتَ بِغَيْرِ مَوْلِدِهِ:**

**دسفر د مرګ فضيلت:** - يعنی افسوس چه دا سړې دَخپل پيدائښ دَ ځائی نه علاوه چرته دَ سفر په ځائی کښې مړشوې وې. صحابه کرامو تپوس اوکړو يارسول الله! په دې کښې څه فائده اوحکمت دې؟ حضورپاك اوفرمائيل کوم سړې چه دَ وطن نه لرې دَ سفر په حالت کښې مړکيږي نودَهغه دَ وطن اوکور نه واخله دَهغه دَ مرګ دَ ځائی پورې دَ زمکې ناپ کولې شي او په جنت کښې هم دومره زمکه هغه ته ملاويږي. دَ سفر په حالت کښې دَ مرګ خفګان ډير سخت وی په دې وجه ورته دا اجر ملاويږي.

**دسفرمذکورپه مصداق کښې درې اقوال:** - ① چه دَدې سفرنه دَ جهاد سفرمراد دې
② دَدې څخه د علم دَ حصول سفرمراددې
③ دَدې څخه ديني سفرمراددې مثلاً دحج وغيره عباداتو، دَګناه اونافرمانۍ سفرمرادنه دې.

[١٥٩٤] دسفر مرګ شهادت حکمی

١٥٩٤ –()[٤١] [١] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] " «مَوْتُ الْغُرْبَةِ شَهَادَةٌ» ". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

[1] اخرجه االنسائی فی کتاب الجنائز/باب الموت بغير مولده (رقم-١٨٣٢) وابن ماجة کتاب الجنائز/باب ما جاء فيمن مات غريبًا (رقم-١٦١٤)

[2] اخرجه ابن ماجة فی کتاب الجنائز/باب ما جاء فيمن مات غريبًا (رقم-١٦١٣)

**ترجمه:**[١] ابن عباس رضي الله عنه روايت کوي چې حضور ﷺ وفرمايل[٢] د مسافري د حالت مرګ شهادت دي. (ابن ماجه)

**حل اللغات:**- ① الْغُرْبَةِ: مسافري.

**تسهيلات: قوله: مَوْتُ الْغُرْبَةِ شَهَادَةٌ:**

**د سفر په مرګ د شهادت اطلاق:**- د مسافرت مرګ د شهادت مرګ دي. ځکه چې په دې کښې انسان تکليفونو او پريشانو سره مخ کيږي. او د مسافرت مرګ زيات شديد وي. الحاصل د مسافرت مرګ د وطن د مرګ څخه افضل دي. ټول علماء کرام په دې باندې متفق دې چې د مدينې منورې مرګ د مکې مکرمې مرګ نه بهتر دي.

**[١٥٩٥] په بيمارۍ کښې د مرګ راتلو فضيلت**

١٥٩٥-() [٤٢] [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [٢] "«مَنْ مَاتَ مَرِيضًا مَاتَ شَهِيدًا، [٣] وَوُقِيَ فِتْنَةَ الْقَبْرِ [٣] وَغُدِيَ، وَرِيحَ عَلَيْهِ بِرِزْقِهِ مِنَ الْجَنَّةِ» . رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ.

**ترجمه:**[١] ابوهريره رضي الله عنه روايت کوي چې حضور ﷺ وفرمايل[٢] کوم سړي چې د مرض په حالت کښې مرې هغه شهيد مرې[٣] او د قبر د فتنو څخه بچ کيږي [٤] او هر سحر او ماښام هغه ته د جنت څخه رزق ورکول کيږي. (ابن ماجه بيهقي)

**حل اللغات:**- ① وُقِيَ: أَيْ: حُفِظَ: چه محفوظ اوساتلې شو، ② فِتْنَةَ الْقَبْرِ: أَيْ: عَذَابَهُ: يعنى د قبرعذاب، ③ غُدِيَ: دَ الْغُدْوَةِ نه دې دَ سحرخوراك ته وائى. ④ رِيحَ: مِنَ الرَّوَاحِ: دَ ماښام خوراك ته وائى.

**تسهيلات: قوله: مَنْ مَاتَ مَرِيضًا مَاتَ شَهِيدًا:**

**د مشكاة د نسخې تحقيق:**- دَ مشکوة په ټولو نسخوکښې لفظ هم مريض ليکلې شوې دې او بعضې نسخوکښې لفظ غريب ليکلې شوې دې. ليکن دَ صحيح نسخې مطابق لفظ "مرابطـا" دې کـوم چـه دَ ربـاط نـه ده. دَ يواسلامى ملـك پـه سـرحداتوباندې څوکيدارى کولونـوم ربـاط دې. علامـه ميـرك رحمه الله دَمشکوة شريف دَخپلې نسخې پـه حاشيه کښې ليکلى دى چه "صوابه مرابطًا" يعنى صحيح لفظ مرابطا دې مريضًا نه دې. ملاعلى قارى رحمه الله فرمائى چه دلته راوى په غلطئى سره مرابطا په ځائى مريضا ليکلې دې اوبيائى دَابن ماجه حواله ورکړې ده چه هغې دَ دې حديث تخريج کړې دې. پـه ډيرواحاديثوکښې راغلى دى چه مرابط ته دَ شهادت ثواب ملاويږى سره دَدې چه هغه په خپله بستره باندې مرشى.

**د شهيد برزخى ژوند:**- يعنى شهيدانو ته چه پس دَ شهادت نه برزخى ژوند ملاويږى نودغه مرابط ته هم ملاويږى اودې سره سره دَهغوى رزق هم جارى کيږى اودَ جنت خوراك پرې

(١) اخرجه ابن ماجة فى كتاب الجنائز/باب ما جاء فيمن مات مريضًا (رقم-١٦١٥)

کولې شي. یادلرئی دَ شهداؤ درجه دَهغوی نه اوچته ده اودَ انبیاء کرامو علیهم السلام دَ دې ټولونه اوچت مقام دې. لهذا دَهغوی ژوند اودَهغوی رزق به دَ ټولونه اعلی وی.

**[١٥٩٦] دَ طاعون مړګ شهادت حکمی**

١٥٩٦ –()[٤٣] ١ وَعَنِ الْعِرْبَاضِ بْنِ سَارِيَةَ: أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ٢ «يَخْتَصِمُ الشُّهَدَاءُ وَالْمُتَوَفَّوْنَ عَلَى فُرُشِهِمْ إِلَى رَبِّنَا - عَزَّ وَجَلَّ - ٣ فِي الَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنَ الطَّاعُونِ، ٤ فَيَقُولُ الشُّهَدَاءُ: إِخْوَانُنَا قُتِلُوا كَمَا قُتِلْنَا. ٥ وَيَقُولُ الْمُتَوَفَّوْنَ: إِخْوَانُنَا مَاتُوا عَلَى فُرُشِهِمْ كَمَا مِتْنَا. ٦ فَيَقُولُ رَبُّنَا: انْظُرُوا إِلَى جِرَاحِهِمْ فَإِنْ أَشْبَهَتْ جِرَاحُهُمْ جِرَاحَ الْمَقْتُولِينَ فَإِنَّهُمْ مِنْهُمْ وَمَعَهُمْ، ٧ فَإِذَا جِرَاحُهُمْ قَدْ أَشْبَهَتْ جِرَاحَهُمْ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالنَّسَائِيُّ[1].

**ترجمه:** ١ حضرت عرباض ابن ساریه رضی الله عنه روایت کوي چې حضور ﷺ وفرمایل ٢ شهداء او هغه خلق چې په خپلو بسترو باندې (یعني په خپلو کورونو کښې ) مري (او حقیقي شهید شوي نه وي) د خپل پروردګار بزرګ وبرتر په مخکې به جګړه کوی ٣ د هغه خلقو په معامله کښې چې طاعون ځپلی کیدو سره مړه شوي وي ٤ نو شهداء خو به دا وایي چې دا خلق (چې د طاعون په مرض مړه شوی وی) زمونږ ورونه دي (یعني زمونږ سره مشابهت لري نو دوي زمونږ په مرتبه کیدل پکار دي) ځکه چې څرنګه مونږ قتل شوي وو همدا رنګه دوي هم قتل کړل شوي وو ٥ او کوم خلق چې د خپل اهل او عیال په مینځ کې (په بستره) مړه شوي دي وايي به چې زمونږ ورونه دي (یعني زمونږ په شان دي) ځکه چې دا خلق داسې په خپله بستره مړه شوي دي څرنګه چې مونږ مړه شوي یو ٦ نو زمونږ پروردګار به فرمایي چې د دوي زخمونه دي وکتل شي که د دوي زخمونه د شهداؤ د زخمونو په شان وي نو دوي د شهداؤ څخه دي (یعني په اعتبار د ثواب د شهداؤ په مرتبه کې دي) او د هغوئ سره دي ٧ هر کله چې وکتل شي نو د هغوئ زخم به د شهداؤ د زخم په شان وي. (احمد نسایي)

**حل اللغات:-** ① يَخْتَصِمُ: جګړه به کوی، ② فُرُشِهِمْ: فرش بسترې ته وائی. ③ جِرَاحِهِمْ: جَمْعُ جِرَاحَةٍ بِالْكَسْرِ، زخم ته وائي.

**قوله: الطَّاعُونِ:**

**د طاعون په مرګ مړ شوي د شهیدان سره:-** دَطعن نه دې اوطعن نیزه وهلوته وائی چونکه دابیماری دَ ابلیس نیزه وهلوسره پیداکیږی په دې وجه دَدې په ماده کښې دَ طعن لفظ پریوتې دې.

[1]) اخرجه النسائی فی کتاب الجهاد /باب مسألة الشهادة (رقم-٣١٦٤)

**تسهيلات: قوله : يُتَوَفَّوْنَ مِنَ الطَّاعُونِ:**

**د حديث خلاصه :-** دَدې حديث خلاصه داده چه دَ قيامت په ورځ به دَالله تعالى په حضور کښې دَ طاعون نه مړه کيدونکو باره کښې شهداء او هغه خلق کوم چه په خپل کټ پوزې مړه شوي دي جګړه کوي شهداء به وائي دازمونږ ملګري دي او زمونږ رور دې دي مونږ سره کيدل پکاردي ځکه چه زمونږ په شان دې هم قتل کړې شوې دي. په خپل مرګ مړه کيدونکي به وائي دازمونږ ملګري دي اوزمونږ رور دي مونږ سره کيدل پکاردي ځکه چه زمونږ په شان يوبيمارئي سره داخلق په خپل مرګ مړه شوي دي. الله تعالى به فرمائي چه دَده زخمونه اوګورئي چه دَ چا په شان دي. کله چه اوکتلې شي نودَهغه زخمونه به دَ شهيدانودَزخمونوپه شان وي لهذا دې به هغوي سره وي. بهرحال کوم سړي چه په دنيا کښې دَ طاعون په بيمارئي سره مري هغه به دَ قيامت په ورځ شهداؤ سره وي.

**[١٥٩٧] دَطاعون څخه دَتختيدلو مذمت**

١٥٩٧-( )[٤٣] [١] وَعَنْ جَابِرٍ: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [٢] «الْفَارُّ مِنَ الطَّاعُونِ كَالْفَارِّ مِنَ الزَّحْفِ، [٣] وَالصَّابِرُ فِيهِ لَهُ أَجْرُ شَهِيدٍ». رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** [١] حضرت جابر ﷺ روايت کوي چې حضور ﷺ وفرمايل [٢] د طاعون د مريضي څخه (يعني چيرته چې دا وبا خوره شي د هغه ځاي څخه) تښتيدونکي په جهاد کښې د کفارو د مقابلې څخه د تښتيدونکي په شان دي [٣] او په طاعون کښې صبر کونکي ته د شهيد ثواب حاصليږي. (احمد)

**حل اللغات:-** ① الْفَارُّ: تختيدونکي، ② الزَّحْفِ: الجيش الكثير: ګنړې لښکرې يعنى جنګ.

**تسهيلات: قوله : الْفَارُّ مِنَ الطَّاعُونِ:**

**د طاعون او جهاد څخه تختيدونکي کښې وجه د تشبيه :-** علامه طيبي رحمه الله فرمائي چه دَ جهاد دَ ميدان نه تختيدونکي اودَ طاعون نه تختيدونکي په شان دَ کبيره ګناه په اعتبار سره دي يعني څنګه چه دَ جهاددَ ميدان نه تختيدل کبيره ګناه ده هم دغه شان دَ طاعون نه تختيدل هم کبيره ګناه ده. اوپه طاعون باندې صبرکول لکه چه دَ شهادت درجه حاصليدل دي. اوکه دَطاعون نه تختيدونکي دا عقيده لرى که چرې زه دَ طاعون علاقې ته لاړم نومړبه شم اوکه لاړنه شم نو بچ به شم. دا ډيره خطرناکه عقيده ده بلکه کفرسره نيزدې ده. [الكاشف]

١) اخرجه احمد في المسند ٣/٣٢٤

# [ ۲ ]بَابُ تَمَنِّي الْمَوْتِ وَذِكْرِهٖ]

## دَمرګ تمنا اوذهغې یادول

**خلاصة الباب :-**

**فيه سبعة عشر حديثاً مشتملة على ست مسائل:**

① النهي عن تمنى الموت : ۱، ۲، ۳ ،۱۵، ۱۶، ۱۷۔

② محبة لقاء الله تعالى: ۴، ۸۔

③ كون الموت راحة للمؤمن والتحفة له : ۵، ۱۱۔

④ فضيلة ذكر الموت: ۶، ۱۰۔

⑤ حسن الظن عند الموت: ۷، ۱۴۔

⑥ كيفية موت المؤمن والكافر: ۱۲، ۱۳۔

قال الله تعالى ﴿ إِنْ زَعَمْتُمْ أَنَّكُمْ أَوْلِيَاءُ لِلَّهِ مِنْ دُونِ النَّاسِ فَتَمَنَّوُا الْمَوْتَ إِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ۝﴾[سورة الجمعة الايه:۶]

**د مرګ د تمنا کولو حکم:-** بدنی تکلیفونه اولوګه تنده دَ مصیبتونو اوازمیښتونو دَ وجې نه دَمرګ تمنا کول مکروه دی ځکه چه دا په غیر شعوری توګه دَالله تعالی په تقدیرباندې دَ نه راضی کیدوعلامت دې. اودآخرت شوق دَالله تعالی دَ دیدار خوند ، دَ جنت نعمت اودَ خوښو خلقو سره ملات دَ وجې نه دَمرګ خواهش کول دکمال ایمان نښه ده کوم چه جائزده.[الكاشف:۳۳۸-۳/۳۳۷]

بل دینی ضرر او امتحان او نقصان دَ وجې نه هم دَ مرګ تمنا کول جائزدی. دَ امام شافعی رحمه الله باره کښې نقل دی چه مړکیدل په شروع کښې نه خوښول خوچه کله داتصور پیداشوچه انبیاء کرام علیهم السلام صحابه کرام رضي الله عنهم اواولیاء الله اوعلماء کرام سره به ملاقات کیږی نوبیاهغوی دَ مرګ تمناکوله.

**د مرګ د تمنا په باره کښې یوه قاعده:-** دَدې باب په احادیثوکښې یوه قاعده هم بیان کړې شوې ده هغه داچه دَ مرګ معامله دې په الله تعالی باندې پریخودې شی اووائی دې چه یاالله که چرې ستاپه علم کښې په مرګ کښې زما فائده وی نومرګ راکړې اوترکومې چه ستا په نیزپه ژوند کښې فائده ده نو په ژوند کښې مې اوساتې.

دَدې باب دویم عنوان تذکرة الموت دې. دَ مرګ یادساتلومطلب دادې چه سړې دې هروخت دَدې دپاره تیاروی اودَ مرګ په وجه چه پس دَمرګ نه کوم حالات راتلونکی دی هغه هرڅه دې هروخت مخې ته ساتی اودَ دنیاژونددې داسې تیر کړی چه کوم وخت هم دَ مرګ آواز

اوشی نوچه داسې دَمرګ دپاره تیاروالړوي. دَ یومسلمان ادنی درجې دَعالم دپاره دا ضروری دی چه هغه دې په هره شعبه کښې په هروخت آخرت په دنیاباندې مقدم اوساتی. علامه شامی رحمه الله دَ مرګ تمنا سره متعلق داسې ضابطه لیکلې ده. (قال فی ردالمختار قال فی النهر ویکره تمنی الموت بضرر نزله به للنهی عن ذلك فان كان لا بد فليقل اللهم احيني ماكانت الحياة خيرا لي وتوفني ماكانت الوفاة خيرا لي)

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [۱۵۹۸] دَمرګ د تمنا ممانعت

۱۵۹۸-()[1] [١] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [٢] "«لَا يَتَمَنَّى أَحَدُكُمُ الْمَوْتَ) [٣] إِمَّا مُحْسِنًا فَلَعَلَّهُ أَنْ يَزْدَادَ خَيْرًا [۴] وَإِمَّا مُسِيئًا فَلَعَلَّهُ أَنْ يَسْتَعْتِبَ»". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [١] ابوهریره رضی الله عنه روایت کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل [٢] په تاسو کښې دې هیڅوک د مرګ آرزو نه کوي [٣] ځکه که هغه [د مرګ آرزو کونکې] نیکوکار دې نو کیدې شي چې (د هغه عمر د اوږدیدو په وجه) د هغه په نیکو اعمالو کښې زیاتوالی اوشي [۴] او که بدکار دې نو کیدې شي چې هغه [توبه کولو سره او د خلقو حقوق ادا کولو سره] د الله رب العزت رضا او خوښي حاصله کړي. (بخاري)

**حل اللغات:** - ① مُحْسِنًا: نیک کونکې، نیکوکار، ② مُسِيئًا: بدعمله، بدکاره، ③ يَسْتَعْتِبَ: توبه کولو سره د الله رب العزت رضا او خوښي حاصله کړي.

**تسهیلات: قوله: لَا يَتَمَنَّى أَحَدُكُمُ الْمَوْتَ:**

**د مرګ تمنی نه کولو حکمت:** - دادَ نفی په صورت کښې نهی ده دَ مبالغه په توګه داسې وئیلی شوی دی. قاضی عیاض رحمه الله فرمائی چه دې نهی سره قید لګیدلې دې ځکه چه په څه صورتونوکښې دَمرګ ارزو کول جائز دی په څه کښې مکروه دی. علماء لیکی چه دَ مرګ خواهش نه منع کولو وجه داده چه ژوند یو نعمت دې کوم چه الله تعالی دې سړی ته ورکړې دې. دَدې نعمت دَ وجې نه دا سړې ډیر نیك اعمال سر ته رسولې شی نودَ الله تعالی دَدې نعمت ناقدری نه دی کول پکار. لهذا دَ مرګ خواهش کول مکروه دی. په ژوند کښې دَ انسان بناسته کیدل او صحیح کیدل ممکن دی که چرې انسان نیك وی نو په نیکئی کښې به ئی زیاتوالې اوشی اوکه چرې بد دې نو ډیره ممکن ده چه یو وخت کښې دَ هغه دَ توبې توفیق اوشی اوهغه په مکمل هدایت باندې راشی په مرګ کښې دا موقعې دَ لاس نه ځی اوهر قسم اعمال بندیږی.

[1] اخرجه البخاري في كتاب المرضى/باب تمنى [ص:١٢١] المريض الموت (رقم-٥٦٧٣) والنسائي كتاب الجنائز/باب تمنى الموت (رقم-١٨١٨) باب: لا يتمنى أحدكم الموت (رقم-٢٨٠٠)

**قوله: فَلَعَلَّهُ أَنْ يَسْتَعْتِبَ:**

**د استعتاب د لفظ تحقيق:** - دَ باب استفعال نه. دَعذاب په معنى كښې دې سين اوتاء سلب مأخذ دَپاره دې يعنى سلب العتبى خفګان لرې كول او رضامندى حاصلول، دا هغه وخت كيدې شي چه كله الله تعالى دغه سړى ته دَ توبې كولو توفيق وركړى اودا په ژوند كښې كيدې شي دَ مرګ نه پس نه شي كيدې لهذا دَ مرګ تمنا كول مكروه دى. دَ عتاب سره متعلق ساحر شاعر وائى.

لنا عند هذا الدهر حق يلطه  وقد قل اعتاب وطال عتاب

يعنى زمونږ په زمانه باندې يوحق دې دكوم نه چه هغه انكار كوى اودَ هغې مونږ راضى كول كم دى او خفه كول ډير اوږده دى.

**[١٥٩٩] دَ مؤمن د ژوند اوږدوالى د خير ذريعه**

١٥٩٩–()[٢]: ١ وَعَنْهُ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ٢ "«لَا يَتَمَنَّى أَحَدُكُمُ الْمَوْتَ، ٣ وَلَا يَدْعُ بِهِ مِنْ قَبْلِ أَنْ يَأْتِيَهُ، ٤ إِنَّهُ إِذَا مَاتَ انْقَطَعَ أَمَلُهُ، ٥ وَإِنَّهُ لَا يَزِيدُ الْمُؤْمِنَ عُمُرُهُ إِلَّا خَيْرًا»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ١ ابوهريره رضي الله عنه روايت كوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ په تاسو كښې دې هيڅ يو سړي نه خو په زړه سره د مرګ آرزو كوي ٣ او نه دي په ژبه د مرګ دعا غواړي مخكې د دې څخه چې دهغه مرګ راشي ٤ ځكه چې كله انسان مړشي نو(د خيرد زياتوالى دپاره) د هغه اُميدونه منقطع كيږى ٥ او د مومن د عمر درازي (اوږد والى) د هغه په خيركې زياتوالى كوي. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① انْقَطَعَ: كټ شى، ختم شى، ② أَمَلُهُ: أَيْ: رَجَاؤُهُ: اميدونه.

**تسهيلات:**

**قوله: وَإِنَّهُ لَا يَزِيدُ الْمُؤْمِنَ عُمُرُهُ إِلَّا خَيْرًا**

**داوږد عمر فضيلت:** - ظاهره خبره ده چې كله د انسان ژوند ختم شى نو د نيكى اود ښيګړې لارې هم منقطع شى. ځكه كه ژوند وى نو نيك اعمال به وى او كله چې نيك عملونه وى نو سعادت اوښيګړې به زياتې وى، په دې وجه ئې اوفرمائيل چې كله د مؤمن بنده ژوند زيات كړې شى نو ددې په وجه دده ښيګړې او سعادت كښې هم زياتوالې راځى. ځكه چې مؤمن بنده په مصيبت او پريشانى باندې صبر كوى، د نعمتونو شكر ادا كوى، د الله ﷻ په تقدير باندې راضى وى او د الله ﷻ اود هغه درسول ﷺ د احكامو فرمانبردارى كوى اوددې په وجه دده په ثواب كښې زياتوالې راځى.

[١] اخرجه مسلم فى كتاب الذكر والدعاء والتوبة والاستغفار /باب كراهة تمنى الموت لضر نزل به (رقم-١٣ - (٢٦٨٢)

[١٦٠٠] دَ مرګ غوښتلو په باره کښې غوره دعا

١٦٠٠-(١)[٣] ١ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ٢ "«لَا يَتَمَنَّيَنَّ أَحَدُكُمُ الْمَوْتَ مِنْ ضُرٍّ أَصَابَهُ، ٣ فَإِنْ كَانَ لَا بُدَّ فَاعِلًا فَلْيَقُلْ: ٤ اللَّهُمَّ أَحْيِنِي مَا كَانَتِ الْحَيَاةُ خَيْرًا لِي، ٥ وَتَوَفَّنِي إِذَا كَانَتِ الْوَفَاةُ خَيْرًا لِي»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ حضرت انس رضي الله عنه روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ په تاسو کښې دي هيڅ يو سړي (د جسماني او مالي) ضرر او تکليف په وجه چې هغه ته ورسيږي د مرګ آرزو نه کوي ٣ او که د دې قسم آرزو ضروري وي نو بيا دا دعا دي غواړي: ٤ اللَّهُمَّ أَحْيِنِي مَا كَانَتِ الْحَيَاةُ خَيْرًا لِي وَتَوَفَّنِي إِذَا كَانَتِ الْوَفَاةُ خَيْرًا لِي (اي الله جل جلاله ما تر هغه پورې ژوندي لرې تر څو پورې چې زما د پاره ژوند د مرګ ښه بهتر وي ٥ او ما ته هغه وخت مرګ راکړې هر کله چې زما د پاره مرګ د ژوند ښه بهتر وي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① لَا يَتَمَنَّيَنَّ: آرزو دې نه کوي، ② لَا بُدَّ: أَيْ: أَلْبَتَّةَ وَلَا مَحَالَةَ، که خامخا ضروري وي.

**تسهيلات: قوله: لَا يَتَمَنَّيَنَّ أَحَدُكُمُ الْمَوْتَ مِنْ ضُرٍّ أَصَابَهُ:**

**د مرګ د تمنا ممانعت مقيد ګيدل:** - دَدې حديث نه يوه خبره خودا معلومه شوه چه دَ مرګ دَ تمنا ممانعت مطلق نه دې بلکه مقيد دې. دلته "من ضر اصابه" نه دې طرف ته اشاره کړې شوې ده. دويمه خبره دَدې حديث نه دا معلومه شوه که يو سړې دَمرګ تمنا کول غواړي نو بيا دَ هغې صحيح طريقه داسې ده کومه چه په دې حديث کښې بيان کړې شوې ده. [الکاشف: ٣٣٨/٣.]

[١٦٠١] مرګ دَ الله تعالى دَ ديدار ذريعه

١٦٠١-(٢)[٤] ١ وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ٢ "«مَنْ أَحَبَّ لِقَاءَ اللَّهِ أَحَبَّ اللَّهُ لِقَاءَهُ، ٣ وَمَنْ كَرِهَ لِقَاءَ اللَّهِ كَرِهَ اللَّهُ لِقَاءَهُ". ٤ فَقَالَتْ عَائِشَةُ أَوْ بَعْضُ أَزْوَاجِهِ: إِنَّا لَنَكْرَهُ الْمَوْتَ. ٥ قَالَ: "لَيْسَ ذَلِكِ، وَلَكِنَّ الْمُؤْمِنَ إِذَا حَضَرَهُ الْمَوْتُ ٦ بُشِّرَ بِرِضْوَانِ اللَّهِ وَكَرَامَتِهِ، ٧ فَلَيْسَ شَيْءٌ أَحَبَّ إِلَيْهِ مِمَّا أَمَامَهُ ٨ فَأَحَبَّ لِقَاءَ اللَّهِ وَأَحَبَّ اللَّهُ لِقَاءَهُ، ٩ وَإِنَّ الْكَافِرَ إِذَا حَضَرَ بُشِّرَ بِعَذَابِ اللَّهِ وَعُقُوبَتِهِ، ١٠ فَلَيْسَ شَيْءٌ أَكْرَهَ إِلَيْهِ مِمَّا أَمَامَهُ ١١ فَكَرِهَ لِقَاءَ اللَّهِ، وَكَرِهَ اللَّهُ لِقَاءَهُ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

[1] اخرجه البخاري في كتاب المرضى/باب تمنى [ص:١٢١] المريض الموت (رقم-٥٦٧١) ومسلم في كتاب الذكر والدعاء والتوبة والاستغفار/باب كراهة تمنى الموت لضر نزل به (رقم) ١٠ - (٢٦٨٠) والترمذي كتاب الجنائز عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما جاء في النهي عن التمني للموت (رقم-٩٧١) وابوداود في كتاب الجنائز/باب في كراهية تمنى الموت (رقم-٣١٠٨) والنسائي كتاب الجنائز/باب تمنى الموت (رقم-١٨٢١) وابن ماجة كتاب الزهد/باب ذكر الموت والاستعداد له (رقم-٤٢٦٥)

[2] اخرجه البخاري في كتاب الرقاق/باب من أحب لقاء الله أحب الله لقاءه (رقم-٦٥٠٧) ومسلم كتاب الذكر والدعاء والتوبة والاستغفار/باب كراهة تمنى الموت لضر نزل به (رقم) ١٥ - (٢٦٨٤) والترمذي كتاب الزهد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء من أحب لقاء الله أحب الله لقاءه (رقم-٢٣٠٩) والنسائي كتاب الجنائز/فيمن أحب لقاء الله (رقم-١٨٣٨) ومالك في الموطا كتاب الجنائز/باب جامع الجنائز(رقم-٥٠)

**ترجمه:** ① عباده ابن صامت ﷺ روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② کوم سړي چې د الله تعالی ﷻ ملاقات خوښوي نو الله تعالی ﷻ هم د هغه ملاقات خوښوي ③ او کوم سړي چې د الله تعالی ﷻ ملاقات نه خوښوي نو الله تعالی ﷻ هم د هغه ملاقات نه خوښوي ④ (په دې اوریدو سره) د مومنانو مور بي بي عایشې صدیقې ﷺ یا د حضور ﷺ یوې بلې بي بي عرض اوکړو چې مونږ خو مرګ نه خوښوو؟ ⑤ حضور ﷺ وفرمایل چې دا مراد نه دې بلکه مراد دا دې چې کله مومن ته مرګ راځي ⑥ نو د دې خبرې زیرې ورکول شي چې الله ﷻ د هغه څخه راضي دي او الله به د هغه اکرام کوی ⑦ نو هغه د هغه ځیز څخه چې د هغه وړاندې راتلونکي دي (یعني د الله په نزد د خپل دې فضیلت او مرتبې څخه) زیات څه شي (یعني دنیا او د دنیا زیب وزینت) محبوب نه ګڼي ⑧ په دې وجه مومن بنده د الله تعالی ﷻ ملاقات خوښوي او الله تعالی ﷻ د هغه ملاقات خوښوي ⑨ او هر کله چې کافر ته مرګ راځي نو هغه ته (په قبر کښې) د الله تعالی ﷻ د عذاب او (د دوزخ د سخت ترینې) سزا خبر ورکول کیږي ⑩ نو هغه ته د هغه ځیز څخه چې د هغه مخې ته راتلونکي دي یعنی د عذاب او سزا څخه زیات یو بل هیڅ ځیز ناخوښه نه وی ⑪ په دې وجه هغه د الله تعالی ﷻ ملاقات نه خوښوي او الله ﷻ د هغه ملاقات نه خوښوي (یعني هغه د خپل رحمت او د نعمت د زیاتوالی څخه لرې ساتي) دا روایت بخاري او مسلم نقل کړې دي

**حل اللغات:** - ① لِقَاءَ: ملاقات، یعنی کور د آخرت ته تلل. ② رِضْوَانِ: رضامندی، ③ أَمَامَهُ: أَيْ: قُدَّامَهُ: وړاندې راتلونکی ځیزونه.

**قوله: لَيْسَ ذَٰلِكَ:** اي ليس الأمر كذلك دا دَ حضورپاك جواب دې. په کوم سره چه حضورپاك دَ حضرت عائشه صدیقه ﷺ دَ سوال وضاحت بیان کړې دې.

**تسهیلات: قوله: فَقَالَتْ عَائِشَةُ:**

**د عائشې د تپوس علت:** - حضوراکرم ﷺ چه کله دا بیان اوفرمائیلو چه کوم سړې دَ الله تعالی ملاقات خوښوی نو الله تعالی هم دَ هغه ملاقات خوښوی او کوم سړې چه دَ الله تعالی ملاقات نه خوښوی نو الله تعالی هم دَ هغه ملاقات نه خوښوی.

دَ دې کلام په ضمن کښې دَ مرګ تصور پخپله راځی ځکه چه دَ الله تعالی سره ملاقات دَ مرګ نه مخکښې ممکن نه دې. کله چه دَ الله تعالی دَ ملاقات په ضمن کښې دَ مرګ تصور لازم شو نواوس دَ هر سړی په زړه کښې یو اعتراض او سوال راؤچتیږی چه مرګ په طبعی توګه باندې هرسړې ناخوښه کوی او چاچه مرګ ناخوښه کړو لکه چه هغه دَ الله تعالی ملاقات ناخوښه کړو کوم چه یو خطرناك تصور دې. حضرت عائشه صدیقه ﷺ ته هم دغه اشکال مخې ته شو چه کله مونږ خپل مرګ ناخوښه کوو نو لکه چه مونږ دَ الله تعالی ملاقات ناخوښه کړو.

**د نبي كريم جواب:-** حضورپاك دَدې جواب داسې اوفرمائيلو چه مؤمن كله مرګ ته نيږدې شي اودَخپل آخرت كاميابي ويني دَ جنت نعمتونه ويني نودَ هغه شوق پيدا كيږي چه مرګ ورله زر راشي دې دَپاره چه هغه دغه نعمتونوته اورسي اودَ خپل خالق اومالك ديدار اوكړي. هم په دې وجه ونيلي شوي دي "الموت تحفة المؤمن يوصل الحبيب الى الحبيب" مګر دَ مؤمن برعكس فاجر اوكافر چه كله دَمرګ په وخت دَ آخرت دَ مصيبتونو حالت ګوري، دوزخ اودَهغې عذابونه ګوري نوهغه ويريږي اودَ زړه نه مرګ ناخوښه ګڼړي ځكه چه دَهغه دَپاره هم دغه مرګ دَ تولو سزاګانو پورې دَ رسيدو پل دې. په دې وجه هغه سړې دَ الله تعالى طرف ته دَ تلو او الله تعالى ته مخامخ كيدل ناخوښه كوي نوالله تعالى هم دَهغه ملاقات ناخوښه كوي.

١٦٠٢-(١)[٥] [١] وَفِي رِوَايَةِ عَائِشَةَ: [٢] «وَالْمَوْتُ قَبْلَ لِقَاءِ اللهِ».

**توجمه:** [١] او د بي بي عايشي رضي الله عنها په روايت كښې منقول دي [٢] چې مرګ د الله تعالى جل جلاله د ملاقات څخه مخكې دي.

**[١٦٠٣] دَمؤمن اوفاجر د مرګ په مخلوق باندې اثر**

١٦٠٣-(٢)[٥] [١] وَعَنِ ابْنِ قَتَادَةَ: أَنَّهُ كَانَ يُحَدِّثُ: [٢] «أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مُرَّ عَلَيْهِ بِجَنَازَةٍ [٣] فَقَالَ: مُسْتَرِيحٌ أَوْمُسْتَرَاحٌ مِنْهُ. [٣] فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ، مَا الْمُسْتَرِيحُ؟ وَمَا الْمُسْتَرَاحُ مِنْهُ؟ [٥] فَقَالَ: الْعَبْدُ الْمُؤْمِنُ يَسْتَرِيحُ مِنْ نَصَبِ الدُّنْيَا وَأَذَاهَا إِلَى رَحْمَةِ اللهِ، [٦] وَالْعَبْدُ الْفَاجِرُ يَسْتَرِيحُ مِنْهُ الْعِبَادُ، وَالْبِلَادُ، وَالشَّجَرُ، وَالدَّوَابُّ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**توجمه:** [١] ابوقتاده رضي الله عنه دا حديث بيانوي [٢] چې (يو ځل) د رسول الله صلى الله عليه وسلم په مخكې يوه جنازه راوړل شوه [٣] نو وې فرمايل چې دا راحت موندونكې دي يا دا چې د ده څخه نورو ته راحت نصيب شو؟ [٤] صحابه ؤ عرض اوكړو چې يا رسول الله صلى الله عليه وسلم راحت موندونكې څوک دي؟ او هغه څوک دي چې د هغه څخه نورو ته راحت نصيب كيږي؟ [٥] حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې مومن بنده د خپل مرګ په ذريعه د دنيا د غم او تكليف څخه راحت بيا مومي او د الله تعالى جل جلاله رحمت طرف ته ځي [٦] او د فاجر بنده (يعني د ګنهګار) د مرګ په ذريعه د هغه د شر او فساد څخه بندګان، ښارونه، ونې او ځاروي (ټول) راحت بيا مومي. (بخاري مسلم)

[1]) اخرجه مسلم فى كتاب الذكر والدعاء والتوبة والاستغفار/باب كراهة تمني الموت لضر نزل به (رقم) ١٦ - (٢٦٨٤)
[2]) اخرجه البخارى فى كتاب الرقاق/باب سكرات الموت (رقم-٦٥١٢) ومسلم فى كتاب الجنائز/باب ما جاء فى مستريح ومستراح منه(رقم) ٦١ - (٩٥٠) كتاب الجنائز/باب ما جاء فى مستريح ومستراح منه(رقم) ٦١ - (٩٥٠) والنسائى فى كتاب الجنائز/باب استراحة المؤمن بالموت (رقم-١٩٣٠) ومالك فى الموطا كتاب الجنائز/باب الحسبة فى المصيبة (رقم-٥٤)

**حل اللغات:-** ①مُرّ: دمجهول صیغه ده، تیره کړې شوه، ②مُسْتَرِيحٌ: راحت موندونکې، ③مُسْتَرَاحٌ: دَ اسم مفعول صیغه ده یعني دَ هغه مرګ سره نورو ته راحت ملاو شو. ④نَصَبٌ: أيْ: تَعَبٌ: ستړې والې او تکلیفونه.

**تسهیلات: قوله: مُسْتَرِيحٌ:**

**د مومن مرګ د هغه دپاره راحت:-** راحت حاصلونکې یعنی کله چه دَمؤمن انتقال کیږی نوهغه دَ دنیا مصیبتونه اودَ خلقو تکلیفونه اودَ تکلیفونو والاحکامو دَ ذمه دارئی نه راحت بیامومی. دَآخرت توښه اودَ سفرخرچ خپل ځان سره موجود دې اودَ دنیا دَ مصیبتونونه دَ هغه ځان خلاص شو په دې وجه مؤمن دَ مرګ نه پس آرام موندونکې دې.

**قوله: أوْمُسْتَرَاحٌ مِنْهُ:**

**د فاسق مرګ د خلقو دپاره راحت:-** دَ اسم مفعول صیغه ده یعنی دَ هغه مرګ سره نورو ته راحت ملاو شو هغه داسې چه دې فاسق فاجر به خلق تنګول دَ هغه په قول اوفعل سره دَالله تعالی مخلوق په یوپریشانئی کښې راګیروو. چاته به ئی کنځلې کولې څوک به ئی وهل دَ چانه به ئی په زور مال اخستلو یابه ئی غلا کوله یابه ئی فحاشی او بې حیائی خوروله کله چه مړ شو نو ټولو خلقو ته دَ ده دَ بدو اعمالونه راحت حاصل شو. بلکه ونې مارغانو اوځناورو ته راحت حاصل شو، په دې وجه دَ هغه مړکیدل دَ راحت سبب دې. دَخرابو خلقو دَ ګناهونو اثر په باران باندې پریوځی اوچ کالی راځی. دغه شان په زمکه کښې زلزلې اوطوفانونه راځی په دې واقعاتوسره ټول ځناور ونې بوټی او پخپله زمکه باندې اثر کیږی.

**[١٦٠٤] په دنیاکښې د مسافرپشان دژوند تیرولو حکم**

١٦٠٣—()[٢][١]وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ:[٢]«أَخَذَ رَسُولُ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- بِمَنْكِبِي، فَقَالَ:[٣]كُنْ فِي الدُّنْيَا كَأَنَّكَ غَرِيبٌ، أَوْعَابِرُ سَبِيلٍ، [٤]وَكَانَ ابْنُ عُمَرَ يَقُولُ: إِذَا أَمْسَيْتَ فَلَا تَنْتَظِرِ الصَّبَاحَ،[٥] وَإِذَا أَصْبَحْتَ فَلَا تَنْتَظِرِ الْمَسَاءَ،[٦]وَخُذْ مِنْ صِحَّتِكَ لِمَرَضِكَ، وَمِنْ حَيَاتِكَ لِمَوْتِكَ»". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:**[١] عبدالله ابن عمر ﷺ فرمایي [٢] چې رسول الله ﷺ (اول خو) زما وږه ونیوله (چې زه متنبه شم) بیا یې وفرمایل[٣] چې ته په دنیا کښې داسې اوسه لکه چې ته مسافر یې بلکه په لاره تیریدونکی یې [٤] د دې څخه روسته به ابن عمر رضي الله عنهما خلقو ته فرمایل چې هر کله چې ماښام شي نو د سحر انتظار مه کوئ [٥] او چې سحر شي نو د ماښام انتظار مه کوئ [٦] او خپل صحت د مریضی څخه مخکې غنیمت وګڼئ او خپل ژوند د مرګ څخه مخکې غنیمت وګڼئ. (بخاري)

---

[١]) اخرجه البخاری فی کتاب الرقاق/باب قول النبی صلی الله علیه وسلم: «کن فی الدنیا کانک غریب او عابر سبیل» (رقم-٦٤١٦) والترمذی فی کتاب الزهد عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی قصر الأمل (رقم-٢٣٣٣) وابن ماجة فی کتاب الزهد/باب مثل الدنیا (رقم-٤١١٤)

**حل اللغات:-** ①مَنْكِبِي: دا لفظ مفرد هم دې او په بعضې نسخوكښې په ياء مشدد سره تثنيه دې. ② غَرِيبٌ: مسافر، نا آشنا، ③عَابِرُسَبِيلٍ: دلارې تيريدونكې.

**تسهيلات: قوله : غَرِيبٌ:** مسافراوناآشناسړى ته غريب وئيلى شى دچه څه كور وغيره نه وى داوسيدو ځائى نه وى اوڅوك پيژندګلو خپلوان ئى نه وى

**قوله : أَوْعَابِرُسَبِيلٍ:**

**د "او" د كلمې مقصد:-** راجح او بهتر دادى چه دا "بل" دَ ترقئى او اضراب دپاره وى، مطلب دا چه مسافرخو بياهم دَ يوڅو ورځودپاره چرته حصاريږى تاسوخوداسې جوړشئى لكه چه ګرځيدونكى مسافر وى چه چرته دَحصاريدوهم نوم نه اخلى بس خپل كارسره كار لرى اوهغه دَ دنيا خوندونو او نعمتونوطرف ته هډو خيال نه كوى او ضرورى كارونه پوره كولوسره ځى.

هم ددې مضمون اومفهوم مطابق حضرت ابن عمر رضي الله عنهما اوفرمائيل چه دَ دنيا ژوند يودَ غير تسلئى غيراختيارى ژوند دې لهذا دَ سحرماښام پورې باقى پاتې كيدو څه ضمانت نشته اودَ صحت اوبيمارئى هيڅ اعتبار نشته. لهذا چه څه ملاؤ شو هغه غنيمت ګڼړلوسره دَهغه نه فائده اوچتول غواړى دَ هيڅ يوڅيز ګارنتى نشته دې.

**[١٦٠٥] دَالله تعالى دَذات څخه دَرحمت اميدساتل**

١٦٠٥-(٧)[١] وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: [٢] «سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَبْلَ مَوْتِهِ بِثَلَاثَةِ أَيَّامٍ يَقُولُ: [٣] "لَا يَمُوتَنَّ أَحَدُكُمْ إِلَّا وَهُوَ يُحْسِنُ الظَّنَّ بِاللهِ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.[1]

**ترجمه:** [١]حضرت جابر رضي الله عنه وايي [٢] چې ما د رسول الله ﷺ د وفات څخه درې ورځې مخکې دا ترې نه واوريدل [٣] چې په تاسو کښې دې هيڅ سړې په داسې حال کښې نه مري چې هغه د الله تعالى جل جلاله سره نيک ګمان نه ساتي. (مسلم)

**حل اللغات:-** ①الظَّنّ: ګمان.

**تسهيلات: قوله : يُحْسِنُ الظَّنَّ بِاللهِ**

**د مرګ په وخت کښې په الله د ښه ګمان مطلب:-** علامه طيبى رحمه الله فرمائى چه يحسن الظن مطلب دادې چه اوس په ژوندون کښې خپل اعمال ښه اوساته دې دپاره چه دَ مرګ په وخت ته په الله تعالى باندې ښه ګمان اوساتې ځکه چه کوم سړې خراب اعمال کوى دَمرګ په وخت په الله تعالى باندې خراب ګمان کوى. علماء کرامو ليکلى دى چه ويره او رجا دَانسان (دَ الوت دوه وزرې دى) کومو چه دَ آخرت په سفرکښې په کارراځى خوچه کله سړې

[1] اخرجه مسلم فى باب الأمر بحسن الظن بالله تعالى عند الموت (رقم) ٨١ - (٢٨٧٧) وابوداود فى كتاب الجنائز، باب ما يستحب من حسن الظن بالله عند الموت (رقم-٣١١٣)وابن ماجة فى كتاب الزهد/باب التوكل واليقين (رقم-٤١٦٧)

خوان وی او صحت مندوی نو هغوی له پکاردی چه په خپل ځان باندې د الله تعالی ویره غالب او ساتی دې د پاره چه په عبادت کښې ښه محنت او کړی. او کله چه د مرګ وخت رانیزدې کیږی بود او الې هم راځی نو بیا امید اور جاغالب ساتل پکاردی ځکه چه اوس د سخی او فیاض بادشاه طرف ته روانیدل دی نو ښه امید او ښه توقع ساتل پکاردی.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۱٦۰٦] د قیامت په ورځ د الله تعالی د اسان څخه رومی تپوس

۱٦۰٦-()[۸] عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-:[۲] "«إِنْ شِئْتُمْ أَنْبَأْتُكُمْ مَا أَوَّلُ مَا يَقُولُ اللهُ لِلْمُؤْمِنِينَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ،[۳] وَمَا أَوَّلُ مَا يَقُولُونَ لَهُ، قُلْنَا: نَعَمْ يَا رَسُولَ اللهِ،[۴] قَالَ: " إِنَّ اللهَ يَقُولُ لِلْمُؤْمِنِينَ: هَلْ أَحْبَبْتُمْ لِقَائِي؟[۵] يَقُولُونَ: نَعَمْ يَا رَبَّنَا. فَيَقُولُ: لِمَ؟[٦] فَيَقُولُونَ: رَجَوْنَا عَفْوَكَ وَمَغْفِرَتَكَ.[۷] فَيَقُولُ: قَدْ وَجَبَتْ لَكُمْ مَغْفِرَتِي».[۸] رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ، وَأَبُو نُعَيْمٍ فِي الْحِلْيَةِ.

**ترجمه:**[۱] معاذ ابن جبل ﷛ روایت کوي چې (یوه ورځ) رسول الله ﷺ مونږ مخاطب کولو سره وفرمایل[۲] که تاسو غواړئ نو زه تاسو ته هغه خبره ښایم چې الله تعالی ﷻ به یې د قیامت په ورځ د ټولو څخه مخکي مومنانو ته فرمایي[۳] او هغه خبره هم درته ښایم چې د ټولو څخه مخکي به مومنان یي الله تعالی ﷻ ته عرض کوي مونږ عرض اوکړو چې هو یارسول الله ﷺ (ضرور یي مونږ ته راوښایه)[۴] حضور ﷺ وفرمایل چې الله تعالی ﷻ به مومنانو ته فرمایي چې آیا تاسو زما ملاقات خوښولو؟[۵] مومنان به عرض وکړي چې هو اې زمونږ ربه! (مونږ ستا ملاقات خوښولو) بیا به الله تعالی ﷻ فرمایي چې تاسو زما ملاقات ولې خوښولو؟[٦] مومنان به عرض وکړي چې ځکه چې مونږ ستا څخه د معافي، عفو، بخشش او مغفرت اُمید لرلو[۷] نو الله تعالی ﷻ به فرمایي چې ستاسو د پاره زما بخشش (بخښنه) واجب شو.[۸] دا روایت په شرح السنه کښې او ابو نعیم ﷫ په حلیه کښې نقل کړي دي.

**حل اللغات:**- ① أَنْبَأْتُكُمْ: ای أَخْبَرْتُكُمْ: تاسو ته خبر درکوم،② رَجَوْنَا: مونږ امید لرلو، ③ عَفْوَكَ: ستا دمعاف کولو (مونږ لره).

**تسهیلات: قوله، مَا يَقُولُ اللهُ لِلْمُؤْمِنِينَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ:**

**دالله تعالی بندګانو ته په خطاب کښې دوه احتمالات:**- ① الله ﷻ به مؤمنانو نه بغیر د واسطې ② د فرښتو په واسطه دعا اوفرمائی.

**قوله: هَلْ أَحْبَبْتُمْ لِقَائِي؟:**

**د مذکوره قول په مصداق کښې دوه اقوال:**- ① ددې نه دار آخرت طرفته سفر مراد دي.

---

[۱] اخرجه احمد فی المسند ۵۸۲۳۸

(۲) ددې نه مراد رؤيه باري تعالى دى. او دا دواړه اقوال صحيح دى.
**دالله تعالى په استفهام کښې حکمت:-** يعنى الله ﷻ باندې حسن ظن زيات بهتر دى. دې ځائې کښې الله ﷻ استفهاما کلام ذکر کړو حالانکه الله ﷻ ته د ټولو څيزونو علم شته دې. ددې وجه داده چې د سامعينو په وړاندې خپل محبت ښکاره کول وو. په دې وجه ئې دا ذکر کړو لکه څنګه چې قرآن پاك کښې دى (اَوَلَمْ تُؤْمِنْ قَالَ بَلٰى) يا ئې نور دهغه کلام آوريدو دپاره د تلذذ په طور دا ذکر اوفرمائيل. (مرقاة ايضا)
**دنبى عليه السلام په امت باندې شفقت:-** ددې حديث پاك نه د نبى کريم ﷺ د خپل امت دپاره رحمت کيدل ثابت شو چې نبى کريم ﷺ د خپل امت په هره معامله کښې رهنمائى کړې ده تر دې چې د قبر سوال وجواب ئې ورته هم اوخودل. او دحشر د سوال و جواب رهنمائى ئې هم اوکړه. دا خبرې اترې صورة خبر دې او معنا امر دې.

**[۱٦۰۷] د مرګ ډير ډير يادولو حکم**

۱٦۰۷-()[۹] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] "«أَكْثِرُوا ذِكْرَ هَاذِمِ اللَّذَّاتِ الْمَوْتِ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] ابوهريره رضي الله عنه روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د دنيا خوندونه قطع کونکي شي چې مرګ دي په کثرت سره يادوئ. (ترمذي نساني ابن ماجه)
**حل اللغات:-** (۱) هَاذِمِ اللَّذَّاتِ: أَيْ: قَاطِعِهَا: د ضَرَبَ يَضْرِبُ نه دَ قطع کولو او پرې کولو په معنى کښې دې.
**تسهيلات: قوله: هَاذِمِ:** بعضې شارحينو دا لفظ "هاذم" دال سره نقل کړې دې چه دَ راغورزولو او ورانولو په معنى کښې دې مګر بعضې شارحين وائى چه هاذم دَ معنې په اعتبارسره سره دَدې چه صحيح دې ليکن دَ نقل په اعتبارسره دال صحيح نه دې بلکه ذال دې.
**دَحديث مطلب:-** دَحديث مطلب دادې چه مرګ ډير ډير يادول پکاردى. کله چه دَ مرګ تصور دَ انسان په زړه او دماغو باندې پروت وى نودَ انسان دنياوى ژوندون به دَ آخرت په تيارې کښې تيرېږى او انسان به هر وخت دَنيکو اعمالودَ کولو اودَ بدو عملونو نه دَ بچ کيدو دَپاره تيار اوتکړه وى.
**قوله: أَكْثِرُوا ذِكْرَ هَاذِمِ اللَّذَّاتِ الْمَوْتِ:**
**د مرګ ياد ګير نه د دنيا د مينې د کموالى سبب:-** يعنى دَ زيات مال په وخت دَ مرګ په يادېدوسره مرګ دَهغه مال کموى يعنى هغه دَدنيا نه بې پرواه او پرهيزګار جوړوى. اوکه چرې مال کم وى سړې فقير وى دَمرګ په يادولو سره مرګ هغه کم مال زياتوى څکه چه

---

(۱) اخرجه الترمذى فى كتاب الزهد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى ذكر الموت (رقم-۲۳۰۷) وابن ماجة فى كتاب الزهد/باب ذكر الموت والاستعداد له (رقم-٤۲٥۸)

سړي سوچ کوي چه مرګ په سر ولاړ دې دا زما آخري وخت دې کوم مال چه موجود دې داهم د دې لړ وخت دپاره ډير دې. دغه شان سړې صبرناك جوړيږي. د مرګ د يادولو يوه فائده داهم ده چه سړې د دنيا ټول خوندونه اوخواهشات فاني ګڼړي. لهذا دهغه د زړه نه دمال محبت اوځي اود مال محبت دهري بدئي جرړه ده. کله چه د بدئي جرړه پرې کړې نوبيا به ټولې هم نيکئي وي.

## [١٦٠٨] دَالله تعالى څخه دَحيا کولو حق

١٦٠٨ – ( ) [١٠] [١] وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ: «أَنَّ نَبِيَّ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ ذَاتَ يَوْمٍ لِأَصْحَابِهِ: [٢] اسْتَحْيُوا مِنَ اللهِ حَقَّ الْحَيَاءِ. [٣] قَالُوا: إِنَّا نَسْتَحْيِي مِنَ اللهِ يَا نَبِيَّ اللهِ، وَالْحَمْدُ لِلهِ. [٤] قَالَ: لَيْسَ ذٰلِكَ وَلٰكِنْ مَنِ اسْتَحْيٰى مِنَ اللهِ حَقَّ الْحَيَاءِ [٥] فَلْيَحْفَظِ الرَّأْسَ وَمَا وَعٰى [٦] وَلْيَحْفَظِ الْبَطْنَ وَمَا حَوٰى [٧] وَلْيَذْكُرِ الْمَوْتَ وَالْبِلٰى [٨] وَمَنْ أَرَادَ الْآخِرَةَ تَرَكَ زِينَةَ الدُّنْيَا [٩] فَمَنْ فَعَلَ ذٰلِكَ اسْتَحْيٰى مِنَ اللهِ حَقَّ الْحَيَاءِ». [١٠] رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [١] ابن مسعود ﷺ روايت کوي چې (يوه ورځ) رسول الله ﷺ خپلو صحابه ؤ ته وفرمايل [٢] چې د الله ﷻ څخه حيا کوئ څرنګه چې د حيا حق دي [يعني څرنګه چې د الله ﷻ څخه حيا کول واجب ذي او د کومي حيا چې هغه لايق دي د هغه د حيا حق ادا کړئ؛ مطلب دا دي چې د الله تعالى ﷻ څخه د ويرېدو کوم حق دي هغه حق ادا کړئ] [٣] صحابه ؤ ﷺ عرض اوکړو يا رسول الله ﷺ مونږ بيشکه د الله تعالى ﷻ څخه حيا کوو (په دي طور چې في الجمله د هغه په اوامرو باندې عمل او د نواهيو څخه پرهيزکوو) او تعريف الله ﷻ لره دي [يعني د الله ﷻ شکر دي چې هغه مونږ ته دا توفيق راکړې دي]، [٤] حضور ﷺ وفرمايل چې د حيا حق دا نه دي کوم چې تاسو يې وايي چې مونږ د الله ﷻ څخه حيا کوو [بلکه د حيا حق خو دا دي چې کوم سړي د الله ﷻ څخه په حيا کولو کښې د حيا حق ادا کړي نو هغه ته پکار دي] [٥] چې هغه د سر او څه چې د سر سره دي د هغې محافظت وکړي [٦] د خيټې او څه چې د خيټې سره دي د هغې محافظت وکړي [٧] او هغه ته پکار دي چې مرګ او د هډوکو بوسيده کيدل [وراسته کيدل] ياد ساتي [٨] او کوم سړي چې د آخرت د خير اراده لري هغه د دنيا زينت او آريش پريږدي [٩] نو کوم سړي چې په مذکوره بالا هدايت عمل وکړي هغه د الله تعالى ﷻ څخه حيا وکړه او د حيا حق يې ادا کړو، [١٠] (احمد، ترمذي) او ترمذي رحمه الله ويلي دي چې دا حديث غريب دي.

**حل اللغات:** - ① اسْتَحْيُوا: حيا اوکړئ، دالله تعالى نه دحيا کولو مطلب دادې چه دهغه نه ويره اوکړې شي او دهغه نافرماني اونه کړې شي. ② حَقَّ الْحَيَاءِ: أي حَقَّ تُقَاتِهِ، يعنى څنګه چه دهغه نه دحياء کولو يعنى د ويريدو حق دې. ③ وَمَا وَعٰى: د يادولو او يوځائى کولو په معنى کښې ده، څه چه سر

١) اخرجه الترمذي في كتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-٢٤٥٨)

کښې دی، ستر ګې، غوږونه، ژبه وغیره. ⓶ وَمَا حَوَى: حوی یحوی دَ جمع کولو او راپوخائی کولو په معنی کښې دې، یعنی خیټې سره یوځای څیزونه مثلا خپې، لاسونه، زړه، شرمګاه وغیره. ⓵ وَالْبِلَى: زوړوالې (زاړه هډوکی).

**تسهیلات: قوله**: اسْتَحْيُوا مِنَ اللهِ حَقَّ الْحَيَاءِ:

**د حیا وسیع مفهوم د نبی کریم ﷺ په ژبه**: - دَ تسهیلات اول جلد دَ شروع په صفحاتو کښې دَ حیا متعلق په تفصیل سره کلام شوې دې دلته دَ دوباره کولو ضرورت نشته دې. البته دلته دَ حیا وسیع مفهوم حضورپاك ﷺ پیش کړې دې کوم چه دَ صحابه کرامو ﷺ په ذهنونو کښې دَدې نه مخکښې نه وه. په دې وجه چه کله صحابه کرامو ﷺ په جواب کښې اوفرمائیل چه الحمد لله مونږ حیا کوو نو حضورپاك اوفرمائیل چه "لیس ذلك" یعنی تاسو دَحیاء مطلق مفهوم اخلئی هغه سره دَدې چه حیا ده لیکن اصل اوحق حیا نه ده اصل حیا داده:

**قوله**: فَلْيَحْفَظِ الرَّأْسَ وَمَا وَعَى:

**د سر د حفاظت مطلب**: - سر اوپه سر کښې دننه دَ څیزونو حفاظت اوکړئی نودَ سر حفاظت دادې چه دَ الله تعالی نه بغیر دَ بل چا په مخکښې ټیټ نه کړې شی او نه دَ غیرالله په مخکښې دې سره سجده اوکړئی او نه دَ ریاکارئی په توګه دَ الله تعالی په وړاندې په دې سره سجده اوکړئی او نه په کبر او غرور سره دا اوچت کړئی.

مراد دادې چه سر کوم اندامونه راجمع کړی دی دَهغې هم حفاظت اوکړئی مثلاً دماغی سوچ خالص دَ الله تعالی دَ رضادَ پاره وی ستر ګې پوزه ژبه او غوږونه دَهرقسم ګناهونونه بچ کړې شی چه نه غلط نظر وی نه غلطې خبرې وی او نه دَ غلطو فرمائشونو اوریدل وی.

**قوله**: وَلْيَحْفَظِ الْبَطْنَ وَمَا حَوَى:

**د خیټې د حفاظت مطلب**: - دَ خیټې دَ حفاظت مطلب دادې چه دادَ حرام مال دَ خوراك نه بچ کړئی ځکه چه دَ مرګ نه پس دَ ټولو نه اول دَ انسان په بدن کښې خیټه پړسیږی او شلیږی. لهذا په دې کښې حلال مال کیدل پکاردی نه چه دَحرامو مرکز جوړشی.

خیټه چه په کومو اعضاؤ باندې مشتمل ده هغه اندامونه مراد دی مثلاً لاسونه خپې زړه وغیره نودَدې اندامونو حفاظت کول اودا دَ ګناهونونه لرې ساتل دَحیا حقیقت دې. لهذا دَخپو په ذریعه دَ ګناه طرف ته مه ځئی په لاس سره ګناه مه کوئی زړه دَخرابو خیالاتو ګنده عقیدو نه لرې اوساتئی. دَحقیقی حیاداهم حصه ده چه مرګ هروخت یاد اوساتلې شی اودَمرګ نه پس خرابوالې خپلې مخې ته اوساتئی. [الکاشف: ٣٤٩/٣.]

**قوله**: فَمَنْ فَعَلَ ذٰلِكَ: یعنی اول چه دکومو څیزونو اوخصلتونو ذکراوکړې شو چاچه په دې باندې عمل اوکړو نودا اصل اوحقیقی حیاده.

**د عوامو دپاره د حديث افاديت:** – دَدې حديث نه معلومه شوه چه انسان دَ خپلو جوړخ په اعتبار سره اودَ خپل بدن په اعتبارسره دَ عیبونو اونقصانونو مجموعه ده او الله تعالی ته معلومه ده چه دَ انسان په کوم اندام کښې کوم يو عيب پروت دې. کله چه انسان دَدې ټولو اندامونوحفاظت کوی نولکه چه هغه په مکمل توګه باندې دَ الله تعالی نه حيا کوی. امام نووی رحمه الله ليکلی دی چه علماؤ له پکاردی چه دا حديث دَ زيات نه زيات عوامو ته بيان کړی.

**[١٦٠٩] مرګ دَ مؤمن تحفه**

١٦٠٩ – (١)[١١] [١] وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] «تُحْفَةُ الْمُؤْمِنِ الْمَوْتُ». رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ.

**ترجمه:** [١] عبدالله ابن عمرو رضی الله عنه روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] د مومن تحفه مرګ دي، دا روايت بيهقي رحمه الله په شعب الايمان کښې نقل کړي دي.

**تسهيلات: قوله : تُحْفَةُ الْمُؤْمِنِ الْمَوْتُ:** انسان دَخپلې نيکئی ميوه په آخرت کښې حاصلوی اودَ آخرت پورې دَ رسيدلودپاره ضروری دی چه سړې مرګ اووينی. ترکومې چه مرګ نه راځی سړې جنت ته نه شی رسيدلې. لهذا دَ جنت دَ نعمتونودَحاصلولوذريعه اووسيله مرګ دې نودَمؤمن دَپاره دَهغه مرګ دَ نتيجې په اعتبارسره تحفه ده اوهم دَدې ذکر په دې حديث کښې دې.

**[١٦١٠] د مؤمن مرګ د تندی دَ خولې سره**

١٦١٠ – (٢)[١٢] [١] (وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] " «الْمُؤْمِنُ يَمُوتُ بِعَرَقِ الْجَبِينِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ).

**ترجمه:** [١] حضرت بريده رضی الله عنه روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] مومن د تندي د خولي سره مري (يعنی مومن ته د زکندن په وخت سخت تکليف وی چې په تندی يې خوله راځی او دا د نيکۍ علامت دی) (ترمذي نسايي ابن ماجه)

**حل اللغات:** – ① عَرَق: خوله، ② الْجَبِين: تندې،

**تسهيلات: قوله : الْمُؤْمِنُ يَمُوتُ بِعَرَقِ الْجَبِينِ:**

**د موت بعرق الجبين په مفهوم کښې درې اقوال:** – يعنی دَ تندی په خوله سره دَمؤمن وفات کيږی دَدې کلام ډير مفهومونه دی. ① اول دا چه دَ مؤمن ژوند دَمشقتونووالا دې. حلال رزق ګټلوکښې محنت کوی اودَبدن نه دَمحنت په وجه سره خوله څی اوهم په دغه مشقت

---

[١] اخرجه البهقی فی شعب الايمان ١٧١/٧ حديث رقم ٩٨٨٤

[٢] اخرجه الترمذی فی كتاب الجنائز عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما جاء أن المؤمن يموت بعرق الجبين (رقم-٩٨٢) والنسائی كتاب الجنائز/باب علامة موت المؤمن (رقم-١٨٢٩) وابن ماجة كتاب الجنائز/باب ما جاء فی المؤمن يؤجر فی النزع (رقم-١٤٥٢)

کښې مرګ راځي يعنې مؤمن جفاکش وي په کسب معاش کښې هم او په عباداتو کښې هم.
② مؤمن ته دَ مرګ دَ وجې نه زيات تکليف او مشقت نه رسي اودَ سا وتلو صرف هم دومره تکليف وي په کوم سره چه دَ ده په تندي باندې خله راځي.
③ دَمؤمن مرګ کله واقع کيږي نو په تندي باندې معمولي شان خوله راځي دادَ خوش بختۍ نيک بختنې اودَ ايمان دَ سلامتيا علامت وي په عوامو کښې هم دغه مشهوره ده.

[١٦١١] د ناڅاپه مرګ قباحت

١٦١١-()[١٣] ① وَعَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ خَالِدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② "«مَوْتُ الْفَجْأَةِ أَخْذَةُ الْأَسَفِ» ". ③ رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَزَادَ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ: وَرَزِينٌ فِي كِتَابِهِ «أَخْذَةُ الْأَسَفِ لِلْكَافِرِ، وَرَحْمَةٌ لِلْمُؤْمِنِ».

**ترجمه:** ① عبيد الله رضي الله عنه ابن خالد راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② ناګهاني مرګ (د الله جل جلاله) د غضب نيول دي، ③ ابوداؤد، بيهقي په شعب الايمان کښې او رزين په خپل کتاب کښې دا الفاظ نقل کړي دي چې د غضب نيول د کافر د پاره دي خو د مومن د پاره رحمت دي.

**حل اللغات:** - ① الفَجْأَةِ: أي بَغْتَة: ناڅاپه، ② أَخْذَةُ الأَسَفِ: أي: أَخْذَةُ سُخْطٍ: يعنى د غضب نيول.

**تسهيلات:** **قوله:** أَخْذَةُ الْأَسَفِ: غضب اوغصې دَپاره دالفظ استعماليږي. لکه قرآن پاك کښې چه دی ﴿غَضْبَانَ أَسِفًا﴾ دلته په حديث کښې دالفظ دَغضب دَ نيولو په معنى کښې استعمال کړې شوي دي. [اعراف: ١٥٠]

**د ناڅاپه مرګ څخه پناه غوښتل:** - مطلب دا چه ناګهانی دَ الله تعالى دَ غضب دَ نښونه يوه نښه ده ځکه چه په ناڅاپي مرګ کښې نه دَ شهادت دکلمې وئيلو موقع ملاويږي نه دَ وصيت او ضروري کلام کولوموقع ملاويږي. علماء ليکلي دي چه غضب نيونکې مرګ دَ کافرانودَپاره دي دَمسلمانانودَپاره نه دي. خلاصه دا چه ناڅاپي مرګ دَ خو خلقودَپاره ښه ځيزدي او خرابوخلقودَپاره خراب ځيزدي.

[١٦١٢] دَمرګ په وخت دَالله تعالى دَرحمت اميدساتل پکاردي

١٦١٢-()[١٤] ① وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: ② «دَخَلَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَلَى شَابٍّ وَهُوَ فِي الْمَوْتِ ③ فَقَالَ: كَيْفَ تَجِدُكَ؟ ④ قَالَ: أَرْجُو اللّٰهَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ، وَإِنِّي أَخَافُ ذُنُوبِي. ⑤ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " لَا يَجْتَمِعَانِ فِي قَلْبِ عَبْدٍ فِي مِثْلِ هَذَا الْمَوْطِنِ ⑥ إِلَّا أَعْطَاهُ اللّٰهُ مَا يَرْجُو، وَآمَنَهُ مِمَّا يَخَافُ» . ⑦ رَوَاهُ

[1] اخرجه ابوداود فی کتاب الجنائز، باب موت الفجاءة (رقم-٣١١٠)
[2] اخرجه الترمذی فی کتاب الجنائز عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ باب (رقم-٩٨٣) وابن ماجة کتاب الزهد/باب ذکر الموت والاستعداد له (رقم-٤٢٦١)

التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [١] حضرت انس رضي الله عنه فرمايي [٢] چې (يوه ورځ) رسول الله ﷺ يو زلمي ته تشريف يوړلو چې په سكرات الموت (يعني په زنكدن) كښې مبتلا وو [٣] حضور ﷺ ورته وفرمايل چې ته ځان په كوم حال كښې بيامومې (يعني دا وخت آيا ستا په زړه كې د الله تعالى جل جلاله د رحمت اميد دى يا د غضب الهى خوف دي؟) [۴] هغه عرض اوكړو چې يا رسول الله ﷺ د الله تعالى جل جلاله څخه أميد لرم (يعني خپل ځان د الله تعالى د رحمت څخه أميدوار وينم) ليكن د دې باوجود د خپلو ګناهونو څخه خوف زده هم يم [۵] حضور ﷺ وفرمايل چې هر كله په داسې وخت كښې د بنده په زړه كښې خوف او اميد (دواړه) جمع وي [٦] نو الله تعالى جل جلاله ورته هغه څيز وركوي د كوم چې أميد لري (يعني خپل رحمت) او هغه د هغه څيز څخه (يعنى د عذاب څخه) په آمان كښې لرى چې د هغې څخه ير يږي، [٧] ترمذي ابن ماجه، امام ترمذي رحمه الله فرمايي چې دا حديث حسن غريب دي.

**حل اللغات:**- ① شَابٌ: ځوان، ځلمي، ② هَذَا الْمَوْطِنِ: أَيْ: فِي هَذَا الْوَقْتِ، په داسې و خت يعنى په وخت د زنكدن كښې،

**تسهيلات:**

**قوله:** كَيْفَ تَجِدُكَ؟:

**د مرګ په وخت كښې ويره او اميد:**- يعنى خپل ځان څنګه وينې؟

**قوله:** قَالَ أَرْجُو اللّٰهَ:-مطلب دادې چه دې ځوان صحابى رضي الله عنه دَ حضورپاك دَ سوال په جواب كښې اوفرمائيل دَ الله تعالى دَ رحمت اميد لرم ليكن دَ خپلو ګناهونو دَ نتائج نه ويريږم. رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه دَسكرات الموت په وخت دَ ويرې اورجاء په يوسرى كښې رايوځائې كيدل دَدې خبرې ضمانت دې چه دكوم څيز نه هغه ويريږى الله تعالى هغه د هغې نه بچ كوى اودَ كوم څيزچه اميدلرى هغه ورته الله تعالى وركوى.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[١٦١٢] دَنيک عمل دَپاره داوږدعمر نعمت**

١٦١٢ -(١)[١٥] [١] عَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] " «لَا تَمَنَّوُا الْمَوْتَ ; فَإِنَّ هَوْلَ الْمُطَّلَعِ شَدِيدٌ، [٣] وَإِنَّ مِنَ السَّعَادَةِ أَنْ يَطُولَ عُمُرُ الْعَبْدِ [۴] وَيَرْزُقَهُ اللّٰهُ -عَزَّ وَجَلَّ- الْإِنَابَةَ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** [١] حضرت جابر رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] د مرګ آرزو مه كوئ ځكه چې د زكندن وخت سخت دي [٣] اوبيشكه دا نيک بختي ده چې د بنده عمر اوږد وي [۴] او الله تعالى جل جلاله هغه د طاعاتو طرف ته وګرځوي، (احمد)

[١] اخرجه احمد فى المسند ٣٣٢/٣

**حل اللغات:** - ① هَوْلَ: دَمرګ سختو او تکلیفونوته هول وئیلې شی. ② الْمُطَّلَعِ: مطلع هغه اوچت ځائی ته وائی په کوم ځتلوسره چه اخوا دیخوا کتلې شی. المطلع نه دَ مرګ سکرات او سختئی مراد دی. ③ السَّعَادَةِ: خوش بختی، ④ - الْإِنَابَةَ: أَيِ الرُّجُوعَ إِلَى طَاعَةِ اللّٰهِ تَعَالَى: دالله اطاعت طرف ته ګرځیدل.

**تسهیلات:**

**قوله: لَا تَمَنَّوُا الْمَوْتَ:**

**د مرګ د تمنا د ممانعت وجوهات:** -

مطلب داچه دَ مرګ غوښتنه مه کوئی ځکه چه دَ مرګ سختی اوتکلیفونه سړې ډیرزیات تنګوی.

① دَمرګ سختئی ډیرې زیاتې دی کله چه دَمرګ نه وړاندې سختونه ویریدوسره دَمرګ خواهش کوی نودَ مرګ اصل سختئی به څنګه برداشت کړې شی؟

علامه میرك رحمه الله فرمائی چه په دې حدیث کښې دَمطلع نه مراد ملك الموت یادَمنکرنکیر اطلاع اوخبردارې مراد دې چه هغه ړوانسان ته دَ هغه په مرګ باندې راتلوسره ورکوی.

② دَمرګ تمنا کولودَممانعت یوه وجه هم داده چه په اوږدعمرکښې نیك اعمال او دَ توبې اواستغفار زیاته موقع ملاویږی. انسان دَعبادت دَپاره پیدادې اودهغه ټوله سرمایه دَالله تعالی دَ رضاحاصلول دی اودا دولت دَعمر او حیات په ذریعه حاصلیدې شی. نوچه کوم سړی دَ مرګ خواهش اوکړو نوهغه دَ سرمایه لګولو اصل میدان ختم کړو. آیا چاداسې سوداګرلیدلې دې چه دَ خپل اصل مال دَ ضائع کولوکوشش ئی کړې وی؟

**قوله: وَيَرْزُقَهُ اللّٰهُ - عَزَّوَجَلَّ - الْإِنَابَةَ:**

**د انابت مفهوم:** - انابت دَ رجوع په معنی کښې دې دَدې مفهوم داسې بیان کړې شوې دې «الانابة الرجوع من الكل الى من له الكل» یعنی ټول دَ دنیالاتجې او انسانان پریخودوسره دَهغه رب طرف ته متوجه کیدل چاسره چه ټول هرڅه دی. په نورو الفاظوکښې داوئیل شی بابا ټولوسره رشته پریږده او رب سره رشته جوړه کړه.

**[١٦١٤] نیك عمل او اوږد عمر**

١٦١٤ - (١) [١٢] ① وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ: «جَلَسْنَا إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ② فَذَكَّرَنَا وَرَقَّقَنَا ③ فَبَكَى سَعْدُ بْنُ أَبِي وَقَّاصٍ فَأَكْثَرَ الْبُكَاءَ، فَقَالَ يَالَيْتَنِي مِتُّ. ④ فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "يَا سَعْدُ، أَعِنْدِي تَتَمَنَّى الْمَوْتَ ⑤" فَرَدَّدَ ذَلِكَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ، ثُمَّ قَالَ: " ⑥ يَا سَعْدُ، إِنْ كُنْتَ خُلِقْتَ لِلْجَنَّةِ فَمَا طَالَ عُمُرُكَ ⑦ وَحَسُنَ مِنْ عَمَلِكَ فَهُوَ خَيْرٌ لَكَ». رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** ① ابو امامه رضی الله عنه فرمایې چې (یوه ورځ) مونږ رسول الله صلی الله علیه وسلم ته متوجې کیناستو ②

[1] اخرجه احمد فی المسند ٥/٢٦٧

حضور ﷺ پند او نصيحت اوكړو او (د آخرت خوف وركولو سره يې) زمونږ زړونه نرم كړل ③ نو سعد ابن ابي وقاص ﷛ په ژړا شو او ډير يې وژړل بيا يې اوويل چې آرمان زه (په وړوكوالي كښې) مړشوي وې (نو ګنهګاره كيدم به نه او د آخرت د عذاب څخه به مې دخلاصې لار پيدا كړې وې)④ حضور ﷺ (د دې په اوريدو سره) وفرمايل چې اې سعده! آيا ته زما په مخكې د مرګ آرزو كوې؟⑤ او حضور ﷺ دا الفاظ درې خله وفرمايل بيا يې وفرمايل ⑥ چې اې سعده! كه ته جنت د پاره پيدا شوې يې نو ستا عمر چې څومره اوږد وى ⑦ او اعمال دې چې څومره ښه وى هغه قدر به ستا د پاره بهتر وي. (احمد)

**حل اللغات:-** ① رَقَّقَنَا: أَيْ: رَقَّقَ أَفْئِدَتَنَا بِالتَّذْكِيرِ: په ذكراو نصيحت سره ئې زمونږ زړونه نرم كړل.

**تسهيلات:**

**قوله:** فَذَكَّرَنَا وَرَقَّقَنَا فَبَكَى سَعْدُ بْنُ أَبِي وَقَّاصٍ:

**دحضرت سعد د ژړا وجه:**-صوفيا ء كرام فرمائى چې د كمو خلقو خبره غوږ ته رسى او د دماغو خبره دماغو ته رسى ، خو كومه خبره چې د زړه نه راأوځى هغه په زړه لګى. په دې وجه د نبى كريم ﷺ كلام مبارك دصحابه كرامو ايمان تازه ، دماغ ئې خوشحاله ، او زړونه ئې ورله نرم كړى وو. حضرت سعد ﷛ هم په دې وجه په ژړا شوې وو.

**قوله:** يَاسَعْدُ، أَعِنْدِي تَتَمَنَّى الْمَوْتَ":

**د نبى عليه السلام د قول په مفهوم كښې دوه اقوال:-**

① اې سعد! آيا ته زما په موجودګى كښې د مرګ خواهش كوې، زما ديدار ستا دپاره د هر نعمت نه اوچت او اعلى دې. البته زما د مرګ نه پس ته د مرګ خواهش كولې شې.

② ما د مرګ د خواهش كولو نه منع فرمائيلې ده او ته زما په موجودګى كښې دمرګ خواهش كوې. (مرقاة ج/٤ص١٠).

**قوله:** "يَاسَعْدُ، إِنْ كُنْتَ خُلِقْتَ لِلْجَنَّةِ:

**اشكال:-** حضرت سعد ﷛ په عشرهٔ مبشره صحابه كرامو كښې شامل دې. هغه ته خود جنت زيرې وركړې شوې وو. بيا نبى كريم ﷺ (ان كنت) ولې اوفرمائيل چې په شك باندې دلالت كوى؟

**داشكال درې جوابونه:-** ① د الله ﷻ د جلال نه بې ويرې كيدل د شان عبوديت خلاف دى.

② دا قول د بشارت نه قبل دې.

③ دا بشارت په مطلق حالت كښې نه دې بلكه په خاص حالت كښې دې ، او ممكن ده چې هغه حالت دهغه وى يا لفظ د إن شكيه نه دې بلكه بيان واقع دپاره دې. لكه څنګه چې قرآن كريم كښې دى (وَأَنْتُمُ الْأَعْلَوْنَ إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ٥) نه د صحابه كرامو ايمان مشكوك دې ، او

نه د الله ﷻ د صحابه کرامو د ايمان نه بې خبره دي ، د رسول کريم ﷺ د فرمان مقصد دا دې چې تاسو چونکه جنت دپاره پيدا کړې شوي يئ ، لهذا طول عمر بهتر دې.

**[١٦١٥] د حضرت خباب رضي الله عنه د مرګ د تمنا په باره کښې قول**

١٦١٥-(١٧)[١] وَعَنْ حَارِثَةَ بْنِ مُضَرِّبٍ قَالَ:[٢] «دَخَلْتُ عَلَى خَبَّابٍ وَقَدِ اكْتَوَى سَبْعًا ;[٣] فَقَالَ: لَوْلَا أَنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ:[٤] لَا يَتَمَنَّ أَحَدُكُمُ الْمَوْتَ لَتَمَنَّيْتُهُ[٥] وَلَقَدْ رَأَيْتُنِي مَعَ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مَا أَمْلِكُ دِرْهَمًا[٦] وَإِنَّ فِي جَانِبِ بَيْتِيَ الْآنَ لَأَرْبَعِينَ أَلْفَ دِرْهَمٍ.

**ترجمه:**[١] حارثه ابن مضرب رحمه الله (تابعي) فرمايي [٢] چې زه دحضرت خباب رضي الله عنه (صحابي) په خدمت کښې حاضر شوم هر کله چې هغه مريض وو او هغه په خپل بدن اووه ځايه داغونه لګولي وو[٣] هغه ماته وفرمايل چې که ما د رسول الله ﷺ څخه دا ارشاد ګرامي نه وې اوريدلي [٤] چې په تاسو کښې دي هيڅوک د مرګ آرزو نه کوي نو ما به ضرور د مرګ آرزو کړې وه [٥] ما ځان د رسول الله ﷺ په زمانه کې ليدلی دی چې هغه وخت زه د يو درهم مالک هم نه وم [٦] او اوس دا حال دي چې زما د کور په ګوټ کښې څلويښت زره درهمه پراته دي.

[١] قَالَ: ثُمَّ أُتِيَ بِكَفَنِهِ فَلَمَّا رَآهُ بَكَى وَقَالَ:[٢] لَكِنْ حَمْزَةُ لَمْ يُوجَدْ لَهُ كَفَنٌ إِلَّا بُرْدَةٌ مَلْحَاءُ،[٣] إِذَا جُعِلَتْ عَلَى رَأْسِهِ قَلَصَتْ عَنْ قَدَمَيْهِ،[٤] وَإِذَا جُعِلَتْ عَلَى قَدَمَيْهِ قَلَصَتْ عَنْ رَأْسِهِ،[٥] حَتَّى مُدَّتْ عَلَى رَأْسِهِ وَجُعِلَ عَلَى قَدَمَيْهِ الْإِذْخِرُ». [٦] رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يَذْكُرْ: ثُمَّ أُتِيَ بِكَفَنِهِ إِلَى آخِرِهِ.

**ترجمه:**[١] حارثه رحمه الله فرمايي چې بيا حضرت خباب رضي الله عنه ته د هغه کفن راوړل شو (چې ډير اعلي او نفيس وو) هغه چې اوليدلو نو په ژړا شواو وي فرمايل[٢] (چې اګر چې دا کفن جائز دي ليکن) امير حمزه رضي الله عنه ته (پوره) کفن حاصل نه شو صرف يو تور او سپين لکيردار څادر وو [٣] او (هغه هم دومره کوچني وو) چې سر به يې ورپټولو نو پښې به يې ښکاره پاتې شوې [٤] او که پښې به يې ورپټولې نو سر به يې ښکاره پاتې شو[٥] آخر په هغه څادر سره د هغه سر پټ شو او په پښو يي اذخر واچول شو.[٦] دا روايت احمد او ترمذي نقل کړي دي ليکن ترمذي د ثُمَّ أُتِيَ بِكَفَنِهِ څخه تر آخره پورې الفاظ نه دي نقل کړي.

**حل اللغات:**-① اكْتَوَى: په اور سره داغونه ورکولو ته وائي. ② بُرْدَةٌ: څادر، ③ مَلْحَاءُ: أي: فِيهَا خُطُوطٌ بِيضٌ وَسُودٌ. يعني برګ څادر، ④ قَلَصَتْ: أي: قَصُرَتْ: کم به شو، ⑤ الْإِذْخِرُ: هُوَ حَشِيشَةٌ طَيِّبَةُ الرَّائِحَةِ، يو قسم خوشبودار واښه دی، (پښتو کښې ورته سرګړې وائي.) دا واښه د چتو په تختو اواريږي او په ډيرو نورو کارو کې هم استعماليږي.

[١] اخرجه احمد فی المسند ١١١/٥

**تسهیلات:**

**قوله:** وقد اكتوى:

**د یو اشکال جواب:**- په اورسره داغ ورکولو نه په احادیثو کښې ممانعت راغلې دې لیکن هغه نهی ارشادی ده په وخت دَ ضرورت ممانعت نه دې.

**قوله:** "قَلَصَتْ": مراد دادې چه دغه وړوکې شان څادر په سرباندې اچولو سره خپې ښکاری او په خپو باندې اچولو سره سر ښکاری. حضورپاك دَ سرپټولو دَپاره اوفرمائيل او په خپو باندې دَ وښو اچولو حکم ورکړو.

**قوله:** الْإِذْخِرُ:

**د اذخر د لفظ تشریح:**- یوقسم واښه دی کوم چه جماتونو کښې په فرش باندې اچولې شی او دَ لوهارانو په بهټئی کښې دَ اور بلولودَپاره به استعمالیدل ځکه چه په دې باندې اور زر لګی. لهذا دَدې په ذریعه باندې به ئی په سکاروباندې اور لګولو. بل که دَ قبر زمکه به لمده وه نو په هغې کښې به هم خوروليې شو. اوس هم دا واښه دَ کلو جماتونو کښې اچولې شی اوخلق په دې باندې کینی او په دې واښو کښې یوقسم خوشبوئی وی.

**د حضرت حمزه دپاره کفن نه ملاویدل:**- حضرت خباب ﷺ امت ته دا تعلیم پریخودې دې دَ مالدارشاکرنه فقیرصابر ښه او افضل دې. صحابه کرامو ﷺ ته دَ جهاد دَ وجې نه الله تعالی په ډیر مقدارکښې دنیاهم ورکړې وه اوآخرت ئی هم ورکړو. حضرت حمزه ﷺ دَ رسول الله ﷺ رضاعی رور او خور تره وو. دَ احد په میدان کښې دَ وحشی بن حرب دَ لاسه شهید شوې وو. بدن ئی مثله کړې شوې وو یعنی اندامونه ئی ترې پرې کړې وو اودَ کفن دَپاره څه کپړا نه وه شهیدته دَ جدا کفن اچولوضرورت نه وی بلکه هغه په خپلو کپړو کښې خښولې شی لیکن دلته معامله داسې ده چه دَ حضرت حمزه ﷺ په بدن باندې دَ دغه وړوکی څادر نه علاوه څه نه وو په دې وجې په وښو باندې دَ بدن پټولو ضرورت شو.

# [٣]بَابُ مَا يُقَالُ عِنْدَ مَنْ حَضَرَهُ الْمَوْتُ

## مرګ ته نيزدې سړي ته دکلمۀ توحيد تلقين

**خلاصة الباب:-**

**فيه ثمانية عشر حديثاً مشتملة على عشر مسائل:**

① تلقين الكلمة الكلمة الطيبة عند المحتضر: ١، ٧، ١١.
② ذكر الميت بخير والدعاء له: ٢، ٤.
③ الدعاء عند المصيبة: ٣.
④ تسجية الموت: ٥.
⑤ الخاتمة بالتوحيد: ٦ وهي من فوائد التلقين.
⑥ تقبيل الميت: ٨، ٩.
⑦ التعجيل بدفن الميت: ١٠.
⑧ تفصيل حالة نزع الروح: ١٣،١٢، ١٤، ١٥.
⑨ محل أرواح المؤمنين: ١٦، ١٧.
⑩ إرسال السلام إلى الأموات: ١٦، ١٧.

**د قريب الموت تعريف:-** مرګ ته نيزدې سړی نه هغه بيمار سړې مراددې په کوم چه دَ مرګ آثار ښکاره شوی وی. دَ مرګ دَعلاماتونه ځېې چيچړيدل، هغه وخت دَ پوزې ښپيلئی کږيدل اودَ سردَ قوتوکيناستل دی. مرګ ته نيزدې سړی په مخکښې لوستلې کيدونکی ځيز کلمه توحيد اوکلمه شهادت ده او سورت ياسين وغيره دی.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

### [١٦١٦]مرګ ته نيزدې کس ته دَکلمې طيبې ويلو حکم

١٦١٦-(¹)[١] ① عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَا: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② "«لَقِّنُوا مَوْتَاكُمْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① ابوسعيده رضي الله عنه او ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② کوم خلق چې قريب المرګ وي هغوئ ته (کلمه) لااله الاالله تلقين کوئ. (مسلم)

**حل اللغات:-** ① لَقِّنُوا: أي: ذَكِّرُوا: تلقين اوکړئ. يعنى قريب المرګ ته کلمه ورياده کړئ.

¹) اخرجه مسلم في كتاب الجنائز/باب تلقين الموتى لا إله إلا الله (رقم-١ - (٩١٦) وابوداود كتاب الجنائز باب في التلقين (رقم-٣١١٧) والترمذي كتاب الجنائز عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما جاء في تلقين المريض عند الموت. والدعاء له عنده (رقم-٩٧٦) والنسائي في كتاب الجنائز/باب تلقين الميت (رقم-١٨٢٦) وابن ماجة كتاب الجنائز/باب ما جاء في تلقين الميت لا إله إلا الله (رقم-١٤٤٥)

**تسهيلات: قوله**: لَقِّنُوا مَوْتَاكُمْ:

**په قريب الموت د ميت د اطلاق وجه**:- په قريب المرګ باندې په اعتبار راتلونکې وخت سره دَ مړي نوم اخستې شوې دې مطلب دا چه په حالت دَ ساه ختلو کښې مرګ ته نيزدې سړي په وراندې کلمه وغيره لولئي دې دَپاره چه هغه ئې واوري اولوستل شروع کړي. دلته دَ کلمې ونيلو نه هم دغه تعليم مراددې.

**قريب المرګ ته کلمه ونيل نه مطالبه د ونيلو**:- علماؤ ليکلي دي چه بيمار ته اوره وه خو دا حکم ورته مه کوه چه ته اولوله هسې نه چه پريشانئ کښې هغه چرته انکاراونه کړي. دَ مرګ نه پس په قبرباندې دَ کلمې ونيلو مسئله وراندې راځي. دلته مرګ ته دَنيزدې سړي دَ کلمې ونيلو بيان دې. داکلمه ونيل مستحب دې. دَ احنافو په نيز قبرونو سره کلمه ونيل راجح قول نه دې. ظاهرالرواية هم دغه دې چه تلقين قبوردې اونه کړې شي.(درمختارمع ردالمحتار ج١ص٦٢٨وامداد الفتاوى ج١ص٤٩٩).

**[١٦١٧] مرګ ته نيزدې کس سره د خير خبرې کول**

١٦١٧-(١)[٢] [١] وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] «إِذَا حَضَرْتُمُ الْمَرِيضَ أَوِ الْمَيِّتَ فَقُولُوا: خَيْرًا ; [٣] لِأَنَّ الْمَلَائِكَةَ يُؤَمِّنُونَ عَلَى مَا تَقُولُونَ» . رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: [١] بي بي أم سلمه رضي الله عنها وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] هر کله چې تاسو يو مريض يا قريب المرګ ته ورشئ نو د خلي څخه د خير او د نيکي کلمات اوباسي (يعنى وايئ) [٣] ځکه چې تاسو څه وايئ (هغه که د خير او د ښيګړې دعا وي يا د بدو او د شر دعا وي) فرښتې پرې آمين وايي. (مسلم)

**حل اللغات**:- ① يُؤَمِّنُونَ: أَيْ: يَقُولُونَ آمِينَ: فرښتې پرې آمين وائي.

**تسهيلات: قوله**: أَوِ الْمَيِّتَ:

دَمريض نه پس دَ مړي ذکر کړې شوې دې دې نه حقيقي مرګ مراداخستل به زيات بهتروي يعنى که په تاسوکښې يوسړې يوبيمار يا مړي ته حاضرشي.

**قوله**: فَقُولُوا: خَيْرًا:

**د بيمار دپاره دعا کول**:- يعنى ښه کلمات اداکوئى چه ستاسودَپاره اودَ بيماردَپاره بل دَ مړي دَپاره يوشان فائده مند وي. هغه داسې چه دَخپل ځان دَپاره دَخير دَ بيماردَپاره دَ شفا او دَ مړي دَپاره دَمغفرت دعاغوارئى نوداددريوارودَپاره دَخيردعاده اوځکه چه دَدې

[١] اخرجه مسلم فى كتاب الجنائز/باب ما يقال عند المريض والميت (رقم-٦ - (٩١٩) وابوداود كتاب الجنائز، باب ما يستحب أن يقال عند الميت من الكلام (رقم-٣١١٥) والترمذى كتاب الجنائز عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما جاء فى تلقين المريض عند الموت، والدعاء له عنده (رقم-٩٧٧) والنسائى كتاب الجنائز/باب كثرة ذكر الموت (رقم-١٨٢٥) وابن ماجه كتاب الجنائز/باب ما جاء فيما يقال عند المريض إذا حضر (رقم-١٤٤٧)

حدیث تعلیم دې فرښتې د هغه په ښه دعا او کلماتو باندې آمین وائي او د فرښتو د آمین والا دعا قبلیږي او هم د غه لوئي نعمت او دولت دي.

**[١٦١٨] په مصیبت باندې د کلمه استرجاع ویلو فضیلت**

١٦١٨-(٣)[١] وَعَنْهَا قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] «مَا مِنْ مُسْلِمٍ تُصِيبُهُ مُصِيبَةٌ [٣] فَيَقُولُ مَا أَمَرَهُ اللَّهُ بِهِ، إِنَّا لِلَّهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُونَ، [٤] اللَّهُمَّ أْجُرْنِي فِي مُصِيبَتِي، [٥] وَاخْلُفْ لِي خَيْرًا مِنْهَا، [٦] إِلَّا أَخْلَفَ اللَّهُ لَهُ خَيْرًا مِنْهَا» [٧] فَلَمَّا مَاتَ أَبُو سَلَمَةَ قُلْتُ: أَيُّ الْمُسْلِمِينَ خَيْرٌ مِنْ أَبِي سَلَمَةَ، [٨] أَوَّلُ بَيْتٍ هَاجَرَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -، [٩] ثُمَّ إِنِّي قُلْتُهَا فَأَخْلَفَ اللَّهُ لِي رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] بي بي أم سلمه رضي الله عنها فرمايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] هر کله چې يو مسلمان په يو (لويي يا وړوکي) مصيبت کښې مبتلا شي [٣] او د الله تعالی جل جلاله د حکم مطابق دا الفاظ اووائي انّا لله وانّا اليه راجعون مونږ د الله تعالی جل جلاله يو او د هغه طرف ته زمونږ ورتلل دي [٤] اللّٰهُمَّ أْجُرْنِيْ فِيْ مُصِيْبَتِيْ وَاَخْلِفْ لِيْ خَيْرًا مِنْهَا اې الله زما په مصيبت باندې ماته ثواب راکړې [٥] او (په دې مصيبت کښې) چې کوم شي زما د لاس څخه تلې دې د هغې نعم البدل راته راکړې [٦] نو الله تعالی جل جلاله د هغه څيز څخه بهتره بدله ورکوي [٧] بي بي أم سلمه رضي الله عنها فرمايي چې کله ابو سلمه (يعني زما مخکني خاوند) وفات شو نو ما اوويل چې د ابو سلمه څخه به بهتر کوم مسلمان وي [٨] هغه ابو سلمه چې هغه د ټولو څخه مخکې خپل د اهل او عيال سره د حضور ﷺ طرف ته هجرت اوکړو [٩] او بيا ما مذکوره بالا کلمات اوويل نو الله تعالی جل جلاله د ابوسلمه رضي الله عنه په بدله کښې ماته حضور ﷺ راکړو (يعني زه د حضور ﷺ په نکاح کښې راغلم) (مسلم)

**حل اللغات:-** ① أَجِرْنِي: ثواب راکړې ماته، ② اخْلُفْ: دا د باب افعال نه دي، أي: اجْعَلْ لِي خَلَفًا مِمَّا فَاتَ عَنِّي: کوم څه چه زما د لاس څخه وتلی دی د هغه نعم البدل راته راکړی.

**تسهيلات: قوله: وَاخْلُفْ**: دا د باب افعال نه دي او دا باب په دې امورو کښې مستعمل کيږی د کوم حصول چه متوقع وی لکه مال اولاد زوجه وغيره او د کومو څيزونو حصول چه متوقع نه وی په هغې کښې خلف باب تفعيل نه استعماليږی.

**قوله: أَيُّ الْمُسْلِمِينَ**: دا استفهام د استبعاد د پاره دي. ام سلمه رضي الله عنها تعجب اوکړو چه د ابوسلمه رضي الله عنه نه زيات څوک ښه کيدې شي.

**قوله: أْجُرْنِي**: دا کلمه أَجِرْنِي هم نقل ده يعنی د همزې د جزم سره او د جيم پيش سره او د همزې مد او د جيم زير سره هم نقل ده هم دغه مشهوردی.

[١] اخرجه مسلم في كتاب الجنائز/باب ما يقال عند المصيبة (رقم) ٣ - (٩١٨) وابوداود كتاب الجنائز/باب في الاسترجاع (رقم-٣١١٩)

**قوله: وَعَنْهَا اى أُمِّ سَلَمَةَ:**

**د ام سلمه محدثانه شان:** - حضرت ام سلمه رضي الله عنها دامهات المؤمنين نه ده. دَاحاديثو بيانولو کښې دَدوی مقام حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها سره نيزدې نيزدې دې. هغې دَحضورپاك نه دا حديث رومبې اوريدلې وو چه دَمصيبت په وخت مسلمان لـه انالله الخ وئيل پکاردی او دې سره داکلمات هم اداکول پکاردی چه دَ فوت شوی څيز په بدلـه کښې الله تعالی دَهغې نه بهتربدله ورکړی. دَام سلمه رضي الله عنها خاوندبودَ شان والاصحابی وو په اخلاص ئی هجرت اوکړو اوبيا انتقال شو. دَام سلمه رضي الله عنها په خيال کښې هغه دَ ډيرو خوبيانو مالك وو په دې وجه هغه خفه وه چه زمادَخاوندنه بهترڅوك کيدې شی. ليکن دَ شريعت حکم وو په دې وجه ام سلمه رضي الله عنها دَابوسلمه رضي الله عنه په وفات باندې داکلمات اداکړل. دَ دې اثردا اوشو چه دَالله تعالی دَطرف نه ام سلمه رضي الله عنها ته دَهغې دَخاوندنه بهترخاوند سيدالاولين والاخرين ورنصيب کړو.

**قوله: إِنَّا لِلّٰهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُونَ:**

**د کلمه استرجاع وسعت:** - مفهوم دادې چه دادَمصيبت په وخت مصيبت وهلې سړې وائی چه زه دامصيبت خوراغلو ليکن مونږ زمونږ اولاد اوزمونږ خان اومال ټول هم دَالله تعالی دی. او آخرکار ټولولـه هم دغـه رب تـه واپس تلل دی. دادعادَمسلمانانودَ پاره يولوئی راحت اونعمت دې چه دَ ډير لوئی مصيبت خفګان هم برداشت کول آسانيږی. اوکوموخلقوسره دا مرهم دوائی اوتسلی نشته دې دَهغوی نه پوښتنه اوکړئی چه په هغوی باندې غم څنګه تيريږی نوهغوی به اوښائی چه نااميدی اوحوصله بيلل اودَ درد اوغم نه سوا هيڅ هم نه ملاويږی. علماؤ ليکلی دی چه کله هم سړی ته تيرشوې مصيبت رايادشی هغه لـه پکاردی چه داکلمات اداکړی الله تعالی به ورته نوې ثواب ورکړی. [الکاشف: ٣٥٣/۴.]

**[١٦١٩] دَابوسلمه دپاره دَ نبی کريم صلى الله عليه وسلم دعا**

١٦١٩-(١)[٣] [١] وَعَنْهَا قَالَتْ: [٢] «دَخَلَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ عَلَى أَبِي سَلَمَةَ وَقَدْ شَقَّ بَصَرَهُ فَأَغْمَضَهُ [٣] ثُمَّ قَالَ: إِنَّ الرُّوحَ إِذَا قُبِضَ تَبِعَهُ الْبَصَرُ; [۴] فَضَجَّ نَاسٌ مِنْ أَهْلِهِ فَقَالَ: [۵] "لَا تَدْعُوا عَلَى أَنْفُسِكُمْ إِلَّا بِخَيْرٍ; [٦] فَإِنَّ الْمَلَائِكَةَ يُؤَمِّنُونَ عَلَى مَا تَقُولُونَ". [٧] ثُمَّ قَالَ: "اللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِأَبِي سَلَمَةَ، [٨] وَارْفَعْ دَرَجَتَهُ فِي الْمَهْدِيِّينَ، [٩] وَاخْلُفْهُ فِي عَقِبِهِ فِي الْغَابِرِينَ، [١٠] وَاغْفِرْ لَنَا وَلَهُ يَا رَبَّ الْعَالَمِينَ، [١١] وَأَفْسَحْ لَهُ فِي قَبْرِهِ، وَنَوِّرْ لَهُ فِيهِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] بي بي ام سلمه رضي الله عنها فرمايي [٢] چې رسول الله صلى الله عليه وسلم (زما مخکني خاوند) ابو سلمه رضي الله عنه ته هغه وخت تشريف راوړه کله چې د هغه سترګي خلاصي پاتې شوي وي نو حضور صلى الله عليه وسلم د هغه سترګي بندي کړي [٣] او وي فرمايل هر کله چې روح قبض کيږی نو سترګي په هغه پسي ګوري اوروني پاتې شي [۴] د ابو سلمه رضي الله عنه اهل بيت (د دي اوريدو

[١] اخرجه مسلم فی باب فی إغماض الميت والدعاء له إذا حضر (رقم-٧ - (٩٢٠) ابوداود کتاب الجنائز، باب تغميض الميت (رقم-٣١١٨) وابن ماجة کتاب الجنائز /باب ما جاء فی تغميض الميت (رقم- ١٤٥٤)

سره) پوهه شو چې ابو سلمه رضی الله عنه وفات شو نو هغه ټول په ژړا شوحضور ﷺ ورته وفرمایل ⑤ چې د خپلو نفسونو په باره کښې د خیر او د نیکي دعا کوئ (یعني واویلا او بد دعا مه کوئ) ⑥ چې تاسو (ښه یا بد) د کومې دعا د پاره هم الفاظ د خُلې څخه اوباسئ فرشتې په هغې آمین وایي ⑦ بیا حضور ﷺ دا دعا ارشاد وفرمایله: اللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِأَبِي سَلَمَةَ وَارْفَعْ دَرَجَتَهُ فِي الْمَهْدِيِّينَ وَاخْلُفْهُ فِي عَقِبِهِ فِي الْغَابِرِينَ وَاغْفِرْ لَنَا وَلَهُ يَا رَبَّ الْعٰلَمِينَ وَافْسَحْ لَهُ فِي قَبْرِهِ وَنَوِّرْ لَهُ فِيهِ (ترجمه: ① اي الله ابو سلمه رضی الله عنه وبخښي ⑧ او د هغه مرتبه بلنده کړې هغه په هغه خلقو کښې شامل کړې چې هغوئ ته سیده لار ښودل شوي ده ⑨ د هغه دپسمانده ګانو (چې باقي پاتې شوي دي د هغوی) کار ساز شې ⑩ او اي د دوارو جهانو پروردګاره مونږ او دی وبخښې ⑪ او دده په قبر کښې فراخی راولې او د هغه د پاره قبر منور کړې. (مسلم)

**حل اللغات:-** ① شَقَّ: دَمرګ په وخت سترګې کولاؤ پاتې کیدل او شلیدلو په معنی کښې دې، ② فَأَغْمَضَهُ: نو سترګې ئې ورله بندې کړې، ③ فَضَجَّ: د ضَرَبَ يَضْرِبُ نه دې، أَيْ: رَفَعَ الصَّوْتَ بِالْبُكَاءِ: خلقو په زوره ژړا شروع کړه، ④ يُؤَمِّنُونَ: أَيْ: يَقُولُونَ آمِينَ: فرښتې پرې آمین وائی. ⑤ الْمَهْدِيِّينَ: أَيِ: الَّذِينَ هَدَاهُمُ اللّٰهُ لِلْإِسْلَامِ سَابِقًا: چاته د اسلام نیغه لار مخکښې نه ورنصیب شوې ده، ⑥ وَاخْلُفْهُ: أَيْ: كُنْ خَلَفًا أَوْخَلِيفَةً لَهُ: ته ددوی کارساز شې، ⑦ عَقِبِهِ: أَيْ: فِي أَوْلَادِهِ: د مړی پسمانده ګان او اهل وعیال، ⑧ الْغَابِرِينَ: أَيِ: الْبَاقِينَ فِي الْأَحْيَاءِ مِنَ النَّاسِ، دمړی کوم پسمانده ګان چه ژوندی دی. ⑨ أَفْسِحْ: أَيْ: وَسِّعْ: فراخه کړې (قبر دده).

**تسهیلات: قوله: وَقَدْ شَقَّ بَصَرَهُ فَأَغْمَضَهُ:**

**د مړی سترګو بندولو وجه:-** اوبیائې دَ سترګودَ غړیدلو وجه بیان کړه چه روح کله اوځی نو نظر هغې پسې ځی لکه چه سترګې داګوری چه روح څنګه اوځی. کله چه روح اوځی نونظرهم ختم شی اودَ سترګوحرکت هم ختمیږی نوسترګې هم غړیدلې پاتې کیږی. په دې وجه حضورپاك امت ته تعلیم ورکړو چه دَمړی سترګې بنده وئی څکه چه غړیدلې پاتې کیدوکښې اوس دَ لیدلوفائده نشته دې اودمړی شکل ښه نه پاتې کیږی. دا دَ اسلام دَ خوبیانونه دی چه دَانسان دَښائست دَ مرګ نه پس هم خیال اوساتلې شی.

**قوله: فَضَجَّ نَاسٌ مِنْ أَهْلِهِ:**

**په مړی پسې په چغو دَ ژړا حرمت:-** حضورپاك چه کله دااوفرمائیل چه روح اوځی نوسترګې کولاؤ پاتې کیږی په دې سره دَ کورخلقوته اندازه بلکه یقین اوشو چه ابوسلمه رضی الله عنه وفات شوې دې په دې وجه ئې په چغو اوژړل. په دې باندې حضورپاك هغوی ته تسلی ورکړه چه په چغوسره ژړل نه دی پکار او په ژبه سره خراب کلمات هم نه دی اداکول پکار څکه چه فرښتې آمین وائی. بیا حضورپاك دَ ابوسلمه رضی الله عنه اودَ هغه غریبانانو ګانودَپاره یوه جامع دعا اوفرمائیله کومه چه صرف ابوسلمه رضی الله عنه سره خاص نه ده بلکه دَامت دَ ټولو

کسانو د پاره عام ده.

**[١٦٢٠] د نبی علیه السلام په لاش یمنی څادر اچول**

١٦٢٠-()[٥] ① وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: إِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - حِينَ تُوُفِّيَ ② سُجِّيَ بِبُرْدٍ حِبَرَةٍ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① بي بي عايشه ﷺ فرمايي چې کوم وخت رسول الله ﷺ وفات شو ② نو (په بدن مبارك) باندې يي يمني څادر واچول شو. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① سُجِّيَ: دَمجهول صيغه ده، أي: غُطِّيَ وَسُتِرَ: پټ کړې شو، ② بُرْدَةٌ: څادر، ③ حِبَرَةٌ: بوزن عِنَبَةٍ بُرْدٌ يَمَانٍ، د عنبة په وزن دې يمنی څادر ته وائی. مُوَشًّى مُخَطَّطًا: گلکاری او کربښې دار يعنی برگ څادر.

**تسهيلات: قوله: سُجِّيَ بِبُرْدٍ حِبَرَةٍ:**

**د نبی کريم ﷺ ژوند او د مرگ د هر کيفيت حفاظت:** - مطلب دا چه دَ حضورپاك دَ وفات نه پس په حضورپاك باندې يو نقش دار يمنی څادر اچولې شوې وو. دَدنيا دَ ټولو مذهبونو منونکوله منل پکاردی چه اسلام څومره خور مذهب دې او دَدې نبښې نبناني څومره محفوظ دی. په اسلام کښې دا ضمانت هم ورکولې شی چه دَ مسلمانانو پيغمبر ﷺ دَ وفات نه پس په کوم حال کښې وو يو يو کيفيت ئی څنگه وو او يوه يوه لمحه ئی څنگه تيره کړې ده او څنگه محفوظ پاتې شوی.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[١٦٢١] د مرگ په وخت کښې د کلمه طيبه ويلو فضيلت**

١٦٢١-()[٦] ① عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② "«مَنْ كَانَ آخِرُ كَلَامِهِ لَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ دَخَلَ الْجَنَّةَ»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① معاذ ابن جبل ﷺ روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② د کوم سړي آخري کلام چې لااله الاالله شي هغه به په جنت کښې داخليږي. (ابوداؤد)

**تسهيلات: قوله دَخَلَ الْجَنَّةَ:**

**په دخول جنت کښې دوه احتمالات:** - مراد دادې چې کوم کس په آخری وخت کښې لااله الاالله محمد رسول الله اووائي نو هغه به جنت ته داخليږی.

[١] اخرجه البخاری فی کتاب الجنائز/باب الدخول علی الميت بعد الموت إذا أدرج فی أکفانه (رقم-١٢٤١) ومسلم فی کتاب الجنائز/باب تسجية الميت (رقم) ٤٨ - (٩٤٢) وابوداود کتاب الجنائز/باب فی الميت يسجی (رقم-٣١٢٠)
[٢] اخرجه ابوداود فی کتاب الجنائز باب فی التلقين (رقم-٣١١٦)

① دا دخول جنت د عذاب نه وړاندې دې څکه د خول خاص دې دا احتمال صحيح معلوميږي چې په هغه مؤمنانو کښې څوك كلمه طيبه اووائي او خپل ځان الله ته حواله كړي، او په هغه مؤمنانو کښې څوك چې كلمه طيبه او نه وئيه په دې دواړو کښې امتيار پيدا شي.

② د دا دخول د خپلو گناهونو په قدر عذاب تيرولو نه پس.

**[١٦٢٢] مرګ ته نيزدې سړي ته د سورت ياسين لوستلو حکم**

١٦٢٢-()[٧] ① وَعَنْ مَعْقِلِ بْنِ يَسَارٍ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② "«اقْرَءُوا سُوْرَةَ يس عَلَى مَوْتَاكُمْ»". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُوْدَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① معقل ﷺ ابن يسار روايت كوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② د خپلو مړو په مخکې سورة يسين وايئ. (احمد، ابوداؤد، ابن ماجه)

**دراوي مختصر تعارف:**- نوم معقل ابوعبدالله كنيت دَ پلار نوم يسار بن عبدالله بن صغير بن حراق. دَ صلح حديبيه نه وړاندې مسلمان شوې او بيا په صلح حديبيه کښې دَ رسول الله ﷺ هم رکاب هم پاتې وو. اوکله چه حضور ﷺ بيعت رضوان کښې دَ صحابه کرامو رضوان الله اجمعين نه دَ مرګ بيعت اخستلو نو په يوښاخ سره ئې په حضورﷺ باندې سورې کړې وو. (٢)

نبی کريم ﷺ هغه دَ قبيله مزينه قاضی جوړول غوښتل نو هغه دوه ځل انکار اوکړو بيا رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيلوچه الله تعالی قاضی سره وی کله چه هغه ظلم اونه کړی بيا دې قاضی جوړشو

حضرت عمر فاروق ﷺ سره دَ هغه ډير قدر اوعزت وو په اهم کارونوکښې به ئی هغوی سره مشهوره کوله. کله چه حضرت عمر ﷺ ابوموسی اشعری ﷺ ته په بصره کښې دَ نهر کنستلو دپاره حکم ورکړو چه دَ تياريدو نه پس دَ معقل په لاس باندې په دې کښې اوبه روانې کړه. بيا دَ حضرت اميرمعاويه ﷺ په زمانه کښې دا نهر زياد صحيح کړو نو په دې کښې ئی دَ حضرت معقل ﷺ په لاس اوبه روانې کړې.(٣)

**وفات:**- دَ حضرت اميرمعاويه ﷺ په زمانه کښې وفات شو دغه وخت دَ هغه عمر دَ شپيتو اوياؤ په مينځ کښې وو. (٤)

**مرويات:**- دَ هغوی نه ٣٣ احاديث نقل دی يومتفق عليه په يوکښې امام بخاری او په دووکښې امام مسلم ﷺ منفرددی(٥)

[1] اخرجه ابوداود كتاب الجنائز. باب القراءة عند الميت (رقم-٣١٢١) وابن ماجة. كتاب الجنائز/باب ما جاء فيما يقال عند المريض إذا حضر (رقم-١٤٤٨)
[2] مسنداحمد ٢٥/٥). (٢)مستدرک حاکم ٥٧٧/٣) (٣) فتوح البلدان ٣٦٦) (٤)اصابه١٢٦/٦)
(٥) تهذيب الكمال٢٨٣) (٦) مسلم فى الأمارة باب فضيلة الإمام العادل..)

**تسهيلات: قوله : اقْرَءُوا سُورَةَ يس عَلَى مَوْتَاكُمْ:**

**قريب الموت ته د سورة يسين وئيلو حكمت:** - اول اوخودلي شو چه دَ موتى نه مراد مرگ ته نيـزدې سـړې دي. سـورت ياسـين خـوبى داده چـه دَهغـه نـه الله تعـالى دَ سـختئى تكليف آسانوى ځكه چه دَ قرآن كريم په ټولو سورتونو كښې داسورت ياسين داسې دې چه په دې كښې الله تعالى په عجيبه انداز كښې قيامت ثابت كړې دې مثلاً دَ ذكر الله پوره نقشه دهٔ دفن كړې شوى سړى دَ احوالو ذكر دې دَقيامت دَ احوال ذكر دې په جهنم باندې تيريدو اودَ نورو واقعاتو ذكر دې. او په عجيبه دلائلو سره دې حشر اونشر ثابت كړې دې. چونكه سورت ياسين اهمو اصول باندې مشتمل دې بالخصوص دَ حشر اونشر واقعات پـه دې كښې ډير په تفصيل سره بيان كړې شوى دى. په دې وجه په خصوصيت سره مرگ تـه نيـزدې كس ته خواكې دَدې دَ لوستلو حكم شوې دې اوهم په دې وجه دې تـه قلب قـرآن وئيلې شوې دې. دادَ تكليف په وخت كښې هم مفيد دې مړى سره خواكې لوستل هم دَمړى دَپاره مفيد دى او په كور كښې دَدې لوستل هم دَ فائدې دى. خلق هم دَدې حديث دَ وجې نه دَمړو دَپاره سورت ياسين خاص كوى. بعضې وهمى خلق دَ سورت ياسين نه دَ تختيدو كوشش كوى.

**د سورة ياسين د تلاوت ځخه د يو كس ويريدل:** - حضرت تهانوى رحمه الله په خپل ملفوظاتو كښې ليكلى دى چه په هندوستان كښې يو سړې ووهغـه بـه دَ سـورت ياسـين دَ نـوم نـه ويريـدلو اوخلقوتـه نـى وئيلې وو چـه پـه كومـه ورځ حـافظ صـاحب سورت ياسـين لـولى دَهغې نـه مخكښې ماته وايئى چه زه په هغه شپه په تراويح كښې شركت نه كوم ځكه چه دادَمړو سورت دې ځوك ئې چه اورى مړه كيږى به. هغه په انتظار كښې وو خوچاورتـه اونـه وئيـل او سورت ياسين اولوستلې شو يوځوورځې پس هغه پوښتنه اوكړه چه تر دغـه وختـه سورت ياسين نه دې راغلې نوچاورته اووئيل چه هغه خو تيرشوې دې. هغـه اووئيـل چـه زه پـه هغه شپه حاضروم او ما اوريدلې دې. جواب ورکونکى اووئيل اوته حاضر وې اوتااوريدلې هم دې. په دغه سړى دَ ويرې دومره اثر اوشو چه په رپيدو شو او په رپ رپ كښې مړشو.

**[١٦٢٢] دمسلمان د لاش ښكلولو جواز**

١٦٢٢ —()[٨] ١ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: ٢ «إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَبَّلَ عُثْمَانَ بْنَ مَظْعُونٍ وَهُوَ مَيِّتٌ ٣ وَهُوَ يَبْكِي حَتَّى سَالَ دُمُوعُ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَلَى وَجْهِ عُثْمَانَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ١ بي بي عايشه رضي الله عنها فرمايي ٢ چې رسول الله ﷺ د عثمان ابن مظعون د وفات څخه روسته هغه ښكل كړو ٣ او په هغه يې وژړل تر دي چې د حضور ﷺ اُښكي مباركي

() اخرجه ابوداود كتاب الجنائز /باب فى تقبيل الميت (رقم-٣١٦٣) كتاب الجنائز عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما جاء فى تقبيل الميت(رقم-٩٨٩) وابن ماجة كتاب الجنائز / باب ما جاء فى تقبيل الميت(رقم-١٤٥٦)

د عثمان رضي الله عنه په مخ (څخيدلوسره) وبهيدلې. (ترمذي ابوداؤد ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① قَبَّلَ: ښکل ئې کړو، ② سَالَ: وبهيدلې.

**تسهيلات: قوله: قَبَّلَ عُثْمَانَ بْنَ مَظْعُونٍ:**

**د عثمان بن مظعون رضی الله عنه په مرګ د نبی کريم ﷺ ژړا:** - دې صحابی رضي الله عنه سره دَ رسول الله ﷺ ډير محبت وو. حضورپاك دې دَ خپل رور په نوم باندې ياد کړې دې. مهاجرينو کښې دا اولنې انسان دې دَ چاچه په مدينه منوره کښې انتقال شوې وو او دې اولنې انسان دې دَ چا په وجه چه دَ جنت البقيع بنياد کيخودې شو. دَ ټولو نه اول په بقيع کښې هم دې دفن کړې شو او حضورپاك يو لوئی کاڼې راوړو دَ ده قبر سره ئی خښ کړو او وئی فرمائيل چه په دې سره به زما دَ رور قبر معلوم وی او زما اهل عيال به ده سره نيزدې دفن کيږی.

**د حديث فوائد:** - ① په يومړی باندې ژړل او اوښکې تويول جائز دی. چغې صورې ويناګانې اوجزع فزع کول جائز نه دی.

② مسلمان مړې ښکلول جائز دی په عام توګه په تندی باندې ښکلولې شی.

③ دَدې حديث نه دا خبره هم ثابته شوه چه دَخپل خاندان خلق نيزدې نيزدې خښول جائز دی. ④ دَ قبر معلومولو په غرض باندې په هغې باندې څه نښه کيخودل جائز دی.

**[١٦٢٤] دابوبکر صديق رضي الله عنه د رسول الله ﷺ بدن مبارک ښکلول**

١٦٢٣-()[٩] [١] وَعَنْهَا قَالَتْ: [٢] إِنَّ أَبَا بَكْرٍ قَبَّلَ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَهُوَ مَيِّتٌ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [١] بي بي عايشه رضي الله عنها فرمايي [٢] چې ابو بکر صديق رضي الله عنه د رسول الله ﷺ د وفات څخه روسته د حضور ﷺ بدن مبارک ښکل کړو. (ترمذي ابن ماجه)

**تسهيلات:**

**قوله: إِنَّ أَبَا بَكْرٍ قَبَّلَ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَهُوَ مَيِّتٌ**

**د مړی څخه د بوسې اخستلو جواز:** - د بوسې اخستلو والادويم روايت ئې متصل ذکر کړو چې حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه حضرت نبی کريم ﷺ څخه بوسه واخسته چې کله نبی کريم ﷺ ددې فانی دنيا څخه رحلت اوفرمائيلو. امام احمد رحمه الله يو روايت نقل کړې دې چې حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه نبی کريم ﷺ ته د سر دطرفه راغلو او تندی مبارك نه ئې تړې بوسه واخستله. بيا ئې اوفرمائيل چې وانبياه. بيا ئې خپل سر پورته کړو او خپل مخ ئې ټيټ

[1] اخرجه البخاری فی كتاب الجنائز/باب الدخول على الميت بعد الموت إذا أدرج فی أكفانه (رقم-١٢٤٢) والترمذی كتاب الجنائز عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما جاء فی تقبيل الميت(رقم-٩٨٩) والنسائی كتاب الجنائز/تقبيل الميت(رقم-١٨٤٠) وابن ماجة كتاب الجنائز / باب ما جاء فی تقبيل الميت(رقم-١٤٥٧)

کړو. بیا ئې د نبی کریم ﷺ د مخ مبارك څخه بوسه واخستله او وې فرمائیل چې واصفیاه. بیا حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه خپل سر پورته کړو او مخ ئې ټیټ کړو او تندی مبارك څخه ئې بوسه واخستله او وې فرمائیل واخلیلاه. داشان ابن عمر رضی الله عنه نه روایت دې چې حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه د نبی کریم ﷺ په تندی مبارك باندې خپله خله کیخودله او بوسه ئې اخستلې. او ورسره ئې ژړل هم او فرمائیل به ئې چې زما سور پلار دې ستاسو څخه قربان وی ، ستا حیات او وفات قابل رشك دی. ( مرقاة ج۴ ص۱۷).

ددې څخه معلومه شوه چې مړی څخه بوسه اخستل جائز دی. لیکن ښځه د خاوند څخه او خاوند د ښځې څخه د مرګ څخه پس بوسه نشی اخستې.

**[١٦٢٥] په کفن دفن کښې د تادي کولو حکم**

١٦٢٥ـ( )[١٠] [١] وَعَنْ حُصَيْنِ بْنِ وَحْوَحٍ: [٢] «أَنَّ طَلْحَةَ بْنَ الْبَرَاءِ مَرِضَ فَأَتَاهُ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَعُودُهُ [٣] فَقَالَ: إِنِّي لَا أَرَى طَلْحَةَ إِلَّا قَدْ حَدَثَ بِهِ الْمَوْتُ [٤] فَآذِنُونِي بِهِ وَعَجِّلُوا، [٥] فَإِنَّهُ لَا يَنْبَغِي لِجِيفَةِ مُسْلِمٍ أَنْ تُحْبَسَ بَيْنَ ظَهْرَانَيْ أَهْلِهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] حصین رضی الله عنه ابن وحوح فرمایي [٢] چې طلحه رضی الله عنه ابن براء مریض شو نو نبی کریم ﷺ د هغه پوښتنې ته تشریف راوړو [٣] او (د هغه اهل بیت ته) یې وفرمایل چې زما خیال دي چه د طلحه رضی الله عنه مرګ راغلي دي (یعني په هغه د مرګ علامت ظاهر شوي دي) [٤] نو کله چې وفات شي نو ما (سمدستي) خبر کړئ [چې د جنازې مونځ ته راورسیږم] او تاسو په تجهیز او تکفین او تدفین کښې جلتي کوئ [٥] ځکه چې د مسلمان مړي دبدن د پاره مناسب نه دي چې هغه د خپل اهل په مینځ کښې زیات ایسار کړې شي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ① حَدَثَ: أَيْ: ظَهَرَ: یعنی دمرګ علامات ئې ښکاره شوی دی. ② عَجِّلُوا: جلتی کوئ (په غسل اوکفن دفن کښې). ③ لِجِيفَةِ: أَيْ: جُثَّةُ: د مړی بدن، ④ تُحْبَسَ: أَيْ: تُقَامُ وَتُوقَفُ: ایسار کړې شی. ⑤ بَيْنَ ظَهْرَانَيْ أَهْلِهِ: أَيْ: بَيْنَ أَهْلِهِ: په خپل اهل وعیال کښې.

**د راوي مختصر تعارف:-** نوم حصین دَ پلار نوم وحوح. دا انصاری صاحبی رضی الله عنه دي دَهغه روایتونو په مدینه منور کښې ډیر مشهور دی. په جنګ قادسیه کښې شهید کړې شو وئیلی شی چه هغه ته ډیرزیات تکلیفونه رسولوسره شهید کړې شو.

**تسهیلات: قوله: فَآذِنُونِي بِهِ وَعَجِّلُوا:**

**په تدفین کښې د تاخیر دممانعت وجه:-** کله چې انسان مړشی اوپه ده باندې ډیر وخت تیرشی نو دده نعش بدبوئې داره کیږی کوم چې د خلقو د نفرت سبب ګرځی اوانسان الله تعالی په ژوندونی اومړونی قابل عزت پیدا کړې دې. ددې وجې نبی علیه السلام په تدفین کښې د تاخیر څخه منع اوفرمائیله.

( ) اخرجه ابوداود فی کتاب الجنائز، باب التعجیل بالجنازة وکراهیة حبسها(رقم-٣١٥٩)

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [١٦٢٦] قریب المرګ ته د یوو کلمو تلقین کول

١٦٢٦ –(١)[١] ١ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ جَعْفَرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ٢ "«لَقِّنُوا مَوْتَاكُمْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ الْحَلِيمُ الْكَرِيمُ، ٣ سُبْحَانَ اللهِ رَبِّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ، ٤ الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ. ٥ قَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ، كَيْفَ لِلْأَحْيَاءِ؟ ٦ قَالَ: أَجْوَدُ وَأَجْوَدُ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ١ عبدالله ابن جعفر رضي الله عنه روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ تاسو خلق قريب المرګ ته د دې کلمي تلقين کوئ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ الْحَلِيمُ الْكَرِيمُ سُبْحَانَ اللهِ رَبِّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ (ترجمه) د الله جل جلاله څخه ماسوا بل معبود نشته چې بردبار او بزرګ دي ٣ پاک دي الله جل جلاله چې د عرش عظيم مالک دي ٤ ټول تعريفونه الله جل جلاله لره دي چې د دواړو جهانونو پروردګار دي، ٥ صحابه ؤ عرض وکړو چې يا رسول الله ﷺ تندرستو ته دا کلمه ښودل څرنګه دي؟ ٦ حضور ﷺ وفرمايل چې بهتر او ډير بهتر دي. (ابن ماجه)

**حل اللغات:** – ① لَقِّنُوا: أَيْ: ذَكِّرُوا: تلقين اوکړئ، يعنی قريب المرګ ته کلمه ورياده کړئ. ② أَجْوَدُ وَأَجْوَدُ: أَيْ: أَحْسَنُ: يعنی ډيرښه دي، (تکرار د مبالغې اوتاکيد دپاره دی).

**تسهیلات:**

**قوله:** سُبْحَانَ اللهِ رَبِّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ:

**عرش لره د عظيم په صفت د موصوف کولووجه:** – عرش عظيم ئې په دې وجه اووئيل چې دا د ټول مخلوقاتو نه لوی دې. اود ټول کائنات احاطه ئې کړې ده. او ټول تعر يفونه هغه ذات دپاره دی کوم چې په حيات او مرګ ورکولو باندې قادر دې. هغه داسې رب دې چې د ټول جهان مربی او خالق دې. صحابه کرامو عرض اوکړو چې دا کلمات د ژوندو دپاره څنګه دی ، نو حضرت نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې ډير ښه څيز دې.

**قوله:** لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ الْحَلِيمُ الْكَرِيمُ

**د مرګ په وخت کښې لاندېنی کلمات وئيل:** – يعنی ښهٔ نه ښه ، مکرر تاکيد او مبالغې دپاره دې. امام طيبی رحمه الله فرمائی چې تکرار استمداد دپاره دې. امام سيوطی ، ابن عساکر رحمه الله د حضرت علی رضي الله عنه روايت نقل کړې دې چې نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې کوم کس دا لاندې کلمات د مرګ په وخت کښې اووائي نو الله جل جلاله به ئې جنت ته داخل کړی. (لا اله الا الله الحليم الكريم) درې ځل (الحمد رب العالمين) درې ځل (تَبَارَكَ الَّذِي بِيَدِهِ الْمُلْكُ يُحْيِي وَيُمِيتُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ)

---

[١]) اخرجه ابن ماجة في كتاب الجنائز ، باب ما جاء في تلقين الميت لا إله إلا الله (رقم-١٤٤٦)

**[١٦٢٧] د روح قبض کولو په وخت کښې د مومن او کافر فرق**

١٦٢٧–()[١٣]١ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ٢ "«الْمَيِّتُ تَحْضُرُهُ الْمَلَائِكَةُ فَإِذَا كَانَ الرَّجُلُ صَالِحًا قَالُوا: ٣ اخْرُجِي حَمِيدَةً أَيَّتُهَا النَّفْسُ الطَّيِّبَةُ كَانَتْ فِي الْجَسَدِ الطَّيِّبِ، ٤ اخْرُجِي وَأَبْشِرِي بِرَوْحٍ وَرَيْحَانٍ ٥ وَرَبٍّ غَيْرِ غَضْبَانَ، ٦ فَلَا تَزَالُ يُقَالُ لَهَا: ذَلِكَ حَتَّى تَخْرُجَ ٧ ثُمَّ يُعْرَجُ بِهَا إِلَى السَّمَاءِ فَيُفْتَحُ لَهَا ٨ فَيُقَالُ: مَنْ هَذَا؟ فَيَقُولُونَ: فُلَانٌ. ٩ فَيُقَالُ: مَرْحَبًا بِالنَّفْسِ الطَّيِّبَةِ فِي الْجَسَدِ الطَّيِّبِ، ١٠ ادْخُلِي حَمِيدَةً، ١١ وَأَبْشِرِي بِرَوْحٍ وَرَيْحَانٍ، ١٢ وَرَبٍّ غَيْرِ غَضْبَانَ، ١٣ فَلَا تَزَالُ يُقَالُ لَهَا ذَلِكَ حَتَّى تَنْتَهِيَ إِلَى السَّمَاءِ الَّتِي فِيهَا اللهُ،

**ترجمه:** ١ ابوهريره رضي الله عنه روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ کوم سړي چې قريب المرګ وي نو هغه ته فرښتې راځي که هغه نيک او صالح وي نو (د هغه روح ته د رحمت) فرښتې وايي ٣ چې اې پاکه روحه چې په پاک بدن کښې وې په دې حال کښې (د بدن څخه) راووزه چې د الله جل جلاله او د مخلوق په نزد ستا تعريف شوي دي ٤ او تا ته دې زيرې وي د دايمي راحت او سکون، د جنت د پاک رزق ٥ او د الله جل جلاله سره د ملاقات چې (په تا) غضبناک نه دی ٦ د قريب المرګ مخې ته فرښتې بيابيا دا خبره کوي تر دې چې روح (په خوشحالي خوشحالي سره) بهر راووزي ٧ بيا فرښتې هغه د آسمان طرف ته وړي دآسمان دروازه دهغه دپاره (د فرښتو د ويلو سره يا د مخکې نه) خلاصه وي ٨ د آسمان دربان پوښتنه کوي چې دا سړي څوک دي؟ فرښتې ورته (د هغه نوم، نسب ښودلو سره) وائي چې دا د فلاني سړي روح دي ٩ نو ويل کيږي چې په دې پاک روح دې افرين وي چې په پاک بدن کښې وو ١٠ او (اې پاک روحه په آسمان کښې) داخل شه په داسې حال کښې چې ستا تعريف شوي دي ١١ او تا ته دې زيرې وي د راحت، د پاک رزق ١٢ او د پروردګار سره د ملاقات چې غضبناک نه دي، ١٣ د هغه روح سره برابر دا خبره کيږي تر دې چې هغه آسمان (يعني عرش) ته ورسي چيرته چې د الله رب العزت ذات (کما يليق بشانه) دي.

١ فَإِذَا كَانَ الرَّجُلُ السُّوءُ قَالَ: ٢ اخْرُجِي أَيَّتُهَا النَّفْسُ الْخَبِيثَةُ ٣ كَانَتْ فِي الْجَسَدِ الْخَبِيثِ، ٤ اخْرُجِي ذَمِيمَةً ٥ وَأَبْشِرِي بِحَمِيمٍ وَغَسَّاقٍ، ٦ وَآخَرَ مِنْ شَكْلِهِ أَزْوَاجٌ، ٧ فَمَا تَزَالُ يُقَالُ لَهَا ذَلِكَ حَتَّى تَخْرُجَ، ٨ ثُمَّ يُعْرَجُ إِلَى السَّمَاءِ فَيُفْتَحُ لَهَا ٩ فَيُقَالُ: مَنْ هَذَا؟ فَيُقَالُ: فُلَانٌ. ١٠ فَيُقَالُ: لَا مَرْحَبًا بِالنَّفْسِ الْخَبِيثَةِ كَانَتْ فِي الْجَسَدِ الْخَبِيثِ، ١١ ارْجِعِي ذَمِيمَةً فَإِنَّهَا لَا تُفْتَحُ لَكِ أَبْوَابُ السَّمَاءِ، ١٢ فَتُرْسَلُ مِنَ السَّمَاءِ ثُمَّ تَصِيرُ إِلَى الْقَبْرِ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ١ او که هغه خراب (يعني کافر) وي نو ملک الموت ورته وايي ٢ چې اې خبيث روحه ٣ چې په خبيث بدن کښې وې ٤ په داسې حال کښې د بدن څخه راووزه چې ستا

---

() اخرجه ابن ماجة فی کتاب الزهد/باب ذکر الموت والاستعداد له (رقم-٤٢٦٢)

بدي بيان شوي ده [٥] او دا خرابه خبره واوره چې ايشيدلي اوبه، نوونه (پيپ) [٦] او د دې څخه علاوه نور عذابونه ستا منتظر دي [٧] د دې بد بخت قريب المرگ مخې ته په وار وار دا اوويل كيږي تر دي چې د هغه روح (په ناخوښې) بهر راووزي [٨] بيا هغه د آسمان طرف ته وړل كيږي (چې د هغه ذلت او خواري په هغه ظاهر كړل شي) هر كله چې د هغه د پاره د آسمان دروازي كولاؤ كړل شي [٩] د دربانانو د طرف څخه پوښتنه كيږي چې دا سړي څوک دي؟ جواب وركول شي چې فلاني سړي دي [١٠] نو ويل كيږي چې په دې خبيث روح دې لعنت وي چې په مردار جسم كښې وو[١١] او (اې خبيث روحه) واپس ولاړ شه په داسې حال كښې چې ستا بدي بيان شوي ده او ستا د پاره د آسمان دروازي نشي خلاصيدلي [١٢] نو هغه د آسمان څخه راويشتل كيږي نو واپس هغه د قبر طرف ته راځي. (ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① حَمِيدَةً: أَيْ: مَحْمُودَةً جَمِيلَةً: يعنى دَالله تعالى اودَهغه دَمخلوق په نيزخو محمود اوتعريف كړي شوي دي. ② رَوْحٍ: أَيْ: رَاحَةٍ: دَهميشه راحت اوسكون ته وائى. ③ رَيْحَانٍ: أَيْ: رِزْقٍ: دَ جنت صفا ستره رزق مراددي. ④ يُعْرَجُ: مجهوله صيغه ده، خيجولې شي، ⑤ مَرْحَبًا: په خير راغلې دې وى. ⑥ ذَمِيمَةً: أَيْ: مَذْمُومَةً: چه بدى ئې بيان شوې ده، ⑦ حَمِيمٍ: أَيْ: مَاءٍ حَارٍّ: ايشيدلې خوټكيدلې اوبه ⑧ غَسَّاقٍ: اى مِنْ صَدِيدِ أَهْلِ النَّارِ: د دوزخيانو وينې زوې، (پيپ او نوونه)، ⑨ شَكْلِهِ: أَيْ: مِثْلُ مَا ذُكِرَ: ددې په شان نور عذابونه، ⑩ فَتُرْسَلُ: أَيْ: تُرَدُّ: واپس كولې شى، ⑪ تَصِيرُ: أَيْ: تَرْجِعُ: واپس راځى.

**تسهيلات: قوله:** "إِلَى السَّمَاءِ" :معلومه شوه چه دَ جنت پوره نظام په آسمانونوكښې دې اوهم هلته عليين دې چرته چه دَمؤمنانو روحونه جمع كيږى. "رب غيرغضبان" يعنى دَداسې رب دَ ملاقات دې تاته زيرې وى چه په تاباندې به كله هم نه غضبناك كيږى.

**قوله:** فِيهَا اللَّهُ": يعنى په كوم آسمان كښې چه الله تعالى دې داكلمه دَمتشابهات نه ده په دې زمونږ ايمان دې. تفصيل كښې تلل منع دى. "اى مايليق بشأنه"

**د دوزخ نظام د زمكو لاندې:** - داسې معلوميږى چه دَدوزخ ټول نظام دَزمكولاندې دې. بعضې روايتونوكښې دَعرش پورې دَ روحونواړولو ذكرراغلې دې، بعضې كښې دَ قبرونوپورې دَ روحونو رسيدل ذكر دى. نوتطبيق دادې چه بعضې روحونه دَعرش پورې ځى بعضې قبرونوسره وى او عام په عليين كښې وى.

**[١٦٢٨] دَمؤمن اوكافر دَروح قبض كولوبيان**

١٦٢٨- (¹)[١٣] [١] وَعَنْهُ: "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [٢] «إِذَا خَرَجَتْ رُوحُ الْمُؤْمِنِ تَلَقَّاهَا مَلَكَانِ يُصْعِدَانِهَا. [٣] قَالَ حَمَّادٌ: فَذَكَرَ مِنْ طِيبِ رِيحِهَا وَذَكَرَ الْمِسْكَ. [٤] قَالَ: وَيَقُولُ أَهْلُ السَّمَاءِ: رُوحٌ طَيِّبَةٌ [٥] جَاءَتْ مِنْ قِبَلِ الْأَرْضِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْكِ [٦] وَعَلَى جَسَدٍ كُنْتِ تَعْمُرِينَهُ ; [٧] فَيُنْطَلَقُ بِهِ إِلَى رَبِّهِ ثُمَّ يَقُولُ:

(¹) اخرجه مسلم كتاب الجنة وصفة نعيمها واهلها/باب عرض مقعد الميت من الجنة أو النار عليه، وإثبات عذاب القبر والتعوذ منه(رقم-٧٥ - (٢٨٧٢)

٨ انْطَلِقُوا بِهِ إِلَى آخِرِ الْأَجَلِ.

**ترجمه:** ١ ابوهريره رضي الله عنه روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ هر کله چې د مومن روح د هغه د جسم څخه وځي نو دوه فرښتي هغه د آسمان طرفته وړي ٣ حماد (چې دا حديث د ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت کوي) وايي چې د دې څخه روسته حضور ﷺ يا ابوهريره رضي الله عنه د هغه روح د خوشبو او مشک ذکر اوکړو [يعنی چې د هغه روح څخه د مشک خوشبوي راځي دا الفاظ حماد څکه اوويل چې هغه ته هغه الفاظ بعينه ياد نه وو کوم چې هغه اوريدلي وو] ٤ بيا حضور ﷺ وفرمايل (هر کله چې فرښتي د مومن روح آخستلو سره آسمان ته رسي) نو آسمان والا فرشتي وايي چې دا پاک روح د زمکي څخه راغلي دي ٥ بيا هغه روح مخاطب کولو سره داسې وايي چې الله تعالیٰ جل جلاله دې په تا باندې خپل رحمت وکړي ٦ او ستا په بدن باندې چې تا آباد کړي وو ٧ بيا فرښتي هغه پروردګار ته (يعني عرش) ته وړي او پروردګار دا حکم فرمايي ٨ چې دي بوزئ او د قيامت تر ورځي پورې مهلت ورکړئ.

١ قَالَ: وَإِنَّ الْكَافِرَ إِذَا خَرَجَتْ رُوحُهُ ٢ قَالَ حَمَّادٌ: وَذَكَرَ مِنْ نَتْنِهَا، وَذَكَرَ لَعْنًا، ٣ وَيَقُولُ أَهْلُ السَّمَاءِ: رُوحٌ خَبِيثَةٌ جَاءَتْ مِنْ قِبَلِ الْأَرْضِ، ٤ فَيُقَالُ: انْطَلِقُوا بِهِ إِلَى آخِرِ الْأَجَلِ. ٥ قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ: فَرَدَّ رَسُولُ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - رَيْطَةً كَانَتْ عليه عَلَى أَنْفِهِ هَكَذَا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ١ حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې د دې څخه روسته حضور ﷺ وفرمايل چې هر کله چې د کافر روح د هغه د بدن څخه راوزي ٢ (حماد وايي) د دې څخه روسته حضور ﷺ يا ابوهريره رضي الله عنه د هغه د بدبويي او د لعنت ذکر اوکړو ٣ بيا حضور ﷺ وفرمايل چې هر کله د کافر روح آسمان ته رسي نو اهل آسمان وايي چې يو ناپاک روح د زمکي څخه راغلي دي ٤ حماد وايي چې ابوهريره يانبي عليه السلام د هغه دبدبويي اوپه هغه باندې دلعنت ذکر وکړو بيا (د هغه ناپاک روح په باره کښې) دا فيصله اورول کيږي چې دي بوزئ او د قيامت تر ورځي پورې مهلت ورکړئ ٥ حضرت ابوهريره رضي الله عنه فرمايي چې د دې څخه روسته حضور ﷺ د خپل څادر څاک [ګوت] (چې د حضور ﷺ په بدن مبارک وو) خپلې پوزې مبارکې باندې داسې کيښودلو (مسلم)

**حل اللغات:** - ① يُصْعِدَانِهَا: خيجوی دا روح، ② تُعَمِّرِينَهُ: چه تا آباد کړي وو(په نيک عمل سره)، ③ نَتْنِهَا: أي عَفَنِهَا: بدبوئی ته وائی، ④ الْأَجَل: نيته يعنی آخرت وخت (دلته دقيامت ورځ مراد ده)، ⑤ -رَيْطَةً: څادر)

**تسهيلات: قوله: تُعَمِّرِينَهُ:**

دَ آسماني فرښتودَطرف نه دَ مؤمن دَ روح اودَهغه دَبدن دَپاره دانيکه دعاده. تعمرينه مطلب هم دغه دي چه الله تعالی دې په تاباندې اوپه دغه بدن باندې رحمت نازل کړی کوم

بدن چه به تا آبادساتلو. تعمير اوعمارت دعمر نه دي د آبادولو په معنى كښي دي.[ الكاشف ٣/٣٥٩.]

**قوله**: نَتْنِهَا: نتن: كله كله په دنيا كښي د خبنولونه وړاندې دمؤمن اومنافق اوكافرد بدنونونه خوشبوئي اود بدبوئي دامناظر په كتلوكښي راځي. دكافرد روح دومره سخته بدبوئي ده چه په هغې سره د هغه بدن بدبوداركيږي.

**د كافر د روح په بدبوئي كښي دوه اقوال**:- ① مطلب داچه حضورپاك د كشف اومعجزه په توګه واقعي د كافر د روح دغه بدبوئي محسوس كړه دكوم چه حضورپاك بيان فرمائيلو.
② اوداهم ممكن دى چه دا صرف يوتشبيه اوتمثيل وى كه چرې هغه بدبوئي څوك محسوس كړي نود څادر ګوټ به په پوزه كيخودونه بغيرپاتې نه شي. لكه چه حضورپاك دهغه وخت د كيفيت طرف ته اشاره اوفرمائيله دواړه مفهوم كيدې شي.

**[١٦٢٩] دكافر او د مومن د روح حالات**

١٦٢٩-()[١٣] ① وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② " «إِذَا حُضِرَ الْمُؤْمِنُ أَتَتْ مَلَائِكَةُ الرَّحْمَةِ بِحَرِيرَةٍ بَيْضَاءَ ③ فَيَقُولُونَ: اخْرُجِي رَاضِيَةً مَرْضِيًّا عَنْكِ إِلَى رَوْحِ اللهِ وَرَيْحَانٍ، ④ وَرَبٍّ غَيْرِ غَضْبَانَ، ⑤ فَتَخْرُجُ كَأَطْيَبِ رِيحِ الْمِسْكِ ⑥ حَتَّى إِنَّهُ لَيُنَاوِلُهُ بَعْضُهُمْ بَعْضًا ⑦ حَتَّى يَأْتُوا بِهِ أَبْوَابَ السَّمَاءِ،

**ترجمه**: ① د ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② هر كله چې د مومن د مرګ وخت راشي نو د رحمت ملايكې سپينه ريښمينه كپړه اخستو سره راځي ③ او روح ته وايي چې ته د بدن څخه راووزه په داسې حال كښې چې ته د الله تعالى جل جلاله څخه راضي يې او الله تعالى جل جلاله ستا څخه راضي دى او د الله تعالى جل جلاله رحمت او مهرباني اوبهترين رزق ④ او د پروردګار طرف ته چې په تا غضبناک نه دي څه ⑤ نو روح د مشک د بهترينې خوشبو په شان (د بدن څخه) وزي ⑥ او فرښتې هغه (د تعظيم او تكريم په وجه) لاس په لاس اخستې خي ⑦ تر دې چې هغه د آسمان تر دروازې پورې راوړي

① فَيَقُولُونَ: مَا أَطْيَبَ هَذِهِ الرِّيحَ الَّتِي جَاءَتْكُمْ مِنَ الْأَرْضِ! ② فَيَأْتُونَ بِهِ أَرْوَاحَ الْمُؤْمِنِينَ. ③ فَلَهُمْ أَشَدُّ فَرَحًا بِهِ مِنْ أَحَدِكُمْ بِغَائِبِهِ ④ يَقْدُمُ عَلَيْهِ فَيَسْأَلُونَهُ ⑤ مَاذَا فَعَلَ فُلَانٌ؟ مَاذَا فَعَلَ فُلَانٌ؟ ⑥ فَيَقُولُونَ: دَعُوهُ فَإِنَّهُ كَانَ فِي غَمِّ الدُّنْيَا. ⑦ فَيَقُولُ: قَدْ مَاتَ أَمَا أَتَاكُمْ؟ ⑧ فَيَقُولُونَ: قَدْ ذُهِبَ بِهِ إِلَى أُمِّهِ الْهَاوِيَةِ،

**ترجمه**: ① هلته فرښتې په خپلو كښې وايي چې دا څومره ښه خوشبويي ده چې ستاسو سره د زمكې څخه راځي ② بيا يې د مومنانو د ارواحو سره (په عليين كښې يا په جنت كښې يا د جنت په دروازه يا د عرش څخه لاندې) چيرته چې د مومنانو روحونه د خپلو خپلو مرتبو او درجاتو مطابق وي) هلته راوړي ③ نو هغه روحونه د هغه روح راتلو سره دومره خوشحاليږي

[1] اخرجه النسائي في كتاب الجنائز/باب ما يلقى به المؤمن من الكرامة عند خروج نفسه (رقم-١٨٣٣)

څرنګه چې په تاسو کښې يو سړي هغه وخت خوشحاله وي هر کله چې هغه ته د هغه غايب راشي [يعنې په تاسو کښې چې څوک سړي د سفر څخه واپس راشي نو څرنګه چې د هغه اهل وعيال د هغه په راتلو خوشحاليږي دغه شان په آسمان کښې د مومنانو روحونه هغه وخت ډير خوشحاليږي څه وخت چې د يو مومن روح د زمکي څخه هغوئ ته راځي]٤ بيا ټول روحونه د هغه څخه پوښتنه کوي ٥ چې فلاني څه کوي او فلاني څه کوي [يعنې روحونه د هغه متعارفينو په باره کښې چې هغوئ په دنيا کښې پريښي وو نامه په نامه پوښتنه کوي چې د فلاني فلاني سړي څه حال دي؟]٦ خو بيا هغه روحونه په خپلو کښې وايي چې دا روح پريږدئ (اوس څيني هيڅ پوښتنه مه کوئ) ځکه چې دي د دنيا په غم او الم کښې وو [هر کله چې ده ته لږ سکون حاصل شي نو بيا تري نه پوښتنه اوکړئ روح چې سکون اومومي]٧ نو خپله وايي چې فلاني سړي (چي بدکاره وو او د هغه په باره کښې تاسو پوښتنه کوله) مړ شوي دي آيا هغه تاسو ته نه دي راغلي؟]٨ نو هغه روحونه هغه ته وايي چې هغه خو د هغه خاى طرف ته چې هغه د دوزخ اور دي ليږل شوي دي

**حل اللغات:-** ① يَقْدُمُ: چه دسفر نه راشي، ② غَمِّ الدُّنْيَا: ددنيا غمونه اوفکرونه، ③ أُمِّهِ الْهَاوِيَةِ: أي: النَّار: دهغه خاى: د دوزخ أوردي.

| |
|---|
| ١ وَإِنَّ الْكَافِرَ إِذَا احْتُضِرَ أَتَتْهُ مَلَائِكَةُ الْعَذَابِ بِمِسْحٍ ٢ فَيَقُولُونَ: اخْرُجِي سَاخِطَةً مَسْخُوطًا عَلَيْكِ إِلَى عَذَابِ اللهِ - عَزَّ وَجَلَّ - ٣ فَتَخْرُجُ كَأَنْتَنِ رِيحِ جِيفَةٍ ٤ حَتَّى يَأْتُونَ بِهِ إِلَى بَابِ الْأَرْضِ ٥ فَيَقُولُونَ: مَا أَنْتَنَ هَذِهِ الرِّيحَ؟ ٦ حَتَّى يَأْتُونَ بِهِ أَرْوَاحَ الْكُفَّارِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالنَّسَائِيُّ. |

**ترجمه:** ١ او هر کله چې د کافر مرګ راشي نو د عذاب فرښتې هغه ته د ټاټ فرش راوړلو سره راځي ٢ او د هغه روح ته وايي چې اي کافر روحه د الله عزوجل عذاب طرف ته را ووځه په داسې حال کښې چې الله تعالى جَلَّ جَلَالُهُ ستا څخه ناراضه دي او په تا د ناراضګي ګزار دي ٣ نو روح (د کافر د بدن څخه) د مرداري د بدبويه په شان راوځي ٤ بيا فرښتې يې د آسمان د دروازو طرف ته راوړي ٥ هلته فرښتې وايي چې دا بدبويي څومره خرابه ده ٦ بيا د دې څخه روسته هغه زمکي طرفته د کافرو د ارواح طرف ته أوړي. (احمد نسايي)

**حل اللغات:-** ③ بِمِسْحٍ: اى البِلَاسُ: ټاټ، ⑤ سَاخِطَةً: أَيْ: كَارِهَةً: چه نه دي خوښوو الله تعالى، ⑥ مَسْخُوطًا: أَيْ: مَغْضُوبًا: چه الله درنه خفه اوناراضه دي، ⑦ أَنْتَنِ: زيات بدبوداره، ⑧ جِيفَةٍ: مردار، سخاشوي،

**تسهيلات: قوله:** بِمِسْحٍ: دمؤمن روح په عزت سره په سپينه ريښمنه کپړه کښې کيخودوسره اوړی مګر دکافرروح دټاټ يا بوجې په شان يوه ګنده کپړه کښې راغونډولوسره اوړی.

**قوله:** إِلَى بَابِ الْأَرْضِ: اى الى باب سماء الارض يعنى دزمکې دروازه مرادنه ده بلکه دزمکې والا دآسمان دروازه مراد ده. لکه څنګه چه په ړومبى حديث کښې ذکردی چه ددنیا د

آسمانونو دَ دروازونه دکافر روح دَ سجين طرف ته راغورزولوسره واپس کولې شي.
[الکاشف: ۴/۳۶۱.]

**قوله: مَاذَا فَعَلَ فُلَانٌ؟:**

**د زړو مړو د تازه مړي څخه تپوس کول:-** يعنې په عالم برزخ کښې دَمؤمنانو روحونه دَدغه نوي راغلي روح نه دَ خپل پيژنګلو خلقوباره کښې پوښتنې کوي چه فلانکى څه اوکړل اوفلانکې څنګه وو يعنې که چرې نيك وي نوچه مونږ خوشحاله شو اوکه بدوي نوخفه شو.
[الکاشف: ۳/۳۶۰.]

**قوله: دَعْوهُ:**

**د مړي پريښودو مطلب:-** يعنې بعضې خلق وائي چه دَدغه نوي روح نه دومره زر سوالونه مه کوئي څکه چه دې تردغه وخته پورې ستړې ستومانه دې. دَدنيامصيبتونه اودَ زنکدن سختئي وغيره ئې زغملې راغلې دې. دَ لږ آرام کولونه پس پوښتنه کوئي. دَدې حديث نه په واضحه توګه معلوميږي چه دَعالم برزخ يومستقل ژوندون دې اوهلته روحونوته يوقسم جثه ورکولې شي اوهغه ژوندتيره وي.

**قوله: ذُهِبَ بِهِ:**

**په عليين کښې د روح نه موجوديدل:-** يعنې دا نوې راغلې روح دَ يوسړي باره کښې ښائي چه هغه خوزمانه وړاندې دَ دنيانه راغلې دې ولې هغه تاسوسره نه دې ملاؤشوې. په دې باندې سوال کونکي وائي افسوس هغه سړې دوزخ ته بوتللې شوې دې.

[١٦٣٠] دَمؤمن روح په آسانئي سره وتل

١٦٣٠-()[١٥] [١] وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ: [٢] «خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي جَنَازَةِ رَجُلٍ مِنَ الْأَنْصَارِ [٣] فَانْتَهَيْنَا إِلَى الْقَبْرِ [٤] وَلَمَّا يُلْحَدْ فَجَلَسَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَجَلَسْنَا حَوْلَهُ [٥] كَأَنَّ عَلَى رُءُوسِنَا الطَّيْرَ وَفِي يَدِهِ عُودٌ يَنْكُتُ بِهِ فِي الْأَرْضِ» [٦] فَرَفَعَ رَأْسَهُ فَقَالَ: اسْتَعِيذُوا بِاللهِ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلَاثًا،

**ترجمه:** [١] براء ﷺ بن عازب فرمايي [٢] چې (يو ځل) مونږ د رسول الله ﷺ سره د يو انصاري سړي د جنازي سره لاړو [٣] مونږ قبر ته ورسيدو [٤] (د قبر نه تياريدو په وجه) اوس لا جنازه خاورو ته سپارل شوي نه وه رسول الله ﷺ يو ځاي تشريف فرما شو مونږ هم د حضور ﷺ سره شا وخوا کينا ستو [٥] لکه چې زمونږ په سرونو مارغان دي (يعني مونږ بالکل خاموش سرونه ښکته کړي کينا ستلو) د حضور ﷺ په لاس کښې يو لرګي وو چې په هغې سره يې زمکه ګروله (څرنګه چې يو سړي د انتهايي فکر په حالت کښې وي) [٦] بيا

(١) اخرجه ابوداود فى كتاب السنة/باب فى المسألة فى القبر وعذاب القبر(رقم-٤٧٥٣) واحمد فى المسند ٤/ ٢٨٧

حضور ﷺ خپل سر مبارک اوچت کړو او مونږ مخاطب کولو سره يي وفرمايل چې د قبر د عذاب څخه د الله ﷻ پناه غواړئ حضور ﷺ دا دوه يا دري خله وفرمايل.

**حل اللغات:** - ① لَمَّا يُلْحَدْ: لحد يعني قبر لاتيارنه وو، ② عُودٌ: لرګی او څوکې ته عودوائی. ③ يَنْكُتُ: په لرګی باندې زمکه ګرولوته وائی.

[١] ثُمَّ قَالَ: إِنَّ الْعَبْدَ الْمُؤْمِنَ إِذَا كَانَ فِي انْقِطَاعٍ مِنَ الدُّنْيَا [٢] وَإِقْبَالٍ مِنَ الْآخِرَةِ نَزَلَ إِلَيْهِ مَلَائِكَةٌ مِنَ السَّمَاءِ، [٣] بِيضُ الْوُجُوهِ، كَأَنَّ وُجُوهَهُمُ الشَّمْسُ، [٤] مَعَهُمْ كَفَنٌ مِنْ أَكْفَانِ الْجَنَّةِ [٥] وَحَنُوطٌ مِنْ حَنُوطِ الْجَنَّةِ [٦] حَتَّى يَجْلِسُوا مِنْهُ مَدَّ الْبَصَرِ، [٧] ثُمَّ يَجِيءُ مَلَكُ الْمَوْتِ - عَلَيْهِ السَّلَامُ - [٨] حَتَّى يَجْلِسَ عِنْدَ رَأْسِهِ فَيَقُولُ: [٩] أَيَّتُهَا النَّفْسُ الطَّيِّبَةُ اخْرُجِي إِلَى مَغْفِرَةٍ مِنَ اللَّهِ. [١٠] قَالَ: فَتَخْرُجُ تَسِيلُ كَمَا تَسِيلُ الْقَطْرَةُ مِنَ السِّقَاءِ، [١١] فَيَأْخُذُهَا فَإِذَا أَخَذَهَا لَمْ يَدَعُوهَا فِي يَدِهِ طَرْفَةَ عَيْنٍ [١٢] حَتَّى يَأْخُذُوهَا فَيَجْعَلُوهَا فِي ذَلِكَ الْكَفَنِ، وَفِي ذَلِكَ الْحَنُوطِ، [١٣] وَيَخْرُجُ مِنْهَا كَأَطْيَبِ نَفْحَةِ مِسْكٍ وُجِدَتْ عَلَى وَجْهِ الْأَرْضِ،

**ترجمه:** [١] بيا يي وفرمايل هر کله چه مومن بنده د دنيا حخه خپل تعلق ختمونکي وي [٢] او د آخرت طرف ته متوجه کيږي (يعني مرګ ته نژدي وي) نو هغه ته د آسمان څخه فرښتي راخکته کيږي [٣] ډير روښانه مخ والا (چي د هغوئ د مخ رڼا داسې وي) لکه چې د هغوئ مخونه لکه نمر دي [٤] دهغوئ سره د جنت (د ريښمني کپړي) کفن وي [٥] او د جنت خوشبو (يعني د مشک وعنبر وغيره په شان خوشبويي) وي [٦] او هغوی (د کمال ادب په سبب او د روح وتلو په انتظار کښې ) د هغه مخې ته دومره لرې پورې چې د تر هغې پورې د هغه نظر رسيدي شی کيني [٧] بيا ملک الموت علیہ السلام راځي [٨] او د هغه سر ته نژدي کيناستو سره ورته وايي چې [٩] اي پاک روحه د الله بزرګ وبرتر د طرف نه د مغفرت او بخشش او د هغه د رضا طرف ته د رسيدو د پاره د بدن څخه راووځه [١٠] حضور ﷺ فرمايي چې د دې اوريدو سره د مومن بنده روح د هغه د بدن څخه داسې (په آساني او سهولت سره) راوزي څرنګه چې د مشک څخه د اوبو قطره رابهيږي [١١] نو ملک الموت هغه واخلي بيا نوري فرښتي هغه روح د ملک الموت علیہ السلام د لاس څخه د ډير شوق په بنا سمدستي په خپل لاس کښې واخلي [١٢] او هغه په کفن کښې او په هغه خوشبوي کښې (چې هغوئ د ځان سره راوړي وه) يې کيږدي [١٣] او د هغه روح څخه هغه بهترينه خوشبوي وځي چې د زمکي په مخ (د زمکې د پيدا کيدو څخه د هغه تر فنا کيدو پورې) د پيدا کيدونکې مشک د بهتريني خوشبو په شان وي.

[١] قَالَ: فَيَصْعَدُونَ بِهَا فَلَا يَمُرُّونَ يَعْنِي بِهَا عَلَى مَلَأٍ مِنَ الْمَلَائِكَةِ إِلَّا قَالُوا: [٢] مَا هَذَا الرُّوحُ الطَّيِّبُ؟ [٣] يَقُولُونَ: فُلَانُ ابْنُ فُلَانٍ بِأَحْسَنِ أَسْمَائِهِ الَّتِي كَانُوا يُسَمُّونَهُ بِهَا فِي الدُّنْيَا، [٤] حَتَّى يَنْتَهُوا بِهَا إِلَى السَّمَاءِ الدُّنْيَا، [٥] فَيَسْتَفْتِحُونَ لَهُ فَيُفْتَحُ لَهُمْ [٦] فَيُشَيِّعُهُ مِنْ كُلِّ سَمَاءٍ مُقَرَّبُوهَا إِلَى السَّمَاءِ الَّتِي تَلِيهَا، [٧] حَتَّى يُنْتَهَى بِهِ إِلَى السَّمَاءِ السَّابِعَةِ فَيَقُولُ اللَّهُ - عَزَّ وَجَلَّ -: [٨] اكْتُبُوا كِتَابَ عَبْدِي فِي عِلِّيِّينَ، وَأَعِيدُوهُ إِلَى الْأَرْضِ; [٩] فَإِنِّي مِنْهَا خَلَقْتُهُمْ وَفِيهَا أُعِيدُهُمْ، [١٠] وَمِنْهَا أُخْرِجُهُمْ تَارَةً أُخْرَى.

**ترجمه:** [١] حضور ﷺ فرمايي چې بيا هغه فرښتي (هغه روح آخستو سره آسمان طرف ته خي) او چه د فرشتو د يو جماعت سره نزدي تيريږي نو هغه جماعت تري نه پوښتنه كوي [٢] چې دا پاك روح د چا دي؟ [٣] نو هغه فرښتي چې هغه روح وړي وايي چې دا د فلاني سړي د فلاني خوى (يعني د هغه روح) دي او هغه فرښتي د هغه بهترين نوم او لقب (او د هغه اوصاف) ښايي چې د هغې په ذريعه اهل دنيا د هغه ذكر كوي [٤] (دغه شان سوال جواب كيږي) تر دي چې هغه فرښتي ددي روح سره د دنيا آسمان (يعنى اولنى آسمان) ته ورسي [٥] او د آسمان د دروازې د كولاؤلو مطالبه كوى نو د هغوى د پاره خلاصيږي (او د غه رنګه د هر آسمان دروازه د هغه د پاره خلاصوى) [٦] او د هر آسمان مقربي فرشتي تر دويم آسمان پورى د هغه سره خي [٧] تر دي چې تراووم آسمانه پورى (په دغه شان اعزاز او اكرام سره) رسول كيږى نو الله تعالى جل جلاله (فرشتو ته) فرمايي چه [٨] د دې بنده اعمال نامه په عليين كې وليكئ او دا روح د زمكي طرف ته (يعني د هغه په بدن كښې چې په زمكه كې دفن دي) واپس يوسئ (چي دا خپل بدن ته رسيدو سره د قبر د سوال او جواب د پاره تيار وي) [٩] (الله جل جلاله فرمايي چه) بيشكه ما د زمكي څخه جسمونه پيدا كړي دي او زمكي ته به د دوي اجسام او ارواح واپس ليږم [١٠] او بيا د زمكي څخه به يي دوباره راوباسم

[١] قَالَ: فَتُعَادُ رُوحُهُ فِي جَسَدِهِ فَيَأْتِيهِ مَلَكَانِ [٢] فَيُجْلِسَانِهِ فَيَقُولَانِ لَهُ: مَنْ رَبُّكَ؟ فَيَقُولُ: رَبِّيَ اللَّهُ. [٣] فَيَقُولَانِ لَهُ: مَا دِينُكَ؟ فَيَقُولُ: دِينِيَ الْإِسْلَامُ [٤] فَيَقُولَانِ لَهُ. مَا هَذَا الرَّجُلُ الَّذِي بُعِثَ فِيكُمْ؟ [٥] فَيَقُولُ: هُوَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -. [٦] فَيَقُولَانِ لَهُ: وَمَا عِلْمُكَ؟ فَيَقُولُ: قَرَأْتُ كِتَابَ اللَّهِ فَآمَنْتُ بِهِ وَصَدَّقْتُ، [٧] فَيُنَادِي مُنَادٍ مِنَ السَّمَاءِ أَنْ صَدَقَ عَبْدِي، [٨] فَأَفْرِشُوهُ مِنَ الْجَنَّةِ، [٩] وَأَلْبِسُوهُ مِنَ الْجَنَّةِ، [١٠] وَافْتَحُوا لَهُ بَابًا إِلَى الْجَنَّةِ [١١] قَالَ: فَيَأْتِيهِ مِنْ رَوْحِهَا وَطِيبِهَا [١٢] فَيُفْسَحُ لَهُ فِي قَبْرِهِ مَدَّ بَصَرِهِ.

**ترجمه:** [١] حضور ﷺ وفرمايل چې د دې څخه روسته هغه روح خپل بدن ته رسول كيږى بيا هغه ته دوه فرښتي (يعني منكر او نكير) راځي [٢] چې هغه كينوي او پوښتني ځيني كوي چې ستا رب څوك دي؟ مومن بنده جواب وركوي چې زما رب الله جل جلاله دي [٣] بيا هغه پوښتنه وكړي چې ستا دين كوم يو دي؟ هغه جواب وركوي چې زما دين اسلام دي [٤] بيا هغه پوښتنه كوي چې دا (رسول الله ﷺ) څوك دي چې تاسو ته راليږل شوي وو؟ [٥] هغه جواب وركوي چې دا د الله تعالى جل جلاله رسول ﷺ دي [٦] بيا هغه پوښتنه كوي تا څرنګه وپيژندل چې دا د الله جل جلاله رسول دي؟ هغه جواب وركوي چې ما د الله جل جلاله كتاب ونيلې وو په هغه مې ايمان راوړي وو او په زړه سره مې رښتيني وګڼلو چې د هغې په وجه ماته د رسول الله ﷺ رسول كيدل معلوم شو [٧] بيا يو اعلان كونكي د آسمان څخه اعلان كوي (يعنى د الله تعالى جل جلاله د طرف څخه اعلان كوى) چې دا زما رښتني بنده دي [٨] د ده د پاره د جنت بستره خوره كړئ [٩] ده ته د جنت لباس ورواغوندئ [١٠] او دده د پاره د جنت

دروازه کولاو کړئ ⑪ حضور ﷺ وفرمايل چې [د هغه طرف ته د جنت دروازه کولاو کړل شي چې] د هغې څخه د جنت هوا او خوشبويي ورته راځي ⑫ بيا د هغه قبر د نظر تر حده پورې فراخ کړل شي.

① قَالَ: وَيَأْتِيهِ رَجُلٌ حَسَنُ الْوَجْهِ، ② حَسَنُ الثِّيَابِ طَيِّبُ الرِّيحِ. ③ فَيَقُولُ: أَبْشِرْ بِالَّذِي يَسُرُّكَ، ④ هَذَا يَوْمُكَ الَّذِي كُنْتَ تُوعَدُ ⑤ فَيَقُولُ لَهُ مَنْ أَنْتَ فَوَجْهُكَ الْوَجْهُ يَجِيءُ بِالْخَيْرِ، ⑥ فَيَقُولُ: أَنَا عَمَلُكَ الصَّالِحُ. ⑦ فَيَقُولُ: رَبِّ، أَقِمِ السَّاعَةَ، رَبِّ أَقِمِ السَّاعَةَ ⑧ حَتَّى أَرْجِعَ إِلَى أَهْلِي وَمَالِي.

**ترجمه:** ① حضور ﷺ وفرمايل چې د دې څخه روسته هغه ته يو خوبصورته سړي راځي ② چې ښې کپړې يې اغوستي وي او خوشبو يې لګولي وي ③ او هغه ته وايي چې تاته دې زيرې وی د هغه څيز چې تا خوشحالونکي دي [يعنی ستا د پاره هغه نعمتونه تيار دي چې نه يوي سترګې ليدلي دي نه يو غوږ آوريدلي دي] ④ نن هغه ورځ ده چې د هغې (په دنيا کښې) ستا سره وعده شوي ده ⑤ مومن بنده د هغه څخه پوښتنه کوي چې ته څوک يې ستا مخ په حسن وجمال کې کامل دي او تا خوخير راوړې دي او د هغې زيرئ اوروي ⑥ هغه سړي جواب ورکوي چې زه ستا نيک عمل يم [چې په دې شکل او صورت کښې راغلي يم] دي اوريدو سره مومن بنده وايي چې اي زما پروردګاره قيامت قايم کړې، اي زما ⑦ پروردګاره قيامت قايم کړې ⑧ چې زه د خپل اهل وعيال طرف ته لاړ شم.

① قَالَ: وَإِنَّ الْعَبْدَ الْكَافِرَ إِذَا كَانَ فِي انْقِطَاعٍ مِنَ الدُّنْيَا ② وَإِقْبَالٍ مِنَ الْآخِرَةِ ③ نَزَلَ إِلَيْهِ مِنَ السَّمَاءِ مَلَائِكَةٌ سُودُ الْوُجُوهِ، ④ مَعَهُمُ الْمُسُوحُ فَيَجْلِسُونَ مِنْهُ مَدَّ الْبَصَرِ، ⑤ ثُمَّ يَجِيءُ مَلَكُ الْمَوْتِ حَتَّى يَجْلِسَ عِنْدَ رَأْسِهِ ⑥ فَيَقُولُ: أَيَّتُهَا النَّفْسُ الْخَبِيثَةُ ⑦ اخْرُجِي إِلَى سَخَطٍ مِنَ اللَّهِ. ⑧ قَالَ: فَتَفَرَّقُ فِي جَسَدِهِ فَيَنْتَزِعُهَا ⑨ كَمَا يُنْزَعُ السَّفُّودُ مِنَ الصُّوفِ الْمَبْلُولِ، ⑩ فَيَأْخُذُهَا فَإِذَا أَخَذَهَا لَمْ يَدَعُوهَا فِي يَدِهِ طَرْفَةَ عَيْنٍ ⑪ حَتَّى يَجْعَلُوهَا فِي تِلْكَ الْمُسُوحِ، ⑫ وَتَخْرُجَ مِنْهَا كَأَنْتَنِ رِيحِ جِيفَةٍ وُجِدَتْ عَلَى وَجْهِ الْأَرْضِ،

**ترجمه:** ① بيا حضور ﷺ وفرمايل او هرکله چې کافر بنده د دنيا څخه خپل تعلق ختموي ② او د آخرت طرف ته ځي (يعني د هغه د مرګ وخت نزدي شي) ③ نو هغه ته د آسمان څخه (د عذاب) تورمخي فرښتي راځي ④ د هغوئ سره ټاټ وي او هغه دومره لرې پورې کيني تر کومه پورې چې نظر رسيدي شی ⑤ بيا ملک الموت راځي او د هغه سر ته نزدي کيني ⑥ او ورته وايي چې اي خبيث روحه ⑦ د الله تعالی د طرف څخه په عذاب کښې (مبتلا کيدو د پاره د بدن څخهبهر) راووزه ⑧ حضور ﷺ وفرمايل چې (د کافر روح دي اوريدو سره) د هغه په بدن کښبخور شی [يعني د کافر روح چې د خداوندي عذاب آثار ويني نو د هغې د ويريدلو څخه د خپل بدن څخه د وتلو د پاره تيار نه وي بلکه په ټول بدن کښې پټ ګرځي په خلاف د مومن د روح چې هغه انوار الهي اود پروردګار دکرم آثار ليدوسره دبدن څخه په خوشحالي خوشحالي سره راوزي] نو ملک الموت د هغه روح په سختي او زور

سره بَهر اوباسي⁩[٩] لکه څه رنګه چې ازغی د لوندې ورې څخه را اوخکل کیږی [یعني خنګه چې دوړې څخه ازغه ډیر په سختي او مشکل سره راویستل کیږی او په سختي سره درا ویستلو په وجه د وړي څه اجزا هم د هغه ازغی سره لګیدلي بَهر راوزي نو دا حال وي لکه چې د روح سره د رګونو څه اجزا لګیدلي بَهر راغلي وي[١٠] هر کله چې ملک الموت هغه روح ونیسي نو نوري فرښتي هغه روح د ملک الموت څخه فوراً اخلی [١١] او په ټاټ کښېنغاړي [١٢] هغه روح څخه داسې د ورستې مرداري بدبوي څومره بدبو راوزي چې د زمکي په مخ مو ندل کیږی.

**حل اللغات:-** ④ حَنُوطٌ: مخلوط مشك اوعنبر خوشبوته حنوط وائی. ⑤ الیَقَاء: أي: القِرْبَة: داوبو مشکیزه

[١] فَيَصْعَدُونَ بِهَا فَلَا يَمُرُّونَ بِهَا عَلَى مَلَأٍ مِنَ الْمَلَائِكَةِ إِلَّا قَالُوا: [٢] مَا هَذَا الرُّوحُ الْخَبِيثُ؟ [٣] يَقُولُونَ: فُلَانُ ابْنُ فُلَانٍ بِأَقْبَحِ أَسْمَائِهِ الَّتِي كَانَ يُسَمَّى بِهَا فِي الدُّنْيَا، [٤] حَتَّى يُنْتَهَى بِهِ إِلَى السَّمَاءِ الدُّنْيَا فَيُسْتَفْتَحُ لَهُ، [٥] فَلَا يُفْتَحُ لَهُ ثُمَّ قَرَأَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٦] ﴿لَا تُفَتَّحُ لَهُمْ أَبْوَابُ السَّمَاءِ وَلَا يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ [٧] حَتَّى يَلِجَ الْجَمَلُ فِي سَمِّ الْخِيَاطِ﴾ [الأعراف: ٤٠] [٨] فَيَقُولُ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ: اكْتُبُوا كِتَابَهُ فِي سِجِّينٍ، فِي الْأَرْضِ السُّفْلَى، [٩] فَتُطْرَحُ رُوحُهُ طَرْحًا، [١٠] ثُمَّ قَرَأَ: ﴿وَمَنْ يُشْرِكْ بِاللَّهِ فَكَأَنَّمَا خَرَّ مِنَ السَّمَاءِ [١١] فَتَخْطَفُهُ الطَّيْرُ [١٢] أَوْ تَهْوِي بِهِ الرِّيحُ فِي مَكَانٍ سَحِيقٍ﴾ [الحج: ٣١]

**ترجمه:** [١] هغه فرښتي هغه روح آخستو سره د آسمان طرف ته وړي هر کله چې هغه فرښتي د یو جماعت سره تیریږي نو هغه جماعت پوښتنه ځینی کوي [٢] چې دا کوم ناپاک روح دي؟ [٣] هغه فرښتي چې دا روح وړي جواب ورکوي چې دا د فلاني سړي څوی دي (یعني د فلاني سړي روح دي) او د هغه بد نوم او خراب اوصافو سره د هغه ذکر کوي چې کوم نوم او اوصافو سره هغه په دنیا کښې بلل کیدو [٤] تر دي چې هغه دنیا آسمان ته ورسول شي او د هغه د پاره د آسمان د دروازی کولا ویدو د پاره ویل کیږی [٥] نو د هغه د پاره د آسمان دروازه نشي خلاصولې بیا حضور ﷺ (د استدلال په طور) دا آیت اوونیلو: [٦] لَا تُفَتَّحُ لَهُمْ أَبْوَابُ السَّمَاءِ وَلَا يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ حَتَّى يَلِجَ الْجَمَلُ فِي سَمِّ الْخِيَاطِ (ترجمه) د آسمانونو دروازی به د کافرانو د پاره نشی خلاصیدلی او نه به هغوی په جنت کې داخل شي [یعنی د هغوئ په جنت کې داخلیدل ناممکن دی] [٧] تر دی پورې چې اوښ د ستن په سوری کې داخل شي، [٨] (بیا حضور ﷺ وفرمایل) بیا الله تعالی ﷻ وفرمایي چې د دی روح اعمال نامه په سجین کې ولیکئ چې د ټولو څخه خکته زمکه ده [٩] نو د کافر روح به خکته وغورځول شي [١٠] بیا حضور ﷺ (د استدلال په طور) دا آیت اوونیلو: وَمَنْ يُشْرِكْ بِاللَّهِ فَكَأَنَّمَا خَرَّ مِنَ السَّمَاءِ فَتَخْطَفُهُ الطَّيْرُ أَوْ تَهْوِي بِهِ الرِّيحُ فِي مَكَانٍ سَحِيقٍ (ترجمه) کوم سړي چې د الله ﷻ سره شرک اوکړو هغه داسې دي لکه د آسمان څخه (یعني د ایمان او توحید د بلندي څخه د کفر او شرک په

کوهی (څاکی) کنبي وغورځيدلو[١١] نو مارغان هغه وشوکوی (يعني هلاک شي)[١٢] يا هوا هغه الوځولو سره لرې غورځوي ايعني د رحمت خداوندي څخه لرېکيږي) په دي کښېدي طرف ته اشاره ده چې هغه شيطان په ګمراهي کښېوغورځولو چې د هغه په وجه هغه قرب د مقام څخه لرې وغورځيدلو ]،

**حل اللغات:-** ⑨ الْمُسُوحُ: جَمْعُ الْمِسْحِ بِالْكَسْرِ، وَهُوَ اللِّبَاسُ الْخَشِنُ: ازغی داري ستغې او زيګه جامې، ⑥ سَخَطٍ: غضب او ناراضګی، ⑧ السَّفُودُ: أَيِ: الشَّوْكُ أَوِ الْحَدِيدُ: ازغی، ستنې، ⑨ الْمَبْلُولِ: د اسم مفعول صيغه ده، لوند کړې شوې، ⑩ يَلِجَ: أَيْ: يَدْخُلَ: ننوځي، ⑪ سَمِّ: أَيْ: خَرْقَةُ وَثَقْبَةُ: د ستنې سوره، ⑫ سمومها: دوزخ ګرمې هوا ته سموم وائی. ⑬ الْخِيَاطِ: اي الْإِبْرَةُ: ستن (کوم باندې چه کپړې ګنډلې شي) ⑬ سِجِّينٍ: هُوَ مَوْضِعٌ فِيهِ كِتَابُ الْفُجَّارِ مِنْ قَعْرِ النَّارِ: هغه ځاۍ چرته چه د فاسقانو فاجرانو عمل نامې پرتې دی يعني دجهنم په بيخ کښې. ⑮ طَرْحًا: أَيْ: رَمْيًا شَدِيدًا: ډيرپه سختۍ سره ورغورزولې شی، ⑯ تَخِرَّ: راوغورځيدلو، ⑰ فَتَخْطَفُهُ: اوتې شوکوی، ⑱ تَهْوِي: لرې تې غورځوی، ⑲ سَحِيقٍ: أَيْ: بَعِيدٌ أَوْ عَمِيقٌ: لرې په ژوره کنده کښې،

[١] فَتُعَادُ رُوحُهُ فِي جَسَدِهِ، وَيَأْتِيهِ مَلَكَانِ فَيُجْلِسَانِهِ [٢] فَيَقُولَانِ لَهُ: مَنْ رَبُّكَ؟ فَيَقُولُ: هَاهْ هَاهْ، لَا أَدْرِي. [٣] فَيَقُولَانِ لَهُ: مَا دِينُكَ؟ فَيَقُولُ: هَاهْ هَاهْ لَا أَدْرِي. [٤] فَيَقُولَانِ: مَا هَذَا الرَّجُلُ الَّذِي بُعِثَ فِيكُمْ؟ [٥] فَيَقُولُ: هَاهْ هَاهْ لَا أَدْرِي. [٦] فَيُنَادِي مُنَادٍ مِنَ السَّمَاءِ أَنْ كَذَبَ [٧] فَأَفْرِشُوهُ مِنَ النَّارِ [٨] وَافْتَحُوا لَهُ بَابًا إِلَى النَّارِ فَيَأْتِيهِ حَرُّهَا وَسَمُومُهَا، [٩] وَيُضَيَّقُ عَلَيْهِ قَبْرُهُ حَتَّى تَخْتَلِفَ فِيهِ أَضْلَاعُهُ،

**ترجمه:** [١] بيا حضور ﷺ وفرمايل چې د هغه روح د هغه بدن ته راځي او هغه ته دوه فرښتي راځي او هغه کينوي [٢] او پوښتنه ځيني کوي چې ستا رب څوک دي؟ هغه وايي هاه هاه ماته نه ده معلومه [٣] بيا هغه فرښتې د هغه څخه پوښتنه کوي چې ستا دين څه دې؟ هغه وايي هاه هاه ماته نه ده معلومه [٤] بيا هغه فرښتې د هغه څخه پوښتنه کوي چې دا سړي (يعني حضور ﷺ) چې تاسو ته راليږل شوي وو څوک دي؟ [٥] هغه وايي هاه هاه ماته نه ده معلومه [٦] (دي سوال وجواب څخه پس) يو اعلانچي د آسمان د طرف څخه اعلان کوي چې دي دروغجن دي [٧] نو د ده د پاره د اُور فرش خور کړئ [٨] او د ده د پاره د دوزخ دروازه کولاؤ کړئ (نو د هغه د پاره د دوزخ دروازه کولاؤ شي) چې د هغې څخه ورته د دوزخ ګرمي او د هغې ګرمه هوا راځي [٩] او د هغه د پاره د هغه قبر دومره تنګ کړل شي (چې دواړه غاړې يې يو خاي کيدو سره) دهغه پښتي ديخوا څخه اخوا ته او د اخوا څخه دي خوا ته راووزي.

**حل اللغات:-** ⑳ هَاهْ: هُوَ كَلَامُ الْمَبْهُوتِ الْمُتَحَيِّرِ فِي الْجَوَابِ: ډيري حيرانتيا په وخت ونيلې شی هاه هاه، ㉑ فَأَفْرِشُوهُ: خوره کړئ ده لره بستره (د اُور). ㉒ حَرُّهَا: مطلق ګرمئ ته وائی. ㉓ أَضْلَاعُهُ: أَيْ: عِظَامُ جَنْبَيْهِ: پښتې، ㉔ الْعُرُوقِ: رګونه،

[١] وَيَأْتِيهِ رَجُلٌ قَبِيحُ الْوَجْهِ، [٢] قَبِيحُ الثِّيَابِ، مُنْتِنُ الرِّيحِ، [٣] فَيَقُولُ: أَبْشِرْ بِالَّذِي يَسُوءُكَ، هَذَا يَوْمُكَ الَّذِي كُنْتَ تُوعَدُ. [٣] فَيَقُولُ: مَنْ أَنْتَ، فَوَجْهُكَ الْوَجْهُ يَجِيءُ بِالشَّرِّ؟ [٤] فَيَقُولُ: أَنَا عَمَلُكَ الْخَبِيثُ، [٥] فَيَقُولُ: رَبِّ لَا تُقِمِ السَّاعَةَ».

**ترجمه:** [١] بيا هغه ته يو بد صورته سړي راځي [٢] چې خرابې كپړې يې اغوستي وي او د هغه څخه بدبويي راځي [٣] او هغه هغه ته وايي چې ته خرابه خبره واوره چې تا په رنځ او غم كښې اخته كړي نن هغه ورځ ده چې د هغې تا سره (په دنيا كښې) وعده شوي وه [٣] هغه پوښتنه څېنې كوي ته څوک يې؟ ستا مخ خو ډير خراب دي چې دبد خبر راوړلو سره راغلي يې [٤] هغه سړي ورته وايي چې زه ستا خراب عمل يم [٥] (دى اوريدو سره) مړي وايي چې اې زما پروردګاره قيامت قايم مه كړې.

[١] وَفِي رِوَايَةٍ نَحْوُهُ، وَزَادَ: [٢] «إِذَا خَرَجَ رُوحُهُ صَلَّى عَلَيْهِ كُلُّ مَلَكٍ بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ، وَكُلُّ مَلَكٍ فِي السَّمَاءِ، [٣] وَفُتِحَتْ لَهُ أَبْوَابُ السَّمَاءِ لَيْسَ مِنْ أَهْلِ بَابٍ إِلَّا وَهُمْ يَدْعُونَ اللَّهَ [٤] أَنْ يُعْرَجَ بِرُوحِهِ مِنْ قِبَلِهِمْ، [٥] وَتُنْزَعُ نَفْسُهُ يَعْنِي الْكَافِرَ مَعَ الْعُرُوقِ [٦] فَيَلْعَنُهُ كُلُّ مَلَكٍ بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ، وَكُلُّ مَلَكٍ فِي السَّمَاءِ، [٧] وَتُغْلَقُ أَبْوَابُ السَّمَاءِ لَيْسَ مِنْ أَهْلِ بَابٍ إِلَّا وَهُمْ يَدْعُونَ اللَّهَ [٨] أَنْ لَا يُعْرَجَ رُوحُهُ مِنْ قِبَلِهِمْ». رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** [١] په يو بل روايت كښې هم داسې منقول دي خو په هغې كښې دا الفاظ هم دي [٢] چې كله د مومن روح (د هغه د بدن څخه) وزي نو هره هغه فرشته چې د آسمان او زمكې په منځ كښې ده او هره هغه فرشته چې په آسمان كښې ده په هغه رحمت ليږي [٣] د هغه د پاره آسمان دروازې خلاصيږي او د هر آسمان دروازې والا فرښتې الله تعالى ﷻ ته دا خواست كوي [٤] چې د مومن روح دې د هغوى د طرف څخه آسمان ته يوړل شي (چې هغوى د دې مومن د روح سره د تلو شرف حاصل كړي شي) [٥] او د كافر روح د رګونه سره ويستل كيږي [٦] نو د زمكې او آسمان په مينځ كښې ټولې فرښتې او هغه فرشتې چې (په اول آسمان كښې دي) په هغه لعنت ليږي [٧] د هغه د پاره د آسمان دروازې بندول كيږي او د اول آسمان ټولو دروازو والا الله تعالى ﷻ ته خواست كوي [٨] چې د دې كافر روح د هغوئ د طرف څخه ونه خيژول شي. (احمد)

**تسهيلات: قوله:** "تَسِيلُ":

**د مؤمن د روح وتلو آسانى:** - يعنى دَمؤمن روح دومره په آسانئى سره دَ بدن نه جدا كيږى لكه څنګه چه اوبه دَ مشكيزې په آسانئى سره راپريوځى.

**قوله:** هَاهْ هَاهْ لَا أَدْرِي:

**د مذكوره جملې قائل:** - داجمله كافروائى يعنى هائې افسوس زه نه پيژنم ماته هيڅ نه دى معلوم خپل خالق اومالك ئى چه په دنيا كښې نه دې پيژندلې نوپه قبر كښې به ئى څه اوپيژنى.

**د احاديثو په مينځ کښې تعارض:** - په نورو روايتونو کښې راغلى دى چه د مؤمن روح هم د وتلو په وخت کښې تکليف او مصيبت برداشت کوى. دلته خودلې شى چه هيڅ تکليف نه وى دا تعارض دې.

**د تعارض جواب:** - په دوارو روايتونو کښې تطبيق دادې چه دمؤمن د روح وتلو مرحله چه کله شروع کيږى هغه وخت هغه د جنت نعمتونو ته په کتلوسره ډير په آسانئى سره راوځى ليکن دآخرت دمشاهده نه وړاندې اودوتلودعمل شروع کيدونه وړاندې تکليف کيږى نودتکليف اوراحت وختونه مختلف دى لهذا څه تعارض نشته دې.

**قوله:** وَمَا عِلْمُكَ؟:

**د نيک مړى په د فرشتو په جواب کښې ثابت قدمى:** - يعنى تاته دکوم خائى نه معلومه شوه چه الله تعالى ستا رب دې اومحمد ﷺ د الله تعالى رسول دې. هغه جواب ورکوى چه داهرڅه د قرآن نه معلوم شوى دى. ددې حديث نه معلوميږى چه په قبر کښې به صرف درې سوالونه نه وى بلکه نور سوالونه هم کيدې شى لکه څنگه چه دلته سوال کړې شوې دې.

**قوله:** "مناد" يعنى دالله تعالى د طرف نه مقررشوې فربښته آواز ورکوى اود خوشحالئى اعلان کوى.

**قوله:** "إِلَى أَهْلِي وَمَالِي":

**د اهل په مراد کښې دوه اقوال:** - ① دې نه مراد خو په جنت کښې حاصليدونکې اهل وعيال دې په کوم کښې چه به حورې اوغلمان وى نودا اهل هم دې اومال هم دې. په دې صورت کښې که ما موصوله واخستې شى نومعنى به داشى چه کوم څه هلته زما دپاره مقرردى نومال مرادنه دې.

② دويم مطلب داهم کيدې شى چه داهلى نه مراد دخپل کور اهل اوعيال وى اود مالى نه مراد حورې اوغلمان وى.

**قوله:** فَتَفَرَّقُ فِي جَسَدِهِ:

**د دنياوى مشاغلو کثرت د زنکدن د سختئ سبب:** - يعنى د خوف اووېرې د وجې نه به دکافر روح په بدن کښې د پټيدو دپاره په بدنى رگونو کښې خوريدو سره ورخښيږى اوس چه څنگه خورشوې او ورخښ شوې دې هم دغه شان به راويستلې شى نوسخت تکليف به وى اودبدن غوښه به ذره ذره شى. بل د انسان روح چه په کوم کارکښې اينختې دې دهغه ځائى نه به راويستې شى نو ډبل ډبل تکليف به وى. د جائيدادنه به راوځى دوکانونه مکانونه ښځې بچى کارخانې تجارتونو اوجاگيرونو اومناصب نه به راوځى نوتکليف به کيږى. [الکاشف: ٣/٦٣-٣٦٤.]

**[١٦٢١] د ام بشر رضي الله عنها برزخ کښې خپل رشته دار ته سلام لیږل**

١٦٢١—( )[١٦][١] وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ كَعْبٍ، عَنْ أَبِيهِ قَالَ: [٢] «لَمَّا حَضَرَتْ كَعْبًا الْوَفَاةُ [٣] أَتَتْهُ أُمُّ بِشْرٍ بِنْتُ الْبَرَاءِ بْنِ مَعْرُورٍ فَقَالَتْ: [٤] يَا أَبَا عَبْدِ الرَّحْمَنِ، إِنْ لَقِيتَ فُلَانًا فَاقْرَأْ عَلَيْهِ مِنِّي السَّلَامَ [٥] فَقَالَ: غَفَرَ اللَّهُ لَكِ يَا أُمَّ بِشْرٍ، نَحْنُ أَشْغَلُ مِنْ ذَلِكَ. [٦] فَقَالَتْ: يَا أَبَا عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَمَا سَمِعْتَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: [٧] إِنَّ أَرْوَاحَ الْمُؤْمِنِينَ فِي طَيْرٍ خُضْرٍ تَعْلُقُ بِشَجَرِ الْجَنَّةِ؟ [٨] قَالَ: بَلَى. قَالَتْ: فَهُوَ ذَاكَ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي كِتَابِ الْبَعْثِ وَالنُّشُورِ.

**ترجمه:** [١] عبدالرحمن ابن کعب د خپل پلار بزرگوار (حضرت کعب رضي الله عنه) په باره کښې روايت کوي [٢] چې کوم وخت د حضرت کعب رضي الله عنه د مرګ وخت نزدې شو [٣] نو د براء ابن معرور لور بي بي أم بشر رضي الله عنها هغه ته راغله ورته يې اوويل [٤] چې اې ابو عبدالرحمن (دا د حضرت کعب رضي الله عنه کنيت دی) که ته د مرګ څخه روسته په عالم برزخ کښې د فلاني سړي سره يو ځاى شي نو هغه ته زما سلام وايه [٥] حضرت کعب رضي الله عنه جواب ورکړو چې اې أم بشر الله جل جلاله دې تا وبخښي هلته به زمونږ مشغوليت د دې څخه زيات وي [٦] بي بي أم بشر رضي الله عنها اوويل چې اې ابو عبدالرحمن آيا تا د رسول ﷺ څخه دا نه دي اوريدلي [٧] چې (په عالم برزخ کښې) به د مومنانو روحونه د شنو مارغانو په کاتب کې وي او د جنت د ونو ميوې به خوري [٨] حضرت کعب رضي الله عنه اوويل چې هو (ما دا ارشاد گرامي اوريدلي دی) نو أم بشر رضي الله عنها ورته وفرمايل چې دا هغه (فضل او کرامت) دی (چې د هغې سره ستاسو د يوځاى کيدلو أميد دی) (ابن ماجه بيهقي)

**حل اللغات:-** ① خُضْر: د أَخْضَرُ جمع ده، ددې مؤنث خَضْرَاء راځي، شين ، ② تَعْلُقُ: رازوړند به وى.

**تسهیلات: قوله: فَاقْرَأْ عَلَيْهِ مِنِّي السَّلَامَ:**

**قريب الموت ته د سلام رسولو پيغام حواله کول:-** عبدالرحمن بن کعب رحمه الله ډير جليل القدر تابعي دې دهغه دپلار نوم حضرت کعب رضي الله عنه دې چه يودشان والاصحابى دې. ام بشر رضي الله عنها د شان والاصحابيه ده چه د براء بن معرور رضي الله عنه جليل القدر صحابى لورته. ام بشر رضي الله عنها حضرت کعب رضي الله عنه ته د وفات په وخت خپل پلار براء بن معرور رضي الله عنه يا خپل خوئى بشر رضي الله عنه ته سلام ليګل غوښتل د چا انتقال چه شوي وو. د ام بشر رضي الله عنها خيال ووچه کعب رضي الله عنه اوس د دنيا نه سفرکونکې دې اوصحابى دې خلاصې يقيني دې لهذا دهغوى په لاس دخپل رشته دار په نوم دسلام پيغام روان کړو. ام بشر رضي الله عنها به نوم اخستې وى ليکن راوى د نوم په ځائى د فلانکى لفظ اداکړې دې.

[١] اخرجه ابن ماجه فى كتاب الجنائز . باب ما جاء فيما يقال عند المريض إذا حضر (رقم-١٤٤٩)

**قوله: ثُمَّ أَشْغَلُ:**

**مونږ به په خپلو څولو کښې بوخت یو:-** حضرت کعب رضي الله عنه جواب ورکړو چه الله تعالی دې تا اوبخښی مونږ به دَ سلام رسولو په فرصت کښې چرته یو اوږد سفردې حساب کتاب دې مونږ به په خپلو شغلونو کښې راګیریو خپل فکر کښې به اخته یو څوك به دَ چا تپوس کوی. ام بشر رضي الله عنها دَمؤمن دَ شان او جنت کښې دَهغوی دَ روحونو آرام او کامیابئی ذکر کولوسره اوفرمائیل او اشاره ئی اوکړه چه په تا به هیڅ پریشانی نه وی لهذا زما سلام اورسوه. ستاسو شان دَدې نه لوئی دې چه ته به پریشان ئی. دَدې حدیث نه هم معلومیږی چه په عالم برزخ کښې ژوندون یو لوئی حقیقت دې صرف دَخوب ژوندون نه دې لکه روح ته یو قسم جثه ورکولې شی په کوم سره چه هغه ژوند تیره وی او داهم ممکن دی چه روح ته بدن ملاویدونه بغیر په هغه کښې داسې حیثیت پیداکیږی چه دَهغې په ذریعه هغه دَ اقوال او افعال قابل جوړیږی.

**[١٦٢٢] په جنت کښې د مومنا نو روحونه**

١٦٢٢-(١٧)[١] وَعَنْهُ عَنْ أَبِيهِ: أَنَّهُ كَانَ يُحَدِّثُ: أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: [٢] «إِنَّمَا نَسَمَةُ الْمُؤْمِنِ طَيْرٌ تَعَلَّقُ فِي شَجَرِ الْجَنَّةِ [٣] حَتّٰى يُرْجِعَهُ اللّٰهُ فِي جَسَدِهِ يَوْمَ يَبْعَثُهُ». رَوَاهُ مَالِكٌ، وَالنَّسَائِيُّ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي كِتَابِ الْبَعْثِ وَالنُّشُورِ.

**ترجمه:** [١] عبدالرحمٰن د خپل پلار بزرګوار څخه نقل کوي چې هغه (یعني د عبدالرحمٰن پلار حضرت کعب رضي الله عنه) د رسول الله ﷺ دا ارشاد ګرامي بیانولو [٢] چې په عالم برزخ کښې د مومن روح د مارغه په قالب کښې د ونو میوې خوري [٣] تر دې پورې چې الله تعالی په هغه ورځ چې کله هغه پورته کوی (یعني د قیامت په ورځ) نو هغه به د هغه بدن ته واپس لیږي. (مالک، نساني، بیهقي)

**حل اللغات:-** ① نَسَمَةُ: قَالَ النَّوَوِيُّ: اَلنَّسَمَةُ تُطْلَقُ عَلَى ذَاتِ الْإِنْسَانِ جِسْمًا وَرُوحًا: نسمه انسانی بدن ته هم وائی او نسمه روح ته هم وائی.

**تسهیلات: قوله: إِنَّمَا نَسَمَةُ الْمُؤْمِنِ طَيْرٌ:**

**روحونه د شنو مارغانو په صورت کښې:-** دلته روح مراددې چه دَ خاوړو دَ بدن نه به دا روح اوځی شین مارغه اوپه شنه مرغئی کښې به ورشی لکه چه مرغئی دَدغه روحونو دَپاره تیار ظروف یعنی لوښی دی.

**اشکال:-** که څوك دا اشکال اوکړی چه انسان او بیا دَ مؤمن روح په یو ځناور او حیوان کښې

---

[١]) اخرجه النسائی فی کتاب الجنائز/باب أرواح المؤمنین (رقم-٢٠٧٣) وابن ماجة کتاب الزهد/باب ذکر القبر والبلی (رقم-٤٢٧١) ومالک فی الموطا کتاب الجنائز/باب جامع الجنائز (رقم-٤٩)

ورځي او سیرېږي ولې دا دَ ده تذلیل او تحقیر نه دې؟

**دَاشکال جوابونه:-** ① دا تعلق داسې نه دې چه روح انساني ځناروکښې تللوسره ورځنې شي اوځناور په ده باندې تصرف شروع کړي بلکه دا تعلق دَ هغه څيز په شان دې چه لوښي کښې پروت وي. دَ روح دَ پاره شنه مرغئي په منزله دَ ظرف ده لکه څنګه چه دَ سرو زرو دَ پاره بنکلې صدوقچه او ظروف وي دا نه ده چه صندوقچه په دې کښې څه تصرف کوي. یا څنګه چه په هیلي کاپټر کښې مخامخ دَ شیشې په محل کښې دوه درې کسان ناست په مزه الوزي دا هیلي کاپټر دَ انسان دَ عظمت او عزت دَپاره دې دا نه ده چه انسان په هیلي کاپټر کښې ورننوتلو اوحل شو. نودلته چه په حدیث کښې دَ کومې مرغئي ذکر دې ممکن ده چه دَدې نه یوقسم سورلي مرادوی څنګه چه هیلي کاپټر دې. دا دویم جواب شو.

② قاضي عیاض رحمه الله اوعلامه قرطبي رحمه الله فرمائي چه دا روحونه به په خپله شکل اختیاریدو سره مرغئي جوړه شي بله څه مرغئي نه ده. دَدې حضراتو په دې قول باندې زیربحث حدیث په واضحه توګه دلالت کوي چه انما نسمة المؤمن طير. دا روایت نسائي او موطامالك کښې هم نقل کړې شوې دې. دا حضرات دې روایت ته ترجیح ورکوي او په نورو روایتونوکښې تاویل کوي یا دَدې نه انکار کوي.

③ خوملاعلي قاري رحمه الله په دواړو روایتونوکښې داسې تطبیق کړې دې چه دَ مؤمنانو روحونه به په جنت کښې پخپله مرغئي وي اودَ شهیدانو روحونه شنومرغو کښې داخلیدو سره دَ جنت په نهرونواوباغونوکښې په ذریعه دَ سورلئي ګرځي راګرځي.

**دتناسخ دعقیدې دپاره استدلال:-** یوه ګمراه ډله دَ تناسخ قائل ده اوهغوی دَدې قسم احادیثونه په تناسخ باندې استدلال کړې دې. تناسخ دادې چه مثلاً په دنیاکښې روح خراب عمل اوکړو نوهغه ته به خراب بدن ملاویږي مثلاً سپې پیشو یاخر په بدن کښې به ورننوځي خلق به دغه ځناور وهي هم دَدغه دَدوی سزاده اوهم دغه دَدوی دوزخ دې. اوکه چرې روح ښه وی اوښه عمل ئې کړې وی نوداروح به دَ یوښه بادشاه په بدن کښې ورتللوسره داخلیږي اوهلته دَعیش او آرام ژوند تیره وی هم دغه دَده دَپاره جنت دې. نوآیادَ دغه خلقو داعقیده صحیح ده؟

**داستدلال تضعیف:-** دَ تناسخ عقیده باطل ده ځکه چه دَ دنیاخبره کوی چه دلته تناسخ کیږي هغه خلق دَ بیا راژوندي کیدو هډوقائل نه دي اودلته په حدیث کښې دَ آخرت بیان دې دَ کوم چه دَ دنیاتناسخ سره څه واسطه نشته دې. دَدې حدیث نه تناسخ والا څنګه استدلال کوي؟ بل په تناسخ کښې خو روح په یوجدا بدن کښې ځي ورننوځي لکه څنګه چه دَاهل تناسخ عقیده ده او په حشرکښې به روحونه په خپل مخکیني بدن کښې داخلیږي

نو دَهغوی استدلال دَحدیث نه صحیح نه دې. دامسئله دې نه وړاندې باب عذاب قبر کښې په تفصیل سره لیکلې شوې ده دلته هسې دوباره اولیکلې شوه.

**[١٦٢٢ ]مړی ته د سلام لیږلو ثبوت**

١٦٢٣–()[١٨][١]وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ قَالَ:[٢]دَخَلْتُ عَلَى جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ وَهُوَ يَمُوتُ[٣] فَقُلْتُ: اقْرَأْ عَلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ السَّلَامَ. رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:**[١] محمد ابن منکدر فرمايي[٢] چې زه د حضرت جابر ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم کله چې هغه مرګ ته نزدې وو[٣] ما هغه ته عرض اوکړو چې ته (عالم برزخ ته رسیدو سره) رسول الله ﷺ ته زما سلام عرض کړه. (ابن ماجه)

**تسهيلات: قوله** : اقْرَأْ: دَدې حدیث نه هم په واضحه توګه ثابتیږی چه مسلمان ته کوم ژوندون په برزخ کښې ملاویږی هغه یوحقیقت دې هلته ملاقاتونه کیږی.

**دَروح حقیقت:**– روحونو ته په یوخاص کیفیت سره ژوند ملاویږی په کوم سره چه هغه سلام کلام کولې شی داځه لرې خبره نه ده چه هغه په یوخاص جسم کښې مجسم کولو سره ژوندون ورکړی. مسلمانان دَ انسان په بدن کښې روح یوځان له حقیقت په توګه منی

**دروح مثال:**– اودَدې مثال داسې دې لکه یوفیکټری ده په هغې کښې پوره مشینری لګیدلې ده خو په دې کښې حرکت نشته دې کله چه په دې کښې پاور اوبجلی راپریخودې شی نو پوره کارخانه په حرکت کښې راځی روح هم په حقیقت کښې دَ انسانی بدن دکارخانې دَپاره په منزله دَ پاور اوبجلئی دې. دَ انسان بدن بالکل یوتیاره مشینری خو بې حس اوبې حرکت دې اوځنګه چه په دې کښې روح راغلو دا پوره مشینری په حرکت کښې راغله. هم دا یوآسان تعبیر دې په کوم سره چه دَ یوحدپورې مونږ دَ روح حقیقت پیژنو ګنی دَ قرآن پاك اعلان دې ﴿ قُلِ الرُّوحُ مِنْ أَمْرِ رَبِّي وَمَا أُوتِيتُمْ مِنَ الْعِلْمِ إِلَّا قَلِيلًا ﴾ [سورت بنی اسرائیل الایه:٨٥]

---

[١] اخرجه ابن ماجة في كتاب الجنائز ، باب ما جاء فيما يقال عند المريض إذا حضر (رقم-١٤٥٠)

# [۴] بَابُ غُسْلِ الْمَيِّتِ وَتَكْفِينِهِ

## دَ مړی لمبولو او کفن کولو بیان

**خلاصة الباب:-**

**فيه أحد عشر حديثاً مشتملة على ست مسائل:**

① كيفية الغسل: ١، ۴.
② ثياب الكفن وكيفيته: ٢، ۵، ٨، ١٠، ١١.
③ تحسين الكفن دون المغالاة: ٣، ۶.
④ تكفين المحرم: ۴.
⑤ بعث الميت يوم القيامة في ثيابه: ٧.
⑥ كفن الشهيد: ٩.

**دباب مقصد:** په دې باب کښې به هغه احاديث بيانولې شي دَ کومونه چه به دَمړی لمبولو او کفن کولو اودَهغې دَ آدابو علم حاصليږی. دَ ټولو علماء کرامو په نيز مړی ته غسل ورکول فرض کفايه ده اودادَمړی حق دې. که څه خلقو داحق اداکړو نودَ باقی دَذمه نه به ساقط شی. خوکه ټولو پريخودو نوټول په ټول به ګناهګاروی.

**مړی ته دغسل ورکولو سبب کښې دوه اقوال:-**

① مړی ته دَغسل ورکولو سبب څه دې؟ په دې کښې دوه قوله دی يو داچه دَ غسل ورکولو سبب دا دې چه دَ مرګ دَ وجې نه دَ مړی ټول بدن کښې نجاست خوريږی په دې وجه غسل ورکول ضروری شو دې دَپاره چه پوره بدن ئې پاک شی.

② په مرګ سره رګونه سست شی اواسترخاء سره اودس ماتيږی لهذا اودس کول ضروری دی خو په ژوند کښې په وجه دَحرج دَ اودس صرف څلور اندامونه وينځل کافی ګڼړلې شو اودَمرګ نه پس چونکه حرج نشته نوپه اصل باندې عمل اوکړې شو اواصل دادې چه دَ پوره بدن اودس اوشی اوهغه غسل دې. دَدې قول مطابق مړی ته غسل ورکول په وجه دَ نجاست نه دې اودَ اول قول مطابق غسل ورکول په وجه دَ نجاست دې.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[١٦٢٤] حضرت زينب رضي الله عنها ته دَغسل ورکولو واقعه**

١٦٢٣-(١)[١] ١ عَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ قَالَتْ: ٢ «دَخَلَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَحْنُ نَغْسِلُ ابْنَتَهُ ٣

[1] اخرجه البخاری فی کتاب الجنائز /باب ما یستحب أن یغسل وتراً (رقم-١٢٥٤) ومسلم فی باب فی غسل المیت (رقم) ٣۶ - (٩٣٩) وابوداود کتاب الجنائز. باب کیف غسل المیت (رقم-٣١٤٢)والترمذی کتاب الجنائز عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ ما جاء فی غسل المیت (رقم-٩٩٠) والنسائی کتاب الجنائز /غسل المیت بالماء والسدر (رقم-١٨٨١) وابن ماجة کتاب الجنائز / باب ما جاء فی غسل المیت(رقم-١٤٥٨) ومالک فی الموطا کتاب الجنائز /باب غسل المیت (رقم-٢)

فَقَالَ: " اغْسِلْنَهَا ثَلَاثًا أَوْ خَمْسًا أَوْ أَكْثَرَ مِنْ ذَلِكِ إِنْ رَأَيْتُنَّ ذَلِكَ،[٣] بِمَاءٍ وَسِدْرٍ،[٥] وَاجْعَلْنَ فِي الْآخِرَةِ كَافُورًا أَوْ شَيْئًا مِنْ كَافُورٍ[٦] فَإِذَا فَرَغْتُنَّ فَآذِنَّنِي ".[٧] فَلَمَّا فَرَغْنَا آذَنَّاهُ،[٨] فَأَلْقَى إِلَيْنَا حَقْوَهُ، فَقَالَ: أَشْعِرْنَهَا إِيَّاهُ»[٩] وَفِي رِوَايَةٍ: " «اغْسِلْنَهَا وِتْرًا: ثَلَاثًا أَوْ خَمْسًا أَوْ سَبْعًا،[١٠] وَابْدَأْنَ بِمَيَامِنِهَا وَمَوَاضِعِ الْوُضُوءِ مِنْهَا "[١١] وَقَالَتْ: فَضَفَّرْنَا شَعْرَهَا ثَلَاثَةَ قُرُونٍ،[١٢] فَأَلْقَيْنَاهَا خَلْفَهَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**توجمه**:[١] بي بي أم عطيه رضي الله عنها فرمايي[٢] چې رسول الله ﷺ مونږ ته تشريف راوړو هر کله چې مونږ د حضور ﷺ لور بي بي زينب رضي الله عنها ته غسل ورکولو [٣] حضور ﷺ وفرمايل چې تاسو يې درې ځله يا پنځه ځله او که مناسب وګڼئ (يعني ضرورت وي) نو د دې څخه هم زيات ورته غسل ورکړئ [٤] په اوبو او د بيرې په پاڼو سره (يعني د بيرې پاڼو لره په اوبو کښې جوش ورکولو سره يې) ولمبوئ (ځکه چې د بيرې پاڼوته جوش ورکړې اوبو سره ډيره زياته پاکي او صفايي حاصليږي)[٥] او آخر ځل کافور يا وي فرمايل چې د کافرو څه حصه په اوبو کښې واچوئ[٦] او هر کله چې د غسل څخه فارغ شئ نو ما خبر کړئ[٧] مونږ چې فارغ شو نو حضور ﷺ ته مو اطلاع ورکړله [٨] حضور ﷺ خپل تهبند (لنګ) مونږ طرف ته رامخکي کړو او وي فرمايل چې دا تهبند (لنګ) د هغې د بدن سره ولګوئ [يعنې دا تهبند (لنګ) داسې د هغې تر کفن لاندې کيږدئ چې هغه د زينب رضي الله عنها د بدن سره لګيدلې وي][٩] او د يو دويم روايت الفاظ دا دي چې حضور ﷺ وفرمايل چې هغې لره طاق يعنې درې ځله يا پنځه ځله يا اووه ځله غسل ورکړئ [١٠] او غسل د هغې د ښي طرف څخه او د هغې د اودس د اعضاؤ څخه شروع کړئ [١١] بي بي أم عطيه رضي الله عنها فرمايي چې مونږ د هغې د ويښتانو درې کمځې وتړلې [١٢] او د هغې وروسته (شاته) مو واچولې. (بخاری مسلم)

**حل اللغات**:- ① بِسِدْرٍ: بيرې (د بيرې پاڼړې مراد دی). ② كَافُورًا: نبت طيب زهره: يو خوشبودار بوټې دې. ③ حَقْوَهُ: الْحَقْوُ: فِي الْأَصْلِ مَعْقِدُ الْإِزَارِ، ثُمَّ سُمِّيَ بِهِ الْإِزَارُ لِمُجَاوَرَتِهِ: حقوه د لنګ تړلو ځای ته وائی خو د اتصال په وجه لنګ ته هم وائی. ④ أَشْعِرْنَهَا: الثَّوْبُ الَّذِي يَلِي الْجَسَدَ لِأَنَّهُ يَلِي شَعْرَهُ: کومه کپړه چه بدن سره نږدې وی هغې ته شعار وائی، يعنی تهه بند دَ کفن دَ نورو کپړو دَ لاندې دَ هغه بدن سره لګولوسره واغوندوئ ⑤ فَضَفَّرْنَا: وَالضَّفْرُ: فَتْلُ الشَّعَرِ مِنَ الضَّفِيرَةِ، وَهِيَ النَّسْجُ: د ويښتو نه کمځۍ جوړول. ⑥ قُرُونٍ: أَيْ: أَقْسَامٌ: کمځۍ.

## تسهيلات: قوله: وَنَحْنُ نُغَسِّلُ ابْنَتَهُ:

**د ابنة مصداق**:- واضح او راجح هم دغه دي چه دَحضورپاك لوربی بی حضرت زينب رضي الله عنها وه چه دَ حضرت ابوالعاص رضي الله عنه په نکاح کښې وه. دَحضورپاك دَ دويمې لوربی بی نوم حضرت رقيه رضي الله عنها وه دَ دريمې نوم ام کلثوم رضي الله عنها وه دا دواړه يو پسې بلې پسې دَ حضرت عثمان رضي الله عنه بيبيانې وې او څلورمه لوربی بی فاطمة الزهری رضي الله عنها وه چه دَحضرت علی رضي الله عنه په نکاح

کښې راغلې وه. شیعه شنیعه او رافضه مرفوضه دَ حضوراکرم ﷺ دَ یوې لور نه دَ زیاتو انکارکوی.

**قوله: اِغْسِلْنَهَا ثَلَاثًا أَوْ خَمْسًا:**

**د مړی په غسل کښې د تثلیث حکم:** - لفظ او صرف دَ ترتیب دَپاره دې دَ تخییر دَپاره نه دې دلته اصل مدار پاکی حاصلولو باندې ده. علماؤ لیکلی دی چه که پاکی په یو خل یا دوو خلو اوبو بهیولوسره حاصله شی نو بیا په دریم خل اوبه اچول مستحب دی زیاتې مکروه دی اوکه پاکی په دریم خل وینځلوسره حاصله شوه نو بیا پنځه خل پورې اوبه اچول او غسل ورکول مستحب دی دې نه زیاتې مکروه دی اوکه چرې پاکی پنځه خل وینځلوسره حاصله شوه نو اووه خل اوبه استعمالول مستحب دی اودې نه زیاتې مکروه دی. دَ اووه خل نه زیاتې نقل نه دی.

**قوله: بِمَاءٍ وَسِدْرٍ:**

**د بیرې په پاڼړو سره د غسل ورکولو طریقه:** - دَ بیرې پاڼړو ته سدر وئیلې شوې دې په دې کښې ترتیب دادې چه په پاکو اوبوکښې دَ بیرې پاڼړې واچولې شی اوبه اوخوټکولې شی اوبیا په مناسب ګرمو اوبوسره مړی ته غسل ورکړې شی. بیا په دریم خل اوبوکښې کافور ملاوولوسره په هغې غسل ورکړې شی

**د بیرې د پاڼړو فائدې:** - ① دَدې په استعمال سره حشرات الارض مړی ته نیزدې نه راځی
② په دې سره په ښه شان سره صفائی حاصلیدې شی.
③ دَدې په استعمال سره نعش زر نه خرابیږی. دَ کافور ملاوولومطلب دادې چه په اوبو کښې دا یوځائی کړې شی یا په مړی باندې اوشندلې شی.

**قوله: فَأَلْقٰی إِلَیْنَا حَقْوَهٗ، فَقَالَ: أَشْعِرْنَهَا إِیَّاهُ:**

**په آثار الصالحین د برکت حاصلولو حکم:** - نبی علیه السلام خپل لنګ هغه غاسلاتو زنانو ته ورکړو. د دې دَپاره چه په دې سره برکت راشی. دې نه دَبرکت ثبوت ملاؤ شو چه دَ بزرګانو په استعمال شوی څیزونوکښې برکت وی او برکت ورکونکې هم دَ الله تعالی ذات دې. امام بخاری رحمه الله دَ برکات اوتبرکات دَپاره بخاری شریف کښې مستقل ابواب ساتلی دی مثلاً باب برکة التحلة. البته دَ بزرګانوجامې یا تبرکات په کفن کښې شاملولوسره اغوستل پکاردی د کفن نه زیاتی څه څیز یا جامه بدن سره کیخودل جائز نه دی

**قوله: وَابْدَأْنَ بِمَیَامِنِهَا:**

**د مړی په تفسیل کښې د ښی طرف نه د شروع کولو مسنونیت:** - یعنی مړې دَ هغه دَ ښی لاس ښې خپې او ښی اړخ نه لامبول پکاردی. علماؤ دَ غسل په ترتیب کښې داسې لیکلی دی چه سړې دې اول خپلو لاسونوته دکپړې دستانې واچوی بیا په تیارو اوبوسره دَمړی دَ اودس

اندامونه اووینځي. دَمړي دَ ستر په مقام باندې کپړا اچول پکاردي اومکمل اودس ورله جوړول پکاردي. دَ اودس دَ اندامونونه هغه اندامونه مراد دي دکوم وینځل چه په اودس کښې فرض دي. لهذا په خُله او پوزه کښې اوبه نه دي اچول پکار البته په سر باندې مسح کول پکاردي.

**قوله: فَضَفَّرْنَا شَعْرَهَا:**

**د ښځې درې کوڼسې جوړول:-** یعنی مونږ دَهغوی دَ سر ویښته په دریو حصوکښې تقسیم کړل مطلب دا چه درې چوټې جوړولوسره شاته دَملا طرف ته واچول.

دَ شوافع حضراتو مسلك داسې دې لیکن امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی چه دنیا دَ زینت کور دې دکوم تعلق چه ژوند سره دې اودَ مرګ نه پس "دارالبلی" ده هلته زینت نشته خرابیدل دی. لهذا ترك زینت اولی دې. زیر بحث حدیث کښې چه ویښتو سره کومه معامله کړې شوې ده دادَ صحابیاتو اجتهادي عمل وو لهذا ویښته په دوو حصوکښې تقسیم کول او په سینه باندې اچول پکاردي لکه چه دَ بعضې روایاتونه معلومیږي. دَ فقهاؤ دا فیصله دَ دوو طرفو نه دَ اجتهاد په بنیاد باندې ده دادَ جواز اوعدم جواز مسئله نه ده بلکه دَ اولی او غیر اولی مسئله ده.

**[١٦٢٥] دَرسول الله ﷺ په درې جامو کښې تکفین**

| |
|---|
| ١٦٢٥-( )[٢] ① وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ: ② «إِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُفِّنَ فِي ثَلَاثَةِ أَثْوَابٍ ③ يَمَانِيَةٍ بِيضٍ سَحُولِيَّةٍ، مِنْ كُرْسُفٍ، ④ لَيْسَ فِيهَا قَمِيصٌ وَلَا عِمَامَةٌ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |

**ترجمه:** ① بي بي عایشه رضي الله عنها فرمايي ② چې رسول ﷺ ته په دريو کپړو کښې کفن ورکول شوي وو ③ چې سپيني يمني او د سحول د جوړ شوي پنبی وي ④ نه په هغې کښې (ګنډل شوی) قميص وو نه پټکی وو (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① سَحُولِيَّةٍ: يا خو ديمن يوې قبيلې ته نسبت دي، يا جمع دسُحل ده او سُحل سپينو کپړو ته وائی چه د مالوچونه جوړيږی. ② كُرْسُفٍ: سپينو مالوچوته کرسف وائی. مطلب دا چه سپینې کپړې دَخالص سفینو مالوچو وې.

**تسهیلات:**

**قوله: فِي ثَلَاثَةِ أَثْوَابٍ يَمَانِيَةٍ بِيضٍ سَحُولِيَّةٍ:**

[1] اخرجه البخاری فیکتاب الجنائز /باب الثیاب البیض للکفن(رقم-١٢٦٤)و مسلم فی باب فی کفن المیت (رقم) ٤٥ - (٩٤١) وابوداود کتاب الجنائز /باب فی الکفن (رقم-٣١٥١) والترمذی کتاب الجنائز عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ ما جاء فی کفن النبی صلی الله علیه وسلم (رقم-٩٩٦) والنسائی کتاب الجنائز /باب کفن النبی صلی الله علیه وسلم (رقم-١٨٩٨) وابن ماجة کتاب الجنائز / باب ما جاء فی کفن النبی صلی الله علیه وسلم(رقم-١٤٦٩) ومالک فی الموطا کتاب الجنائز /باب ما جاء فی کفن المیت (رقم-٥) واحمد فی المسند ٩٣/٦

**د سحولیة تحقیق:** -په دې کلمه کښې سین باندې فتحه هم وئیلې شوې ده او ضمه هم وئیلې شوې ده. ابن همام رحمه الله او امام نووي رحمه الله فرمائي [الکاشف: ۳۴۸/۳] چه فتحه زیاته مشهوره ده. دَ لغت کتاب فائق کښې لیکلی دی که په سین باندې فتحه اووئیلې شي نودا به دَ شیخ سحول طرف ته منسوب شي چه یو دهوبي وو او داسې کپړې به ئې وینځلې. بل په دې صورت کښې دا دَ یوکلي طرف ته هم منسوب کیدې شي سحول دَیمن دَ یوکلي نوم دې اودا کپړې به هلته جوړیدلې. اوکه چرې لفظ سحول باندې ضمه اووئیلې شي نودا دَ سحل جمع ده چه خالص سپینې کپړې ته وئیلی شي. بهرحال زیات ظاهر خبره داده چه سحول یا سحولي په یمن کښې دَ یوځائي نوم دې اوهم دَهغې طرف ته داکپړا منسوب ده

**قوله:لَيْسَ فِيهَا قَمِيصٌ:**

**د حدیث دمذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:** -دَدې جملې دوه مفهوم اخستې شي

① دَ رسول الله ﷺ دَ کفن صرف هم درې کپړې وې په هغې کښې پټکې اوقمیص نه وو بلکه صرف درې کپړې وې.

② دَ حضورپاك دَ کفن په دغه دریو کپړوکښې پټکې اوقمیص نه وو بلکه هغه دَدې دریو کپړو نه علاوه وو لهذا دَ مړي په کفن کښې پنځه کپړې پکاردي. دَ مفهوم په دې اختلاف کښې دَ فقهاؤ هم لږ شان اختلاف راغلې دې.

**د مړي د کفن د جامو په تعداد کښې مذاهب:-**

① امام مالك رحمه الله امام شافعي رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله جمهور فرمائي چه په کفن کښې دې صرف درې لفافې وي یعني درې څادرونه وي په کوم کښې چه مړې راغونډ کړې شي په دې کښې دَ قمیص اوپټکې ګنجائش نشته دې.

② ائمه احناف فرمائي چه په کفن کښې هم درې کپړې کیدل پکاردي. ① ازار یعني لنګ ② قمیص یعني کفني قمیص③ لفافه یعني څادر.

**د مذاهبو په مینځ کښې تطبیق:** -دا اختلاف صرف په تعبیرکښې دې ګني په څادرونوکښې هیڅ فرق نه وي صرف دَ قمیص یوشکل شان وي کولاؤ څادر نه وي. په حدیث کښې چه کوم دَقمیص نفي کړې شوې ده هغه دَ سلائي شوې قمیص نفي ده. دَ احنافو په نیز چه کوم قمیص دې هغه کفني دې هغه باقاعده قمیص نه وي البته دَ قمیص شکل وي.

**[۱٦۳٦] دَمړي دکفن ښائسته کولو حکم**

۱۶۳۶-(۱)[۳] [۱] وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«إِذَا كَفَّنَ أَحَدُكُمْ أَخَاهُ فَلْيُحَسِّنْ كَفَنَهُ» " رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] حضرت جابر رضي الله عنه روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] هر کله چه په تاسو کښې څوک خپل وروره کفن ورکوي نو هغه ته پکار دي چې ښه کفن ورکړي (مسلم)

**تسهیلات: قوله: فَلْيُحَسِّنْ كَفَنَهُ:**

**د ښه کفن مصداق:** - دَ ښه کفن نه مراددادي چه دکفن کپړه پوره وی اوکفن سپین وی دَ اسراف نه بغیرمزیداره کپړه وی که نوې وی اوکه وینځلې شوې وی.

**په کفن کښې داسراف مفهوم:** - علامه توربشتی رحمه الله فرمائی په اسراف کونکوکښې چه کومه طریقه عمل کښې ده هغه داده چه ډیره زیاته قیمتی کپړه په کفن کښې استعمالوی کومه چه په شرعی اعتبارسره منع ده ځکه چه په دې سره خامخا مال ضائع کیږی. بهرحال دَښه کفن نه مراد هغه اعلی اوقیمتی کپړه نه ده چه دَ دنیادارو په نیزدَتکبراو دَ ریاکارئی په توګه او دَ ځان خودلودَ پاره عمل کښې دی.

**[۱٦۳۷] دَمحرم دَکفن مسئله**

۱۶۳۷-(۲)[۴] [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ: [۲] «إِنَّ رَجُلًا كَانَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [۳] فَوَقَصَتْهُ نَاقَتُهُ وَهُوَ مُحْرِمٌ فَمَاتَ، [۴] فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اغْسِلُوهُ بِمَاءٍ وَسِدْرٍ، [۵] وَكَفِّنُوهُ فِي ثَوْبَيْهِ، [۶] وَلَا تَمَسُّوهُ بِطِيبٍ، [۷] وَلَا تُخَمِّرُوا رَأْسَهُ ; [۸] فَإِنَّهُ يُبْعَثُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مُلَبِّيًا» . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.
[۹] وَسَنَذْكُرُ حَدِيثَ خَبَّابٍ: قُتِلَ مُصْعَبُ بْنُ عُمَيْرٍ فِي "بَابِ جَامِعِ الْمَنَاقِبِ" إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالَى.

**ترجمه:** [۱] عبدالله ابن عباس رضي الله عنه فرمایي [۲] چې یو سړي (د حج د سفر په دوران کښې) د حضور ﷺ سره ملګري وو [۳] دهغه اوښې (هغه راوغورځولو او) د هغه څټ (مغځی) یې مات کړو هغه سړي محرم (یعني د حج په نیت سره او احرام یې تړلي) وو هم په دې حال کښېمړ شو [۴] رسول الله ﷺ وفرمایل چې دي د اوبو او د بیرود پاڼو په اوبو سره ولمبوی [۵] او په خپلو دواړو جامو کښېیې کفن کړئ [۶] مه ورته خوشبو لګوي [۷] و مه ورله

(۱) اخرجه مسلم فی باب فی تحسین کفن المیت (رقم) ۴۹ - (۹۴۳) وابوداود فی السنن کتاب الجنائز /باب فی الکفن (رقم-۳۱۴۸) والترمذی کتاب الجنائز عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب منه (رقم-۹۹۵) وابن ماجة کتاب الجنائز /باب ما جاء فیما یستحب من الکفن (رقم-۱۴۷۴) والنسائی فی السنن کتاب الجنائز /الأمر بتحسین الکفن (رقم-۸۸۹۵) واحمد فی المسند ۲۹۵/۳

(۲) اخرجه البخاری فی کتاب الجنائز /بباب: کیف یکفن المحرم؟ (رقم-۱۲۶۷) ومسلم فی کتاب الحج /باب ما یفعل بالمحرم إذا مات (رقم) ۹۳ - (۱۲۰۶) والترمذی فی السنن کتاب الحج عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی المحرم یموت فی إحرامه (رقم-۹۵۱) والنسائی کتاب الجنائز/باب کیف یکفن المحرم إذا مات (رقم-۸۹۰۴) والدارمی کتاب الطهارة/باب فی دم الحیض یصیب الثوب واحمد فی المسند ۲۱۵/۱

سر پټوي ⑦ځکه چې دي به د قیامت په ورځ لبیک ویلو سره راپورته کیږي. (بخاري مسلم). ⑨ اوزرده چې مونږ په د خباب رضی الله عنه د مصعب بن عمیر د قتل حدیث په باب جامع الدعاء کښې ذکرکړو. انشاء الله تعالی

**حل اللغات:** - ① فَوَقَصَتْهُ: أي: أَسْقَطَتْهُ فَانْدَقَّ عُنُقُهُ: یعنی راوئې غورځولو نوځټ ئې مات شو. ② وَلَا تُخَمِّرُوا: أي: لَا تُغَطُّوا وَلَا تَسْتُرُوا: یعنی مه ئې پټوئ ③ مُلَبِّيًا: أي: قَائِلًا: لَبَّيْكَ اللَّهُمَّ لَبَّيْكَ: یعنی تلبیه ویونکې به وی.

**تسهیلات:**

**قوله: وَكَفِّنُوهُ فِي ثَوْبَيْهِ:**

**د محرم د کفن په حکم کښې مذاهب:-**

دې سړی سره دَ وفات نه پس هم هغه معامله اوکړې شوه کومه چه یومحرم سره په ژوند کښې کولې شی چه خوشبوئی مه لګوه سر مه پټه وه بلکه دَ احرام په کپړو کښې خښ کړئی. دَدې حدیث ظاهر ته په کتلوسره فقهاؤ کښې اختلاف راغلې دې.

① امام شافعی رحمه الله او امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائی چه دَدې حدیث دَ ظاهری الفاظو مطابق دې سړی سره به هم هغه معامله کولې شی نه خوشبوئی نه کفن او نه سر پټول.

② امام ابوحنیفه رحمه الله اوامام دارالهجرة امام مالک رحمه الله په نیزیه کفن دفن کښې محرم اوغیرمحردواړه یوشان دی هیڅ فرق نشته.

**د اول فریق دلیل:**- زیربحث حدیث داول فریق مستدل دې کوم چې په خپله مدعی باندې واضع دلیل دې.

**داول فریق د دلیل جوابونه:**- ① دې سړی سره کومه معامله کړې شوې ده دا دَ ده خصوصیت وو لهذا نور مړی به په دې باندې نه شی قیاس کولې

② دا هم ممکن ده چه دکفن کولو دَپاره هغه سره بل څه کپړا نه وه نو هم دغه شان ئی په احرام کښې خښ کړو. بهرحال دَخصوصیت خبره ډیره راجح ده ځکه چه دَحضورپاک په زمانه کښې دَدې سړی نه علاوه هیچاسره داسې معامله نه ده کړې شوې اونه روستو بیا صحابه کرامو رضی الله عنهم دا ضابطه جوړولو سره عمل کړې.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[١٦٢٨] دَکفن دَپاره د سپینې کپړې غوره والې**

١٦٣٨-(١)[٥] ①عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«الْبَسُوا مِنْ

[1] اخرجه ابوداود كتاب اللباس/باب فی البياض (رقم-٤٠٦١) والترمذی كتاب الجنائز عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما يستحب من الأكفان (رقم-٩٩٤) والنسائی كتاب الجنائز/أی الكفن خير (رقم-١٨٩٦) وابن ماجة كتاب الجنائز/باب ما جاء فيما يستحب من الكفن (رقم-١٤٧٢) واحمد فی السند ٢٤٧/١

ثِيَابِكُمُ الْبَيَاضَ ; فَإِنَّهَا مِنْ خَيْرِ ثِيَابِكُمْ ٣ وَكَفِّنُوا فِيهَا مَوْتَاكُمْ ٤ وَمِنْ خَيْرِ أَكْحَالِكُمُ الْإِثْمِدُ ; ٥ فَإِنَّهُ يُنْبِتُ الشَّعْرَ، وَيَجْلُو الْبَصَرَ» "٦ رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَرَوَى ابْنُ مَاجَهْ إِلَى "مَوْتَاكُمْ".

**ترجمه:** ١ ابن عباس ﷺ روايت كوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ چې تاسو سپيني كپړي اغوندئ ځكه چې دا ستاسو د پاره بهترينې كپړې دي ٣ او خپلو مړو ته هم سپين كفن وركوئ ٤ او ستاسو د پاره بهترين رانجه سرمه (اثمد رانجه) دي ٥ ځكه چې دا ستاسو بانه زرغونوي او د سترګو بينايي زياتوي،٦ (ابوداؤد ترمذي) او ابن ماجه دا روايت تر لفظ موتاكم پورې نقل كړي دي.

**حل اللغات:-** ① أَكْحَالِكُمْ: ستاسو دپاره بهترين رانجه، ② الإِثْمِدُ: حَجَرٌ لِلْكُحْلِ: دا يو كاڼړې دي دكوم په اوړه كولوسره چه رانجه جوړولې شي. ③ يَجْلُو الْبَصَرَ: أَيْ: يَزِيدُ نُورَهُ: دسترګو نظر تيزوي.

**تسهيلات: قوله:** وَكَفِّنُوا فِيهَا مَوْتَاكُمْ:

**د سپين كفن استحباب:-** دَمړو دَپاره سپين كفن دَ استحباب په توګه دې دَ ښځودَپاره هم دغه مستحب دې او په دې حديث كښې دَ كفن په معامله كښې سړى اوښځې ټول يو شان ساتلى دى. البته كه دَ سپينې كپړې په ځائې دَ سړو دَپاره پتيداره كپړې نه كفن جوړ شي اويا بله څه رنګين كپړا وى كومه چه هغه په ژوند كښې استعمالوله نوهغه هم جائز ده اودَ ښځودَپاره دَهغوى دَرنګ مطابق كپړا استعمالول جائز دى.

[١٦٢٩] دَ قيمتى كپړې څخه دَكفن جوړولو ممانعت

١٦٢٩-()[٦] ١ وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٢ " «لَا تَغَالَوْا فِي الْكَفَنِ ٣ فَإِنَّهُ يُسْلَبُ سَلْبًا سَرِيعًا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ١ حضرت علي ﷺ راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ په كفن كښې ډيره قيمتي كپړه مه لګوئ ٣ ځكه چې هغه ډير زر اخستل كيږي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ① لَا تَغَالَوْا: زياته قيمتي كپړه مه لګوئ، ② سَلْبًا: واپس اخستلې كيږي، (دجامې ډير زر زوړوالې طرف ته مبالغهٔ اشاره ده)

**تسهيلات: قوله:** لَا تَغَالَوْا فِي الْكَفَنِ:

**د كفن په كپړه كښې اعتدال كول:-** ددې مطلب دادې چې په كفن كښې دې درميانه كپړا استعمال كړې شي. ډيره قيمتى كپړا دې استعمال نه كړې شي هسې نه چې غريبانان د نورو خلقو سره حرص اوكړى او قرض واخلى ، او ډيره حقيره كپړا دې هم استعمال نه كړې شي چې هغې سره د مړى سپكاوې اوشي.

( ) اخرجه ابوداود في كتاب الجنائز. باب كراهية المغالاة في الكفن(رقم - ٣١٥٤)

**قوله: فَإِنَّهُ يُسْلَبُ سَلْبًا سَرِيعًا:**

**د قيمتي كفن د ممانعت وجه:**-يعنى هغه ډير زر ځيـدو والا ده نوبيـا د ډيـرې قيمتـى كپـړې استعمالولو ضرورت نشته دې.

**[١٦٤٠] د مړي په هغه جامو كښې راژوندى كيدل په كوموكښې چې مړ شوې وى**

١٦٤٠-()[٧][١]«وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ[٢] أَنَّهُ لَمَّا حَضَرَهُ الْمَوْتُ دَعَا بِثِيَابٍ جُدُدٍ فَلَبِسَهَا،[٣] ثُمَّ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ:[٤]"الْمَيِّتُ يُبْعَثُ فِي ثِيَابِهِ الَّتِي يَمُوتُ فِيهَا»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:**[١] د ابو سعيد خدري رضي الله عنه په باره كښې منقول دي [٢] چې د هغه د مرګ وخت چې نزدې شو نو هغه نوې كپړې راوغوښتلې او هغه يې واغوستې [٣] بيا يې وفرمايل چې ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي [٤] چې مړي به په هغه كپړو كښې راپورته كول كيږى په كومو كښې چې هغه مري. (ابوداؤد)

**حل اللغات:**- ① جُدُدٍ: جَمْعُ جَدِيدٍ: يعنى بالكل نوې كپړې نى واچولې.

**تسهيلات: قوله :-الْمَيِّتُ يُبْعَثُ فِي ثِيَابِهِ:**

**دروایاتو په مینځ کښې د تعارض د دفعې دپاره دوه توجیهات:**- ①دَدې بعثت او پاسيدلو نه مرادَ قبرونونه اوچتيدل دى ځكه چه په ميدان حشركښې خو به دَ چاپه بدن باندې كپړه نه وى بلكه بربنډ به پاسى. لهذادَدې حديث به نورو احاديثوسره تعارض نه پاتې كيږى.

② دَحضرت ابوسعيدخدرى رضي الله عنه په كلام كښې كوم لفظ ثياب راغلې دې دَهغې نه مراد اعمال اخستې شى. ذكرخوئى دَ ثوب اوكړومګر مراد ترې نيك اعمال واخستل او په عربى كښې نيك اعمال په ثياب سره يادولې شى.

وانى بحمدالله لاثوب فـاجر　　　لبست ولاعن غذراتقنع

بل (وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ۝) [سورت مدثر الايه ۴] كښې بعضې مفسرينواعمال مراد اخستى دى. بهرحال ابوسعيدخدرى رضي الله عنه محض دَ صفائى اوپاكوالى دَپاره نوې كپړې راوغوښتلې اوبيادَهغوى په ذهن كښې داحديث راغلو نوهغوى داحديث بيان كړو دَدې دامطلب نه دې چه ابوسعيد خدرى رضي الله عنه داحديث دَ دليل په توګه په خپله دعوىٰ باندې پيش كوى. سړې به په قيامت كښې اوبه حشراونشركښې هم په هغه كپړوكښې اوچتيږى په كوم كښې چه دَهغه انتقال شوې وى.

---

() اخرجه ابوداود فى كتاب الجنائز، باب ما يستحب من تطهير ثياب الميت عند الموت (رقم-٣١١٤)

[١٦٤١] بهترین کفن او بهترینه قرباني

١٦٣١ —(١)[٨] [١] وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: [٢] "«خَيْرُ الْكَفَنِ الْحُلَّةُ، [٣] وَخَيْرُ الْأُضْحِيَةِ الْكَبْشُ الْأَقْرَنُ» "رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] عباده ابن صامت ﷺ روايت کوی چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] بهترين کفن حُله دي [٣] او بهترينه قرباني ښکرور پسه دي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① الْحُلَّةُ: دحلل جمع ده، د يوجنس (يا يو رنګ) دوه کپړو ته حله وائی. او بعضې وائی دا د مالوچو يوقسم کپړې دی چه لکيرداري وی. ② الْكَبْشُ: ګډ، ③ الْأَقْرَنُ: ښکرونو والا.

تسهيلات: **قوله**: خَيْرُ الْكَفَنِ الْحُلَّةُ

**د غوره کفن مصداق:** - ښکاره خبره ده چه بهتر کفن هم هغه وی چه په يورنګ کښې وی لفافه هم سپينه قميص هم سپين او ازار هم سپين وی. په دې حديث کښې دې طرف ته هم اشاره کيدې شی چه بهترين کفن هغه دې په کوم کښې چه دوه کپړې استعمال کړې شی کوم چه کفن کفايه ادنی درجې سنت دې چه دې نه کمه کپړا نه وی يعنی يوه کپړا نه وی. نو اعلی درجه کمال سنت درې کپړې دی ادنی درجه کمال دوه کپړې دي نه کم بهتر نه دي بلکه هغه دَ ضرورت کفن دې دَ سړی دَپاره دَ ضرورت کفن يوه کپړا او دَ ښځې دَپاره دَ ضرورت کفن دوه کپړې دی.

١٦٣٢ —(٢)[٥] [١] وَرَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ.

**ترجمه:** [١] ترمذي او ابن ماجه دا روايت د حضرت ابو امامه ؓ څخه نقل کړي دي.

[١٦٤٢] دشهيدانو په خپلو کپړو کښې دفن کول

١٦٣٣ —(٣)[٩] [١] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ: [٢] «أَمَرَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِقَتْلَى أُحُدٍ [٣] أَنْ يُنْزَعَ الْحَدِيدُ وَالْجُلُودُ، [٤] وَأَنْ يُدْفَنُوا بِدِمَائِهِمْ وَثِيَابِهِمْ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [١] ابن عباس ؓ فرمايي [٢] چې رسول الله ﷺ د جنګ احد دِ شهداؤ په باره کښې وفرمايل [٣] چې د هغوئ د اوسپني (هتيار زغري) او د چمړي (پوستين وغيره يعنی هغه اشياء چې په وينو لړلې شوې نه وي) د هغوئ د بدن څخه خکته کړئ [٤] بيا دې هغوی د هغوئ (په وينو لړلې شوو) کپړو او د وينو سره دې دفن کړل شي. (ابوداؤد ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① يُنْزَعَ: ويستلي به شی (دشهيد نه)، ② الْحَدِيدُ: أَيِ: السِّلَاحُ وَالدُّرُوعُ: اوسپني ته وائی دلته تري وسله او زغري وغيره مراد دی. ③ الْجُلُودُ: څرمن ته وائی.

(١) اخرجه ابوداود فی کتاب الجنائز، باب کراهية المغالاة فی الکفن(رقم-٣١٥٦)
(٢) اخرجه الترمذی فی کتاب الأضاحی عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب (رقم-١٥١٧)
(٣) اخرجه ابوداود فی کتاب الجنائز/باب فی الشهيد يغسل (رقم-٣١٣٤) وابن ماجة رقم الحديث ١٥١٥

**تسهيلات: قوله :وَأَنْ يُدْفَنُوْا الْجُلُوْدُ:**

**د جلود څخه دلته مراد:-** دې نه مراد په بدن باندې زياتى کپړې دى مثلاً کوټ واسکټ يا استر په کوم کښې چه څرمن استعمال شوې وى.

**قوله :بِدِمَائِهِمْ:**

**د شهيدانو په وينو کښې د ښخولو حکمت:-** يعنى هغه ته دغسل ورکولونه بغير په وينو کښې لړېر ښخ کړى دې دپاره چه الله تعالى ته هم په دغه حالت کښې راشى.

**فائده:** د امام شافعي رحمه الله په مسلک کښې د شهيد د پاره نه غسل سته نه د جنازې مونځ سته خو د امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله په نزد د شهداء د پاره غسل خو نشته خو د جنازې مونځ سته.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [١٦٤٤]د حضرت مصعب رضي الله عنه او حضرت امير حمزه رضي الله عنه کفن

١٦٤٣ –(١)[١٠] ١ عَنْ سَعْدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ أَبِيهِ: ٢ أَنَّ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ عَوْفٍ أُتِيَ بِطَعَامٍ وَكَانَ صَائِمًا، ٣ فَقَالَ: قُتِلَ مُصْعَبُ بْنُ عُمَيْرٍ وَهُوَ خَيْرٌ مِنِّي، ٤ كُفِّنَ فِي بُرْدَةٍ، إِنْ غُطِّيَ رَأْسُهُ بَدَتْ رِجْلَاهُ، ٥ وَإِنْ غُطِّيَ رِجْلَاهُ بَدَا رَأْسُهُ، ٦ وَأُرَاهُ قَالَ: وَقُتِلَ حَمْزَةُ وَهُوَ خَيْرٌ مِنِّي، ٧ ثُمَّ بُسِطَ لَنَا مِنَ الدُّنْيَا مَا بُسِطَ، ٨ أَوْ قَالَ: أُعْطِينَا مِنَ الدُّنْيَا مَا أُعْطِينَا، ٩ وَلَقَدْ خَشِينَا أَنْ تَكُونَ حَسَنَاتُنَا عُجِّلَتْ لَنَا، ١٠ ثُمَّ جَعَلَ يَبْكِي حَتَّى تَرَكَ الطَّعَامَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ١ سعد بن ابراهيم دخپل پلار بزرګوار (ابراهيم) څخه نقل کوي ٢ چې حضرت عبدالرحمٰن بن عوف رضي الله عنه ته کله چې د هغه روژه وه (د افطاري د پار) طعام (ډوډۍ وغيره) راوړل شو ٣ نو هغه وفرمايل چې حضرت مصعب بن عمير رضي الله عنه چې شهيد شو زما څخه بهتر وو ٤ هغه يواځې په يو څادر کښې کفن شوي وو چې دومره وړوکې وو که سر به يې ورلره پټولې نو پښې به يې ښکاره پاتې شوې ٥ او که پښې به يې ورلره پټولې نو سر به يې ښکاره پاتې شو [آخر د هغه سر په څادر سره پټ کړل شو او په پښو ورلره اذخر (يو قسم وابنه) واچول شو (څرنګه چې د باب جامع المناقب په حديث کښې د دې تفصيل دى] ٦ ابراهيم (د حديث راوي) وايي چې زما ګمان دى چې حضرت عبدالرحمٰن بن عوف رضي الله عنه دا هم وفرمايل چې حضرت حمزه رضي الله عنه چې شهيد کړل شوى وو زما څخه بهتر وو [او هغه ته هم داسې کفن نصيب شو څرنګه چې مصعب بن عمير رضي الله عنه ته او هر کله چې د مسلمانانو د تنګدستي او پريشاني دا دور د الله جل جلاله په فضل سره ختم شو] ٧ نو بيا مونږ د پاره دنيا دومره فراخه شوه چې ظاهره ده ٨ يا وي فرمايل چې دنيا مونږ ته دومره راکړې شوه څومره چې راکړې شوې ده ٩ مونږ سره ددې خبرې خوف دې چې چيرته زمونږ د نيکيو بدله مونږ

(١) اخرجه البخاري فى كتاب المغازى /باب غزوة أحد (رقم-٤٠٤٥)

ته زر (په دنيا کښې) راکړې شوې نه وې [١٠] بيا عبدالرحمن (د دې خوف په وجه) په ژړا شوتر دې چې طعام (رو ټۍ وغيره) يې پريښودل. (بخاري)

**حل اللغات:-** ①بُرْدَةٌ: څادر، ②بُسِطَ: أَيْ: وُسِّعَ وَكُثِّرَ: فراخه شوه، (مال دولت زيات شو).

**تسهيلات: قوله : وَلَقَدْ خَشِينَا أَنْ تَكُونَ حَسَنَاتُنَا عُجِّلَتْ لَنَا:**

**عبدالرحمن بن عوف ته د مالدارۍ احساس:-** حضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه يو دَ شان والا صحابي دې دَعشره مبشره نه دې يوه ورځ به ئې روژه ساتله دَ روژې ماتي په وخت چه خوراک راغلو هغه خوراک ته اوکتل اودَ دنيا دَ زياتوالي احساس په زړه باندې يوګذار شان اولګيدو اودَ تيرو شوو خپلو فقيرانو ملګرو خيال ورته راغلو نوژړلې او دَ سخت ضرورت نه باوجود ئې خوراک پريخودو چه چرته دَ دنيا دَ خوندورو اومزيدارو خوارکونوسره زمونږ دَ آخرت درجاتوته نقصان اونه رسي. هغوی دَ حضرت حمزه رضي الله عنه دَ شهادت او کفن دَ نه ملاويدو ذکر اوفرمائيلو اوحضرت مصعب بن عمير رضي الله عنه دَ تيرشوی نازاو تنعم دَ ژوندون ذکر ئې اوکړو اوبيائی دَ اسلام نه پس دَ فقر اوفاقه نقشه راښکله اوبيائی خوراک پريخودو دادَ صحابه کرامو رضي الله عنهم شان وو.

**[١٦٤٥] دَرسول الله ﷺ دَرئيس المنافقين سره حسن سلوک**

١٦٣٥-()[١] [١] وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: [٢] «أَتَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ أُبَيٍّ [٣] بَعْدَمَا أُدْخِلَ حُفْرَتَهُ، [۴] فَأَمَرَ بِهِ، فَأُخْرِجَ، فَوَضَعَهُ عَلَى رُكْبَتَيْهِ، [٥] فَنَفَثَ فِيهِ مِنْ رِيقِهِ، [٦] وَأَلْبَسَهُ قَمِيصَهُ، [٧] قَالَ: وَكَانَ كَسَا عَبَّاسًا قَمِيصًا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] حضرت جابر رضي الله عنه فرمايي [٢] چې رسول الله ﷺ عبدالله ابن ابَي ته هغه وخت تشريف راوړو [٣] کله چې هغه په خپل قبر کښې خکته کړل شوی وو [۴] حضور ﷺ د هغه د قبر څخه د راوخکلو حکم اوکړو هغه چې راويستل شو نو حضور ﷺ په خپلو ګونډو کينولو [٥] او د خپلي خُلي مبارکي لاړي يي د هغه په خُله کښې واچولي [٦] او خپل قميص مبارک يي ورواغوستو [٧] حضرت جابر رضي الله عنه فرمايي چې عبدالله ابن اُبَي حضرت عباس رضي الله عنه ته د بدر په غزا کې چې قيدی شوی وو خپل قميص وراغوستي وو. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ①حُفْرَتَهُ: أَيْ: قَبْرَهُ: حفر کندې ته وائی، دلته ترې قبر مراد دې. ②فَنَفَثَ: وائې چولې. ③رِيقِهِ: لاړې مبارکې،

**تسهيلات:**

**قوله: وَكَانَ كَسَا عَبَّاسًا قَمِيصًا:**

[١] اخرجه البخاری فی کتاب اللباس/باب لبس القميص (رقم-٥٧٩٥) ومسلم فی کتاب صفات المنافقين وأحكامهم (رقم) ٢ - (٢٧٧٣) والنسائی کتاب الجنائز/القميص فی الکفن (رقم-١٩٠١) واحمد فی المسند

**عبدالله بن ابی بدل څلاصول:** عبدالله بن ابی ابن سلول رئیس المنافقین وو حضورپاك هغه سره د مرګ نه پس عجیبه د حسن سلوك معامله اوکړه هغه ئی د قبر نه راویستو او په خپلو مبارکو زنګونونو ئی سملولو اود خولې مبارکې لاړې ئی د هغه په مخ یا سترګو باندې واچولې اوخپل قمیص ئی هغه ته واچولو اوپه هغه باندې د جنازې مونځ اوکړو اود هغه دپاره ئی بښه استغفار اوکړو. ددې وجه دا وه چه کله په جنګ بدرکښې حضرت عباس ﷺ جنګی قیدی جوړشو نو د هغه په بدن باندې قمیص نه وو د هغوی قد لوئی وو صرف د عبدالله بن ابی قمیص په هغوی باندې پوره راغلو نو هغه حضرت عباس ﷺ ته واغوستو. رسول الله ﷺ غوښتل چه د عبدالله بن ابی ددې احسان بدله ورکړی او دویمه وجه دا وه چه د عبدالله بن ابی یو ځوئی وو د کوم نوم چه هم عبدالله وو هغه نیك اوډیر مخلص صحابی وو حضورپاك غوښتل چه دهغه زړه اوساتی. چنانچه دومره لوئی زړه او معافی چه خلقو اولیدله نو نقل دی چه په هغه ورځ ډیرو زیاتو منافقانو اسلام قبول کړو.

# [ ٥ ] المَشْىُ بِالجَنَازَةِ وَالصَّلَاةُ عَلَيْهَا

**د جنازې اوچتولو اوړلوبیان**

**خلاصة الباب :-**

**فيه خمسة و أربعون حديثاً مشتملة على أحد وعشرين مسئلة:**

① حكم إسراع الجنازة: ١-
② الفرق بين الجنازة الصالحة وغيرها: ٢-
③ حكم القيام للجنازة : ٣، ٤، ٥، ٣٣، ٣٤، ٣٥، ٣٦، ٣٧، ٣٨، ٣٩، ٤٠-
④ ثواب اتباع الجنازة: ٦-
⑤ عدد تكبيرات الجنازة: ٧، ٨-
⑥ الفاتحة فى الجنازة: ٩، ٢٧-
⑦ الدعاء فى صلاة الجنازة والإخلاص فيها- ١٠، ٢٨، ٢٩، ٣٠ ، ٤١، ٤٢، ٤٣-
⑧ حكم الجنازة فى المسجد: ١١-
⑨ مقام القيام على الميت للجنازة: ١٢، ١٣-
⑩ حكم الصلوة على القبر: ١٣، ١٤-
⑪ ثواب عدد معين من المصلين على الجنازة: ١٥، ١٦-
⑫ الإعتبار لشهادة المؤمنين: ١٧، ١٨-
⑬ كيفية دفن الشهيد وتجهيزه: ٢٠-
⑭ الركوب وقت الرجوع عن الجنازة: ١٢-

⑮ حكم الصلوة على الطفل: ٢٢، ٤٤.
⑯ كيفية السير مع الجنازة: ٢٢، ٢٣، ٢٤.
⑰ حكم الركوب على الدابة خلف الجنازة: ٢٢، ٢٦.
⑱ كون اتباع الجنازة من حق المسلم وبيان كيفية حملها: ٢٥.
⑲ كيفية ذكر الأموات : ٣١.
⑳ عدد صفوف الجنازة: ٤٠.
㉑ منع قيام الإمام في موضع فوق القوم: ٤٥.

**د جنازې د مونځ حکم:** - دَ جنازې مونځ فرض کفايه ده کله چه بعضې اوکړو نود باقی ذمه خلاصه شوه.

**د جنازې شرطونه:** - دَجنازې دَپاره يوڅو شرطونه دی ① دَمړی مسلمان کيدل شرط دې.
② دَ طهارت په حالت کښې کيدل شرط دې.
③ دَ جنازې مخې ته کيخودل شرط دی. لهذا دَ غائب جنازه صحيح نه ده. دې کښې اختلاف راځی.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [١٦٤٦] د جنازې په تادئی سره د اوړلو حکم

١٦٤٦ -([1])[1] ۱ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ " «أَسْرِعُوا بِالْجَنَازَةِ، ۳ فَإِنْ تَكُ صَالِحَةً فَخَيْرٌ تُقَدِّمُونَهَا إِلَيْهِ، ۴ وَإِنْ تَكُ سِوَى ذَلِكَ فَشَرٌّ تَضَعُونَهُ عَنْ رِقَابِكُمْ» " مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ ".

**ترجمه:** ۱ ابوهريره رضي الله عنه روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ جنازه آخستو سره زر ځئ ۳ که جنازه د نيک سړي وي نو د هغه د پاره په دې کښې خير دی نو هغه به خير او نيکي ته زر ورسوئ ۴ او که داسې نه وي يعنی بد سړې وي نو هغه زر د خپلو غاړو څخه خکته کولو سره کيږدئ. (بخاري مسلم)

**تسهيلات: قوله:** أَسْرِعُوا بِالْجَنَازَةِ:

**په جنازه د تلوار کولو مطلب:** - جنازه په تادئی سره دَ اوړلو مطلب دادې چه کله دکفن اودفن کار مکمل شی نوبيا مړې په کور کښې مه حصاره وئی بلکه زر ئی قبرستان ته اوړئی دې

[1]) اخرجه البخاری فی کتاب الجنائز /باب السرعة بالجنازة (رقم-١٣١٥) ومسلم فی کتاب الجنائز /باب الإسراع بالجنازة (رقم) ٥٠ - (٩٤٤) والترمذی فی کتاب الجنائز عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/ ما جاء فی الإسراع بالجنازة (رقم-١٠١٥) وابن ماجة فی کتاب الجنائز عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/ ما جاء فی الإسراع بالجنازة (رقم-١٠١٥) واحمد فی المسند ١٤٠/٢

دَپاره چه زر دفن شي ځکه چه که هغه نيك سړي وی نو هغه دَ جنت دَ نعمتونو نه ولې محروم کړې شي اوکه چرې بد سړې وی نوتاسو دا بوج په خپلو اوږو باندې ولې اخستې ګرځئ. پخپله هم نيك ؤمن سړې مطالبه کوی چه ما زر يوسئ ليکن مونږ نه شو اوريدې اوبدکاره سړې هم شور کوی چه ما چرته اوړئ لکه چه په راتلونکی حديث کښې ذکر دې.

**[١٦٤٧] دَ نيکوکار اوبدکار د جنازې وينا**

١٦٤٧-(٢)[١] ① وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«إِذَا وُضِعَتِ الْجَنَازَةُ فَاحْتَمَلَهَا الرِّجَالُ عَلَى أَعْنَاقِهِمْ، ③ فَإِنْ كَانَتْ صَالِحَةً قَالَتْ: قَدِّمُونِي، ④ وَإِنْ كَانَتْ غَيْرَ صَالِحَةٍ قَالَتْ لِأَهْلِهَا: ⑤ يَا وَيْلَهَا أَيْنَ تَذْهَبُونَ بِهَا؟ ⑥ يَسْمَعُ صَوْتَهَا كُلُّ شَيْءٍ إِلَّا الْإِنْسَانَ، ⑦ وَلَوْ سَمِعَ الْإِنْسَانُ لَصَعِقَ» " رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① ابو سعيد رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② هر کله چې جنازه تياره کړل شي او خلق يي په خپلو غاړو اوچتوي ③ نو که جنازه د نيک بخته سړي وي نو خپلو خلقو ته وايي چې ما خپل منزل ته زر ورسوئ ④ او د که د بدبخته سړي جنازه وي نو خپلو خلقو ته وايي ⑤ هاي افسوس ما چيرته وړئ ⑥ د جنازی دغه آواز سوا د انسان څخه هر شی اوری ⑦ او که انسان هغه اواز واوري نو بيهوشه کيدو سره به راوغورځيږي يا به مړشي. (بخاري)

**حل اللغات:** - ① فَاحْتَمَلَهَا: اوچتوی دا جنازه، ② لَصَعِقَ: أَيْ: لَمَاتَ أَوْغُشِيَ عَلَيْهِ: نويا به مړشي يا به بيهوشه کيدو سره راوغورځيږي.

**تسهيلات:**

**قوله: قَالَتْ: قَدِّمُونِي:**

**د قدمونی په مطلب کښې دوه احتمالات:** - ① يعنی ما خپل منزل طرفته زر يوسئ. اوس د مړی دا وينا په حقيقت باندې محمول ده. ځکه چې الله ﷻ په دې خبره باندې قادر دې چې د مړی په خله باندې دا راولی لکه څنګه چې نبی کريم ﷺ د ثابت قدمی دعا اوکړه. داشان ماقبل روايت کښې (انه يسمع قرع نعالهم أتاه ملكان) والا حديث نه معلوميږی چې مرده حقيقت کښې آوری.

② يادمړی وئيل په مجاز باندې محمول دی. او دا د مايؤل اليه په اعتبار سره دی چې فرښتې به دده څخه سوال کوی او مړې به جواب ورکوی ،

[١] اخرجه البخاری فی کتاب الجنائز/باب حمل الرجال الجنازة دون النساء (رقم-١٣١٤) والنسائی کتاب الجنائز/السرعة بالجنازة (رقم-١٩٠٩) واحمد فی المسند ٣/٣

**قوله :** وَلَوْ سَمِعَ الْإِنْسَانُ لَصَعِقَ :

**د انسان د مړی آواز لره نه اوریدو دوه وجوهات :-** ① که انسان دا آواز واوري نو هغه به بې هوشه شي. دا په دې خبره باندې دلالت کوي چې انسان کښې د مړده د آواز زغمولو طاقت نشته دې.

② په دې باندې به ایمان بالغیب باقي پاتې نشي. لیکن کله کله الله ﷻ دخپل عذاب څه نښې خلقو ته ښائی. کوم چې عقل مند وی هغه پوهه شي او کوم چې بې وقوفه وی هغه پوهه نشي.

[۱۶۳۸] د جنازې په لیدو اودریدل

۱۶۳۸-()[۳] ① وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② " «إِذَا رَأَيْتُمُ الْجَنَازَةَ فَقُومُوا، ③ فَمَنْ تَبِعَهَا فَلَا يَقْعُدْ حَتَّى تُوضَعَ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① ابو سعید رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② هر کله چې تاسو جنازه ووینئ نو اودریږي ③ او کوم سړي چې د جنازې سره وي نو هغه دې تر هغه وخته پورې نه کیني تر څو پورې چې جنازه (د خلقو د اوږو څخه په زمکه یا په قبر کښې) کیښودل شوی نه وي. (بخاري مسلم)

**تسهیلات: قوله :** إِذَا رَأَيْتُمُ الْجَنَازَةَ فَقُومُوا:

**د مړی د جنازې دپاره اودریدو کښې توجیهات :-** ① دَمړی دَ جنازې دَپاره اودریدل دَ اسلام په شروع کښې وو بیا منسوخ شو. وړاندې دَحضرت علی رضي الله عنه په روایت نمبر ۳۵کښې چه دا کوم راغی دَجمهورعلماؤ په نیز هغه دَدې حدیث دَپاره ناسخ دي.

② بعضې علماء احناف فرمائی که چرې سړې جنازې سره تلل غواړی یا اوږه ورکوی نو هغه دې اودریږی گنی نه دې اودریږی. که چرې دا مقصد ئې نه وی نو هسې دَ جنازې دَپاره اودریدل مکروه دی.

③ بعضې علماؤ فرمائیلی دی چه سړی ته دَ اودریدو او نه اودریدو دواړو اختیار دې.

بهرحال په دې باره کښې مختلف روایتونه راغلی دی بعضې کښې دَ اودریدو ذکر دې او بعضې کښې نه دې. بعضې کښې دَ قیام یوه وجه بیان کړې شوې ده بعضې کښې بله وجه بیا کړې شوې ده.

**دبحث خلاصه :-** اوس خلاصه دا شوه که یوسړې دَ مرګ دَ حادثه یا ویرې او سختې فزع دَ

---

[1]) اخرجه البخاری فی کتاب الجنائز /باب: من تبع جنازةً فلا یقعد حتی توضع عن مناکب الرجال. فإن قعد أمر بالقيام زرقم-۱۳۱۰) ومسلم فی کتاب الجنائز /باب القيام للجنازة (رقم) ۷۳ - (۹۵۸) کتاب الجنائز. باب القيام للجنازة (رقم-۳۱۷۳) والترمذی کتاب الجنائز عن رسول الله صلى الله عليه وسلم / ما جاء فی القيام للجنازة (رقم-۱۰٤۳) وابن ماجة

وجې نه اودریږی یا د فرښتو د احترام د وجې نه اودریږی یا د اوږې ورکولو په غرض سره اودریږی نو مضائقه نشته دې. بغیرد څه مقصد نه اودریدو کښې څه فائده نشته دې په زیربحث حدیث کښې دا آدب هم بیان کړې شوې دې که یو سړې جنازې سره تلل غواړی نو ترکومې چه جنازه په زمکه نه ده کیخودې شوې دا سړې دې ذهغې نه مخکښې نه کینی ممکن دی چه د جنازې په کوزولو او کیخودلوکښې د امداد ضرورت پیښ شی

**[١٦٤٩] د نبی علیه السلام د جنازې دپاره اودریدل**

١٦٤٩- ( )[٤] [١] وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: [٢] «مَرَّتْ جَنَازَةٌ، فَقَامَ لَهَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقُمْنَا مَعَهُ [٣] فَقُلْنَا: يَا رَسُولَ اللّٰهِ، إِنَّهَا يَهُودِيَّةٌ. [٤] فَقَالَ: "إِنَّ الْمَوْتَ فَزَعٌ، فَإِذَا رَأَيْتُمُ الْجَنَازَةَ فَقُومُوا» "مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] حضرت جابر رضی الله عنه راوي دي [٢] چې یوه جنازه تیره شوه نو رسول الله ﷺ د هغې په لیدو سره ودریدلو مونږ هم د حضور ﷺ سره ودریدلو [٣] بیا مونږ عرض اوکړو چې یا رسول الله ﷺ دا خو د یوې یهودیې ښځې جنازه وه (د یو مسلمان جنازه خو نه وه چې ته د هغې د تعظیم او تکریم د پاره پاڅیدلو) [٤] حضور ﷺ وفرمایل چې مرګ د ویرې شي دي هر کله چې تاسو یوه جنازه ووینئ (اګر که هغه د یو کافر وي) نو اودریږئ (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① فَزَعٌ: اى ذُوفَزَعٍ: د ویرې څیز.

**تسهیلات: قوله : فَإِذَا رَأَيْتُمُ الْجَنَازَةَ فَقُومُوا:**

**د نبی علیه السلام د اودریدو دوه وجوهات:-**

① امام ابن الملک رحمه الله فرمائی چې جنازې لیدلو سره اودریدل د ویرې اظهاردې او زړه کښې د ویرې سبب دې. او چې د چا په زړه کښې ویره نه راځی نو دا ددې علامت دې چې د هغه زړه سخت دې. قیام نه مراد دخپل زړه حالت بدلول دی.

② د نبی کریم ﷺ اودریدل د تعظیم په طور نه وو بلکه حضرت نبی کریم ﷺ په دې وجه اودریدلو چې د یهودی ښځې جنازه د حضرت نبی کریم ﷺ په سر باندې تیره نشی.

**[١٦٥٠] د نبی علیه السلام د جنازې سره اودریدل**

١٦٥٠- ( )[٥] [١] وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ: [٢] «رَأَيْنَا رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَامَ فَقُمْنَا، [٣] وَقَعَدَ فَقَعَدْنَا، يَعْنِي

---

[1]) اخرجه البخاری فی کتاب الجنائز /باب من قام لجنازة یهودی (رقم) ١٣١١. وابوداود فی السنن کتاب الجنائز. باب القیام للجنازة (رقم-٣١٧٤) . والنسائی کتاب الجنائز /باب القیام لجنازة أهل الشرک (رقم-١٩٢٢) وابن ماجة کتاب الجنائز /باب ما جاء فی القیام للجنازة (رقم-١٥٤٣) واحمد فی المسند ٣/٣١٩

[2]) اخرجه مسلم فی کتاب الجنائز /باب نسخ القیام للجنازة (رقم) ٨٤ - (٩٦٢) کتاب الجنائز. باب القیام للجنازة (رقم-٣١٧٥) والترمذی فی کتاب الجنائز عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ الرخصة فی ترک القیام لها (رقم-١٠٤٤) وابن ماجة کتاب الجنائز /باب ما جاء فی القیام للجنازة (رقم- ١٥٤٤) ومالک فی الموطا کتاب الجنائز /باب الوقوف للجنائز. والجلوس علی المقابر (رقم-٣٣)

فِي الْجَنَازَةِ». [٣] رَوَاهُ مُسْلِمٌ، وَفِي رِوَايَةِ مَالِكٍ، وَأَبِي دَاوُدَ: قَامَ فِي الْجَنَازَةِ ثُمَّ قَعَدَ بَعْدُ.

**ترجمه:** [١] حضرت علي رضي الله عنه فرمايي [٢] چې مونږ رسول الله ﷺ د يوي جنازي سره ولاړ وليدلو نو مونږ هم د حضور ﷺ سره ودريدلو [٣] کوم وخت چې حضور ﷺ کينا ستو نو مونږ هم کينا ستلو يعني په يوه جنازه کښې، [٤] مسلم، او د امام مالک رحمه الله او د ابوداؤد رحمه الله د روايت الفاظ دا دي چې حضور ﷺ جنازه ليدلو سره ودريدلو او د هغې څخه روسته کيناستلو.

**تسهيلات: قوله: قَامَ فَقُمْنَا وَقَعَدَ فَقَعَدْنَا:**

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:** - دَدې جملې دوه معانی دی ① ړومبې معنی داده چه دَ جنازې په راتلو سره به حضورپاك اودريدو نومونږ به هم اودريدو. اوچه کله به جنازه لاړه اوغائب به شوه نوحضورپاك به کيناستو نومونږ به هم کيناستو

② دويمه معنی داده چه حضورپاك خوبه دَ جنازې دَ وجې نه څه ساعت اودريدو نومونږ به هم پاسيدو بيا هغوی پاسيدل پريخودل حضورپاك به دَ جنازې دَپاره نه اودريدو بلکه ناست به وو نو مونږ به هم ناست وو. دادويمه معنی زياته واضح ده او په دې کښې دَ جنازې دَپاره دَ پاسيدلو دَحکم منسوخ کيدوطرف ته اشاره ده.

**[١٦٥١] د تدفين پورې مړی سره ايساريدو باندې د دوچنده ثواب ملاويدل**

١٦٥١ - ( ) [٦] [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] «مَنِ اتَّبَعَ جَنَازَةَ مُسْلِمٍ إِيمَانًا وَاحْتِسَابًا، [٣] وَكَانَ مَعَهُ حَتَّى يُصَلَّى عَلَيْهَا، وَيُفْرَغَ مِنْ دَفْنِهَا، [٤] فَإِنَّهُ يَرْجِعُ مِنَ الْأَجْرِ بِقِيرَاطَيْنِ، [٥] كُلُّ قِيرَاطٍ مِثْلُ أُحُدٍ، [٦] وَمَنْ صَلَّى عَلَيْهَا ثُمَّ رَجَعَ قَبْلَ أَنْ تُدْفَنَ [٧] فَإِنَّهُ يَرْجِعُ بِقِيرَاطٍ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] ابوهريره رضي الله عنه روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] کوم سړي چې د يو مسلمان د جنازي سره د مومن کيدو په حيثيت سره (يعني د شريعت په فرمان باندې د عمل کولو په غرض سره) او د طلب ثواب له خاطره لاړ شي [٣] او د جنازي سره وي تر دي چې د هغه د جنازي مونځ وکړي او د هغه د تدفين څخه فارغه شي [٤] نو هغه سړي دوه قيراطه ثواب سره واپس کيږی [٥] چې په هغې کښې هر قيراط د اُحد د غره برابر دي [٦] او کوم سړي چې يواځې د جنازي مونځ کولو سره راشي او په تدفين کښې شريک نشي [٧] نو هغه د يو قيراط ثواب سره واپس کيږی. (بخاری مسلم)

**حل اللغات:** - ① اِحْتِسَابًا: أَيْ: طَلَبًا لِلثَّوَابِ: دثواب دپاره. ② قِيرَاطٍ: اَلْقِيرَاطُ جُزْءٌ مِنْ أَجْزَاءِ الدِّينَارِ: اصل کښې قيراط د دينار څه حصه ده، خو دلته ترې مراد د أحد دغر هومره ثواب دې لکه چه فرماني: أَيْ: وَلَو

[١] اخرجه البخاری فی کتاب الجنائز /باب من انتظر حتی تدفن (رقم-١٣٢٥) ومسلم فی کتاب الجنائز /باب فضل الصلاة علی الجنازة واتباعها (رقم) ٥٢ - (٩٤٥) ابوداود کتاب الجنائز. باب فضل الصلاة علی الجنائز وتشييعها(رقم-٣١٦٨). والنسائی کتاب الجنائز /باب فضل من يتبع جنازة (رقم-١٩٤٠) واحمد فی المسند: ٢/٢

مُوَرِجِهِمَا يَكُونُ مِثْلَ جَبَلِ أُحُدٍ اهـ.

**تسهیلات: قوله : فَإِنَّهُ يَرْجِعُ بِقِيرَاطٍ:**

**د قیراط د لفظ تحقیق:** - دَ معمولی مقدار سکې نوم دې چه دَ اوربشو دَ پنځو دانو برابر وی دَ قیراط ذکر کله دَ تحقیر او تقلیل دپاره کیږی اوکله دَ تکثیر دپاره کیږی کله چه دَتکثیر دپاره کیږی نوبیو قیراط دَ احددَ غر برابر وی لکه چه دلته دې اوچه کله دَتقلیل دپاره کیږی نودَ څلورانیز یا اتانیز په معنی کښې وی لکه چه حضورپاك دَ قریشو چیلئی څرولـودَ کمې معاوضې طرف ته دا شان اشاره فرمائیلې ده "کنت ارعی غنما لقریش علی قراریط" ما به دَ قریشو چیلئی په څلورانیز اتانیز څرولې

**[١٦٥٢] د نجاشي باچا د جنازې غائبانه مونځ**

١٦٥٢-( )[٧] ١ وَعَنْهُ: «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَعَى لِلنَّاسِ النَّجَاشِيَّ ٢ الْيَوْمَ الَّذِي مَاتَ فِيهِ، ٣ وخَرَجَ بِهِمْ إِلَى الْمُصَلَّى ٤ فَصَفَّ بِهِمْ وَكَبَّرَ أَرْبَعَ تَكْبِيرَاتٍ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ ابوهریره رضی الله عنه فرمایي چې رسول الله ﷺ د نجاشي د وفات خبر خلقو ته په هغه ورځ ورسولو ٢ په کومه ورځ چې هغه وفات شوي وو ٣ بیا د صحابه ؤ سره عیدگا ته یي تشریف یوړلو ٤ هلته یي د ټولو سره [د جنازې مونځ کولو د پاره] صف بندي وکړه او څلور تکبیرونه یي وکړل. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ١ نَعَى: أَيْ: أَخْبَرَهُمْ بِمَوْتِهِ: حضورپاك دَ نجاشی دَ مرګ خبر صحابه کرامو رضی الله عنهم ته ورکړې وو.(دَ چادَ مرګ خبرته نعی وائی). ٢ النَّجَاشِيِّ :دَ حبشې دَ بادشاه لقب وو، دده خپل نوم "اصحمه" وو ، ده نبی علیه السلام لیدلې نه وو او مسلمان شوې وو. ٣ الْمُصَلَّى: جنازګاه.

**تسهیلات: قوله : خَرَجَ بِهِمْ إِلَى الْمُصَلَّى:**

**د نجاشی تعارف:** - نجاشی به دَ حبشې دَ بادشاه لقب وو لکه قیصر دَ روم بادشاه او کسری دَ فارس بادشاه اوفرعون دَمصر بادشاه اوتبع دَ یمن بادشاه او خاقان دَترکو بادشاه او راجه دَ هندوستان بادشاه لقب وو. دَ نجاشی نوم "اصحمه" وو اودې مسلمان شوې وو

**په غائبانه جناره کښې مذاهب:** -

دَهغه په مرګ باندې حضورپاك دَ مدینې منورې په عیدګاه کښې غائبانه جنازه ورکړې وه. اوس دَ غائبانه جنازې دَ مونځ په جواز او عدم جواز کښې دَ فقهاؤ اختلاف پیدا شوې دې.

[١] اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب موت النجاشی (رقم-٣٨٧) ومسلم فی کتاب الجنائز/باب فی التکبیر علی الجنازة (رقم) ٦٢ - (٩٥١) وابوداود کتاب الجنائز/باب فی الصلاة علی المسلم یموت فی بلاد الشرک(رقم-٣٢٠٤) والترمذی کتاب الجنائز عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ ما جاء فی التکبیر علی الجنازة(رقم-١٠٢٢) والنسائی کتاب الجنائز/باب عدد التکبیر علی الجنازة (رقم-١٩٨٠) وابن ماجة کتاب الجنائز/باب ما جاء فی الصلاة علی النجاشی (رقم-١٥٣٤) ومالک فی الموطا کتاب الجنائز/باب التکبیر علی الجنائز(رقم-١٤) واحمد فی المسند ٢٨١/٢

① دَ شوافع اوغیر مقلدینو حضراتو په نیز غائبانه دَ جنازې مونځ کول جائز دی.
② جمهور علماء فرمائی چه غائبانه نماز جنازه جائز نه ده.

**داول فریق دلیل:** - زیر بحث حدیث د دوی مستدل دې.

**د دویم فریق دلائل:** - دَ صحابه کرامو اودَ امت تعامل د دوی مستدل دې. چه خلفاء راشدین کله دَ چاغائب جنازه نه ده کړې اونه په مشرق اومغرب کښې یو مسلمان دَ خلفاء راشدین غائبانه جنازه کړې ده.

② حضورپاك په ټول ژوند کښې دَ نجاشی اومعاویه منی نه علاوه دَ یو صحابی غائبانه جنازه نه ده کړې. معلومه شوه چه جائز نه ده.

**داول فریق د دلیل جواب:** - دَ نجاشی دَ جنازې کولودَپاره په حبشه کښې څوك موجود نه وو. بل په نجاشی او معاویه مزنی باندې دَ جنازې مونځ دَ حضوراکرم ﷺ خصوصیت وو دَعام امت دَپاره جائز نه ده. خصوصیت داسې اوشو چه نجاشی او معاویه مزنی دواړو جنازې دَ حضورپاك مخې ته راوړلې شوې وې نودَ حضورپاك دَپاره دا جنازه غائبانه نه وه کومه چه ئی کړې وه هغه دَ حاضر جنازه وه لکه چه رسول الله ﷺ کله هم غائبانه جنازه نه ده کړې اوکومه چه کړې هغه غائبانه نه وه بلکه حاضرانه وه. په دې باندې دلیل هم اوګورئی.

**دخصوصیت دلیل:** - ابن عبدالبر رحمه الله دَ عمران بن حصین رضی الله عنه یوروایت نقل کړې دې دکوم الفاظ چه دادی: ((عن عمران حصین إن رسول الله صلی الله علیه وسلم قال ان اخاکم النجاشی قدمات فصلوا علیه فقام فصففنا خلفه فکبّر اربعا وما نحسب الجنازة الابین یدیه)) (التعلیق الصبیح) بعضې علماؤ لیکلی دی چه الله تعالی دَ حضورپاك په مخکښې ټول حجابات اخوا کړل نو حضورپاك دَ نجاشی جنازې مشاهده کوله او ادا کوله ئی لکه چه بیت المقدس دَ حضورپاك په مخکښې منکشف شو اوحضورپاك دَکافرانودَ سوالاتو جواب ورکولو. بهرحال دَ نجاشی جنازې ته غائبانه جنازه وئیل صحیح نه دی. اوچه کله دا پیغمبری خصوصیت وو نو په دې باندې بل څوك قیاس کول جائزنه دی. لهذا غائبانه جنازه جائز نه ده اوکوم خلق چه دَ سیاسی مقاصدودَپاره غائبانه جنازې کوی نوهغه سیاست دې شریعت نه دې. دغه شان دَ احنافو په نیزدیر ځل جنازه کول هم جائز نه دی. فقهاؤ لیکلی دی که دَ ولی دَ اجازت نه بغیر جنازه اوکړې شوه نوهغه دا جنازه واپس راګرځولې شی. دَدې مطلب دادې چه اول جنازه صحیح نه وه لهذا چه څوك دویمه یا دریمه جنازه وائی دَ دې مطلب به داشی چه اولنې جنازه صحیح نه وه په دې وجه جنازه واپس راګرځولې شی. او که دَ حضرت حمزه رضی الله عنه جنازه بار بار کړې شوې وه نو هغه پیغمبری خصوصیت وو.

**فائده:** - دَ زیر بحث حدیث نه داخبره هم ثابته شوه چه جنازه دَ جمات په ځائی عیدګاه کښې کول پکاردی. دې نه وړاندې راغلې. دې حدیث نه دا خبره هم واضحه شوه چه دَ

جنازې تكبيرات څلور دي.

**[١٦٥٢] دجنازې د مونځ تکبيرات**

١٦٥٢-()[٨] [١] وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِي لَيْلٰى قَالَ: [٢] «كَانَ زَيْدُ بْنُ أَرْقَمَ يُكَبِّرُ عَلٰى جَنَائِزِنَا أَرْبَعًا، [٣] وَأَنَّهُ كَبَّرَ عَلٰى جَنَازَةٍ خَمْسًا فَسَأَلْنَاهُ [٤] فَقَالَ: كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُكَبِّرُهَا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] عبدالرحمن بن ابي ليلي وايي [٢] چې حضرت زيد بن ارقم ﷺ (صحابي) به زمونږ د جنازو په مانځه کښې څلور تکبيرونه کول [٣] په يوې جنازې باندې هغه پينځه تکبيرونه وکړل نو مونږ د هغه څخه پوښتنه وکړه [چې ته خو هميشه څلور څلور تکبيرونه کوې نن دې پينځه تکبيرونه څرنګه وکړل؟] [٤] وې فرمايل چې رسول الله ﷺ به پنځه تکبيرونه کول. (مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله: أَرْبَعًا:**

**د جنازې په مونځ کښې د څلورو تکبيرونو حکم:**- ائمه اربعه دَ جنازې په څلورو تکبيراتو باندې متفق دی. دَ څلورونه زيات تکبيرات متروك شوی دی ځکه چه دَ نبی کريم ﷺ آخری عمل په څلورو تکبيراتو باندې دې اوټول روايتونه هم په دې باندې دی. البته په بعضې رواياتو کښې پنځه يا دَدې نه زيات تکبيراتوذکر دې نوعمل په څلورو تکبيراتو باندې دی. اودې نه زياتی چه چا لوستلی دی نوکيدې شی چه دَ شهداء دَ تکريم دَپاره داسې کړې شوي وی.

**د زيربحث حديث په مطلب کښې دوه اقوال:**- ① دَ حضرت زيدبن ارقم ﷺ دَ زيربحث حديث مطلب هم دغه دې چه حضورپاك کله کله پنځه تکبيرونه کړی دی

② يادامطلب ئې دې حضورپاك به اول پنځه کول روستوئې پريخودل. دَ صحابه کرامو ﷺ يا عوامو دَحضرت زيد بن ارقم ﷺ نه دَ زياتی تکبيرونوپه وئيلو سوال کول پخپله دَدې خبرې دليل دې چه دَڅلورو تکبيرونونه زياتی عمل امرنه وو. حضرت عمر ﷺ په څلورو تکبيرونو باندې امت راجمع کړې وو. تعليق الصبيح کښې تفصيل موجود دې.

---

[١] اخرجه مسلم فی کتاب الجنائز/باب الصلاة علی القبر (رقم) ٧٢ - (٩٥٧) وابوداود کتاب الجنائز، باب التکبير علی الجنازة (رقم-٣١٩٧) والترمذی کتاب الجنائز عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/ ما جاء فی التکبير علی الجنازة(رقم-١٠٢٣) والنسائی کتاب الجنائز/باب عدد التکبير علی الجنازة (رقم-١٩٨٢) وابن ماجة کتاب الجنائز/باب ما جاء فيمن کبر خمسًا (رقم-١٥٠٥) واحمد فی المسند: ٣٦٧/٤

**[١٦٥٤] دَ جنازې مونځ کښې دَ سورت فاتحه لوستل**

١٦٥٣—()[٩] [١] «وَعَنْ طَلْحَةَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَوْفٍ قَالَ: [٢] صَلَّیْتُ خَلْفَ ابْنِ عَبَّاسٍ عَلٰی جَنَازَةٍ [٣] فَقَرَأَ فَاتِحَةَ الْکِتَابِ. [٤] فَقَالَ: لِتَعْلَمُوا أَنَّهَا سُنَّةٌ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [١] طلحه بن عبد الله بن عوف رحمه الله (تابعي) وايي [٢] چې ما په ابن عباس رضی الله عنه پسې د جنازې مونځ اوکړو [٣] هغه (د تکبير اولی څخه پس) سورة فاتحه وويله [٤] او وي فرمايل چې ما سورة فاتحه څکه ويلې ده چې تاسو خلقو ته معلومه شي چې دا سنت ده. (بخاري)

**حل اللغات:** - ① سُنَّةٌ: أَيْ: لَیْسَ بِدْعَةً: يعنې فاتحه وئيل سنت دی بدعت نه دی.

**تسهیلات: قوله : فَقَرَأَ فَاتِحَةَ الْکِتَابِ:**

**په جنازه کښې د سورة فاتحې په لوستلو کښې مذاهب:-**

دَ جنازې په مونځ کښې فاتحه وئيل پکاردی که نه؟ دې کښې دَعلماؤ اختلاف دې.

① امام شافعي رحمه الله او امام احمدبن حنبل رحمه الله په نيز دَ اول تکبير نه پس فاتحه وئيل واجب دی او په مزه وئيل افضل دی. نن صبا حرمينو شريفينو ائمه کله فاتحه وائی مګر دَ ډيرې ګڼړې په وخت نه وائی.

② امام مالک رحمه الله او امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز جنازه کښې فاتحه په دې وجه چه دَ قرأت قرآن وئيل جائز نه دی او په توګه دَ حمد اوثنا که چرې څوک وئيل غواړی نو هغه جدا خبره ده.

**داول فريق دلائل:**

① زيربحث دَحضرت ابن عباس رضی الله عنهما دَ دوی مستدل دې. اودَ سنت الفاظ دَ واجب په معنی باندې اخلی. مطلب دا چه فاتحه وئيل واجب دی مګر مسنون طريقه سره ثابت دی.

**داول فريق د دليل جواب:** -دَ حضرت ابن عباس رضی الله عنهما په دې روايت کښې هغوی فاتحه سنت ګرځولې ده ليکن علماء ليکی چه دَ حضرت ابن عباس رضی الله عنهما په عام توګه په خپل اجتهادی فعل اوعمل باندې دَ سنت اطلاق کوی. دلته هم هغوی خپل اجتهاد ته سنت وئيلی دی. هم دغه وجه ده تاسو فاتحه فی صلوة الجنازة معامله کښې منفرد ئی هيڅا دَ هغوی ملګرتيا نه ده کړې بلکه اولته په هغوی دَ سوالونو باران کړې دې.

**داول فريق دويم دليل:** - ② جنازې ته صلوة وائی اوکوم څيزچه هم صلاة وی دَهغې دَ پاره "لاصلوة الابفاتحة الکتاب" حکم دې.

---

[١]) اخرجه البخاری فی کتاب الجنائز /باب قراءة فاتحة الکتاب علی الجنازة (رقم) ١٣٣٥. وابوداود کتاب الجنائز. باب ما يقرأ علی الجنازة (رقم-٣١٩٨) والترمذی کتاب الجنائز عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ ما جاء فی القراءة علی الجنازة بفاتحة الکتاب (رقم-١٠٢٦) والنسائی کتاب الجنائز /باب الدعاء (رقم-١٩٨٨) وابن ما جة کتاب الجنائز /باب ما جاء فی القراءة علی الجنازة (رقم-١٤٩٥)

**د اول فریق د دویم دلیل جواب:-** ((لاصلاة الابفاتحة الكتاب)) د كامل مونځ په باره كښې وراد شوي دي اوجنزه كامل مونځ نه دې هم دا وجه ده چې ركوع او سجده په كښې نشته.

**د دویم فریق دلائل:-** ① دَ رسول الله ﷺ نه پخپله په جنازه كښې فاتحه وئيل ثابت نه دی.

② موطا امام مالك كښې روايت دې چه حضرت ابن عمر رضي الله عنهما په نماز جنازه كښې فاتحه نه وئيله.

③ جنازه خودعاء ده اودَ دعادَ آداب نه دی چه اول دې حمدباری تعالی وی بيا نبی پاك ﷺ باندې درود وی اوبيا دَ مړی وغيره دَ پاره دعا اوكړی نو په دې دعاكښې دَ فاتحه دَ وئيلو څه مطلب؟ او په توګه دَ حمداو ثناء كه څوك فاتحه اووائی نوهغه جدا خبره ده. (كذا قال ابن همام)

**[١٦٥٥] دَمړی دَپاره دَ جنازې مونځ كښې دَ نبی علیه السلام دعا**

١٦٥٥-()[١٠] ① وَعَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ: ② «صَلَّى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى جَنَازَةٍ، ③ فَحَفِظْتُ مِنْ دُعَائِهِ وَهُوَ يَقُولُ: ③ اللَّهُمَّ اغْفِرْ لَهُ، وَارْحَمْهُ، ④ وَعَافِهِ وَاعْفُ عَنْهُ، ⑤ وَأَكْرِمْ نُزُلَهُ، وَوَسِّعْ مُدْخَلَهُ، ⑥ وَاغْسِلْهُ بِالْمَاءِ وَالثَّلْجِ وَالْبَرَدِ، ⑦ وَنَقِّهِ مِنَ الْخَطَايَا كَمَا نَقَّيْتَ الثَّوْبَ الْأَبْيَضَ مِنَ الدَّنَسِ، ⑧ وَأَبْدِلْهُ دَارًا خَيْرًا مِنْ دَارِهِ ⑨ وَأَهْلًا خَيْرًا مِنْ أَهْلِهِ وَزَوْجًا خَيْرًا مِنْ زَوْجِهِ ⑩ وَأَدْخِلْهُ الْجَنَّةَ وَأَعِذْهُ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ أَوْ مِنْ عَذَابِ النَّارِ، ⑪ وَفِي رِوَايَةٍ: «وَقِهِ فِتْنَةَ الْقَبْرِ وَعَذَابَ النَّارِ. ⑫ قَالَ: حَتَّى تَمَنَّيْتُ أَنْ أَكُونَ أَنَا ذَلِكَ الْمَيِّتَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① عوف رضي الله عنه بن مالک فرمايي ② چې [يو ځل] رسول الله ﷺ د جنازي مونځ وكړو ③ ما د حضور ﷺ هغه دُعا ياده كړله چې حضور ﷺ به [د دريم تكبير څخه روسته] فرمايله (او هغه داده) ③ اللَّهُمَّ اغْفِرْ لَهُ وَارْحَمْهُ وَعَافِهِ وَاعْفُ عَنْهُ وَأَكْرِمْ نُزُلَهُ وَوَسِّعْ مُدْخَلَهُ وَاغْسِلْهُ بِالْمَاءِ وَالثَّلْجِ وَالْبَرَدِ وَنَقِّهِ مِنَ الْخَطَايَا كَمَا نَقَّيْتَ الثَّوْبَ الْأَبْيَضَ مِنَ الدَّنَسِ وَأَبْدِلْهُ دَارًا خَيْرًا مِنْ دَارِهِ وَأَهْلًا خَيْرًا مِنْ أَهْلِهِ وَزَوْجًا خَيْرًا مِنْ زَوْجِهِ وَأَدْخِلْهُ الْجَنَّةَ وَأَعِذْهُ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ أَوْ مِنْ عَذَابِ النَّارِ اي الله د ده ګناه وبخښي، په ده رحم وكړي (يعني د ده عبادات او طاعات قبول كړي) ④ دي په عافيت كښې ولري، د ده لغزشونه معاف كړي ⑤ (په جنت كښې) د ده ښه ميلمستيا وكړي، د ده قبر فراخه كړي ⑥ او دی په اوبو سره او په واورې سره او په ږلي سره پاک كړي ⑦ (يعني په قسم قسم مغفرت سره د ده ګناه صفا كړي) او د ګناهو څخه يې داسې پاكيزه كړي څرنګه چې سپينه كپړه د خيرې څخه پاكول كيږی ⑧ ده ته د دنيا د دې كور څخه د آخرت بهتر كور وركړي ⑨ د ده د خادمانو څخه بهتر خادمان ورته وركړي او د ده د ښځي څخه بهتره ښځه ورته وركړي ⑩ دي بغير د عذاب څخه په جنت كښې داخل كړي او ده ته د قبر د

---

[1]) اخرجه مسلم فی كتاب الجنائز /باب الدعاء للميت فی الصلاة (رقم) ٨٥ - (٩٦٣). والنسائی كتاب الجنائز /باب الدعاء (رقم-١٩٨٣) ابن ماجة كتاب الجنائز /باب ما جاء فی الدعاء فی الصلاة على الجنازة (رقم--١٥٠٠)

عذاب څخه يا وي فرمايل چې د دوزخ د عذاب څخه پناه ورکړي،[۱۱] او د يو روايت دا الفاظ دي چې د قبر د فتنې څخه [يعنی د فرشتو په جواب کښې د حيرانيدو څخه] او د أور د عذاب څخه يې بچ کړي [۱۲] حضرت عوف ﷺ فرمايي چې هر کله ما د حضور ﷺ د ژبې مبارکې څخه دهغه مړي د پاره دا دعا واوريده نو ماته ډيره رشک راغي اوپسخيدم او بې اختياره زما په زړه کښې دا آرزو پيدا شوه چې کاش دا مړي زه وي او حضور ﷺ زما د پاره دا دعا کړي وی. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① عَافِهِ: أَيْ: سَلِّمْهُ مِنَ الْعَذَابِ وَالْبَلَايَا: يعنی دعذابونو او مصيبتونو نه ئې خلاص کړې. ② وَأَكْرِمْ نُزُلَهُ: يعنی دده ښه ميلمستيا اوکړې، ③ مُدْخَلَهُ: أَيْ: قَبْرَهُ: يعنی قبر. ④ الثَّلْجِ: واؤره، ⑤ الْبَرَدِ: يخ يعنی ږلئ، ⑥ نَقِّهِ: پاک صفا ئې کړې، ⑦ الدَّنَسِ: أَيْ: الْوَسَخِ: خيرې،

**تسهیلات: قوله : وَزَوْجًا خَيْرًا مِنْ زَوْجِهِ:**

**د زوجا څخه مراد:** - يعنی په جنت کښې ده ته دَده دَ ښځې نه بهترښځه ورکړې دې نه مرادد جنت حوری دی. علماؤ ليکلی دی چه نيکه اومؤمنه ښځه به په جنت کښې داسې حوره جوړه شی چه دَجنت دَحورونه به غوره وی.

**په جنازه کښې د مړی دپاره بهترينه دعا:** - دَ يوخيزدَ صفائی اوپاکوالی دَپاره چه کومې اوبه استعماليږی هغه يا دَ وآؤرې وی يا دَ ګلې وی يا دَ چينوعام اوبه وی په دې حديث کښې دَ دغې دَټولو قسمونوذکرکړې شوې دې.

دايوه عجيبه دعاده دَاحنافو علماؤ له پکاردی چه داپه جنازوکښې عام کړی. دَخپلې جامع مانع جنازې دعا هم اولولئی مګرچه داددعاهم ورسره وی. دَعربوعلماؤ دا لولی. زمونږ دَ جنازې دعاډيره مختصر ده. اوس اوس مسجد نبوی کښې دَ ماسپښين مونځ نه پس دَ جنازې مونځ اوشو په اعلان کښې اوخودلې شوچه دَډيرو مړو جنازه ده. کله اعلان کيږی چه ښځه ده اوکله دَ ماشوم اعلان کيږی. دَدې تصريح اوتعيين ضرورت ځکه پيښيږی چه داخلق مړی ته دعاکښې ضمير راګرځوی. که چرې يووی نودَمفردضميروی اوښځه وی نودَ مؤنث ضمير راګرځولې شی.

**د عوف بن مالک تمنا کول:** - عوف بن مالک ﷺ فرمائی چه کله داعجيبه دعامادَ مړی دَپاره دَحضورپاك نه واؤريده نوماوئيل چه افسوس دا مړې خوزه وې نودادعابه ماته حاصله شوې وه. يادلرئی چه نبی کريم ﷺبه کله کله دَ امت دَتعليم دَپاره په زوره هم دَ جنازې دعا لوستله. امام بخاری ﷫ فرمائی چه دَجنازې څومره دعاګانې هم دی په هغې کښې دامذکوره دعادَټولو نه زيات صحيح اومستند ده.

## [١٦٥٦] په جمات كښې دننه دَ جنازې مونځ كول

١٦٥٢-()[١] [١] وَعَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ: [٢] «أَنَّ عَائِشَةَ لَمَّا تُوُفِّيَ سَعْدُ بْنُ أَبِي وَقَّاصٍ قَالَتْ: [٣] ادْخُلُوا بِهِ الْمَسْجِدَ حَتَّى أُصَلِّيَ عَلَيْهِ [٤] فَأُنْكِرَ ذَلِكَ عَلَيْهَا فَقَالَتْ: [٥] وَاللَّهِ، لَقَدْ صَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى ابْنَيْ بَيْضَاءَ فِي الْمَسْجِدِ سُهَيْلٍ وَأَخِيهِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] ابي سلمه بن عبدالرحمن وايي [٢] چې كوم وخت حضرت سعد بن ابي وقاص ﷛ وفات شو [او د هغه جنازه د هغه د مكان څخه بقيع (مقبرې) ته د دفن كولو د پاره راوړل شوه] نو بي بي عايشي ﵂ وفرمايل [٣] چې هغه مسجد ته راوړئ چې زه هم مونځ وكړم [٤] خلقو د دې دا كار بې ډوله وګڼلو او انكار يي پرې اوكړو [چې په مسجد كي د جنازې مونځ څرنګه كيدي شي] بي بي عايشي ﵂ وفرمايل [٥] چې قسم په خداي حضور ﷺ د بيضا د دواړو زامنو سهيل او د هغه د ورور د جنازې مونځ په مسجد كښې كړې دي. (مسلم)

**تسهيلات: قوله : قَالَتْ: ادْخُلُوا بِهِ الْمَسْجِدَ:**

**دحديث شان ورود:-** حضرت سعيدبن ابی وقاص ﵁ فاتح عراق دَحضورپاك مامادې. حضرت عائشې ﵂ دَهغوی جنازه جمات ته دَ راوړلودَپاره اوفرمائيل، دې دَپاره چه پخپله په جنازه كښې شريكه شي. صحابه كرامو دا خوښ نه كړل نوهغې دَ دليل په توګه دَ بيضاء دَدوو خامنوجنازه پيش كړه چه دَدواړو جنازه په مسجدنبوی كښې حضورپاك اداكړی دی. بيضاء دَ دغه دواړو دَمورنوم دې. دَ يوورور نوم سهيل ﵁ دې اودَ بل نوم دلته ذكرنه دې ليكن دَهغه نوم سهل ﵁ دې.

**دسعد بن ابی وقاص مدفن:-** دَحضرت سعدبن ابی وقاص ﵁ وفات په وادی عقيق كښې دَهغه په كوركښې شوې وو. دَهغه ځائی نه جنت البقيع ته راوړلې شو دفن كړې شو. په مدينه باندې دَ مروان حكومت وو اوعام خلافت دَ حضرت معاويه ﵁ وو. اوس په دې كښې دَ فقهاؤ اختلاف دې چه دَ جنازې مونځ په جمات كښې جائزدې كه نه؟

### په جمات كښې د جنازې مونځ ادا كولو كښې مذاهب:-

① دامام شافعی ﵀ په نيزپه جمات كښې دَ جنازې مونځ كول جائزدې.

② دَ احنافو په نيزپه جمات كښې جنازه كول مكروه دی. بيادَ احنافو په نيز يوقول دَمكروه تحريمی دې ليكن ابن همام ﵀ كراهت تنزيهی ته ترجيح وركړې ده.

**داول فريق اول دليل:-** زيربحث حديث د دوی مستدل دې. چه حضرت عائشه ﵂ فرمائی

[١] اخرجه مسلم فی كتاب الجنائز /باب الصلاة على الجنازة فی المسجد (رقم) ١٠١ - (٩٧٣) وابوداود كتاب الجنائز. باب الصلاة على الجنازة فی المسجد (رقم-٣١٩٠)

ادخلوه چه دا دننه راوړئی دې دپاره چه زه هم په جنازه کښې شریکه شم.

**د اول فریق د اول دلیل جواب:-** دحضرت عائشې رضی الله عنها دا فرمان عام صحابه کرامو خوښ نه کړو بلکه ددې نه ئې انکار اوکړو. بیا حضرت عائشه رضی الله عنها قسم اوخوړلو د دلیل په توګه ئې دحضرت سهیل اوحضرت سهل رضی الله عنهما د جنازې حواله ورکړه. دحضرت سعد رضی الله عنه دجنازې نه د صحابه کرامو رضی الله عنهم انکار ددې حدیث نه د جواب دپاره کافی دې.

**داول فریق دویم دلیل:-** دغه شان د بیضاء ددوو ځامنو جنازې په جمات کښې شوی وې دا هم د دوی مستدل دې.

**د اول فریق د دویم دلیل جواب:-** رسول الله صلی الله علیه وسلم د بیضاء د دوو ځامنو جنازه د کومې مجبورئی لاندې کړې وه؟ نوعلماء لیکی چه حضورپاك خویا په اعتکاف کښې وویاد سخت باران د وجې نه داسې شوی دی. نو دا دعذر صورت وو او د عذر په صورت د عام حالاتو قیاس کول صحیح نه دی. په یوروایت کښې تصریح موجود ده چه حضورپاك په اعتکاف کښې وو په دې وجه جنازه دننه اوکړې شوه.

**د دویم فریق دلائل:-** ① دحضرت ابوهریره رضی الله عنه حدیث د دوی مستدل دې (عن ابی هریرة رضی الله عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم من صلی علی جنازة فی المسجد فلا شئ له اوفلا اجرله) (سنن ابوداؤد ج۲ص۹۸)

② د صحابه کرامو تعامل هم په دې باندې دلیل دې چه دجنازو مونځونه د جماتونو نه بهرکیدل. لهذا د سخت عذرنه بغیر دجنازې مونځ په جمات کښې دننه مکروه دې.

③ جماتونه د جنازو دپاره نه دی جوړ شوی. دحضورپاك په زمانه کښې دجمات نه جدا یوځائی جوړشوې وو چرته چه به جنازې کیدلې.

**په جمات کښې د جنازې د مونځ د کراهت دوه علتونه:-** بیا د احنافو په نیز په جمات کښې د جنازې د کراهت دوه علتونه دی دهریواثر جدا جدا دې.

① د جمات سخا کیدل دی یعنی داخطره ده چه جنازه دننه راوړلوسره د مړی نه څه وینه وغیره پریوځی په کوم سره چه به جمات خراب شی. ددې علت په رڼا کښې که چرې مړې د جمات بهر کیخودې شوې وی اومونځ ګذار دننه وی نوجنازه به جائزشی.

② د جماتونو جوړولو مقصد جنازې نه بلکه نور عبادات دی. ددې علت په رڼا کښې مطلقًا په جمات کښې د جنازې مونځ کول صحیح نه دی که جنازه په جمات کښې دننه وی اوکه بهر وی.

**[١٦٥٧] دَ جنازې مونځ کښې د امام د اودريدو مقام**

١٦٥٧ – (١) [١٢] ١ وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ قَالَ: ٢ «صَلَّيْتُ وَرَاءَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى امْرَأَةٍ مَاتَتْ فِي نِفَاسِهَا ٣ فَقَامَ وَسَطَهَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ سمره رضي الله عنه بن جندب فرمايي ٢ چې ما په رسول الله ﷺ پسې د يوې ښځې د جنازې مونځ اوکړو چې د نفاس په حالت کښې وفات شوې وه ٣ حضور ﷺ د مانځه د پاره د جنازې په مينځ کښې ودريدلې وو. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① نِفَاسِهَا: أَيْ: حِينَ وِلَادَتِهَا: د ماشوم په ولادت کښې.

**تسهيلات: قوله: فَقَامَ وَسَطَهَا:**

**مرده سره د امام د اودريدو په محل کښې مذاهب:** -

په دې لفظ کښې که په سين باندې فتحه اووئيلې شي نو دَ دوو طرفو بالکل دَ مينځ خاص نقطه به مراد اخستې شي اوکه چرې سين ساکن اووئيلې شي نو دَ دوو طرفونو دَ مينځ څه حصه به مراد اخستې شي. اوس په دې کښې اختلاف دې چه امام دَ جنازې په محاذاتو کښې کوم طرف ته اودريږي.

① شوافع حضرات فرمائی که چرې مړې سړې دې نوامام دې دَهغه دَ سر طرف ته اودريږي اوکه چرې ښځه وی نو شاته حصه يعنی کوناټو او عجز سره دې اودريږی.

② دَ احنافو په نيز په ښځه او سړی کښې هيڅ فرق نشته دې امام له پکاردی چه دَمړی دَ سينې طرف ته دې اودريږی

**د اول فريق دليل:** - شوافع دا د «وسط» د لفظ په عجيز باندې حمل کړې دې يعنی دا مقام مائل په طرف دَ اسفل دې. بهرحال دادَ اولی اوغير اوغيراولی مسئله ده هيڅ جګړه نه ده.

**ددويم فريق دليل:** - دَمذکوره حديث ظاهری الفاظ خودَ احنافو په حق کښې دی څکه چه سينه په مينځ کښې ده اوپورته سر دواړه لاسونه او اوږې دی او ښکته دوه خپې کوناټې او فتونان دی دا نصف نصف دی کوم چه وسط دې.

**[١٦٥٨] د تدفين څخه پس په قبر د جنازه کولو حکم**

١٦٥٨ – (٢) [١٣] ١ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: ٢ «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ بِقَبْرٍ دُفِنَ لَيْلًا ٣ فَقَالَ: مَتَى

---

[1]) اخرجه البخاری فی کتاب الجنائز/باب الصلاة علی النفساء إذا ماتت فی نفاسها (رقم-١٣٣١) ومسلم فی کتاب الجنائز/باب أين يقوم الإمام من الميت للصلاة عليه (رقم) ٨٧ - (٩٦٤) وابوداود کتاب الجنائز. باب أين يقوم الإمام من الميت إذا صلى عليه (رقم-٣١٩٥) والنسائی کتاب الجنائز/باب الصلاة علی الجنازة قائمًا (رقم-١٩٧٦) وابن ماجة کتاب الجنائز/باب ما جاء فی أين يقوم الإمام إذا صلى علی الجنازة (رقم-١٤٩٣) واحمد فی المسند ١٤/٥

[2]) اخرجه البخاری فی کتاب الجنائز/باب الإذن بالجنازة (رقم) ١٢٤٧ ومسلم فی کتاب الجنائز/باب الصلاة علی القبر (رقم) ٦٩ - (٩٥٤) وابن ماجة کتاب الجنائز/باب ما جاء فی الصلاة علی القبر (رقم-١٥٣٠)

دُفِنَ هٰذَا؟ قَالُوا: الْبَارِحَةَ. [۴] قَالَ: أَفَلَا آذَنْتُمُونِي؟ قَالُوا: دَفَنَّاهُ فِي ظُلْمَةِ اللَّيْلِ فَكَرِهْنَا أَنْ نُوقِظَكَ. [۵] فَقَامَ فَصَفَفْنَا خَلْفَهُ فَصَلَّى عَلَيْهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابن عباس ﷺ روایت کوي [۲] چې یو ځل رسول الله ﷺ د یو داسې قبر سره تیر شو چې په هغې کښې د شپې مړي دفن شوي وو [۳] حضور ﷺ پوښتنه وکړه چې دي کله دفن شوي دي؟ صحابه ؤ جواب ورکړو چې په نن شپه کښې [۴] حضور ﷺ وفرمایل چې تاسو زه ولې خبر نه کړم؟ صحابه ؤ عرض اوکړو چې مونږ دي د شپې په تیاره کښې دفن کړي وو هغه وخت ستا ویښول مونږ ته ښه معلوم نه شو [۵] بیا حضور ﷺ ودریدلو نو مونږ ورپسې هم صف وتړلو او حضور ﷺ د هغه د جنازي مونځ اوکړو. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① الْبَارِحَةَ: أَيْ: اللَّيْلَةَ الْمَاضِيَةَ: یعنی تیره شپه، ② أَفَلَا آذَنْتُمُونِي؟: أَفَلَا أَعْلَمْتُمُونِي؟ یعنی تاسو ماته خبر ولې نه راکولو.

**تسهیلات: قوله: فَكَرِهْنَا أَنْ نُوقِظَكَ:**

**دحدیث فوائد:** - ① حضورپاك عالم الغیب نه وو ګنی د تپوس ضرورت نه وو اونه د قبر معلومولو ضرورت وو

② دصحابه کرامو معاشره کښې دومره بې تکلف وو چه د کفن دفن دا اوږدې قصې او اعلانونه نه وو.

③ مشران اوبزرګان بې ځایه په تکلیف کښې نه اچول غوښتل

④ د تدفین نه پس په قبرباندې جنازه کول جائزده

نو په دې کښې دا تفصیل دې که د یومړی د جنازې نوبت رانغلو او هغه بغیر د جنازې نه خښ کړې شو نو په دریو ورځو کښې دننه د هغه په قبر باتندې تلو سره جنازه کول پکاردی. د دریو ورځو نه پس جائز نه دہ

**صلاة بعد التدفین کښې مذاهب:** -

① شوافع اوحنابله فرمائی چه که جنازه شوې وی اوکه نه وی شوې په هرصورت کښې په قبر باندې جنازه کول صحیح دی

② د احنافو اومالکیانوپه نیز که چرې اول جنازه شوې وی نو په قبرباندې جنازه کول جائز نه دی

**داول فریق دلیل:** - زیر بحث حدیث د دوی مستدل دې

**داول فریق د لیل جوابونه:** - ① دا د حضوراکرم ﷺ خصوصیت وو د هغوی ﷺ د دعا او استغفار شان جدا وو د نورو خلقو معامله داسې نه ده

② بعضې علماؤ ليکلي دي چه د حضورپاك په مبارکه زمانه کښې د حضورپاك په موجودګئ کښې د حضورپاك نه بغير د جنازې مونځ جائز نه وو لهذا د حضورپاك نه بغير چه کومه جنازه کړې شوې هغه هم داسې وه لکه چه جنازه هډو شوې نه ده او په دې کښې د ټولو اتفاق دې چه کله جنازه اونه کړې شي نود هغه مړی په قبربانديې د مړی سخا کيدو نه مخکښې جنازه کول ضروری دی. ددې دا حديث په استدلال کښې نشي پيش کولې.

**د مړی د عدم تغير د مودې اعتبار**:- اوس دا تعين چه څومره ورځو پورې مړې محفوظ پاتې کيدې شی د دې فيصله د علاقې د موسمياتو اوحالاتوماهرين کولې شی چه په دې علاقه کښې او په دې موسم کښې مړې څومره ورځو پورې محفوظ پاتې کيدې شي. احنافو د دريو ورځو قول په عام توګه کړې دې.

**[١٦٥٩] د تدفين څخه وروسته دوباره د جنازې مونځ کول**

١٦٥٩-(١)[١٣] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ: ② «أَنَّ امْرَأَةً سَوْدَاءَ كَانَتْ تَقُمُّ الْمَسْجِدَ ③ أَوْ شَابٌّ فَفَقَدَهَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَأَلَ عَنْهَا أَوْ عَنْهُ. ④ فَقَالُوا: مَاتَ. قَالَ: أَفَلَا كُنْتُمْ آذَنْتُمُونِي؟ ⑤ قَالَ: فَكَأَنَّهُمْ صَغَّرُوا أَمْرَهَا أَوْ أَمْرَهُ. ⑥ فَقَالَ: دُلُّونِي عَلَى قَبْرِهِ. فَدَلُّوهُ فَصَلَّى عَلَيْهَا ⑦ ثُمَّ قَالَ: إِنَّ هٰذِهِ الْقُبُورَ مَمْلُوءَةٌ ظُلْمَةً عَلَى أَهْلِهَا، ⑧ وَإِنَّ اللّٰهَ يُنَوِّرُهَا لَهُمْ بِصَلَاتِي عَلَيْهِمْ». مُتَّفَقٌ، وَلَفْظُهُ لِمُسْلِمٍ.

**ترجمه**: ① ابوهريره رضي الله عنه فرمايي ② چې يوه توره ښځه وه چې مسجد نبوي به يي جارو کولو ③ يا راوي وايي چې يو زلمي هلك وو چې مسجد به يي جارو کولو رسول الله ﷺ يوه ورځ هغه غايب وليدلو نو د هغه ښځي يا سړي په باره کښې يي پوښتنه اوکړه چې هغه چيرته دي؟ ④ عرض وشو چې هغه مړه شوي ده يا هغه مړ شوي دي حضور ﷺ وفرمايل چې زه مو خبر ولي نکړم (چې ما يي هم د جنازي مونځ کړي وی) ⑤ ابوهريره رضي الله عنه وايي چې خلقو د هغه ښځي يا د هغه سړي مرګ ته څه اهميت ورنه کړو چې د هغې د پاره حضور ﷺ ته تکليف ورکول شوي وي اګويا د حضور ﷺ تعظيم مقصود ووا ⑥ حضور ﷺ وفرمايل چې ښه ماته يي قبر وښايي چيرته دي؟ احضور ﷺ ته يي چې قبر وښودل شو نو هلته يي تشريف يوړلوا او په قبر يي مونځ اوکړو ⑦ بيا يي وفرمايل چې دا قبرونه د خپلو مړو د پاره د دتيارو څخه ډک وي ⑧ په دې قبرونو زما د مانځه کولو په وجه الله تعالى جل جلاله هغه روښانه کوي. دا روايت بخاري رحمه الله او مسلم رحمه الله نقل کړي دي او الفاظ د مسلم رحمه الله دي.

**حل اللغات**:- ① تَقُمُّ: أَيْ: تَكْنِسُهُ وَتُطَهِّرُهُ: "تقم" د قم يقم نصر ينصر نه دي. يعنی د جارو په ذريعه سره به ئی د

---

(١) اخرجه البخاري في كتاب الجنائز /باب الصلاة على القبر بعد ما يدفن (رقم-١٣٣٧) ومسلم في كتاب الجنائز /باب الصلاة على القبر (رقم) ٧١ - (٩٥٦) وابن ماجة كتاب الجنائز /باب ما جاء في الصلاة على القبر (رقم-١٥٣٣) واحمد في المسند ٣٨٨/٢

مسجدنبوی نه کچره او ډکی وغیره صفاکول ② شَابٌّ : خوان، زلمی، ③ فَقَدَهَا : غائب نې اوموندلویعنی اونې نه لیدلو.؟ ④ صَغَّرُوا : أي: حَقَّرُوا: یعنی معمولی ئې اوګڼړلو، ⑤ دُلُّونِی : اوښایئ ماته، ⑥ مَمْلُوءَةٌ : ډک وی.

**تسهیلات:**

**قوله : بِصَلَاتِي عَلَيْهِمْ:** یعنی زما په دعا اوډ جنازې په مونځ سره قبرونه روښانه کیږی. ددې نه معلومه شوه چه په قبر کښې د ښخولونه پس په قبر باندې جنازه کول دحضوریاك خصوصیت وو که اول جنازه شوې وی اوکه نه وی شوې.

**د دواړو احادیثو د مضمون اتحاد:-** ددې حدیث مضمون اوددې نه مخکښې حدیث مضمون یوشان دې البته دانه شی ونیلې کیدې چه ددې دواړو احادیثو مصداق هم یوسړې وو ځکه چه په اولنی حدیث کښې د ضمائر نه پته لګی چه څوك سړې وو او په دویم حدیث کښې په یواضحه توګه د ښځې اوسړی ذکر دې. بهرحال په دې کښې دا احتمال موجود دې چه دا هم د یو خادم قصه وی. راوی ته په بیان کولو کښې شك پیداشوې دې. دا یوه ښځه وه چه په مسجد نبوی کښې به ئې جارو وهله. هم د دغه خوش قسمت ښځې قصه په زیربحث حدیث کښې ده.

**[١٦٦٠] په جنازه کښې د څلویښتو کسانو د شریکیدو فضیلت**

١٦٦٠-(¹)[١٥] ١ وَعَنْ كُرَيْبٍ مَوْلَى ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبَّاسٍ: ٢ أَنَّهُ مَاتَ لَهُ ابْنٌ بِقُدَيْدٍ أَوْ بِعُسْفَانَ فَقَالَ: ٣ يَا كُرَيْبُ، انْظُرْ مَا اجْتَمَعَ لَهُ مِنَ النَّاسِ. ٤ قَالَ: فَخَرَجْتُ فَإِذَا نَاسٌ قَدِ اجْتَمَعُوا لَهُ، فَأَخْبَرْتُهُ ٥ فَقَالَ: تَقُولُ: هُمْ أَرْبَعُونَ. قَالَ: نَعَمْ. ٦ قَالَ: أَخْرِجُوهُ فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: ٧ «مَا مِنْ رَجُلٍ مُسْلِمٍ يَمُوتُ فَيَقُومُ عَلَى جَنَازَتِهِ أَرْبَعُونَ رَجُلًا ٨ لَا يُشْرِكُونَ بِاللّٰهِ شَيْئًا، إِلَّا شَفَّعَهُمُ اللّٰهُ فِيهِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ١ د عبدالله بن عباس رضی الله عنهما آزاد کړی غلام کریب د عبدالله بن عباس رضی الله عنهما په باره کښې روایت کوي ٢ چې کوم وخت په مقام قُدید یا په مقام عسفان کښې (چې مکې ته نژدې ځایونه دي) دهغه خوی وفات شو [او جنازه تیاره شوه] نو هغه اوویل ٣ چې اې کریب! لاړ شه وګوره چې د جنازې د مانځه د پاره څومره خلق جمع شوي دي؟ ٤ حضرت کریب وایي چې زه بهر د خلقو د کتلو د پاره ووتم نو ما ولیدل چې ډیر خلق راجمع شوي دي واپس راغلم ابن عباس رضی الله عنهما ته می اوویل چې کافي خلق جمع شوي دي ٥ ابن عباس رضی الله عنهما وفرمایل چې ستا په خیال کښې به د هغه خلقو تعداد څلویښت وي؟ ما عرض اوکړو چې هو ٦ نو ابن عباس رضی الله عنهما وفرمایل چې بیا خو جنازه بهر وباسئ ځکه چې ما د رسول

¹) اخرجه مسلم في كتاب الجنائز/باب من صلى عليه اربعون شفعوا فيه (رقم) ٥٩ - (٩٤٨) وابن ماجة كتاب الجنائز/باب ما جاء فيمن صلى عليه جماعة من المسلمين (رقم-١٤٨٩) واحمد في المسند ٢٧٧/١

الله ﷺ څخه اوریدلي دي [٧] کله چې یو مسلمان مړ شي او د هغه د جنازې مونځ داسې څلویښت سړي اوکړي [٨] چې د الله ﷻ سره څوک نه شریک کوي نو الله تعالی ﷻ د هغه مړي په حق کښې د هغوئ شفاعت قبلوي. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① بِقُدَيْدٍ: بِالتَّصْغِيرِ: مَوْضِعٌ قَرِيبٌ بِعُسْفَانَ، عسفان سره نژدې د یو ځای نوم دې. او عسفان د مکه او جده په مینځ کښې د یوې علاقې نوم دې.

**تسهیلات:**

**قوله: فَيَقُومُ عَلَى جَنَازَتِهِ أَرْبَعُونَ رَجُلًا:**

**د څلویښتو مسلمانانو په دعا د مړي د مغفرت وجه:** - د دې حدیث مبارک نه معلومه شوه چې په کوم مړي باندې څلویښت کسانو د جنازې مونځ ادا کړو نو د هغوئ شفاعت به د دې مړي باره کښې قبول شي ، د دې حکمت دا دې چې څلویښت مسلمانان چرته وي نو په هغوئ کښې یو ولي الله ضرور موجود وي او د هغه دعا قبلیږي او د هغه په برکت د نورو دعا هم قبلیږي.

**[١٦٦١] د جنازې مونځ کښې د سلو کسانو د شریکیدو فضیلت**

٣٣ – (١)[١٢] [١] وَعَنْ عَائِشَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: [٢] «مَا مِنْ مَيِّتٍ تُصَلِّي عَلَيْهِ أُمَّةٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ يَبْلُغُونَ مِائَةً [٣] كُلُّهُمْ يَشْفَعُونَ لَهُ إِلَّا شُفِّعُوا فِيهِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] بي بي عایشه رضي الله عنها وايي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] د کوم سړي د جنازې مونځ چې د مسلمانانو یو داسې جماعت اوکړو چې د هغوئ تعداد سلو ١٠٠ ته ورسي [٣] او هغه جماعت د مړي د پاره شفاعت وکړي (یعني د مغفرت د پاره دعا وکړي) نو د هغوئ شفاعت قبلیږي یعنی د مړي مغفرت (بخښنه) کیږي. (مسلم)

**تسهیلات: قوله: يَبْلُغُونَ مِائَةً:**

**بين الحديثين تعارض:** - د دې نه وړاندې حدیث کښې د څلویښتو کسانو د شرکت د فضیلت ذکر راغلي دې او په زیربحث حدیث کښې د سلو کسانو د شرکت د فضیلت د حاصلولو ذکر کړې شوې دې؟

**په دوو طریقو د تعارض دفع:** -

① علماء فرمائي چه کیدې شي چه وړاندې الله تعالی د سلو کسانو په شرکت باندې د دغه ثواب وعده فرمائیلې وې او بیا د الله تعالی کرم نور زیات شوې وې او د سلو په ځائې باندې د څلویښتو په شرکت باندې د دې ثواب حصول وعده فرمائیلې وې.

(١) اخرجه البخاري فی صحیحه رقم الحدیث ١٣٦٧ مسلم فی کتاب الجنائز /باب من صلی علیه مائة شفعوا فیه(رقم) ٦٠ - (٩٤٩) والترمذی کتاب الجنائز عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ ما جاء فی الصلاة علی الجنازة والشفاعة للمیت (رقم-١٠٢٩) والنسائی کتاب الجنائز /فضل من صلی علیه مائة (رقم-١٩٩١) واحمد فی المسند ٢٨١/٣

④ يا دا اعداد اودي ذکر دَ تعيين اوتحديد دپاره نه دي بلکه دتکثير په توګه دي نو نه سل مراددي او نه څلويښت مرادي بلکه دَ ډيرو کسانو جماعت مراددي.

**[١٦٦٢] دَ خلقو وينا دَ خدائي نغاره**

١٦٦٢ -(١٧)[١] وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ:[٢] «مَرُّوا بِجَنَازَةٍ فَأَثْنَوْا عَلَيْهَا خَيْرًا [٣] فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: وَجَبَتْ.[٤] ثُمَّ مَرُّوا بِأُخْرَى فَأَثْنَوْا عَلَيْهَا شَرًّا.[٥] فَقَالَ: وَجَبَتْ. فَقَالَ عُمَرُ: مَا وَجَبَتْ.[٦] فَقَالَ: هَذَا أَثْنَيْتُمْ عَلَيْهِ خَيْرًا فَوَجَبَتْ لَهُ الْجَنَّةُ،[٧] وَهَذَا أَثْنَيْتُمْ عَلَيْهِ شَرًّا فَوَجَبَتْ لَهُ النَّارُ.[٨] أَنْتُمْ شُهَدَاءُ اللّٰهِ فِي الْأَرْضِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.[٩] وَفِي رِوَايَةٍ: «الْمُؤْمِنُونَ شُهَدَاءُ اللّٰهِ فِي الْأَرْضِ».

**ترجمه:**[١] حضرت انس رضی الله عنه فرمايي[٢] چې صحابه رضی الله عنهم د يوې جنازه سره تير شو نو د هغه تعريف يي اوکړو[٣] نبي کريم ﷺ (د صحابه ؤ د ژبي څخه د مړي تعريف اوريدو سره) وفرمايل چې واجب شو[٤] دغه شان صحابه رضی الله عنهم د يوې دويمې جنازې سره تير شو د هغه بدي يي بيانول شروع کړل[٥] رسول الله ﷺ (د صحابه ؤ د ژبي څخه د مړي بدي آوريدو سره) وفرمايل واجب شو حضرت عمر رضی الله عنه پوښتنه وکړه چې يا رسول الله ﷺ څه شي واجب شو؟[٦] حضور ﷺ وفرمايل چې د کوم سړي چې تاسو تعريف اوکړو د هغه د پاره جنت واجب شو[٧] او د کوم سړي چې بدي بيانوئ د هغه د پاره دوزخ واجب شو[٨] بيا يي وفرمايل چې تاسو په زمکه د الله تعالى جل جلاله ګواهان يي، بخاري مسلم.[٩] د يوبل روايت الفاظ دا دي چې حضور ﷺ وفرمايل چې مؤمنان په زمکه کې د الله تعالى جل جلاله ګواهان دي.

**حل اللغات:-** ① فَأَثْنَوْا عَلَيْهَا خَيْرًا: أَيْ: ذَكَرُوهَا بِأَوْصَافٍ حَمِيدَةٍ: يعنى هغوى په ښه صفاتو او ښه اخلاقو سره دهغه تذکره اوکړه ② وَجَبَتْ: أَيْ: ثَبَتَتْ لَهُ الْجَنَّةُ: يعنى ددې سړي دپاره جنت واجب شو.

**تسهيلات: قوله : وَجَبَتْ:**

**د وجبت په مفهوم کښې دوه اقوال:-**

① مطلب دا چه ته دکوم سړي تعريف بيانوي که چرې ستا بيان صحيح دي اودَ دغه سړي مرګ هم په دغه نيکئى کښې راغلو دَ کوم چه تاسو بيان کوئى نودَ هغه دپاره دَ جنت نيک بختي ثابته شوه او دکوم سړي چه تاسو بدي بيانوئى که چرې دا بيان صحيح دي او دَ دغه سړي مرګ هم په دغه بدئى کښې راغلو نودَ هغه دَ پاره دَ دوزخ سزا ثابته شوه

② شيخ مظهر رحمه الله فرمائي چه دَجنت دوزخ داحکم داسې نه دي چه دَخلقو ښه اوبد وئيلوسره په يقيني توګه باندې هغه سړې جنتي يا دوزخي شو بلکه مطلب دادي چه کله په خلقو کښې دَ يوسړي باره کښې عام خيال او عام تاثر ښه اونيك وي اوخلق دَهغې اظهار هم

---

[١] اخرجه البخارى فى كتاب الجنائز /باب ثناء الناس على الميت (رقم) ١٣٦٧ ومسلم فى كتاب الجنائز / باب فى من يثنا عليه خير او شر من الموت... رقم الحديث ٢٢٤٣

کوی نو دَ دغه سړی دپاره دَ جنت امید تړلې کیدې شی. دغه شان که چرې دَ عام خلقو تاثر دَ دغه سړی دَ بدنی وی نو خطره کیدې شی چه هغه سړې دوزخ ته لاړ شی.

**د ثناء الخير معيار:** -زين العرب فرمائی چه دَ يوسړی باره کښې دَ خلقو دَ شر اوبدنی سره ذکر کول یا دَ خیر او ښیګړې سره ذکر کول دا سړې جنت یا دوزخ ته نه بوخی بلکه دَ خلقو دَ خلې خبره دَ الله تعالی اعلان دې چه دَ دغه سړی دَ ښه یا بد کیدو علامت او نښه ده. هم دَدې طرف ته دَ دې حدیث په آخره کښې حضورپاك ﷺ ارشاد اوفرمائيلو چه «انتم شهداء الله فی الارض» ته دَ الله تعالی دَ طرف نه په زمکه کښې په خلقو ګواه ئی. بیا دلته په دې خبره باندې هم پوهیدل ضروری دی که چرې څوك دنیادار او فاسق فاجر سړې دَ څه دنیاوی اغراضو په رڼړا کښې دَ يوخراب او بدکار او بدکردار سړی تعریف او توصیف اوکړی اودَ هغه باره کښې اوږدې اوږدې قصې او ښه تاثرات قائم کړی یا دَ یونیك متقی پرهیزګار سړی باره کښې دَ بدنی تاثرات بیان کړی نو دَ هغه دَ ښه او بدو هیڅ اعتبار نشته دې او نه دا سړې دَ دغه کار دَ پاره معیار دې. خلاصه دا چه ګواهی ورکول دَ یو معتدل خداترس انصاف پسند متقی او پرهیزګارسړی کار دې.

### [١٦٦٢] دخلقوژبه د خدائې نغاره

١٦٦٢-( )[١٨] [١] وَعَنْ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [٢] «أَيُّمَا مُسْلِمٍ شَهِدَ لَهُ أَرْبَعَةٌ بِخَيْرٍ [٣] أَدْخَلَهُ اللّٰهُ الْجَنَّةَ. [٤] قُلْنَا: وَثَلَاثَةٌ؟ قَالَ. وَثَلَاثَةٌ؟ [٥] قُلْنَا: وَاثْنَانِ؟ قَالَ: وَاثْنَانِ" [٦] ثُمَّ لَمْ نَسْأَلْهُ عَنِ الْوَاحِدِ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [١] حضرت عمر رضي الله عنه روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] د کوم مسلمان په باره کښ چې څلور سړي د نيکي ګواهي ورکړي [٣] الله تعالى جل جلاله به هغه په جنت کښې داخل کړي [٤] مونږ اوويل چې که دري سړي ګواهی ورکړي؟ وي فرمايل چې که دري سړي ګواهی ورکړي نو هم [٥] مونږ اوويل چې که دوه سړي ګواهي ورکړي؟ وي فرمايل هو دوه هم [٦] بيا مونږ څيني د يو د حال پوښتنه ونه کړه. (بخاري)

**تسهيلات:**

**قوله: شَهِدَ لَهُ أَرْبَعَةٌ بِخَيْرٍ أَدْخَلَهُ اللّٰهُ الْجَنَّةَ:**

**دڅلورومسلمانانوپه ګواهي، جنت ته داخليدل:** -ابن الملك رحمه الله فرمائی چې ددې نه دې خلقو جنازه او دهغوی دعا او شفاعت مراد دې چې الله ﷻ به ددې خلقو اعمال ددهٔ په حق قبول کړي او دې به جنت ته داخل کړي. داشان د دوؤ مسلمانانو يو کس ته ښه وئيل ددې مسلمان د جنتی کيدو علامت دې.

[1] اخرجه البخاری فی کتاب الجنائز/باب ثناء الناس علی الميت (رقم) ١٣٦٨ والنسائی کتاب الجنائز/باب الثناء (رقم-١٩٣٤) واحمد فی المسند ٢٢/١

**قوله: قَالَ: وَاثْنَانِ:**

**د دوؤ مسلمانانو په ګواهي جنت ته داخليدل:** -ملا علي قاري رحمه الله فرماني چې په شريعت کښې د ګواهي نصاب دوه سړي دي. (وَأَشْهِدُوا ذَوَيْ عَدْلٍ مِّنكُمْ) نو لکه څنګه چې دوه ګواهانو باندې مقدمه ثابتيږي نو داشان د دوؤ کسانو په ګواهي سره هم جنتي کيدل ثابتيږي.

**[١٦٦٤] د مړو د ګناهونو يادولو ممانعت**

١٦٦٤-(١)[١٩] وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [٢] «لَا تَسُبُّوا الْأَمْوَاتَ; [٣] فَإِنَّهُمْ قَدْ أَفْضَوْا إِلَى مَا قَدَّمُوا». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [١] بي بي عايشه رضي الله عنها روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] مړو ته بد مه وايي [٣] ځکه چې بيشکه هغوی د هغه څيز جزا ته رسيدلي دي کوم چې هغوئ مخکې ليږلی دی. (بخاري)

**حل اللغات:-** ① لَا تَسُبُّوا: أَيْ: بِاللَّعْنِ وَالشَّتْمِ: يعنی کنځلې او بدې ردې ورته مه کوئ (اګرچه فاسق اوفاجر ولې نه وی، البته که يقينی معلوم وی چه دهغه مرګ په کفر باندې شوې دې، نو په تعين سره پرې لعنت کولې شي. لکه فرعون، ابوجهل، ابولهب وغيره(مرقات)، ② أَفْضَوْا: أَيْ: وَصَلُوا: رسيدلي دی هغوی (خپلې جزاء ته).

**تسهيلات: قوله: لَا تَسُبُّوا الْأَمْوَاتَ:**

**بعضې مړو ته د بدرد وئيلو جواز:** -مړو ته بد مه وائې يعنی هغوئ ته کنځل مه کوئی اګر چې هغه کافر فاجر ولې نه وی. خو که د هغوئ کفر قطعی وی لکه د فرعون کفر، دابوجهل کفر، د ابولهب کفر او د منکرين صحابه و اهل بيت وغيره کفر وی نو بيا جائز دی.

**[١٦٦٥] په شهيدانو باندې د جنازې د مونځ کولو حکم**

١٦٦٥-(٢)[٢٠] [١] وَعَنْ جَابِرٍ: «أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَجْمَعُ بَيْنَ الرَّجُلَيْنِ مِنْ قَتْلَى أُحُدٍ فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ، [٢] ثُمَّ يَقُولُ: "أَيُّهُمْ أَكْثَرُ أَخْذًا لِلْقُرْآنِ؟" [٣] فَإِذَا أُشِيرَ لَهُ إِلَى أَحَدِهِمَا قَدَّمَهُ فِي اللَّحْدِ، [٤] وَقَالَ: "أَنَا شَهِيدٌ عَلَى هَؤُلَاءِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ" [٥] وَأَمَرَ بِدَفْنِهِمْ بِدِمَائِهِمْ، [٦] وَلَمْ يُصَلِّ عَلَيْهِمْ، وَلَمْ يُغَسَّلُوا». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [١] حضرت جابر رضي الله عنه روايت کوی چه رسول الله ﷺ به د أحد دوه دوه شهيدان په يوه کپړه کښې جمع کول [٢] بيا به يې فرمايل چې په دوي کښې چا ته قرآن زيات ياد دي؟

---

(١) اخرجه البخاری فی کتاب الجنائز /باب ما ينهی من سب الأموات (رقم-١٣٩٣) والنسائی کتاب الجنائز /باب النهی عن سب الأموات (رقم-١٩٣٦) والدارمی باب: فی النهی عن سب الأموات واحمد فی المسند ١٨٠/٦

(٢) اخرجه البخاری فی کتاب الجنائز /باب من يقدم فی اللحد (رقم) ١٣٤٧والترمذی کتاب الجنائز عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/ ما جاء فی ترک الصلاة علی الشهيد(رقم-١٠٣٦) والنسائ کتاب الجنائز/ترک الصلاة عليهم (رقم-١٩٥٥) وابن ماجة کتاب الجنائز /باب ما جاء فی الصلاة علی الشهداء ودفنهم (رقم-١٥١٤)

③ بيا چې به كوم يو د پاره اشاره وشوه نو هغه به يي په قبر كښې مخكې كولو ④ او فرمايل به يي چې زه به د قيامت په ورځ د دوى د پاره ګواهي وركوم ⑤ او حكم يي وفرمايلو چې هغوى د خپلو وينو سره دفن كړي شي⑥ او نه يي پرې مونځ اوكړو او نه غُسل وركړل شو. (بخاري)

**حل اللغات:-** ① قَتْلَى: دقتيل جمع ده، مقتول ته وائي مراد ترې شهيدان دي. ② أَخْذًا لِلْقُرْآنِ: أَيْ: حِفْظًا أَوْ قِرَاءَةً: يعنى زيات قرآن ورته ياد وى په حفظ يا په ناظره. ③ لَمْ يُصَلِّ: دجنازې مونځ نې پرې اونه کړو.

**تسهيلات: قوله: وَلَمْ يُصَلِّ عَلَيْهِمْ:**

**د شهداء احد په اجتماعی قبرونو كښې تدفين:-** په دې حديث كښې يوخودا خبره اوخودلې شوه چه داَحد دَ شهيدانو دَپاره اجتماعى قبرونه كنستلې شوې وو. ځكه چه دَ ٧٠ شهيدانو دَپاره جدا جدا قبرونه كنستل ګران وو ځكه چه كوم صحابه ژوندى وو هغوى دَ زخمونونه چورى چورى وو په دې وجه چه يو قبر به كنستلې شو نوبيا به دَ قبلې طرف ته اوږد لحد جوړولې شو په كوم كښې چه به دوه درې ياڅلور كسان وړاندې روستو كېخودلې شو.

**د قارى لحد كښې اول كېخودل:-** په دې كښې حضورپاك داحكم وركړو چه كوم سړى ته قرآن زيات ياد وى يا دَ قرآن زيات قارى اوعالم وى هغه دَ قبلې طرف ته مخې ته كيږدئى. دغه شان حكم وركولوسره حضورپاك دَ قرآن كريم تعظيم او دَدې اعزاز ښكاره كول غوښتل دې دَپاره چه قرآن كريم دَ معاشرې په هره شعبه كښې په توګه دَ رواج او دَ دستور په توګه داخل شى. دلته په يو قبر كښې بغيردَ لباس دوه دوه يوځائى نه كړل بلكه لباس سره ئى دفن كړى وو. اوس په دې باندې اتفاق دې چه كوم سړې دَ الله تعالى په لاركښې شهيد شى دَهغه كپړې دَ بدن نه جدا كولې نه شى بلكه هم په هغه كپړو كښې دفن كولې شى.

**دشهيد بلا غسل تدفين:-** په دې باندې هم اتفاق دې چه شهيد ته غسل نه شى وركولې.

**د شهيد صلاة الجنازې په حكم كښې مذاهب:-**

اوس په دې كښې اختلاف راغلو چه دَ شهيد جنازه به كيږى كه نه به كيږى؟

① دَ امام شافعى رحمه الله امام مالك رحمه الله او امام احمدبن حنبل رحمه الله په نيز لكه څنګه چه شهيد ته غسل نه شى وركولې دغه شان به دَ شهيد دَ جنازې مونځ هم نه شى كولې.

② ائمه احناف فرمائى دَ شهيد دَپاره غسل خو فرض نه دې ليكن دَاحاديثو دَ وجې نه به دَ شهيد جنازه كولې شى.

**داول فريق اول دليل:-** ① زير بحث حديث د دوى مستدل دې په كوم كښې "لم يصل عليهم" الفاظ راغلى دى. امام بخارى رحمه الله امام ابوداؤد رحمه الله او امام ترمذى رحمه الله ټولو دا الفاظ په خپلو كتابونو كښې نقل كړى دى.

**داول فريق د اول دليل جوابونه:-** ① حضرت جابر رضی الله عنه د احد د شهيدانو د جنازې د مونځ تول په توله نفی نه ده کړې بلکه د يوخاص صورت نفی فرمائيلې هغه دا چه څنګه په حضرت حمزه رضی الله عنه باندې بار بار د جنازې مونځ کړې شوې دغه شان ئې د باقي شهيدانو نه ده کړې.

② په اکثرو رواياتوکښې د جنازې د مونځ اثبات موجود دې اود حضرت جابر رضی الله عنه په روايت کښې نفی ده اوقاعده داده چه کله نفی او اثبات کښې تعارض راشي نوترجيح به اثبات ته ورکولې شي.

③ نفی او اثبات په مختلف اوقاتو کښې دی. په شروع کښې حضورپاك جنازه نه ده کړې. کوم وخت چه خلقو خپل شهيدان کورونوته اوړل نوحضورپاك د اوړلونه منع اوفرمائيله او واپس کولوسره ئې بيا جنازه اوکړه.

④ حضورپاك پخپله نه ده کړې ځکه چه حضورپاك زخمی وو صحابه کرام رضی الله عنهم کړې ده.

**داول فريق دويم دليل:-** ② يو عقلي دليل هم د دوی مستدل دې هغه دا چه د جنازې مونځ د مغفرت اوشفاعت د پاره وی اوشهيد د مخکښې نه بخښلې شوې دې نود ده د پاره د جنازې د مونځ ضرورت نشته دې. بل الله تعالی شهيدته د مړ وئيلو نه منع فرمائيلې ده اود جنازې د مونځ په دعا کښې ده ته مړ وئيلې کيږی لهذا د جنازې مونځ پرې نه دی کول پکار.

**داول فريق د دويم دليل جواب:-** بيشکه "السيف محاء للذنوب" دې ګناه په مکمل توګه د تورو په وار سره وينځلې شوې ليکن د جنازې مونځ خود درجات د اوچتيدو د پاره هم وی لکه چه د انبياء کرام عليهم السلام جنازه کولې شی اود وړوکی ماشوم جنازه کيږی. دا تول د درجاتو د اوچتولو د پاره دی ګنی دالته خود ګناهونو تصور هم نشته دې. باقی د جنازې د مونځ په دعاکښې د مړی لفظ مه اختياروئی د جنازې نورې دعاګانې هم ډيرې شته.

**د دويم فريق دلائل:-** ① د حضرت عقبه بن عامر رضی الله عنه روايت د دوی مستدل دې کوم چه امام بخاری رحمه الله هم نقل کړې دې دکوم الفاظ چه دادی: ((ان النبی صلی الله عليه وسلم خرج يوما فصلی علی اهل احد صلوته علی الميت)) (بخاری ج٢ص٥٨٥) هم د دې حديث نه په واضحه توګه باندې ثابتيږی چه حضورپاك د وفات نه څه وړاندې د احد په شهيدانو باندې څو کاله پس د جنازې مونځ د هغوی په قبرستان کښې تلو سره اوکړو. کله چه دا ثابته ده نوڅنګه دا وئيلی شی چه حضورپاك د دفن کولونه مخکښې د دغه شهيدانو جنازه ترك کړې وه.

② د احد شهيدان به لس لس راوړلې شو او حضورپاك به د هغوی جنازه کوله. حضرت حمزه رضی الله عنه به هر خل په جنازه کښې شامل کولې شو. د حديث الفاظ داسې دی: ((اتی بهم رسول الله صلی الله عليه وسلم فجعل يصلی علی عشرة عشرة وحمزة هو کما هو يرفعون وهو کما هو موضوع)) (ابن ماجه ص:١٠٩)

د احد شهيدان به حضورپاك له راوړلې شو حضورپاك به په لسو لسو کسانو باندې جنازه کوله او حضرت حمزه رضی الله عنه به هرخل لسو کسانو سره کيخودې شو



④ دمراسيل ابوداؤد يو روايت هم د دوی مستدل دې په کوم کښې چه دَ احد په شهيدانو باندې دَ جنازې دَمونځ تفصيل موجود دې.

**دتطبيق صورت:-** بهرحال دا مسئله په سرحداتوکښې په جهاد کښې مشغول مجاهدين بهتر پيژنی دا دَ هغوی دَ ميدان مسئله ده. بعضې احوال کښې دَ جنازې کولو ماحول اوامکان وی ليکن بعضې وخت بالکل ممکن نه وی دَ دښمن دَ طرف نه ګوله باری او بمباری جاری وی نو په کولاؤ ميدان کښې دَ جنازې مونځ ممکن نه وی

**[١٦٦٦] دقبرستان څخه په سورلی راتلو کښې عدم کراهت**

١٦٦٦-(١)[٢١] ① وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ: ② «أُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِفَرَسٍ مَعْرُورٍ ③ فَرَكِبَهُ حِينَ انْصَرَفَ مِنْ جَنَازَةِ ابْنِ الدَّحْدَاحِ ④ وَنَحْنُ نَمْشِي حَوْلَهُ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① جابر بن سمره ﷺ روايت کوی ② چې رسول الله ﷺ ته بغير د زين څخه آس راوستل شو ③ نو په هغې هغه وخت سور شو چې د ابن دحداح د جنازې څخه واپس شو ④ او مونږ د حضور ﷺ خواؤ شاه روان وو. (مسلم)

**حل اللغات:-** ① مَعْرُورٍ: أَيْ عَارٍ مِنَ السَّرْجِ: د زين نه بغير، شا تورې اس.

**تسهيلات: قوله: فَرَكِبَهُ:**

**د جنازې څخه په واپسۍ کښې په سورلۍ د سوريدو اجازت:-** دې نه داخبره ثابته شوه چه دَ جنازې نه واپس راتلونکی ته اختيار دې که پيدل راځی اوکه سور راځی. البته جنازې سره سوريدل ښکاره دی نوراتلونکی حديث نمبر ١٦٦٧ کښې دَدې تفصيل راتلونکې دې سورله پکاردی چه جنازې پسې شاشاته راځی وړاندې دې نه ځی اوپيدل تلونکی ته اختيار دې که وړاندې ځی اوکه روستوځی يوحديث دَ وړاندې ١٦٦٧ لاندې راوران دې.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[١٦٦٧] جنازې سره د تلو طريقه**

١٦٦٧-(٢)[٢٢] ① عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: ② «الرَّاكِبُ يَسِيرُ خَلْفَ الْجَنَازَةِ، ③ وَالْمَاشِي يَمْشِي خَلْفَهَا وَأَمَامَهَا، ④ وَعَنْ يَمِينِهَا وَعَنْ يَسَارِهَا، قَرِيبًا مِنْهَا ⑤ وَالسِّقْطُ يُصَلَّى عَلَيْهِ، ⑥ وَيُدْعَى لِوَالِدَيْهِ بِالْمَغْفِرَةِ وَالرَّحْمَةِ» . رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ. ⑦ وَفِي رِوَايَةِ أَحْمَدَ، وَالتِّرْمِذِيِّ، وَالنَّسَائِيِّ، وَابْنِ مَاجَهْ:

[١] اخرجه مسلم فی کتاب الجنائز/باب رکوب المصلی علی الجنازة إذا انصرف (رقم) ٨٩ - (٩٦٥) وابوداود کتاب الجنائز، باب الرکوب فی الجنازة (رقم-٣١٧٨) والترمذی کتاب الجنائز عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ ما جاء فی الرخصة فی ذلک (رقم-١٠١٣)

[٢] اخرجه ابوداود فی کتاب الجنائز، باب المشی أمام الجنازة (رقم-٣١٨٠) والترمذی کتاب الجنائز عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ما جاء فی الصلاة علی الأطفال (رقم-١٠٣١) والنسائی کتاب الجنائز/باب مکان الراکب من الجنازة (رقم-١٩٤٢) وابن ماجة کتاب الجنائز/باب ما جاء فی شهود الجنائز (رقم-١٤٨١) واحمد فی المسند ٢٤٧/٤

قَالَ: "[٨] «الرَّاكِبُ خَلْفَ الْجَنَازَةِ، وَالْمَاشِي حَيْثُ شَاءَ مِنْهَا، وَالطِّفْلُ يُصَلَّى عَلَيْهِ» ". [٩] وَفِي الْمَصَابِيحِ: عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ زِيَادٍ.

**ترجمه:** [١] د مغیره بن شعبه رضی الله عنه څخه روایت دي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل [٢] سور دې په جنازې پسې وروسته ځي [٣] او پیاده دې د جنازې وروسته او مخکې ځي [٤] او ښي او ګس اړخ ته دې ځي نژدې هغې ته [٥] او په نامکمل بچې دې د جنازې مونځ وکړل شي [٦] او د هغه د مور او پلار د پاره دې د بخشش (بخښنې) او د رحمت دعا اوشي. (ابوداؤد) [٧] او د احمد، ترمذي، نسایي او ابن ماجه په روایت کښې داسې دي چې وې فرمایل [٨] سور دې په جنازه پسې وروسته ځي او پیاده چې کوم طرف ته غواړي د جنازې سره دې ځي که ماشوم مړ شي نو د جنازې مونځ دې پرې وشي [٩] او په مصابیح کښې دا روایت د مغیره بن زیاد څخه دي.

**حل اللغات:** - ① السِّقْطُ: اى الْوَلَدُ لِغَيْرِ تَمَامٍ: نا تمام ماشوم چه بعضې اندامونه ئې نه وی.

**تسهیلات: قوله :** الرَّاكِبُ خَلْفَ الْجَنَازَةِ:

**د حدیث خلاصه:** - دَدې حدیث خلاصه داده چه که یو سړې سوریدو سره جنازې سره ځي نو هغه له پکاردی چه جنازې پسې شاشاته ځي. اوکوم سړې چه جنازې سره پیدل روان وی هغه له اختیاردې چه دَ جنازې نه مخکښې ځي او که شاته ځي ښی طرف ته ځی اوکه ګس طرف ته. وړاندې حدیث نمبر۱۶۶۸ کښې دا مسئله راغی چه آیا دَ جنازې نه مخکښې تلل بهتردی که روستو تلل بهتردی.

**قوله :** وَالسِّقْطُ يُصَلَّى عَلَيْهِ: سقط نامکمل بچی ته وائی دې ته کچه بچې هم وائی.

**څلورو میاشتو څخه وړاندې ساقط شوی بچی باندې د جنازې په مونځ کښې مذاهب:-**

که دَ څلورو میاشتونه مخکښې بچې ساقط شو نو په اتفاق سره په هغه باندې دَ جنازې مونځ نشته دې لیکن که دَدې مودې نه پس دَ بچی اسقاط اوشی نو آیا په هغه باندې دَ جنازې مونځ کول پکاردی که نه؟ په دې کښې دَ فقهاؤ اختلاف دې.

① امام احمد بن حنبل رحمه الله اسحاق بن راهویه رحمه الله او ابن سیرین رحمه الله فرمائی چه په کچه بچی باندې به دَ جنازې مونځ کولې شی سره دَدې چه که مړ پیدا شوې وی.

② امام ابوحنیفه رحمه الله امام مالک رحمه الله اوامام شافعی رحمه الله یعنی جمهور فرمائی چه ترکومې پورې په بچی کښې دَ پیدائش په وخت دَ حیات او ژوند آثار نه وی په هغه باندې به د جنازې مونځ نه وی اوکه چرې دَ حیات معمولی آثار هم ملاؤ شونو جنازه به کیږی.

**د اول فریق دلیل:** - مذکوره روایت د دوی مستدل دې. دَ کوم ظاهری الفاظ په دې دلات کوی چه دَ ساقط شوی بچی جنازه به کیږی.

**داول فریق د دلیل جواب:** - دا دې ساقط شوی بچی نه هغه بچې مراد دې په کوم کښې چه دَ پیدائش په وخت دَ ژوند آثار موجودوی. دې حدیث سره به دَ نورو احادیثو په وجه دَ بحیاة قیدلګولې شی ځکه چه کله په مقید او مطلق کښې تعارض راځی نومقیدته ترجیح ورکولې شی مطلب به داشی: "اي والسقط الذي فيه آثار الحياة يصلى عليه".

**دویم فریق دلائل:** - ① دَ دې باب آخری حدیث نمبر۱۶۹۹د دوی مستدل دې په کوم کښې چه صفا الفاظ راغلی دی "الطفل لا يصلى عليه ولا يرث ولا يورث حتى يستهل"

② دَ مستدرک حاکم روایت هم د دوی مستدل دې الفاظ ئې دا دی: ((ان عليه السلام قال اذا استهل الصبي صلى عليه وورث رواه حاكم وقال اسناده صحيح))

**[١٦٦٨] دَ جنازې څخه مخکښې د تلو حکم**

١٦٦٨-()[٢٣] [١] وَعَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ قَالَ: [٢] «رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبَا بَكْرٍ وَعُمَرَ يَمْشُونَ أَمَامَ الْجَنَازَةِ». [٣] رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، [٤] وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: وَأَهْلُ الْحَدِيثِ كَأَنَّهُمْ يَرَوْنَهُ مُرْسَلًا.

**ترجمه:** [١] د زهري څخه روایت دې چې د سالم څخه یې روایت اوکړو هغه د خپل پلار څخه چې عبدالله اوویل [٢] ما رسول الله ﷺ ابوبکر رضی الله عنه او عمر رضی الله عنه ولیدل چې د جنازې څخه مخکې به تلل. [٣] (احمد، ابوداؤد، ترمذي، نسایي، ابن ماجه) [٤] او ترمذي رحمه الله اوویل چې محدثین دا حدیث مرسل ګڼي.

**تسهیلات: قوله: يَمْشُونَ أَمَامَ الْجَنَازَةِ:**

**د جنازې شاته او مخې ته د تلو جواز:** - یعنی حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه او حضرت عمر رضی الله عنه به دَ جنازې نه وړاندې وړاندې تلو. که چرې ضرورت وی نو په وخت دَ ضرورت دَ جنازې نه وړاندې تلل هم جائز دی او شاته تلل هم جائز دی.

**د جنازې څخه وړاندې او روسته د تلو علتونه:** - ① دَ وړاندې تلو علت دې چه کوم خلق جنازې سره دی دوی دَ الله تعالی په وړاندې دَ دې دَپاره شفعاء او سفارشی دی او سفارشی وړاندې وړاندې ځی. بل وړاندې تلونکې دَ جنازې څه امداد هم کولې شی.

② دَ روستو تلو علت دادې چه هغه خلق به خپلې مخې ته جنازه وینی نو دې نه به عبرت حاصلوی،

---

[1] اخرجه ابوداود فی کتاب الجنائز. باب المشی أمام الجنازة (رقم-٣١٧٩) والترمذی کتاب الجنائز عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ ما جاء فی المشی أمام الجنازة (رقم-١٠٠٧) والنسائی کتاب الجنائز/بمکان الماشی من الجنازة (رقم-١٩٤٤) وابن ماجة کتاب الجنائز/باب ما جاء فی المشی أمام الجنازة (رقم-١٤٨٢) ومالک فی الموطا کتاب الجنائز/باب المشی أمام الجنازة (رقم-٨) واحمد فی المسند ٨/٢

**د جنازې وړاندې يا روسته د تلو په افضليت کښې مذاهب:-**

ليکن چه کله په يوطرف کښې ضرورت نه وي نو بيا افضل څه دی آيا وړاندې تلل افضل دی که روستو تلل افضل دی. په دې کښې د فقهاؤ اختلاف دې.

① د امام شافعي رحمه الله او امام احمدبن حنبل رحمه الله په نيز وړاندې تلل افضل دی.

② د احناف په نيز روستو تلل افضل او بهتر دی.

**داول فريق دلائل:-** زير بحث حديث د دوی مستدل دې چه حضرت ابوبکر رضي الله عنه او حضرت عمر رضي الله عنه به د جنازې نه وړاندې وړاندې تللو.

**د اول فريق د دليل جوابونه:-** ①زير بحث حديث فعلي دې او د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه حديث قولي دې. او په حديث فعلي اوقولي کښې چه کله تعارض راشي نوترجيح حديث قولي ته وي.

② بل د جنازې نه مخکښې تلونکی روايات د جواز د بيان د پاره دی او افضل هم دغه دی چه جنازې پسې شاته لاړشي. بهرحال دا د اولی او غير اولی مسئله ده دومره لوئی اختلاف نه دې.

**دويم فريق دلائل:-** ①راتلونکې د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه روايت نمبر ۲۴ د دوی مستدل دې. په کوم کښې چه "الجنازة متبوعة" الفاظ دی يعنی جنازې پسې شاته تلل پکاردی چه جنازه ستا تابع نه وی چه ته د دې نه مخکښې ئی اودا شاته وی او کوم سړې چه د جنازې نه مخکښې لاړو نوهغه ورسره د تلو ثواب حاصل نه کړو.

② ((عن معمر عن ابن طاؤس عن ابيه قال ما مشى رسول الله صلى الله عليه وسلم الا خلف الجنازة)) (مصنف عبدالرزاق ،التعليق الصبيح)

**[١٦٦٩] جنازې پسې شاته د تلو افضليت**

١٦٦٩–(١)[٢٣] [١] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] «الْجَنَازَةُ مَتْبُوعَةٌ، [٣] وَلَا تُتْبَعُ لَيْسَ مَعَهَا مَنْ تَقَدَّمَهَا» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ [٤] قَالَ التِّرْمِذِيُّ: وَأَبُو مَاجِدٍ الرَّاوِي: رَجُلٌ مَجْهُولٌ.

**توجمه:** [١] عبدالله بن مسعود رضي الله عنه روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] جنازه متبوع ده [٣] او تابع نه ده، هغه سړي د دی سره نه دي کوم چې ځيني مخکي شو، ترمذي، ابوداؤد، ابن ماجه [٤] امام ترمذي رحمه الله ويلي دي چې ابو ماجد راوي مجهول دي

[1]) اخرجه ابوداود فی کتاب الجنائز، باب الإسراع بالجنازة (رقم-٣١٨٤) والترمذی کتاب الجنائز عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/ ما جاء فی المشی خلف الجنازة (رقم-١٠١١) وابن ماجة کتاب الجنائز/باب ما جاء فی المشی أمام الجنازة (رقم-١٤٨٤) واحمد فی المسند ٤١٥/١



**تسهیلات: قوله :** اَلْجَنَازَةُ مَتْبُوعَةٌ:

**د متبوعة دوه حیثیتونه :-** أيْ: حَقِیقَةً وَحُکْمًا: یعنی حقیقةً هم متبوع ده او حکمًا هم،نو جنازې پسې به خلق ځی د جنازې نه به مخکښې مخکښې نه ځی نو که څوک د جنازې نه مخکښې مخکښې تلو هغه به جنازه کښې نه شمارلې کیږی

**د حدیث فوائد:-** ① د جنازې سره پیدل تلل پکار دی . سوارۀ تلل بهتر نه دی. او که څه عذر وی نو بیا اجازت دې

② مړی سره سره فرښتې هم وی ، واضحه دې وی چې دا د رحمت فرښتې وی یا د عذاب فرښتې وی چې مؤمن یا کافر سره وی باقی کراما کاتبین یا دمحافظت فرښتې خو هر انسان سره وی.

**[١٦٧٠] جنازې له اوږه ورکول**

١٦٧٠-()[٢٥] [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] «مَنْ تَبِعَ جَنَازَةً وَحَمَلَهَا ثَلَاثَ مِرَارٍ [٣] فَقَدْ قَضَى مَا عَلَيْهِ مِنْ حَقِّهَا». [٤] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [١] ابوهریره ﷛ روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل[٢] کوم سړي چې د جنازې سره لاړشی او هغه پورته کړي درې وارې (څله) [٣] نو بیشکه هغه حق یې ادا کښې کوم چې په هغه وو ،[٤] ترمذي، او هغه ویلي دي چې دا حدیث غریب دي

**حل اللغات:-** ① حَمَلَهَا: پورته کړی دا جنازه، ② قَضَی: پوره نې کړو ، ادانې کړو.

**تسهیلات: قوله :** وَحَمَلَهَا ثَلَاثَ مِرَارٍ:

**درې ځله د مړی کټ ته د اوږې ورکولو حکم:-**ابن الملك ﷬ ددې مطلب بیانوی چې په لاره کښې جنازه اوږونکو سره مدد کوی. بیا نې د سترې والی په وجه پرېږدی تر دې چې درې ځل دد د حاملینو سره مدد اوکړو نو ده د مړی حق ادا کړو. دا مؤمن میت سره خاص دی که دظالم جابر حکمران یا بدعتی ، فاسق جنازه وی نو بیا دا حکم نه دې.

١٦٧١- [٥] [١] وَقَدْ رُوِيَ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ: [٢] «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَمَلَ جَنَازَةَ سَعْدِ بْنِ مُعَاذٍ بَيْنَ الْعَمُودَيْنِ»

**ترجمه:** [١] او په شرح السنه کښې روایت دي [٢] چې نبي کریم ﷺ د سعد بن معاذ جنازه د دوو لرګو په مینځ کښې پورته کړي وه

**حل اللغات:-** ① حَمَلَ: پورته نې کړه، ② الْعَمُودَيْنِ: تثنیه ده. دوه لرګی

**نوټ:-** دترجمې څخه مطلب واضح دې

١) اخرجه الترمذی فی کتاب الجنائز عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب آخر (رقم ١٠٤١)

## [١٦٧٢] په سورلۍ باندې جنازې سره تلو نکی ته تنبیه

١٦٧٢-(١)[٢٦] ① وَعَنْ ثَوْبَانَ قَالَ: ② «خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي جَنَازَةٍ ③ فَرَأَى نَاسًا رُكْبَانًا. فَقَالَ: أَلَا تَسْتَحْيُونَ؟ ④ إِنَّ مَلَائِكَةَ اللّٰهِ عَلَى أَقْدَامِهِمْ وَأَنْتُمْ عَلَى ظُهُورِ الدَّوَابِّ». ⑤ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَرَوَى أَبُودَاوُدَ نَحْوَهُ. ⑥ قَالَ التِّرْمِذِيُّ: وَقَدْ رُوِيَ عَنْ ثَوْبَانَ مَوْقُوفًا.

**ترجمه:** ① ثوبان ﷺ روایت کوي ② چې مونږ د نبي کریم ﷺ سره د یوې جنازې سره ووتلو ③ نو څه خلق یې سپاره ولیدل نو وې فرمایل چې تاسو حیا نه کوئ ④ چې د الله ﷻ فرښتې خو په قدمونو ځي او تاسو د څاروو د شاګانو دپاسه ناست یې (یعنې سپاره ځئ) ⑤ ترمذي، ابن ماجه، ابوداؤد د دې په مثل روایت کړې دې ⑥ ترمذی ویلی دی چې بیشکه دا د ثوبان څخه موقف روایت شوي دي.

**حل اللغات:**- ① أَلَا تَسْتَحْيُونَ؟: آیا تاسو حیا نه کوئ؟.

**تسهیلات: قوله: أَلَا تَسْتَحْيُونَ؟:**

**دحدیث دوه فوائد:**- ددې حدیث څخه معلومه شوه چې د جنازې سره پیدل تلل پکار دي په سورلۍ باندې تلل ښه نه دي خوکه عذر وی نه بیا څه خبره نه ده

② د مړی سره فرشتې هم وی د مؤمن سره د رحمت فرشتې وی او د کافر سره د عذاب فرشتې وی باقی کراما کاتبین خو ټولو خلقو سره وی.

## [١٦٧٣] په جنازه باندې د سورة فاتحه قرآءت

١٦٧٣-(٢)[٢٧] ① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: ② «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَرَأَ عَلَى الْجَنَازَةِ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُودَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① ابن عباس ﷠ څخه روایت دي ② چې رسول الله ﷺ په یوه جنازه کښې سورة فاتحه ووېله. (ترمذي، ابوداؤد، ابن ماجه)

**تسهیلات: قوله: قَرَأَ عَلَى الْجَنَازَةِ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ:**

**دامام شافعی مستدل:**- دا حدیث دامام شافعی رحمه الله مستدل دې چې د جنازې په مونځ کښې د سورة فاتحه لوستل جائز دی ددې جواب په مستقل بحث کښې ذکر شوی دی.

---

(١) اخرجه ابوداود فی کتاب الجنائز. باب الرکوب فی الجنازة (رقم-٣١٧٧) والترمذی کتاب الجنائز عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ ما جاء فی کراهیة الرکوب خلف الجنازة (رقم-١٠١٢) وابن ماجة کتاب الجنائز /باب ما جاء فی شهود الجنائز (رقم-١٤٨٠)

(٢) اخرجه الترمذی کتاب الجنائز عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ما جاء فی الصلاة علی الأطفال (رقم-١٠٣١) وابن ماجة کتاب الجنائز /باب ما جاء فی القراءة علی الجنازة (رقم-١٤٩٥)

**[١٦٧٤] د جنازې په مانځه کښې د مړي د پاره د زړه د اخلاصه د دعا کولو حکم**

١٦٧٤-()[٢٨] [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] " «إِذَا صَلَّيْتُمْ عَلَى الْمَيِّتِ فَأَخْلِصُوا لَهُ الدُّعَاءَ» " رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [١] ابوهریره رضي الله عنه روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] هر کله چې تاسو په مړي باندې مونځ کوئ نو د هغه د پاره د زړه د اخلاصه دعا کوئ. (ابوداؤد ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① فَأَخْلِصُوا: یعنی په اخلاص د زړه سره دعا کوئ.

**تسهیلات: قوله : فَأَخْلِصُوا لَهُ الدُّعَاءَ:**

**د حدیث څخه په دعا بعد صلاة الجنازه باندې استدلال:** - ددې حدیث څخه بعضې وروڼړو دا استدلال کړې دې چې د جنازې د مونځ څخه روسته د مړی دپاره په اخلاص سره دعا کول پکار دی لکه څنګه چې دلته په حدیث کښې دا الفاظ راغلی دی ((اذاصلیتم علی المیت فاخلصوا له الدعا)) وجه د استدلال دا ده چې په حدیث کښې شرط او جزا ده (یعنی اوله جمله شرط دې او دویمه جمله جزا ده.او نحوی قاعده ده چې په شرط او جزاء کښې تغائر وی شرط په جزا کښې داخل نه وی اوبیا په شرط کښې د ماضی صیغه اوپه جزاء کښې د امر صیغه ده. ددې څخه معلومه شوه چې د دعا حکم د جنازې د مونځ کولو څخه روسته دې. که د ((فاخلصوا له الدعاء)) څخه په مونځ کښې داخله دعا مراد واخستې شی نو په شرط او جزاء کښې به تغائر رانشی بلکه جزاء به د شرط جزء شی اود ماضی او د امر تقاضا به هم پوره نشی.

**د استدلال جواب:** - ددې رونړو دا استدلال ټیک نه دې کیدې شی چې دوی د شروع لفظ ته نه دی کتلې چې د جملې ابتداء د ،،اذا،، د کلمې څخه شوې ده په ،،هدایه النحو،، کښې چې ئې د ،،اذا،، قاعده لیکلې ده د هغې خلاصه دا ده چې ،،اذا،، چې کله په ماضی باندې داخل شوې وی نو د استقبال معنی ورکوی عبارت دا دې ((ومنها اذاوهی للمستقبل اذا دخلت علی الماضی)) نو چې دې دواړو قاعدو ته اوکتلی شی نو کومه معنی چې زما وروڼړو کړې ده هغه نه صحیح کیږی د دې مثال د قرآن پاک دا آیت دې ((واذاقرات القرآن فاستعذبالله)) په دې کښې کلمه د اذا او فاء موجود دی خو کلمه د فاء دتعقیب دپاره نه ده او کلمه د اذا د مستقبل معنی ورکوی که چرته پورتنۍ د رونړو د قاعدې مطابق ترجمه اوکړې شی نو معنی به دا شی چې کله ته قرآن اولولې نو د هغې څخه روسته تعوذ وایه حالانکه دا د چا په نیز هم ټیک نه ده دغه شان په حدیث مذکور کښې هم د دوی قول صحیح نه دې پکار دی چې سوچ ورته اوکړی.

---

() اخرجه ابوداود فی کتاب الجنائز. باب الدعاء للمیت (رقم-٣١٩٩) وابن ماجة کتاب الجنائز /باب ما جاء فی الدعاء فی الصلاة علی الجنازة (رقم-١٤٩٧)

## [١٦٧٥] دَ جنازې جامع دعا

١٦٧٥ـ()[٢٩] [١] وَعَنْهُ قَالَ: [٢] «كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا صَلَّى عَلَى الْجَنَازَةِ قَالَ: [٣] اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِحَيِّنَا وَمَيِّتِنَا، [٤] وَشَاهِدِنَا وَغَائِبِنَا، وَصَغِيرِنَا وَكَبِيرِنَا، وَذَكَرِنَا وَأُنْثَانَا، [٥] اللَّهُمَّ مَنْ أَحْيَيْتَهُ مِنَّا فَأَحْيِهِ عَلَى الْإِسْلَامِ، [٦] وَمَنْ تَوَفَّيْتَهُ مِنَّا فَتَوَفَّهُ عَلَى الْإِيمَانِ، [٧] اللَّهُمَّ لَا تَحْرِمْنَا أَجْرَهُ، وَلَا تَفْتِنَّا بَعْدَهُ». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [١] ابو هریره رضي الله عنه روایت کوي [٢] چې رسول الله ﷺ چې به د جنازې مونځ کولو نو فرمایل به یې [٣] اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِحَيِّنَا وَمَيِّتِنَا وَشَاهِدِنَا وَغَائِبِنَا وَصَغِيرِنَا وَكَبِيرِنَا وَذَكَرِنَا وَأُنْثَانَا اللَّهُمَّ مَنْ أَحْيَيْتَهُ مِنَّا فَأَحْيِهِ عَلَى الْإِسْلَامِ وَمَنْ تَوَفَّيْتَهُ مِنَّا فَتَوَفَّهُ عَلَى الْإِيمَانِ اللَّهُمَّ لَا تَحْرِمْنَا أَجْرَهُ وَلَا تَفْتِنَّا بَعْدَهُ (یا الهي زمونږ ژوندي وبخښې او زمونږ مړه وبخښې [٤] او زمونږ حاضر او غایب او زمونږ وړوکي او زمونږ مشران او زمونږ نارینه او زمونږ ښځې وبخښې [٥] یا الهي څوک چې زمونږ څخه ژوندي پاتې کړې نو هغه په اسلام ژوندي لرې [٦] او څوک چې زمونږ څخه وفات کړې نو په ایمان یې وفات کړې [٧] یا الهي مونږ د دې ثواب څخه محرومه مه کړې او مونږ د دې څخه روسته په فتنه کښې مه اچوې) (احمد، ابوداؤد، ترمذي، ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① وَلَا تَفْتِنَّا: أَيْ: لَا تَجْعَلْنَا مَفْتُونِينَ بَعْدَ الْمَيِّتِ: یعنی مونږ ددې مړي نه پس په فتنه

**تسهیلات: نوټ:** - ددې حدیث شرح په راروان حدیث نمبر ١٦٧٦ کښې راروانه ده.

١٦٧٦ـ()[٥٠] [١] وَرَوَاهُ النَّسَائِيُّ عَنْ أَبِي إِبْرَاهِيمَ الْأَشْهَلِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، [٢] وَانْتَهَتْ رِوَايَتُهُ عِنْدَ قَوْلِهِ: وَأُنْثَانَا، [٣] وَفِي رِوَايَةِ أَبِي دَاوُدَ: فَأَحْيِهِ عَلَى الْإِيمَانِ وَتَوَفَّهُ عَلَى الْإِسْلَامِ [٤] وَفِي آخِرِهِ: وَلَا تُضِلَّنَا بَعْدَهُ.

**ترجمه:** [١] او په یو روایت کې نسایي د ابي ابراهیم اشهلي څخه هغه د خپل پلار څخه نقل کړیدی [٢] او د هغه روایت تر وانثانا پورې ختم شو [٣] او د ابي داود په روایت کښې دي پس هغه په ایمان ژوندي لرې او په اسلام یې وفات کړې [٤] او د حدیث په اخر کښې داسې دي چې مونږ د هغه څخه روسته ګمراه نه کړې.

**تسهیلات: قوله: اللَّهُمَّ اغْفِرْ:**

**د دعا جامعیت:** - دا دَ جنازې ډیره ښکلې او جامع دعا ده په دې کښې دَ ژوندو مړو حاضرینو غائبینو ښځو سړو ماشومانو او مشرانو ټولو دپاره یو شان دعا ده. په دې کښې دا فرق هم نه راځي چه مخې ته مړی څوك او څومره دی یا ښځې دی یا ماشومان دی یا بوډاګان دی.

[١] اخرجه الترمذی کتاب الجنائز عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ ما یقول فی الصلاة علی المیت(رقم-١٠٢٤)واحمد فی المسند ٣٦٨/٢

[٢] اخرجه ابوداود فی کتاب الجنائز، باب الدعاء للمیت (رقم-٣٢٠١) والترمذی کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی فضل المملوک الصالح(رقم-١٩٨٦)

خو په نورو دعاګانو کښې ضمائر دی په هغې کښې دَ مفرد اوجمع ضمائر اودغه شان دَ مذکر اومؤنث ضمائر دی. فرق کول ضروری وی هم دغه وجه ده چه په سعودی عرب حرمین کښې دَ جنازې دَپاره کله اعلان کیږی نودا هم واضح کولې شی چه مړې ښځه ده یا سړې دې یودې که زیات دی.

**د جنازې په دعا کښې کمې په نښه کول:** - دَ ائمه احناف په نیزعوام اوخواص ټولو جنازوکښې هم دغه دعا کوی سره دَدې چه آخری دوه جملې چا ته یادې نه دی یعنی "اللهم لاتحرمنا اجره ولاتفتنا بعده" بهرحال علماء احناف له پکاردی چه دَعربودَ علماؤ په شان هغه دعاګانې هم وائی کومې چه په احادیثوکښې ذکردی. هغه ډیرې ښې دعاګانې دی.

**[١٦٧٧] دَیومړی دَپاره دَرسول الله ﷺ یوخاص دعا**

١٦٧٧–(٣٠)[١] وَعَنْ وَاثِلَةَ بْنِ الْأَسْقَعِ قَالَ: [٢] «صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى رَجُلٍ مِنَ الْمُسْلِمِينَ، [٣] فَسَمِعْتُهُ يَقُولُ: اللّٰهُمَّ إِنَّ فُلَانَ بْنَ فُلَانٍ فِي ذِمَّتِكَ وَحَبْلِ جِوَارِكَ، [٤] فَقِهِ مِنْ فِتْنَةِ الْقَبْرِ وَعَذَابِ النَّارِ، [٥] وَأَنْتَ أَهْلُ الْوَفَاءِ وَالْحَقِّ، [٦] اللّٰهُمَّ اغْفِرْ لَهُ وَارْحَمْهُ إِنَّكَ أَنْتَ الْغَفُورُ الرَّحِيمُ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ وَابْنُ مَاجَةَ.

**ترجمه:** [١] واثله ابن اسقع رضي الله عنه روایت کوي [٢] چې رسول الله ﷺ په مسلمانانو کښې په یو سړي مونځ ته مونځ راکړو [٣] نو ما د حضور ﷺ څخه واوریدل چې فرمایل یې یا الهي فلاني د فلاني څوی په خپل آمان او خپله پناه کښې ولري [٤] دي د قبر د فتنې څخه او د دوزخ د عذاب څخه خلاص کړي [٥] او ته صاحب وفا یې او ته صاحب حق یې [٦] یا الهي دي وبخښې او رحم پرې وکړې بیشکه ته بخښونکې مهربانه یې. (ابوداؤد ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① حَبْلِ: حبل رسئ ته وائی، خو مراد ترې قرآن دې لکه مرقات کې وائی. ② جِوَارِكَ: جوارد ګاوندی په معنی کښې دې. خو دلته ترې حفاظت مراد دې. ③ قِهِ: بچ کړې ده لره، ④ فِتْنَةِ الْقَبْرِ: د قبر فتنې، ددې نه مراد یا سوال اوجواب دې یا نور مختلف عذابونه دی. ⑤ أَهْلُ الْوَفَاءِ: پوره کونکې نې (وعدې لره).

**تسهیلات:**

**قوله: وَحَبْلِ جِوَارِكَ:**

**د حبل الجوار څوره تفسیر:** - دَدې جملې ډیرې معنې دی مګر ملا علی قاری رحمه الله فرمائی چه دَدې جملې دَ ټولو نه ښه معنی داده چه دَحبل نه قرآن کریم مراد واخستې شی. ﴿ وَاعْتَصِمُوا بِحَبْلِ اللّٰهِ جَمِيْعًا وَّلَا تَفَرَّقُوْا ﴾ [سورت آل عمران: ١٠٣] کښې هم دَحبل نه مراد قرآن کریم دې اودَ جوارنه مراد امان او حفاظت دې اودلته اضافت بیانیه دې. اصل مقصود جواردې حاصل

[1] اخرجه ابوداود فی کتاب الجنائز، باب الدعاء للمیت (رقم-٣٢٠٢) وابن ماجة کتاب الجنائز /باب ما جاء فی الدعاء فی الصلاة علی الجنازة (رقم-١٤٩٩)

معنی داسې شوه چه داسړې قرآن عظیم په مضبوطیاسره نیونکې وو هغه قرآن چه دَ امن او سلامتئ سبب اوذریعه دې.

**[١٦٧٨] د مړو د بدئ ذکر کولو ممانعت**

١٦٧٨-(١)[٣١] [١] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: «قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [٢] اذْكُرُوا مَحَاسِنَ مَوْتَاكُمْ [٣] وَكُفُّوا عَنْ مَسَاوِيهِمْ». رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [١] ابن عمر رضي الله عنه روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] تاسو د خپلو مړو نيکي ذکر کوئ [٣] او د هغوئ د بدئ د ذکر کولو څخه ځان ساتئ. (ابوداؤد ترمذي)

**حل اللغات:-** ① مَحَاسِنَ: خوبياني، صفات، ② كُفُّوا: اى امْتَنِعُوا: منع شئ، ③ مَسَاوِيهِمْ: د سُوْءِ جمع ده خلاف القياس، بدئ او ګناهونه.

**تسهیلات: قوله: اذْكُرُوا مَحَاسِنَ مَوْتَاكُمْ:**

**د مړو ښه ذکر کول:-** يعنی دَ مړو شوو خلقو خوبيانې او نيکئ بيانوئ ليکن دَهغوی بدئ دَ مرګ نه پس مه بيانوئ مثلاً يوسړې يومړې لامبوی اوهغه په مړی کښې څه کرامت اوليدلو يا دَ لامبولونه علاوه دَمړی مخ اوبرقيدو يا خوشبوئی راوچته شوه يا دَ لامبولو نه علاوه څه بله خوبی اوليدله نودا په عوامو کښې بيانول مستحب دی. ليکن که هم په دې دوران کښې دَ مړی نه څه بدبوئی اوچته شی يائی مخ تور شی اوهغه اوليدلو نودا عوامو کښې بيانول حرام دی. علماؤ ليکلی دی چه دَمړو خلقو غيبت کول دَ ژوندو دَ غيبت کولو نه ډير دَ نفرت قابل دی.

**[١٦٧٩] دَ جنازې په مونځ کښې دَ امام دَ اودريدو ځائ**

١٦٧٩-(٢)[٣٢] [١] وَعَنْ نَافِعٍ أَبِي غَالِبٍ قَالَ: [٢] «صَلَّيْتُ مَعَ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ عَلَى جَنَازَةِ رَجُلٍ [٣] فَقَامَ حِيَالَ رَأْسِهِ [٤] ثُمَّ جَاءُوا بِجَنَازَةِ امْرَأَةٍ مِنْ قُرَيْشٍ فَقَالُوا: [٥] يَا أَبَا حَمْزَةَ، صَلِّ عَلَيْهَا. [٦] فَقَامَ حِيَالَ وَسَطِ السَّرِيرِ [٧] فَقَالَ لَهُ الْعَلَاءُ بْنُ زِيَادٍ: هٰكَذَا رَأَيْتَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [٨] قَامَ عَلَى الْجَنَازَةِ مَقَامَكَ مِنْهَا وَمِنَ الرَّجُلِ مَقَامَكَ مِنْهُ؟ قَالَ: نَعَمْ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ. [٩] وَفِي رِوَايَةِ أَبِي دَاوُدَ نَحْوُهُ مَعَ زِيَادَةٍ وَفِيهِ: فَقَامَ عِنْدَ عَجِيزَةِ الْمَرْأَةِ.

**ترجمه:** [١] نافع چې د هغه کنيت ابو غالب دي فرمايي [٢] چې ما د انس بن مالک رضي الله عنه سره د يوي جنازي (يعني د عبدالله ابن عمر رضي الله عنه د جنازي) مونځ اوکړو [٣] حضرت انس رضي الله عنه

---

(١) اخرجه ابوداود فی کتاب الأدب/باب فی النهی عن سب الموتی (رقم-٤٩٠٠) والترمذی کتاب الجنائز عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب آخر (رقم-١٠١٩)

(٢) اخرجه ابوداود فی کتاب الجنائز. باب أین یقوم الإمام من المیت إذا صلی علیه (رقم-٣١٩٤) والترمذی کتاب الجنائز عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ ما جاء أین یقوم الإمام من الرجل والمرأة (رقم-١٠٣٤) وابن ماجة کتاب الجنائز/باب ما جاء فی أین یقوم الإمام إذا صلی علی الجنازة (رقم-١٤٩٤)

(چي امام وو) د جنازي د سر مخي ته ودريدلو (او مونځ يي ورکړو)[٤] بيا خلقو د قريشو د يوي ښځي جنازه راوړله او هغوئ اوويل [٥] اي ابوحمزه (دا د انس رضي الله عنه كنيت دي) د دي جنازي مونځ ورکړه [٦] نو حضرت انس رضي الله عنه د تخت چي په هغې جنازه وه د درميانه حصي مخي ته ودريدلو او مونځ يي ورکړو [٧] دي ليدلو سره علاء ابن زياده اوويل چي آيا تا رسول الله ﷺ د جنازي په مانځه کښې دغه شان ولاړ ليدلي دي [٨] چي رسول الله صلى الله عليه دښځي په جنازه دغه شان ولاړ وو څنګه چي ولاړ وي(يعنى د ښځي سيني ته مخامخ) او: سړی په دغه شان ولاړ وو څنګه چي ته اودريږي حضرت انس رضي الله عنه وفرمايل هو، ترمذي ابن ماجه،[٩] ابوداؤد هم دا روايت د څه زياتي سره نقل کړي دي او د هغه په روايت کښې د فقام حيال وسط السرير په ځاي د فَقَامَ عِنْدَ عَجِيزَةِ الْمَرْاةِ (د ښځي په جنازه د هغې کوناټو برابرد لندو په برابر اودريدو) الفاظ منقول دي.

**حل اللغات:** - ① حِيَالَ: أَيْ: حِذَاءَهُ وَمُقَابِلَهُ: يعنى ورسره برابر مخامخ. ② السَّرِير: كټ.

**تسهيلات: قوله**: فَقَامَ حِيَالَ وَسَطِ السَّرِيرِ:

**د شوافع مستدل:** - په حديث نمبر ١٦٥٤ کښې ددي مسئلي توضيح اوتشريح شوي ده.او داحديث دَ شوافع دليل دي. "عجيزة" شاته حصي ته عجيزه وائى دکوم ترجمه چه کوناټوسره کړي شوي ده.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [١٦٨٠] دَ ذمي د جنازي دَپاره اودريدل

١٦٨٠ -()[٣٣] [١] عَنْ عَبْدِ الرَّحْمنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى قَالَ: [٢] «كَانَ سَهْلُ بْنُ حُنَيْفٍ، وَقَيْسُ بْنُ سَعْدٍ قَاعِدَيْنِ بِالْقَادِسِيَّةِ، [٣] فَمَرَّ عَلَيْهِمَا بِجَنَازَةٍ فَقَامَا [٤] فَقِيلَ لَهُمَا: إِنَّهُمَا مِنْ أَهْلِ الْأَرْضِ، أَيْ: مِنْ أَهْلِ الذِّمَّةِ. [٥] فَقَالَا: إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّتْ بِهِ جَنَازَةٌ فَقَامَ [٦] فَقِيلَ لَهُ: إِنَّهَا جَنَازَةُ يَهُودِيٍّ [٧] فَقَالَ: "أَلَيْسَتْ نَفْسًا» "[١]. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] عبدالرحمن ابن ابي ليلي فرمايي [٢] چي يوه ورځ سهل رضي الله عنه ابن حنيف او قيس رضي الله عنه ابن سعد په قادسيه کښې يو ځاي ناست وو [٣] د هغوئ مخي ته يوه جنازه تيره شوه د هغې په ليدو سره دواړه صحابه رضي الله عنهما ودريدل [٤] هغوئ ته اوويل شو چي دا جنازه د اهل الارض يعنى د ذمي ده [٥] نو دواړو صحابه رضي الله عنهما وفرمايل چي دغه شان يوه ورځ د رسول الله ﷺ مخي ته يوه جنازه تيره شوه د هغې په ليدو سره حضور ﷺ ودريدلو [٦] حضور ﷺ ته عرض وشو چي دا خو د يو يهودي جنازه ده [٧] حضور ﷺ وفرمايل (نو څه وشو) آيا دا ساه لرونکی نه دي؟ (بخاري مسلم)

[١]) اخرجه البخارى فى كتاب الجنائز/باب من قام لجنازة يهودى (رقم - ١٣١٢)

**تسهیلات: قوله: بِالْقَادِسِيَّةِ:**
**د قادسیه مصداق:** - د کوفې نه ۱۵ میله لرې عراق کښې دَ یوځائی نوم قادسیه دې چرته چه دَاسلام په اول زمانه کښې مجوسیانوسره صحابه کرامو یو تاریخی جنګ کړې وو اوفتح ئی حاصله کړې وه. مشری دَ حضرت سعد بن ابی وقاص رضي الله عنه په لاس کښې وه.
**قوله: فَقَامَا:** دادواړه حضرات دَ جنازې دَپاره ځکه اودریدل چه هغوی ته دَدې حکم موقوف اومنسوخ کیدوعلم نه وو. دَ حضرت علی رضي الله عنه دَ قول مطابق دا حکم منسوخ شوې دې.
**قوله: مِنْ أَهْلِ الْأَرْضِ:**
**داهل ارض مصداق:** - زمکې والا اهل ذمه ته وئیلی شی ځکه چه دې خلقو به دَمسلمانانو په زمکوکښې کارکولو اوهغه به ئی سمبالولې. یا دوی ته ځکه اهل الارض وائی چه دا خلق ذمی وو بې اختیاره وو لکه چه په ذلت او رسوائئی کښې داخلق په زمکه کښې ورخښ شوی وو په دې وجه دوی ته دَ زمکې والاووئیلې شو. دَ جنازې دَپاره پاسیدل او نه پاسیدلو مسئله مخکښې تیره شوې ده.

**[۱۶۸۱] د جنازې د کیخودو څخه وړاندې د نه کیناستو د حکم نسخ**

۱۶۸۱ - ()[۳۳] [۱] وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ: [۲] «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا تَبِعَ جَنَازَةً لَمْ يَقْعُدْ [۳] حَتَّى تُوضَعَ فِي اللَّحْدِ [۴] فَعَرَضَ لَهُ حَبْرٌ مِنَ الْيَهُودِ [۵] فَقَالَ لَهُ: إِنَّا هَكَذَا نَصْنَعُ يَا مُحَمَّدُ، [۶] قَالَ: فَجَلَسَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَقَالَ: " خَالِفُوهُمْ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ [۷] وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَبِشْرُ بْنُ رَافِعٍ الرَّاوِي لَيْسَ بِالْقَوِيِّ.

**ترجمه:** [۱] عباده ابن صامت رضي الله عنه فرمايي [۲] چې رسول الله ﷺ چې به د جنازې سره تلو نو تر هغه وخته پورې به نه کیناستلو [۳] تر څو پورې چې مړي به په قبر کښې نه وو ایښودل شوي [۴] یوځل یو یهودي عالم د حضور ﷺ په مخکې پیش شو [۵] هغه عرض اوکړو چې اي محمده ﷺ) مونږ هم داسې کوو (چې تر څو پورې مړي په قبر کښې نه وي ایښودل شوي نو مونږ ولاړ یو) [۶] عباده رضي الله عنه وايي چې ددې څخه روسته حضور ﷺ کیناستو اوحضور ﷺ وفرمايل چې تاسو د یهودیانو مخالفت کوئ. (ترمذي، ابوداؤد، ابن ماجه) [۷] امام ترمذي رحمه الله فرمايي چې دا حدیث غریب دي او بشر ابن رافع چې د دې روایت یو راوي دي قوي نه دي.

**حل اللغات:** - ① فَعَرَضَ: أَيْ: ظَهَرَ: رامخې ته شو. ② حَبْرٌ: أَيْ: عَالِمٌ: عالم (دا یهودی وو).

**تسهیلات: قوله: فَجَلَسَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:**

[1]) اخرجه ابوداود فی کتاب الجنائز، باب القیام للجنازة (رقم-۳۱۷۶) والترمذی کتاب الجنائز عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ ما جاء فی الجلوس قبل أن توضع (رقم-۱۰۲۰) واحمد فی المسند ۸۲/۱

**په جلوس کښې د یهودیانو مخالفت:-** یعنی حضورپاك دَ یهودو په مخالفت کښې دَ قیام په ځائې کیناستل اختیار کړل. لکه دَ جنازې دَپاره اودریدل حضورپاك ترك کړل دې دَپاره چه په دې عمل کښې یهودو سره مشابهت رانه شي بلکه په هرڅیزکښې دَهغوی مخالفت وی. چنانچه رسول الله ﷺ امت ته حکم اوفرمائیل "خالفوهم" یعنی په دې عمل کښې دَ یهودو مخالف عمل خپل کړئ.

**[١٦٨٢] دَجنازې په لیدو نه اودریدل**

١٦٨٢-()[٣٥] [١] وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ: «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَنَا بِالْقِيَامِ فِي الْجَنَازَةِ [٢] ثُمَّ جَلَسَ بَعْدَ ذٰلِكَ وَأَمَرَنَا بِالْجُلُوسِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** [١] حضرت علي رضي الله عنه فرمایي چې رسول الله ﷺ به مخکې مونږ ته د جنازې په لیدو سره د اودریدلو د پاره فرمایل [٢] بیا وروسته به حضور ﷺ کیناستو او مونږ ته یې هم د ناستې د پاره فرمایل. (احمد)

**تسهیلات:**

**قوله: ثُمَّ جَلَسَ بَعْدَ ذٰلِكَ وَأَمَرَنَا بِالْجُلُوسِ:**

**جنازې ته د اودریدو دحکم نسخ:-** ما قبل کښې دا مسئله وه چې جنازه لیدلو سره اودریدل پکار دی خو روستو دا حکم منسوخ شو جنازه کتلو سره اودریدل نه دی پکار.

**اعتراض:-** په حدیث پاك کښې راغلی دی چې حضرت نبی کریم ﷺ دیوې یهودی په جنازه لیدو اودریدلی وو؟

**داعتراض درې جوابونه:-** ① د حضرت نبی کریم ﷺ اودریدل صرف په دې وجه وو چې د حضرت نبی کریم ي په سر باندې دا جنازه تیره نه شي. دې کښې دې طرفته اشاره ده چې حضرت نبی کریم ﷺ فرمائی (الإسلام یعلو ولا یعلی علیه) یعنی اسلام غالب کیدو دپاره راغلې دې مغلوب کیدو دپاره نه دې راغلې.

② جنازې سره فرښتې وی د فرښتو د آدب دپاره اودریدلو،

③ د مرګ د ویرې د وجې او عبرت دپاره به جنازې ته اولیدله

**[١٦٨٣] دَجنازې دَپاره اودریدل منسوخ کیدل**

١٦٨٣-()[٣٦] [١] وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ قَالَ: [٢] «إِنَّ جَنَازَةً مَرَّتْ بِالْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ وَابْنِ عَبَّاسٍ [٣] فَقَامَ الْحَسَنُ وَلَمْ يَقُمِ ابْنُ عَبَّاسٍ [٤] فَقَالَ الْحَسَنُ: أَلَيْسَ قَدْ قَامَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِجَنَازَةِ يَهُودِيٍّ؟ [٥] قَالَ: نَعَمْ. ثُمَّ جَلَسَ». رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

---

[١] اخرجه احمد فی المسند ٨٢/١

[٢] اخرجه النسائی فی کتاب الجنائز/باب الرخصة فی ترک القیام (رقم-١٩٢٤)

**ترجمه:** [١] محمد ابن سيرين رحمه الله فرمايي [٢] چې يو ځل د حسن ابن علي رضي الله عنه او ابن عباس رضي الله عنه په مخکې يوه جنازه تيره شوه [٣] نو حضرت حسن رضي الله عنه د هغې په ليدو سره ودريدلو او حضرت ابن عباس رضي الله عنه ونه دريدلو [٤] حسن رضي الله عنه د ابن عباس رضي الله عنه دا عمل ليدو سره ورته وفرمايل چې آيا رسول الله ﷺ د يو يهودي د جنازې په ليدو سره ودريدلې نه وو؟ [٥] ابن عباس رضي الله عنه جواب ورکړو چې هو! بيشکه ودريدلې وو ليکن وروسته به حضور ﷺ د جنازې په ليدلو سره ناست وو. (نسايي)

**تسهيلات: قوله: وَلَمْ يَقُمِ ابْنُ عَبَّاسٍ:**

**د يهوديانو د جنازې دپاره نه اودريدل:** – حضرت حسن بصرى رحمه الله به اول په فعل باندې عمل کول غوښتل اودَ دليل په توګه ئې هم داعمل پيش کړو ليکن حضرت ابن عباس رضي الله عنه اوخودل چه بيشکه حضورپاك به په شروع کښې دَ يهودي يا غيريهودي هرې جنازې دَپاره اودريدلو بيا به حضورپاك نه اودريدلو بلکه هم ناست به وو. دَ "ثم جلس" هم دغه مطلب دې چه داعمل بيا متروك شوې وو.

**[١٦٨٤] دَ يهودي دَ جنازې دَپاره د نبي عليه السلام اودريدل**

١٦٨٣–()[٣٧] [١] وَعَنْ جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِيهِ: [٢] «أَنَّ الْحَسَنَ بْنَ عَلِيٍّ كَانَ جَالِسًا فَمُرَّ عَلَيْهِ بِجَنَازَةٍ [٣] فَقَامَ النَّاسُ حَتَّى جَاوَزَتِ الْجَنَازَةُ، [٤] فَقَالَ الْحَسَنُ: إِنَّمَا مُرَّ بِجَنَازَةِ يَهُودِيٍّ [٥] وَكَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى طَرِيقِهَا جَالِسًا [٦] وَكَرِهَ أَنْ تَعْلُوَ رَأْسَهُ جَنَازَةُ يَهُودِيٍّ فَقَامَ». رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.[1]

**ترجمه:** [١] جعفر ابن محمد رحمه الله (يعني حضرت جعفر صادق رحمه الله) د خپل پلار بزرګوار (حضرت محمد باقر رحمه الله) څخه دا روايت کوي [٢] چې يو ځل حضرت حسن رضي الله عنه بن علي رضي الله عنه په يو ځاي کښې ناست وو چې د هغه په مخکې يوه جنازه تيره شوه [٣] هغه خلق [چې هغوئ ته د دې مسئلې د منسوخۍ علم نه وو] د جنازې په ليدو سره ودريدل [او تر هغه پورې ولاړ وو] تر څو پورې چې جنازه تيره نه شوه [٤] حضرت حسن رضي الله عنه هغوئ ته وفرمايل چې اصل خبره دا ده چې د يو يهودي جنازه وړل کيده [٥] نو هغه وخت رسول الله ﷺ په لار کښې ناست وو [٦] حضور ﷺ دا خوښه نه کړه چې د يهودي جنازه د حضور ﷺ د سر مبارک دپاسه پورته تيره شي ځکه حضور ﷺ اودريدلو. (نسايي)

**حل اللغات:** – ① جَاوَزَتْ: أَيْ: تَعَدَّتْ: تيره شوه (جنازه). ② تَعْلُوَ: چه اوچت شي.

**تسهيلات: قوله: فَقَالَ الْحَسَنُ:**

**د جنازې دپاره د نه اودريدو والي:** – خلاصه دا چه يوجنازه په مدينه منوره کښې خلقوسره تيريدله هغه خلق دَجنازې دَپاره اودريدل حضرت حسن رحمه الله هم موجود وو مګر اونه

[1] اخرجه النسائي في كتاب الجنائز /باب الرخصة في ترك القيام (رقم-١٩٢٧)

دریدلو بلکه په خلقو باندې نی اعتراض اوکړو چه تاسو ولې ولاړ نې حضورپاك خوځکه اودریدلې ووچه حضورپاك په لاره کښې ناست وو اودَ یهودی جنازه اوړلې شوه نوحضورپاك مناسب اونه ګڼړل چه دَهغوی دَ مبارك سر دَپاره دې دَ یهودی جنازه اوچتیدوسره تیره شی په دې وجه حضورپاك اودریدلو لهذا تاسو خلق هسې دَ اودریدو کوشش کوئی.

**اعتراض:**- دلته دا سوال پیدا کیږی چه حضرت حسن بصری رحمه الله دې نه وړاندې په حضرت ابن عباس رضی الله عنهما باندې دا اعتراض کړې وو چه ته ولې نه اودریږې لکه څنګه چه دې نه وړاندې حدیث کښې واقعه تیره شوه نودادلته په اودریدو باندې څنګه اعتراض کوی؟

**جواب:**- حضرت حسن رحمه الله ته چه ترکومې دَ دې حکم دَ منسوخ کیدو علم نه وو نو په دې باندې به ئی عمل کولو لیکن چه کله هغوی ته معلومه شوه اوابن عباس رضی الله عنهما ورته اوخودل نوبیاهغه پخپله منع شو څنګه چه دلته منع کول کوی. هسې داخبره وړاندې لیکلې شوې ده چه دَ جنازې دَپاره دَ اودریدلو وجوهات مختلف دی کله دَناګهانی واقعې دَوجې نه اودریدل کیږی اوکله دَملائکه دَ تعظیم اواحترام دَ وجې نه کیږی اوکله دَدغه علت دَ وجې نه شوی دی کوم چه په دې حدیث کښې ذکر دی نوکه دَ څه وجوهاتو دَ وجې نه دَقیام حکم موقوف شوې وی نودَڅه نورو وجوهاتو دَ وجې نه باقی هم پاتې کیدې شی.

**[١٦٨٥] دَ فرښتو د تعظیم دپاره د اودریدو حکم**

١٦٨٥—()[٣٨] [١] وَعَنْ أَبِي مُوسَى: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: [٢] "«إِذَا مَرَّتْ بِكَ جَنَازَةُ يَهُودِيٍّ أَوْنَصْرَانِيٍّ أَوْمُسْلِمٍ فَقُومُوا لَهَا، [٣] فَلَسْتُمْ لَهَا تَقُومُونَ، إِنَّمَا تَقُومُونَ لِمَنْ مَعَهَا مِنَ الْمَلَائِكَةِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** [١] ابو موسي رضی الله عنه روای دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل [٢] هر کله چې ستاسو په مخکې د یهودي یا د نصراني یا د مسلمان جنازه تیریږي نو د هغې په لیدو سره ودریږئ [٣] تاسو خود جنازي (د آداب او احترام) د پاره نه دریږئ بلکه د هغه فرشتو د پارره اودریږئ چې د جنازې سره وي. (احمد)

**تسهیلات:**

**قوله: إِنَّمَا تَقُومُونَ لِمَنْ مَعَهَا مِنَ الْمَلَائِكَةِ**

**د فرشتو دپاره د نبی علیه السلام جنازې ته اودریدل:**- ددې حدیث پاك نه معلومیږی چې حضرت نبی کریم صلی الله علیه وسلم دیهودی جنازې دپاره اودریدلی نه وو بلکه د فرښتو د تعظیم په وجه ولاړ وو، باقی د یهودی ،نصرانی او داشان دبل کافر جنازې دپاره اودریدلو حکم منسوخ دې.

---

[1] اخرجه احمد فی المسند ٣٩١/٤

[١٦٨٦] د فرشتو په وجه د نبی علیه السلام اودریدل

١٦٨٦ — (¹) [٣٩] [١] وَعَنْ أَنَسٍ: «أَنَّ جَنَازَةً مَرَّتْ بِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَامَ [٢] فَقِيلَ: إِنَّهَا جَنَازَةُ يَهُودِيٍّ [٣] فَقَالَ: "إِنَّمَا قُمْتُ لِلْمَلَائِكَةِ» ". رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [١] حضرت انس رضی الله عنه فرمايي چې يوه جنازه تيره شوه نو حضور ﷺ د هغې په ليدو سره ودريدلو [٢] صحابه و رضی الله عنهم عرض اوکړو چې دا خو د يو يهودی جنازه ده (د هغې په ليدلو سره ودريدل په پوهه کښې نه راځي؟) [٣] رسول الله ﷺ وفرمايل چې زه د جنازي په احترام کښې نه وم ودريدلي بلکه زه خو صرف د هغه ملايکو د تعظيم د پاره ودريدلي وم چې د جنازي سره ورسره وي. (نسايي)

**تسهيلات:**

**نوټ:** — ددې حديث شرح په د بل حديث په تسهيل کښې ذکر ده.

[١٦٨٧] په جنازه کښې کم ازکم د درې صفونو جوړولو حکم

١٦٨٧ — (²) [٤٠] [١] وَعَنْ مَالِكِ بْنِ هُبَيْرَةَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: [٢] «مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَمُوتُ فَيُصَلِّي عَلَيْهِ ثَلَاثُ صُفُوفٍ مِنَ الْمُسْلِمِينَ إِلَّا أَوْجَبَ» " [٣] فَكَانَ مَالِكٌ إِذَا اسْتَقَلَّ أَهْلَ الْجَنَازَةِ [٤] جَزَّأَهُمْ ثَلَاثَةَ صُفُوفٍ لِهٰذَا الْحَدِيثِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] مالک ابن هبيره رضی الله عنه روايت کوي چې ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي [٢] هرکله چې يو مسلمان مړشي او په هغه د مسلمانانو په درې صفونو باندې مشتمل جماعت مونځ وکړي نو الله تعالی جل جلاله د هغه د پاره جنت او مغفرت واجبوي [٣] حضرت مالک رضی الله عنه چې به د جنازي په مانځه کښې سړي لږ وليدل [٤] نو د دې حديث په موجب به يې هغه په درې صفونو کښې تقسيمول. (ابوداؤد)

[١] وَفِي رِوَايَةِ التِّرْمِذِيِّ قَالَ: [٢] كَانَ مَالِكُ بْنُ هُبَيْرَةَ إِذَا صَلَّى عَلَى جَنَازَةٍ [٣] فَتَقَالَّ النَّاسَ عَلَيْهَا جَزَّأَهُمْ ثَلَاثَةَ أَجْزَاءٍ، [٤] ثُمَّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [٥] «مَنْ صَلَّى عَلَيْهِ ثَلَاثَةُ صُفُوفٍ أَوْجَبَ». وَرَوَى ابْنُ مَاجَهْ نَحْوَهُ.

**ترجمه:** [١] د ترمذي په روايت کښې دي [٢] چې مالک ابن هبيره چې به د جنازي مونځ کولو (يعنی د جنازي د مانځه اراده به يې وکړله) [٣] او د خلقو تعداد به يې کم وليدلو نو هغه به يې په درې حصو کښې (په درې صفونو کښې) تقسيمول [٤] بيا به يې ويل چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي [٥] د کوم سړي د جنازي مونځ چې درې صفونه وکړي الله تعالی جل جلاله د

(¹) ليس تحت هذا الرقم شرح فی مرقات المفاتيح.

(²) اخرجه ابوداود فی کتاب الجنائز /باب فی الصفوف علی الجنازة (رقم-٣١٦٦) والترمذی کتاب الجنائز عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/ ما جاء فی الصلاة علی الجنازة والشفاعة للميت (رقم-١٠٢٨) وابن ماجة کتاب الجنائز /باب ما جاء فيمن صلی عليه جماعة من المسلمين (رقم-١٤٩٠)

هغه د پاره جنت واجبوي، ابن ماجه هم د دې قسم روايت نقل کړې دې.

**حل اللغات:-** ① أَوْجَبَ: أَيْ: مَغْفِرَتَهُ، وَعْدًا مِنْهُ وَفَضْلًا: يعنى دهغه مغفرت په الله باندې واجبونکې دې خو دا دالله تعالى مهربانى ده. ② انْتَقَلَ: أَيْ: عَدَدُهُمْ قَلِيلًا: چه جنازې والا خلق به کم وو. ③ جَزَّأَهُمْ: أَيْ فَرَّقَهُمْ: تقسيم به ئې کړل يعنى جدا جدا صفونه به ئې کړل.

**تسهيلات: قوله: أَوْجَبَ:**

**اشكال:-** په اسلامى عقائدو کښې دَدې خبرې ذکر دې چه په الله تعالى باندې دَ چاهيڅ حکم واجب نه دې نه الله تعالى دَ چا په مخکښې جواب ورکونکې دې نه په څه وجه باندې مجبوردې. هغه "احکم الحاکمين" دې په هغه باندې دَ چا هيڅ حکم واجب نه دې. اوس چه په دې حديث کښې دَ دريو صفونو دَ فضيلت باره کښې اووئيلې شو چه په الله تعالى باندې دَ دغه سړى مغفرت واجب کيږى؟

**جوابونه:-** ① دَدې مطلب دادې چه دا احساناً او اکراماً الله تعالى په خپله ذمه باندې اخستې دې پخپله ئى وعده کړې او دَ وعدې پوره کولوئى هم وعده کړې ده. لهذا دادَ بل چا دَ طرف نه لازم کړې شوې نه بلکه دَ رحمت اوشفقت په توګه الله تعالى پخپله په خپل خان باندې لازم کړې ده. هم دغه مطلب دې دَ اوجب او وجب.

② علامه کرمانى رحمه الله ليکلى دى په جنازه کښې دَ ټولو نه غوره صف هغه وى کوم چه په ټولو کښې آخرى وى ځکه چه مذهب اسلام په کامل توحيدباندې قائم دې مسلمانان نيت ټرلو سره اګرچه دَمړى دَپاره دعا کوى ليکن دَمړى نعش مخې ته وى لهذا دَ جنازې دَ شروع په صفونوکښې دَدې وجې نه نقص راغلو که څوك کافر دې ته ګورى نوضرور به دَهغه خيال تيريږى چه دا خلق دَ خپل مړى عبادت کوى. په دې مشابهت سره دَ اول صفونو درجه کمه شوه.

**[١٦٨٨] دجنازې په مانځه کښې د نبى عليه السلام دعا**

١٦٨٨-(١)[٣١] [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، [٢] «عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الصَّلَاةِ عَلَى الْجَنَازَةِ: [٣] "اللَّهُمَّ أَنْتَ رَبُّهَا وَأَنْتَ خَلَقْتَهَا، [٤] وَأَنْتَ هَدَيْتَهَا إِلَى الْإِسْلَامِ، [٥] وَأَنْتَ قَبَضْتَ رُوحَهَا، [٦] وَأَنْتَ أَعْلَمُ بِسِرِّهَا وَعَلَانِيَتِهَا، [٧] جِئْنَا شُفَعَاءَ فَاغْفِرْ لَهُ» رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] ابوهريره رضي الله عنه به د نبي کريم صلى الله عليه وسلم په باره کې دا روايت کولو [٢] چې حضور صلى الله عليه وسلم به د جنازې په مانځه کښې دا دُعا ويله: [٣] اللَّهُمَّ أَنْتَ رَبُّهَا وَأَنْتَ خَلَقْتَهَا وَأَنْتَ هَدَيْتَهَا لِلْإِسْلَامِ وَأَنْتَ قَبَضْتَ رُوحَهَا وَأَنْتَ أَعْلَمُ بِسِرِّهَا وَعَلَانِيَتِهَا جِئْنَا شُفَعَاءَ فَاغْفِرْ لَهُ **(ترجمه)** اي الهي ته د ده پروردګار يي، تا دي پيدا کړې دي [٤] او تا ده ته د اسلام هدايت ورکړې وو [٥] او اوس تا د ده روح

(١) اخرجه ابوداود فى کتاب الجنائز. باب الدعاء للميت (رقم-٣٢٠٠) واحمدفى المسند ٤٥٨/٢

قبض کړو [٦] (اي رب العلمين) ته د ده باطن هم د ټولو څخه زيات ښه پېژني او د ده ظاهر هم [٧] (اي الله) مونږ د دې بنده د شفاعت د پاره حاضر شوي يو ته دي او بخښې. (ابوداؤد)

**تسهيلات:**

**قوله: وَأَنْتَ قَبَضْتَ رُوحَهَا:**

**الله تعالى ته د روح قبض کولو د نسبت وجه:** -اګر چې د روح قبض کول د ملك الموت کار دې مګر چونکه دا هغوئ د رب په حکم سره کوی ، په دې وجه ددې نسبت الله ﷻ طرفته دې ، لکه څنګه چې د الله ﷻ فرمان دې (اَللّٰهُ يَتَوَفَّى الْاَنْفُسَ حِيْنَ مَوْتِهَا).

**[١٦٨٩] د ماشوم په جنازې کښې د ابوهريره دعا**

١٦٨٩-( )[٣٢] [١] وَعَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ قَالَ: [٢] صَلَّيْتُ وَرَاءَ أَبِي هُرَيْرَةَ عَلَى صَبِيٍّ لَمْ يَعْمَلْ خَطِيئَةً قَطُّ [٣] فَسَمِعْتُهُ يَقُولُ: [٤] اللَّهُمَّ أَعِذْهُ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ. رَوَاهُ مَالِكٌ.

**ترجمه:** [١] سعيد ابن مسيب فرمايي [٢] چې يوځل ما په حضرت ابوهريره رضي الله عنه پسې د يو داسې هلک د جنازې مونځ اوکړو چې د هغه څخه هيڅ کله څه ګناه شوي نه وه [٣] نو ما د ابوهريره رضي الله عنه څخه (په مانځه کښې ) دا دعا کول واوريدل [٤] چې اي الله دې وړوکي ته د قبر د عذاب څخه پناه ورکړې. (مالک)

**تسهيلات: قوله : لَمْ يَعْمَلْ خَطِيئَةً قَطُّ:** ښکاره خبره ده چه دَماشوم ګناه نه وی اوهغه ته ګناه معاف وی لهذا داسې وينا کول چه هغه چرې ګناه نه ده کړې مطلب هم دادې که هغه ګناه اوکړی هم نودَهغه ګناه کالعدم ده.

**قوله: فَسَمِعْتُهُ:** دَ تعليم په توګه حضرت ابوهريره رضي الله عنه په زوره دعاغوښتلې ده "من عذاب القبر" دَدې مطلب دادې چه قبرکښې کوم خطرناك منظروی يوازې والې وی غم اوخفګان وی دَهغې نه دَدې ماشوم حفاظت اوکړه اودَ قبردَ راغونډيدلونه دې بچ کړه. دَ ماشوم نه به په قبرکښې فرښتې سوال جواب کوی که نه؟ نوراجح هم دغه دی چه سوال به نه کيږی. بعضې علماء دَدې قائل دی چه سوال جواب به کيږی والله اعلم.

**[١٦٩٠] دَماشوم دَ جنازې دعا**

١٦٩٠-( )[٣٣] [١] وَعَنِ الْبُخَارِيِّ تَعْلِيقًا قَالَ: [٢] يَقْرَأُ الْحَسَنُ عَلَى الطِّفْلِ فَاتِحَةَ الْكِتَابِ، [٣] وَيَقُولُ: اللَّهُمَّ اجْعَلْهُ لَنَا سَلَفًا، وَفَرَطًا وَذُخْرًا وَأَجْرًا.

**ترجمه:** [١] امام بخاري رحمه الله بطريق تعليق (يعني د صحيح بخاري په ترجمه الباب کښې بغير د سند دا حديث) نقل کړي دي [٢] چې حسن بصري رحمه الله به د ماشوم د جنازې په

(١) اخرجه مالک في الموطا کتاب الجنائز /باب التکبير على الجنائز(رقم-١٨)
(٢) اخرجه البخاري في کتاب الجنائز /باب قراءة فاتحة الکتاب على الجنازة ( تعليقا)

مانځه کښې د تکبیر اولی څخه روسته د سبحنک اللهم الخ په ځاي سورة فاتحه ویله [٣] او د دریم تکبیر څخه روسته به یي دا دعاکوله: اللَّهُمَّ اجْعَلْهُ لَنَا سَلَفًا وَفَرَطًا وَذُخْرًا وَأَجْرًا اي الله دا وړوکي د قیامت په ورځ زمونږ پیشوا (پیش رو) او مونږ د پاره ذخیره او ثواب جوړ کړي.

**حل اللغات:** - ① سَلَفًا: پیش رو، پیشوا. څوک چه مخکښې مړشی هغه د روستنو خلقو او متعلقینو دپاره سلف وی، لکه تابعین صالحین وغیره علماؤ ته چه سلف ونیلې شی ② فَرَطًا: ای أجْرًا: یعنی ثواب، ③ ذُخْرًا: أيْ: ذَخِيرَةً: یعنی ذخیره، ④ أجْرًا: أيْ: ثَوَابًا جَزِيلًا: یعنی ډیر ثواب

**تسهیلات: قوله:** يَقْرَأُ الْحَسَنُ عَلَى الطِّفْلِ:

دَ ماشوم په جنازه کښې دا دعا ونیلی شي "اللهم اجعله لنا فرطا واجعله لنا اجرا وذخرا واجعله لنا شافعا ومشفعا" په زیر بحث حدیث کښې دَ سلف لفظ راغلو فرط او سلف دَ معنې په اعتبار سره نیزدې نیزدې دی. سلف هغه مال ته وائی چه دَ ضرورت مطابق مخکښې منزل طرف ته اولیګلې شی دې دَ پاره چه هلته په کار راشی او فرط هغه دستې ته وائی چه دَ فوجی قافلې نه مخکښې لیګلې شی دې دَپاره چه هغه لار اوخائی هوار کړی. مراد دَ بچی شفاعت دې چه دې زمونږ دَپاره شفیع جوړ شی.

**[١٦٩١] د ناتمام (سقط) وړوکي ماشوم د جنازې د مونځ عدم ثبوت**

١٦٩١ - (٣٣) [١] وَعَنْ جَابِرٍ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: [٢] «الطِّفْلُ لَا يُصَلَّى عَلَيْهِ [٣] وَلَا يَرِثُ وَلَا يُورَثُ [٤] حَتَّى يَسْتَهِلَّ» [٥] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يَذْكُرْ: وَلَا يُورَثُ.

**ترجمه:** [١] حضرت جابر ﷺ راوي دي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل [٢] د ناتمام وړوکي دي نه خو مونځ کیږی [٣] او نه دي هغه د چا وارث وګرځول شي او نه دي د هغه څوک وارث وي [٤] په شرط د دې چې نس (خیتې) څخه بهر راوتلو په وخت د هغه آواز ونه وخي (یعني په هغه وخت کښې چې د ژوند آثار پکی پیدا نشي چې دهغې تفصیل مخکې تیرشوي دي) [٥] دا روایت ترمذي او ابن ماجه نقل کړي دي خو ابن ماجه په خپل روایت کښې وَلَا يُورَثُ نه دي نقل کړي.

**حل اللغات:** - ① يَسْتَهِلَّ: اى تَصْوِيتُهُ عِنْدَ وِلَادَتِهِ: د پیدائش په وخت د ماشوم آواز کولو ته استهلال وائی

**تسهیلات:**

**قوله:** الطِّفْلُ لَا يُصَلَّى عَلَيْهِ:

**داحکامو په اعتبار دماشوم د پیدائش دوه صورتونه:** -

① یعنی کوم ماشوم چې د پیدائش په وخت کښې آواز او نه کړی نو په هغه باندې به د

(١) اخرجه الترمذی فی کتاب الجنائز عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ ما جاء فی ترک الصلاة علی الجنین حتی یستهل (رقم-١٠٣٢) وابن ماجة کتاب الفرائض/باب إذا استهل المولود ورث (رقم-٢٧٥١)

جنازې مونځ نه ادا کیږي او نه به هغه وارث وي. ځکه چې په ده باندې د حیات علامت ظاهر نه شو. او دې به صرف په یوه کپړا کښې اونغښتې شي او ښخ به کړې شي.

② دکوم ماشوم حیات چې دهغه د آواز یا حرکت نه ظاهرشي په هغه به دجنازې مونځ کیږي او دهغه نوم بهٔ ایخودې کیږي. دده بهٔ باقاعده کفن هم وي .او په ده باندې بهٔ د میراث احکام هم جاري کیږي.

**[١٦٩٢] دَ جنازې په مونځ کښې د امام اومقتدی د برابر اودریدو حکم**

١٦٩٢—( )[٣٥] [١] وَعَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الْأَنْصَارِيِّ قَالَ: [٢] "«نَهَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَقُومَ الْإِمَامُ فَوْقَ شَيْءٍ [٣] وَالنَّاسُ خَلْفَهُ، يَعْنِي أَسْفَلَ مِنْهُ». وَرَوَاهُ الدَّارَقُطْنِيُّ فِي الْمُجْتَبَى فِي كِتَابِ الْجَنَائِزِ.

**ترجمه:** [١] ابو مسعود انصاري ﷛ فرمايي [٢] چې رسول الله ﷺ د دې خبري څخه منع فرمايلي ده چې امام دې (تنها) په یو شي اوچت ولاړ وي [٣] او مقتدیان دې په هغه پسې وروسته (د هغه څخه خکته) ولاړ وي. (دارقطني)

**حل اللغات:** - ① فَوْقَ: اوچت، ② أَسْفَلَ: لاندې یعنی ښکته.

**تسهيلات: قوله: فَوْقَ شَيْءٍ:** لکه څنګه چه په فرائض کښې ضروری دی چه دَامام اومقتدی دَاودریدو ځائی برابروی هم دغه شان دَ جنازې دَمونځ دَپاره هم ضروری دی چه امام دَ خپل مقتدی نه په زیات اوچت ځائی باندې نه وی اونه په ښکته مقام باندې وی.

**قوله: وَالنَّاسُ خَلْفَهُ:** دې نه صرف شاته اودریدل مرادنه دی بلکه مطلب دادې چه قوم دې دَخپل امام نه زیات ښکته نه وی داحکم صرف جنازې سره خاص نه دې بلکه دَ یوځائی دامسئله دَټولو فرائضودَپاره هم ده. کومه چه دې نه وړاندې ښه په تفصیل سره لیکلې شوې ده. صاحب مشکوة دَامام اودَ مقتدی دَ مساوات فی المکان یعنی په یوځائی دا مسئله کتاب الجنائزکښې نقل کړې ده په دې سره هغه دا اشاره کول غواړی چه څنګه دا مسئله په کتاب الصلوة کښې دَ مونځونوپه بیان کښې راغلې ده هم دغه شان دامسئله دَ جنازودَپاره هم ده، مونځونوسره خاص نه ده.

[1] اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة،باب الإمام يقوم مكانًا أرفع من مكان القوم (رقم-٥٩٨) والدار قطنی باب نهی رسول الله صلی الله علیه وسلم أن يقوم الإمام فوق شيء والناس خلفه (رقم-٨٨٢)

# [٦]بَابُ دَفْنِ الْمَيِّتِ]

## دَ دفن کولو بیان

**خلاصة الباب:-**

**فيه ثمانية وعشرون حديثاً مشتملة على أربع عشرة مسئلة:**

① فضيلة اللحد: ١، ٨، ٩.
② جعل القطيفة فى قبر النبى ﷺ : ٢.
③ تسنيم القبر وتسويته: ٣، ٤، ١٩.
④ الأمور المنهية على القبور: ٥، ٦، ٧، ١٦، ٢٨.
⑤ دفن الزائد من الواحد في قبر واحد: ١٠.
⑥ عدم نقل الميت من موضع الموت: ١١، ٢٥.
⑦ كيفية إدخال الميت فى القبر: ١٢، ١٣.
⑧ الذكر وقت وضع الميت فى القبر: ١٤.
⑨ فضيلة حثو التراب والرش على القبر: ١٥، ١٦، ٢٦، ٢٧.
⑩ البناء على القبر: ١٨.
⑪ ثواب انتظارمسلمين إلى تدفين الميت: ٢٠.
⑫ تعظيم الميت: ٢١، ٢٢، ٢٨.
⑬ القيام للدعاء بعد تدفين الميت :٢٣.
⑭ قراءة بعض الآيات بعد التدفين: ٢٤.

قال الله تعالى ﴿ ثُمَّ أَمَاتَهُ فَأَقْبَرَهُ ۞ ثُمَّ إِذَا شَاءَ أَنْشَرَهُ ۞ ﴾ [سورة عبس الايه:٢١]

**په اسلام کښې د جنازې مقام:-** اسلام دَحضرت آدم علیہ السلام اولاد او انسان ته دَعزت اواحترام مقام ورکوی نوچه کله دا انسان مړشی اودَ انسان وئیلومستحق هم پاتې نه شی بلکه دَ مرده او مړی په نوم دَده تعارف کیږی. نواسلام دغه وخت کښې هم ده ته دَ عزت مقام ورکوی چه که چرې یوانسان کافرهم وی بیا هم دَهغه وجود دَ مرغودَ شوکولواو درندګانودَ شلولونه بچ کوی چه دې دې په هغه خاوروکښې دفن کولوسره پټ کړې شی دکومې خاورې نه چه دَ ده خمبیر جوړشوې وو او په کومه باندې چه دا انسان په ژوند کښې تلو راتلو. دَدې برعکس هندوانودَ غلط سوچ لاندې دا انسان اور ته حواله کړو حالانکه هم دغه انسان په زرګونوحیلې اوبهانې جوړولوسره خپل ځان په اورکښې دَاچولو اوپه هغې کښې دَ

سوزيدلو نه بچ کولو. اوس چه کله هغه بې وسه شو نودَ تېولونه نيزدې خپلوان راغلو هغه نې په اورکښې واچولو وې سيزلو.

**دهندوانو اعتراض:-** هندوکه په مسلمانانو باندې دا اعتراض اوکړی چه تاسو خلقو په خپلو لاسونو باندې خپل نيزدې خپلون دَ زمکې لاندې کړو او په هغه باندې مو لوئی لوئی کانړی راوړل کيخودل داکوم احترام دې؟

**دااعتراض جواب:-** انسان کله پخپله ژوندې وی نوهم دغه شان دَخاورې لرګو اوکانړونه دَخپل اوسيدودَ پاره مکان جوړه وی او په هغې کښې اوسيږی. قبرهم بالکل يومکان دې په کوم کښې دننه چه دَ کيناستو سملاستو ګنجائش وی خومړی ته اوس دَ تنګ راتګ يا کيناستو پاسيدو ضرورت نشته دې اونه دَهغه په وس کښې دی. لهذا دَهغه دَ ضرورت مطابق دَهغه دامکان بالکل مناسب دې سره دَدې چه دا تنګ دې خوبياهم که دَ انسان ايمان وی اواعمال ئی ښه وی نوهم دغه تنګ مکان به دَ نظردَ حدپورې دَهغه دَپاره وسيع کولې شی. بهرحال اسلام دَ رحمت دين دې اودَ دې ټول احکام دَفطرت مطابق دی.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [١٦٩٢] دلحد جوړولو افضليت

١٦٩٣-(١)[1] ١ «عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ أَنَّ سَعْدَ بْنَ أَبِي وَقَّاصٍ قَالَ فِي مَرَضِهِ الَّذِي هَلَكَ فِيهِ: ٢ اَلْحِدُوا لِي لَحْدًا، ٣ وَانْصِبُوا عَلَيَّ اللَّبِنَ نَصْبًا، ٤ كَمَا صُنِعَ بِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ١ عامر بن سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه روايت کوي چې حضرت سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه په خپله هغه مريضي کښې چې په هغې کښې وفات شو وفرمايل ٢ چې زما د دفن کولو د پاره لحد جوړ کړئ ٣ اوبه ما کچه خښتي اودروئ ٤ څرنګه چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د پاره شوي وو. (مسلم)

**حل اللغات:-** ① لَحْدًا: بغلی قبر، ② انْصِبُوا: أَيْ: أَقِيمُوا: يعنی اودروئ، ③ اللَّبِن: اَلْمَضْرُوبُ مِنَ الطِّيْنِ مُرَبَّعًا لِلْبِنَاءِ: خښتو ته وائی کومې چه آبادئ دپاره د خټونه جوړيږی څلور ګوټه وی.

**تسهيلات: قوله: اَلْحِدُوا لِي لَحْدًا:**

**د قبر جوړولو دوه طريقې:-** دَ قبرجوړولودوه طريقې دی يولحددې چه دَ بغلی قبرپه نوم سره مشهوردې او دويم شاخی او صندوقی قبرپه نوم سره مشهوردې.

① دَ لحد او بغلی قبر طريقه داده چه اول په زمکه کښې دَ يوحدپورې کنده کولې شی اوبيادَ قبلې طرف ته لحد، سرنګ، غار او يوطاخ شان جوړولې شی هم په دغه طاخچه

[1] اخرجه مسلم فی کتاب الجنائز/باب فی اللحد ونصب اللبن علی الميت (رقم) ٩٠ - (٩۶۶) والنسائی کتاب الجنائز/باب اللحد والشق (رقم-٢٠٠٧) وابن ماجة کتاب الجنائز/باب ما جاء فی استحباب اللحد (رقم-١۵۵۶)

كنبې مړې كېخودې شي اومخې ته كانړې كېخودوسره بندولې شي. اوبياچه كومه كنده كنستلې وه هغه په خاوره ډكولې شي. دزمكې نه يولاس برابر اوچت ساتلوسره د اوبښ د قوب په شان جوړولې شي د لحد دپاسه د كانړو تختې كېخودوضرورت نه وي.
(٢) د شق طريقه دا ده چې په زمكه كښې څه حده پورې كنده اوكنستلې شي.اودهغې څلورو طرفونو ته ديوالونه جوړ كړې شي.اوكه ضرورت وي نو په مينځ كښې مړې كېخودې شي اودپاسه پرې غټې غټې تختې كېخودې شي.اود زمكې څخه ئې يو لويشت اوچت كړې شي اود اوبښ د قب پشان جوړولې شي.
**څوره طريقه:** -دا دواړه طريقې په اسلام كښې جائزدي خوكه چرې زمكه مضبوطه وي او په لحد جوړولو كښې تكليف نه وي نود شاخي قبرنه د لحد قبربهتردې. وړاندې حديث نمبر١٧٠١ دې د فضيلت واضح دليل دې.
**د نبي كريم ﷺ د قبر كيفيت:** -دحضوراكرم د قبرباره كښې په صحابه كرامو كښې د رائې اختلاف پيداشوې ووچه لحد جوړكړې شي كه شقي جوړكړې شي. بياپه دې باندې مشوره اوشوه چه ابوطلحه ﷺ خوك چه په لحدجوړولوكښې ماهروو اول راغلونولحدبه جوړولې شي اوكه چرې ابوعبيده بن الجراح ﷺ كوم په شقي قبرجوړولوكښې ماهروو اول راغلو نو شقي قبربه جوړولې شي. ابوطلحه ﷺ اول راغلو نوهغه حضورپاك له لحدتياركړو او رسول الله ﷺ په لحد كښې خښ كړې شو اود لحدخله په كچه خښتوسره بنده كړې شوه. وړاندې په حديث نمبر١٧٠٠ داقصه راروانه ده. حضرت سعدبن ابى وقاص ﷺ هم دغه وصيت كولو چه زما قبردلحدجوړكړئ اوبيا ئې په كچه خښتواودرولوسره بند كړئ.

**[١٦٩٤] په قبركښې د كپړې وغيره څوړولو ممانعت**

١٦٩٤-(¹)[٣] [١] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: [٢] «جُعِلَ فِي قَبْرِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَطِيفَةٌ حَمْرَاءُ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] ابن عباس ﷺ فرمايي [٢] چې د رسول الله ﷺ په قبر كښې يو سور څادر خور كړل شوي وو. (مسلم)
**حل اللغات:** - (١) قَطِيفَةٌ: څادر.
**تسهيلات: قوله : قَطِيفَةٌ حَمْرَاءُ:**
**د قطيفه حمراء قصه:** -دحضورپاك يوخادم وود كوم نوم چه شقران وو. هغه د حضورپاك يوڅادر په پټه دحضورپاك په قبركښې كېخودلې وو دهغه خيال وو چه دادرسول الله ﷺ

---
(¹) اخرجه مسلم فى كتاب الجنائز/باب جعل القطيفة فى القبر(رقم) ٩١ - (٩٦٧) والترمذى كتاب الجنائز عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما جاء فى الثوب الواحد يلقى تحت الميت فى القبر(رقم-١٠٤٨) والنسائى كتاب الجنائز/باب وضع الثوب فى اللحد (رقم-٢٠١٢) واحمد فى المسند ٣٥٥/١

څادر دې چه د حضورپاك نه پس ئې بل څوك استعمال نه کړي. ليکن حضرت علي رضي الله عنه او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما هغه سخت اورټلو چه تا دا حرکت ولې اوکړو. بعضې علماء ليکلي دي چه کيدې شي دا حضورپاك خصوصيت وو ليکن علامه ابن عبدالبر رحمه الله په استيعاب کښې ليکلي دي چه دا څادر په قبرباندې د څاورې اچولونه وړاندې ويستلې شوې وو.

**په قبر کښې لاندې د څه اچولو حکم:** - علماو ليکلي دي چه په قبر کښې د مړي لاندې څادر وغيره څه څيز کيخودل يا خورول مکروه تحريمي دي. ځکه چه په دې کښې د بې ځايه مال ضياع ده او عام خلق به دې نه څه نه څه جوړ کړي.

**[١٦٩٥] قبر د اوښ د قب په شان د جوړولو افضليت**

١٦٩٥ - (١) [٣] [١] وَعَنْ سُفْيَانَ التَّمَّارِ: [٢] أَنَّهُ رَأَى قَبْرَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُسَنَّمًا. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [١] سفيان تمار رحمه الله څخه روايت دې [٢] چې هغه د نبي کريم ﷺ قبر مبارك وليدلو چې د اُوښ د قُب په شان وو. (بخاري)

**حل اللغات:** - ① مُسَنَّمًا: دا د سنام نه دې د قب په معنى کښې دې.

**تسهيلات: قوله: مُسَنَّمًا:** يعنى د حضوراکرم ﷺ قبر د اوښ د قب په شان وو. امام مالك رحمه الله امام احمد رحمه الله او امام ابوحنيفه رحمه الله مسلك داسې دې چه د قبر مسنم کيدل يعنى د اوښ د قب په شان کيدل افضل دي. امام شافعي رحمه الله فرمائي چه د قبر هوارول افضل دي. جمهورو د زير بحث نه علاوه د نورو ډيرو احاديثونه استدلال کړې دې.

**[١٦٩٦] د قبرونو اوچت جوړولو ممانعت**

١٦٩٦ - (٢) [٣] [١] وَعَنْ أَبِي الْهَيَّاجِ الْأَسَدِيِّ قَالَ: [٢] «قَالَ لِي عَلِيٌّ أَلَا أَبْعَثُكَ عَلَى مَا بَعَثَنِي عَلَيْهِ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٣] أَنْ لَا تَدَعَ تِمْثَالًا إِلَّا طَمَسْتَهُ [٤] وَلَا قَبْرًا مُشْرِفًا إِلَّا سَوَّيْتَهُ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] ابو الهياج اسدي (تابعي) رحمه الله وايي [٢] چې حضرت علي رضي الله عنه ماته وفرمايل چې آيا زه تا په هغه کار مامور نه کړم چې په هغې رسول الله ﷺ زه مامور کړي وم [٣] او هغه کار دا دي چې ته کوم تصوير ووينې هغه مه په پرده بلکه هغه وران کړو [٤] او کوم قبر چې بلند ووينې هغه برابر کړه (مسلم)

**حل اللغات:** - ① أَلَا أَبْعَثُكَ: آيا زه تا اونه ليږم يعنى مامور دې نه کړم. ② تِمْثَالًا: أَيْ: صُورَةً: بُت. ③ طَمَسْتَهُ: أَيْ: مَحَوْتَهُ: ورانه وه او خراب کوه يې. ④ مُشْرِفًا: اوچت او لوړ قبر. ⑤ سَوَّيْتَهُ: برابر کوه يې.

---

[١] اخرجه البخاري فى كتاب الجنائز /باب ما جاء فى قبر النبى صلى الله عليه وسلم. وأبى بكر. وعمر رضى الله عنهما(رقم-١٣٩٠)
[٢] اخرجه مسلم فى كتاب الجنائز /باب الأمر بتسوية القبر (رقم) ٩٣ - (٩٦٩) و ابوداود كتاب الجنائز /باب فى تسوية القبر (رقم-٣٢١٨) والترمذى كتاب الجنائز عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما جاء فى تسوية القبور(رقم-١٠٤٩) واحمد فى المسند ٩٦/١

**تسهیلات: قوله**: أَنْ لَاتَدَعَ تِمْثَالًا:

**په تصویرونو کښې استثنائی صورتونه**:- بت او تصویرته تمثال وائی. خپل یا دَ یوژوندی څیزتصویر ساتل حرام دی اودا ورانول واجب دی البته که تصویر دومره نرې وی چه په زمکه باندې کیخودوسره ولاړ سرې ته دَدې دَ اندامونوتمیزممکن نه وی نوهغه تصویردَ وعیدنه مستثنٰی دې. دغه شان چه دَ بدن اهم حصې تصویرکښې شامل نه وی هغه تصویر هم دَوعیدنه خارج دې. دَاهم حصو مطلب دادې چه دَدې نه بغیرانسان ژوندې نه شی پاتې کیدې لکه سر اودَ سینې لاندینئی حصه چه ده.

**قوله**: مُشْرِفًا:

**په قبر اوچتولو کښې مسنون طریقه**:-اشراف دَ او چتوالی او کتلو په معنی کښې دې دلته اوچت او لوړ جوړ شوې قبر مراد دې چه هغه دومره او غورزه وه چه زمکې سره برابرشی او چه صرف دَ قبرستان نښه باقی پاتې شی دَ کوم مقدار چه یوه لیشت دې اوهم دومره اوچتوالې مسنون دې.

یو کتاب دې چه دَهغې نوم ازهار دې دَ فقه معتمد کتاب دې. په هغې کښې لیکلی دی چه دَ یو لیشت په اندازه پورې قبر دَ زمکې نه اوچت ساتل مستحب دی دې نه زیاتی مکروه دې. دا اوچته حصه په اندازه دَ یو لیشت پورې باقی ساتل مستحب دی او دَحضور پاك روضه مبارکه او گنبد دَ دې نه مستثنٰی دی خکه چه هلته څه عمارت روستو نه دې جوړ کړې شوې بلکه دَ اسلام حکم وو چه دَ نبی چرته انتقال اوشی هم هلته خښول ضروری دی. دَ حضور پاك وصال دَ حضرت عائشه صدیقه ﷞ په حجره کښې اوشو اوهم هلته خښ کړې شو اودَمکان دننه راغلو په دې باندې دَ نورو خلقو قیاس کول جائزنه دی.

**[١٦٩٧] دپاخه قبرونو جوړولو ممانعت**

١٦٩٧-(¹)[٥] ١ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: ٢ «نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُجَصَّصَ الْقَبْرُ ٣ وَأَنْ يُبْنَى عَلَيْهِ ٤ وَأَنْ يُقْعَدَ عَلَيْهِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: ١ حضرت جابر ﷛ وایي ٢ چې رسول الله ﷺ منع فرمایلي ده د قبرونو د پخولو څخه ٣ او په هغې د عمارت د جوړولو څخه ٤ او په قبر دپاسه د کیناستلو څخه. (مسلم)

**حل اللغات**:- ① يُجَصَّصَ: چه پوخ جوړ کړې شي.

¹) اخرجه مسلم فی کتاب الجنائز/باب النهی عن تجصیص القبر والبناء علیه (رقم) ٩٤ - (٩٧٠) والترمذی کتاب الجنائز عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ ما جاء فی کراهیة تجصیص القبور. والکتابة علیها (رقم-١٠٥٢) والنسائی کتاب الجنائز/الزیادة علی القبر (رقم-٢٠٢٧) وابن ماجة کتاب الجنائز/باب ما جاء فی النهی عن البناء علی القبور. وتجصیصها. والکتابة علیها (رقم-١٥٦٢) واحمد فی المسند ٢٩٩/٦

**تسهيلات: قوله: أَنْ يُجَصَّصَ الْقَبْرُ:**

**د قبرونو پخولو کراهت:-** فقهاؤ ليکلي دي چه پاخه قبرونه جوړول په هغې ګچه کول يا سيمنټ وغيره استعمالول ټول ناجائزدي او مکروه تحريمي دي. دغه شان په قبرونو ګنبد او قبې وغيره عمارتونه اودرول جائزنه دي بلکه په مسلمانانوباندې دَدې غورزول واجب دي سره دَدې چه دَ قبردپاسه جمات ولې نه وي جوړشوې اودَ حضورپاك قبردَدې نه مستثنٰي دې. دَ حضورپاك خصوصيت دې يعني دَ خصوصيت وجه داده چه شرعي قاعده ده چه دَ نبي کوم ځائې کښې انتقال اوشي هم هغه ځائې کښې به دفن کولې شي. دَ حضور اکرم انتقال دَعائشه بي بي په حجره کښې اوشو لهذا دَحضورپاك قبر هم په مکان کښې راغلو.

**په قبرونو کښې ممنوعه کارونه:-** علامه تورپشتي رحمه الله فرمائي چه په قبرونوباندې دَ عمارت جوړولو هيڅ فائده هم نشته دې. او اهل جاهليت سره مشابهت دې کوم چه حرام دې. جاهليت کښې به خلقودَ لسو ورځوپورې دَ مړي په قبرباندې سورې کولو. په قبرونو باندې دَ عمارت په شان خيمه اودرول هم ناجائزدي. دغه شان په قبرونو باندې دَ کيناستو ټول صورتونه منع دي اونه دَ قبرطرف ته مونځ کول جائزدي. اهل بدعت دَحضورپاك دَ فرمان خلاف دي. هغه چا ښه وئيلي دي:

زندگی اس کی ہے ملت کے لئے پیغام موت　　کر رہا ہو جو بجائے کعبہ قبروں کا طواف

**[۱۶۹۸] قبرونوته د مونځ کولواودې باندې د کيناستلو ممانعت**

١٦٩٨-()[۶][١] وَعَنْ أَبِي مَرْثَدٍ الْغَنَوِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] «لَا تَجْلِسُوا عَلَى الْقُبُورِ، [٣] وَلَا تُصَلُّوا إِلَيْهَا»، رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] ابو مرثد غنوي رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل [٢] مه په قبرونو دپاسه کينئ [٣] او مه د قبرونو طرف ته مونځ کوئ. (مسلم)

**تسهيلات: قوله: لَا تَجْلِسُوا عَلَى الْقُبُورِ:**

**په قبرونو د کيناستو حرمت:-** محقق ابن همام رحمه الله فرمائي چه په قبرونوباندې کيناستل او په دې حتل داټول منع دي اومکروه تحريمي دي. دَبعضې خلقوداطريقه ده چه هغوی دَخپلو خپلوانوقبرونوته دَ رسيدودَپاره په قبرونو باندې بې دَځه تکلف نه خيژي داډيرزيات غلط کاردې. البته دَ ضرورت صورتونه دَدې نه مستثنٰي دي مثلاً دَ قبرکنستل يا دَ مړي دفن

[١] اخرجه مسلم في كتاب الجنائز/باب النهي عن الجلوس على القبر والصلاة عليه (رقم) ٩٧ - (٩٧٢) وابوداود كتاب الجنائز/باب في كراهية القعود على القبر (رقم-٣٢٢٩) والترمذي كتاب الجنائز عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ما جاء في كراهية المشي على القبور. والجلوس عليها. والصلاة إليها (رقم-١٠٥٠) والنسائي كتاب القبلة/باب النهي عن الصلاة إلى القبر (رقم-٧٦٠)

کولو مجبوري وي نو هغه جدا خبره ده. قبرد تکيه په توګه استعمالول منع دي. په قبرستان کښې استنجا کول منع دي. قبرستان ته په تلوسره په ولاړه دعا غوښتل مسنون طريقه ده. ماثور دعا دا هم ده. السلام عليکم دار قوم مؤمنين وانا ان شاء الله بکم لاحقون. دا لاندينۍ دعا او سلام هم ثابت دي.

(السلام عليکم يا اهل القبور يغفر الله لنا ولکم انتم سلفنا ونحن بالاثر وانا ان شاء الله بکم للاحقون)

**قوله :وَلَا تُصَلُّوا إِلَيْهَا:**

**قبرونو ته د مونځ کولو حکم:-** علماء ليکلي دي چه که يو سړي د قبر يا صاحب قبر د تعظيم په خاطر د قبر طرف ته مونځ کوی نو دا صريح کفر دي. او که صاحب قبر او د قبر عظمت په زړه کښې نه وی نو بيا هم د قبرونو طرف ته مونځ کول مکروه تحريمي دي. دغه يو يو قبر ښکلول او د دې نه چاپيره طواف کول منع دي.

**[١٦٩٩] په قبر باندې د کيناستو سخته سزا**

١٦٩٩-(١)[٧] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«لَأَنْ يَجْلِسَ أَحَدُكُمْ عَلَى جَمْرَةٍ ③ فَتُحْرِقَ ثِيَابَهُ ④ فَتَخْلُصَ إِلَى جِلْدِهِ ⑤ خَيْرٌ لَهُ مِنْ أَنْ يَجْلِسَ عَلَى قَبْرٍ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① ابوهريره رضي الله عنه روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② که په تاسو کښې څوک په سکروټه (انګاره) باندې کيني ③ او هغه انګار د هغه کپړه وسوزوی ④ او د هغه بدن ته ورسي ⑤ نو دا د دې څخه بهتره ده چې هغه د قبر د پاسه کيني. (مسلم)

**حل اللغات:-** ① جَمْرَةٍ: سکروټه (د اور)، ② فَتُحْرِقَ: نو او سوزوی، ③ فَتَخْلُصَ: أي: تَصِلُ: تردې چه او رسيږي.

**تسهيلات: قوله :عَلَى جَمْرَةٍ فَتُحْرِقَ ثِيَابَهُ:**

**په قبر ناستې په سکروټکې سوزيدو سره تشبيه:-** په قبر د کښيناستو نقصان او ضرر په سکروټو باندې د ناستې په نسبت زيات دي. ځکه چې سکروټو سره به صرف جامې او بدن او سوزي او په قبر باندې ناستې سره ايمان او عمل ته نقصان رسي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[١٧٠٠] د نبی عليه السلام د قبر کيفيت**

١٧٠٠-(١)[٨] ① عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ قَالَ: ② «كَانَ بِالْمَدِينَةِ رَجُلَانِ: أَحَدُهُمَا يَلْحَدُ، وَالْآخَرُ لَا يَلْحَدُ، ③ فَقَالُوا: أَيُّهُمَا جَاءَ أَوَّلًا عَمِلَ عَمَلَهُ، ④ فَجَاءَ الَّذِي يَلْحَدُ، فَلَحَدَ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ». رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ.

---

[1] اخرجه مسلم فی کتاب الجنائز/باب النهی عن الجلوس علی القبر والصلاة عليه (رقم) ٩٦ - (٩٧١) وابوداود کتاب الجنائز/باب فی کراهية القعود علی القبر (رقم-٣٢٢٨) والنسائی کتاب الجنائز/التشديد فی الجلوس علی القبور (رقم-٢٠٤٤) وابن ماجة کتاب الجنائز/باب ما جاء فی النهی عن المشی علی القبور، والجلوس عليها (رقم-١٥٦٦)

[2] اخرجه البغوی فی شرح السنة ٥/٣٨٨ (رقم-١٥١٠)

**ترجمه:**[۱] عروه بن زبير رضي الله عنه فرمايي [۲] چې په مدينه کښې دوو سړي وو (چې قبرونه به يې وښکل) په هغوئ کښې يو سړي (ابوطلحه رضي الله عنه انصاري) خو به بغلي قبر وښکلو او دويم سړي (ابوعبيده بن الجراح رضي الله عنه) به صندوقي قبر وښکلو[۳] حضور ﷺ چې وفات شو نو صحابه ؤ په متفقه طور سره دا اوويل چې په دي دواړو کښې چې کوم سړي مخکي راشي نو هغه دي قبر وکاږي (يعني که ابو طلحه رضي الله عنه مخکي راغې نو بغلي قبر دي وکاږي او که عبيده رضي الله عنه مخکي راغې نو صندوقي قبر دي وکاږي)[۴] آخر بغلي قبر وښکونکې مخکي راغې او د حضور ﷺ د پاره يې بغلي يعنى لحد والاقبر وښکلو. (شرح السنه)

**حل اللغات:-** ① يَلْحَدُ: لحد يعنى بغلى قبربه ئې جوړولو.

**د راوي مختصر تعارف:-** نوم عروه ابوعبدالله کنيت دَپلار نوم حضرت زبير رضي الله عنه دَمور بى بى نوم حضرت اسماء بنت ابوبکر رضي الله عنها.

**ولادت:-** دَحضرت عمر رضي الله عنه يا حضرت عثمان رضي الله عنه دَ خلافت په شروع کښې پيداشو. (۳) دَخپل رورحضرت عبدالله بن زبيردَشهيد کيدونه پس هم دَ هغه په وينا باندې عبدالملک دَحضرت عبدالله بن زبير دَخښولوحکم ورکړو دې دَعلم اوعلم مجمع البحرين وو ځکه چه پلار حضرت زبير بن العوام رضي الله عنه دَ رسول الله ﷺ حوارى وواودَ هغه نيکه حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه اودَهغه ترور حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها ام المؤمنين وه اودَهغه مور بى بى حضرت اسماء رضي الله عنها ذات النطاقين وه اودَ هغه رورحضرت عبدالله بن زبير رضي الله عنه يو صاحب علم صحابى وو. په هغه کښې ډير خصوصيات وو مثلاً صبر اواستقامت عبادت او رياضت صبراوشکر دَ دنيانه بې رغبتى اوسخاوت وغيره کښې ئې خپل يومثال وو. د حديثو سره ئې يوخاص شوق وو حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها چه اعلم الناس وه (۴) دَهغې پوره علمى ذخيره هغوى په خپله سينه کښې محفوظ کړې وه. هم پخپله فرمائى چه دَترور بى بى دَ وفات نه پس څلور پنځه کاله وړاندې ما دَهغې ټول احاديث يادکړى ووکه دَهغې وفات هم په هغه وخت کښې شوې وې نوماته به دَهغې دَيوحديث دَ باقى پاتې افسوس نه وو(۵) ۹۴ھ کښې دَمدينې په مضافاتو کښې وفات شو. (۶)

دَ نوروحالاتودَپاره به دَ دې کتابونومطالعه فائده منده وى.① تهذيب التهذيب ۱۸۲/۷ ②ابن اثير۲۹۱/۴ ③ طبقات ابن سعد۱۳۴ ④ تهذيب الاسماء ۳۲۲/۱ ⑤ تذکرة الحفاظ۵۳/۱ ⑥ابن خلکان۳۱۶/۱.

**تسهيلات: قوله: أَحَدُهُمَا يَلْحَدُ، وَالآخَرُ لَا يَلْحَدُ:**

**د رجلان مصداق:-** ددې نه مراد حضرت طلحه انصارى رضي الله عنه ، حضرت ابوعبيده بن الجراح رضي الله عنه دى.

**دشق اولحد په اعتبار سره د قبر دوه قسمونه :-**

① حضرت طلحه ﷺ د نبی کریم ﷺ د وفات په وخت کښې قبر جوړولو دپاره زر راغلو نو مخوئ لحد جوړ کړو.

② حضرت ابوعبیده ﷺ به شق والا قبر جوړولو. ددې روایت نه هم معلومیږی چې لحد افضل دې. ځکه چې د انبیاء کرامو قبرونه لحد وی او شق هم جائز دې ، که چرې دا جائز نه وې نو هیڅ یو صحابی به دا نه خوښولو.

**دلحد افضلیت :-** ددې روایت نه هم معلومیږی چې لحد افضل دې. ځکه چې د انبیاء کرامو قبرونه لحد وی او شق هم جائز دې ، که چرې دا جائز نه وې نو هیڅ یو صحابی به دا نه خوښولو.

**[١٧٠١] دٔلحدفضیلت**

١٧٠١-(١)[٩] ١ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٢ «اللَّحْدُ لَنَا، وَالشَّقُّ لِغَيْرِنَا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُودَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَةَ.

**ترجمه:** ١ ابن عباس ﷺ روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ٢ لحد (یعني بغلي قبر) زمونږ دپاره او شق (یعني صندوقي قبر) د نورو د پاره دي. (ترمذي، ابوداؤد ، نسایي، ابن ماجه)

**حل اللغات:-** ① اللَّحْدُ: بغلی قبر، ② الشَّقُّ: شاخی او صندوقی قبر ته شق وائی.

**تسهیلات: قوله : اللَّحْدُ لَنَا، وَالشَّقُّ لِغَيْرِنَا:**

**دحدیث په مفهوم کښې درې اقوال :-**

① لحد زمونږ دَپاره دې یعنی دَ انبیاء کرامو دَپاره لحد دې او شق دَ غیر انبیاء دَ پاره دې.

② لحد دَ امت محمدیه دَپاره دې اوشق دَ پخوانو امتونو دَپاره وو یعنی دَهغوی شق ډیر خوښ وو او زمونږ لحد ډیر خوښ دې.

③ لحد زمونږ دَپاره دې یعنی دَ اهل مدینه دَپاره دې ځکه چه دَهغه ځائی زمکه دَ لحد دَپاره مناسب ده او شق دَمدینې نه علاوه مسلمانانو دَپاره دې ځکه چه دَهغه ځائی زمکه دَ لحد دَپاره سازګار نه ده بلکه دَ شق دَ پاره مناسب ده. بهرحال لحد افضل دې دکوم نوم چه بغلی قبر هم دې اودَې په مقابله کښې شق دې. کوم ته چه صندوقی قبر هم وائی.

١٧٠٢-(٢)[٠] ١ وَرَوَاهُ أَحْمَدُ عَنْ جَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ.

**ترجمه:** ١ او امام احمد رحمه الله دا روایت د جریر بن عبدالله څخه نقل کړي دي.

---

[1] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الجنائز /باب فی اللحد (رقم-٣٢٠٨) والترمذی فی السنن کتاب الجنائز عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ ما جاء فی قول النبی صلی الله علیه وسلم اللحد لنا، والشق لغیرنا (رقم-١٠٤٥) والنسائی کتاب الجنائز /باب اللحد والشق (رقم-٢٠٠٩) وابن ماجه کتاب الجنائز /باب ما جاء فی استحباب اللحد (رقم-١٥٥٤)

[2] اخرجه ابن ماجة فی السنن کتاب الجنائز /باب ما جاء فی استحباب اللحد (رقم-١٥٥٥) واحمد فی المسند ٣٥٧/٤

## [١٧٠٢] دَ قبر دَ ژوروالی مقدار

١٧٠٣ –()[١٠] ① وَعَنْ هِشَامِ بْنِ عَامِرٍ: «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَوْمَ أُحُدٍ: ② احْفِرُوا وَأَوْسِعُوا ③ وَأَعْمِقُوا، وَأَحْسِنُوا ④ وَادْفِنُوا الِاثْنَيْنِ وَالثَّلَاثَةَ فِي قَبْرٍ وَاحِدٍ، ⑤ وَقَدِّمُوا أَكْثَرَهُمْ قُرْآنًا»، رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، ⑥ وَرَوَى ابْنُ مَاجَهْ إِلَى قَوْلِهِ: وَأَحْسِنُوا.

**ترجمه:** ① هشام ابن عامر رضي الله عنه روایت کوي چې رسول الله ﷺ د غزوه احد په ورځ وفرمایل ② چې قبرونه اوکنئ او قبرونه فراخ جوړکړئ ③ او ژور جوړکړئ او هغه ښه جوړکړئ (یعني قبرونه هوار جوړوي او د دننه څخه یې د خاورې خځلو وغیره څخه صفا کوي) ④ او په یو یو قبر کښې دوه دوه او درې درې دفن کړئ ⑤ او په هغه کښې مخکې [یعنی د قبلي طرفته] هغه ږدې چاته چې زیات قرآن یاد وو. (احمد ترمذي ابوداؤد نسایي) ⑥ او ابن ماجه رحمه الله دا روایت تر لفظ احسنو پورې نقل کړي دي.

**حل اللغات:** - ① احْفِرُوا: قبرونه اوکنئ، ② أَعْمِقُوا: قبرونه ژور جوړکړئ.

**تسهیلات: قوله: قَالَ يَوْمَ أُحُدٍ:**

**په غزوه احد کښې د شهیدانو د تدفین طریقه:** - دې نه مراد جنګ احد دې. په دې غزوه کښې ٧٠ صحابه کرام رضي الله عنهم شهیدان شوې وو او اکثر صحابه زخمي شوي وو. سخته ګرمي وه او په سخته زمکه کښې قبرونه جوړول وو. په دې وجه په یولحد کښې به دوه دوه درې درې صحابه کرام رضي الله عنهم دفن کولې شو اودَ اعزاز په توګه حضورپاك دَ قرآن پاك حافظ اوعالم دَ نورو نه وړاندې دَ قبلې طرف ته دکیخودو حکم ورکړو. دَدې نه دَحضورپاك مقصود دَ قرآن تعظیم او اعزاز وو دې دَپاره چه خلق زیات نه زیات قرآن یاد کړي.

**قوله: وَأَعْمِقُوا:**

**د قبر د ژور کولو مقدار:** - یعنی قبرښه ژورولوسره اوکنئ. دې نه معلومه شوه چه قبر ښه ژور کنستل مسنون دی. دغه شان مړې دَ ځناورو وغیره دَ آفات نه محفوظ پاتې کیږي. دَ شیخ مظهر رحمه الله وینا ده چه قبر دومره ژورولوسره کنستل پکاردی که یوسړې په هغې کښې ورکوز شی او په قبرکښې اودریږي اودواړه لاسونه پورته اوچت کړي نوچه دَهغه دَ لاس ګوتې دَ قبر غاړې پورې اورسي.

[1]) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الجنائز/باب فی تعمیق القبر(رقم-٣٢١٥) والترمذی کتاب الجهاد عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی دفن الشهداء (رقم-١٧١٣)

**[١٧٠٤] دَ مرده دَ يوځالي ځخه بل ځالي ته د بدلولو حکم**

١٧٠٣—(١)[١١] ١ «وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: لَمَّا كَانَ يَوْمُ أُحُدٍ ٢ جَاءَتْ عَمَّتِي بِأَبِي لِتَدْفِنَهُ فِي مَقَابِرِنَا، ٣ فَنَادَى مُنَادِي رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۴ رُدُّوا الْقَتْلَى إِلَى مَضَاجِعِهِمْ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ، وَلَفْظُهُ لِلتِّرْمِذِيِّ.

**ترجمه:** ١ حضرت جابر رضي الله عنه فرمايي چې کوم وخت چې د اُحد غزا وشوه ٢ نو زما ترور زما د پلار مړي اخستو سره راغله چې هغه په خپل قبرستان کښې دفن کړي ٣ ليکن د رسول الله ﷺ د طرف ځخه يو اعلانچي اعلان اوکړو ۴ چې شهيدان دي د هغوئ د شهيد کيدو ځاي ته ورسول شي. (احمد، ترمذي، ابوداؤد، نسايي، دارمي، الفاظ د ترمذي دي)

**حل اللغات:-** ① عَمَّتِي: ترور (د پلار خور). ② الْقَتْلَى: د قتيل جمع ده، مراد ترينه مقتول دي، دلته شهيدان مراد دی. ③ مَضَاجِعِهِمْ: أَيْ: مَقَاتِلِهِمْ: يعنی دشهادت ځايونه.

**تسهيلات: قوله: رُدُّوا الْقَتْلَى:**

**د شهيدانو په خپل مقتل کښې د دفن کولو حکم:-** يعنی حضورپاك حکم ورکړو چه دَاحد شهيدان هغه ځائی ته واپس راوړئی چرته چه هغوی شهيدان شوی وو. په جنګ احد کښې ۷۰ صحابه رضي الله عنهم شهيدان شوی وو. ګډوډ حالت وو اول خودا عالم وو چه دا مشکل کيدل. چه څوك سرې خپل خپلوان پيژندلي شو ځکه چه کافرانودَ هغوی شکلونه وران کړی وو. اوس چه چا هم خپل رشته دار پيژندلو دَهغوی دَ اوچتولو اودَ مدينې منورې قبرستان ته دَ رسولو کوشش ئی شروع کړو. چنانچه دَ څه شهيدانو جنازې چه کله اوچتې شوې اوحضورپاك ته معلومه شوه نو حضورپاك دَ دغه شهيدانودَ اوړلونه منع اوفرمائيله او دَ واپس کولوحکم ئی اوکړو.

**د يوځائي ځخه بل ځائي د مړی منتقل کولو په حکم کښې مذاهب:-**

اوس دَدې ځائی نه دا مسئله راوځی چه مړې دَ يوځائی نه بل ځائی ته منتقل کول جائز دی که نه؟ ① بعضې علماء فرمائی لکه چه څنګه په دې حديث کښې مړې دَ يوځائی او يوښار نه بل ښارطرف ته منتقل کول رسول الله ﷺ منع کړل دَدې ممانعت په رڼا کښې منتقل کول منع دی څوك منتقل کول نه دی پکار.

**د عدم منتقل کولو دليل:-** مخکښې دَ حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها په حديث نمبر١٧١٨ کښې هم راغلی دی چه عبدالرحمن بن ابی بکر رضي الله عنه خلقو دَ مکې دَ مضافات نه مکې ته منتقل کړې

[1]) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الجنائز/باب فی المیت یحمل من أرض إلی أرض وکراهة ذلک (رقم-٣١۶٥) والترمذی کتاب الجهاد عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی دفن القتیل فی مقتله (رقم-١٧١٧) والنسائی کتاب الجنائز/أین یدفن الشهید (رقم-٢٠٠٤) وابن ماجة کتاب الجنائز/باب ما جاء فی الصلاة علی الشهداء ودفنهم (رقم-١٥١۶) واحمد فی المسند ٢٩٧/٣

وو نوحضرت عائشه رضي الله عنها اوفرمائيل که چرې زه موجود وې نو نه به مې منتقل کولو.
کتاب ازهار کوم چه دَتجهيز اوتکفين اودَمړو دَ قبرونو متعلق يو مستند کتاب دې په هغې کښې ليکلی دی چه مړې دَ يوځائی نه بل ځائی ته نه منتقل کولوباندې زير بحث حديث مضبوط دليل دې چه حضورپاك دَمنتقل کولونه منع فرمائيلې ده.

**دعذر په وخت کښې د مړی منتقل کولو جواز:** - علامه يحيى رحمه الله فرمائی که چرې واقعی څه شرعی عذر اومعقول مجبوری وی نومړې دَ يوځائی نه بل ځائی ته منتقل کولې شی دې نه بغيرمنتقل کول جائز نه دی.

**د تدفين نه پس د مړی منتقل کولو حکم:** - محقق ابن همام رحمه الله فرمائی که په دوه ميله فاصله باندې مړې دې نو په دومره فاصله باندې منتقل کول جائز دی. معلومه شوه چه دَ زياتې فاصلې پورې منتقل کول منع دی. هم په دې سلسله کښې دامسئله هم ده چه مړې دَ دفن کولونه پس راويستل يا قبر کولاوول جائز نه دی. تردې که چرته څه سخته شرعی مجبوری وی نوهغه جدا خبره ده.

صاحب هدايه دَ هدايه نه علاوه په يوکتاب کښې ليکلی دی که دَ يوسړی انتقال په يوښاريه کښې اوشی نوهغه دَ دغه ښار نه بل ښارته منتقل کول مکروه دی ځکه چه دا يوبې فائدې محنت اومشقت دې. بلکه علماؤ ليکلی دی که دَغسل او جنازې نه بغيريو مسلمان دفن کړې شو نوبيا هم هغه دَ قبر نه راويستل جائز نه دی.

**[١٧٠۵] دمړی قبرته دکوزولو طريقه**

١٧٠۵ - ()[١٣] ١ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ ٢ «سُلَّ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مِنْ قِبَلِ رَأْسِهِ». رَوَاهُ الشَّافِعِيُّ.

**ترجمه:** ١ ابن عباس رضي الله عنهما فرمايي ٢ چې رسول الله ﷺ [قبر ته د خکته کولو په وخت] د سر مبارک د طرف څخه خکته کړل شو. (شافعي)

**حل اللغات:** - ① سُلَّ: دمجهول صيغه ده، په مزه مزه راښکلو ته وائی.

**تسهيلات:**

**قوله: سُلَّ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مِنْ قِبَلِ رَأْسِهِ:**

**قبر د مړی د کوزولو کښې دوه طريقې:** - مړې قبرته دکوزولودوه طريقې دی. ① مړی دَ قبرکَس طرف ته کټ کښې کيخودې شی او بياسر اوړلوسره دَ قبردَ خلې پورې راوړلې شی اوبياقبرته کوزکړې شی دې طريقې ته سل وائی. "السلال" دَ راښکلو په معنی کښې دې.
② مړې دَ قبر په هغه غاړه باندې کيخودې شی کوم چه دَ قبلې طرف ته دې اوبيا دَ قبلې

[١]) اخرجه البيهقی فی السنن والشافعی فی مسنده ص: ٣۶٠

دَطرف نه دې قبر ته کوز کړې شي

**قبر ته د مړی کوزولو په افضله طریقه کښې مذاهب:-**

دواړه طریقې جائزدی. البته په دې کښې لړشان اختلاف دې چه غوره طریقه کومه یوه ده؟

① شوافع حضراتوسل غوره ګرځولې دې

② احناف دَ قبلې دَطرف نه مړې قبرته کوزول افضل ګرځولی دی.

**د اول فریق دلیل:-** زیربحث حدیث د دوی مستدل دې چه حضورپاك دَ سل په ذریعه قبرکښې کوزکړې شوې وو.

**د اول فریق د دلیل جوابونه:-** ① دَ حضوراکرم ﷺ کټ دیوال سره لګیدلې وو. کله چه دَ حضورپاك انتقال اوشو نودَ حضورپاك دَپاره هم هغه خائې کښې قبراوکنستلې شو لهذا هلته دَ قبلې طرف نه دفن کول ممکن نه وو نوهغه دَ یوعذر اومجبورئې صورت وو.

② هغه دَ صحابه کرامو ﷺ یوعمل وو اواحنافوچه دَ کوم روایت نه استدلال کړې دې هغه دَ حضورپاك خپل عمل اوخپله طریقه ده.

③ دَحضوراکرم ﷺ دفن کول او قبرته کوزولوسره متعلق احادیثوکښې اختلاف دې. دَابوداؤد یوروایت کښې په واضحه توګه موجود دی چه حضوراکرم ﷺ دَ سل په ذریعه سره نه بلکه دَ قبله طرف نه قبرکښې کوزکړې وو. ابن ماجه هم دغه شان نقل کړی دی.

**د دویم فریق دلیل:-** دَ حضرت ابن عباس ﷺروایت د دوی مستدل دې په کوم کښې چه په واضحه توګه ذکر دی چه حضورپاك یوصحابی ﷺ دَ قبلې دَ طرف نه دفن کړې وو دَ سل طریقه ئې نه ده خپله کړې.

**داختلاف نوعیت:-** بهرحال که سل وی یادَ قبلې طرف وی دواړه طریقې جائزدی. اختلاف په اولی اوغیراولی کښې دې په جواز اوعدم جوازکښې نه دې. په دې باب کښې وړاندې حدیث نمبر۱۷۰۱ کښې راځې کوم چه دَامام شافعی مضبوط دلیل دې په کوم کښې چه حضورپاك دَ یوصحابی په تدفین کښې دَ سل عمل اختیارکړې دې.

**[۱۷۰٦] قبرکښې دَقبلې دَطرف څخه دَمړی کوزول**

۱۷۰٦ –()[۱۳] ① وَعَنْهُ: «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ قَبْرًا لَيْلًا ② فَأُسْرِجَ لَهُ بِسِرَاجٍ فَأَخَذَهُ مِنْ قِبَلِ الْقِبْلَةِ ③ وَقَالَ: رَحِمَكَ اللَّهُ إِنْ كُنْتَ لَأَوَّاهًا تَلَّاءً لِلْقُرْآنِ». ④ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ: إِسْنَادُهُ ضَعِيفٌ.

**ترجمه:** ① ابن عباس ﷺ فرمایي چې (یو څل) یوه شپه رسول الله ﷺ [د یو مړي په قبر کښ د اینښودلو دپاره] په قبر کښې ځکته شو ② د حضور ﷺ د پاره چراغ (ډیوه) بل کړل

[1] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الجنائز عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ ما جاء فی الدفن باللیل (رقم-۱۰۵۷)

شوه حضور ﷺ مړي د قبلې طرف څخه ونيولو (او هغه يي په قبر كښې خكته كړو) [٣] او دا يي وفرمايل چې الله تعالى ﷻ دي په تا رحم وكړي، ته د الله ﷻ د خوف څخه ډير ژړيدونكي او د قرآن كريم ډير زيات ويونكي وي (او د دې څيزونو په سبب ته د رحمت او مغفرت مستحق يې) [٤] دا حديث ترمذي نقل كړي دي او په شرح السنه كښې دي چې د دې روايت اسناد ضعيف دي.

**حل اللغات:-** ① فَأُسْرِجَ: ډيوه بله كړې شوه (يا حضور ﷺ دپاره يا مړي دپاره) ② لَأَوَّاهًا: ډيره زياته عاجزى كول، ژړل او دعا كولو ته وائى. ③ تَلَّاءً: د مبالغې صيغه ده، أي: كَثِيرَ التِّلَاوَةِ: ډير زيات قرآن لوستونكې.

**تسهيلات: قوله: فَأَخَذَهُ مِنْ قِبَلِ الْقِبْلَةِ:**

**دقبلې دطرفه دمړده د داخلولو فضيلت:-** دې نه دَ ائمه احناف مسلك ثابتيږى چه دَتدفين په عمل كښې دَ سل په ځائى دَ قبلې دَ طرف نه داخلول زيات افضل دى. اګرچه دواړه طريقې جائز دى.

**د سلول د مستدلاتو دوه جوابونه:-** ① احناف وائى چه كوم ځائى دَ سلول يعنى د خپو د طرفه مړې قبرته داخلول ، عمل په احاديثوكښې ذكر دې هغه خويا دَ مكان دَ تنګوالى دَ وجې نه شوې دې لكه پخپله دَ حضورپاك تدفين كښې عارضه مخې ته شوې وه
② دَ بيان دَ جواز دَپاره شوې دې چه دَ قبلې طرف نه سره دَدې چه افضل دې ليكن سل هم جائز دې.

**قوله: إِنْ كُنْتَ لَأَوَّاهًا تَلَّاءً لِلْقُرْآنِ:**

**د مذكوره صحابى دوه خصوصيات:-** حضورپاك ﷺ دَدغه صحابى دَ دوو خصوصى خويبانو ذكرفرمانيلې دې:

① يودا چه هغه سړې دَ الله تعالى دَ ويرې نه ډيرزيات ژړاكونكې وو.

② دويم دا چه دې سړى به دَ قرآن كريم تلاوت زيات كولو. په دې حديث كښې په واضحه توګه باندې ذكر دى.

**[١٧٠٧] د مړى سپارلو دعا**

١٧٠٧-()[١٣] [١] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ: «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا أَدْخَلَ الْمَيِّتَ الْقَبْرَ قَالَ: [٢] بِسْمِ اللّٰهِ، وَبِاللّٰهِ، وَعَلَى مِلَّةِ رَسُولِ اللّٰهِ [٣] وَفِي رِوَايَةٍ: وَعَلَى سُنَّةِ رَسُولِ اللّٰهِ» [٤] رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَرَوَى أَبُودَاوُدَ الثَّانِيَةَ.

[1]) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الجنائز /باب فى الدعاء للميت إذا وضع فى قبره (رقم-٣٢١٣) والترمذى كتاب الجنائز عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما يقول إذا أدخل الميت القبر(رقم-١٠٤٦) وابن ما جة كتاب الجنائز /باب ما جاء فى إدخال الميت القبر(رقم-١٥٥٠) واحمد فى المسند ٢٧/٢

**ترجمه:** [١] ابن عمر رضي الله عنهما فرمايي چې نبي كريم ﷺ چې به مړي په قبر كښې خكته كولو نو دا به يې فرمايل [٢] بِسْمِ اللهِ وَبِاللهِ وَعَلَى مِلَّةِ رَسُوْلِ اللهِ دا مړي مونږ د الله ﷻ په نوم سره، د الله ﷻ د حكم مطابق او د رسول الله ﷺ په شريعت (په قبر كښې خكته كوو) [٣] او په يو روايت كښې د وَعَلَى مِلَّةِ رَسُوْلِ اللهِ په ځاى وَعَلَى سُنَّةِ رَسُوْلِ اللهِ دى (يعني دلته خو د رسول الله ﷺ په شريعت منقول دي او په يو دويم روايت كښې د دې په ځاي د رسول الله ﷺ په سنت نقل شوي دي) [٤] احمد، ترمذي، ابن ماجه، او ابوداؤد په دويم روايت كښې (چې په هغه كښې د ملة په ځاي سُنَّةِ دي) نقل كړې دي.

**تسهيلات: قوله :** بِسْمِ اللهِ وَبِاللهِ:

**دمړي قبر ته د كوزولو مسنون دعا:** - ما قبل احاديثو كښې دمړي قبر ته د كوزولو ذكر وو. په دې حديث پاك كښې دمړي قبر ته د كوزولو دعا ذكر ده.

**[١٧٠٨] په قبربا ندې خاوره اچول او اوبه شيندل**

١٧٠٨ - ( ) [١٥] [١] وَعَنْ جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِيهِ مُرْسَلًا": [٢] «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَثَى عَلَى الْمَيِّتِ ثَلَاثَ حَثَيَاتٍ بِيَدَيْهِ جَمِيعًا، [٣] وَأَنَّهُ رَشَّ عَلَى قَبْرِ ابْنِهِ إِبْرَاهِيمَ، [٤] وَوَضَعَ عَلَيْهِ حَصْبَاءَ» "[٥] رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ، وَرَوَى الشَّافِعِيُّ مِنْ قَوْلِهِ: رَشَّ.

**ترجمه:** [١] او حضرت امام جعفر صادق بن محمد رحمه الله د خپل پلار (حضرت امام باقر رحمه الله) څخه بطريق ارسال نقل كوي [٢] چې رسول الله ﷺ په خپل دواړو لاسونو سره ذري لپي د كولو سره خاوره په مړي واچوله [٣] او حضور ﷺ د خپل ځوى ابراهيم په قبر اوبه وشيندلې [٤] (او د علامت د پاره يې) په قبر سنګريزې (كاڼې) كيښودلې، [٥] شرح السنه، او امام شافعي رحمه الله دا حديث د رش څخه تر آخره پورې نقل كړې دي.

**حل اللغات:** - ① حَثَى : د رمى په وزن دې، أَيْ: قَبَضَ التُّرَابَ وَرَمَاهُ: موټې ني د خاورو نه ډك كړو او په قبر كښې واچولې. ② رَشَّ: اوبه ني اوشيندلې، ③ حَصْبَاءَ: اى الْحَصَى الصِّغَارُ: واړه كاڼې،

**تسهيلات: قوله :** ثَلَاثَ حَثَيَاتٍ:

**په قبر باندې څو موټي خاورې اچولو حكم:** - موټې د كولوسره خاوره اچولو د پاره د حثيات لفظ استعمال كړې شوې دې. حثيات لپه د كولوسره خاورې اچولوته وائى. په مسلمانانو باندې لازم دى چه د تدفين عمل مكمل كړى او د تكميل دا حصه ده چه په قبر باندې خاوره واچولې شى. اګرچه كاريګر او مزدور كار په بيلچو وغيره باندې خاوره اچوى ليكن په عامو مسلمانانو باندې د مړى د عزت په توګه دا حق دې چه د هغه په قبر باندې يو يو موټې د ك كړى او خاوره پرې واچوى. د مسند احمد په يو كمزورى او ضعيف روايت كښې راغلى دى

---

[١] اخرجه البغوى فى شرح السنة ٤٠١/٥ حديث رقم ١٥١٥

چه حضورپاك بـه دَخاورې اچولـو پـه وخت داسې عمـل كولـو چـه كلـه بـه ئـې رومبې موټې دكولوسره خاوره اچوله نو ﴿ مِنْهَا خَلَقْنَاكُمْ ﴾ [سورة طه الايه:٥٥] بـه ئـې لوستلو اوچه كلـه بـه ئـې دويـم موټې دكولوسـره خـاوره اچولـه نـو ﴿ وَفِيهَا نُعِيدُكُمْ ﴾ [سورة طـه الايـه:٥٥] بـه ئـې فرمائيل او په دريم ځل ﴿ وَمِنْهَا نُخْرِجُكُمْ تَارَةً أُخْرَى ﴾ [سورة طـه الايـه: ٥٥] فرمائيـل. كلـه چـه خاوره مكمل شي اوقبردَ اوښ دَكُب په شان جوړشي نو بيـا مسنون طريقـه داده چـه پـه قبر باندې اوبـه چنړكـاؤكړې شي دې دپـاره چـه دوړې وغيـره كينـي اوخـاوره كلكـه شي. خاوره اچول هم مسنون دي او اوبه چنړكاوول هم مسنون دي.

**قوله : عَلَى قَبْرِ ابْنِهِ إِبْرَاهِيمَ:**

**د ماريه قبطيه تعارف:-** دَ مصرمقوقس بادشاه كوم وخت دَ حضورپاك خط اولوستلو نودېر خوشـحاله شـو اودَ رسـول الله ﷺ پـه خـدمت كـښې ئـې يومـصرې اس دَ تحفـې پـه توګـه راؤليږلو او يوه وينځه ئې هم راروانـه كړه دَ كومې نـوم چـه ماريـه قبطيـه رضي الله عنها وو. دا دَ بريره خوروه. دَ ماريه قبطيه دَ خيټې نه حضرت ابراهيم رضي الله عنه پيداشو او ١۶يا ١٧ مياشتې ژوندې وو بيـا هغـه وفـات شـو نوحـضورپاك دَهغـه پـه وفـات بانـدې اوژړل. پخپلـه ئـې هـم اوژړل اونورئې هم اوژړول اودَهغه په قبرباندې ئې سره كانړې كيخـودل دامـسنون عمـل اوس هـم ژوندې دې.

**[١٧٠٩] په قبرونو د ختلو اوورباندې د ليكلو ممانعت**

١٧٠٩-()[١٦] [١] وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: «نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُجَصَّصَ الْقُبُورُ [٢] وَأَنْ يُكْتَبَ عَلَيْهَا [٣] وَأَنْ تُوطَأَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [١] او حضرت جابر رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله ﷺ د دې خبرې څخه منع فرمايلې ده چې قبرونه دې ګچ (پاخه) كړل شي، [٢] په هغې دې وليكل شي، [٣] او دا چې هغه د پښو سره پامال شي، (ترمذي)

**حل اللغات:-** ① يُجَصَّصَ: چه پوخ جوړ كړې شي، (په سيمټ وغيره سره). ② يُكْتَبَ: چه اوليلكې شي، ③ تُوطَأَ: أَيْ: بِالْأَرْجُلِ: چه خپو سره پامال شي.

**تسهيلات: قوله : أَنْ يُجَصَّصَ:**

**د قبرونو چونه كولو د ممانعت وجه:-** دَدې ليوولو (پخولو) نه دَممانعت وجه داده چه قبرستان دارالبلى او دارعبرت دې هلتـه زينت اوتكلف كـول اسـراف سـره سـره بې فائدې هـم دى او اصـل خبره داده چه حضورپاك منع فرمائيلې يا كه بل څه وجه وى اويـا نـه وى دَ حضوراكرم

[١] اخرجه الترمذي في السنن كتاب الجنائز عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما جاء في كراهية تجصيص القبور والكتابة عليها (رقم-١٠٥٢)

ﷺ منع کول دَ ټولو نه لویه وجه ده. بعضې علماء په خاوره سره لیوولو ته جائز وائی لیکن علماء له پکاردی چه دَدې اجازت نه ورکوی ګنی عوام به وړاندې کیدو سره څه نور عمل شروع کړی.

**قوله :** وَأَنْ يُكْتَبَ عَلَيْهَا:

**په قبر د لیکلو حکم :-** یعنی حضوراکرم په قبرونو باندې دَ الله اودَهغه دَ رسول ﷺ نوم او نورې کتبې او اشعار وغیره لیکلو نه منع فرمائیلې ده ځکه چه دَالله اودَهغه دَ رسول دَ نومونو بې حرمتئی کیدو خطره ده سپی متیازې کوی. دغه شان دَ قرآن آیاتونه لیکل منع دی علماؤ دا هم مکروه لیکلی دی چه په قبر باندې څه کتبه اولګولې شی او په هغې باندې دَ مړی نوم وغیره اولیکلې شی.

بعضې علماء فرمائی چه که چرې دَ قبر نه په څه فاصله باندې دَمړی متعلق څه بورډ وغیره باندې لیکل اوکړې شی نودابه جائزوی.

بهرحال دا ټولې حیلې اوبهانې دی عوامو او خواصو له پکاردی چه په قبرونو باندې دې سره خواؤشا لیکلو نه منع شی. نن صبا په دې باندې صبر نه دی بلکه چرته خو په قبرونو باندې عمارتونه جوړولې شی پنکهې لګولې شی بلبونه لګولې شی او بعضې قبرونو باندې ائرکنډیشن هم لګولې شوی دی. ﴿إِنَّا لِلَّهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُونَ﴾

**د شیخ سعدی واقعه :-** شیخ سعدی باباؒ په ګلستان کښې دَ یوغریب هلك اودَ یومالدار هلك مناظره نقل کړې ده. قصه داسې اوشوه چه دَ غریب هلك غریب پلار مړ شو اودَمالدار هلك هغه مالداره پلار مړشو. دَ غریب سړی ځوئی دَ خپل پلار قبر دَ ساده خاورې نه جوړ کړو او پریخودو لیکن دَ مالداره سړی ځوئی دَ مال په نشه کښې دَ پلار په قبر باندې پوره خرچه اوکړه او سنګ مرمرلګولوسره ئی په هغې باندې کتبې اولګولې اودَ قبرپه غاړو باندې ئی آیاتونه او احادیث اولیکل اوپه ښکلی او مزیدارو کاڼړو باندې ئی دَ پلار قبر ښائسته کړو. او بیائی دَ فخر په توګه دَ غریب سړی ځوئی ته اووئیل ستادَ پلار په قبر باندې دَ خاورې دَ یوځو لوټو نه علاوه نور څه کیخودل. زمادَ پلار قبر ته لږ شان اوګوره چه څنګه مې ښکلې کړې دې. دَ غریب سړی ځوئی اووئیل چه ستا دَ پلار په قبر باندې قرآنی آیت لیکلې شوې دې. دَدې بې احترامی به کیږی په دې باندې به باران وریږی او سپی به پرې متیازې کوی "داستان بروشاخند" او کله چه په قیامت کښې خلق دَ قبرونونه پاسی نوزما پلار به جنت ته رسیدلې وی او ستا پلار به دَ دغه غټو غټو کاڼړو لاندې خښ پروت وی.

[۱۷۱۰] د تدفین په وخت په خاوره د اوبو شیندل

۱۷۱۰-()[۱۷] ۱ وَعَنْهُ قَالَ: "«رُشَّ قَبْرُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ۲ وَكَانَ الَّذِي رَشَّ الْمَاءَ عَلَى قَبْرِهِ بِلَالُ بْنُ رَبَاحٍ، ۳ بِقِرْبَةٍ بَدَأَ مِنْ قِبَلِ رَأْسِهِ ۴ حَتَّى انْتَهَى إِلَى رِجْلَيْهِ» "رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي دَلَائِلِ النُّبُوَّةِ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت جابر ﷠ روایت کوي چې د نبي کریم ﷺ په قبر مبارک اوبه پاشل شوي وي ۲ او هغه سړي چې هغه اوبه پاشلي وي حضرت بلال بن رباح وو ۳ هغه مشک اخستو سره د سر د طرف څخه په قبر اوبه پاشل شروع کړل ۴ او تر پښو پورې یې وشیندلې. (بیهقي)

**حل اللغات:** - ① رُشَّ: اوبه ئې پرې چړکاؤ کړې وې، ② قِرْبَةٍ: مشک.

**تسهیلات:**

**قوله:** رُشَّ قَبْرُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

**په خاوره باندې د چړکاؤ کولو حکمت:** - په حدیث مبارک کښې د اوبو چړکوکولو طریقه خودلې شوې ده چې د سر طرفنه دې شروع کړې شي. او پښو باندې دې اختتام اوشي. د اوبو اچولو حکمت دا نقل کړې شوې دې چې قبر نه بناؤره لاړه نشي او تازه بناؤره ختمه شي او مضبوطه شي. (مرقاة)

[۱۷۱۱] د قبر نشاندار کولو حکم

۱۷۱۱-()[۱۸] ۱ وَعَنِ الْمُطَّلِبِ بْنِ أَبِي وَدَاعَةَ قَالَ: ۲ «لَمَّا مَاتَ عُثْمَانُ بْنُ مَظْعُونٍ ۳ أُخْرِجَ بِجَنَازَتِهِ، فَدُفِنَ، ۴ أَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا أَنْ يَأْتِيَهُ بِحَجَرٍ، ۵ فَلَمْ يَسْتَطِعْ حَمْلَهَا فَقَامَ إِلَيْهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَحَسَرَ عَنْ ذِرَاعَيْهِ. ۶ قَالَ الْمُطَّلِبُ: قَالَ الَّذِي يُخْبِرُنِي عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ۷ كَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَى بَيَاضِ ذِرَاعَيْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ حَسَرَ عَنْهُمَا، ۸ ثُمَّ حَمَلَهَا فَوَضَعَهَا عِنْدَ رَأْسِهِ، ۹ وَقَالَ: أَعْلَمُ بِهَا قَبْرَ أَخِي، ۱۰ وَأَدْفِنُ إِلَيْهِ مَنْ مَاتَ مِنْ أَهْلِي». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت مطلب ﷠ بن ابي وداعه فرمایي ۲ چې کوم وخت حضرت عثمان ﷠ ابن مظعون وفات شو ۳ نو د هغه جنازه بهر ته راوړلې شوه او دفن شو ۴ [د دفن کولو څخه چې فراغت وشو] نو نبي کریم ﷺ یو سړي ته حکم اوکړو چې یو غټ کاڼي راوړي (چې په قبر باندې د علامت د پاره کېښودل شي) ۵ هغه سړي کاڼي نشو پورته کولې نو حضور ﷺ پخپله د هغې د پورته کولو د پاره ودریدلو او د خپلو دواړو لاسونو لستوڼي یې راپورته کړل ۶ د حدیث راوي حضرت مطلب فرمایي کوم سړي چې ما ته د رسول الله ﷺ دا حدیث بیان کړو هغه اوویل ۷ لکه چې دا وخت هم د حضور ﷺ د مبارکو

[1] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الجنائز /باب فی جمع الموتی فی قبر والقبر یعلم (رقم-۳۲۰۶)
[2] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الجنائز /باب فی جمع الموتی فی قبر والقبر یعلم (رقم-۳۲۰۶)

لاسونو سفين والى زما په نظر کښې ګرځي کوم وخت چې حضور ﷺ هغه خلاص کړې وو⑧ بهرحال حضور ﷺ هغه کاڼي پورته کړو او د حضرت عثمان رضي الله عنه د قبر سرته یې کیخودو ⑨ او وې فرمایل چې ما د دې په ذریعه د خپل ورور په قبر علامت اولګولو⑩ اوس چې زما په کور والو کښې چې څوک وفات کیږی زه به یې د ده سره دفن کوم. (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ① حَسَرَ: أَيْ: كَشَفَ وَأَبْعَدَ كُمَّهُ: یعنی لستوڼړی ئې اوچت کړل او متې ئې ښکاره کړې. ② أُعَلِّمُ: اى مِنَ الْإِعْلَامِ: دمضارع متکلم صیغه ده د علامت او ښنه لګولو په معنی کښې، ③ أَخِي: دخپل ورور (دا دحضور ﷺ رضاعی ورور وو).

**تسهیلات: قوله: عُثْمَانُ بْنُ مَظْعُونٍ:**

**د عثمان د نوم درې صحابه کرام:-** ① یو عثمان بن عفان رضي الله عنه دی کوم چه امیرالمؤمنین او دریم خلیفه دی. د رسول الله ﷺ خوم وو

② عثمان بن طلحه حجبی رضي الله عنه وو چه د صلح حدیبیه په موقع کافر وو او حضور اکرم ﷺ ته ئی د عمرة القضاء په موقع د بیت الله چابیانې ورکولو نه انکار کړې وو او بیا د فتح مکه په موقع باندې د هغه نه په زور چابیانې واخستې شوې او بیا ورته د الله تعالی په حکم واپس کړې شوې. تراوسه پورې د هغه په خاندان کښې چابیانې محفوظ دی. دا عثمان هم مسلمان شوې وو.

③ دریم عثمان بن مظعون رضي الله عنه دی. دا د هجرت نه وړاندې په مکه کښې دیارلسم انسان دې چه اسلام ئی قبول کړې وو او بیا د هجرت نه پس په مدینه منوره کښې وفات شو دې د مهاجرینو نه ړومبې صحابی رضي الله عنه دې د چاچه په مدینه منوره کښې انتقال شوې بل په جنت البقیع کښې خښیدونکې ړومبې انسان دې. دا د حضورپاک رضاعی رور وو او د حضور پاك هغه سره د زړه مینه وه په جنګ بدر کښې شریك شوې وو.

حضورپاك د هغه تندې د هغه د وفات نه پس ښکلې کړې وو او د رسول الله ﷺ اوښکې مبارکې د هغه په مخ باندې پریوتې وې. د دې خوش قسمت په قبر باندې چه د پیژندګلو د پاره کوم کاڼړې د علامت د پاره کیخودې شوې هغه پخپله حضورپاك راؤچت کړې وو راوړلې وو. د حضورپاك څوئی حضرت ابراهیم رضي الله عنه د حضورپاك د خاندان ړومبې بچې چه عثمان بن مظعون رضي الله عنه سره خښ کړې شو.

**قوله: فَلَمْ يَسْتَطِعْ:**

**د نبی کریم ﷺ قوت:-** یعنی حضورپاك چه د کوم کاڼړی راوړلو حکم ورکړې وو هغه صحابی رضي الله عنه هغه اوچت نه کړې شو نو بیا حضورپاك پخپله لستوڼړی رانسکل هغه کاڼړې ئی راوړو د کوم نه چه معلومیږی حضورپاك ته الله تعالی ډیر طاقت ورکړې وو.

**قبر نشاندار کولو کښې فائده:-** ① دَ دې کانړې په کېخودوسره به دَدې قبرپېژند ګلوباقی وی نوپه دې سره معلومه شوه چه دَ پېژند ګلودپاره کانړې کېخودل مستحب دی دې دَ پاره چه دَ قبر نشاندهی باقی پاتې شي البته دا نشانات شرکیاتو ته رسول جائزنه دی خو دَ علامت په توګه دَ دې نه انکار کول هم غلط دی.

**په حرمينو کښې د علاماتو ختمولو حکومتی حرکت:-** دَحرمين شريفين په دواړو مقبروکښې نن صبا دَ حکومت په سطح حکمرانان دَ دغه علامتونوختمولوپسې لګيدلی دی. دَ ترکودَ زمانې دَ کانړو نشانات هغوی ختم کړی دی اودَ شاهی خاندان دَ کسانو دَ قبرونو په سرکاری اعزازسره حفاظت کوی خودَ کبار صحابه کرامو ﷺ دَ قبرونو نی په جنت البقيع کښې هغه حشر کړې دې چه دَهغې په کتلوسره سړی ته ژړا ورځي.

**[١٧١٢] دَ نبی علیه السلام اوشيخينو د قبرونو نقشه**

١٧١٢-(١)[١٩] [١] وَعَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ قَالَ: [٢] «دَخَلْتُ عَلَى عَائِشَةَ فَقُلْتُ: يَا أُمَّاهُ، [٣] اكْشِفِي لِي عَنْ قَبْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَصَاحِبَيْهِ، [٤] فَكَشَفَتْ لِي عَنْ ثَلَاثَةِ قُبُورٍ، [٥] لَا مُشْرِفَةٍ وَلَا لَاطِئَةٍ [٦] مَبْطُوحَةٍ بِبَطْحَاءِ الْعَرْصَةِ الْحَمْرَاءِ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] او حضرت قاسم بن محمد (تابعي) رحمه الله فرمايي [٢] چې زه د ام المؤمنين بي بي عايشي صديقي رضي الله عنها په خدمت کښې حاضر شوم او عرض مي اوکړو چې اي زما موري [٣] ما ته د زيارت کولو د پاره د رسول الله ﷺ او د هغه د دواړو ملګرو (يعني حضرت ابوبکر رضي الله عنه او حضرت عمر فاروق رضي الله عنه) قبرونه خلاص کړه (يعنی د هغوئ د حُجرې دروازه خلاصه کړه) [٤] نو هغه [کمره] يي راته خلاصه کړه ما وليدل چې درې واړه قبرونه [٥] نه ډير پورته وو او نه بالکل د زمکي سره برابر وو [بلکه د زمکي څخه يوه لويشت پورته وو] [٦] او په هغې د مديني منوري چاپيره چې کوم ميدان دي د هغې سرې سنګريزې (کانړی) غوړيدلی وو. (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ① يَا أُمَّاهُ: اي زما موري، ② اكْشِفِي: أَيْ: أَظْهِرِي وَارْفَعِي السِّتَارَةَ: يعنی پرده لرې کړه او د نبی کريم ﷺ او دهغه دملګرو قبرونه راته اوښايه. ③ لَا مُشْرِفَةٍ: أَيْ: عَالِيَةٍ أَكْثَرَ مِنْ شِبْرٍ: يعنی د يو لیشت نه زيات اوچت نه وو، ④ وَلَا لَاطِئَةٍ: أَيْ: مُسْتَوِيَةٍ عَلَى وَجْهِ الْأَرْضِ: يعنی بيخی زمکې سره برابر هم نه وو. ⑤ مَبْطُوحَةٍ: واړه کانړی پرې اچولې شوی وو. ⑥ بِبَطْحَاءِ: دمدينې سره نزدې کانړيزې زمکه ده، ⑦ الْعَرْصَةِ: وَهِيَ كُلُّ مَوْضِعٍ وَاسِعٍ لَا بِنَاءَ فِيهِ: هغې زمکې ته وائی چه آبادی پکښې نه وی يعنی صحرائی زمکه.

١) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الجنائز /باب فی تسوية القبر (رقم-٣٢٢٠)

**تسهیلات: قوله: فَكُشِفَتْ لِي عَنْ ثَلَاثَةِ قُبُورٍ:**

**د نبي کريم ﷺ په قبر ليکلی شوی شعرونه:** - دَ حضورپاك ﷺ دَ قبرمبارك مخې ته چه کوم دوه شعرونه ليکلي شوی دی هغه دادی:

يا خيرمن دفنت بالقاع اعظمهٗ　　فطاب من طيبهن القاع والاكم

**ترجمه:** اې دَ ټولو نه بهترين انسانه دَ چا مبارك بدن چه په کولاؤ ميدان کښې مدفون دې اودَ کوم په خوشبوئی سره چه ټولې غونډئی اوميدانونه معطرشو.

نفسي الفداء لقبرانت ساكنه　　فيه العفاف وفيه الجود والكرم

**ترجمه:** زما خان دې په دې قبر باندې قربان شی په کوم کښې چه تاسو آرام کونی په حقیقت کښې په دې قبر کښې خو سخاوت شرافت او عفت مدفون دې.

افاطم ان جزعت فذاك عذر　　وان لم تجزعي ذاك السبيل

**ترجمه:** اې بی بی فاطمه! که چرې ته جزع اوفزع کوې نوته معذوره ئی اوکه چرې صبر دې اوکړو نوخوښه کړې شوې لاره خو هم دغه ده.

فقبر ابيك سيد كل قبر　　وفيه سيد الناس الرسول

**ترجمه:** ستادَ پلار قبر خودَ ټولو قبرونو سردار دې او په دې کښې دَ ټولو رسولانو سردار مدفون دې.

**[۱۷۱۲] دَ جنازې په ليدو چپ کيدل**

١٧١٣—( )[٢٠] [١] «وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ: [٢] "خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي جَنَازَةِ رَجُلٍ مِنَ الْأَنْصَارِ [٣] فَانْتَهَيْنَا إِلَى الْقَبْرِ، وَلَمْ يُلْحَدْ بَعْدُ، [٤] فَجَلَسَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ وَجَلَسْنَا مَعَهُ»، [٥] رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، [٦] وَزَادَ فِي آخِرِهِ: كَأَنَّ عَلَى رُءُوسِنَا الطَّيْرَ.

**ترجمه:** [١] او حضرت براء بن عازب رضي الله عنه فرمايي [٢] چې مونږ د رسول الله ﷺ سره په انصارو کښې د يو سړي د جنازې سره لاړو [٣] کوم وخت چې هديرې [قبرستان] ته ورسيدو نو اوس لا لحد جوړ شوي نه وو (يعني قبر تيار شوي نه وو) [٤] رسول الله ﷺ د قبلې طرف ته تشريف فرما شو او مونږ هم د حضور ﷺ سره شا وخوا ته کيناستلو، [٥] (ابوداؤد، نسايي، ابن ماجه) [٦] او ابن ماجه رحمه الله د دې روايت په آخر کښې دا الفاظ هم نقل کړي دي لکه چې زمونږ په سرونو مارغان ناست دي (يعني په انتهايي خاموشئ او چپ چاپ سرونه لاندې زوړند کړې ناست وو).

**حل اللغات:** - ① لَمْ يُلْحَدْ: أَيْ: لَمْ يَفْرُغْ مِنْ حَفْرِ اللَّحْدِ: د قبر کنستلو نه خلق لاته وو فارغ شوی يعنی قبر لا تيار نه وو.

---

(١) اخرجه ابوداود فی السنن كتاب الجنائز، باب الجلوس عند القبر (رقم-٣٢١٢) والنسائی كتاب الجنائز/الوقوف للجنائز (رقم-٢٠٠١) وابن ماجة كتاب الجنائز/باب ما جاء فی الجلوس فی المقابر (رقم-١٥٤٩) واحمد فی المسند ٢٨٧/٤

**تسهيلات:**

**قوله: فَجَلَسَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ**

**د صاحب مشكاة ذهول:** - ملا علي قاري رحمه الله فرمائي چې صاحب د مشكوة په ماقبل كښې (باب مايقال عندمن حضر الموت) په فصل ثالث كښې دا حديث مبارك په تفصيل سره بيان كړې دې خو دلته ئې د ذهول په وجه دوباره ذكر كړو.

**دحديث فوائد:** - ① د مړي دفن كولو نه اول كښيناستل جائز دى
② مخ په قبله كښيناستل هم ضروري نه دى ،
③ دنياوي خبرې كول يا مزاح وغيره كول منع دى ،
④ دالله ﷻ ذكر او درود شريف ونيل پكار دى
⑤ د مرګ تصور دې اوكړى او خاموشه دې وي.

**[١٧١٤] دَ مړي د هډوكو ماتولو ممانعت**

١٧١٤-(٢١) [١] وَعَنْ عَائِشَةَ: "«أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: [٢] كَسْرُ عَظْمِ الْمَيِّتِ كَكَسْرِهِ حَيًّا»" رَوَاهُ مَالِكٌ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [١] او بي بي عايشه رضي الله عنها روايت كوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] د مُرده (مړي) هډوكي ماتول (باعتبار د ګناه) د ژوندي سړي د هډوكو د ماتولو په شان دي. (مالك، ابوداؤد ، ابن ماجه)

**تسهيلات: قوله: كَكَسْرِهِ حَيًّا:**

**مرده ته د تكليف رسولو حكم:** - يعني لكه څنګه چه ژوندى سړى ته په شلولو څيرلو تكليف كيږي هم دغه شان مړي ته هم په شلولو څيرلو تكليف كيږي. دغه شان څنګه چه دَ ژوندى سړي سپكاوې كول منع دې څنګه چه دَ يوژوندى سړي هډوكي ماتول منع دى هم دغه شان دَ مړي هډوكي ماتول هم منع دى.

**د پوسټ مارټم شرعي حكم:** - په دې حديث سره نن صباد فيرنګبانوجوړكړې شوې دَ ميډيكل نظام په سختنى سره نفي اوترديد كيږي. نن صبا په هسپتالونوكښې حكومت دَ پخوانې زمانې دَ كفن چورو په شان دَمړو پټولو غله ساتلى دى. هغه داسې چه كله په قبرستان كښې تازه مړې دفن كولې شي نودَ شپې داظالمان ځي او قبركولاوولوسره دَ مړي نعش راپټ كړي او هسپتال ته ئې راوړي اوبيا په انساني نعشونوباندې تجربه كونكي دَ

) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الجنائز /باب فى الحفار يجد العظم هل يتنكب ذلك المكان؟ (رقم-٣٢٠٧) وابن ماجة كتاب الجنائز /باب فى النهى عن كسر عظام الميت(رقم-١٦١٦) ومالك فى الموطا كتاب الطهارة ، باب ما جاء فى المسح بالرأس والأذنين(رقم-٤٠)

میډیکل مهذب څناور دَ دغه نعش شلول اوڅیرل کوی اودغـه شان دوی ډاکټران جوړیږی.
الله تعـالی انسـان مکرم اودَعـزت والاجـوړکړې دې. ﴿وَلَقَدْ كَرَّمْنَا بَنِيٓ اٰدَمَ﴾ [سورة بنی اسرائیل الایه: ۷۰] دَ قرآن پاك حکم دې په دې وجـه دَ شریعت ضـابطه ده چـه هریوانسـان وی دَ مرګ نه پس دَهغه دَ نعش بې حرمتی کول ناجـائزدی کـه کـافروی اوکـه مسلمان وی مثلـه کول حرام دی او نعش سره په هسپتالونوکښې هغه لوبې کولې شی چه دَالله تعالی پناه. کـه چرې څوك دوی پوهه کوی نو زر به وائی چه مونږ دَ انسانیت خدمت کوو اودا ضروری دی.
حالانکه حقیقت دادې چه دا یوتجارت دې اودَ دنیـا ګټلویـوه لویه ذریعـه ده. دَخدمت نوم صرف دَ خدمت بدنام کولودَپاره دې. کـه پـه حقیقت باندې نظر واچولې شی نوچـه څومره ډاکټران زیـاتیږی هم دومـره بیمـارئی زیـاتیږی نودَدې پیـښې څـه ضـرورت دې دَ کـومې پـه شروع کښې چه دَ شریعت مخالفت کیږی اودَهغې پـه آخر کـښې دَ صـحت مخالفت کـیږی.
(توضیحات شرح مشکاة تحت هذا الحدیث)

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۱۷۱۵]دَحضرت ام کلثوم رضی الله عنها دَ تدفین واقعه

۱۷۱۵-(¹)[۲۲] [۱] «عَنْ أَنَسٍ قَالَ: شَهِدْنَا بِنْتَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تُدْفَنُ [۲] وَرَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَالِسٌ عَلَى الْقَبْرِ، [۳] فَرَأَيْتُ عَيْنَيْهِ تَدْمَعَانِ، [۴] فَقَالَ: هَلْ فِيكُمْ مِنْ أَحَدٍ لَمْ يُقَارِفِ اللَّيْلَةَ؟ [۵] فَقَالَ أَبُو طَلْحَةَ: أَنَا. [۶] قَالَ: فَانْزِلْ فِي قَبْرِهَا، فَنَزَلَ فِي قَبْرِهَا». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس رضی الله عنه فرمايي چې زه هغه وخت موجود وم چې د رسول الله ﷺ لور (يعني د حضرت عثمان رضی الله عنه زوجه محترمه بي بي اُم كلثوم رضی الله عنها) خاورو ته سپارل كيده [۲] او حضور ﷺ د قبر سره تشريف فرما وو[۳] ما وليدل چې د حضور ﷺ د سترګو مباركو څخه اوښكي جاري وي [۴] بهر حال (هغه وخت) حضور ﷺ (صحابه وُ ) ته وفرمايل چې آيا په تاسو كښې څوک داسې سړي هم موجود دي چې نن شپه خپلي بي بي سره يو ځاي شوی نه وي؟[۵] حضرت ابو طلحه رضی الله عنه اوويل چې هو زه يم،[۶] نو حضور ﷺ ورته وفرمايل چې (مړي قبر ته د ښکته کولو د پاره) ته قبر ته ښكته شه نو هغه قبر ته ښكته شو. (بخاري)

**حل اللغات:**- ① تَدْمَعَانِ: ای تَسِيلَانِ دَمْعًا: اوښکې ترې بهيدلې. ② لَمْ يُقَارِفْ: قارف مطلق يو ځاې كيدو او نژدې كيدو ته وائی دلته ترې مراد جماع ده.

¹) اخرجه البخاری کتاب الجنائز/باب قول النبی صلی الله علیه وسلم: «یعذب المیت ببعض بکاء أهله علیه» إذا کان النوح من سنته " (رقم-۱۲۸۵) واحمد فی المسند ۱۲۶/۳

**تسهیلات:**

**قوله: شَهِدْنَا بِنْتَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:** دې نه مراد دَ رسول الله ﷺ لوربی بی حضرت ام کلثوم رضی الله عنها ده چه دَ حضرت عثمان بن عفان رضی الله عنه زوجه محترمه وه. اودَحضرت رقیه رضی الله عنها دَ وفات نه پس دَ حضر ت عثمان رضی الله عنه په نکاح کښې راغلې وه.

**قوله: تَدْمَعَانِ:** یعنی حضورپاك دَ قبر په غاړه باندې تشریف کیخودې وو اودَ حضور پاك اوښکې جاری وې معلومه شوه چه اوښکې تویولو سره ژړا منع نه ده بلکه جائز ده.

**قوله: لَمْ يُقَارِفِ اللَّيْلَةَ:**

**د مذکوره جملې مفهوم:** - یعنی کوم سړی چه نن شپه خپلې بی بی سره جماع نه ده کړې هغه دې وړاندې راشی او ام کلثوم رضی الله عنها دې قبرکښې کوزه کړی. دَ مقارفه معروفه معنی جماع ده سره دَدې چه دَ ګناه کولودَپاره هم دا لفظ استعمالیږی. دلته اګرچه علماؤ تاویلات کوی مګر واضح معنی ئی هم جماع ده.

**اشکال:** - اوس سوال دادې چه حضورپاك داسې پټه شعبه ولې اوچیړله اودَدې نه دَ حضورپاك مقصد څه وو؟

**داشکال جواب:** - دَ دې جواب دادې چه حضورپاك ته دَ وحی په ذریعه معلومه شوې وه چه حضرت عثمان رضی الله عنه دَ شپې خپلې وینځې سره کوروالې کړې دې کیدې شی چه په حضورپاك باندې دا خبره سخته تیره شوې وی چه یوطرف ته زما لورمړه کیدله او هم په هغه شپه کښې هغه وفات هم شوه او بل طرف ته په داسې ماحول کښې عثمان بن عفان رضی الله عنه دَ خدمت په ځائی خپلې وینځې سره په کوروالی کښې مشغول کیدل مناسب نه وو. په دې وجه حضورپاك په ډیر باریك انداز سره په حضرت عثمان رضی الله عنه باندې ملامتیا اوکړه. که چرې حضورپاك حضرت عثمان رضی الله عنه په واضحه توګه سره ملامت کړې وې یا ئی ورته ګیله کړې وې نوکیدې شی چه هغه دَ حیاء دَ وجې نه مړشوې وې. په دې وجه حضورپاك په پټه اشاره سره تنبیه اوفرمائیله بل طرف ته حضرت عثمان رضی الله عنه علماء معذور ګنړی ځکه چه حضرت ام کلثوم رضی الله عنها دَ ډیرې مودې نه بیمارئی کښې راګیره وه او په دغه شپه هم په هغه خپل عادت باندې وه دَ زیات تکلیف څه خبر نه وو په دې وجه حضرت عثمان رضی الله عنه خپلې وینځې سره کوروالې اوکړو.

**دویم اعتراض:** - چه کله حضورپاك پخپله موجود وو نو ابوطلحه رضی الله عنه چه دَ ام کلثوم رضی الله عنها دَپاره یو پردې وو هغه ام کلثوم رضی الله عنها څنګه قبرته کوزه کړه؟

**د اعتراض جوابونه:** - ① چه کله رسول الله ﷺ دَهغې دَ کوزولوحکم ورکړو نودَ هغوی دَپاره شرعی جواز پیدا شو او دَ حضورپاك هم کیدې شی څه عذر وو چه پخپله ئی ام کلثوم رضی الله عنها قبر ته کوزه نه کړه.

④ دا عمل دَ حضرت ابوطلحه رضي الله عنه دَ خصوصيات نه دي.
④ بعضې علماؤ دا جواب ورکړې دې چه حضورپاك دَ جواز دَ بيان دَپاره داسې اوکړه. بهرحال علماؤ ليکلي دی چه ښځه به هم سړې قبر ته کوزوی البته دَ سړی دَ ښځې دَ محارم نه کيدل ضروری دی ګنې مجبوری ده.

**[١٧١٦]دَ حضرت عمروبن عاص رضي الله عنه وصيت**

١٧١٦-()[٢٣] ① وَعَنْ عَمْرِوبْنِ الْعَاصِ قَالَ لِابْنِهِ وَهُوَفِي سِيَاقِ الْمَوْتِ: ② إِذَا أَنَا مُتُّ فَلَا تَصْحَبْنِي نَائِحَةٌ وَلَا نَارٌ ③ فَإِذَا دَفَنْتُمُونِي فَشُنُّوا عَلَيَّ التُّرَابَ شَنًّا ④ ثُمَّ أَقِيمُوا حَوْلَ قَبْرِي قَدْرَ مَا يُنْحَرُ جَزُورٌ ⑤ وَيُقْسَمُ لَحْمُهَا، حَتَّى أَسْتَأْنِسَ بِكُمْ، ⑥ وَأَعْلَمَ مَاذَا أُرَاجِعُ بِهِ رُسُلَ رَبِّي " رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او د حضرت عمرو ابن عاص رضي الله عنه په باره کښې روايت دي چې کله هغه د زنکدن په حالت کښې وو نو خپل ځوی (حضرت عبدالله) ته يې دا وصيت اوکړو ② چې کله زه مړ شم نو زما د جنازي سره دي نه څوک نوحه کونکي ښځه وي او نه دي اور وي ③ او هر کله چې ما دفن کړئ نو په ما دپاسه خاوره لږ لږ واچوئ ④ بيا د دفن کولو څخه روسته زما د قبر سره (د دعائ استقامت او مغفرت او د ايصال ثواب د پاره) تر دومره وخت پورې ودريږئ په څومره وخت کښې چې اُوښ ذبح کولې شي ⑤ او د هغه غوښه تقسيمول کيږی تر دي چې زه ستاسو په وجه آرام بياموم ⑥ او بغير د څه وحشت او ويرې پوهه شم چې زه د خپل پروردګار فرشتو ته څه جواب ورکوم. (مسلم)

**حل اللغات:**- ① سِيَاقِ الْمَوْتِ: اى النَّزْعُ: زنکدن ته وائی، ② فَلَا تَصْحَبْنِي : زما په جنازه کښې دې شامليږی، ③ نَائِحَةٌ: أَيْ: صَائِحَةٌ بِالْبُكَاءِ: په چغو چغو ژړيدونکې ښځې، ④ فَشُنُّوا: أَيْ: صُبُّوا: يعنی په لږه لږه راباندې خاوره واچوئ، ⑤ يُنْحَرُ: د اوښ ذبح کولو ته نحر وائی ⑥ جَزُورٌ: اوښ، ⑦ أَسْتَأْنِسَ: چه زه آرام حاصل کړم (ستاسو په ذکرونو او دعاګانو سره)، ⑧ رُسُلَ : راليږلې شوې فرشتې مراد دی کومې چه د مړی نه تپوسونه کوی.

**تسهيلات: قوله : فَلَا تَصْحَبْنِي نَائِحَةٌ:**

**په مړی د ژړا کولو حرمت:**- دَ جاهليت په زمانه کښې به په مړی پسې دَ ژړاکولودَپاره په کرايه باندې ويناګانې کونکې ښځې راوستلې شوې. هغوی به دَ مړی اخواديخوا تعريفونه کولوسره پخپله هم ژړل او نورخلق به ئې هم ژړول، دَدې نه اسلام منع کړې ده.

**قوله : وَلَا نَارٌ:**

**د فخر دپاره په مړی پسې د اور بلولو ممانعت:**- دَ جاهليت په زمانه کښې به دَ فخراوتکبر اودرسم اورواج په توګه مړی سره اُور اورلې کيدو اوپه هغې کښې به ئې خوشبوئی وغيره

^١) اخرجه مسلم فی کتاب الإيمان/باب کون الإسلام يهدم ما قبله وکذا الهجرة والحج(رقم-١٩٢ - (١٢١)

اچوله اوخلقوته به ئې خودلو. اسلام دَدې نه منع اوکړه بلکه اور خو يوخراب فال دې دا اسلام په خصوصيت سره منع کړې دې. حضرت عمروبن العاص رضي الله عنه هم دَدې دوو منکراتونه دَ بچ کيدو په غرض وصيت فرمائی.

**قوله : ثُمَّ أَقِيمُوا حَوْلَ قَبْرِي:**

**د تدفين څخه پس د مړی دپاره د دعا کولو مسئوليت:-** يعنی دَ يواوښ دَ ذبح کولو اودَهغې غوښه تقسيم کولودَ وخت پورې زما قبرسره حصارشئی اوزمادَ پاره په توګه دَ ايصال ثواب دعااوکړئی تلاوت اوکړئی او استغفاراوکړئی. ستاسودَ دعااواستغفار په برکت به زمادَ پاره په قبرکښې دَفرښتو سوال جواب آسان شی. اوزه به بغيردَ څه ويرې او خطرې دَ فرښتو جواب ورکړم. اوماته به اندازه اوشی چه زه په کومه طريقه جواب ورکوم. دَ ابوداؤد شريف په يوحديث کښې راغلی دی چه حضورپاك به کله دَ يو صحابی دَ تدفين نه فارغ شو نو دَهغه قبرسره به اودريدو او صحابه کرامو ته به ئې فرمائيل چه دَخپل رورد پاره استغفار اوکړئی اودَ استقامت دعاورله اوغوارئی. څکه چه په دې وخت قبرکښې دَ ده نه سوال کيږی حضرت عمرو بن العاص رضي الله عنه هم دَدې حديث دَ مضمون طرف ته اشاره فرمائی.

**[۱۷۱۷] د تدفين څخه پس دَ سورت بقره دَ شروع او آخری رکوع لوستل**

۱۷۱۷-(١)[٢٣] ۞ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: ۞ "«إِذَا مَاتَ أَحَدُكُمْ فَلَا تَحْبِسُوهُ، ۞ وَأَسْرِعُوا بِهِ إِلَى قَبْرِهِ، ۞ وَلْيُقْرَأْ عِنْدَ رَأْسِهِ فَاتِحَةُ الْبَقَرَةِ، ۞ وَعِنْدَ رِجْلَيْهِ بِخَاتِمَةِ الْبَقَرَةِ» "۞ رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ وَقَالَ: وَالصَّحِيحُ أَنَّهُ مَوْقُوفٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۞ او حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه فرمايي چې ما د نبي کريم صلی الله عليه وسلم څخه واوريدل ۞ هر کله چې په تاسو کښې يو سړي وفات شي نو هغه محبوس (قيد) مه ساتئ ۞ بلکه د هغه تر قبر پورې هغه زر ورسوئ ۞ او دا هم پکار دي چې د قبر سره ودريدو سره د هغه سرته نزدې د سورة بقره ابتدايي آيتونه (يعني د شروع څخه تر مفلحون پورې) اوويل شی ۞ او پښو ته نژدې د سورة بقره آخري آيتونه (يعني د آمن الرسول څخه تر آخر پورې آيتونه) دي اوويل شي، ۞ بيهقي دا روايت په شعب الايمان کښې نقل کړې دي او وئيلی يې دی چه صحيح دا دي چې دا روايت په حضرت عبدالله رضي الله عنه باندې موقوف دي.

**حل اللغات:-** ① فَلَا تَحْبِسُوهُ: أَيْ: لَا تُؤَخِّرُوا دَفْنَهُ مِنْ غَيْرِ عُذْرٍ: يعنی په کورونو کښې ئې بند مه ساتئ اوبغير د عذرنه ئې په دفن کښې تاخير مه کوئ.

**تسهيلات: قوله : فَلَا تَحْبِسُوهُ:**

**د مړی په تدفين کښې د تلوار حکم:-** څکه چه که مړې نيك وی نو فرښتې انتظار کوی اوکه چرې بدعمل وی نودَ کورونونه دا بدی زر اخواکړئی. چنانچه علامه ابن همام رحمه الله فرمائی

---

۱) رواه البهقی فی شعب الايمان

چه کله سړي مړشی نو دَهغه په تجهیزاوتکفین کښې تادی کوئی.

**قوله : وَأَسْرِعُوابِهِ**: داجمله دَ ړومبې جملې دَپاره دَ تاکید په توګه راوړلې شوې ده. ځکه چه دَ لاتحبسوه مطلب پخپله هم دغه دې چه په تادئی سره ئې اوړئی.

**قوله :وَلْيُقْرَأْ**: په دې جملې سره تلقین علی القبور په واضحه توګه سره معلومیږی. چنانچه په دې حدیث کښې دَ کوم تلقین ذکر دې هغه دادې چه دَمړی دَ قبر سر ته دَ سورت بقره دَ شروع رکوع یو سړې اودرېدوسره په زوره اولولی او دَخپو طرف ته بل سړې دَ سورت بقره آخری رکوع اولولی. په دې تلقین کښې دَ هیڅ څه اختلاف نشته دې. دې نه علاوه بل یو مروجه تلقین وی چه دَ قبر په مینځ باندې ګوته کیخودوسره دَمړی څه رهنمائی کولې شی چه اوس به فرښتې راځی هغوی به داسې سوال کوی ته داسې جواب ورکړه. که په دې تلقین کښې غلطه عقیده شامل شی اوبې کاره خبرې راشی نودَدې په ناجائزکیدوکښې هیڅ شك نشته دې. لیکن که غلطه عقیده نه وی اوغلط فرمائش نه وی نودَ شوافع په نیزداتلقین جائزدې. حضرت مولانا رشیداحمد ګنګوهی رحمه الله فتاویٰ رشیدیه کښې دَدې تلقین باره کښې لیکلی دی چه دَدې مدار دَمړو اوریدو اونه اوریدو په مسئله باندې دې. دَ کوموخلقو چه داعقیده ده مړی اوری نو هغوی دَ دې تلقین قائل دی اودَ تدفین نه پس په قبرباندې تلقین کوی لیکن دَ کوموخلقو چه داعقیده ده مړی نه اوری هغوی دَدې قسم تلقین نه انکارکوی. بهرحال په زیربحث حدیث کښې دَ کوم تلقین ذکردې دَهغې په کولوکښې دَ هیڅ‌اختلاف نشته دې.

**دَ ایصال ثواب فائده اوفضیلت**:- حضرت امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائی چه کله تاسو قبرستان ته لاړشئی نوهلته سورت فاتحه، معوذتین او سورت اخلاص لوستلوسره ثواب دَ قبرستان والو ته وربخښئی نوهغه ثواب دغه مړو ته رسیږی.

**یوولس ځله د سورة فاتحې لوستلوفضیلت**:-حضرت علی رضی الله عنه فرمائی چه کوم سړې قبرستان ته لاړشی او یولس ځل سورت فاتحه اولولی اودَ هغې ثواب قبرستان والوته وراوبخښی نودَالله تعالی دَ طرف نه دې سړی ته په قبرستان کښې دَ خښوشوو مړو دَ شمیر برابر ثواب ورکوی.

**په قبرستان کښې د سورة فاتحه،اخلاص اوتکاثر وئیلو فضیلت**:-حضرت ابوهریره رضی الله عنه فرمائی دَحضورپاك ارشاد مبارك دې چه کوم سړې قبرستان ته لاړشی سورت فاتحه او قل‌هوالله احد او سورت تکاثر لوستلو سره الله تعالی ته عرض اوکړی چه اې الله ما ستاکلام لوستلې دې ما چه دې وخت کښې کوم څه لوستلی دی دَدې ثواب په قبرستان کښې خښ مؤمنانو سړو اومؤمنانو ښځوته وربخښم نو په قبرستان کښې چه څومره مړی دی هغوی دَالله تعالی په حضوردَدغه سړی دَپاره شفاعت کونکی جوړیږی.

دَحضرت انس رضي الله عنه نه روايت دې چه حضورپاك فرمائي چه كوم سړې قبرستان ته لاړشي او (هلته دَ ايصال ثواب په غرض) سورت ياسين تلاوت كړي نو الله تعالى دَ قبرستان والو په عذاب كښې كمې كوي او دې سړي ته په قبرستان كښې ښخ شوو مړو دَ شمير په اندازه نيكئي وركولې شي.

بهرحال قبرستان دَ لوبو او منډو ترړو ځائي نه دې بلكه دَعبرت حاصلولو ځائي دې چه څومره لوئي لوئي ښتې مركي راغورزولې دي په زمكه كښې خښ دي اودا لوئي ستنې دَقبر خاورو ښنګه اوخورلې. هرمسلمان له دَ دغه وخت دَپاره تيارى كول پكاردي.

**[١٧١٨] دحضرت عائشه رضي الله عنها دَخپل رورپه قبر حاضرى**

١٧١٨- (١)[٢٥] ① وَعَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ قَالَ: ② لَمَّا تُوُفِّيَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي بَكْرٍ بِالْحُبْشِيِّ وَهُوَ مَوْضِعٌ ③ فَحُمِلَ إِلَى مَكَّةَ فَدُفِنَ بِهَا، ④ فَلَمَّا قَدِمَتْ عَائِشَةُ أَتَتْ قَبْرَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ ⑤ فَقَالَتْ: وَكُنَّا كَنَدْمَانَيْ جَذِيمَةَ حِقْبَةً مِنَ الدَّهْرِ ⑥ حَتَّى قِيلَ لَنْ يَتَصَدَّعَا ⑦ فَلَمَّا تَفَرَّقْنَا كَأَنِّي وَمَالِكًا ⑧ لِطُولِ اجْتِمَاعٍ لَمْ نَبِتْ لَيْلَةً مَعًا ⑨ ثُمَّ قَالَتْ: وَاللَّهِ، لَوْ حَضَرْتُكَ مَا دُفِنْتَ إِلَّا حَيْثُ مُتَّ، ⑩ وَلَوْ شَهِدْتُكَ مَا زُرْتُكَ، رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① حضرت ابن ابي مليكه وايي ② چې كوم وخت حضرت عبدالرحمن بن ابي بكر رضي الله عنه په حبشي كښې وفات شو چې يو مقام دي ③ نو د هغه مړي مكي ته راوړل شو او هلته دفن كړې شو ④ څه وخت چې بي بي عايشي رضي الله عنها د حج د پاره مكي ته تشريف راوړو نو د خپل وړور حضرت عبدالرحمن رضي الله عنه قبر ته هم ورغله ⑤ او هلته يې دا شعرونه وويل:

وَكُنَّا كَنَدْمَانَيْ جَذِيمَةَ حِقْبَةً    مِنَ الدَّهْرِ حَتَّى قِيلَ لَنْ يَتَصَدَّعَا
فَلَمَّا تَفَرَّقْنَا كَأَنِّي وَمَالِكًا    لِطُولِ اجْتِمَاعٍ لَمْ نَبِتْ لَيْلَةً مَعًا

يعني مونږ دواړه د جذيمه د دواړو هم نشينانو په شان د يوي اُوږدي مودي څخه سره يوځاي وو ⑥ تر دي چې دا ويل كيده چې دا دواړه به هيڅ كله سره جدا نشي ⑦ ليكن هر كله چې مونږ دواړه يعنى زه او مالک د يو بل څخه جدا شو ⑧ نو د اُوږدي زماني پوري د يو بل سره د اُسيدو باوجود ګويا د يوي شپي د پاره هم يو ځاي شوي نه وو، ⑨ د دې څخه روسته بي بي عايشي رضي الله عنها وفرمايل قسم په خداي كه ستا د وفات په وخت زه موجوده وي نو ته به ما په هغه ځاي كښې دفن كړي وې چيرته چې ته وفات شوي وي، [ځكه چې مړي د هغه ځاي څخه چيرته چې وفات شوي وي بل ځاي ته نه منتقل كول سنت او افضل دي] ⑩ او دا چې كه زه ستا د وفات په وخت ستا سره موجوده وي نو دا وخت به دې قبر له نه راتلم. (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① نَدْمَانَيْ: اى جَلِيسَيْهِ وَأَنِيسَيْهِ: هم نشين او ورسره ناست دوه كسان، ② جَذِيمَةَ: د عراق او جزيره د بادشاه نوم دي. ③ حِقْبَةً: أَيْ: مُدَّةً لَا وَقْتَ لَهَا: يوه موده چه محدود نه وى، يعنى اوږده

(١) اخرجه الترمذي في السنن كتاب الجنائز عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما جاء في الرخصة في زيارة القبور(رقم-١٠٥٥)

زمانه، ④ لَنْ يَتَصَدَّعَا : أَيْ: لَنْ يَتَفَرَّقَا: يعنی چه کله به هم جدا نه شی، ⑤ لَمْ نَبِتْ : أَيْ: سَاعَةً مِنَ اللَّيْلِ: يعنی چه مونږ دشپې لږه حصه هم چرته يو ځای نه وی تيره کړې.

**تسهيلات: قوله ، بِالْحُبْشِيِّ :**

په حاء باندې پيش دې اوباساکن ده او په شين باندې کسره ده دې نه پس ياء باندې شد دې. دَ "نُعْلِيٌّ" په وزن باندې دې. په مکه معظمه کښې په ښکته علاقو کښې نعمان اراك سره دَ يو غر نوم دې چه دَمکې مکرمې په اطرافو کښې واقع دې. احابيش قريش هم دې طرف ته منسوب دی.

**د عائشې رضی الله عنها د خپل ورور عبدالرحمن د قبر زيارت کول:-** علماؤ ليکلی دی چه دَ مکې نه په يو منزل فاصله باندې يو ځائی واقع دې بعضې شپږ ميله فاصله ليکلې ده. دلته دَ حضرت عائشه صديقه رضی الله عنها رور عبدالرحمن بن ابی بکر رضی الله عنهما وفات شوې وو اودَ هغه ځائی نه خلقو راؤچت کړو مکې ته ئی راوړو او په جنت المعلاة کښې خښ کړو. حضرت عائشه رضی الله عنها دَ تدفين نه پس يو وخت کښې دَخپل رور قبر له راغله او په عجيبه انداز سره دَ رفاقت اومحبت اظهارکوی. اوبيائی دوه شعرونه ونيلی دی چه دَهغې او دَ هغې دَ رور حال سره ډير زيات مناسب وو. معجم البلدان (ج۲ص۲۱۴) باندې تفصيل موجود دې.

**د تميم بن نويره د اشعارو پس منظر:-** دا دوه شعرونه په حقيقت کښې دَ يوشاعر وو دَ کوم نوم چه تميم بن نوير ه وو اودَ هغه دَ رور نوم مالك بن نويره وو کوم چه خالد بن وليد رضی الله عنه په جنګ يمامه کښې قتل کړې وو. قصه داسې وه چه دَ حضرت صديق اکبر رضی الله عنه دَ خلافت په زمانه کښې دَ مرتدينو خلاف لوئی جنګونه شوی وو. دَ بنوتميم خلاف کاروائی اوشوه او بيا په يمامه کښې سخت جنګونه اوشو.

مالك بن نويره دَخپل قوم مشر وو داسړې دَ مسلمانانو په قيد کښې راغلو. حضرت خالد رضی الله عنه هغه سره خبرې اترې اوکړې دکومې نه چه اندازه اوشوه چه واقعی دا سړې مرتد دې او اوس هم په ارتداد باندې قائم دې. لهذا هغوی حکم ورکړو چه دې قتل کړنی نودَهغوی په حکم سره دې قتل کړې شو. بعضې ليکلی دی چه دا سړې دکومو مسلمانانو په لاس ګرفتار شوې وو په غلطئی سره دَ چا دَ لاسه اووژلې شو. بهر حال چه څنګه هم مړ کړې شو خو دَهغه رور تميم بن نويره يوډير زور آور شاعر وو هغه يوطوفان راؤچت کړو چه زما رور مسلمان وو. حضرت خالد رضی الله عنه هغه قصداً قتل کړې دې. لهذا دَخالد رضی الله عنه نه قصاص واخلئی. دامقدمه دَ حضرت صديق اکبر رضی الله عنه دربار ته راغله. حضرت صديق اکبر رضی الله عنه حضرت خالد بن وليد رضی الله عنه خوبری کړو ليکن دَ بيت المال نه ئی دَ هغه ديت دَ دغه سړی رور ته ورکړو.

حضرت عائشه رضي الله عنها دغه شعرونه دَخپل رور دَپاره اووئیل او اشاره ئی اوکړه چه زمونږ تعلق اوخپل رور سره محبت داسې وو چه خلقو دا ګنړل چه دا دواړه به کله جدا نه شی. دَدې اوږد رفاقت او محبت نه پس چه کله رور مړ شو نو اوس داسې محسوس کیږی لکه چه مونږ هډو یوځائی شوې نه وو

تمیم بن نویره په دې دوو شعرونو کښې خپل خان اوخپل رور دَ جذیمه دَ دوو ملګرو په شان ګرځولې دی چه دَهغوی اوږد رفاقت اومحبت او اوږد تعلق داسې وو چه خلقو ګنړل چه دا دواړه به کله هم جدا نه شی لیکن چه کله دَ رور مرګ راغلو نو اوس داسې محسوس کیږی لکه چه مونږ چرته هډو یوځائی شوې نه وو.

**دَ جذیمه ابرش تعارف او واقعه:-** دلته دا خبره ضروری ده چه جذیمه اوپیژنئی اودَ هغې دوه ملګری اوپیژندلې شی دې دَپاره چه په دې دوو شعرونو باندې په صحیح توګه پوهه شنی اودَدې حدیث پوره منظر ستاسو مخې ته راشی.

جذیمه ابرش دَ عراق او جزیرة عرب په یوه زمانه کښې مشهوربادشاه تیرشوې دې. هغه یوې ښځې زبا قتل کړې وو چه یوه ملکه ښځه وه. قصه داسې پیښه شوه چه جذیمه ابرش په یوه زمانه کښې په یوبادشاه باندې حمله اوکړه اوهغه ئی قتل کړو. دَدغه بادشاه په ځائی دَ هغه لور په بادشاهئی کیناسته. دا ښځه ډیره ښائسته وه دَدې دومره لوئی وښته وو چه خپل ځان به ئی په هغې کښې پټولو. دا پیغله وه او واده ئی نه کولو. دَ لوئی لوئی بادشاهانو دَ نکاح پیغام ئی رد کړې وو. کله چه دَهغې پلار مړ شو نو جذیمه ابرش ورته دَ نکاح پیغام راؤلیګلو. هغې پیغام قبول کړو او په زړه کښې ئی قسم اوخوړلو چه دَ خپل پلار په بدله کښې به جذیمه ابرش قتل کوم.

چنانچه دَ واده وخت مقرر شو او جذیمه ابرش دَ خپلو خلقو سره دَ زبا طرف ته دَ واده زلمې جوړیدو سره روان شو. دَ جذیمه یو وزیر وو دَهغه نوم قصیر وو هغه ډیر هوښیار وو هغه ډیر کوشش اوکړو چه بادشاه سلامت دهوکه مه خوره. دَ مقتول دَ وارث دَ زړه نه کله هم دَ قاتل نه دَ انتقام جذبه نه شی ختمیدې. جذیمه وئیل چه دې ښځې پخپله دَ واده کولو اظهار کړې دې ته هسې په شك کښې پریوځی.

بهرحال جذیمه ابرش چه کله زبا ته اورسیدو او زبا هغه قابو کړونو هغه ئی ګرفتارکړو او ډیر په بې دردئ سره ئی هغه چت پورې زوړند کړو او په بدن کښې چړې غړولوسره قتل کړو اودَ خپل پلار قبر سره ئی دفن کړو په قبر ئی اولیکل چه ما دَ خپل پلار په بدله کښې دا بادشاه قتل کړې دې. بیا دَ جذیمه وزیر قصیر ډیرې لوئی حیلې کولوسره دَ زبا پورې رسائی حاصله کړه او په ډیره هوښیارئی سره ئی زبا قابو کړه مګر دَ هغې دَ قتل کولو نه مخکښې زبا زهر اوخوړل او وئی وئیل چه زه دَ خپله لاسه مړه کیږم دَ قصیر دَ لاسه نه دا

خان له یو اوږد داستان دې کوم چه ابن جوزي رحمه الله په لطائف ازکیاء کښې ذکر کړې دې او په لطائف علمیه کښې دا قصه په ډیر دلچسپ انداز کښې ذکر ده.

**د جذیمه ابرش د دوو ملګرو تعارف:** - اوس راشئ چه د جذیمه ابرش دوه ملګري څوك وو. داهم یو عجیبه اتفاق دې چه دجذیمه ابرش په دربار کښې د جذیمه دوو ملګرو په خپل مینځ کښې رونړه وو د یونوم مالك او د بل نوم عقیل وو. څلویښت کالو پورې دا دواړه رونړه د جذیمه په دربار کښې داسې یو ځائی پاتې کیدل چه د چا به خیال هم نه تیریدو چه دا دواړه به چرته جدا شي او عربو به د هغوی رفاقت د مثال په توګه پیش کولو لیکن یو وخت داسې هم راغلو چه هغوی دواړه د مرګ په وجه داسې جدا شو چه د چا به خیال هم نه تیریدو چه دا دواړه چرته یوځائی هم پاتې وو. تمیم بن نویره او حضرت عائشه رضي الله عنها دواړو د خپلو رونړو رفاقت او بیا جدائی هم په دې پس منظر کښې پیش کړه.

**قوله:** مَا دُفِنْتَ إِلَّا حَيْثُ مُتَّ:

**د مړي د منتقل کولو ممانعت:** - حضرت عائشه رضي الله عنها د دوو خبرو اظهاراوکړو اوخپل خواهش او تمنا ئې ښکاره کړه یو دا چه که چرې د رور د رفاقت په وخت زه هلته وې چرته چه ئې رور وفات شوې وو نوما به د مکې قبرستان کښې دفن کولو د پاره د منتقل کولو اجازت نه ورکولو ځکه چه مړي منتقل کول د شریعت خلاف دی او که چرې زه د رور د وفات نه پس د هغه زیارت کوم نو نن به زه د خپل رور په قبر باندې د زیارت کولو د پاره قبرستان ته نه راتلم ځکه چه د ښځو د پاره قبرستان ته تلل صحیح نه دی.

**[١٧١٩] په تدفین کښې د "سل" د طریقې ثبوت**

١٧١٩ - (١)[٢٦] [١] وَعَنْ أَبِي رَافِعٍ قَالَ: «سَلَّ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَعْدًا، [٢] وَرَشَّ عَلَى قَبْرِهِ مَاءً»، رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [١] او حضرت رافع رضي الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ حضرت سعد رضي الله عنه د سر د طرف څخه قبر ته خکته کړو [٢] او د هغه په قبر یي اوبه وشیندلي. (ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① سَلَّ: په مزه مزه راښکلو ته وائی. ② رَشَّ: اوبه ئې اوشیندلې،

**تسهیلات:**

**نوټ:** - ددې حدیث شرح په د بل حدیث په تسهیل کښې ذکر ده.

(١) اخرجه ابن ماجة في السنن کتاب الجنائز/باب ما جاء في إدخال المیت القبر(رقم-١٥٥١)

**[۱۷۲۰] دَ سر دَ طرفه دَ خاورې اچولو شروع کول**

۱۷۲۰-()[۲۷] [۱] «وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ: أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى عَلَى جَنَازَةٍ [۲] ثُمَّ أَتَى الْقَبْرَ فَحَثَى عَلَيْهِ مِنْ قِبَلِ رَأْسِهِ ثَلَاثًا». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ په يوې جنازې باندې مونځ اوکړو [۲] بیاد هغه قبرته راغلو اودسر دطرف څخه يې په قبر درې موټې خاوره واچوله. (ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① فَحَثَى: أَيْ: قَبَضَ التُّرَابَ وَرَمَاهُ: موټې ئې د خاورو نه ډک کړو او په قبر کښې واچولې.

**تسهيلات:**

**قوله:** فَحَثَى عَلَيْهِ مِنْ قِبَلِ رَأْسِهِ ثَلَاثًا:

**د تدفين په وخت په قبر درې لپې خاوره اچول:** - مسنون هم دادی چې د تدفين په وخت هر کس دې په دې قبر باندې درې لپې بناؤره واچوی.

**[۱۷۲۱] په قبر باندې د کيناستو يا ډډه وهلو ممانعت**

۱۷۲۱-()[۲۸] [۱] «وَعَنْ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ قَالَ: [۲] رَآنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُتَّكِئًا عَلَى قَبْرٍ فَقَالَ: [۳] "لَا تُؤْذِ صَاحِبَ هَذَا الْقَبْرِ، أَوْلَا تُؤْذِهِ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عمرو بن حزم ﷺ وايي [۲] چې رسول الله ﷺ زه د يو قبر سره په څنګ وهلو وليدم نو وي فرمايل [۳] چې ته دي قبر والا ته تکليف مه ورکوه يا دا يي وفرمايل چې ده ته تکليف مه ورکوه. (احمد)

[1] اخرجه ابن ماجة فى السنن كتاب الجنائز/باب ما جاء فى حثو التراب فى القبر(رقم-١٥٦٥)

[2] اخرجه البخارى فى كتاب الجنائز/باب قول النبى صلى الله عليه وسلم: «إنا بك لمحزونون» (رقم-١٣٠٣) ومسلم ١٥ - كتاب الفضائل/باب رحمته صلى الله عليه وسلم الصبيان والعيال وتواضعه وفضل ذلك (رقم-٦٢ - (٢٣١٥)) وابوداود فى السنن كتاب الجنائز/باب فى البكاء على الميت (رقم-٣١٢٦) واحمد فى المسند ٣/١٩٤

# [٧]بَابُ الْبُكَـــاءِ عَلَى الْمَيِّتِ]

## په مړی دَ ژړا بیان

**خلاصة الباب:-**

**فيه اربعون حديثاً مشتملة على عشرة مسائل:**

① حكم البكاء على الميت: ١، ٢، ٣، ٢٦، ٢٧.
② بحث عذاب الميت ببكاء أهله عليه: ٣، ١٩، ٢٠ ، ٢١، ٢٤، ٢٥.
③ النهي عن النياحة على الميت ومايقاربها: ٤، ٥، ۶، ٧، ١١، ١٩، ٢٢، ٢٣، ٢٩، ٣٠.
④ فضيلة الصبرعلى المصيبة: ٧، ١٢، ٣٧، ٣٨، ٤٠.
⑤عدم ضياع أجرموت الأولاد بالنياحة: ٨، ٩، ١٠، ١٤، ١٥ ،٣١، ٣٢، ٣٣، ٣٤، ٣٥، ٣۶،
⑥ بكاء المخلوقات على المؤمن: ١٣.
⑦ فضيلة التعزية : ١۶، ١٧.
⑧ الاطعام لأهل الميت: ١٨.
⑨ عدم فائدة الإقامة عند القبر: ٢٨.
⑩ فضيلة الاسترجاع عند المصيبة : ٣٨، ٣٩.

**تسهیلات:**

**ملحوظه:-**دَمړی خښول او قبرته کوزولو دکیفیت تول تفصیلات په هغه احادیثوکښې راغلی وو اوس وراندې په مړی باندې دَ ژړا او دعا بیان راځی.

قال الله تعالى ﴿ وَبَشِّرِ الصّٰبِرِيْنَ ۙ الَّذِيْنَ إِذَآ أَصَابَتْهُمْ مُّصِيْبَةٌ ۙ قَالُوْٓا إِنَّا لِلّٰهِ وَإِنَّآ إِلَيْهِ رٰجِعُوْنَ ۙ﴾ [سورة البقره الايه:١٥۶]

دَ یوخپلوان او رشته دار په مرګ، فراق، غم اوصدمه رسیدل یو فطری او طبعی أمردې. زړه او دماغو ته دغه صدمه رسیدوسره دَ سترګونه اوښکې بهیدل هم یوطبعی او غیراختیاری عمل دې دین اسلام چونکه کامل مکمل بلکه اکمل مذهب دې په دې وجه دې دَ انسانی ژوندون په هره شعبه کښې دَ انسان رهنمائی کړې ده. نودَ غم او خوشحالئی په هره موقع باندې په اسلام کښې قواعد اوضوابط موجودی دی.

**دچا په مرګ او ژړا کښې د اعتدال لار اختيارول:-**په دې سلسله کښې په دې باب کښې اسلام دَ چا دَ مرګ او ژړاپه سلسله کښې دَ اعتدال لاره خودلې ده. اسلام په طبعی جذباتوپه اظهارباندې پابندی نه ده لګولې لهذا دَ ژړا اجازت ئی ورکړې دې لیکن دَ اعتدال دَ حد نه په تیریدوباندې پابندی لګولې ده. یعنی دَ ژړا اوفریاد او چغو صورو اودَ خلې نه نامناسب خبرې ویستلوباندې پابندی لګولې ده. دَغم طبعی اثرات تردریوورځوپورې زیات وی په

دي وجه دَ دریوور څوپورې غمرازی کولو اجازت دې. دَ غمرازئی مطلب دا دې دَول سنګار به نه کوي او دَ خفګان په حالت اوسیدل دَ دریوور څونه زیات په یومړی باندې غمرازی کولو اجازت نشته. او ښځه به په خپل خاوندباندې څلور میاشتې اولس ورځوپورې دَغمرازئی اظهار کولې شي ځکه چه دَهغې خفګان ډیر زیات دې او دا ځکه چه دَهغې ټول کور وران شوې دې. دَ دریوور څونه زیات خفګان کولو دَ وجې نه اوښکې توېولو سره ژړل جائز دی. کله چه غم را یاد شي صرف ژړا منع نه ده په ژړا کښې شریعت دا اعتدال کیخودې دې چه وینا کول حرام دی چغې صورې وهل حرام دی او دَمړي بې ځایه قصیدې ویل او دَ تعریف بې ځایه پل ترل جائزنه دی.

**د تعزیت مسنونیت:** - دَ چا دَ خپلوانو په مرګ باندې دَهغه سره تعزیت کول مسنون دی. دَتعزیت مطلب دا دې چه په دغه خفګان کښې دَ مړي پسماندګانو ته دَ صبروثبات او د وقار تلقین اوکړې شي او دَ آخرت دَ اجر او ثواب تذکره اوکړې شي. حضورپاك دَ حضرت جعفر ﷺ حضرت زید ﷺ او عبدالله بن رواحه ﷺ په شهادت باندې په مسجدنبوی کښې ناست وو او صحابه کرام راغلي وو تعزیت ئې کړې وو لهذا په جمات کښې کیناستل زیات بهتر دی.

**د تعزیت موده او کلمات:** - دَتعزیت وخت صرف دریوور څوپورې دې دې نه زیات تعزیت کول مکروه دی. او که غم وهلي سړې دغه وخت کښې موجود نه وی نو چه کله ملاقات او شي هغه دې تعزیت اوکړي. دَمړي دَ دفن کولو نه پس تعزیت کول دَ دفن کولو نه وړاندې دَ تعزیت کولو نه بهتر دی. دَمړي والو کور ته خوراك ورلیګل هم دَ تعزیت یوه حصه ده. دَ تعزیت کولو په وخت دا الفاظ ادا کول پکار دی. "ان لله ما اخذوله ما اعطی وکل شئ عنده باجل مسمی، ان وانا الیه راجعون" دا الفاظ هم ویلې شي "عظم اجرك وغفر مصابك"

**د ایذا څخه مراد:** - ایذاء نه مراد دا دی چې قبر ته ډډه لګول او په قبر باندې کښیناستو باندې صاحب قبر خفه کیږي. ځکه چې دې سره حقارت لازمیږي.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[١٧٢٢] دَ بچي په وفات باندې دَ رسول الله ﷺ خفګان**

١٧٢٢ - (١) [١] [١] عَنْ أَنَسٍ قَالَ: «دَخَلْنَا مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى أَبِي سَيْفٍ الْقَيْنِ، [٢] وَكَانَ ظِئْرًا لِإِبْرَاهِيمَ، [٣] فَأَخَذَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِبْرَاهِيمَ فَقَبَّلَهُ وَشَمَّهُ، [٤] ثُمَّ دَخَلْنَا عَلَيْهِ بَعْدَ ذٰلِكَ [٥]

[١]) اخرجه البخاری فی کتاب الجنائز/باب قول النبی صلی الله علیه وسلم: «إنا بک لمحزونون» (رقم-١٣٠٣) ومسلم فی کتاب الفضائل/باب رحمته صلی الله علیه وسلم الصبیان والعیال وتواضعه وفضل ذلک (رقم-٦٢ - (٢٣١٥) وابوداود کتاب الجنائز،/باب فی البکاء علی المیت (رقم-٣١٢٦)

وَإِبْرَاهِيمُ يَجُودُ بِنَفْسِهِ، ٦ فَجَعَلَتْ عَيْنَا رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَذْرِفَانِ، ٧ فَقَالَ لَهُ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَوْفٍ، وَأَنْتَ يَا رَسُولَ اللهِ؟ ٨ فَقَالَ: يَا ابْنَ عَوْفٍ، إِنَّهَا رَحْمَةٌ، ثُمَّ أَتْبَعَهَا بِأُخْرَى، ٩ فَقَالَ: إِنَّ الْعَيْنَ تَدْمَعُ، وَالْقَلْبَ يَحْزَنُ، ١٠ وَلَا نَقُولُ إِلَّا مَا يَرْضٰى رَبُّنَا، ١١ وَإِنَّا بِفِرَاقِكَ يَا إِبْرَاهِيمُ لَمَحْزُونُونَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ حضرت انس ﷛ فرمايي چې يوه ورځ مونږ رسول الله ﷺ سره د ابو سيف لوهار كور ته ورغلو ٢ چې د حضور ﷺ د خوي حضرت ابراهيم ﷛ د دايي خاوند وو ٣ حضور ﷺ حضرت ابراهيم ﷛ په غيږ كښې اخستو سره ښكل كړو او بوي يې كړو (يعنى خپله خُله او پوزه يې د هغه په مخ داسې كيښودله څرنګه چې څوک خوشبو بويوي) ٤ د دې واقعې څخه څو ورځې وروسته مونږ بيا ابوسيف كره ورغلو، ٥ كوم وخت چې د ابراهيم ﷛ د زنكدن حالت وو ٦ دې ليدو سره د حضور ﷺ د سترګو مباركو څخه اوښكې وبهيدلې ٧ نوحضرت عبدالرحمٰن بن عوف ﷛ عرض اوكړو چې يا رسول الله ﷺ ته هم ژاړې؟ ٨ حضور ﷺ وفرمايل چې اې ابن عوف! د اوښكو بهيدل رحمت دې د دې څخه روسته بيا د حضور ﷺ د سترګو مباركو څخه اُوښكې اوبهيدلې ٩ حضور ﷺ ورته وفرمايل چې سترګې اُوښكې بهيوي او زړه غمجن دې ١٠ خو د دې باوجود زمونږ په ژبو هغه الفاظ دي چې په هغې سره زمونږ پروردګار راضي وي ١١ اې ابراهيمه مونږ ستا په جدايي سره بيشكه غمجن يو. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** - ① الْقَيْنِ: أي: الْحَدَّادِ: لوهار ته وائى. ② ظِئْرًا: اى أَنَّهُ كَانَ زَوْجَ مُرْضِعَةِ إِبْرَاهِيمَ، وَصَاحِبَ لَبَنِهَا: يعنى داد حضور ﷺ د خوي حضرت ابراهيم ﷛ د دايي خاوند وو. ③ فَقَبَّلَهُ: ښكل ئې كړو. ④ شَمَّهُ: بوئې ئې كړو (د ډيرمحبت په وجه ئې خپله پوزه مباركه دهغه په مخ داسې كيښودله لكه چه ګل بوئې كوى). ⑤ يَجُودُ: اى يَتَحَرَّكُ وَيَتَرَدَّدُ فِي الْفِرَاشِ لِكَوْنِهِ فِي النَّزْعِ: په بستره باندې رپيدلو زنكدن ئې وو، مركيدلو. ⑥ تَذْرِفَانِ: أي: تُسِيلَانِ دَمْعًا: د سترګونه ئې اوښكې بهيدلې.

**تسهيلات:**

**قوله: أَبِي سَيْفٍ:** دَ ابوسيف نوم براء وو اودَ هغه دَ بى بى نوم خوله ﷛ وو چه دَ حضرت ابراهيم ﷛ دائى وو.

**قوله: وَكَانَ ظِئْرًا لِإِبْرَاهِيمَ:**

حضرت ابراهيم ﷛ دَ ماريه قبطيه ﷛ دَ خيټې نه پيدا شوې وو دَ ١٦/١٧مياشتو په عمركښې هغه وفات شو.

**قوله: فَجَعَلَتْ عَيْنَا رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَذْرِفَانِ:**

**د سترګو څخه بې اختياره د اوښكو تللو حكم:** - حضرت عبدالرحمن بن عوف ﷛ خيال اوكړو چه مرګ خودَ الله تعالى دَ تقدير لاندې راځى. عام خلق خو په داسې موقعو باندې ژاړى ليكن دَ حضورپاك نه ژړا دَ هغوى ﷛ دَ اوچت شان دَ وجې نه اودكمال معرفت دَ وجې نه حضرت

عبدالرحمن رضي الله عنه پورته نور هم عجیبه اوګڼړل او وئی فرمائیل چه یارسول الله ﷺ تاسو هم ژاړئی؟ حضورپاك اوفرمائیل دا رحمت دې یعنی زماسترګې د بې صبرئی او ژړا فریاد نه لمدې نه دی بلکه د شفقت اورحمت نتیجه ده څکه چه کوم سړې په سینه کښې کانړې نه بلکه زړه او ځیګر لری نود شفقت او رحمت د وجې به د سترګونه اوښکې روانیږی. د دې فرمان نه پس د حضورپاك د سترګو مبارکونه نورې اوښکې پریوتلې او حضورپاك اوفرمائیل چه زه عمګین یم. په دې کښې حضورپاك ارشاد اوفرمائیلو چه په داسې موقعو باندې د چاد سترګونه اوښکې نه روانیږی هغه په حقیقت کښې په سینه کښې درزیدونکې زړه نه لری بلکه د کانړی یوه ټکړه په کښې وی. په داسې احوال کښې عمګین کیدل د اهل کمال په نیز د کامل کیدو نښه ده اوکه دزړه ټکړه د سترګو په وړاندې سا ورکوی اود سړی په مخ باندې تازګی او مسکا وی نودا دکمال نه بلکه د نقص اوزوال علامت دې.

**[١٧٢٣] د نمسی په وفات د رسول الله ﷺ دسترګو اوښکې بهیدل**

١٧٢٣-()[٢] [١] «وَعَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ قَالَ: [٢] أَرْسَلَتِ ابْنَةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَيْهِ [٣] إِنَّ ابْنًا لِي قُبِضَ فَأْتِنَا، [٤] فَأَرْسَلَ يُقْرِءُ السَّلَامَ وَيَقُولُ: [٥] إِنَّ لِلّٰهِ مَا أَخَذَ، وَلَهُ مَا أَعْطَى، [٦] وَكُلٌّ عِنْدَهُ بِأَجَلٍ مُسَمًّى، [٧] فَلْتَصْبِرْ وَلْتَحْتَسِبْ [٨] فَأَرْسَلَتْ إِلَيْهِ تُقْسِمُ عَلَيْهِ لَيَأْتِيَنَّهَا، [٩] فَقَامَ وَمَعَهُ سَعْدُ بْنُ عُبَادَةَ وَمُعَاذُ بْنُ جَبَلٍ وَأُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ وَزَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ، وَرِجَالٌ، [١٠] فَرُفِعَ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الصَّبِيُّ وَنَفْسُهُ تَتَقَعْقَعُ، [١١] فَفَاضَتْ عَيْنَاهُ، فَقَالَ سَعْدٌ: يَا رَسُولَ اللهِ، مَا هٰذَا؟ [١٢] فَقَالَ: هٰذِهِ رَحْمَةٌ جَعَلَهَا اللهُ فِي قُلُوبِ عِبَادِهِ، [١٣] فَإِنَّمَا يَرْحَمُ اللهُ مِنْ عِبَادِهِ الرُّحَمَاءَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] او حضرت اسامه بن زید رضي الله عنه فرمايي [٢] چې د نبي کريم ﷺ لور بي بي زينب رضي الله عنها حضور ﷺ ته د چا په ذريعه پيغام وليږلو [٣] چې زما د خوي ساه خيژي نو سمدستي ته ﷺ ماته تشريف راوړه [٤] حضور ﷺ په جواب کښې د سلام څخه روسته دا پيغام وليږلو [٥] چې کوم شي (يعنی اولاد وغيره) چې الله جل جلاله واخستو هغه هم د هغه وو او کوم شي چې هغه ورکړي دي هغه هم د هغه دي (نو دهغې په تلو ژړا او انګولا کول نه دي پکار څکه چې د هغه امانت وو چې هغه واپس واخستو) [٦] او د الله جل جلاله په نزد د هر شي يو وخت مقرر دي (يعني ستا د خوي ژوند د دومره ورځو د پاره ليکل شوي وو څومره ورځي چې هغه ژوندي وو) [٧] نو تاته صبرکول او د الله جل جلاله څخه د ثواب طلبګاره کيدل پکار دي [٨] بي بي زينب رضي الله عنها دوباره سړي وروليږلو او دا خل يي حضور ﷺ ته قسم وړاندي کړو چې ضرور تشريف راوړه [٩] نو حضور ﷺ پاڅيدو او حضرت سعد بن عباده رضي الله عنه، معاذ بن جبل رضي الله عنه، ابي بن کعب رضي الله عنه. زيد بن ثابت رضي الله عنه او په صحابه ؤ کښې څه نور خلق هم د

---

[١] اخرجه البخاري في كتاب الجنائز /باب قول النبي صلى الله عليه وسلم: «يعذب الميت ببعض بكاء أهله عليه» إذا كان النوح من سنته " (رقم-١٢٨٤) ومسلم في كتاب الجنائز /باب البكاء على الميت (رقم) ١١ - (٩٢٣) وابوداود في السنن

حضور ﷺ سره شو[١٠] کوم وخت چې حضور ﷺ لور ته وروړسیدو نو ورو کې د حضور ﷺ په غیږ کښې ورکړې شو چې د زنکدن په حالت کښې وو[١١] دا حالت لیدو سره د حضور ﷺ د سترګو مبارکو څخه اوښکې وبهیدې حضرت سعد رضي الله عنه اوویل چې یا رسول الله ﷺ دا څه دي؟[١٢] حضور ﷺ وفرمایل چې دا رحمت دي چې الله ﷻ د خپلو بنده ګانو په زړونو کښې پیدا کړې دې [١٣] «دا واورئ چه» الله تعالی ﷻ صرف په هغه خلقو باندې رحمت یعنی مهرباني کوي چې د رحم جذبه لرونکي وي. «بخاري»

**حل اللغات:-** ① قُبِضَ: أَيْ: قَرُبَ قَبْضُهُ وَمَوْتُهُ: یعنی نزدې ده چه ساه نې اوخیجی او مړشی. ② وَلْتَحْتَسِبْ: أَيْ: تَطْلُبِ الْأَجْرَ: یعنی ثواب غواړه، ③ تَتَقَعْقَعُ: أَيْ: تَضْطَرِبُ وَتَتَحَرَّكُ: یعنی ګډ وډ خوزیدو. زنکدن نې وو.

**تسهیلات: قوله:** ابْنَةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: حضرت زینب مراد ده چه دَحضورپاك مشره لور بی بی وه څوك چه دَ ابو العاص رضي الله عنه په زوجیت کښې وه هم دَ هغې دَ خوئی واقعه ده.

**قوله:** قُبِضَ: یعنی دَزنکدن په حالت کښې دې بس ساعت ګهړئی کښې مری لکه چه مړشوې دې. دا تاویل څکه ضروری دې چه دَ حضورپاك دَتشریف راوړلو پورې ماشوم ژوندې وو

**قوله:** تَتَقَعْقَعُ: دَ سا ورکولو په حالت کښې چه کله سا بې ربط او ښکته پورته کیږی او سلګئی شروع کیږی دغه حالت په دې لفظ کښې بیان کړې شوې دې.

**قوله:** تُقْسِمُ عَلَيْهِ: یعنی حضرت زینب رسول الله ﷺ ته قسم ورکولو چه تاسو ضرور راشئی. معلومه شوه چه غیرته قسم ورکول په عربو معاشره کښې وو او زمونږ په نیز هم شته سره دَدې چه دا قسم په غیر باندې لازم نه راځی

**[١٧٢٤] په مړی د غیر اختیاری ژړا جواز**

١٧٢٣-()[٣] [١] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ: [٢] «اشْتَكَى سَعْدُ بْنُ عُبَادَةَ شَكْوَى لَهُ [٣] فَأَتَاهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعُودُهُ مَعَ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ، وَسَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ، وَعَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ، [٤] فَلَمَّا دَخَلَ عَلَيْهِ وَجَدَهُ فِي غَاشِيَةٍ، [٥] فَقَالَ: قَدْ قَضَى. قَالُوا: لَا يَا رَسُولَ اللّٰهِ، [٦] فَبَكَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [٧] فَلَمَّا رَأَى الْقَوْمُ بُكَاءَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَكَوْا. [٨] فَقَالَ: أَلَا تَسْمَعُونَ أَنَّ اللّٰهَ لَا يُعَذِّبُ بِدَمْعِ الْعَيْنِ، [٩] وَلَا بِحُزْنِ الْقَلْبِ، [١٠] وَلٰكِنْ يُعَذِّبُ بِهٰذَا، وَأَشَارَ إِلَى لِسَانِهِ، [١١] أَوْ يَرْحَمُ، وَإِنَّ الْمَيِّتَ لَيُعَذَّبُ بِبُكَاءِ أَهْلِهِ عَلَيْهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه وایی [٢] چې حضرت سعد بن عباده رضي الله عنه ناروغه وو [٣] نو حضور ﷺ د هغه پوښتنې ته راغلو عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه، سعد بن ابي وقاص

() اخرجه البخاري في كتاب الجنائز/باب البكاء عند المريض (رقم-١٣٠٤) ومسلم في كتاب الجنائز/باب البكاء على الميت (رقم) ١٢ - (٩٢٤) وابوداود كتاب الجنائز/باب في البكاء على الميت (رقم-٣١٢٦) والنسائي كتاب الجنائز/الأمر بالاحتساب والصبر عند نزول المصيبة (رقم-١٨٦٨) واحمد في المسند ٥/٢٠٤

رضي الله عنه او عبد الله بن مسعود رضي الله عنه هم ورسره وو۴ هر کله چې حضور ﷺ هغه ته ورسيدو نو هغه يې د بيهوشي په حالت کښې وليدلو۵ حضور ﷺ پوښتنه وکړه چې آيا دې وفات شوي دي؟ صحابه ؤ عرض اوکړو چې يا رسول الله! ﷺ نه دي وفات شوي ۶ حضور ﷺ د سعد رضي الله عنه حالت ليدو سره په ژړا شو۷ نو صحابه ؤ چې حضور ﷺ په ژړا وليدلو نو هغوی هم په ژړا شول ۸ بيا حضور ﷺ وفرمايل چې په ښه شان واورئ چې الله تعالی جل جلاله عذاب نه ورکوي د سترګو په اُښکو بهيولو ۹ او دزړه په غمجن کيدو باندې ۱۰ حضور ﷺ د خپلې ژبې مبارکې طرف ته اشاره کولو سره وفرمايل چې البته الله تعالی جل جلاله د دې په وجه عذاب هم ورکوي ۱۱ او رحم هم کوي (يعني که د څه حادثې او مصيبت په وخت د ژبې څخه د ناشکرئ يا په بارګاه الوهيت کښې د بې ادبۍ څه الفاظ وځي يا وير کولو سره ژړا اوشي نو دا مستحق د عذاب دي او که په داسې موقع باندې ژبه په حمد او شکر کښې مشغوله وي او اناالله.... اوويل شي نو مستحق د رحمت او ثواب دي) او مړه ته د خپل کور والو د ژړا په وجه عذاب ورکول کيږي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① غَاشِيَةٍ: أَي شِدَّةٍ مِنَ الْمَرَضِ: د مرض د سختئ نه د بې هوشئ په حالت کښې وو. ② بَكَوْا: هغوی ټول هم په ژړا شو.

**تسهيلات: قوله : فَبَكَى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:**

**د حديث شان ورود:-** حضرت سعدبن عباده رضي الله عنه دَ انصاردَ يوې قبيلې سردار وو. دې چه کله يوځل بيمار شو نوحضورپاك دَهغه دَ تپوس دَپاره لاړو. دَ هغوی رضي الله عنه جليل القدر ملګرې حضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه عبدالله بن مسعود رضي الله عنه او حضرت سعد بن ابی وقاص رضي الله عنه هم رسول الله ﷺ سره وو. کوم وخت چه حضورپاك دَ هغه کورته اورسيدلو نو حضرت سعدبن عباده رضي الله عنه دَ بې هوشئ په عالم کښې وو. حضورپاك دکور والو نه تپوس اوکړو چه آيا دَدوی انتقال شوې هغوی اوخودل چه نه. بيا حضورپاك دَخپل ملګری په حالت اوژړل. دَ حضورپاك ژړا چه هلته موجودو خلقو اوليدله نو ټول په ژړا شو. حضورپاك مسئله خودلوسره اوفرمائيل چه صرف خفه کيدوسره يا اوښکې تويولوسره الله تعالی چاته سزا نه ورکوی البته په ژبه سره چغې صورې او ژړا فرياد کول او دَ جاهليت په وينا ګانو کولوسره عذاب ورکوی. بيا رسول الله ﷺ دا ضابطه بيان کړه چه "وان العبد يعذب ببكاء اهله عليه" يعنی چغې صورې او وينا کولوسره مړی ته عذاب ورکولې شی.

**دَسينې وهل او ګريوانونو شلولو حرمت :-**

رسول الله ﷺ دَدې ارشاد لاندې يوې ضابطې طرف ته اشاره فرمائيلې ده چه قابل دَ توضيح او تشريح ده.

**اعتراض:-** دلته دَحديث داحصه په ظاهره قرآن دَ يو آيت سره معارض معلوميږی. آيت

دادې دَ الله تعالى فرمان دې ﴿وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرٰى﴾ [سورت بني اسرائيل: ١٥] يعنې هرسړې دَ خپل فعل اوعمل ذمه وار دې. دَخپل فعل اوعمل بوج به په خپله اوچتوی. هیڅ یو سړې به دَ بل سړی دَا عمالو بوج نه اوچتوی. دَ آیت مفهوم او مضمون خودا دې چه په مړی باندې کله دَ بال بچ اوخپل خپلوان ژاړی نودَ هغوی دَ ژړا وبال به په مړی باندې نه راځی بلکه دَ هغوی دَ وبال ذمه وار پخپله ژړا کونکی دی. خو زیر بحث حدیث په واضحه توګه ښائی چه دَ مړی دَ پسماندګانو په ژړا سره مړی ته عذاب کیږی. په آیت اوحدیث کښې دا ښکاره تعارض دې دَ دې څه جواب دې؟

**جوابونه:** – دا حدیث چونکه په ډیرو طریقو سره ثابت دې او صحیح دې. لهذا علماؤ دَ آیت اوحدیث په مینځ کښې تعارض لرې کولوئی ډیر توجیهات فرمائیلی دی اوحدیث مؤل ګرځولوسره تاویلونه کړی دی.

① ام المؤمنین حضرت عائشه رضي الله عنها دا توجیه فرمائیلې چه دَدې حدیث تعلق یو خاص واقعې سره دې هغه دا چه یو ځل حضورپاك دَ یوې یهودی ښځې قبر سره تیرشو هلته خلق دَ هغې په قبر باندې ژړیدل نو حضورپاك ارشاد اوفرمائیلو چه په قبر کښې دې یهودی ښځې ته عذاب ورکړې کیږی اوخلق په دې باندې ژاړی یعنی خلق دا ښځه مرحومه ګڼړی حالانکه دکفر دَ وجې نه هغه ملعونه ده او په سخت عذاب کښې راګیره ده. په راتلونکی حدیث نمبر١٧٤٣ کښې دَ حضرت عائشه رضي الله عنها کلام موجود دې.

**دوارڅانوپه ژړده مړی ته د عذاب ملاویدو مسئله:**

دَ حضرت عائشه صدیقه رضي الله عنها خیال دادې چه حدیث په خپل ځائی باندې صحیح او ثابت دې دَ دې نه انکار نشته دې لیکن دَدې حدیث کوم مفهوم چه ابن عمر رضي الله عنهما خودلې دې هغه صحیح نه دې ځکه چه ابن عمر رضي الله عنهما یوه خاص واقعه دَ کلیې او ضابطې په توګه پیش کړه په کوم سره چه په حدیث او آیت کښې تعارض پیدا شو. په دې کښې دَ ابن عمر رضي الله عنهما نه خطاء شوې هغه دَ دروغو وئیلو اراده نه ده کړې صرف په مفهوم کښې دهغوی نه غلطی شوې لکه چه عائشه رضي الله عنها "ان المیت یعذب ببکاء اهله علیه" الفاظ دَ حضرت ابن عمر رضي الله عنهما دَ طرف نه ګڼړی.پوره بحث دَدې باب فصل ثالث حدیث نمبر١٧٤٢ په متن کښې ذکردې. شارحین حدیث فرمائی چه دَ حدیث دا الفاظ ځان له دَ حضرت ابن عمر نه نقل نه دی بلکه نور ډیرو صحابه کرامو نه هم دغه الفاظ نقل دی مثلاً په دې باب کښې راتلونکې حدیث ٢١ کښې حضرت عمر رضي الله عنه پخپله دا الفاظ نقل کوی ((اتبکی علی وقد قال رسول الله صلی الله علیه وسلم ان المیت لیعذب ببعض بکاء اهله علیه)) دا الفاظ دَعام ضابطې طرف ته اشاره کوی جزئی واقعه نه ده. دغه شان په زیر بحث حدیث کښې هم دَیوخاص واقعې طرف ته اشاره نه ده کړې شوې لهذا عامو صحابه کرامو او عامو شارحینو دَحضرت عائشه رضي الله عنها دا تاویل نه دې قبول

کړي. بهر حال دَحضرت عائشه ﷺ دَ توجیه خلاصه داده چه دَ حدیث تعلق یو یهودي ښځي سره دي چاته چه د کفر په وجه په قبر کښې عذاب کیدلو دَ اهل وعیال په وجه سره نه کیدلو. دغه شان ﴿وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِّزْرَ أُخْرٰى﴾ سره دَدې حدیث نه تعلق پاتې دې نه تعارض پاتې دې.

۞ بعضې علماؤ په دې حدیث کښې دا تاویل کړې دې چه دا عذاب به هغه وخت وي چه مړی ته په خپل ژوند کښې ښه معلومه ده چه په کور کښې دَماتم کولواو چغو صورو دستور او رواج دې دې نه باوجود هغه چپ پاتې شی او دَ ژړا نه کولوتاکید اونه کړی نودا هم دَدغه سړی خپل جرم اوخپله ګناه ده. لهذا آیت سره هیڅ تعارض نشته دې.

۞ مړي ته دَهغه دَ اهل وعیال په ژړا باندې عذاب کیږی چه کله مړې په خپل ژوند کښې پخپله دَدې وصیت اوکړی چه کله زه مړشم نو په ما باندې ښه اوژاړئی نودا پخپله دَمړی ګناه شوه لکه چه دَ جاهلیت په زمانه کښې خلقو وصیت کولو. طرفه بن العبد داسې وصیت کوی:

۞ دَدې عذاب نه هغه عذاب مراد دې چه په قبر کښې فرښتې مړی ته هغه وخت ورکوی کله چه لواحقین بې ځایه تعریفونه کوی اودَ مړی خوبیانې داسې بیانوی "واجبلاه" نوفرښتې په قبر کښې هغه مړې وهی چه اوښایه واقعی ته غروې لکه څنګه چه په حدیث نمبره۱۷۳کښې دَدې ذکر موجود دې.

**[١٧٢٥] دَ ځان وهلو حرمت**

١٧٢٥—( )[٣] [١] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ: "قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [٢] «لَيْسَ مِنَّا مَنْ ضَرَبَ الْخُدُوْدَ، [٣] وَشَقَّ الْجُيُوْبَ، [٤] وَدَعَا بِدَعْوَى الْجَاهِلِيَّةِ.» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] حضرت عبدالله ابن مسعود ﷺ راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] هغه سړي زمونږ په لاره د تلونکو څخه نه دي چې مخ او سر وهي [٣] ګریوان شلوي [۴] او د جاهلیت د ورځو په شان آواز اوچت کړي (یعني د ژړا په وخت د ژبي څخه داسې الفاظ او داسې آواز ونه اوباسي چې شرعاً ممنوع دي لکه ویر یا واویلا کول وغیره وغیره) (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① لَيْسَ مِنَّا: أَيْ: مِنْ أَهْلِ سُنَّتِنَا وَطَرِيقَتِنَا: یعنی زمونږ دمسلمانانو په طریقه باندې نه دي ② الْخُدُوْدَ: مخونه، ③ شَقَّ: څیرې کوی، شلوی، ④ الْجُيُوْبَ: ګریوانونه.

[١] اخرجه البخاری فی کتاب الجنائز/باب: لیس منا من شق الجیوب (رقم-١٢٩٤) ومسلم فی کتاب الإیمان/باب تحریم ضرب الخدود وشق الجیوب والدعاء بدعوی الجاهلیة (رقم-١٦٥ - (١٠٣) والترمذی کتاب الجنائز عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ ما جاء فی النهی عن ضرب الخدود، وشق الجیوب عند المصیبة (رقم-٩٩٩) وابن ماجة کتاب الجنائز/باب ما جاء فی النهی عن ضرب الخدود، وشق الجیوب (رقم-١٥٨٤) والنسائی کتاب الجنائز/ضرب الخدود (رقم-١٨٦٢)

**تسهيلات: قوله : لَيْسَ مِنَّا:**

**د مذکوره جملې تفسير :-** په کرتونولیکلې شوی دی چه "لیس منا" زمونږ نه نه دی مطلب دادې چه دا سړی په دې خاص شعبه کښې اوخاص فعل کښې زمونږ مسلمانانو په طریقه باندې نه دې بلکه په اسلام باندې قائم دې لیکن په دې مسئله کښې زمونږ نه نه دې. دَدې دا مطلب نه دې چه دَدې جرم په ارتکاب سره دا سړی کافر شو ځکه چه دَاهل سنت په نیزدَ یو کبیره ګناه په کولوسره سړی دَ اسلام نه نه خارج کیږی "خلافاًللخوارج والمعتزله" مخ وهل او سینه وهل اوویښته شوکول هم یوحکم دې داحرام دی.

اودَ جاهلیت نعره داده چه هغوی دَ اسلام خلاف اودَ اسلام دَ اصولوخلاف کلام اوکړی اوداسې چغې وهل شروع کړی چه دَجاهلیت په شان نعرې اولګوی او ویناګانې اوژړاګانې اوکړی که دا چا نه وی لیدلې نوهغه دې دَ شیعه اوشنیعه ماتمونه او جلوسونه اوګوری چه دیارلس سوو کالو پخوانو شهیدانوّ باندې ویناګانې کوی او په صحابه کرامو ﷺ باندې غشی وروی. داحدیث په دغه بدبختانوباندې سخت رد کوی.

**[١٧٢٦] په مړی باندې د چغې صورې وهلو ممانعت**

١٧٢٦-()[٥] ١ وَعَنْ أَبِي بُرْدَةَ قَالَ: ٢ «أُغْمِيَ عَلَى أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ ;٣ فَأَقْبَلَتِ امْرَأَتُهُ: أُمُّ عَبْدِ اللَّهِ تَصِيحُ بِرَنَّةٍ، ٤ ثُمَّ أَفَاقَ فَقَالَ: أَلَمْ تَعْلَمِي وَكَانَ يُحَدِّثُهَا: ٥ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: أَنَا بَرِيءٌ مِمَّنْ حَلَقَ، ٦ وَصَلَقَ، وَخَرَقَ»؟ مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ، وَلَفْظُهُ لِمُسْلِمٍ.

**ترجمه:** ١ او حضرت ابو برده رضي الله عنه وايي ٢ چې يو ځل حضرت ابو موسٰي رضي الله عنه بيهوشه شو ٣ نو د هغه ښځه اُم عبدالله په چغو چغو په ژړا شوه ٤ کوم وخت چې ابوموسٰي رضي الله عنه په هوش کښې راغې نو هغه اوويل چې آيا تاته معلومه نه ده [چې په چغو چغو ژړا څومره بده خبره ده رواي وايي چې] بيا ابوموسٰي رضي الله عنه هغې ته دا حديث بيان کړو چې ٥ رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې زه د هغه سړي يا ښځې څخه بيزاره يم چې د مصيبت او حادثې په وخت د سر ويښتان شوکوي ٦ اوپه چغو چغو ژاړي او خپلې کپړې شلوي، بخاري مسلم د حديث الفاظ د مسلم دي.

**حل اللغات:-** ① تَصِيحُ: په چغو چغو ئې ژړل. ② بِرَنَّةٍ: صَوْتٌ مَعَ الْبُكَاءِ فِيهِ تَرْجِيعٌ: په چغوچغو داسې ژړل چه وير پکښې کوی، په اوږده ساه باندې بيا بيا د ژړا آواز راوباسی. ③ أَفَاقَ: په هوش کښې راغې، ④ حَلَقَ: أَيْ: شَعْرَهُ: چه دمصيبت په وخت کښې ويښتان اوباسی. ⑤ صَلَقَ: أَيْ: رَفَعَ صَوْتَهُ بِالْبُكَاءِ: چه په ژړا کښې آواز راوباسی او تيز تيز ژاړی، يا دا معنٰی چه ځان وهی او ځان شوکوی (اى اللَّطْمُ

---

[1]) اخرجه البخارى فى كتاب الجنائز/باب ما ينهى من الحلق عند المصيبة (رقم-١٢٩٦) ومسلم فى كتاب الإيمان/باب تحريم ضرب الخدود وشق الجيوب والدعاء بدعوى الجاهلية (رقم) ١٦٧ - (١٠٤) والنسائى كتاب الجنائز/الحلق (رقم-١٨٦٣) وابن ماجة كتاب الجنائز/باب ما جاء فى النهى عن ضرب الخدود، وشق الجيوب(رقم-١٥٨٦)

وَالخَدْشُ)، ⑨ خَرَقَ: أَيْ: قَطَعَ ثَوْبَهُ بِالْمُصِيبَةِ: چه د مصيبت په وخت کښې جامې يا گريوان شلوی.

**تسهيلات: قوله: وَخَرَقَ:**

په دې حديث سره هم په شيعه شنيعه باندې زبردست رد کيږی.

**[۱۷۲۷] د جاهليت څلور خويونه په امت محمدی کښې**

١٧٢٧-()[٢] ١ وَعَنْ أَبِي مَالِكٍ الأَشْعَرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٢ "«أَرْبَعٌ فِي أُمَّتِي مِنْ أَمْرِ الجَاهِلِيَّةِ، لَا يَتْرُكُونَهُنَّ: ٣ الفَخْرُ فِي الأَحْسَابِ، ٤ وَالطَّعْنُ فِي الأَنْسَابِ، ٥ وَالِاسْتِسْقَاءُ بِالنُّجُومِ، ٦ وَالنِّيَاحَةُ. وَقَالَ: النَّائِحَةُ إِذَا لَمْ تَتُبْ قَبْلَ مَوْتِهَا ٧ تُقَامُ يَوْمَ القِيَامَةِ وَعَلَيْهَا سِرْبَالٌ مِنْ قَطِرَانٍ، ٨ وَدِرْعٌ مِنْ جَرَبٍ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ١ حضرت ابو مالک اشعري رضي الله عنه روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ د زمانهٔ جاهليت څلور خبري داسې دي چې زما د امت بعضې خلق به يې نه پريږدي ٣ ① په حسب باندې فخر کول ٤ ② په نسب باندې طعن کول ٥ ③ د ستورو په ذريعه اوبه (باران) غوښتل ٦ ④ نوحه يعنی وير کول او حضور ﷺ وفرمايل چې نوحه کونکي ښځي که د مرگ څخه مخکي توبه ونه وښکله ٧ نو هغه به دقيامت په ورځ په داسې حال کښې اودرول شي چې د هغې په بدن به د گوگړو پرتوگ وی ٨ او د خارښ قميص به وي. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① الْفَخْرُ: أَيْ: الإِفْتِخَارُ: فخر کول، ② الأَحْسَابِ: حسب هغه صفاتو ته وائی کوم چه په ده کښې يا دده په آبا او اجداد کښې وی لکه بهادری، فصاحت او بلاغت وغيره. ③ الطَّعْنُ: په نسب کښې عيب لگول، ④ الإِسْتِسْقَاءُ: أَيْ: طَلَبُ السُّقْيَا: باران غوښتل، ⑤ النِّيَاحَةُ: په مړی باندې دښځو په چغو ژړل او دمړی صفات بيانول، مثلا داسې وئيل: وَا وَيْلَاهُ وَا حَسْرَتَاهُ، وَا شُجَاعَاهُ، وَا أَسَدَاهُ وَا جَمَلَاهُ. ⑥ سِرْبَالٌ: أَيْ: قَمِيصٌ: کميص، ⑦ قَطِرَانٍ: د گوگړو، ⑧ دِرْعٌ: کميص، ⑨ جَرَبٍ: خارښ.

**تسهيلات: قوله: الفَخْرُ فِي الأَحْسَابِ:**

**داحساب او انساب وضاحت:** - حسب هغه خوصفاتوته وائی چه په يوانسان کښې موجودوی اودهغې دَ وجې نه هغه خپل ځان دَ نورونه غوره اوبهترگڼړی لکه فصاحت بلاغت او جرأت بهادرئی صفتونه دی. دلته دَحسب نه هم دغه صفات مراد دی. اگرچه حسب په اصل کښې دَ انسان دَمور طرف ته سلسله نسب ته وئيلی شی. لکه څنگه چه نسب دَ پلار طرف نه دَ نسب په سلسله کښې يادولې شی. په نسب باندې پيغور کولو مطلب دادې چه يوسړې دَبل سړی په پلار باندې داسې نکته چينی اوکړی چه دَهغه په خاندان او نسب کښې عيبونه اولټوی او په هغې کښې چخچې لټوی اودهغوی دَ پلار نيکه درجه په بده ويناکولوسره دکمولو کوشش کوی. اسلام دا دوه څيزونه په دې وجه منع کړل چه په دې سره خپله لوئی او

---

[1]) اخرجه مسلم فی کتاب الجنائز/باب التشديد فی النياحة (رقم)٢٩ - (٩٣٤) واحمد فی المسند ٣٤٢/٥

دَبل مسلمان سپکاوی کیږی. اوکه دکفرپه مقابله کښې یومسلمان دا ښه صفتونه بیانوی نو هغه جائزدی.

**قوله: وَالِاسْتِسْقَاءُ بِالنُّجُومِ:**

**د ستورو په واسطه د باران غوښتلو حکم:-** دَدې مطلب دادې چه باران الله تعالی کوی اویوسړې دَدې نسبت یوستوری ته کوی مثلاً وائی چه دا باران خو دَچیتر ستوری یا سهیل ستوری اوکړو یادَدې دَ راختلودَ وجې نه باران اوشو دادَ شرک حصه ده په دې وجه منع دې.

**قوله: وَالنِّيَاحَةُ:**

**د نیاحت مصداق:-** پخوانئی زمانه کښې دَغم په موقع به دَ بازار نه په کرایه باندې ژړاکونکې او نورخلق ژړونکې ښځې راوستلې شوې اوهغوی به دَ مړی بې ځایه صفتونه بیانول. پخپله به ئی ژړل او نور خلق به ئی هم ژړول. دوی به په مړی باندې ښه ژړاګانې اوویناګانې کولوسره ښه پیسې اخستلې. هم دَدغه ممانعت خبره په دې حدیث کښې ده. نن صباهم دَ نیاحه یعنی ویناګانو مختلف شکلونه موجود دی. بعضې وخت دَ تعزیت په جلسوکښې دَ نوحه پوره نظاره مخې ته راځی.

**قوله: قَطِرَانٍ:**

**دقطران وضاحت:-** یوه ونه ده چه دَهغې نوم ابهل دې دَهغې نه څه توره توره ماده راوځی چه ډیره بدبویه وی او په هغې کښې دَ ګرمئی حرارت وی اوهغه ډیرزر اور اخلی. دا ماده دَ دوائی په توګه دَ خارښ والاپه اوښانو مږلې شی په کوم سره چه خارښ سوزی اوسخت تکلیف کیږی. دادَ تارکولوپه شان یوڅیزدې دَ نرم تارکول په شان دې پښتوکښې دې ته رانزره وائی. دَدې ونې دکوهستان اوکشمیر په لړې لړې اوچتو ځنګلونوکښې وی اودَدې ونو لرګی دَ تیلو په شان سوزی.

دَ حدیث مطلب داشو چه دانوحه کونکی ښځې چرته توبه اونه کړی نودَ قیامت په ورځ به دې ته دَ قطران جامې اغوستلې شی. دَدې طریقه به داوی چه اول به دَهغې په بدن کښې سخت خارښ شروع شی بیابه دَ ده مادې نه جوړ شوې لباس وراغوستلې شی په کوم سره چه به دَدې بدن سوزیدوسره اور اخلی. "ولباسه من قطران وتغشي وجوههم النار".

**[١٧٢٨] صبر په اول د صدمې کښې**

١٧٢٨-(١) [٧] ① وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: ② «مَرَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِامْرَأَةٍ تَبْكِي عِنْدَ قَبْرٍ، ③ فَقَالَ: اتَّقِي اللّٰهَ وَاصْبِرِي. ④ قَالَتْ: إِلَيْكَ عَنِّي، فَإِنَّكَ لَمْ تُصَبْ بِمُصِيبَتِي، وَلَمْ تَعْرِفْهُ ⑤ فَقِيلَ لَهَا: إِنَّهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَتَتْ بَابَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. ⑥ فَلَمْ تَجِدْ عِنْدَهُ بَوَّابِينَ. فَقَالَتْ: لَمْ أَعْرِفْكَ، ⑦ فَقَالَ": إِنَّمَا

[١] اخرجه البخاری فی کتاب الجنائز/باب زیارة القبور (رقم-١٢٨٣) ومسلم فی کتاب الجنائز/باب فی الصبر علی المصیبة عند أول الصدمة (رقم) ١٥ - (٩٢٦) واحمد فی المسند ٣٤٢/٥

الصَّبْرُ عِنْدَ الصَّدْمَةِ الْأُولَى» "مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**[١] او حضرت انس ﷜ فرمايي[٢] چې يو ځل نبي كريم ﷺ د يوې ښځه په خوا كښې تير شو چې يو قبر ته نزدي په چغو چغو يي ژړل[٣] حضور ﷺ ورته وفرمايل چې د الله ﷻ د عذاب څخه ويريږه (يعني نوحه مه كوه ګينې په عذاب كښې به مبتلا شي) او صبر كوه [٤] هغه ښځي حضور ﷺ ونه پيژندلو (د حضور ﷺ ارشاد اوريدو سره) هغه اوويل چې زما څخه لرې شه (تاته زما د غم څه علم دي؟) څكه چې ته زما په شان په مصيبت كښې ګرفتار شوي نه يي (هركله چې حضور ﷺ هغې نه واپس شو)[٥] نو هغې ته اوويل شو چې دا نبي كريم ﷺ وو (بيا څه وو) هغه ښځه (په منډه) د حضور ﷺ دروازې ته حاضره شوه [٦] هغې په دروازه يو دربان يا پيره دار ونه موندلو (څرنګه چې د باشاهانو او اميرانو په دروازه دربان او پيره داران وي) بيا هغې رسول الله ﷺ ته عرض اوكړو چې زما نافرماني معاف كړه ما ته نه وي پيژندلي [٧] حضور ﷺ هغې ته وفرمايل صبر خو هغه وي چې د مصيبت په ابتدا كښې وي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① إِلَيْكَ: دا اسم فعل دې په معنى د اِبْعِدْ وَتَنَحَّ: لرې شه ، جدا شه. ② بَوَّابِيْنَ: دربان، پهره داران لكه څنګه چه د بادشاهانو او غټو خلقو په دروازو كښې ولاړ وي.

**تسهيلات: قوله** : إِنَّمَا الصَّبْرُ عِنْدَ الصَّدْمَةِ الْأُولَى:

**د صدمې د اول وخت صبر:-** دا څوك ښځه وه دَ مدهوشئي په حالت كښې دَ يوخپلوان په قبرباندې فرياد كولوسره ژړل. حضورپاك په هغه ځائې تيريدو نوهغې ته ئې نصيحت اوكړو دَ الله تعالى نه اوويريږه او دَ صبر نه كارواخله. هغې حضورپاك اونه پيژندلو نوونئ وئيل "اليك عنى" يعنى مانه لرې شه تاته دغه مصيبت نه دې رسيدلې كوم چه ماته رسيدلې دې. داجمله ډيره سخته وه ليكن هغې حضورپاك اونه پيژندلو. كله چه ورته معلومه شوه نو په منډه لاړه دَ حضورپاك كورته اومعافيانې ئې غوښتلې اوكيدې شى چه دا ئې هم اووئيل يا رسول الله ﷺ زه به اوس صبر كوم. حضورپاك اوفرمائيل دَ صبر اعتبار هغه وخت كيږى خوهرسړې كوى څكه چه په ژړا ژړا باندې ستړې شى نودَ صبر نه علاوه هغوى سره بل څه وى. دَ دغه پورتنو ټولو احاديثو نه معلومه شوه چه په اسلام كښې ويناګانې كول حرام دى. مسلمانانو اوخاص كر ښځو له پكار دى چه هغوى دَ شريعت خيال اوكړى دَ رشته دارو خيال اونه كړى.

[١٧٢٩] د درې نابالغه بچو مرګ د دوزخ د حراموالی سبب

١٧٢٩—(١)[٨] ١ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " ٢ «لَا يَمُوتُ لِمُسْلِمٍ ثَلَاثَةٌ مِنَ الْوَلَدِ ٣ فَيَلِجُ النَّارَ إِلَّا تَحِلَّةَ الْقَسَمِ» "مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ حضرت ابوهریره رضي الله عنه روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ٢ د کوم مسلمان چې درې واړه بچی مړه شي ٣ هغه به په دوزخ کښې نه داخلیږي هو د قسم پوره کولو د پاره به ځي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① فَيَلِجُ: ف په معنی د واؤ سره دې د جمع دپاره، او یلج په معنی د داخلیدو سره دې. ② تَحِلَّةَ الْقَسَمِ: دقسم پوره کیدو دپاره، (ددې نه مراد مقدار یسیر دې چه قسم پرې پوره شي).

**تسهیلات: قوله : إِلَّا تَحِلَّةَ الْقَسَمِ:**

**د تحلة القسم مطلب:** - یعنی دَ یومسلمان درې هلکان یا جینکئی دَ بلوغ نه مخکښې دَ دغه سړي په ژوند کښې مړې شی نو الله تعالی به دغه سړي ته جنت ورکوی او په هغه باندې بـه دَ دوزخ اور حرامیږی. اودَ قسم پوره کولودَپاره به دوزخ تـه ځی. دَدې جملې مطلب دادې چه الله تعالی قسم خوړلې دې چه دَ ټولو انسانانو په دوزخ باندې تیریدل لازم دی. ﴿وَإِنْ مِّنْكُمْ إِلَّا وَارِدُهَا ۚ كَانَ عَلَىٰ رَبِّكَ حَتْمًا مَّقْضِيًّا﴾ دَدې قسم پوره کولودَپاره بـه دوزخ تـه تلل وی. دَدې مطلب دادې چه په دوزخ باندې به یوپل کیخودې شی دکوم نوم چه پل صراط دې. په دې باندې به مؤمن اوکـافر تیریږی. مؤمن بـه تیر شـی اوکـافر بـه بـښکته اورکښې پریوځی دغـه شـان تیریدوسره به قسم پوره شی. "الاتحلة القسم" هم دغه مطلب دې.

[١٧٣٠] دَدوو بچوپه مرګ صبر د جنت د داخلیدو سبب

١٧٣٠—(٢)[٩] ١ وَعَنْهُ قَالَ: ٢ «قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِنِسْوَةٍ مِنَ الْأَنْصَارِ: ٣ لَا يَمُوتُ لِإِحْدَاكُنَّ ثَلَاثَةٌ مِنَ الْوَلَدِ فَتَحْتَسِبُهُ ٤ إِلَّا دَخَلَتِ الْجَنَّةَ ٥ فَقَالَتِ امْرَأَةٌ مِنْهُنَّ: أَوِ اثْنَانِ يَا رَسُولَ اللّٰهِ، قَالَ: أَوِ اثْنَانِ». ٦ رَوَاهُ مُسْلِمٌ. وَفِي رِوَايَةٍ لَهُمَا: ثَلَاثَةً لَمْ يَبْلُغُوا الْحِنْثَ.

---

(١) اخرجه البخاری فی کتاب الأیمان والنذور/ قول الله تعالی: {وأقسموا بالله جهد أیمانهم} [الأنعام: ١٠٩] (رقم-٦٦٥٦) ومسلم فی کتاب البر والصلة والآداب/باب فضل الإحسان إلی البنات (رقم) ١٥٠ - (٢٦٣٢) والترمذی کتاب الجنائز عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ ما جاء فی ثواب من قدم ولداً(رقم-١٠٦٠) والنسائی کتاب الجنائز/باب من یتوفی له ثلاثة (رقم-١٨٧٥) وابن ماجة کتاب الجنائز/باب ما جاء فی ثواب من أصیب بولده (رقم-١٦٠٣) ومالک فی الموطا کتاب الجنائز/باب الحسبة فی المصیبة (رقم-٣٨) واحمد فی المسند ٢/٢٣٩

(٢) اخرجه البخاری فی کتاب الجنائز/باب ما قیل فی أولاد المسلمین (رقم-١٣٨١) ومسلم فی کتاب البر والصلة والآداب/باب فضل من یموت له ولد فیحتسبه (رقم) ١٥١ - (٢٦٣٢) والترمذی فی السنن کتاب الجنائز عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ ما جاء فی الثناء الحسن علی المیت(رقم-١٠٥٩) والنسائی کتاب الجنائز/من یتوفی له ثلاثة (رقم-١٨٧٣) وابن ماجة کتاب الجنائز/باب ما جاء فی ثواب من أصیب بولده (رقم-١٦٠٤) ومالک فی الموطا کتاب الجنائز/باب الحسبة فی المصیبة (رقم-٣٩)

**ترجمه:** [١] حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایي [٢] چې رسول الله ﷺ څو انصارو ښځو ته وفرمایل [٣] په تاسو کښې چې د کومې ښځې هم درې واړه بچې مړه شي او هغه ښځه د ثواب طلبګاره وي [٤] نو هغه به په جنت کښې داخله کړل شي [٥] (دې آوریدو سره) په هغوئ کښې یوې ښځې عرض اوکړو چې دوه واړه بچې یې مړه شي؟ (یعني دا بشارت د دریو ورو سره مه خاص کوئ بلکه دا وفرمایه که درې مړه شي یا دوه مړه شي) نو حضور ﷺ وفرمایل چې هو که دوه واړه بچې یې مړه شي نو هم دا بشارت دې ورته، [٦] مسلم، د بخاري او د مسلم د دواړو په یو بل روایت کښې داسې دي چې حضور ﷺ دا هم وفرمایل چې داسې درې واړه بچې مړه شي چې د بلوغ حد ته نه وي رسیدلي (نو هغوئ ته دا بشارت دې).

**حل اللغات:-** ① تَحْتَسِبُهُ : د ثواب طلبګاره وی اوصبر کوی. ② الْحِنْثَ: بلوغ ته، یا داسې حد ته چه دهغوی ګناه لیکلې شي.

**تسهیلات: قوله : ثَلَاثَةٌ مِنَ الْوَلَدِ فَتَحْتَسِبُهُ:**

**د درې ماشومانو په مرګ صبر کولو د جنت زیری:-** په دې حدیث کښې دَ جنت دَ داخلیدو دَپاره دَ دریوبچو په ځائی دَ دوو ذکردې لیکن په دې حدیث کښې دوه شرطونه لګولې شوی دی. یوشرط دا چه هغه مور دَ ثواب نیت اوساتی او صبر اوکړی. دویم شرط داچه دا بچی بالغ نه وی بلکه نابالغ وی. دَدې دا وجه معلومیږی چه ښځو او مورپلار ته ورو ماشومانو بچوسره ډیره مینه وی اودَهغوی په مرګ باندې په طبعی توګه یوعجیبه قسم غم راځی. یعنی خفګان اوغم خو وی لیکن دَ بچی دَ وړوکوالی دَ وجې نه په طبعی توګه په ماشوم باندې ترس راځی چه مرګ په دغه معصوم بدن باندې څنګه پنجې ورخښې کړې اودا معصومه مرغئی څنګه راګیره کړه. دا تصورکول کیدیشی چه یوزیاتی غم وی په دې وجه دَ بالغ کیدونه دَ وړاندیوالی قید اولګولې شو. والله اعلم.

**[١٧٣١] دَ محبوب په مرګ د ثواب ملاویدل**

١٧٣١-(١)[١٠] [١] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] "«يَقُولُ اللهُ: مَا لِعَبْدِي الْمُؤْمِنِ عِنْدِي جَزَاءٌ [٣] إِذَا قَبَضْتُ صَفِيَّهُ مِنْ أَهْلِ الدُّنْيَا [٤] ثُمَّ احْتَسَبَهُ إِلَّا الْجَنَّةَ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [١] حضرت ابوهریره رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] الله تعالیٰ جل جلاله فرمایي ما سره د خپل مؤمن بنده دپاره بدله نشته [٣] هر کله چې زه د خپل یو بنده عزیز او محبوب چې د ده د دنیاوالو څخه وي اوچتوم [٤] او هغه بنده په دې د ثواب طلبګار وي (یعني صبر کوي) نو ما سره د هغه د پاره د جنت څخه بهتره بله څه جزاء نشته. (بخاري)

**حل اللغات:-** ① جَزَاءٌ : بدله، ثواب، ② صَفِيَّهُ : أَيْ: مُخْتَارَهُ وَمَحْبُوبَهُ: دهغه غوره او محبوب که هغه اولاد

[١] اخرجه البخاري في كتاب الرقاق/باب العمل الذي يبتغى به وجه الله (رقم-٦٤٢٤) والنسائي كتاب الجنائز/ثواب من صبر واحتسب(رقم-١٨٧١) واحمد في المسند ٢/٤١٧

کښې وی اوکه مور پلار وی یا بل څوک وی. ③ احْتَسَبَهُ: أَيْ: صَبَرَ عَلَيْهِ طَالِبًا لِلثَّوَابِ: دثواب طلبګار وی او صبر کوی.

**تسهیلات: قوله: إِلَّا الجَنَّةَ:**

**د صبر په بدله کښې جنت:** -مطلب دادې چې دیو کس په دنیا کښې څوك عزیز لکه اولاد، پلار، مور یا ددې نه علاوه څوك داسې وی چې د ده هغه سره محبت وو وفات شی او دې په هغې باندې صبر اوکړو نو ددې صبر په بدله کښې به الله ﷻ ده ته جنت ورکړی.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[١٧٣٢] ویر (په مړی ژړا) کول او اوریدل د لعنت موجب**

١٧٣٢-()[١١] ١ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الخُدْرِيِّ قَالَ: ٢ «لَعَنَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ النَّائِحَةَ، وَالْمُسْتَمِعَةَ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** ١ حضرت ابوسعید الخدري رضي الله عنه وايي ٢ چې رسول الله ﷺ په نوحه کونکې ښځې او نوحه اوریدنکې ښځې دواړو باندې لعنت فرمايلې دې. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① النَّائِحَةَ: نوحه کونکې ښځه، په مړی باندې په ویر سره ژړل او واویلا کول او دهغه صفتونه شمارلو ته نوحه وائی. ② الْمُسْتَمِعَةَ: نوحه کونکې ښځې ته به غور سره غوږ اینښودل.

**تسهیلات:**

**نوټ:** - ددې حدیث شرح په د بل حدیث په تسهیل کښې ذکر ده.

**[١٧٣٣] دصابر او شاکر مؤمن د هرې لمحې عظمت**

١٧٣٣-()[١٢] ١ وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٢ "«عَجَبٌ لِلْمُؤْمِنِ! إِنْ أَصَابَهُ خَيْرٌ حَمِدَ وَشَكَرَ، ٣ وَإِنْ أَصَابَتْهُ مُصِيبَةٌ حَمِدَ اللّٰهَ وَصَبَرَ، ٤ فَالْمُؤْمِنُ يُؤْجَرُ فِي كُلِّ أَمْرِهِ ٥ حَتَّى فِي اللُّقْمَةِ يَرْفَعُهَا إِلَى فِي امْرَأَتِهِ». رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ.

**ترجمه:** ١ حضرت سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ د مؤمن (کامل) حال عجیبه دې که هغه ته راحت او خیر رسي نو د الله تعالی جل جلاله حمد او د هغه شکر ادا کوي ٣ او که هغه ته مصیبت رسي نو بیا هم هغه د الله تعالی جل جلاله حمد کوي او د صبر لار اختیاروي ٤ نو مؤمن ته د هغه په هر کار کښې ثواب حاصلیږي ٥ تر دې چې هغه نمړئ [نواله] پورته کړی او د خپلې ښځې په خُله کښې یې واچوي په دې هم ورته ثواب حاصلیږي. (بیهقي)

---

[1]) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الجنائز، باب فی النوح (رقم-٣١٢٨) واحمد فی المسند ١٦٥/٣

[2]) اخرجه احمد فی المسند ١٨٢/١ والبیهقی فی شعب الایمان ١٨٩/٩

**حل اللغات:**- ① عَجَبٌ: ډیر عجیبه او ناشنا ، ② اللُّقْمَةِ: نمړئ، نواله، ③ فِي: دلته فی حرف جر نه دې بلکه اسمی مراد دې یعنی خُله.

**تسهیلات: قوله : عَجَبٌ لِلْمُؤْمِنِ:**

**دشکر گذار مؤمن فضیلت:**- په دې حدیث مبارك کښې د شاکر مؤمن ذکر دې چې په هر حال کښې دالله ﷻ شکر ادا کوی تر دې چې د خوراك په وخت کښې خپل حقوق کما حقه پورا کولو دپاره خپلې بی بی ته په خوله کښې نمړئی ورکوی په دې ورته هم ثواب ملاویږی

**دحدیث فوائد:**- ① ددې نه معلومه شوه چې ښه نیت په یو مباح کار سره ثواب حاصلیږی او عبادت جوړیږی هم په دې وجه د عالم خوب هم عبادت دې اوداشان د هیڅ یو مصیبت په وخت کښې د بې صبرئ مظاهره نه کوی بلکه مشکل حالت کښې هم زبان حال او قال سره شکر ادا کوی

② ددې مصیبت په وجه اجر عظیم ملاؤ شو او داسې کس د صبر د درې واړه قسمونو یعنی صبر عن الماصی صبر علی الاطاعت او صبر علی المصائب پابندی کوی

③ ددې نه دا هم معلومه شوه چې د حمداونعت په وخت کښې هم او د مصیبت په وخت کښې هم محمود دې داشان په دې حدیث مبارك کښې ئې شکر په صبر باندې مقدم کړې شوې دې او دې طرفته ئې اشاره کړې ده چې دالله ﷻ د طرفه نعمتونه زیات دی او تکلیفونه کم لهذا د شکر مواقع هم زیاتې دی ګنی صبر دشکر نه افضل دې

**[١٧٣٤] دمؤمن په مرګ د زمکې او آسمان ژړا کول**

١٧٣٤-()[١٣] ① وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " ② «مَا مِنْ مُؤْمِنٍ إِلَّا وَلَهُ بَابَانِ بَابٌ يَصْعَدُ مِنْهُ عَمَلُهُ» ③ وَبَابٌ يَنْزِلُ مِنْهُ رِزْقُهُ» ④ فَإِذَا مَاتَ بَكَيَا عَلَيْهِ، فَذَلِكَ قَوْلُهُ تَعَالَى: ⑤ ﴿فَمَا بَكَتْ عَلَيْهِمُ السَّمَاءُ وَالْأَرْضُ﴾ [الدخان:٢٩] » رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① حضرت انس رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② د هر مسلمان د پاره دوه دروازې دي یوه دروازه خو هغه ده چې د هغی څخه د هغه نیک اعمال پورته خیژي ③ او دویمه دروازه هغه ده چې د هغی څخه د هغه رزق راخکته کیږی ④ هر کله چې یو مؤمن مري نو د هغه د پاره دواړه دروازې ژاړي، دا خبره د الله تعالیٰ جل جلاله د دی ارشاد څخه معلومیږي ⑤ فَمَا بَكَتْ عَلَيْهِمُ السَّمَاءُ وَالْأَرْضُ یعنی د هغه کافرانو د پاره نه آسمان وژړل او نه زمکي وژړل. (ترمذي)

**حل اللغات:**- ① يَصْعَدُ: أَيْ: يَطْلُعُ وَيُرْفَعُ: یعنی بره خیجی. ② بَكَيَا: د تشنیې صیغه ده، دواړه دروازې ژاړی (دده په جدایئ باندې).

[1] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب تفسیر القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب: ومن سورة الدخان (رقم-٣٢٥٥)

**تسهیلات: قوله: فَإِذَا مَاتَ بَكَيَا عَلَيْهِ:**

**د مؤمن په مرګ د ځمکې او آسمان خفګان کول:-** مؤمن چه کله دَ اطاعت ژوند تیروی نودَ ځمکې نه دَهغه نیك اعمال دَ آسمان په یوه دروازه باندې پورته ځی او په دویمه دروازه سره دَهغه دَپاره دَ پورته نه رزق راکوزیږی. کله چه مؤمن مړ شی نودَ نیکو اعمالو سلسله بنده شی نودا دروازه هم بنده شی اودَ پورته نه دَ رزق راتللو سلسله هم بندیږی اوهغه دروازه هم بنده شی. چنانچه دَمؤمن په مرګ باندې دا دواړه دروازې ژړا کوی. بل طرف ته چه دَهغه مؤمن په ځمکه باندې کوم نیك اعمال کړی دی مونځونه ئی کړی تلاوتونه ئی کړی هغه ټول مقامات دَ ده په فراق کښې ژاړی. هم دغه مطلب دې دَ قرآن دَ آیت چه فرعون او دَ هغه دَ پارټئی په غرقیدو باندې نه آسمان دَ هغه دَپاره اوژړل او نه ځمکې اوژړل. معلومه شوه چه دَمؤمن دَپاره دا څیزونه ژاړی.

**[١٧٢٥] د ماشوم مرګ د آخرت ذخیره**

١٧٣٥-()[١٣] [١] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] «مَنْ كَانَ لَهُ فَرَطَانِ مِنْ أُمَّتِي أَدْخَلَهُ اللهُ بِهِمَا الْجَنَّةَ» [٣] فَقَالَتْ عَائِشَةُ: فَمَنْ كَانَ لَهُ فَرَطٌ مِنْ أُمَّتِكَ؟ [٤] قَالَ: وَمَنْ كَانَ لَهُ فَرَطٌ يَا مُوَفَّقَةُ [٥] فَقَالَتْ: فَمَنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ فَرَطٌ مِنْ أُمَّتِكَ؟ [٦] قَالَ فَأَنَا فَرَطُ أُمَّتِي، لَنْ يُصَابُوا بِمِثْلِي». [٧] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابن عباس رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] زما په اُمت کښې چې د کوم سړي دوه واړه بچی د بالغ کیدو څخه مخکې مړه شوي وي الله تعالی جل جلاله به هغه د هغه دوو وړو په وجه په جنت کښې داخل کړی [٣] (د دې په اوریدو سره) بي بي عایشې رضی الله عنها پوښتنه وکړه چې که ستا ﷺ په اُمت کښې د چا یو وړوکې مړ شوي وي؟ [٤] حضور ﷺ وفرمایل چې اې موفقه د کوم سړي چې یو وړوکې مړ شوي وي د هغه د پاره هم دغه بشارت دې [٥] بي بي عایشې رضی الله عنها بیا پوښتنه اوکړه چې بنه که ستا ﷺ په امت کښې د چا یو وړوکې هم نه وي مړ شوي نو د هغه د پاره څه بشارت دې؟ [٦] حضور ﷺ وفرمایل چې بیا زه خو د خپل اُمت امیرِ منزل (د کاروان امیر) یم ځکه چې زما امت به زما د وفات د مصیبت په شان د بل څه مصیبت سره نه وي مخ شوي، [٧] ترمذي دا روایت نقل کړي دي او ویلی یي دی چې دا حدیث غریب دي.

**حل اللغات:-** ① فَرَطَانِ : أَيْ: وَلَدَانِ لَمْ يَبْلُغَا أَوَانَ الْحُلُمِ: دوه ماشومان چه لا د بلوغ حد ته نه وی رسیدلي، دا د فرط تثنیه ده، فرط هغه سړی ته وائی چه دَ قافلې نه وړاندې لاړشی او منزل ته رسیږی او دَ قافلې دَ خوراك څښاك اودَ ځائی تیارې اودَ ډیرې اچولو انتظام کوی. ② يَامُوَفَّقَةُ: اې

---

[١] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الجنائز عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ ما جاء فی ثواب من قدم ولداً(رقم-١٠٦٢) واحمد فی المسند ٣٣٤/١

توفیق ورکړې شوې. ③لَنْ يُصَابُوا: چه نه به وی رسیدلې څه مصیبت زما امت ته،

**تسهیلات: قوله: مَنْ كَانَ لَهُ فَرَطَانِ:**

**د فرط د لفظ وضاحت:-** په دې حدیث کښې دَ فرط نه مراد هغه نابالغ ماشوم دې چه دَ بلوغ نه مخکښې وفات شی. ده ته فرط ځکه اوونیلې شو چه هغه دَ مورپلار نه وړاندې لاړشی اودَهغوی دَپاره په جنت کښې ځائی جوړوی اودَ جنت دَ نعمتونو په تیارئی کښې لګیا کیږی. په میدان محشر اوعالم برزخ کښې هم ممکن او ضروری انتظامات کوی اودَ مور پلار شفاعت کولوسره هغوی جنت ته بوځی لکه چه وړاندې حدیث راځی چه دَماشوم دَ جنازې په مونځ کښې دا لفظ هم دغه شان موجود دې. "اللهم اجعله لنا فرطا واجعله لنا اجرا وذخرا واجعله لنا شافعا ومشفعا"

**قوله: يَامُوَفَّقَةُ:**

**د عائشې په تپوس عظیم لقب ملاویدل:-** حضرت عائشه رضی الله عنها تپوس اوکړو چه که دَ دوو بچو په ځائی دَ چا یو بچې مړشی نوآیا دا فضیلت به هغه ته هم حاصل وی. حضورپاك دَ حضرت عائشې رضی الله عنها سوال دَ سوچ اوپوهې خبره اوګنړله او عائشې صدیقې رضی الله عنها ته ئی یوعظیم لقب ورکړو چه دَ ټولو کمالاتو او ټولو خوبیانو مجموعه ده. او هغه لقب یاموفقه خطاب دې یعنی اې هغه ښځې چاته چه الله تعالی هره ښیګړه هر هوښیارتوب او هرکمال ورکړې دې او هغه ته ئی دَدې ځیزونو دَ کولوتوفیق ورکړې دې اوهغې ته ئی لارخودنه کړې ده لکه چه دَ هغې هره فیصلې سره دَ الله تعالی شامل حال دې.

**که د چا فرط نه وی:-** حضرت عائشه رضی الله عنها دَدې نه هم وړاندې یوسوال اوکړو چه دَ کومو خلقو یو بچې هم نه وی مړ شوې دَهغوی دَپاره خو به فرط نه وی هغوی به څه کوی. چونکه پخپله هم دَعائشه رضی الله عنها اولاد نه وو په دې وجه دا سوال دَ نورو سره سره دَخپل ځان دَپاره هم وو. په دې وجه حضورپاك اوفرمائیل دَ چا چه څوك فرط نه وی نوهم زه دَ هغه فرط یم ځکه چه زما دَ وفات صدمه زما دَامت دَپاره داسې صدمه ده دکوم چه هیڅ مثال نشته دې.

**[١٧٣٦] داولاد په وفات د صبر اوشکر ثواب**

١٧٣٦-(‌)[١٥][١] وَعَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢]«إِذَا مَاتَ وَلَدُ الْعَبْدِ قَالَ اللَّهُ تَعَالَى لِمَلَائِكَتِهِ: [٣] قَبَضْتُمْ وَلَدَ عَبْدِي، فَيَقُولُونَ: نَعَمْ. [٤] فَيَقُولُ: قَبَضْتُمْ ثَمَرَةَ فُؤَادِهِ. فَيَقُولُونَ: نَعَمْ. [٥] فَيَقُولُ: مَاذَا قَالَ عَبْدِي؟ فَيَقُولُونَ: حَمِدَكَ وَاسْتَرْجَعَ. [٦] فَيَقُولُ اللَّهُ: ابْنُوا لِعَبْدِي بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ، [٧] وَسَمُّوهُ بَيْتَ الْحَمْدِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ.

[١] اخرجه الترمذی فی السنن كتاب الجنائز عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ فضل المصيبة إذا احتسب (رقم-١٠٢١) واحمد فی المسند ٤/٤١٥

**ترجمه:** [۱] حضرت ابو موسی اشعري رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] هر کله چې د يو مؤمن بنده وړوکې مړ شي نو الله تعالی جل جلاله خپلو فرشتو (يعني ملک الموت او د هغه معاون فرشتو) ته وايي [۳] چې تاسو زما د بنده د وړوکي روح قبض کړو؟ هغوی وائي چې هو [۴] الله تعالی جل جلاله فرمايي تاسو د هغه د زړه ميوه وشکوله هغوی عرض کوي چې هو [۵] بيا الله تعالی جل جلاله هغوی ته فرمايي په دي حادثه زما بنده څه وويل. هغوی عرض کوي چه هغه ستا تعريف اوکړو او انا لله وانااليه راجعون يي اوويل [۶] د دې څخه روسته الله تعالی جل جلاله فرمايي چې زما د بنده د پاره په جنت کښې يو لوي کور جوړ کړئ [۷] او د هغې نوم بيت الحمد کيږدي. (احمدترمذي)

**حل اللغات:** - ① قَبَضْتُمْ: أَيْ: رُوحَهُ: يعنی تاسو قبض کړو روح، ② ثَمَرَةَ فُؤَادِهِ: د زړهٔ ميوه. ③ اسْتَرْجَعَ: يعنی انا لله ئې اوونيلې. ④ ابْنُوا: جوړ کړئ.

**د راوي مختصر تعارف:** نوم ئې عبدالله، کنيت ئې ابوموسی د پلار نوم ئې قيس دې او د مور نوم ئې طيبه وو دې د يمن اوسيدونکې وو د دوی خاندان د اشعر قبيلې سره تعلق ساتلو په دې وجه دوی په اشعری سره مشهور شو

ابوموسی اشعری رضي الله عنه چه اسلام قبول کړو نو خپل خاندان ته واپس لاړلو د خپل قوم باثر سردار وو د دوی په دعوت سره د دوی د خاندان تقريبا پنځوسو کسانو ايمان راوړلو حضرت ابوموسی اشعری رضي الله عنه دغه کسان خان سره مدينې ته راوستل په دغه وخت کښې حضرت جعفرطيار رضي الله عنه هم راغلې وو په دغه وخت کښې نبی کريم ﷺ د خيبر د فتحې نه واپس تشريف راوړلو نبی کريم ﷺ خلقو ته چه کوم مال غنيمت ورکولو په هغې کښې ئې د حضرت ابوموسی اشعری رضي الله عنه او د دوی ملګرو ته هم حصه ورکړه بيا په ورستو غزاګانو کښې دنبی کريم ﷺ سره شريک شوې وو

حضرت عمر رضي الله عنه دوی د بصې والې جوړ کړې وو بيا په ۳۴ هجرئ کښې دکوفې امير مقررشو حضرت ابوموسی اشعری رضي الله عنه په هغه اووه خوش قسمته کسانو کښې دې چاته چه د نبی کريم ﷺ په زمانه کښې د فتوی ورکولو اجازت ملاو شوې وو [۱]

**د اوچتو صفاتو مالک:** -ددوی خصوصی صفات د سنتو تابعداری، تقوی، خدمت د رسول الله، شرم او حيا ، سادګی او د امت مسلمه خيرخواهی وه دحضرت ابوموسی اشعری رضي الله عنه د قرآن پاک سره هم [۱] خصوصي شغف وو قرآن کريم به ئې ډير په خوش آوازئ سره لوستلو يو ځل نبی کريم ﷺ د دوی قرآن واوريدلو نو وې فرمائيل دوی ته د داود عليه السلام د آواز څه حصه

[۱] تذكرة الحفاظ (۲۱)_(۲) طبقات ابن سعد (۸۰۱۴)_ (۳) طبقات ابن سعد (۸۰۱۴)_ (۴)رواه البخاري في الفتن باب اذا التقى المسلمان بسيفهما رقم ۶۵۵۶ وفى الايمان والديات ومسلم فى الفتن باب اذا توجه المسلمان بسيفهما ۵۱۳۹ وكذا نس فى تحريم الدم رقم ۴۰۵۴ ,وابوفي الفتن رقم ۳۷۳۳ ,وجه في الفتن رقم ۳۹۵۵, واحمد, اول مسند البصريين رقم ۱۹۵۲۸).

ملاؤ شوي ده (۲)

**د قرآن پاک د تلاوت اثر:** - يو ځل ئې په مسجد کښې په اوچت آواز سره د ماسخوتن مونځ کولو ازواج مطهرات دخپلو حجرو سره نزدې ولاړې وې او د دوی قرآن ئې اوریدلو کله چه صبا دوی ته د دې خبر اوشو نو وې فرمائیل که ماته معلومه وې نو دوی به مې د قرآن نور مشتاقانې جوړې کړې وې (۲)

**حديثو سره تعلق:** - قرآن پاک سره سره ئې د احاديثو سره هم خصوصي تعلق وو د دوی د مرویاتو شمار ۳۲۰ دې په دې کښې ۵۰ په بخاری او مسلم دواړو کښې دی ۴ کښې بخاری کښې او ۴۵ مسلم کښې منفرد دې د صحيح قول مطابق په مکه کښې په ۴۲، ۴۴، یا په ۵۲، هجری کښې بیمارشو.او وفات شو د وفات په وخت کښې ئې عمر ۷۱ وو.

**تسهيلات: قوله:** وَسَمُّوهُ بَيْتَ الْحَمْدِ:

**په جنت کښې د بيت الحمد کور جوړيدل:** - یعنی چه کله دَ چا بچې مړ شی نوالله تعالی دَ فرشتو نه سوال او جواب کولونه پس ارشاد فرمائی چه هغه سړی دَ خپل ځيګرد ټکړې په مرګ باندې زما حمد اوتعریف کړې دې او صبرئی کړې دې په دې وجه دَهغوی دَپاره په جنت کښې یومحل تیارکړئی اودَ هغې نوم "بيت الحمد" کيږدئی. دَ بچی په وفات باندې دې سړی چه دَالله تعالی کوم تعریف کړې دې دَ هغه حمد بدله هغه ته "بيت الحمد" په صورت کښې ملاؤ شوه.

**[۱۷۳۷] مصيبت زده ته تسلی ورکول**

۱۷۳۷-( )[۱۲] [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «مَنْ عَزَّى مُصَابًا فَلَهُ مِثْلُ أَجْرِهِ» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، [۳] وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ مَرْفُوعًا إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عَلِيِّ بْنِ عَاصِمٍ الرَّاوِي، [۴] وَقَالَ: وَرَوَاهُ بَعْضُهُمْ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سُوقَةَ بِهَذَا الْإِسْنَادِ مَوْقُوفًا.

**ترجمه:** [۱] حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] څوک چې یو مصيبت ځپلی ته تسلي ورکوي نو هغه ته هم د مصيبت ځپلی په قدر ثواب ورکول کيږي. (ترمذي ابن ماجه) [۳] امام ترمذي رحمه الله فرمايي چې دا حديث غريب دي مونږ دا روايت د علي بن عاصم څخه علاوه د بل چا په ذريعه مرفوع نه دي موندلي [۴] امام ترمذي رحمه الله دا هم فرمايي چې بعضې محدثين دا روايت د محمد ابن سوقه څخه په دې سند سره په ابن مسعود ﷺ باندې موقوف نقل کړي دي.

**حل اللغات:** - ① عَزَّى: دَ باب تفعيل نه تعزيت، دَ صبر تلقين او مصيبت وهلی ته دَتسلی ورکولو په معنی کښې دی. ② مُصَابًا: مصيبت وهلی چاته چه مصيبت رسيدلی وی.

(۱) اخرجه الترمذي في السنن كتاب الجنائز عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما جاء في أجر من عزى مصابًا(رقم-۱۰۷۳) وابن ما جة كتاب الجنائز /باب ما جاء في ثواب من عزى مصابًا(رقم-۱۶۰۲)

**تسهیلات: قوله :مَنْ عَزَّى مُصَابًا فَلَهُ مِثْلُ أَجْرِهِ:**

**دحدیث مطلب:-** دَحدیث مطلب دادي چه که چرې څوك سړې دَ یومصیبت وهلی سړی تعزیت کوی مثلاً دَ یوداسې سړی تسلی کوی دَ چا دَ خپلوانونه چه څوك مړشوې وی، هغه ته تسلی ورکوی دَهغه حوصله زیاتوی او هغه ته په عزت سره پاتې کیدو اودَ سکون او استقامت درس ورکوی اوهغه سړې دَ ده نصیحت قبلولوسره په آرام کیږی هغه ته دَصبر حوصله ملاویږی اودَ هغه یقین جوړیږی نودغه تعزیت کونکی ته دَ دغه مصیبت وهلی برابر ثواب ملاویږی ځکه چه هغه دَ ده لارخودنه اوکړه نو "الدال علی الخیرکفاعله" دَ ارشاد مطابق هغه ته دَ دغه مصیبت وهلی سړی په شان ثواب ورکولې شی.

**[١٧٣٨] مصیبت زده ښځې ته تسلی ورکول**

١٧٣٨-()[١٧] [١] وَعَنْ أَبِي بَرْزَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ" [٢] «مَنْ عَزَّى ثَكْلَى [٣] كُسِيَ بُرْدًا مِنَ الْجَنَّةِ» ". [٤] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ: وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [١] حضرت ابو برزه ﷺ روایت کوی چې رسول الله ﷺ وفرمایل[٢] کوم سړي چې هغه ښځي ته تسلي ورکړي چې د هغه وړوکې مړ شوي وي [٣] نو هغه ته به په جنت کښې اعلي لباس ورواچول شي،[٤] امام ترمذي دا روایت نقل کړي دي او ویلې یې دی چې دا حدیث غریب دي.

**حل اللغات:-** ① عَزَّي: تسلی ورکړی، ② ثَكْلَى : هي فُقْدَانُ الْوَلَدِ: دکومې ښځې خوې چه ورک شوې وی یا مړشوې وی. ③ كُسِيَ : دمجهول صیغه ده، أيْ: أُلْبِسَ: یعنی وابه غوستولې شی. ④ بُرْدًا: أيْ: أُلْبِسَ ثَوْبًا عَظِيمًا: د عظمت جامې (دې نه معلومه شوه چه جنت ته به ځی).

**دراوي مختصر تعارف:-**

**نوم:** ددوی نوم نضله او کنیت ئې ابوبرزه دې. داسلام شروع کښې ئې اسلام قبول کړې وو. ټولو غزواتو کښې شریک شوې وو. (طبقات ابن سعد) دوی خود نبی کریم ﷺ په حیات مبارک کښې په مدینه منوره کښې وو. خو دحضرت عمر فاروق ﷺ په زمانه کښې بصری ته لاړل. د صفین جنګ کښې حضرت علی کرم الله وجهه سره وو. نهروان کښې ئې د خارجیانو سره مقابله اوکړه. بیا ئې دخراسان فتوحاتو کښې هم خپله څوانمردی اوخودله. دوی مسکینانو سره ډیر محبت ساتلو. دوی سره یو غټ لوښې وو اوهغې کښې به سحر ماښام کونډورنډو، یتیمانو او مسکینانو خوراک کولو. (طبقات ابن سعد) -

**مرویات:** دوی نه مرویاتو کښې اختلاف دې. څینی وائی چه ٢۴ دی.

**وفات:** د وفات نیټه کښې ئې هم اختلاف دې، څینی ٦٠ هجری ښائی او څینی ٦٥ هجری ښائی، دویم روایت زیات اصح دې. (اصابه)

[١] ) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الجنائز عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ باب آخر فی فضل التعزیة(رقم-١٠٧٦)

دنورو حالاتو دپاره اوګورئی تهذیب التهذیب ۱۰/۴۴۲، طبقات ابن سعد ۱/۴، اصابه تذکره نضله، تهذیب الکمال: ۴۰۲.

**تسهیلات: قوله: كُسِيَ بُرْدًا مِنَ الْجَنَّةِ:**

یعنی جنت کښې به دغه تعزیت کونکی ته یوناشنا څادر اغوستلې شی دا څادر به خپل خائی ښه دې لیکن په دې حدیث کښې دا لویه خوشخبری ده چه هغه سړې دَ جنت مستحق جوړشو او په جنت کښې به هغه ته څادر اغوستلې شی.

**[۱۷۲۹] دَمړی کورته د خوراک ورلیږلو حکم**

۱۷۲۹–()[۱۸] [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ جَعْفَرٍ قَالَ: [۲] «لَمَّا جَاءَ نَعْيُ جَعْفَرٍ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[۳] اصْنَعُوا لِآلِ جَعْفَرٍ طَعَامًا، [۴] فَقَدْ أَتَاهُمْ مَا يَشْغَلُهُمْ» "رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُودَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عبدالله بن جعفر ﷺ وایي [۲] کوم وخت چې د حضرت جعفر ﷺ د وفات (شهادت) خبر راغې نو رسول الله ﷺ [اهل بیت ته] وفرمایل [۳] چې د جعفر د اهل وعیال دپاره طعام (روټۍ وغیره) تیار کړئ [۴] ځکه چې هغوئ ته داسې حادثه پیښه شوې ده چې هغوی یې د طعام پخولو څخه مشغول کړي دی. (ترمذي ابوداؤد ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① نَعْيُ: أَيْ: خَبَرُ مَوْتِهِ: دمرګ خبر ته وائی. ② اصْنَعُوا: خوراك تیار کړئ، ③ مَا يَشْغَلُهُمْ: ای جَاءَهُمْ مَا يَمْنَعُهُمْ مِنَ الْحُزْنِ عَنْ تَهْيِئَةِ الطَّعَامِ لِأَنْفُسِهِمْ: یعنی هغوی باندې داسې غم راغلې دې چه هغوی نې دخوراک څښاک تیارولو نه هم منع کړی دی.

**تسهیلات:**

**قوله: اصْنَعُوا لِآلِ جَعْفَرٍ طَعَامًا:**

**دمړی کور دپاره د خوراک انتظام کول:** - دې حدیث سره امت ته دا تعلیم ملاؤ شو چه کله په کور کښې مړې اوشی نودَ خواؤشا مسلمانانودَپاره مستحب دی چه دَهغوی کورته خوراك تیارولوسره اولیګی. بعضې علماء وائی چه کم نه کم دومره خوراك دې وراولیګی چه دَ کور دَ خلقو دَپاره دَ یووخت دَپاره ښه پوره ښی. بعضې حضرات فرمائی دریوورځو دَپاره یو شان دا خوراك لیګل مستحب دی ځکه چه دَتعزیت درې ورځې وی.

**دَ تعزیت خوراک په خوړلو کښې مذاهب:-**

دَ علماء کرام په دې سلسله کښې ډیر اختلاف دې اوډیر ګڼر اختلافی اقوال دی چه کوم خوراك دَ محلې دَ خپلو خپلوانو دَ طرف نه دَماتم والاکورته راځی نودَ دغه کوردَ کسانونه علاوه نور خلق دا خوړلې شی که نه؟ ① بعضې علماء دَ عدم جواز قائل دی

[۱]) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الجنائز، باب صنعة الطعام لأهل الميت(رقم-۳۱۳۲) والترمذی کتاب الجنائز عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما جاء في الطعام يصنع لأهل الميت(رقم-۹۹۸)وابن ماجة کتاب الجنائز /باب ما جاء فی الطعام يبعث إلى أهل الميت(رقم-۱۶۱۰)

④ بعضې علماء فرمائي چه تجهيز اوتكفين كښې مشغول خلق هم دا خوراك كولې شي. دَ وينا كونكوښځودَ پاره دَمړي په كوركښې خوراك تيارول اوبيا دَخلقو هلته جمع كيدل او خوراك كول بدعت او مكروه دي. دَ اهل الله دا جمله ده "طعام الميت يميت القلب"
حضرت جابر رضي الله عنه فرمائي مونږ دا ميلمستيا لكه دَ نوحه او وينا په شان حرام ګڼړله.

**بغير د مجبورۍ څخه د مړي كره خوراک كولو حرمت:-** دَدې نه معلومه شوه چه د پاكستان په بعضې مقاماتوكښې مړي سره كوم ديګونه پخولې شي اودَ خواږشا خلق بغيردَ سختې مجبورتي نه راشي دا خوراك كوي اودَ هغې نوم "شومه" ايږدي دا حرام دې. ملاعلي قاري رحمه الله فرمائي كه دَمړي په كوركښې يتيمانان ماشومان وي يا څوك وارث غائب وي نو په داسې صورت كښې خوراك پخپله خوړل او يا په نورو خوړل دواړه ناجائز دي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[١٧٤٠] مړي ته په ژړا كولو عذاب ملاويدل**

١٧٤٠-(١)[١٩] ١ عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: ٢ " «مَنْ نِيحَ عَلَيْهِ فَإِنَّهُ يُعَذَّبُ بِمَا نِيحَ عَلَيْهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ حضرت مغيره رضي الله عنه وايي چې ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي ٢ چې د كوم مړي د پاره چې نوحه (ساندي، په چغو ژړا) كيږي هغه ته به د قيامت په ورځ د نوحې كولو په وجه عذاب وركول كيږي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① نِيحَ: مجهول دې په مړي باندې ژړا، واويلا كولو ته وائي.

**[١٧٤١] دَ حضرت عائشه رضي الله عنها او حضرت ابن عمر رضي الله عنهما اختلاف**

١٧٤١-(٢)[٢٠] ١ «وَعَنْ عَمْرَةَ بِنْتِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ أَنَّهَا قَالَتْ: ٢ سَمِعْتُ عَائِشَةَ وَذُكِرَ لَهَا: أَنَّ عَبْدَ اللهِ بْنَ عُمَرَ يَقُولُ: ٣ إِنَّ الْمَيِّتَ لَيُعَذَّبُ بِبُكَاءِ الْحَيِّ عَلَيْهِ ٤ تَقُولُ: يَغْفِرُ اللهُ لِأَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ ٥ أَمَا إِنَّهُ لَمْ يَكْذِبْ، وَلَكِنَّهُ نَسِيَ أَوْ أَخْطَأَ ٦ إِنَّمَا مَرَّ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى يَهُودِيَّةٍ يُبْكَى عَلَيْهَا ٧ فَقَالَ: إِنَّهُمْ لَيَبْكُونَ عَلَيْهَا ٨ وَإِنَّهَا لَتُعَذَّبُ فِي قَبْرِهَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ او بي بي عمره بنت عبدالرحمن وايي ٢ چې هغه وخت چې بي بي عايشي رضي الله عنها ته دا اوويل شو چې حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما وايي ٣ چې مړي ته به دهغه د ژوندو د

---

[١] اخرجه البخاري في كتاب الجنائز/باب ما يكره من النياحة على الميت (رقم-١٢٩١) ومسلم في كتاب الجنائز/باب الميت يعذب ببكاء أهله عليه (رقم-٢٨ - (٩٣٣) والترمذي كتاب الجنائز عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما جاء في كراهية النوح(رقم-١٠٠٠) واحمد في المسند ٦١/٢

[٢] اخرجه البخاري في كتاب الجنائز/باب قول النبي صلى الله عليه وسلم: «يعذب الميت ببعض بكاء أهله عليه» إذا كان النوح من سنته " (رقم-١٢٨٩) وابوداود كتاب الجنائز/باب في النوح(رقم-٣١٢٩)

ژړا په وجه عذاب ورکول کیږی ٤ نو ما د بي بي عايشي رضي الله عنها څخه واوريدل چې الله تعالى جل جلاله دي ابو عبدالرحمٰن وبخښي (دا د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه کنيت دی) ٥ پوهه شه چې عبدالله بن عمر رضي الله عنه (خداي دی نه کړي) دروغ نه دي ويلي بلکه د هغه څخه خو يا هيره شوي ده يا خطا شوي دي [حضور صلی الله علیه وسلم په دي باره کښې په يوه خاص موقعه باندې ارشاد فرمايلي وو يا دا چې دا د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه اجتهادي خطا ده چې هغه د دې ارشاد څخه عام حکم مراد اخلي حقيقت خو دا دي چې] ٦ حضور صلی الله علیه وسلم يو خل د يوي يهودي ښځي [د قبر سره] تير شو نو [وي ليدل چې د هغې په قبر باندې] خلقو ژړل ٧ دي په ليدو سره حضور صلی الله علیه وسلم وفرمايل چې د دې عزيز او اقارب په دي ژاړا کوی ٨ او هغه ښځه په خپل قبر کښې په عذاب کښې مبتلا ده. (بخاري مسلم)

**تسهيلات:**

**نوټ:**- د حديث تشريح دَدې باب دَحديث نمبر١٧٣٣ لاندې تيره شوي ده.

**[١٧٤٢] دَ اميرالمؤمنين حضرت عمر رضي الله عنه دَ شهادت قصه**

١٧٤٢-()[٢١] ١ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ قَالَ: ٢ تُوُفِّيَتْ بِنْتٌ لِعُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ بِمَكَّةَ، ٣ فَجِئْنَا لِنَشْهَدَهَا، وَحَضَرَهَا ابْنُ عُمَرَ وَابْنُ عَبَّاسٍ، فَإِنِّي لَجَالِسٌ بَيْنَهُمَا، ٤ فَقَالَ عَبْدُ اللهِ بْنُ عُمَرَ لِعَمْرِو بْنِ عُثْمَانَ وَهُوَ مُوَاجِهُهُ: ٥ أَلَا تَنْهَى عَنِ الْبُكَاءِ; فَإِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: ٦ "«إِنَّ الْمَيِّتَ لَيُعَذَّبُ بِبُكَاءِ أَهْلِهِ عَلَيْهِ»"، ٧ فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: قَدْ كَانَ عُمَرُ يَقُولُ بَعْضَ ذَلِكَ ثُمَّ حَدَّثَ، ٨ فَقَالَ: صَدَرْتُ مَعَ عُمَرَ مِنْ مَكَّةَ حَتَّى إِذَا كُنَّا بِالْبَيْدَاءِ، ٩ فَإِذَا هُوَ بِرَكْبٍ تَحْتَ ظِلِّ سَمُرَةٍ، ١٠ فَقَالَ: اذْهَبْ فَانْظُرْ مَنْ هَؤُلَاءِ الرَّكْبُ؟ فَنَظَرْتُ فَإِذَا هُوَ صُهَيْبٌ.

**ترجمه:** ١ حضرت عبدالله بن ابي مليکه رضي الله عنه فرمايي ٢ چې د حضرت عثمان ابن عفان رضي الله عنه لور په مکه کښې وفات شوه ٣ نو مونږ خلق هغه ته راغلو چې د جنازي په مانځه او دفن کولو کښې ورسره شريک شو حضرت ابن عمر رضي الله عنه او ابن عباس رضي الله عنهما هم هلته راغلل زه د هغوئ دواړو په مينځ کی ناست وم ٤ په دی کې حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه حضرت عمرو بن عثمان رضي الله عنه ته چې د هغه طرف ته مخ کړئ ناست وو اوويل ٥ چې تاسو خپل کور والا په آواز او په نوحې سره د ژړا څخه ولي نه منع کوئ؟ ځکه چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم دا ارشاد دي ٦ چې مړي د خپل کور والا د ژړا په وجه په عذاب کښې مبتلاء کيږی ٧ حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما (د دي جواب کښې) اوويل چې حضرت عمر رضي الله عنه دې باره کې څه ويل (يعني د حضور صلی الله علیه وسلم د دې ارشاد ګرامي څخه خو په مړي باندې عام طور سره د ژړا ممانعت معلوميږي ليکن حضرت عمر رضي الله عنه به دا ممانعت صرف قريب المرګ ته آواز

١) اخرجه البخاري فى كتاب الجنائز /باب قول النبي صلى الله عليه وسلم: «يعذب الميت ببعض بكاء أهله عليه» إذا كان النوح من سنته " (رقم-١٢٨٦) ومسلم فى كتاب الجنائز /باب الميت يعذب ببكاء أهله عليه (رقم) ٢٣ - (٩٢٨)

او نوحه سره ژړا باندې محمول کولو، نو هغه دا واقعه بیان کړه [٨] چې هر کله زه د حضرت عمر رضي الله عنه سره د مکې څخه واپس شوم او مونږ مقام بیداء ته ورسیدو (چې د مکې او د مدینې په مینځ کښې یو کلې دې)[٩] نو اچانک حضرت عمر رضي الله عنه د یو کیکر دونې لاندې یوه قافله ولیدله [١٠] هغه ماته وفرمایل چې ته هلته ورشه او ګوره چې په قافله کښې څوک دي زه چې هلته ورغلم نو ومې لیدل چې حضرت صهیب رضي الله عنه [او د هغه سره څه نور خلق] دي

[١]قَالَ: فَأَخْبَرْتُهُ، فَقَالَ: ادْعُهُ، فَرَجَعْتُ إِلَى صُهَيْبٍ[٢] فَقُلْتُ: ارْتَحِلْ فَالْحَقْ أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ،[٣] فَلَمَّا أَنْ أُصِيبَ عُمَرُ دَخَلَ صُهَيْبٌ يَبْكِي،[٤] يَقُولُ: وَا أَخَاهُ، وَا صَاحِبَاهُ،[٥] فَقَالَ عُمَرُ: يَا صُهَيْبُ أَتَبْكِي عَلَيَّ وَقَدْ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ:[٦] "إِنَّ «الْمَيِّتَ لَيُعَذَّبُ بِبَعْضِ بُكَاءِ أَهْلِهِ عَلَيْهِ»؟!"[٧] فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: فَلَمَّا مَاتَ عُمَرُ ذَكَرْتُ ذَلِكَ لِعَائِشَةَ[٨] فَقَالَتْ: يَرْحَمُ اللَّهُ عُمَرَ، لَا وَاللَّهِ مَا حَدَّثَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:[٩] «إِنَّ الْمَيِّتَ لَيُعَذَّبُ بِبُكَاءِ أَهْلِهِ عَلَيْهِ،[١٠] وَلَكِنْ إِنَّ اللَّهَ يَزِيدُ الْكَافِرَ عَذَابًا بِبُكَاءِ أَهْلِهِ»[١١] وَقَالَتْ عَائِشَةُ: حَسْبُكُمُ الْقُرْآنُ" ﴿وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَى﴾ [الأنعام: ١٦٤]".[١٢] قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ عِنْدَ ذَلِكَ: وَاللَّهُ أَضْحَكَ وَأَبْكَى[١٣] قَالَ ابْنُ مُلَيْكَةَ: فَمَا قَالَ ابْنُ عُمَرَ شَيْئًا. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**[١] ابن عباس رضي الله عنهما فرمایي چې زه راغلم او حضرت عمر رضي الله عنه ته مې اووئیل نو حضرت عمر رضي الله عنه اوویل چې هغه راوغواړه بیا زه صهیب رضي الله عنه ته ورغلم [٢] ورته مې اوویل چې راشئ او د امیرالمؤمنین سره ووینئ [ملاو شئ] [٣] د دې څخه روسته چې په مدینه کښې حضرت عمر رضي الله عنه زخمي شو نو حضرت صهیب رضي الله عنه ورته په ژړا راغې [٤] او دا یې ویل چې اې زما وروره، اې زما اقا دا څه وشو[٥] حضرت عمر رضي الله عنه په دې حالت کښې صهیب رضي الله عنه ته وفرمایل چې اې صهیب رضي الله عنه ته زما په خوا کښې [په ما باندې] (د آواز او بیان سره) ژاړې؟ حالانکه چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم دا ارشاد ګرامي دې [٦] چې مرده ته (یعنې یا خو حقیقة مرده یا قریب المرګ) خپل کور والاد ژړا په وجه عذاب ورکولې شي (یعنې د داسې ژړا په وجه چې د آواز او نوحه (ویر) سره وي)[٧] حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمایي چې کوم وخت حضرت عمر فاروق رضي الله عنه وفات شو نو ما د هغه دا قول د بي بي عایشې رضي الله عنها په خدمت کښې عرض اوکړو [٨] هغې اوریدلو سره وفرمایل چې الله تعالی جل جلاله دې په حضرت عمر رضي الله عنه رحم اوکړي دا خبره نه ده او نه رسول الله صلی الله علیه وسلم داسې فرمایلي دې [٩] چې مرده ته د خپل کور والاد ژړا په وجه عذاب ورکولې شي [یعنې نه خو مطلقاً د ژړا په وجه او نه آواز، ویر (نوحې) سره د ژړا په وجه مړې په عذاب کښې مبتلا کولې شي [١٠] هو البته الله تعالی جل جلاله د کافر په عذاب کښې د هغه د کور والو د ژړا په وجه زیاتوالی کوي [١١] بیا بي بي عایشې رضي الله عنها وفرمایل چې (د دې په ثبوت کښې) ستاسو د پاره د قرآن کریم دا فیصله کافي ده وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَى [هیڅ سړې به د دویم بوج نه اوچتوي] حضرت ابن عباس رضي الله عنهما وفرمایل چې د دې آیت وَأَنَّهُ هُوَ أَضْحَكَ وَأَبْكَى مضمون ومفهوم هم تقریباً دا دې چې الله تعالی

ﷺ خنده وي او الله تعالى ﷻ ژړوي حضرت ابن ابي مليكه فرمايي چې حضرت ابن عمر ﷛ د دې په اوريدو سره هيڅ ونه ويل. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① مُوَاجِهُهُ: أَيْ: مُقَابِله: يعنى مخامخ ورته ناست وو. ② صَدَرْتُ: أَيْ: رَجَعْتُ: يعنى زه واپس شوم، ③ البَيْدَاءِ: د مكې اومدينې په مينځ كښې ذوالحليفه ته نزدې ديوځائ نوم دې. ④ بِرَكْبٍ: أَيْ: جَمَاعَةٍ مِنَ الرُّكْبَانِ: د سورو قافله (چه په اسونو وغيره باندې سواره وو)، ⑤ سَمُرَةٍ: دكيكر وونه، ⑥ ارْتَحِلْ: راځه.

**تسهيلات: قوله: تُوُفِّيَتْ بِنْتٌ لِعُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ بِمَكَّةَ:**

**د حضرت عثمان د لور په وفات د خلقو ژړا:** - يعنى دَ حضرت عثمان بن عفان ﷛ دَ لور په مكه مكرمه كښې انتقال اوشو دَدې واقعې په موقع په مكه مكرمه كښې يوځو لوئى صحابه كرام ﷡ يوځائى شو په كوم كښې چه حضرت ابن عمر ﷛ اوحضرت ابن عباس ﷠ ښكاره وو. دَحضرت عثمان ﷛ ځوئى عمرو بن عثمان ﷛ هم په دې موقع باندې موجود وو. دَدې واقعې په وجه په كوركښې څه خلقو ژړل. نو حضرت ابن عمر ﷛ حضرت عمرو بن عثمان ﷛ ته اووئيل ولې ته دا ژړا كونكى نه شې منع كولې حالانكه دَخلقو په ژړا سره مړى ته عذاب كيږى په دې باندې حضرت ابن عباس ﷠ اوفرمائيل ستا پلار حضرت عمر ﷛ به هم څه داسې خبره كوله.

**د سفر يوه واقعه:** - بيا حضرت ابن عباس ﷠ دَ سفر يوه قصه بيان كړه په كوم سره چه هغه دا خودل غواړى چه دَ حضرت صهيب رومى ﷛ او حضرت عمر ﷛ په خپل مينځ كښې ډيره ژوره دوستانه وو. حضرت عمر ﷛ هغه په سفركښې راؤغوښتلو او اكرام ئى اوكړو. دَدې قصې ختمولوسره حضرت ابن عباس ﷠ دَحضرت عمر ﷛ دَ زخمى كيدو اوبيا دَ شهيد كيدو ذكر اوفرمائيلو اودَ صهيب رومى ﷛ ژړا ئى ذكركړه ليكن دا ژړل هغه وخت وو كله چه حضرت عمر ﷛ په زخمى حالت كښې وو دغه وخته پورې انتقال شوې نه وو. حضرت عمر ﷛ حضرت صهيب ﷛ ته اووئيل تاسو هم ژاړئى حالانكه مړى ته په بعضې ژړا باندې عذاب وركيږى. خيردا قصه هم ختمه شوه

**د عائشې رضى الله عنها رائې:** - حضرت ابن عباس ﷠ فرمائى چه ما دَحضرت عمر ﷛ دَ وفات نه پس دا حديث دَحضرت عائشه صديقه ﷠ په مخكښې بيان كړو چه دَ ابن عمر ﷛ خودا خيال دې چه مړى ته دَ خلقو دَ ژړا دَ وجې نه عذاب كيږى. حضرت عائشه ﷠ اوفرمائيل په حضرت ابن عمر ﷛ دې الله تعالى رحم اوكړى دَ حضورپاك حديث داسې نه دې بلكه هغه حديث داسې وو چه دَمړى په عذاب كښې دَ خلقو په ژړا سره زياتوالې كيږى بيا حضرت عائشه ﷠ اوفرمائيل تاسو خلقو دَپاره قرآن كريم كافى دې په كوم كښې ﴿وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ﴾ [سورت بنى اسرائيل آيت: ١٥] موجود دې دكوم مطلب چه

دادي هرسړي به پخپله خپل بوج اوچتوي دنورو بوج به په بل چا باندي نه شي بار کولي.
لهذا دَ نورو په ژړا باندي چاته عذاب نه کیږي.
دَ حضرت عائشه صدیقه رضي الله عنها رائې سره ابن عباس رضي الله عنهما هم موافقت اوکړو او بیائې اوفرمائیل چه خندونکې او ژړونکې صرف الله تعالی دي. بهر حال دَدي قسم احادیثو توضیح تشریح اوتفصیل دَدي باب حدیث نمبر۱۷۴۳ لاندي تیرشوی دی. حضرت عائشه رضي الله عنها دَ حدیث نه انکارنه کوی بلکه دَحدیث مفهوم متعین کولوکښي دَ هغې حضرت ابن عمر رضي الله عنه سره اختلاف دي. دَ حضرت ابن عمر رضي الله عنه په نیز دَ حدیث مطلب دادي چه دکور والاخلقو په ژړا سره مړی ته عذاب کیږي. حضرت عائشه رضي الله عنها حیراتیا سره فرمائی چه داسي نه د ه بلکه خلق ژاړي او مړی ته په قبرکښي خکه عذاب کیږي چه هغه کافر دي په وجه د کفر عذاب دي نه چه دَ ژړا دَ وجي نه.
**په حضرت عمر رضي الله عنه د ابولولؤ مجوسی حمله ولي اوکله شوې وه؟** ابولولؤ مجوسی دَ حضرت مغیره بن شعبه رضي الله عنه یو غلام وو حضرت عمر رضي الله عنه عام فرمان جاری کړې وو چه په مدینه کښي یوکافر پاتې کیدو ته پرینږدئی. حضرت مغیره رضي الله عنه سفارش کولوسره خپل غلام په مدینه کښي اوساتلو بیا دَ هغه هم خپل غلام سره جګړه پیدا شوه. حضرت عمر رضي الله عنه ته چه کله دَ هغوی قصه وړاندي کړې شوه نو هغوی دَ غلام نه دَهغه دَ هنر او رضاعت باره کښي تپوس اوکړو هغه اوخودل. په دې باندي حضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائیل چه مغیره بن شعبه رضي الله عنه په تا باندي کوم ټیکس زیاتول غواړي هغه صحیح دي خکه چه تاسره خو ډیر زیات هنرونه دی اوما اوریدلی دی چه بهترین میچنې جوړوې. یو میچن زما دَپاره هم جوړه کړه. ابو لولؤ غصه شو او وئی وئیل چه زه به تاله داسي میچن جوړوم چه دنیا به هغه یاد لری. حضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائیل "توفهت بنت" "هددنی العبد" دي غلام ماته دَ مرګ دړهکه راکړه. بیا دا ملعون غلام په حضرت عمر رضي الله عنه باندي دَ وار کولو په لټون کښي وو چه ۲۶یا ۲۷ ذوالحجه کال ۲۳هجری دَ چارشنبې په ورځ دَسحر دَ مونځ وخت کښي مسجد نبوی کښي بالکل په محراب کښي هغه په حضرت عمر رضي الله عنه باندي حمله اوکړه او شپږ زخمونه لګولو سره ئی یوڅو صحابه هم شهیدان کړل او بیائی خپل ځان هم اووژلو. حضرت عمر رضي الله عنه څوورځې په زخمونوکښي وو او اول محرم الحرام کال ۲۳هجری کښي وفات شو.

**[۱۷۴۳] په مړی باندي ژړا کونکی لره منع کول**

۱۷۴۳-(۱)[۲۲] [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: [۲] «لَمَّا جَاءَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَتْلُ ابْنِ حَارِثَةَ وَجَعْفَرٍ وَابْنِ

(۱) اخرجه البخاری فی کتاب الجنائز/باب من جلس عند المصیبة یعرف فیه الحزن (رقم-۱۲۹۹) ومسلم فی کتاب الجنائز/باب التشدید فی النیاحة (رقم) ۳۰ - (۹۳۵) والنسائی کتاب الجنائز/باب النهی عن البکاء علی المیت (رقم-۱۸٤۷) واحمد فی المسند ۵۹/۶

رَوَاحَةَ،[۳] جَلَسَ يُعْرَفُ فِيهِ الْحُزْنُ،[۴] وَأَنَا أَنْظُرُ مِنْ صَائِرِ الْبَابِ تَعْنِي شَقَّ الْبَابِ [۵] فَأَتَاهُ رَجُلٌ فَقَالَ: إِنَّ نِسَاءَ جَعْفَرٍ وَذَكَرَ بُكَاءَهُنَّ فَأَمَرَهُ أَنْ يَنْهَاهُنَّ،[۶] فَذَهَبَ ثُمَّ أَتَاهُ الثَّانِيَةَ لَمْ يُطِعْنَهُ [۷] فَقَالَ: انْهَهُنَّ، فَأَتَاهُ الثَّالِثَةَ قَالَ: وَاللهِ غَلَبْنَنَا يَا رَسُولَ اللهِ،[۸] فَزَعَمَتْ أَنَّهُ قَالَ: فَاحْثُ فِي أَفْوَاهِهِنَّ التُّرَابَ،[۹] فَقُلْتُ: أَرْغَمَ اللهُ أَنْفَكَ،[۱۰] لَمْ تَفْعَلْ مَا أَمَرَكَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَمْ تَتْرُكْ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْعَنَاءِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**[۱] او بي بي عايشه رضي الله عنها فرمايي [۲] چې کوم وخت نبي کريم ﷺ ته د زيد بن حارثه رضي الله عنه، جعفر رضي الله عنه او ابن رواحه رضي الله عنه (په غزوه موته کښې) د شهيد کيدو اطلاع راغله [۳] نو حضور ﷺ په مسجد نبوي (ﷺ) کښې کيناستو د حضور ﷺ په مخ مبارک د تکليف او غم اثار ښکاره وو[۴] او ما (د حضور ﷺ کيفيت) د دروازې د سورې څخه ليدلو [۵] په دې کښې يو سړې د حضور ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او هغه اووېل چې د جعفر ﷺ د کور ښځې داسې کوې (يعنې هغه د هغوئ د ژړا ذکر اوکړو) حضور ﷺ هغه ته حکم اوکړو چې لاړ شه هغوی منع کړه [۶] هغه لاړلو او لږ ساعت وروسته په دويم ځل واپس راغې چې ښځې نه منع کيږی [۷] حضور ﷺ هغه ته وفرمايل چې لاړ شه منع يې کړه هغه لاړلو لږ ساعت وروسته په دريم ځل بيا واپس راغې او هغه اووېل چې يا رسول الله! ﷺ قسم په خداې هغه ښځې په مونږ غالبې راغلې (يعنې هغوی زمونږ خبره نه منې)[۸] د بي بي عايشې رضي الله عنها ګمان دې چې (د دې په اورېدو سره) حضور ﷺ دا وفرمايل چې د هغوئ په خله کښې خاورې واچوه [۹] بي بي عايشه رضي الله عنها فرمايي چې ما [هغه سړې ته] اووېل خداې دې ستا پوزه په خاورو کښې ککړه کړی [۱۰] تا ته چې رسول الله ﷺ کوم حکم کړې دې په هغې دې عمل ولې ونه کړو او ته رسول الله ﷺ ته د تکليف سبب جوړ شوې. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:**- ① الْحُزْنُ: غم ، خفګان. ② صَائِرِ الْبَابِ تَعْنِي شَقَّ الْبَابِ: صائر د دروازې چاودی، سورې ته وائی. ③ لَمْ يُطِعْنَهُ: دهغه خبره ئې اونه منله يعنی منع نه شوې، ④ فَاحْثُ: اى ارم: د امرصيغه ده ويشتلو، اچولو ته وائی. ⑤ أَرْغَمَ اللهُ أَنْفَكَ: الله تعالی دې ستا پوزه په خاورو کښې ککړه کړی، مراد ترې تواضع او تذلل دې. ⑥ الْعَنَاءِ: أي: مشقت،تکليف.

**تسهيلات:**

**قوله: لَمَّا جَاءَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَتْلُ ابْنِ حَارِثَةَ وَجَعْفَرٍ وَابْنِ رَوَاحَةَ:**

**په غزوه موته کښې د درې صحابؓ د شهادت خبر:**- کښې حضرت زيدبن حارثه رضي الله عنه شهيد شو اودې نه پس حضرت جعفر رضي الله عنه اوبيا عبدالله بن رواحه رضي الله عنه شهيد شو. حضورپاک د جنګ موته نقشه او ميدان د مسجد نبوی نه کتلو او خفه کيدلو. بيا رسول الله ﷺ د تعزيت دپاره کيناستو.

**د حضرت جعفر په وفات د ښځو ژړا:-** په حضرت جعفر رضی الله عنه باندې چه کوموښځو ژړل دَهغوی آوازونه اوچتیدل اودَ ژړا دَ شرعی حد نه زیاتې کیدلو. په دې وجه حضورپاك دَهغوی دَ منع کولو دَپاره یو سړې اولیګلو لیکن هغه بار بار تلو راتلو اوهم دغه به ئې وئیل چه هغه ښځې نه منع کیږی په دې باندې حضرت عائشه رضی الله عنها اوکتل چه دَدې سړی دَ وجې نه حضورپاك ته تکلیف کیږی نو په خپله توګه باندې

**قوله: فَقُلْتُ: أَرْغَمَ اللّٰهُ أَنْفَكَ:**

**د حضرت عائشې د وينا مطلب:-** حضرت عائشه رضی الله عنها اوفرمائیل "ارغم الله انفك" یعنی ستا پوزه دې په خاورو شی یا ته دا ښځې دَ ژړا نه منع کړه او که چرې داسې نه شې کولې نو حضورپاك له بار بار راتلوسره هغوی ته ولې وائې چه هغه ښځې نه منع کیږی په کوم سره چه حضورپاك ته تکلیف رسیږی یا ئې منع کړه یا شکایت مه کوه.

**[١٧٤٤] په مړی په چغو سره ژړا کول د شیطان د خوشحالی سبب**

١٧٤٤-()[٢٣] ① وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ: ② «لَمَّا مَاتَ أَبُو سَلَمَةَ قُلْتُ: ③ غَرِيبٌ وَفِي أَرْضِ غُرْبَةٍ ④ لَأَبْكِيَنَّهُ بُكَاءً يُتَحَدَّثُ عَنْهُ، ⑤ فَكُنْتُ قَدْ تَهَيَّأْتُ لِلْبُكَاءِ عَلَيْهِ، ⑥ إِذْ أَقْبَلَتِ امْرَأَةٌ تُرِيدُ أَنْ تُسْعِدَنِي، فَاسْتَقْبَلَهَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: ⑦ " أَتُرِيدِينَ أَنْ تُدْخِلِي الشَّيْطَانَ بَيْتًا أَخْرَجَهُ اللّٰهُ مِنْهُ مَرَّتَيْنِ، ⑧ وَكَفَفْتُ عَنِ الْبُكَاءِ، فَلَمْ أَبْكِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او بي بي أُم سلمه رضی الله عنها فرمايي ② هر كله چي [زما اول خاوند] حضرت ابو سلمه رضی الله عنه وفات شو نو ما اوويل ③ چي ابو سلمه رضی الله عنه مسافر وو او د مسافرئ په حالت كښې مړ شو ④ نو زه به هم د هغه د پاره داسې ژاړم چي زما ژړا به بيانولي شي [يعني په خلقو كښې به چرچه وي، مشهوره به شي چي أم سلمه رضی الله عنها دومره وژړل چي دومره هيچا نه دي ژړلي] ⑤ نو زه د ژړا كولو په تياري كښې مصروفه وم ⑥ اچانك يوه ښځه راغله چې په ژړا كښې ما سره د شريكيدو اراده يې لرله په دي كښې رسول صلی الله علیه وسلم د هغې مخې ته راغلو او وي فرمايل ⑦ چي آيا ستا دا اراده ده چي شيطان هغه كور ته داخل كړې د كوم كور څخه چي الله تعالى جل جلاله دوه څله هغه ويستلي دي ⑧ د حضور صلی الله علیه وسلم دا ارشاد اوريدو سره زه د ژړا كولو څخه منع شوم او بيا په داسې اواز مي ونه ژړل (چي د هغې شريعت ممانعت كړي دي) (مسلم)

**حل اللغات:-** ① غَرِيبٌ: مسافر، ② تَهَيَّأْتُ: قصد مي اوكړو، ③ أَنْ تُسْعِدَنِي: چه زما مدد اوكړی، ④ فَاسْتَقْبَلَهَا: مخې ته ئې راغې، ⑤ كَفَفْتُ: زه منع شوم.

[1] اخرجه مسلم فی كتاب الجنائز/باب البكاء على الميت (رقم) ١٠ - (٩٢٢)

**تسهيلات: قوله : غَرِيبٌ:**

**په ابوسلمه د غريب د لفظ اطلاق :-**

چونکه مهاجرين حضراتو دَمکې نه مدينې ته تشريف راوړې وو لکه چه ټول مسافر وو. دَ ابوسلمه رضي الله عنه انتقال په کال ۴هجری مدينه کښې شوې وو.

**قوله : لَأَبْكِيَنَّهُ بُكَاءً يُتَحَدَّثُ عَنْهُ:**

يعنی داسې ژړا به کوم چه دنيابه ئی يادساتی اودَې تذکرې به کوی.

**د مرقين تفسير :-** دَ اخوانه يوانصاری ښځه هم زمادَ امدادپاره راروانه وه څوك چه حضورپاك اوليدله اوونی فرمائيل چه دَ کوم کورنه الله تعالی دوه ځل شيطان اوويستلو بيا شيطان دننه داخلول غواړئی يعنی يوځل خوشيطان هغه وخت الله تعالی دَ دې کورنه اوويستلو کله چه ابوسلمه رضي الله عنه مسلمان شو اودوباره ئی هغه وخت اوويستلو کله چه ايمان سره کامياب شو اوابوسلمه رضي الله عنه دَ دنيانه لاړو. ابوسلمه رضي الله عنه په ۴هجری مدينه منوره کښې انتقال شوې وو.

**[١٧٤٥] د مړی ستائنو باندې د مړی رټل**

١٧٤٥-()[٢٣] ١ وَعَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ قَالَ: أُغْمِيَ عَلَى عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ رَوَاحَةَ، ٢ فَجَعَلَتْ أُخْتُهُ عَمْرَةُ تَبْكِي: ٣ وَا جَبَلَاهُ، وَاكَذَا، تُعَدِّدُ عَلَيْهِ، ٤ فَقَالَ حِينَ أَفَاقَ: مَا قُلْتِ شَيْئًا إِلَّا قِيلَ لِي أَنْتَ كَذٰلِكَ، ٥ زَادَ فِي رِوَايَةٍ: فَلَمَّا مَاتَ لَمْ تَبْكِ عَلَيْهِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ١ او حضرت نعمان بن بشير رضي الله عنه فرمايي چې (يو ځل) حضرت عبدالله بن رواحه رضي الله عنه دومره سخت مريض شو چې مرګ ته نزدې شو او بيهوشي پرې راغله ٢ نو د هغه خور عمره ژړل [او دا ويل يې شروع کړل چې] ٣ اي غره! افسوس دي او اي داسې او هغه شان يعنی د هغه خوبياني يې شميرلو شميرلو سره بيان کړې ٤ کوم وخت چې عبدالله په هوش کښې راغې نو (خور ته) يې اوويل څه چې تا ويلې دي هغه ماته بطور تنبيه ويل شوي دي چې ته داسې يې [مثلاً چې تا اوويل چې اي غره افسوس دي نو ماته اوويل شو چې ته غريې چې خلق ستا پناه نيسي] ٥ او په يو روايت کښې دا الفاظ هم دي چې کوم وخت عبدالله رضي الله عنه وفات شو يعنی په غزوه موته کښې شهيد شو نو د هغه خور په هغه ونه ژړيده. (بخاري)

**حل اللغات:-** ① أُغْمِيَ: بې هوشی پرې راغله، ② وَاجَبَلَاهُ: اي غره.

**تسهيلات:**

**نوټ:-** ددې حديث شرح په هغه حديث کښې ذکرده په کوم کښې چې د په مړی باندې د ژړه وعيد راغلې دي.

[1]) اخرجه البخاری فی کتاب المغازی /باب غزوة مؤتة من أرض الشام (رقم-٤٢٦٧)

١٧٤٦ [په مړي ژړا کولو باندې د فرښتو په ذريعه د مړي وهل

١٤٣٦-(١)[٣٥] [١] وَعَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: [٢] «مَا مِنْ مَيِّتٍ يَمُوتُ فَيَقُومُ بَاكِيهِمْ [٣] فَيَقُولُ: وَاجَبَلَاهُ، وَاسَيِّدَاهُ، وَنَحْوَ ذٰلِكَ [٤] إِلَّا وَكَّلَ اللّٰهُ بِهِ مَلَكَيْنِ يَلْهَزَانِهِ [٥] وَيَقُولَانِ: أَهٰكَذَا كُنْتَ». [٦] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ حَسَنٌ.

**ترجمه:** [١] حضرت ابو موسي رضي الله عنه وايي چې ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي [٢] هر کله يو سړي مړي او د هغه په عزيزانو کښې څوک ژړا کونکي ژاړي [٣] او وايي چې اي غره اي سرداره وغيره وغيره [٤] نو الله تعالى په مړي باندې دوه فرښتې مقرروي چې هغه په سينه کښې په سوکونو وهي [٥] او پوښتنه ترې کوي چې آيا ته داسې وې؟ [٦] امام ترمذي رحمه الله دا روايت نقل کړي دي او ويلي يې دی چې دا حديث غريب حسن دي.

**حل اللغات:** - ① وَكَّلَ: مقرر کوي، ② يَلْهَزَانِهِ: اللَّهْزُ: په سوک باندې وهلوته واني.

**تسهيلات:** **قوله: مَا مِنْ مَيِّتٍ يَمُوتُ:**

**دميت په مصداق کښې دوه اقوال:** - ① ددې نه ميت حقيقي مراد دي
② قريب المرگ هم ترې مراد کيديشي د مړي کوروالو په ژړا سره مړی ته عذاب ورکړې کيږی ددې تفصيل تير شوې دې.

[١٧٤٧] دَ چغو صورو وهلو څخه بغير د ژړلو جواز

١٤٣٧-(٢)[٣٦] [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: [٢] «مَاتَ مَيِّتٌ مِنْ آلِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، [٣] فَاجْتَمَعَ النِّسَاءُ يَبْكِينَ عَلَيْهِ، [٤] فَقَامَ عُمَرُ يَنْهَاهُنَّ وَيَطْرُدُهُنَّ، [٥] فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: دَعْهُنَّ يَا عُمَرُ، فَإِنَّ الْعَيْنَ دَامِعَةٌ [٦] وَالْقَلْبَ مُصَابٌ، وَالْعَهْدَ قَرِيبٌ».

**ترجمه:** [١] حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي [٢] چې د رسول الله ﷺ په اولاد کښې څوک (يعني د بي بي زينب رضي الله عنها چې څرنگه يې په راروان روايت کښې وضاحت دي) وفات شو [٣] نو ښځې جمع شوي او په هغه يې ژړل [٤] د دې په ليدو سره حضرت عمر فاروق رضي الله عنه ودريدلو او اقرباء (خپلوان) يې د ژړا څخه منع کړل او (پردۍ) يې په وهلو وهلو وتښتولې (اوشړلې) [٥] حضور ﷺ چې دا وليدل نو وي فرمايل چې اي عمره رضي الله عنه دوي په خپل حال پريږده څکه چې سترگي ژاړي [٦] او زړه مصيبت ځپلی دي او د جدايي وخت نږدې دي. (احمد نسايي)

**حل اللغات:** - ① يَطْرُدُهُنَّ: أَيِ: الْأَجَانِبَ بِضَرْبِهِنَّ: يعنی پردی خلق ئې په وهلو وهلو اوشړل. ② دَامِعَةٌ: اوښکې تويوی، ژاړی، ③ مُصَابٌ: أَيْ: أَصَابَهُ الْمُصِيبَةُ: مصيبت ورته رسيدلې دې. ④ الْعَهْدَ قَرِيبٌ: أَيْ: زَمَانَ الْمُصِيبَةِ: يعنی دمصيبت وخت نږدې دې. يعنی تازه غم دې صبر کول پرې مشکل دی.

(١) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب الجنائزعن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما جاء فى كراهية البكاء على الميت (رقم١٠٠٣)

(٢) اخرجه النسائى فى السنن كتاب الجنائز/باب الرخصة فى البكاء على الميت(رقم-١٨٥٩) وابن ماجة كتاب الجنائز/باب ما جاء فى البكاء على الميت(رقم-١٥٨٧) واحمد فى المسند ٢/٤٤٤

**تسهیلات:**

**قوله: فَإِنَّ الْعَيْنَ دَامِعَةٌ وَالْقَلْبَ مُصَابٌ، وَالْعَهْدَ قَرِيبٌ:**

**په غم کښې د غیر اختیاری ژړا اجازت:-**

ددې حدیث پاك نه معلومه شوه چې د شدت غم په وجه بلا اختیار د غم اظهار درست دې د امنع نه دې په دې وجه نبی کریم ﷺ حضرت عمر ﷺ منع کړې وو چې غم تازه دې او د زړه زخم لا نوې دې روستو به خپل ترخپله صبر راشی .په دې وجه پریږده چې دې خپل غم اوژاړی دومره اجازت دې ددې څخه زیات چې نوحه شروع کړی نو دا ممنوع ده حدیث کښې د میت څخه مراد حضرت زینب رضی الله عنها ده.

**[١٧٤٨] په لاسونو وهل شیطانی طریقه**

١٧٤٨-()[٢٧] ١ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: ٢ «مَاتَتْ زَيْنَبُ بِنْتُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَبَكَتِ النِّسَاءُ، ٣ وَجَعَلَ عُمَرُ يَضْرِبُهُنَّ بِسَوْطِهِ، ٤ فَأَخَّرَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهِ وَقَالَ: مَهْلًا، يَا عُمَرُ، ٥ ثُمَّ قَالَ: إِيَّاكُنَّ وَنَعِيقَ الشَّيْطَانِ. ٦ ثُمَّ قَالَ: إِنَّهُ مَهْمَا كَانَ مِنَ الْعَيْنِ وَمِنَ الْقَلْبِ فَمِنَ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ وَمِنَ الرَّحْمَةِ، ٧ وَمَا كَانَ مِنَ الْيَدِ وَمِنَ اللِّسَانِ فَمِنَ الشَّيْطَانِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** ١ حضرت ابن عباس ﷺ روایت کوي ٢ چې کوم وخت د رسول الله ﷺ لور بي بي زینب ﷺ وفات شوه نو ښځي په ژړا شوي ٣ [حضرت عمر ﷺ دا خبره کله برداشت کونکي وو] هغه یې په خپلي کوړي سره وهل شروع کړل ٤ حضور ﷺ په خپلو لاسونو سره حضرت عمر ﷺ جدا کړو او ورته یې وفرمایل چې اې عمره ﷺ نرمي اختیار کړه ٥ بیا ښځو ته یې وفرمایل تاسو خپل ځان د شیطان د آواز څخه لرې وساتئ (یعني په چغو چغو او بیان کولو سره هیڅ کله مه ژاړئ) ٦ بیا یې وفرمایل څه چې د سترګو څخه (یعني اوښکي) او د زړه څخه (یعني غم) ظاهرشي داد الله ﷻ د طرف څخه دي او د رحمت سبب دي (یعني دا ځیزونه د الله ﷻ خوښ دي) ٧ او څه چې د لاس او ژبي څخه ظاهر شی هغه د شیطان د طرف څخه دي. (احمد)

**حل اللغات:-** ① بِسَوْطِهِ: سوط کوړي ته وائی. ② مَهْلًا: نرمی اختیار کړه. ③ إِيَّاكُنَّ: ځان اوساتئ، ④ نَعِيقَ: په چغو چغو، اوبه تیز آواز سره ژړل.

**تسهیلات:**

**قوله: وَمَا كَانَ مِنَ الْيَدِ وَمِنَ اللِّسَانِ فَمِنَ الشَّيْطَانِ:**

**د خفګان د اظهار دوه طریقې:-** ① یعنی چغې وهل نوحه کول دا ژبې سره دی دا دواړه افعال شیطانی دی یعنی که لاس او ژبې سره ددې اظهار وی نو په دې سره شیطان خوشحالیږی

[١] اخرجه احمد فی المسند ٣٣٥/٢

او الله ﷻ خفه کیږي ځکه چې په ژبې سره نوحه په لاس سره ماتم شیطاني عمل دې دا بنده په خپل اختیار په شیطاني لمسون سره کوي

④ که د غم اظهار د سترګو په ذریعه وي نو ددې اجازت شته الله ﷻ په دې نه خفه کیږي او ددې مواخذه هم نشته دې ددې نه معلومه شوه چې د زړه غم او د سترګو نه اوښکې بهیدل د بنده په اختیار کښې نه دي دا قدرتي څیزدې زړه کښې د رحمت اور نرمۍ نتیجه ده

**[١٧٤٩] په ژړا او ماتم سره د مړي نه واپس کیدل**

١٧٤٩ـ(١)[٢٨] ① وَعَنِ الْبُخَارِيِّ تَعْلِيقًا قَالَ: ② لَمَّا مَاتَ الْحَسَنُ بْنُ الْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ ③ ضَرَبَتِ امْرَأَتُهُ الْقُبَّةَ عَلَى قَبْرِهِ سَنَةً، ④ ثُمَّ رُفِعَتْ، فَسَمِعَتْ صَائِحًا يَقُولُ: ⑥ أَلَا هَلْ وَجَدُوا مَا فَقَدُوا؟ ⑦ فَأَجَابَهُ آخَرُ: بَلْ يَئِسُوا فَانْقَلَبُوا.

**ترجمه:** ① امام بخاري رحمه الله بطریق تعلیق (یعني بغیر د سند څخه) ذکر کوي ② چې کوم وخت د حضرت حسن بن علي رضي الله عنهما خوي چې د هغه نوم هم حسن وو وفات شو ③ نو د هغه ښځې د هغه په قبر تر یو کال پورې خیمه لګولې وه ④ بیا چې هغه یې لرې کړه نو یو غیبي آواز یې واوریدي چې ⑥ آیا خیمه اودرولو سره دې وفات شوی وموندلو؟ ⑦ بیا د دې په جواب کښې د دویم غیبي دا آواز یې واوریدلو چې نا اُمیده شوه او خیمه یې وښکله.

**حل اللغات:** - ① ضَرَبَتِ: لګولې وه، ② الْقُبَّةَ: أَيِ الْخَيْمَةَ: خیمه، ③ رُفِعَتْ: لرې شې کړه، ④ صَائِحًا: أَيْ: هَاتِفًا غَيْبِيًّا: غیبي آواز، ⑤ مَا فَقَدُوا: څه شې چه ورک کړی وو. (یعنی څوک شې چه مړ شوی وو)، ⑥ يَئِسُوا: نا امیده شو، ⑦ فَانْقَلَبُوا: أَيْ: رَجَعُوا: واپس شو.

**تسهیلات: قوله: عَلَى قَبْرِهِ سَنَةً:**

**د خپل مړي په قبر د عربو عادت:** - دَ عربو عام عادت وو چه هغوی به دَ خپلو مړو په قبرونو باندې پوره کال پورې ژړل. دَ عربو دَ قصیدو او شعرونو نه دا څیز بالکل واضح کیږي. چنانچه یو شاعر وائي:

الى الحول ثم اسم السلام علیکما　　ومن یبك حولا کاملا فقد اعتذر

یعنی تریو کاله پورې ما په تا پسې ژړا اوکړه اوس سلام کولو سره څم ځکه چه تریو کال پورې څوك ژړا اوکړي هغه معذوره دې چه واپس لاړشي. حضرت حسن رضي الله عنه دَ چاپه قبرباندې چه دَهغوی بی بی خیمه لګولې وه. دا مشهور دَ حضرت حسن بن علی رضي الله عنهما خوئی دې دَ هغه بی بی دَ څه خاص ضرورت دَ وجې نه داسې اوکړل او کله چه واپس کورته راغله نو غیبي هاتف آواز اوکړو دې ښځې ډیره موده تیره کړې ده اوس ځي نو آیا څه ورله په لاس ورغلل که خالی لاس واپس روانه ده. دویم هاتف غیبي جواب ورکړو چه هیڅ ورته ملاؤ نه

---

[١] اخرجه البخاري في كتاب الجنائز / باب ما یکره من اتخاذ المساجد على القبور

شو بلکه نااميده کيدو سره واپس لاړه. دَدي نه په واضحه توگه معلومه شوه چه په يو مړي باندې ژړا فرياد کولو سره هغه واپس نه راژوندې کيږي چه څوك لاړو بس هغه لاړو.

**[١٧٥٠] څادر اچول او عزت**

١٧٥٠-()[٢٩] [١] وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، وَأَبِي بَرْزَةَ، قَالَا: [٢] «خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي جَنَازَةٍ [٣] فَرَأَى قَوْمًا قَدْ طَرَحُوا أَرْدِيَتَهُمْ يَمْشُونَ فِي قُمُصٍ، [٤] فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَبِفِعْلِ الْجَاهِلِيَّةِ تَأْخُذُونَ، [٥] أَوْ بِصَنِيعِ الْجَاهِلِيَّةِ تَشَبَّهُونَ، [٦] لَقَدْ هَمَمْتُ أَنْ أَدْعُوَ عَلَيْكُمْ دَعْوَةً تَرْجِعُونَ فِي غَيْرِ صُوَرِكُمْ، [٧] قَالَ: فَأَخَذُوا أَرْدِيَتَهُمْ، وَلَمْ يَعُودُوا لِذَلِكَ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [١] او حضرت عمران ابن حصين او حضرت ابو برزه ﷛ دواړه روايت کوي [٢] چې يوه ورځ مونږ د رسول الله ﷺ سره يوي جنازي ته لاړو [٣] نو حضور ﷺ څه داسې خلق وليدل چې څادرونه يي غورځولي وو او په قميصونو کنبې تلل [٤] هغوی لره په دي حال کنبې ليدو سره حضور ﷺ هغوئ ته وفرمايل چې آيا تاسو د جاهليت په فعل عمل کوئ [٥] يا د جاهليت د کارونو مشابهت اختياروئ [٦] بيا حضور ﷺ وفرمايل (ستاسو د انتهايي نامناسبه حرکت ليدو سره) زما خو دا اراده وشوه چې زه ستاسو د پاره څه داسې بد دُعا وکړم چې تاسو خپلو کورونو ته په نورو شکلونو کنبې (يعني د شادوگانو يا د خنزيرانو په شکل کنبې) واپس ورشئ [٧] اوروي وايي چې د دي اوريدو سره هغه خلقو خپل څادرونه واچول او بيا دوباره يي هيڅکله داسې کار ونه کړو. (ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① طَرَحُوا: أَيْ: وَضَعُوهَا: يعني غورزولي ئې وو، ② أَرْدِيَتَهُمْ: څادرونه خپل، ③ قُمُص: د قميص جمع ده، کميص ته وائي. ④ هَمَمْتُ: أَيْ: قَصَدْتُ: قصد مې کړې دې.

**تسهيلات: قوله: أَبِفِعْلِ الْجَاهِلِيَّةِ تَأْخُذُونَ:**

**دعربو د جهالت په يو رسم د نبی کريم ﷺ د خفگان اظهار:** - دَ عربو دستور وو چه قميص سره به نې څادر هم اچولو. لکه چه دَ صوبه خيبر پختونخواه دَ خلقو عادت دې چه په سخته گرمئې کنبې نې هم څادر په اوگووی او څادرساتل دَ شرافت او عظمت علامت گنړلې شی. بيا په يوه جنازه کنبې صحابه کرامو ﷡ څادرونه دَ ماتم په توگه دَ اوگونه راکوزکړل دې دَپاره چه دَ پريشانئې خفگان او ماتم ښه اظهار اوشی. په دې باندې حضورپاك سخت دَخفگان اظهاراوکړو اوخلق نې دَ دغه حرکت نه منع کړل. معلومه شوه چه په هغه وخت دَ عربوپه خلقوکنبې څادر اچول او ځان سره ساتل به دَ شرافت علامت گنړلې شو اوس عرب دانه پيژنی. علامه طيبی ﷫ فرمائی چه کله په دومره معمولی خبره باندې حضورپاك داسې دَ ناراضگئی اظهاراوکړونودَهغه خلقوبه څه حال وی چه په خفگان اوماتم کنبې دَدې نه لوئی رسمونه رواجونه کوی.

¹) اخرجه ابن ما جة كتاب الجنائز /باب ما جاء فى النهى عن التسلب مع الجنازة (رقم-١٤٨٥)

[١٧٥١] جنازې پسې د سندرغاړې بوتلو حرمت

١٧٥١-()[٣٠] ① وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: «نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ تُتْبَعَ جَنَازَةٌ ② مَعَهَا رَانَّةٌ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① ابن عمر ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ د هغه جنازې سره د تلو څخه منع فرمايلي ده ② چې د هغې سره ساندي كونكي ښځه وي. (احمد ، ابن ماجه)

**حل اللغات:-** ① رَانَّةٌ: نوحه كونكې اوبه چغه چغه واويلا كونكې ښځې.

**تسهيلات:**

**قوله:** نَهَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ تُتْبَعَ جَنَازَةٌ مَعَهَا رَانَّةٌ:

**په گناه كښې د اخته كيدو په وجه د مسنون عمل د پريښودو جواز:-** اگر چې د جنازې سره تلل سنت دی خو ددې فعل بد په وجه دا سنت ترک كول پكار دی داشان دهر يو خلاف شرع څيز په موجودگۍ كښې جنازې سره تلل نه دی پكار.

د احاديث پاك ددې مسئلې بنياد دې چې په كوم دعوت كښې خلاف شرع خبرې وی نو هلته تلل نه دی پكار څكه چې دعوت قبلول سنت دی خو په داسې موقع باندې د غير شرعی خبرو اوبدو افعالو په وجه په دې سنت باندې عمل نه كول بهتر او اولی دی

[١٧٥٢] د مړ شوی ماشوم د مور پلار دپاره شفاعت

١٧٥٢-()[٣١] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ: أَنَّ رَجُلًا قَالَ لَهُ: ② مَاتَ ابْنٌ لِي فَوَجَدْتُ عَلَيْهِ ③ هَلْ سَمِعْتَ مِنْ خَلِيلِكَ صَلَوَاتُ اللّٰهِ عَلَيْهِ شَيْئًا ④ يُطَيِّبُ بِأَنْفُسِنَا عَنْ مَوْتَانَا؟ ⑤ قَالَ: نَعَمْ. سَمِعْتُهُ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: ⑥ «صِغَارُهُمْ دَعَامِيصُ الْجَنَّةِ، ⑦ يَلْقَى أَحَدُهُمْ أَبَاهُ فَيَأْخُذُهُ بِنَاحِيَةِ ثَوْبِهِ ⑧ فَلَا يُفَارِقُهُ "حَتَّى يُدْخِلَهُ الْجَنَّةَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ، وَأَحْمَدُ، وَاللَّفْظُ لَهُ.

**ترجمه:** ① او د حضرت ابوهريره ﷺ په باره كښې روايت دي چې يوه ورځ د هغه سره يو سړي يو ځاي شو هغه اوويل ② چې زما ماشوم بچي مړ شوي دي چې د هغې په وجه زه ډير غمجن يم ③ آيا تاسو د خپل دوست يعنی رسول الله ﷺ څخه چې په هغه ﷺ دي د الله ﷻ رحمتونه او د الله ﷻ سلام نازل وي داسې خبره هم اوريدلی ده ④ چې زمونږ د مرده گانو (يعني د وفات شوو ورو بچو) د طرف څخه زمونږ زړونه خوشحاله كړي؟ (يعني چې د هغې څخه دا معلومه شي چې زمونږ وړوكي بچي مړه شوی دی هغه به په آخرت كښې زمونږ په څه كار راشي) ⑤ حضرت ابوهريره ﷺ وفرمايل چې هو ما د نبي كريم ﷺ څخه اوريدلي دي ⑥ چې د مسلمانانو وړوكي بچيان به په جنت كښ د درياب د ځناورو په شان

---

[1] اخرجه ابن ماجة فی السنن كتاب الجنائز /باب فی النهی عن النياحة (رقم-١٥٨٣)

[2] اخرجه مسلم فی كتاب البر والصلة والآداب/باب فضل من يموت له ولد فيحتسبه (رقم) ١٥٤ - (٢٦٣٥) واحمد فی المسند:٤٨٨/٢

وي ⑦ هرکله چې په هغوئ کښې د چا پلار د هغه سره یو ځاي شي نو هغه وړوکي به د هغه لمن ونیسي ⑧ او تر هغه پورې به یي نه پریږدي تر څو پورې چې خپل پلار په جنت کښې داخل نه کړي. (مسلم احمد) او الفاظ د احمد دي.

**حل اللغات:-** ① دَعَامِيصُ: دادَ دعموص جمع ده. دعموص په اوبو کښې دننه یو قسم تور چینجې وی هغې ته وائی. یا هغه کس ته وائی چه په کارونو کښې دخل کوی، تګ راتګ کوی، نوڅوک ترې پرده هم نه کوی. ② نَاحِيَةِ: أَيْ: بِطَرَفِهِ: یعنی یو طرف د جامو.

**تسهیلات: قوله: صِغَارُهُمْ دَعَامِيصُ الْجَنَّةِ:**

**د دعامیص په مفهوم کښې دوه اقوال:-** ① دادَ دعموص جمع ده. دعموص په اوبو کښې دننه یو قسم تور چینجې وی هغې ته وائی. داچینجې کله اوچې ته هم راځی بعضې خلق دې ته جولابا وائی.

② داهغه سړی ته وائی چه امیران او بادشاهان سره ډیراشنا وی یعنی هروخت هغوی له ځی راځی بلکه داسړې دَ بادشاهانو قوي اودَهغوی په فکرونو اودَهغوی په زړونو اودماغوباندې مسلط وی. اوس دلته هغه وړو مړو شوو بچوله دعموص سره تشبیه ورکړې شوې ده چه دا ماشومان په جنت کښې هرځائی ته داسې ځی راځی اوسیلونه اوتفریح کوی چه یوځائی کښې هم دَدوی نه پرده اوحجاب نه وی لکه څنګه چه دعموص په اوبو کښې ګرځی راګرځی. یا بادشاهانو سره تعلق لرونکې سړې چه هرځائی ته ځی راځی. دا چه کوم دویم مفهوم دې دعموص دَ مصداق دَپاره داډیرمناسب دې لکه چه دا وړوکی ماشومان دَ الله تعالی په دربارکښې مقرب کیږی اوبیا دَ خپل والدین دَ پاره شفاعت کوی.

**قوله: يَلْقَى أَحَدُهُمْ أَبَاهُ:**

**په ورکوتوالی کښې د مړ شوې ماشوم خپل پلار لره جنت ته داخلول:-** یعنی په میدان محشر اوقیامت کښې به دا وړوکې بچې خپل پلار اووینی نودَهغه لمن به اونیسی او نیغ به هغه جنت ته بوځی لکه چه دوی ته دَ سفارش دا اعزاز حاصلیږی. دلته دَ پلارذکر په خاص توګه سره ځکه کړې شوې دې چه کیدې شی تذکره دَپلار روانه وه ګنی دا حکم دَ مورپلاردواړو دَپاره دې. دَدې قسم په شان نور احادیث هم راتلونکی دی.

**[١٧٥٣] ښځو دپاره د وعظ د مجلس انعقاد**

١٧٥٣-(١)[٣٢] ① «وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ: ② جَاءَتِ امْرَأَةٌ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللهِ ③ ذَهَبَ الرِّجَالُ بِحَدِيثِكَ، ④ فَاجْعَلْ لَنَا مِنْ نَفْسِكَ يَوْمًا، ⑤ نَأْتِيكَ فِيهِ تُعَلِّمُنَا مِمَّا عَلَّمَكَ اللهُ. ⑥

(١) اخرجه البخاری فی کتاب العلم/باب: هل یجعل للنساء یوم علی حدة فی العلم؟ (رقم-١٠١) ومسلم فی کتاب البر والصلة والآداب/باب فضل من یموت له ولد فیحتسبه (رقم) ١٥٢ - (٢٦٣٣) واحمد فی المسند: ٧٢/٣

فَقَالَ: اجْتَمِعْنَ فِي يَوْمِ كَذَا وَكَذَا فِي مَكَانِ كَذَا وَكَذَا، [٧] فَاجْتَمَعْنَ فَأَتَاهُنَّ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [٨] فَعَلَّمَهُنَّ مِمَّا عَلَّمَهُ اللهُ، [٩] ثُمَّ قَالَ: مَا مِنْكُنَّ امْرَأَةٌ تُقَدِّمُ بَيْنَ يَدَيْهَا مِنْ وَلَدِهَا ثَلَاثَةً [١٠] إِلَّا كَانَ لَهَا حِجَابًا مِنَ النَّارِ [١١] فَقَالَتِ امْرَأَةٌ مِنْهُنَّ: يَا رَسُولَ اللهِ، أَوِ اثْنَيْنِ؟ [١٢] فَأَعَادَتْهُ مَرَّتَيْنِ ثُمَّ قَالَ: وَاثْنَيْنِ، وَاثْنَيْنِ، وَاثْنَيْنِ»، رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [١] حضرت ابو سعید ﷺ وايي [٢] چې [يوه ورځ] يوه ښځه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضره شوه او يې عرض اوکړو چې يا رسول الله ﷺ [٣] نارينۀ خو ستا د مقدس ارشاداتو څخه استفاده وکړه [٤] ته يوه ورځ زمونږ د پاره هم مقرر کړه [٥] چې مونږ په هغه ورځ ستا په خدمت کښې حاضري شو او ته مونږ ته هغه خبري وښايي کومي چې الله تعالى ﷻ تا ته ښودلي دي [٦] حضور ﷺ ورته وفرمايل چې ښه دي تاسو ښځي په فلاني ورځ فلاني وخت او په فلاني مکان کښې (يعني په جومات يا په کور کښې) او فلاني ځاي (يعني د جومات يا د مکان په مخکي يا وروستني حصه کښې ) جمع شئ [٧] د ارشاد مطابق ښځي جمع شوي نو رسول الله ﷺ هغوئ ته تشريف راوړو [٨] او هغه خبري يي وروښودلي کومی چې الله تعالى ﷻ حضور ﷺ ته وربښودلي وي [٩] بيا حضور ﷺ دا هم وفرمايل چې په تاسو کښې چا د خپل اولاد څخه دري (جينکئ يا هلکان) مخکي ليږلي وي (يعني د هغه دري واړه بچی مړه شوي وي) [١٠] نو هغې واړه بچی به د هغه د پاره د اور څخه پرده شي (يعني هغه به دوزخ ته نه پريږدي) [١١] په هغوئ کښې يوي ښځي دوه ځله اوويل چې د کومي ښځي دوه واړه بچی مړه شوي وي؟ [١٢] حضور ﷺ ورته وفرمايل چې د کومي ښځي چې دوه واړه بچی مړه شوي وي هم (يعني د کومي ښځي چې دوه واړه بچی شوي وي د هغې د پاره هم دا ثواب دي) او د کومي ښځي چې دوه ورو کيان مړه شوي وي د هغې د پاره هم دا بشارت دي (بخاری)

**حل اللغات:** - ① حِجَابًا: أَيْ: سَاتِرًا: پرده.

**تسهيلات: قوله:** فَأَتَاهُنَّ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

**د زنانوُ د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې درخواست:** - خلاصه چه په عهد نبوی کښې ښځو حضورپاك ته دا درخواست اوکړوچه سړی هروخت ستاسو په مجلس کښې وی په دې وجه ستاسو احاديث او ستاسو نصيحت هغوی راغونډ کړل او مونږ محروم پاتې شو. لهذا زمونږ دَپاره هم په هفته کښې يوه ورځ مقرر کړئ دې دپاره چه مونږ هم ستاسو د مجلس نه فائده اوچته کړې شو. حضورپاك هغوی ته حکم ورکړو چه فلانکې ورځ فلانکی مکان کښې تاسو راجمع کيږئ چنانچه هغوی جمع شوې بيا حضورپاك هغوی له راغلو اوهغوی ته ئی نصيحت اوکړو.

**اعتراض:** - ملاعلی قاری رحمه الله وغيره دَ حديث شارحينو دلته يو سوال اوچت شوي دې هغه

دادې چه دَ علم دَ حصول باره کښې دا الفاظ مستند دی چه "العلم يُؤتى ولا يَأتي" يعنى علم له خلق راځی علم چاپسې نه ځی. دَدې قاعده مسلمه په رنړا کښې دا سوال دې چه حضوراکرم چه دَ علم خزانه وه هغوی دغه ښځوله څنګه تشریف یوړو داخو معامله اولټه شوه چه عالم متعلم له ورځی؟

**دااعتراض جواب:**- علماؤ دَدې دا جواب ورکړې دې چه دلته په اصل کښې دَ یومدرسي په شان صورت جوړشوې وو ځکه چه دَ محلې ښځې دَ خوآؤشا نه راتلوسره په یومکان کښې کیناستې نودا مکان اوس دَ ښځو مدرسه جوړه شوه اودَ مدرسې طرف ته دَ عالم تلل راتلل معروف اومشهور دی. دَدې حدیث نه دا معلومه شوه اګرچه دَ صحابه کرامو ﷺ په زمانه کښې او په عهدنبوی کښې دَدې تسلسل پاتې نه شو.

**[١٧٥٤] د نیمګړی بچی شفاعت**

١٧٥٤—(١)[٣٣] وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢]«مَا مِنْ مُسْلِمَيْنِ يُتَوَفَّى لَهُمَا ثَلَاثَةٌ [٣] إِلَّا أَدْخَلَهُمَا اللهُ الْجَنَّةَ بِفَضْلِ رَحْمَتِهِ إِيَّاهُمَا» [٤] فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ، أَوِ اثْنَانِ؟ قَالَ: أَوِ اثْنَانِ. [٥] قَالُوا: أَوْ وَاحِدٌ؟ قَالَ: أَوْ وَاحِدٌ، [٦] ثُمَّ قَالَ: وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ، [٧] إِنَّ السِّقْطَ لَيَجُرُّ أُمَّهُ بِسَرَرِهِ إِلَى الْجَنَّةِ إِذَا احْتَسَبَتْهُ» [٨] رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَرَوَى ابْنُ مَاجَهْ مِنْ قَوْلِهِ: وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ.

**ترجمه:** [١] او حضرت معاذ بن جبل ﷺ روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] د کوم دوو مسلمانانو (یعني مور او پلار) چه دري واړه بچی مړه شي [٣] نو الله تعالی ﷻ به په خپل فضل او رحمت سره هغه دواړه (یعني مور او پلار) په جنت کښې داخل کړي [٤] صحابه ؤ عرض اوکړو چې یا رسول الله ﷺ دا هم وفرمایه که د چا دوه واړه بچی مړه شوي وي؟ (د هغوئ د پاره هم دا بشارت دي؟) حضور ﷺ وفرمایل هو د چا چې دوه واړه بچی مړه شوي وي هم [٥] صحابه ؤ بیا عرض اوکړو چې یا رسول الله ﷺ دا هم وفرمایه که د چا یو ووړوکې مړ شوي وي؟ حضور ﷺ وفرمایل هو که د چا یو ووړوکې هم مړ شي نو د هغه د مور پلار د پاره دا بشارت دي [٦] بیا حضور ﷺ وفرمایل قسم دي په هغه ذات چې د هغه په قبضه کې زما ساه ده [٧] که د یوي ښځي کچه حمل هم وغورځیږي (ناتمام بچی) نو هغه به خپله مور د نامه په ذریعه جنت طرف ته راکاږي په شرط د دې چې د هغه مور صبر اوکړی او د هغه مرګ په خپل (حق کښې) ثواب شمیر کړي، [٨] احمد، ابن ماجه دا روایت د وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ څخه تر آخره پوری نقل کړی دی.

**حل اللغات:**- ① السِّقْطُ: اى هُوَ مَوْلُوْدٌ غَيْرُ تَامٍّ: نا تمام بچې چه اندامونه ئې پوره نه وی او مړ پیدا شی، ② بِسَرَرِهِ: د بچی د نوم هغه ټکره چه دانړه ئې د پیدائش په وخت پرې کوی. ③ احْتَسَبَتْهُ: أَيْ: إِذَا عَدَّتْ أُمُّهُ مَوْتَهُ ثَوَابًا: یعنی کله ئې چه مور دثواب نیت وی اوصبر اوکړی.

[١] اخرجه ابن ماجة فى السنن كتاب الجنائز/باب ما جاء فى ثواب من أصيب بولده (رقم-١٦٠٥) واحمد فى المسند ٥/٢٤١

**تسهيلات: قوله : إِنَّ السِّقْطَ لَيُجَرُّ أُمَّهُ:**

**د ماشوم په شفاعت کښې د اجازت خداوندی شرطیت:-** یعنی دغه بچی ته دااختیارنشته چه په خپل حکم باندې موریلار جنت ته بوځی. جنت ته دَداخلیدودَ پاره دَالله تعالی رحمت اصل اوبنیاددې. البته دَدغه بچی په مرګ باندې الله تعالی دااعزازورکوی چه دغه بچې به خپله موردَ اونال په ذیعه سره راکاږی جنت ته به ئی بوځی. انونال دَ بچی نوم سره یوه تسمه وی چه دَ پیداکیدو په وخت دَ بچی دانئی دَ جهلئی نه پرې کړې شی اونوم سره زوړنده وی.

**د نوم کټ کولو غوره طريقه:-** ډاکټران خلق دا دَ پیداکیدو په وخت دَ صفائی په توګه نوم سره بیخ کښې پرې کوی. په کوم سره چه روستو دغه ماشوم ته ډیرتکلیف وی اونوم ئی خرابیږی. دَ دې برعکس کلی وال نظام دادې چه دغه تسمه دَ څو ورخوپورې زوړنده پریږدی او په تارسره ئی تړی دا پخپله پرې شی او نوم صحیح سالم پاتې شی.

**[١٧٥٥] دَماشومانو مرګ د حفاظت قلعه**

١٧٥٥-( )[٣٢] ١ وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٢ "«مَنْ قَدَّمَ ثَلَاثَةً مِنَ الْوَلَدِ لَمْ يَبْلُغُوا الْحِنْثَ ٣ كَانُوا لَهُ حِصْنًا حَصِينًا مِنَ النَّارِ» ٤ فَقَالَ أَبُو ذَرٍّ: قَدَّمْتُ اثْنَيْنِ. قَالَ: وَاثْنَيْنِ. ٥ قَالَ أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ: أَبُو الْمُنْذِرِ سَيِّدُ الْقُرَّاءِ: قَدَّمْتُ وَاحِدًا. قَالَ: وَوَاحِدًا» . ٦ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ، وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ١ حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ٢ کوم سړي چې د خپل اولاد څخه دري داسې واړه بچی چې د بلوغت حد ته هم نه وي رسیدلي مخکي ولیږل (یعني د هغه د مرګ څخه مخکي مړه شوي وي) ٣ نو هغوی به دهغه د پاره د اُور څخه مضبوطه پناه وي ٤ (د دې په اوریدو سره) حضرت ابوذر رضی الله عنه اوویل چې ما خو دوه ماشومان لیږلي دي حضور ﷺ ورته وفرمایل چې او دوه هم، ٥ حضرت ابي بن کعب رضی الله عنه چې د هغه کنیت ابو المنذر دي هو د قاریانو سردار دي هغه اوویل چې ما خو یو وړو کې لیږلي دي حضور ﷺ ورته وفرمایل چې هو یو به هم (د اُور نه پناه وي) ٦ ترمذي ابن ماجه، او امام ترمذي رحمه الله فرمایي چې دا حدیث غریب دي.

**حل اللغات:-** ① الْحِنْثَ: بالغ توب، ② حِصْنًا: أَيْ: حِصَارًا: قلعه، ③ حَصِينًا: ای مُحْکَمًا: مضبوطه.

**د راوي مختصر تعارف:-** دحدیث د راوی نوم عبدالله، کنیت ابوعبدالرحمن: د پلار نوم مسعود او د مور نه ام عبد وو.

په اسد الغابه کښې ئې د دوی د اسلام راوړلو واقعه دا لیکلې ده چه یوه ورځ نبی کریم ﷺ د ابوبکر رضی الله عنه سره روان وو. په لاره :بنې حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه چیلئ څلرولې.

[1] اخرجه الترمذ ی فی السنن کتاب الجنائز عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ ما جاء فی ثواب من قدم ولدا(رقم-١٠٦١) وابن ماجة کتاب الجنائز/باب ما جاء فی ثواب من أصیب بولده (رقم-١٦٠٦) واحمد فی المسند ٣٧٥/١

حضرت ابوبکر ﷺ د هغه نه پې اوغوښتلو، هغوی ورته اووئیل دا چیلۍ امانت دی د دې وجې ئې زه نشم درکولې نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل آیا تاسره داسې چیلۍ شته چه د هغې بچې نه وی پیدا شوې (یعنی وچه وی) عرض ئې اوکړلو آو دوی هغه چیلۍ راوستله نبی کریم ﷺ په هغې باندې خپل لاس راښ:ل نو د هغې غولانځه د پیؤ نه ډکه شوه نبی کریم ﷺ حضرت ابو بکر او حضرت عبدالله بن اوڅکل اوښه ماره شول د دې معجوې نه پس دوی مسلمان شو.بیا همیشه دپاره د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې پاتې شوې وو.(١) کله چه ئې هجرت اوکړو او مدینې ته راغلو نو نبی کریم ﷺ ورته د مسجد نبوی سره حجته د زمکې یوه ټکړه ورکړه.(٢)

**په غزاګانو کښې شرکت:**- په ټولو غزاګنو کښې د نبی کریم ﷺ سره شریک وو.په ٢٠ هجری کښې په کوفه کښې قاضی شو.او لس کالو پورې هلته قاضی پاتې شوې وو.د هغوی په خاص صفتونو کښې لیکلی شوی دی چه د دوی د علم سره ډیر زیات شوق وو.او د قرآن مجید د تفسیر ماهر وو.په قراءت کښې ورته هم مهارت حاصل وو.نبی کریم ﷺ هم د دوی نه قرآن اوریدلې وو.او د روایت په بیانولو کښې به ئې ډیر احتیاط کولو.او په خپله زمانه کښې د فقه هم ماهر وو.نو دوی د خوبیانو په وجه به همیشه دپاره یو لویه ډله د دوی سره اوسیله.بلکه د شقیق د وینا مطابق مونږ به په جمات کښې ناست وو.اود حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ د کور نه د راوتلو په انتظار کښې به وو.(٣)

**وفات:**- په ٣٢ هجری کښې د ٢٠ کالو د نه په زیات عمر کښې وفات شو.اود اجل فرشتې ته ئې لبیک اووئیل د جنازې مونځ پرې حضرت عثمان ﷺ اوکړلو اود حضرت عثمان بن مظعون په خواه کښې دفن کړې شو.(٤)

**مرویات:**- د دوی نه ۴۸۴ روایات نقل دی په دې کښې ۶۴ متفق علیه دی او په ٢١ کښې بخاری اوپه ٣۵ کښې مسلم منفرد دې (٥)

**تسهیلات:**

**قوله : قَدَّمْتُ وَاحِدًا. قَالَ: وَوَاحِدًا:**

**دیوبچی په مرګ صبر اوجنت ته د اخلیدل:**- ماقبل احادیثو د دوؤ بچو ذکر وو چې د چا دوه بچې فوت شوی وی هغه به دې جنت کښې داخلوی په دې حدیث پاك کښې دیو بچې ذکر راغلې دې چې که یو بچې هم مړ شو نو هغه هم د الله ﷻ په فضل سره په دې بشارت کښې داخل دې

(١) اسد الغابة تذكرة عبدالله بن مسعود ﷺ)- (٢)طبقات ابن سعد تذكرة عبدالله بن مسعود ﷺ
(٣)مسند احمد(٣٧٧\١)- (٤)طبقات ابن سعد(١١٣\١)- (٥)تهذيب الكمال (٢٣٤)- (٦)رواه البخاری فی المرضی باب ما جا فی كفارة المريض إلخ رقم ٥٢١٠. ومسلم فی البر باب ثواب المومن فيما يصيبه من مرض الخ رقم ٤٦٧٠.وتر فی الجنائزرقم،٨٨٩. وحم. باقی مسند المكثرين رقم ٧٦٨٤)
جلد ٢)-

**[١٧٥٦] د جنت په دروازه د والدینو انتظار**

١٧٥٦—()[٣٥] ١ «وَعَنْ قُرَّةَ الْمُزَنِيِّ: ٢ أَنَّ رَجُلًا كَانَ يَأْتِي النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَعَهُ ابْنٌ لَهُ، ٣ فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَتُحِبُّهُ؟ ٤ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَحَبَّكَ اللَّهُ كَمَا أُحِبُّهُ. ٥ فَفَقَدَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ٦ فَقَالَ: مَا فَعَلَ ابْنُ فُلَانٍ؟ قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ مَاتَ. ٧ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَمَا تُحِبُّ أَنْ لَا تَأْتِيَ بَابًا مِنْ أَبْوَابِ الْجَنَّةِ ٨ إِلَّا وَجَدْتَهُ يَنْتَظِرُكَ. ٩ فَقَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، لَهُ خَاصَّةً أَمْ لِكُلِّنَا؟ ١٠ قَالَ: بَلْ لِكُلِّكُمْ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ١ حضرت قرة مزني رضي الله عنه روايت كوي ٢ چې يو سړي وو چې د نبي كريم ﷺ په خدمت كښې به حاضريدلو او د هغه وړوكې زوي به هم د هغه سره وو ٣ [يوه ورځ] نبي كريم ﷺ هغه ته وفرمايل چې آيا دى په تا ډير ګران دى (چې هر وخت ستا سره وي) ٤ هغه عرض اوكړو چې يا رسول الله ﷺ (زه د ده سره د محبت څه اووايم بس) الله تعالى جل جلاله دې ستا سره داسې محبت وكړي څرنګه چې زه يې د دې خپل وړوكې بچى سره كوم ٥ (څه موده وروسته) حضور ﷺ هغه وړوكي د خپل پلار سره بيا ونه ليدلو ٦ نو پوښتنه يې وكړه چې د فلاني سړي وړوكي څه شو؟ نو صحابه ؤ عرض اوكړو چې يا رسول الله د هغه وړوكې خو مړ شوي دي (ددې څخه روسته چې هغه سړي حاضر شو) ٧ نو حضور ﷺ هغه ته وفرمايل چې آيا ستا دا خبره خوښه نه ده چې صبا د قيامت په ورځ د جنت په كومه دروازه چې هم ځې ٨ هلته به خپل ماشوم په خپل انتظار كښې بيامومې (چې هغه ستا سفارش وكړي او تا د ځان سره جنت ته بوزي) ٩ يو سړي عرض اوكړو چې يا رسول الله ﷺ آيا بشارت خاص طور سره د دې سړي د پاره دي يا مونږ ټولو د پاره؟ ١٠ حضور ﷺ ورته وفرمايل چې ستاسو د ټولو د پاره دي. (مسلم)

**حل اللغات:-** ① فَفَقَدَهُ: أي: ابْنَهُ مَعَهُ: يعنى هغه ماشوم ئې دخپل پلار سره اونه موندلو.

**تسهيلات: قوله: أَحَبَّكَ اللَّهُ كَمَا أُحِبُّهُ:**

**د ماشوم په وفات پلار ته بشارت:-** يعنى څنګه چه زما دغه بچى سره سخته مينه ده يارسول الله! الله تعالى دې تاسوسره هغه شان مينه اوساتى. دا دَ دغه سړى دَخپل بچى سره دَ مينې دَ ډير جذباتى انداز اظهاردې. دَ قدرت نظام ته اوګورئى چه هم دغه بچې يوڅوورځې پس وفات شو. دَ كوم چه حضورپاك پوښتنه اوكړه اوبيائى دَهغه پلار ته لوئى زيرې واؤرولو چه دَ جنت په كومه دروازه ورځې ستابچې به ستا په انتظاركښې ولاړوى او دننه به دې راغواړى. بيا حضورپاك دا فضيلت دَ پوره امت دَپاره عام كړو.

(١) اخرجه احمد في المسند ٣٥/٥

**[١٧٥٧] د نیمګړې بچي په شفاعت جنت ته تلل**

١٧٥٧-(١)[٣٦] [١] وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] "«إِنَّ السِّقْطَ [٣] لَيُرَاغِمُ رَبَّهُ إِذَا أَدْخَلَ أَبَوَيْهِ النَّارَ، [٤] فَيُقَالُ: أَيُّهَا السِّقْطُ الْمُرَاغِمُ رَبَّهُ أَدْخِلْ أَبَوَيْكَ الْجَنَّةَ، [٥] فَيَجُرُّهُمَا بِسَرَرِهِ حَتَّى يُدْخِلَهُمَا الْجَنَّةَ»، رَوَاهُ ابْنُ مَاجَةَ.

**ترجمه:** [١] حضرت علي رضي الله عنه روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] هر کله چې الله تعالی جل جلاله دسقط (یعنی ناتمام ورکوکي چې د مور د خیټې څخه د وخت څخه مخکې وغورځیږي) [٣] کله چې الله د هغه مور او پلار په دوزخ کښې د داخلولو (اراده) اوکړي نو هغه به د خپل رب سره جګړه کوي [٤] نو هغه ته به اوویل شي چې اي د پروردګار سره جګړه کونکي ناتمام ورکوکیه خپل مور او پلار جنت ته بوزه [٥] نو هغه ناتمام (نیمګړي) ورو کي به خپل مور او پلار د خپل نوم (ناف) د کُلمي په ذریعه راکاږي تر دې چې هغوی به جنت ته بوزي. (ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① السِّقْطُ: أَيِ: الْوَلَدُ السَّاقِطُ قَبْلَ سِتَّةِ أَشْهُرٍ: کوم ماشوم چه د شپږ میاشتو نه مخکښې یعنی بې مودې پیدا شی. ② لَيُرَاغِمُ: مراغمه په خاورو ککړ اودَ غصې او غضبناك کیدو په معنی کښې دې. خو دلته ترې مراد د ماشوم جګړه کول او مخاصمه کول دی یعنی: يُجَادِلُ وَيُخَاصِمُ.

**تسهیلات: قوله:** إِنَّ السِّقْطَ لَيُرَاغِمُ رَبَّهُ:

**د مراغم معنی او مفهوم:** - دلته دَدې نه مراد دادې چه کله دَ نیمګړې بچی مورپلار الله تعالی دَهغوی دَ ګناه په وجه دوزخ کښې داخلول غواړی. نودا نیمګړې بچې به الله تعالی سره جګړه کوی چه زما مورپلار په دوزخ کښې مه داخلوه. الله تعالی به دَ دغه نیمګړی بچی خبره منی او هغه ته به اووائی چه اې جګړه کونکې غصه بچیه دَخپل انونال په ذریعه خپل مور پلارجنت ته بوځه نوهغه به دَ نوم په تسمه خپل مورپلار رابښکلوسره جنت ته داخل کړی.

**[١٧٥٨] د مصیبت په اول کښې په صبر کولو د جنت وعده**

١٧٥٨-(٢)[٣٧] [١] وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: [٢] "«يَقُولُ اللهُ تَبَارَكَ وَتَعَالَى: "ابْنَ آدَمَ، [٣] إِنْ صَبَرْتَ وَاحْتَسَبْتَ عِنْدَ الصَّدْمَةِ الْأُولَى [٤] لَمْ أَرْضَ لَكَ ثَوَابًا دُونَ الْجَنَّةِ»، رَوَاهُ ابْنُ مَاجَةَ.

**ترجمه:** [١] حضرت ابو امامه رضي الله عنه د نبي کریم ﷺ څخه نقل کوي [٢] چې الله تعالی جل جلاله انسان مخاطب کولو سره ورته فرمایي چې اي ابن آدمه [٣] که ته د یو مصیبت په وخت صبر وکړې او د صدمې په ابتدایي مرحله باندې د ثواب طلبګار شی [٤] نو زه به ستا د پاره د جنت څخه په کم اجر او ثواب باندې نه راضي کیږم (یعني زه به تا د دې په بدله کښې په

(١) اخرجه ابن ماجه فی السنن کتاب الجنائز/باب ما جاء فیمن أصیب بسقط (رقم-١٦٠٨)
(٢) اخرجه ابن ماجه فی السنن کتاب الجنائز/باب ما جاء فیمن أصیب بسقط (رقم-١٦٠٨)

جنت کښي داخل کړم (ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① احْتَسَبْتَ: أَيْ: طَلَبْتَ الثَّوَابَ: يعنی د ثواب طلبګار وې. ② الصَّدْمَةِ: مصيبت او تکليف.

**تسهيلات:**

**قوله: إِنْ صَبَرْتَ وَاحْتَسَبْتَ عِنْدَ الصَّدْمَةِ الْأُولَى:**

**دغم په اول کښي د صبر فضليت:** - صبر اګر چې هر وخت ښه دې خو په نوی غم باندې ډير ښه دې ځکه چې په دې وخت کښي غم تازه وی په دې وجه ددې ثواب هم زيات دې لهذا اول غم باندې چې څوك صبر كوی نو الله ﷻ به ورته ددې په بدله کښي جنت ورکوی

**[١٧٥٩] په هر ځل استرجاع لوستلو نوې ثواب ملاويدل**

١٧٥٩-()[٣٨] ١ وَعَنِ الْحُسَيْنِ بْنِ عَلِيٍّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: ٢ «مَا مِنْ مُسْلِمٍ وَلَا مُسْلِمَةٍ يُصَابُ بِمُصِيبَةٍ فَيَذْكُرُهَا ٣ وَإِنْ طَالَ عَهْدُهَا فَيُحْدِثُ لِذَلِكَ اسْتِرْجَاعًا، ٤ إِلَّا جَدَّدَ اللَّهُ تَبَارَكَ وَتَعَالَى لَهُ عِنْدَ ذَلِكَ ٥ فَأَعْطَاهُ مِثْلَ أَجْرِهَا يَوْمَ أُصِيبَ بِهَا». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ.

**ترجمه:** ١ حضرت حسين بن علي رضی الله عنهما روايت کوي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل ٢ کوم مسلمان سړي او ښځي ته چې څه مصيبت او صدمه ورسي ٣ بيا که هر څومره اُوږده زمانه تيريدو نه وروسته هغه مصيبت او صدمه ورته رایاده شي او هغه وخت هغه انالله وانا اليه راجعون اووائی ٤ الله تعالی جل جلاله د هغه د پاره ثواب ثابتوي ٥ او الله تعالی جل جلاله هغه ته هغه اجر او ثواب ورکوي چې په هغه ورځ يي ورته ورکړي وو کله چې هغه د هغه مصيبت سره مخ شوي وو او په هغې يي صبر کړي وو. (احمد بيهقي)

**حل اللغات:** - ① يُصَابُ: أَيْ: يُبْتَلَى: يعنی په مصيبت کښي مبتلاشی، ② فَيُحْدِثُ: أَيْ: يُجَدِّدُ: يعنی غم نوې تازه شی، ورته ياده شی. ③ اسْتِرْجَاعًا: يعنی إِنَّا لِلَّهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُونَ، اووائی. ④ جَدَّدَ: أَيْ: أَثْبَتَ: مقررکوی او ورکوی (يعنی بيا بيا).

**تسهيلات:** يعنی کله چه سړي په اول ځل باندې مصيبت باندې ﴿إِنَّا لِلَّهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُونَ﴾ وائی نو هغه ته دَ استرجاع ثواب ملاويږی ليکن که يوسړی ته روستو دَ دغه حادثې احساس اوشی او استرجاع اوکړی نو الله تعالی په هرځل باندې هغه ته نوې ثواب ورکوی او په هغې کښي هيڅ کمې نه کيږی. دا ثواب به هم دومره وی څومره چه دَ مصيبت په شروع کښي وی.

**[١٧٦٠] تسمه شليدل د مصيبت په فهرس کښي**

١٧٦٠-()[٣٩] ١ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٢ «إِذَا انْقَطَعَ شِسْعُ أَحَدِكُمْ فَلْيَسْتَرْجِعْ؛ ٣ فَإِنَّهُ مِنَ الْمَصَائِبِ».

---

[1] اخرجه احمد فی المسند : ٢٠١/١

[2] اخرجه البيهقی فی شعب الايمان حد يث رقم ٩٣٦٤

**ترجمه**: [١] او حضرت ابوهریره رضي الله عنه روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] هر کله چې د یو سړي د پنړي (یا څپلي یا چپل یا بوټ) تسمه وشلیږي نو هغه ته پکار دي چې انا لله وانا الیه راجعون اووائي [٣] څکه چې دا هم یو مصیبت دي.

**حل اللغات**:- ① شِسْعُ: د پیزار یا پنړې وندنی ته وانی. ② فَلْيَسْتَرْجِعْ: یعنی إِنَّا لِلَّهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُونَ" اووائی.

**تسهیلات**:

**قوله**: إِذَا انْقَطَعَ شِسْعُ أَحَدِكُمْ:

**په معمولی پریشانئ د صبر کولو فضیلت**:- ددې نه د څپلی تسمه مراد ده یعنی چې د چا تسمه اوشلیږی نو (إِنَّا لِلَّهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُونَ) دې اووائی دا دلږغم څخه کنایه ده چې کله لږغم هم راشی نو په دې باندې (إِنَّا لِلَّهِ الخ) وئیل پکار دی او صبر کول پکار دی په حدیث مبارك کښې دی چې رسول کریم ﷺ د ډیوې په مړ کیدو باندې هم (إِنَّا لِلَّهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُونَ) اووئیل لهذا د بجلی په تلو باندې هم استرجاع وئیل پکار دی

**[١٧٦١] شکر او صبر د امت محمدی خصوصیت**

١٧٦١-(٣٠)[١] وَعَنْ أُمِّ الدَّرْدَاءِ قَالَتْ: سَمِعْتُ أَبَا الدَّرْدَاءِ يَقُولُ: [٢] سَمِعْتُ أَبَا الْقَاسِمِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "«إِنَّ اللّٰهَ تَبَارَكَ وَتَعَالَى قَالَ: [٣] يَا عِيسَى، إِنِّي بَاعِثٌ مِنْ بَعْدِكَ أُمَّةً [٤] إِذَا أَصَابَهُمْ مَا يُحِبُّونَ حَمِدُوا اللّٰهَ [٥] وَإِنْ أَصَابَهُمْ مَا يَكْرَهُونَ احْتَسَبُوا وَصَبَرُوا [٦] وَلَا حِلْمَ وَلَا عَقْلَ. [٧] فَقَالَ: يَا رَبِّ، كَيْفَ يَكُونُ هٰذَا لَهُمْ، وَلَا حِلْمَ وَلَا عَقْلَ؟ ! [٨] قَالَ: أُعْطِيهِمْ مِنْ حِلْمِي وَعِلْمِي». رَوَاهُمَا الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ.

**ترجمه**: [١] بي بي أم درداء رضي الله عنها وایي چې ما د حضرت ابو درداء رضي الله عنه څخه واوریدل [٢] چې ابو القاسم ﷺ ارشاد وفرمایلو چه الله تبارک وتعالی حضرت عیسی علیه السلام ته فرمایلي وو [٣] چې اي عیسي زه ستا څخه روسته یو اُمت پیدا کوم [٤] هر کله چې به هغوئ ته څه خوښ شي رسی [یعني نعمت او راحت ورته رسی] نو هغوی به په هغې د الله تعالی جل جلاله شکر ادا کوي [٥] او هر کله چې څه ناخوښه شي (یعني تکلیف او مصیبت) ورته ورسي نو د ثواب اُمید به لري او صبر به کوي [٦] په داسې حال کښې چې نه څه (کسبي یا کامل) عقل به وي او نه برد باري [٧] حضرت عیسي علیه السلام عرض اوکړو چې اي زما پروردګاره دا به څرنګه وي چې نه یي عقل وي نه بردباري [٨] پروردګار وفرمایل چې زه به هغوئ ته د خپل علم او حلم څخه څه حصه ورکړم، دا (او د دی څخه مخکی) روایت بیهقي په شعب الایمان کښې نقل کړي دي.

**حل اللغات**:- ① بَاعِثٌ: أَيْ: خَالِقٌ وَمُظْهِرٌ: یعنی پیدا کونکي اوښکاره کونکې یم. ② احْتَسَبُوا: أَيْ: طَلَبُوا الثَّوَابَ: د الله نه د ثواب طلبګار وی. ③ حِلْمَ: حلم برداشت او وقار اوسکون ته وائی.

[١] اخرجه البیهقی فی شعب الایمان حد یث رقم ٩٩٥٣

**تسهیلات: قوله**: وَلَا حِلْمَ وَلَا عَقْلَ:

**دامت محمدی د خواصو صفات**:- یعنی دَ امت مرحومه امت محمدیه دَ خاص خاص کسانو به داکیفیت وی چه دَ مصیبت او سختي حادثي دَ وجی نه به ئی عقل او صبر کارنه کوی لیکن بیابه هم دا خلق حلم اوعلم عقل اوهوش به دَ لاس نه نه پریږدی اودَ تقدیر په وړاندې به سټ ښکته ساتی.

دَدې حیرانونکی صورت په اوریدو سره حضرت عیسیٰ علیه السلام پوښتنه اوکړه یا الله چه کله عقل اوپوهه هم نه وی علم اوحلم هم نه وی نودا خلق به ښه کاراودَ الله تعالی تعریف څنګه کوی؟ الله تعالی دَحضرت عیسیٰ علیه السلام دَ سوال په جواب کښې اوفرمائیل چه زه به هغوی ته دَ خپل ځان نه علم او پوهه، صبر اوسکون ورکوم.

## [٨] بَابُ زِيَارَةِ الْقُبُورِ

**دَ قبرونو دَ زیارت کولو بیان**

**خلاصة الباب:-**

**فيه عشرة أحاديث مشتملة على ثلاث مسائل:**

① الإذن فی زيارة القبور وثوابها: ١، ٢، ٧، ٨.

② السلام على الأموات عند دخول المقبرة: ٣، ٤، ٥، ٦.

③ حكم زيارة القبور للنساء : ٩، ١٠.

قال الله تعالى ﴿ثُمَّ أَمَاتَهُ فَأَقْبَرَهُ ۝ ثُمَّ إِذَا شَاءَ أَنْشَرَهُ﴾ [سورة العبس الایه: ٢١]

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[١٧٦٢] دَقبرونو دزیارت کولو استحباب**

١٧٦٢-()[١] [١] عَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] "«نَهَيْتُكُمْ عَنْ زِيَارَةِ الْقُبُورِ فَزُورُوهَا، [٣] وَنَهَيْتُكُمْ عَنْ لُحُومِ الْأَضَاحِي فَوْقَ ثَلَاثٍ [٤] فَأَمْسِكُوا مَا بَدَا لَكُمْ، [٥] وَنَهَيْتُكُمْ عَنِ النَّبِيذِ إِلَّا فِي سِقَاءٍ [٦] فَاشْرَبُوا فِي الْأَسْقِيَةِ كُلِّهَا، [٧] وَلَا تَشْرَبُوا مُسْكِرًا» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**توجمه**: [١] حضرت بریده رضی الله عنه روایت کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل [٢] مخکي خو ما تاسو د قبرونود زیات څخه منع کړې وئ خو اوس تاسود قبرونو زیارت کوئ [٣] دغه شان ما د قرباني غوښه د دري ورځو نه د زياته ساتلو څخه تاسو منع کړي وئ [٤] خو اوس چې

[١]) اخرجه مسلم فی كتاب الجنائز /باب استئذان النبي صلى الله عليه وسلم ربه عز وجل فی زيارة قبر أمه (رقم) ١٠٦ - (٩٧٧) وابوداود فی السنن كتاب الأشربة /باب فی الأوعية(رقم-٣٦٩٨) والنسائی كتاب الجنائز/زيارة القبور(رقم-٢٠٣٢) واحمد فی المسند ١٤٥/١

تاسو ترڅو پورې غواړئ تر هغه پورې يې ساتلی شئ ⑤ او ما نبيذ سوا د مشک څخه (په نورو لوښو کښې ايښودلو سره د څکلو څخه) تاسو منع کړي وئ ⑥ ليکن اوس (چې تاسو په کومو لوښو کښې غواړئ) په ټولو کښې څکلي شئ ⑦ ليکن د نشي هيڅ شي هيڅ کله مه څکئ. (مسلم)

**حل اللغات:-** ① فَأَمْسِكُوا: ساتئ، ايساروئ، ② بَدَا لَكُمْ: أَيْ ظَهَرَ مُدَّةُ بُدُوِّ الْإِمْسَاكِ: يعنی چه ترڅو پورې دا غوښه ايښودل ستاسو خوښه وی. ③ النَّبِيذ: د چوهارو يا اوسکو خورې اوبه، ④ سِقَاء: أَيْ قِرْبَة: مشک، ⑤ مُسْكِرًا: نشه راوستونکي.

**تسهیلات:**

**قوله: نَهَيْتُكُمْ عَنْ زِيَارَةِ الْقُبُورِ:**

**په اول کښې د زيارت القبور د ممانعت وجه:-** رسول الله ﷺ په شروع کښې دَ قبرونودَ زيارت نه مطلقًا منع فرمائيلې وه ځکه چه دَ جاهليت زمانه نيزدې وه. قبرونو ته په تللويانديې دَ شرك راتلو امکان وو ځکه چه شرك هم دَ قبرونو په لار راغی اودَ بې ځايه محبت دَ وجې نه راغی. کله چه په مسلمانانوکښې دَ توحيد عقيده کلکه شوه او دَ اسلام طريقه دَ جاهليت دَ طريقې نه جدا شوه او په شرك کښې دَ پريوتو خطره پاتې نه شوه نوحضورپاك دَ قبرونودَ زيارت کولو اجازت ورکړو. دَ زير بحث حديث دَ "زوروها" الفاظونه په واضحه توګه معلوميږی. اوس مسئله دا پاتې شوه چه دَ قبرونودَ زيارت دَ عمومی ممانعت نه پس چه کوم اجازت ورکړې شوې دې هغه دَ کومې درجې دې؟ آياسړو سره ښځودَ پاره هم دا اجازت عام دې اوکه دا اجازت صرف دَ سړو دَپاره محدوددې؟ په دې کښې دَعلماء کرامو څه اختلاف دې.

**د ښځو دپاره د زيارت القبور په حکم کښې مذاهب:-**

① دَعلماؤ دَ يوې طبقې خيال دې چه دَ زيارتونودَ عمومی ممانعت نه پس دَ اجازت داحکم عام دې لهذا ښځې هم دَ قبرونو دَ زيارتونودَپاره تللې شی. دَدې علماؤ خيال دې چه دَ زيارت قبور داممانعت دَ يو وخت دَپاره وو کوم چه روستو بيا منسوخ شو لهذا دَ ښځوقبرونوته تلل جائزدی.

② دَ علماؤ يوه لويه طبقه دې طرف ته تللې ده چه دَ ښځو دَ زيارت دَ پاره قبرونوته تلل اوس هم منع دی.

**د اول فريق دلائل:-** ① دَ مستدرك حاكم په يوروايت کښې راغلی دی چه حضرت فاطمه رضي الله عنها به هم دَ خپلې ترور دَ قبردَ زيارت دَپاره دَ جمعې په ورځ تلله.

② دغه شان دَحضرت عائشه صديقه رضي الله عنها دَ قبردَ زيارت دَپاره تلل ثابت دی اوهغې دَ

حضور پاك نه دَدې طريقه هم زده كړې ده.

**دويم فريق دليل:-** دَ دې حضراتو مستدل هغه حديث دى په كوم كښې چه راغلى دى "ان رسول الله صلى الله عليه لعن زوارات القبور" (رواه ترمذی) دا حديث صاحب مشكوة په فصل ثالث كښې نقل كړې دې كوم چه حديث نمبر ۱۷۷۰ دې.

**د اعتدال لاره:-** محققين علماؤ دلته يوه ښه لار اختيار كړې ده هغوى فرمائى چه دَ پوخ عمر ښځې كومې چه دَ زيارتونو دَ آدابو نه خبر وى هغوى دَ زيارت دَپاره تللې شى لكه چه دَ حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها نه ثابت دى خوچه كومې ښځې خوانې وى يا بوډئى وى اودَ زيارت كولو دَ آدابو نه خبر نه وى مثلاً قبر ته په تللو سره دَ صاحب قبرنه امداد غواړى. جزع فزع كوى دَ قبرنه خاوره اوچته وى اودَ تبرك دَ پاره ئې كور ته اوړى. نو دَاسې ښځو دَپاره زيارت قبور مطلقًا منع دې. واضحه دې وى چه دا مذكوره شرطونه نن صبا نشته دې.

**د زيارة القبور آداب:-** علماء كرامو دَ آداب قبورنه ليكلى دى

① سړې دې قبر ته نه ټيټيږى.

② دَ قبر مخكښې دې سجده نه كوى.

③ دې نه دې نه خاوره اوچته وى

④ اونه دې دَخپل بدن څه حصه دې پورې مږى.

⑤ نه دې قبر ښكلوى نه دې طواف كوى

⑥ نه دې په قبرونو باندې ګلونه اونه غلافونه خوره وى بلكه په ولاړه ولاړه دې بغيردَ لاسونو اوچتولو دعا اوغواړى او لاړ دې شى.

**په دعا كښې د لاس اوچتولو حكم:-** دَ بعضې علماؤ خيال دادې چه په دعا كښې لاس اوچتولې شى بعضې وائى چه كه لاس اوچتول وى نو بيا دې دَقبر په څائى باندې دَ قبلې طرف ته مخ كړى. نن صبا زمانه كښې دَهر قسم ښځودَپاره قبرونو ته تلل دَ خطرونه خالى نه دى. احتياط هم په دې كښې دې چه ښځې دې قبرستان ته نه ځى.

**د محققينو په نيز د ښځو دپاره د زيارت القبور حكم:-** شاه محمد اسحاق رحمه الله فرمائى چه غوره قول دادې چه دَ ښځو قبرونوته تلل مكروه تحريمى دى. بل دَ فقه كتاب مستملى كښې ليكلى دى چه دَ قبرونو زيارت كول دَ سړو دَپاره مستحب دى ليكن دَښځودَپاره مكروه دى. مجالس واعظيه يو كتاب دې په هغې كښې ليكلى دى چه دَ ښځودَپاره حلال نه دى چه هغوى دې قبرونوته لاړې شى ځكه چه دَ حضرت ابوهريره رضي الله عنه په يو حديث كښې دى چه "انه عليه السلام لعن زوارات القبور"

نصاب الاحستاب يو معتمد كتاب دې په هغې كښې ليكلى دى چه قاضى ابوزيد رحمه الله نه

چا تپوس اوکړو چه د ښځو قبرونوته تلل جائزدی که نه؟ نوهغوی په جواب کښې اوفرمائیل چه د جواز اوعدم جواز د خبرې تپوس مه کوه بلکه دا پوښتنه اوکړه چه قبرستان ته په تلونکې ښځه باندې څومره لعنت وریږی. په یوروایت کښې راغلی دی چه کومه ښځه مقبرې ته ځی د اووه زمکواو اووه آسمانونو فرښتې په هغې باندې لعنت وائی. داخبره یادساتل ضروری دی چه د ښځو د پاره قبرونوته د تللودامسئله د عاموقبرونوپاره کښې ده اود رسول الله ﷺ قبرمبارك اود هغې زیارت د دې نه مستثنی دې اوهغه د مخکښې نه تردغه وخته پورې جاری دې.

**د زیارت قبور قسمونه:** د مقاصدپه اعتبارسره د قبرونود تللوډیر قسمونه دی. ① اول صرف د مرګ یادولو په غرض سره تلل اود انسان بې وسی په زړه اودماغوکښې د کینولوپه غرض سره تلل دی.

② دویم د ایصال ثواب په غرض قبرله تلل دی. د دې مقصد د حاصلولود پاره هرمسلمان له هریوقبرته تلل جائزدی. البته د ښځومسئله جدا ده کومه چه دې نه وړاندې لیکلې شوې ده.

③ دریم د برکت او سعادت د حاصلولود پاره تلل دی. د دې مقصد د حاصولود پاره د اولیاء الله او بزرګان دین قبرونوته تلل اود هغې زیارت کولې شی. د دې تللو مطلب دانه دې چه د اولیاء الله نه امداد غوښتل شروع کړی اوخپل حاجتونه د هغوی په وړاندې پیش کړی بلکه مقصددادې چه د هغوی مزارونه د برکتونو مرکزونه دی. هغې ته په تللو برکت حاصلیږی. برکت ورکونکې صرف یوالله تعالی دې. صاحب قبر د دغه برکت د پاره یو ذریعه جوړیږی. علماء کرامو هم داسې لیکلی دی. ماته پخپله د دې زیارت ډیره تجربه نشته دې.

④ څلورم د خپلو خپلوانو او دوستانو قبرونوته د مغفرت د دعا اود مړو شوو د یادولو په غرض سره تلل دی.

⑤ پنځم د اولیاء قبرونو اومزارونوته تلل اومنختې کولو او امداد غوښتل اود هغوی نه خپل حاجتونه غوښتل. د دې مقصدونود پاره نن صبا عام خلق ځی. داخالص بدعت اوبعضې صورتونوکښې خالص شرك دې د کوم نه احتراز کول چه د هر مسلمان د ایمان ذمه واری ده.

**قوله:** وَنَهَيْتُكُمْ لُحُوْمِ الْأَضَاحِي:

**د دريو ورځو څخه زيات د قربانۍ د غوښو د ممانعت وجه:** -د اسلام په شروع کښې د تنګدستیا د وجې نه حضورپاك حکم ورکړې وو چه د دریوورځونه زیات دې په کورونوکښې د قربانئ غوښې نه ساتی. د دې نه د حضورپاك مقصد داوو چه خلق د قربانئ غوښې په خپلوانو کښې تقسیم کړی اود هغوی امداد دې اوکړی اوذخیره اونه کړی. بیاچه کله په معاشره کښې مالی وسعت پیدا شو نوداحکم موقوف شو.

**قوله:** وَنَهَيْتُكُمْ عَنِ النَّبِيذِ:

**په ابتداء کښې د نبیذ ذخیره کولو او تیارولو د پابندۍ حکمت:-** نبیذ دَ کهجورې وغیره میوو دَخاص شیرې نوم دې. دَ نبیذ پوره تفصیل په کتاب الطهارت کښې شوې دې. دَ اسلام په شروع کښې چه کله دَ شرابو دَ حرمت حکم راغلو نودَ نفرت پیدا کولودَپاره حضورپاک دَ شرابودَ چاټو ماتولو حکم ورکړو. روستوچه کله دَ شرابو حرامـوالې دَ مسلمانانو په زړونوکښې کلك شو نوبیادَ نبیذ ساتلو او تیارولو عام پابندی ختمه شوه. اول به دا نبیذ صرف په مشکیزه کښې دَ ساتلو اجازت ووبیا په ټولو لوښوکښې دَ کیخودلو اجازت ملاؤ شو دکوم ذکرچه په دې حدیث کښې دې.

**[١٧٦٢] رسول الله صلی علیه وسلم دَ خپلې مورد قبر سره**

١٧٦٣-(١)[٢] ١ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: ٢ «زَارَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَبْرَ أُمِّهِ فَبَكَى وَأَبْكَى مَنْ حَوْلَهُ» ٣ فَقَالَ: " اسْتَأْذَنْتُ رَبِّي فِي أَنْ أَسْتَغْفِرَ لَهَا فَلَمْ يُؤْذَنْ لِي» ٤ وَاسْتَأْذَنْتُهُ فِي أَنْ أَزُورَ قَبْرَهَا فَأُذِنَ لِي» ٥ فَزُورُوا الْقُبُورَ فَإِنَّهَا تُذَكِّرُ الْمَوْتَ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ١ حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایي ٢ کوم وخت چې نبي کریم ﷺ د خپلي مور بي بي قبر ته تشریف یوړو نو حضور ﷺ وژړل او هغه خلق یي هم وژړول کوم چې د حضور ﷺ سره ملګري وو ٣ بیا حضور ﷺ وفرمایل چې ما د خپل پروردګار څخه د دې خبري اجازت غوښتي وو چې خپلي مور بي بي دپاره بخښنه (بخشش) وغواړم خو ماته د دې خبري اجازت رانه کړل شو ٤ بیا ما د خپل پروردګار څخه د دې خبري اجازت وغوښتلو چې د خپلي مور بي بي په قبر حاضري ورکړم نو ما ته د دې اجازت راکړل شو ٥ نو تاسو قبرونو ته ځئ ځکه چې قبرونو ته تلل مرګ رایاد وي. (مسلم)

**حل اللغات:-** ① زَارَ: زیارت ئې اوکړو، یعنی تشریف ئې یوړو.

**تسهیلات: قوله:** زَارَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَبْرَ أُمِّهِ:

**د نبی کریم ﷺ د مور قبر له تشریف وړل:-** دَ حضورپاك ﷺ دَ مور بی بی نوم حضرت آمنه وو اودَپلار نوم عبدالله وو. دَ بی بی آمنه انتقال مکې اومدینې په مینځ کښې په یومقام باندې اوشو دَهغې نوم ابواء دې. حضورپاك دَخپلې مور قبرته تشریف یوړو او دَ ډیروخت پورې ولاړ وو. پخپله ئی هم ژړل او نور ئی هم اوژړول اوبیائی دا ارشاد اوفرمائیلو کوم چه په دې حدیث کښې دې.

(١) اخرجه مسلم فی کتاب الجنائز/باب استئذان النبی صلی الله علیه وسلم ربه عز وجل فی زیارة قبر أمه (رقم) ١٠٨ - (٩٧٦) وابوداود فی السنن کتاب الجنائز، باب فی زیارة القبور(رقم-٣٢٣٤) والنسائی کتاب الجنائز/زیارة قبر المشرک (رقم-٢٠٣٤) وابن ما جة کتاب الجنائز/باب ما جاء فی زیارة قبور المشرکین(رقم-١٥٧٢) واحمد فی المسند ٤٤١/٢

**د نبي کريم ﷺ د والدينو اسلام راوړلو کښې اقوال :-**
اوس دابحث شروع دې چه دَ حضورپاك دَ والدين دَ اسلام باره کښې څه موقف اختيار کړې شي. دَعلماء سلف خيال دې چه دَهغوی انتقال دَ کفر په حالت کښې شوې وو. دَ ظاهري احاديثونه هم دغه خبره معلوميږي. ليکن متاخرين علماء فرمائي چه په يوڅووجوهاتوسره دَ حضورپاك دَ والدين اسلام ثابت دې.
① ياخودَحضورپاك والدين په ملت ابراهيمی باندې وو په ملت شرکيه باندې نه وو.
② ياداچه هغوی په زمانه فترت کښې انتقال شوی وو اوهغوی ته څه اسلامی دعوت نه دې رسيدلې نو په اصل باندې وو په کفرباندې نه وو.
③ دَ بعضې متاخرينوخيال دادې چه دَ معجزې په توګه هغوی راژوندې کړې شوی او دَ ايمان قبلولوسره بيا واپس کړې شوی. په دې سلسله کښې متاخرين يوحديث هم پيش کوی.
**احتياط:-** بهرحال عام علماء فرمائي چه په دې حساس اونازکه مسئله کښې احوط او مختار قول دادې چه سړې دې په دې کښې خاموشي اختيار کړی اودافيصله په حق تعالی باندې پريږدی.

**[١٧٦٤] مقبرې ته دورداخليدودعا**

١٧٦٣ - ( )[٣] ① «وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يُعَلِّمُهُمْ ② إِذَا خَرَجُوا إِلَى الْمَقَابِرِ: ③ "السَّلَامُ عَلَيْكُمْ أَهْلَ الدِّيَارِ، مِنَ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُسْلِمِينَ، ④ وَإِنَّا إِنْ شَاءَ اللَّهُ بِكُمْ لَلَاحِقُونَ، ⑤ نَسْأَلُ اللَّهَ لَنَا وَلَكُمُ الْعَافِيَةَ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① حضرت بريده رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ به مسلمانانو ته ښودل ② چې هر کله هغوی قبرستان ته لاړ شي نو دا کلمات دې وايي: ③ اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ أَهْلَ الدِّيَارِ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُسْلِمِيْنَ وَإِنَّا إِنْ شَاءَ اللهُ بِكُمْ لَلَاحِقُوْنَ نَسْأَلُ اللهَ لَنَا وَلَكُمُ الْعَافِيَةَ اي کورونو والؤ دمؤمنانو او مسلمانانوڅخه په تاسو دې سلامتي وي ④ يقيناً مونږ به هم که الله تعالى جل جلاله وغواړي ستاسو سره ضرور يو ځاي کيږو ⑤ مونږ د الله تعالى جل جلاله څخه د ځان د پاره او ستاسو د پاره عافيت (يعني عذابونو څخه ساتنه) غواړو. (مسلم)
**حل اللغات:-** ① لَلَاحِقُونَ: يوځای کيدونکی يو، ② الْعَافِيَةَ: خلاصي د عذابونو نه.
**تسهيلات: قوله:** السَّلَامُ عَلَيْكُمْ أَهْلَ الدِّيَارِ:
**قبرونو سره د دعا په الفاظو کښې څه اختلاف:-** په مقبره او قبرستان کښې قبرونو سره دَ سلام نه پس څه دعائيه کلمات هم دَ احاديثونه ثابت دی مګر په هغې کښې تحديد او تعيين

[١] اخرجه مسلم فی کتاب الجنائز/باب ما يقال عند دخول القبور والدعاء لأهلها (رقم) ١٠٤ - (٩٧٥)وابن ماجة فی السنن کتاب الجنائز/باب ما جاء فيما يقال إذا دخل المقابر(رقم-١٥٤٧) واحمد فی المسند ٣٥٣/٥

نشته دې بلکه په الفاظ کښې څه تغایر موجود دې څنګه چه دلته زیرنظر دعا ذکرده. او په عامو روایاتو کښې هغه دعاده کومه چه دَدې حدیث نه پس څلورم حدیث کښې راځی. په دې کښې چه کوم سړی کومه دعا هم اولوستله دَ زیارت مسنون طریقه به پوره شي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [١٧٦٥] قبرستان ته د ورتلو دعا

١٧٦٥ – ( ) [٣] [١] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: «مَرَّ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِقُبُورِ الْمَدِينَةِ [٢] فَأَقْبَلَ عَلَيْهِمْ بِوَجْهِهِ فَقَالَ: [٣] السَّلَامُ عَلَيْكُمْ يَا أَهْلَ الْقُبُورِ، [٤] يَغْفِرُ اللَّهُ لَنَا وَلَكُمْ، [٥] أَنْتُمْ سَلَفُنَا وَنَحْنُ بِالْأَثَرِ» . [٦] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [١] حضرت ابن عباس رضي الله عنهما روایت کوي چې [یو ځل] نبي کریم ﷺ د مدیني د قبرستان سره تیریدو [٢] نو حضور ﷺ د قبرونو طرف ته مخ مبارک ور وګرځولو او وي فرمایل: [٣] السَّلَامُ عَلَيْكُمْ يَا أَهْلَ الْقُبُورِ يَغْفِرُ اللَّهُ لَنَا وَلَكُمْ أَنْتُمْ سَلَفُنَا وَنَحْنُ بِالْأَثَرِ چې اي قبرونو والو ستاسو په خدمت کښې سلام پیش دي [٤] او الله تعالی جل جلاله دي مونږ او تاسو وبخښي [٥] تاسو زمونږ څخه مخکي رسیدلي یي او مونږ هم ستاسو وروسته راتلونکي یو، [٦] امام ترمذي رحمه الله دا روایت نقل کړي دي او فرمایلي یي دي چې دا حدیث حسن غریب دي.

**حل اللغات:** – ① سَلَفُنَا: زمونږنه مخکښې تلی یئ، ② بِالْأَثَرِ: ای تَابِعُونَ لَكُمْ مِنْ وَرَائِكُمْ: یعنی مونږهم تاسو پسې روسته راتلونکی یو.

**تسهیلات: قوله: فَأَقْبَلَ عَلَيْهِمْ بِوَجْهِهِ:**

**قبر طرف ته متوجه کیدل او دعا لوستل:** – په دې حدیث کښې دا واضحه الفاظ دی چه حضورپاك دَ قبرونوطرف ته متوجه شو اوهغوی ته ئی دعا سلام پیش کړو دا مسنون طریقه ده اوټول فقهاء او مجتهدین هم دا اخستې دې او دَټولو مسلمانانو په دې باندې عمل دې. صرف ابن حجر رحمه الله په دې مسئله کښې اختلاف کړې دې هغه فرمائی چه دَدعا په وخت مخ قبر طرف ته نه بلکه قبلې طرف ته کول پکاردی.

**قبر سره دعا کولو کښې لاسونه نه پورته کول:** – شیخ مظهر رحمه الله لیکی دَمړی زیارت دَ ژوندو دَ زیارت په شان دې کوم چه دَخلې او مخ طرف نه کیږی. لنده دا چه په ژوند کښې دَملاقات کوم آداب وی په قبر باندې هم هغه آدابو خیال ساتل پکاردی. البته دَ قبر طرف ته متوجه کیدو سره په دعاکښې لاسونه اوچتول مناسب نه دی ځکه چه په دې سره به عوام هم دغه خیال کوی چه دا سړې دَ مړی نه غوښتل کوی. دَدې فتنې په خطره کښې دَ ابن حجر رحمه الله په قول عمل زیات بهتر وی لیکن لاسونه اوچتولونه بغیر دعا اوسلام کښې دَ قبر طرف ته

[١] اخرجه الترمذی فی السنن كتاب الجنائز عن رسول الله صلى الله عليه وسلم / ما يقول الرجل إذا دخل المقابر (رقم-١٠٥٣)

متوجه کیدل بهتردی کوم چه عام معمول دې. اګرچه دَهندوستان دَ علماؤ باره کښې اوریدلی شوی دی چه هغوی دَ قبر طرف ته متوجه کیدو سره لاسونه اوچتولو سره دعا کوی.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [١٧٦٦] دَ شپې په وخت قبرستان ته تګ

١٧٦٦ – ()[٥] ١ «عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: ٢ كَانَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كُلَّمَا كَانَ لَيْلَتُهَا مِنْ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ٣ يَخْرُجُ مِنْ آخِرِ اللَّيْلِ إِلَى الْبَقِيعِ فَيَقُولُ: ٤ "السَّلَامُ عَلَيْكُمْ دَارَ قَوْمٍ مُؤْمِنِينَ، ٥ وَأَتَاكُمْ مَا تُوعَدُونَ، غَدًا مُؤَجَّلُونَ ٦ وَإِنَّا إِنْ شَاءَ اللهُ بِكُمْ لَاحِقُونَ، ٧ اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِأَهْلِ بَقِيعِ الْغَرْقَدِ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ١ د مؤمنانو مور بي بي عایشه صدیقه رضی الله عنها فرمایي ٢ چې په کومه شپه چې به د حضور صلی الله علیه وسلم نمبر زما سره وو ٣ نو حضور صلی الله علیه وسلم به د شپې په آخره حصه کښې پاڅیدلو او د مدیني قبرستان بقیع ته به یي تشریف وړلو او هلته به یي فرمایل: ٤ اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ دَارَ قَوْمٍ مُؤْمِنِيْنَ وَأَتَاكُمْ مَا تُوْعَدُوْنَ غَدًا مُؤَجَّلُوْنَ وَإِنَّا إِنْ شَاءَ اللهُ بِكُمْ لَاحِقُوْنَ اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِأَهْلِ بَقِيْعِ الْغَرْقَدِ اي قوم مؤمنین! په تاسو دي سلامتیا وي ٥ تاسو ته هغه څیز راغې چې د هغې ستاسو سره وعده شوي وه (یعني د ثواب او عذاب) صبا [یعنی د قیامت ورځ پورې] تاسو ته [تر یوي مقرري مودي پورې] مهلت درکول شوي دي ٦ او مونږ هم یقیناً چې الله تعالی جل جلاله وغواړي ستاسو سره یو ځاي کیدونکي یو ٧ اي الله جل جلاله بقیع غرقد والاو بخښې. (مسلم)

**حل اللغات:** – ① اَلْبَقِيعِ: په مدینه کښې دیو قبرستان نوم دې. ② غَدًا: صبا (یعنی ترقیامت د ورځې پورې). ③ مُؤَجَّلُونَ: أَيْ مُؤَخَّرُوْنَ: یعنی ثواب به تاسو ته روسته ملاوېږی. ④ لَاحِقُوْنَ: یوځای کیدونکی یو. ⑤ بَقِيعِ الْغَرْقَدِ: دمدینې مقبرې ته بقیع الغرقد هم وائي، نن صبا ورته خلق جنت البقیع وائی.

**تسهیلات:** **قوله:** يَخْرُجُ مِنْ آخِرِ اللَّيْلِ إِلَى الْبَقِيعِ:

**د بقیع وضاحت:** – په مدینه منوره کښې یوقبرستان دې په کوم کښې چه دَ صحابه کرامو رضی الله عنهم او اهل مدینه قبرونه دی. هم دَ دغه قبرستان نوم بقیع دې. دې ته بقیع غرقد هم وائی. او نن صبا عام خلق دې ته جنت البقیع وائی. دې وخت دَ مسجد نبوی دلاندې دې قبرستان ته رسیدلې دې. په دې کښې صرف دَحضرت عثمان رضی الله عنه قبر ښکاره او مشهور دې. دَ باقی قبرونو نښې نښانې دَ یوې منصوبې لاندې ورانې کړې شوی دی.

١) اخرجه مسلم فی کتاب الجنائز/باب ما يقال عند دخول القبور والدعاء لأهلها (رقم) ١٠٢ - (٩٧٤) والنسائی فی السنن کتاب الجنائز/الأمر بالاستغفار للمؤمنين (رقم-٢٠٣٩)

**[١٧٦٧] د مقبرې يوه بله دعا**

١٧٦٧–(٦)[١] ① وَعَنْهَا قَالَتْ: ② «كَيْفَ أَقُولُ يَارَسُولَ اللّٰهِ تَعْنِي فِي زِيَارَةِ الْقُبُورِ ③ قَالَ: قُولِي: "السَّلَامُ عَلَى أَهْلِ الدِّيَارِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُسْلِمِينَ، ④ وَيَرْحَمُ اللّٰهُ الْمُسْتَقْدِمِينَ مِنَّا وَالْمُسْتَأْخِرِينَ، ⑤ وَإِنَّا إِنْ شَاءَ اللّٰهُ بِكُمْ لَلَاحِقُونَ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او بي بي عايشه ﵂ فرمايي چې ما عرض اوكړو ② چې يا رسول الله ﷺ زه څرنګه اووايم يعنى د قبرونو د زيارت په وخت څه اووايم؟ ③ حضور ﷺ وفرمايل چې دا كلمات وايه اَلسَّلَامُ عَلٰى أَهْلِ الدِّيَارِ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُسْلِمِيْنَ وَيَرْحَمُ اللّٰهُ الْمُسْتَقْدِمِيْنَ مِنَّا وَالْمُسْتَأْخِرِيْنَ وَإِنَّا إِنْ شَاءَ اللّٰهُ بِكُمْ لَلَاحِقُوْنَ سلامتيا دې وي په دې كورونوالؤد مؤمنانو او مسلمانانو څخه ④ الله ﷻ دې په هغوئ رحم وكړي كوم چې مونږ څخه مخكې وو او په هغوئ دې هم رحمت وكړي كوم چې ز مونږ څخه روسته راتلونكي دي ⑤ يقيناً مونږ هم چې الله ﷻ وغواړي ستاسو سره يو ځاي كيدونكي يو. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① الْمُسْتَقْدِمِينَ: أَيِ الَّذِينَ تَقَدَّمُوا عَلَيْنَا بِالْمَوْتِ: يعنى كوم چه زمونږنه مخكښې مړه شوى دى. ② الْمُسْتَأْخِرِينَ: كوم چه به زمونږ نه وروسته مړه كيږى. ③ لَلَاحِقُونَ: يوځاى كيدونكى يو.

**تسهيلات:**

**قوله:** السَّلَامُ عَلٰى أَهْلِ الدِّيَارِ:

**د مړى د طرفه د سلام جواب وركول:** - عبدالبر په كتاب الاستذكار او تمهيد كښې د ابن عباس ﵁ په حوالې نقل كړى دى چې كوم كس د خپل مسلمان رور د قبر سره نزدې تير شى نو كه ده هغه پيژندو نو هغه به دده دسلام جواب وركړى داشان ابن ابى الدنيا ﵀ يو روايت نقل كړې دې چې حضرت ابوهريره ﵁ څخه منقول دى چې كوم كس د خپل مسلمان رور قبر سره نزدې تير شي او دې دا صاحب قبر پيژني نو چې دا ژوندې هغه ته سلام اوكړى هغه د ده د سلام جواب وركولې شى او كه هغه داسې قبر سره تير شى چې هغه دې نه پيژنى ليكن بيا هم ده صاحب قبر والاته سلام اوكړو نو دهغه د سلام جواب وركولې كيږى (مرقاة ج/٤ص/١١٤).

**[١٧٦٨] دَوالدينو قبرته هره جمعه دَتللو فضيلت**

١٧٦٨–(٧)[٢] ① وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ النُّعْمَانِ يَرْفَعُ الْحَدِيثَ إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ② "«مَنْ زَارَ قَبْرَ أَبَوَيْهِ أَوْ أَحَدِهِمَا فِي كُلِّ جُمُعَةٍ غُفِرَ لَهُ" ③ وَكُتِبَ بَرًّا». ④ رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ مُرْسَلًا.

[١] اخرجه مسلم فى كتاب الجنائز /باب ما يقال عند دخول القبور والدعاء لأهلها (رقم) ١٠٣ - (٩٧٤) والنسائى فى السنن كتاب الجنائز /الأمر بالاستغفار للمؤمنين (رقم-٢٠٣٨)

[٢] اخرجه البيهقى فى شعب الايمان حد يث رقم ٧٦٦١

**ترجمه:**[١] حضرت محمد بن نعمان رحمه الله دا حدیث تر رسول الله ﷺ پورې رسوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] کوم سړي چې د هري جمعې په ورځ (یا په هفته کښې یوه ورځ) د خپل مور او پلار یا په دوي کې د یو قبر ته لاړ شي [او هلته د هغوئ د پاره دعاء مغفرت او ایصال ثواب وکړي] نو د هغه مغفرت کیږی [٣] او هغه (په اعمال نامه کښې) د خپل مور او پلار سره نیکي کونکي لیکل کیږی [٤] دا روایت بیهقي رحمه الله په شعب کښې بطریق ارسال نقل کړي دي.

**حل اللغات:** - ①بَرًّا: نیکی کونکې (دمور او پلار سره).

**تسهیلات: قوله : غُفِرَلَهُ وَكُتِبَ بَرًّا:**

**د والدینو په زیارت کولو سره د ګناهونو معاف کیدل:** - دَدې مطلب دا دې چه کوم سړې دَ هرې جمعې په ورځ دَخپل والدینو قبرته لاړشی او هلته دَ ایصال ثواب دَپاره فاتحه اولولی نو دَ دغه ځوئی ټول ګناهونه معاف کیږی او دا ځوئی فرمانبردار لیکلې کیږی. دَ دې آخری جملې نه دا مفهوم هم اخستلې شی چه سره دَدې چه په والدین کښې یویا دواړه دَدغه ځوئی نه خفه وی او ځوئی عاق وی نو دَدې زیارت په برکت به دا ځوئی فرمانبردار لیکلې کیږی. دَ اولاد دَپاره دا یو ښکلې نعمت او آسان غنیمت دې.

**[١٧٦٩] قبرستان ته د تلو فائده**

١٧٦٩-( )[٨][١] وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ:[٢] "«كُنْتُ نَهَيْتُكُمْ عَنْ زِيَارَةِ الْقُبُورِ فَزُورُوهَا[٣] فَإِنَّهَا تُزَهِّدُ فِي الدُّنْيَا، وَتُذَكِّرُ الْآخِرَةَ»". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:**[١] حضرت ابن مسعود رضي الله عنه روایت کوي چې رسول الله ﷺ ارشاد وفرمایلو [٢] ما مخکي تاسو قبرونو ته د تلو څخه منع کړي وئ خو اوس تاسو قبرونو ته ځئ [٣] ځکه چې قبرونو ته تلل د دنیا څخه بي رغبتي پیدا کوي او آخرت رایادوي. (ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ①تُزَهِّدُ: د دنیا سره مینه محبت ختمیدل.

**تسهیلات: قوله : فَإِنَّهَا تُزَهِّدُ فِي الدُّنْيَا:**

**د زهد في الدنيا مطلب :** - ترک دنیا او دَ دنیا دَ سازوسامان نه بې رغبتی او مخ اړولو نوم تزهید دې.

**د زيارة القبور دوه فائدې:** - په دې حدیث کښې قبرونو ته دَ تللو فوائد او نتائجو په سلسله کښې دَ دوو فائدو ذکر کړې شوې دې.

① رومبې علت دا خودلې شوې دې چه قبرونو ته تللو سره زړه او دماغ نه دَ دنیا محبت او دَخپل ریاست قیادت سیادت او سیاست کبر او غرور اوځی او دَ انسان په زړه او دماغو

[١] اخرجه ابن ماجة كتاب الجنائز /باب ما جاء في زيارة القبور (رقم-١٥٧١)

کښې دا نقشه کیني.

انسان چه کله ګوري چه دَ پرون دا دَ تاج په سر کونکي بادشاه نن څنګه په بې کسئي او بې وسئي کښې پروت دې دَ چاپه قبرباندې چه هواګانې خاور الوزه وي اوهغه دَ غټو صوفو او ګدو په ځائې دَ خاورې په خالي فرش باندې بغیرد تکیه نه په تنګ او تیاره مکان کښې پروت دې په کوم کښې چه ارخ بدلول ګران دي.

④ چه کله دَ دنیا کموت او بې ثباتي په دماغوکښې کیني نو په دې سره دَ آخرت بقا او دوام نقشه په ذهن کښې راځي په کوم سره چه انسان سوچ وي چه په کوم ملك کښې هغه دنیا آباده وي هغه خو ختمیږي اودکومې په لاکهونو نموني چه په قبرستانونوکښې موجود دي. لهذا اوس دَ داسې وطن دَ آبادولوسوچ کول پکار دی کوم له چه زوال نشته بلکه دائمي ژوندون وي اوهم دَدې نوم آخرت دې.

[١٧٧٠] دَ ښځو قبرستان ته د تګ ممانعت

١٧٧٠-()[٩] [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- [٢] أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- لَعَنَ زَوَّارَاتِ الْقُبُورِ رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ، [٣] وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، [٤] وَقَالَ: قَدْ رَأَى بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ [٥] أَنَّ هَذَا كَانَ قَبْلَ أَنْ يُرَخِّصَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فِي زِيَارَةِ الْقُبُورِ، [٦] فَلَمَّا رَخَّصَ دَخَلَ فِي رُخْصَتِهِ الرِّجَالُ وَالنِّسَاءُ، [٧] وَقَالَ بَعْضُهُمْ: إِنَّمَا كُرِهَ زِيَارَةَ الْقُبُورِ لِلنِّسَاءِ لِقِلَّةِ صَبْرِهِنَّ [٨] وَكَثْرَةِ جَزَعِهِنَّ، تَمَّ كَلَامُهُ.

**توجمه:** [١] حضرت ابوهریره ﷛ فرمایي [٢] چې رسول الله ﷺ قبرونو ته په تلونکو ښځو باندې لعنت کړي دي. (احمد، ترمذي، ابن ماجه) [٣] او امام ترمذي ﷫ فرمایي چې دا حدیث حسن صحیح دي [٤] او فرمایلي یې دي چې د بعضې علماؤ خیال دا دي [٥] چې قبرونو ته تلونکو ښځو باندې لعنت کول هغه وخت وو چې حضور ﷺ د زیارت قبور اجازت نه وو ورکړي [٦] هر کله چې حضور ﷺ د تلو اجازت ورکړو نو په دې اجازت کښې سړي او ښځې دواړه شامل شو [٧] د دې بر خلاف د بعضې علماؤ تحقیق دا دي چې حضور ﷺ د ښځو قبرونو ته تلل ناخوښه کړي دي [٨] په ښځو کښې د صبر او تحمل د مادې د کمې په وجه [٨] او د هغوئ د ژړا فریاد د زیاتې په وجه (نو د ښځو د پاره دا ممانعت اوس هم باقي دي) د ترمذي ﷫ خبره پوره شوه.

**حل اللغات:** - ① زَوَّارَات: قبرونوته تلونکې ښځې، یا په کثرت سره تلونکې ښځې مراد دی. ② يُرَخِّصَ: اجازت نې ورکړې دې، ③ جَزَعِهِنَّ: دښځو ژړا او فریاد کول.

[١] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الجنائز عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ ما جاء فی کراهیة زیارة القبور للنساء(رقم-١٠٥٦) وابن ماجة کتاب الجنائز /باب ما جاء فی النهی عن زیارة النساء القبور (رقم-١٥٧٥)

**تسهیلات:**

**قوله: دَخَلَ فِي رُخْصَتِهِ الرِّجَالُ وَالنِّسَاءُ:**

په دې حدیث باندې دې نه مخکښې زیارت قبور دَ حدیث توضیح اوتشریح کښې مکمل کلام شوې دې. دلته دې حدیث کښې امام ترمذی رحمه الله هم بحث کړې دې چه قبرونو ته دَ تللو اجازت صرف سړو ته دې یا په دې اجازت کښې ښځې هم شامل دی. بهرحال په ظاهری حدیث کښې ډیر سخت وعید دې لهذا ښځوله پکاردی چه هغه یو مستحب فعل دَپاره په دې سخت وعید کښې پریوتو نه خپل ځان بچ کړی. زیات ترلیدلې شوې دی چه ښځې دَ مزو دَپاره مزارونو له ځی اوهلته بې پردګی کیږی او شرکیه اعمال کیږی.

**[١٧٧١] دښځودپاره د مړو څخه هم حیا کول**

١٧٧١—([1])[١٠] ١ وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - قَالَتْ: ٢ كُنْتُ أَدْخُلُ بَيْتِيَ الَّذِي فِيهِ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ٣ وَإِنِّي وَاضِعٌ ثَوْبِي وَأَقُولُ: ٤ إِنَّمَا هُوَ زَوْجِي وَأَبِي، ٥ فَلَمَّا دُفِنَ عُمَرُ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - مَعَهُمْ ٦ فَوَاللَّهِ مَا دَخَلْتُ إِلَّا وَأَنَا مَشْدُودَةٌ عَلَيَّ ثِيَابِي ٧ حَيَاءً مِنْ عُمَرَ. رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** ١ بي بي عایشه صدیقه رضي الله عنها د مؤمنانو مور فرمایي ٢ کله چې به زه هغه حجري مبارکي ته تلم چې په هغې کښې رسول الله صلی الله علیه وسلم [او حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه] دفن وو ٣ نو ما به د خپل بدن څخه کپړي (څادر) خکته کولو سره ایښودلې او په زړه کښې به می ویل ٤ چې دلته زما خاوند (حضور صلی الله علیه وسلم) او زما پلار (حضرت ابو بکر صدیق رضي الله عنه) دفن دي [او دا دواړه زما د پاره اجنبي نه دي نو بیا د پردي کولو څه مطلب] ٥ خو کله چې په دي حجره کښې د هغوئ سره حضرت عمر فاروق رضي الله عنه هم دفن شو ٦ نو قسم په خداي زه چې به کله په دي حجره کښې داخلیدم نو خپل بدن به می په جامو کښې رانغښتلو، ٧ د حضرت عمر رضي الله عنه څخه د حیاء په وجه (چي هغه اجنبي وو). (احمد)

**حل اللغات:** - ① وَاضِعٌ ثَوْبِي: ایښودلې به مې خپلې جامې، ② مَشْدُودَةٌ: اینغښتل شوې،

**تسهیلات: قوله: كُنْتُ أَدْخُلُ بَيْتِيَ:**

**مړو سره د هغوی د ژوند پشان معامله کول:** - دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم وصال دَ حضرت عائشه رضي الله عنها په حجره کښې شوې وو لهذا حضورپاك هم هلته دفن کړې شو. چونکه دادَ حضرت عائشه رضي الله عنها مکان وو نودعائشه رضي الله عنها دې ته تګ راتګ څه لرې خبره نه وه. بیا دَهغې نه پس حضرت صدیق اکبر رضي الله عنه هلته دفن کړې شو. بیا حضرت عمر رضي الله عنه درخواست اوکړو چه که حضرت عائشه رضي الله عنها اجازت راکړی نوما رسول الله صلی الله علیه وسلم اوزما ملګری صدیق اکبر رضي الله عنه سره دفن کړئی. حضرت عائشه رضي الله عنها اجازت ورکړو نو هغوی هم هلته دفن کړې شو. اوریدلی شوی

[1]) اخرجه احمد فی المسند رقم الحدیث ٢٦٤٠٨

دی چه په دغه حجره کښې يو بل خائ باقي دې چرته چه به حضرت عيسیٰ علیه السلام خښيږی. حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائي ترکومې چه حضرت عمر رضی الله عنه نه وو دفن کړې شوې نو زه به بې پرواه دَ حضورپاك اوصديق اکبر رضی الله عنه دَ قبر زيارت له ورتللم. خوچه کله عمر فاروق رضی الله عنه هلته دفن کړې شو نوزه به بيا بې پرواه زيارت کولوله نه تللم بلکه ښه په تکلف سره به مې کپړې راغونډې کړې او زيارت به مې کولو. دادَ حضرت عمرفاروق رضی الله عنه نه دَ حيا کولووجه وه ځکه چه هغه زما دَ محارم نه نه وو. داحديث په ډير وضاحت سره دا تعليم ورکوی چه دَ مرګ نه پس مړو سره دَهغوی په قبرونوباندې هم هغه معامله کول پکاردی کومه چه په ژوندون کښې کيږی يعنی دَ ادب حيا اواحترام دَ ټولو ارخونو خيال ساتل پکاردی. دَ حضرت عقبه بن عامر رضی الله عنه دا ارشاد نقل دې چه حضورپاك فرمائيلی دی که چرې زه په اور کښې لاړشم يادَ تيره تورې دَ پاسه لاړشم په کوم سره چه زما خپې اوسوزی يا پرې شی دا زما ډير خوښ دی دَهغې نه چه زه دَ چا په قبر لاندې لاړشی. بيا فرمائي چه زما په نيز په قبرونوباندې متيازې کول او په ډك بازارکښې بربنډيدو سره دَ خلقو په وړاندې متيازې کولو برابردی. هم دغه شان حضرت سليم بن عفيره رضی الله عنه متعلق مشهوره ده چه هغوی دَ يوسړی په جواب کښې اوفرمائيل چه په الله تعالی قسم زه دَ مړونه داسې حيا کوم څنګه چه دَ ژوندو نه کوم.

**دَ بعضې عالمانو دَ مړو څخه دَ مدد اخستلو دَقول توجيه:-** دلته دَدې حديث لاندې شيخ عبدالحق محدث دهلوی رحمه الله دَمړو نه دَ امداد اخستلو خبره کړې ده اودغه شان دَ امام غزالي طرف ته داجمله منسوب ده چه "من كان يستمد فى حياته يستمد بعدموته" [اشعة اللمعات] دَدې په شان دَ اقوالو بهترين توجيه شاه عبدالعزيز رحمه الله داسې فرمائيلې ده چه په مزاراتوکښې دَ زړه دَ نرى کيدو کيفيت شروع کيږی په کوم سره چه دَالله تعالی برکتونه نازليږی. په حقيقت کښې دا مراقبه او مکاشفه دَ ژوندی سړی خپل محنت دې مړی څه امدادنه دې کړې. البته مړې صرف واسطه جوړشوې دې. مطلب دا شو چه په ژوند کښې دَ يوژوندی سړی نه استفاده کولې شی نودَ مرګ نه پس هم دا الله والا په دې نيکئی کښې معاون ثابتيدې شی اودَ تعاون صورت هم دغه دې چه هغه په دغه کارکښې ذريعه او واسطه جوړيږی. ګنی داعمل خودَ مړی نه دې محنت اومشقت خوپخپله دَ دغه ژوندی سړی دې اوهم دَ دغې اعتباردې. دَدې مثال دَ پرنالې دې دَ کوم په ذريعه چه دَ چت اوبه ښکته راپريوځی. که يوسړې پرناله دَ اوبودَپاره مؤثر بالذات ګڼړی نوداغلطه ده ليکن پرناله صرف ذريعه او واسطه وی اودَ اوبو لاره وی نو په دې کښې څه حرج دې.

# [۶] كِتَابُ الزَّكَاةِ

## دزکات بیان

**خلاصة الباب:-**

**فيه اثنان وعشرون حديثاً مشتملة على تسع مسائل:**

① فريضة الزكوة: ۱-
② عقوبة من لا يؤدى الزكوة والزجرله : ۲، ۳، ۴، ۷، ۱۰، ۱۹، ۲۰، ۲۱ ،۲۲-
③ الدعاء للمصدق : ۶-
④ حق المصدق وثوابه:۵، ۱۱، ۱۲، ۱۳ ، ۱۴ -
⑤ قباحة الخيانة في مال الزكوة: ۸، ۹-
⑥ مكان أخذ الصدقات : ۱۵-
⑦ شرطية حولان الحول لفرضية الزكاة: ۱۶-
⑧ حكم تعجيل الزكوة: ۱۷-
⑨ حكم فرضية الزكاة فى مال الصبي: ۱۸ -

**د عبادت درې قسمونه:-** عبادات په درې قسمه دی. ①بدنی لکه مونځ، روژه ②مالی: لکه زکاة ③ ددې دواړو نه مرکب لکه حج.

**د صلاة څخه پس د زکات د ذکر کولو وجوهات:-** د قیاس تقاضا خودا وه.چه د کتاب الصلاة نه پس کتاب الصوم ذکرشوې وې.چه د بدنی دواړو عبادتونو ذکر پرله پسې یوځائې شوې وې.خوداسې اونکړې شو

① د کتاب الصلاه نه پس کتاب الزکاة څکه ذکرکړې شو.چه په دې ترتیب کښې د الله تعالی د کلام اود رسول اللهﷺ د کلام د دواړو اقتداء کیږی.د الله تعالی د کلام اقتداء خو په دې وجه ده.چه الله تعالی زکاة د مونځ نه پس متصل ذکرکړیدې.لکه چه ارشاد دې.
﴿ وَأَقِيمُوا الصَّلَوٰةَ وَءَاتُوا الزَّكَوٰةَ ﴾ اود رسول اللهﷺ دکلام اقتداء داسې ده.چه رسول اللهﷺ فرمائیلی دی. «بنى الاسلام على خمس شهادة أن لاإله إلا الله وأن محمدًا رسول الله وإقام الصلاة وإيتاء الزكاة..الحديث»

② زکاة او روژه دواړه کال ۲ھ کښې فرض شوی دی.خوصاحب د شرح نقایه ملاعلی قاری رحمه الله د بیان مطابق زکاة ړومبې فرض شوې دې.او روژه روسته.په دې وجه د زکاة بیان وړاندې اوکړې شو.اود روژې ددې نه پس.اود بعضو حضراتو خیال دې.چه زکاة په اجمال سره د هجرت نه مخکښې فرض شوې دې.خو په تفصیل سره د هجرت نه پس

فرض شوې دې.بهرحال د فرضیت ترتیب هم ددې تقاضا کوی. چه زکاة د روژې نه مقدم ذکرکړې شی.

**دزکاة لغوی معنی:-** ① د زکاة لغوی معنیٰ د طهارت ده.لکه﴿قَدْ أَفْلَحَ مَنْ تَزَكَّىٰ﴾،بې شك کامیاب شو هغه کس څوك چه پاك شو

② دزکاة معنی صدقه هم ده.څکه چه صدقه ورکول د صدقه ورکونکی د ایمان تصدیق کوی.اودده د قلبی حالت یعنی صدق اوپاکوالی ننبه ده. ،

③ د نماء(زیاتیدلو)په معنی کښې مستعمل دې.ددې معنیٰ په اعتبارسره وجه تسمیه داده.چه زکاة چونکه د مال د زیاتوالی سبب دې.په دې وجه ددې نوم زکاة کیخودلې شو.او زکاة سبب د نماء څکه دې.چه زکاة ورکونکی ته الله تعالی په دنیاکښې ددې عوض ورکوی.اوپه آخرت کښې ثواب ورکوی.

**دزکاة اصطلاحی تعریف:-** د شریعت په اصطلاح کښې زکاة وائی د نصاب حولی یو جزء فقیر او دده په شان د بل په ملك کښې ورکولوته.اوبعض وائی.چه زکاة د مال د هغه مقدار نوم دې.کوم چه د فقیر دپاره اوښکلې شوې وی.اود زکاة مال ورته په دې وجه وئیلې شوې دې.چه الله تعالی فرمائی﴿وَءَاتُوا۟ ٱلزَّكَوٰةَ﴾ او ،ایتاء، بغیر د ورکولونه محال ده.نومعلومه شوه. چه زکاة د مال نوم دې.

**د زکات د فرضیت سبب:-** د زکاة د وجوب سبب د نصاب نامی مالك کیدل دی.اوددې شرطونه د صاحب نصاب ازادکیدل، بالغ کیدل،عاقل کیدل،مسلمان کیدل،د قرض نه فارغ کیدل،اوپه مال نصاب باندې د کال تیریدل دی.د زکاة حکم پوره کونکې په دنیاکښې د مکلف کیدلوذمه داریٔ نه فارغ کیږی،او په آخرت کښې عذاب نه خلاصې موندل،او ثواب حاصلول دی.

**دزکات د فرضیت حکمتونه:-** ① په ښار کښې یقیناً هرقسمه خلق کمزوری او حاجت مند وغیره وی.اودا حادثات نن په یوکس اوصباله په بل باندې راتلونکی دی.نوکه د فقر اوحاجت لرې کولو طریقه په دوی کښې موجود نه وی.نودا خلق به یقیناً هلاك شی.اود اولږې خلق به مړه شی

② په دې کښې د اوچت درجه همدردی خودلې شی.دغه شان په خپل مینځ کښې گرم یخ یعنی د امیر غریب ملاویدلوسره مسلمان سره یوشی.په مالدارو باندې فرض دی.چه دوی اداکړی.که فرض نه وی.نوهم د انسانی همدردیٔ تقاضا ده.چه د غریبانانو امداد اوکړې شی.په انسان کښې همدردی اوچت صفت دې.نوپه زکاة ورکونکی کښې ددې د اثرنښې ښکاره کیږی.اوپه هرصحیح تبعیت کښې داخیره پرته ده.چه په دې کارکولوسره

د عامو انسانانوسره همدردی ده.دا یو داسې صفت دې.چه په دې باندې ډیراخلاق موقوف دی.چه ددې انجام(او نتیجه)د خلقو سره ښه معامله ده.او په کوم کس کښې چه د عامو انسانانوسره د همدردئ جذبه نه وی.په هغه کښې ډیر زیات نقصان وی.چه ددې اصلاح په هغه باندې واجب ده.اودا اصلاح عامو غریبانانو انسانانوته په مال ورکولو سره کیږی.

③ هرکله چه انسان د الله تعالی دپاره دا خپل خوږ مال په خپل لاس ورکوی.په کومې چه دده د ژوند دارومدار اود معیشت انحصار دې.اوکوم ئې چه په محنت،تکلیف او په مشقت سره ګټلې دې.بیا د بخل پلیتی دده نه اوځی.اوپه دې سره په ایمان کښې قوت او پوخوالې پیداکیږی.ځکه چه په محنت سره ګټلې شوې خپل مال خاص د الله د رضا حاصلولو دپاره ورکول،دا د خیرکار دې.چه په دې سره د بدن هغه ناپاکی چه کومه د تولو پلیتو نه زیاته ګنده ده.یعنی بخل لرې کیږی.ځکه چه دا حالت یعنی د بخل د پاکوالی دپاره خپل مال د الله تعالی په لاره کښې خرچ کول،او په خپل محنت سره حاصل شوې مال خاص دالله تعالی درضا دپاره نوروخلقو ته ورکول دترقئ یوحالت دې.یعنی اوچت حالت دې.سخاوت دې.مال سره محبت کمول دی.اوپه دې کښې صریحی او په ښکاره طور باندې د بخل د پلیتئ نه صفائی او پاکی حاصلیږی.اود الله تعالی رحیم او کریم ذات سره تعلق زیاتیږی.ځکه چه خپل عزیز مال د الله تعالی دپاره پریخودل، په نفس ګران وی.په دې وجه ددې تکلیف په برداشت کولوسره د الله تعالی سره تعلق هم زیاتیږی.او ایمانی قوت او طاقت هم زیاتیږی..والله اعلم

④ زکاة صدقات ګناهونه لرې کوی.اود برکاتو زیاتولو ډیرې غټې ذریعې دی.

**دزکات د فرضیت تاریخ:-**

**دزکات د فرضیت په تاریخ کښې درې اقوال:**-په دې کښې درې اقواله دی

① د هجرت نه پس سنه ٢هـ کښې، او هم دا کال د صوم د فرضیت هم دې، لیکن په دې دواړو کښې کوم یو مقدم دې، زکوة یا صوم؟ په دې کښې دواړه اقواله دی، **مال النووی فی الروضة إلی الأول** او د اکثرو رائې ددې برعکس ده، چه د صوم فرضیت مخکښې دې د زکوة نه،(ددې تائید مخکښې د حدیث نه هم کیږی) د صوم مشروعیت په شعبان سنه ٢هـ کښې اوشو، او د زکوة مشروعیت په شوال سنه ٢هـ کښې اوشو، البته د صدقة الفطر مشروعیت د زکوة نه مخکښې صوم سره شوې دې، لکه چه په مسند احمد او د نسائي په یو روایت کښې [1]ددې تصریح ده، چه دهغې راوی قیس بن سعد دې، هغه فرمائي أمرنا

[1] امام نسائي خو په دې حدیث باندې مستقل باب تړلې دې، باب فرض صدقة الفطر قبل نزول الزکوة،

رسول الله (صلی الله علیه وسلم) بصدقة الفطر قبل أن تنزل الزکوة ثم نزلت فریضة الزکاة.
په دې حدیث کښې ددې خبرې تصریح ده، چه نبی کریم ﷺ د صدقة الفطر حکم د فریضه زکوة نه مخکښې اوفرمائیلو، د زکوة نزول دهغې نه پس اوشو، او ددې نه دا خبره هم ثابته شوه، چه د صوم فرضیت هم د زکوة نه مخکښې دې، ځکه چه صدقة الفطر د صوم سره متعلق دې، نو هرکله چه صدقة الفطر د زکوة نه مقدم دې، نو صوم هم د زکوة نه مقدم شو، (قاله الحافظ)

② ابن الاثیر الجزری رحمه الله فرمائی چه د زکوة نزول په سنه ٩هـ کښې اوشو، لیکن دا قول مردود دې، ځکه چه ډیر داسې احادیث دی، چه یقینا د سنه ٩هـ نه مخکښې والا دی، په هغې کښې د زکوة ذکر موجود دې، مثلا حدیث د ضمام بن ثعلبة چه د سنه ٥هـ واقعه ده، هم داسې حدیث دهرقل چه د سنه ٧هـ واقع ده، البته د تحصیل زکوة دپاره د عاملانو لیږل په سنه ٩هـ کښې اوشو، کما قال الشراح.

③ محدث شهیر ابن خزیمه فرمائی چه د زکوة فرضیت قبل الهجرة دې، هغه دې لره د حدیث ام سلمه رضی الله عنها نه ثابت کړې دې، چه د هجرة الی الحبشة سره متعلق دې، چه د نجاشی د سوال په جواب کښې حضرت جعفر ابن ابی طالب رضی الله عنه اوفرمائیل : ویامرنا بالصلوة والزکوة والصیام چه محمد ﷺ مونږ ته د صلوة، زکوة او صیام حکم فرمائی، او دا قصه د هجرت مدینه نه مخکښې ده.

**اشکال:-** د ابن خزیمه په استدلال باندې حافظ اشکال کړې دې، هغه فرمائي **وفی استدلاله بذلك نظر.** ځکه چه دغه وخت پورې خو صلوات خمسه او صیام هم فرض نه وو،

**داشکال دوه جوابونه:-** ① نو کیدې شی، چه د دې دواړو په مینځ کښې دا سوال او جواب د حضرت جعفر رضی الله عنه حبشې ته رسیدلو سره سمدستی نه وو. بلکه څه موده پس شوې وی، او په هغې موده کښې دا څیزونه فرض کړې شوې وی، چه دهغې اطلاع حضرت جعفر رضی الله عنه ته په حبشه کښې اورسیدله، حافظ فرمائي **ولکنه بعید**ا

② بیا مخکښې لیکي: او بهتره داده، چه داسې اوئیلې شی، چه په دې حدیث کښې د صلوة او صیام او زکوة نه مطلق صلوة او روژه او صدقه مراد دی، نه صلوات خمسه، او صیام رمضان او زکوة معهود.

لیکن د ابن خزیمه نه علاوه نور هم د ډیرو علماؤ رائي هم داده، چه د زکوة فرضیت قبل الهجرة اوشو، البته دهغې تفصیلات او د نصاب مقررتیا د هجرت نه پس اوشو، ځکه چه ډیر آیات قرآنیه چه مکی دی، په هغې کښې د زکوة ذکر دې، لکه چه په شروع کښې تیر شوې دی، چه داسې قسمه آیتونه تقریبا اته(٨) دی، د ملا علی قاری تحقیق هم دادې، او

د مولانا انورشاه رحمه الله تحقیق هم دادې کما في فیض الباري.

**په انبیاء علیهم السلام باندې د زکات فرضیت:-** په بعضو کتابونو د حنفیه او مالکیه کښې تصریح ده، کما في الاوجز) چه زکوة په انبیاء علیهم السلام باندې واجب نه دې، او په درمختار کښې ئې خوپه دې باندې اجماع نقل کړې ده، لیکن په ظاهر کښې د اجماع نه د علماء احناف اجماع مراد ده، ځکه چه مطلقا په دې اجماع کیدل بل یو کتاب کښې هم نه ملاویږي. بلکه صاحب روح المعاني د واوصاني بالصلوة والزکوة مادمت حیا په تفسیر کښې په دې سلسله کښې د تردد اظهار کړې دې، بلکه بعض کتب شافعیه لکه انوار ساطعه کښې د دې خبرې صراحت موجود دی. چه د شوافع په نزد د انبیاء کرامو دپاره ملک هم ثابتیږي، او که هغوی صاحب نصاب وی، نو زکوة هم په هغوی واجب دې.

**په انبیاؤ باندې د عدم وجوب زکات په مقصد کښې اقوال:-** د کومو علماؤ په نیز چه واجب نه دې، نو د عدم وجوب مقصد څه دې؟ په دې کښې څو اقوال دی،

① بعضې وائي: ځکه چه الله تعالی انبیاء کرامو لره د دنیا د مال او متاع نه پاک ساتلې دی، هغوی سره چه څه وو هغه په حقیقت کښې د امانت او ودیعة په طور باندې وو، ملک د الله تعالی وو.

② بعض داسې وائي چه زکوة ذریعه ده، د تطهیرد مال، او کسب دانبیاء د مخکښې نه پاک او طیب دې، د تطهیر ضرورت نشته، .

③ زکوة د بخل او رذیل عاداتو د ازالې ذریعه ده، او انبیاء کرام د دې نه پاک دی۔

**په زکات او ټیکس کښې فرق:** دَ اسلام معاندین او ملحدین دَ زکوة په نظام باندې اعتراض کولو سره وائی چه دا ټیکس دې څه عبادت نه دې. دَدوی د دې اعتراض رد کولو دَپاره دا ضروری دی چه په زکوة او ټیکس کښې فرق واضح کړی. په یو څو وجوهاتو سره دې فرق ته اوګورئ:

① زکوة دَالله تعالی دَ طرف نه په مسلمان باندې مقرر دې. ټیکس دَ انسانانو دَطرف نه مقرر دې.

② دَ زکوة فرض کیدو نه پس ئې څوك معاف کولې نه شي خو ټیکس معاف کیدې شي.

③ دَ زکوة په مقدار کښې هیڅ یو انسان کمې زیاتې نه شي کولې خو دَ ټیکس په مقدار کښې انسان کمې زیاتې کولې شي.

④ زکوة دَ یو مسلمان دَ پاره دَ عبادت حیثیت لری خو ټیکس عبادت نه دې.

⑤ دَ زکوة مقدار دَ شریعت دَ طرف نه متعین وی کوم چه په پوره دنیا کښې یوشان وی. ولې ټیکس کښې داسې هیڅ تعین نشته چه دَ ټولو انسانانو دَپاره یوشان وی.

⑥ زکوة دَ مالدارانو مسلمانانو نه اخستې شي او غریبانانو مسلمانانو ته ورکولې شي. ولې ټیکس دَ غریبانانو نه اخستې شي او امیرانو ته ورکولې شي.

⑦ دَ زکوة اصول او قواعد په انصاف باندې مبنی دی خو دَ ټیکس قواعد په ظلم باندې قائم دی.

⑧ زکوة هله فرض کیږی کله چه سړې صاحب نصاب وی خو په ټیکس کښې دَ هیڅ نصاب اوحیثیت اعتبار نشته دې.

⑨ په نظام زکوة سره دَ زکوة اخستونکی او زیات ورکونکی په مینځ کښې محبت پیدا کیږی خو دَ ټیکس په نظام سره نفرت او عداوت پیدا کیږی.

⑩ دَ زکوة په ادکولو سره په مال کښې برکت راځی خو ټیکس کښې دا څیز نشته دې.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[١٧٧٢] حضرت معاذ ته د زکاة په باره کښې احکام خودل**

١٧٧٢ـ(١)[١] ١ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بَعَثَ مُعَاذًا إِلَى الْيَمَنِ فَقَالَ: ٢ "«إِنَّكَ تَأْتِي قَوْمًا أَهْلَ كِتَابٍ، ٣ فَادْعُهُمْ إِلَى شَهَادَةِ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ، وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللّٰهِ، ٤ فَإِنْ هُمْ أَطَاعُوا لِذٰلِكَ فَأَعْلِمْهُمْ ٥ أَنَّ اللّٰهَ قَدْ فَرَضَ عَلَيْهِمْ خَمْسَ صَلَوَاتٍ فِي الْيَوْمِ وَاللَّيْلَةِ، ٦ فَإِنْ هُمْ أَطَاعُوا لِذٰلِكَ فَأَعْلِمْهُمْ ٧ أَنَّ اللّٰهَ قَدْ فَرَضَ صَدَقَةً، ٨ تُؤْخَذُ مِنْ أَغْنِيَائِهِمْ فَتُرَدُّ عَلَى فُقَرَائِهِمْ، ٩ فَإِنْ هُمْ أَطَاعُوا لِذٰلِكَ ١٠ فَإِيَّاكَ وَكَرَائِمَ أَمْوَالِهِمْ، ١١ وَاتَّقِ دَعْوَةَ الْمَظْلُومِ، ١٢ فَإِنَّهُ لَيْسَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ اللّٰهِ حِجَابٌ» "، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمایي چې رسول الله ﷺ چې معاذ رضي الله عنه قاضي جوړولو سره یمن ته لیږلو نو هغه ته یي وفرمایل ٢ چې ته په اهل کتاب کښې یو قوم (یهود او نصارې) ته ځي ٣ نو د اول ته هغوی ته د دې خبرې د ګواهي ورکولو دعوت ورکړه چې د الله تعالی جل جلاله څخه سوا بل څوک معبود نشته او بیشکه محمد ﷺ د الله جل جلاله رسول دي ٤ که هغوئ دا دعوت قبول کړي نو بیا هغوئ ته دا اوایه ٥ چې الله تعالی جل جلاله په هغوئ په ورځ او په شپه کښې پنځه مونځونه فرض کړي دي ٦ که هغوی دا اومنی نو بیا د دې څخه روسته هغوی خبر کړه ٧ چې الله تعالی جل جلاله په هغوئ زکات فرض کړي دي ٨ چې د هغوئ د مالدارو څخه به (یعني د هغه خلقو څخه چې صاحب نصاب وي) اخستل کیږی او د هغوئ فقیرانو ته ورکول کیږی ٩ که هغوئ دا هم ومني ١٠ نو ته (دا یاد ساته چې د

---

(١) اخرجه البخاری فی کتاب الزکاة/باب أخذ الصدقة من الأغنياء وترد فی الفقراء حیث کانوا (رقم-١٤٩٦) ومسلم فی کتاب الإیمان/باب الدعاء إلی الشهادتین وشرائع الإسلام (رقم-٢٩ - (١٩) وابوداود فی السنن کتاب الزکاة/باب فی زکاة السائمة (رقم-١٥٨٤) والترمذی کتاب الزکاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی کراهیة أخذ خیار المال فی الصدقة (رقم-٦٢٥) والنسائی کتاب الزکاة/باب إخراج الزکاة من بلد إلی بلد(رقم-٢٥٢٢) واحمد فی المسند ٢٣٣/١

هغوئ څخه په زکات کښې ) د ښه مال د اخستو څخه پرهيز کوه [يعنى چانټ کولو سره ښه مال مه آخله بلکه د هغوئ مال په دريو حصو کښې تقسيموه ښه، خراب او درميانه نو په زکات کښې درميانه مال اخله] ⑪ [او ته په زکات کښې غير قانوني سختي کولو سره يا د هغوئ څخه د داسې څيزونو مطالبه کولو سره چې په هغوئ واجب نه وي يا هغوئ ته په ژبه يا لاس سره تکليف ورکولو سره] د هغوئ بد دعا (ښيرا) مه اخله ⑫ څکه چې د مظلوم د دعاء او د الله تعالیٰ ﷻ د طرف څخه د هغه دعا د قبوليت په مينځ کښې څه پرده نشته.(بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① فَإِيَّاكَ: خان اوساته، ② كَرَائِمَ: د كَرِيمَة جمع ده، ښه مال، ③ اتَّقِ: خان ساته، ④ دَعْوَةَ: بد دعا، خيرې، ⑤ حِجَابٌ: أَيْ مَانِعٌ: پرده او حائل.

**تسهيلات: قوله: إِنَّكَ تَأْتِي قَوْمًا أَهْلَ كِتَابٍ:**

**د اهل كتاب څخه مراد:** - دَاهل كتاب نه مراد يهود اونصارى دى. سره دَدې چه په يمن کښې نور مشرکان او کافران خلق هم وو ليکن يهود او نصارى چونکه زيات وو په دې وجه دَهغوى ذکر اوکړې شو.

**قوله: فَادْعُهُمْ:**

**د دعوت الى الاسلام حكم:** - ابن ملك رحمه الله فرمائى چه کافرانوته دَ جنګ او جهادنه مخکښې دَ اسلام دعوت ورکول هغه وخت واجب دى کله چه هغوى ته دعوت نه وى رسيدلې که چرې دعوت رسيدلې وى نو دوباره دعوت ورکول مستحب دى.دَاحنافود فقهاؤ موقف هم دغه دې.

**قوله: فَإِنْ هُمْ أَطَاعُوا:**

**داحنافو د مذهب تائيد:** - دَدې حديث نه معلومه شوه چه کافرانو ته دَ اسلام دَ ورومسائلوحکم نشته بلکه اول دَ توحيد او ايمان حکم دى. چه کله ايمان نه وى نودَ مونځ روژې اوزكوة اعتبارنشته دې دَ ائمه احناف موقف هم دغه دې. شوافع وغيره حضراتو په نيز کافرانوته دَ ورو مسائلوحکم نشته. بيا په دوى باندې يو اعتراض راځى چه دَ اسلام قبلولو نه مخکښې خو مونځ صحيح نه دې اودَ اسلام قبلولونه پس دَمونځ وغيره قضاء نشته نوبيا دَ دې ورومسائلودَ حکم څه مطلب دې؟ شوافع له جواب ورکول پکاردى.

**[١٧٧٢] دزكات نه وركونكو دپاره وعيد**

١٧٧٣-(١)[٢] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② "«مَا مِنْ صَاحِبِ ذَهَبٍ وَلَا فِضَّةٍ لَا يُؤَدِّي مِنْهَا حَقَّهَا ③ إِلَّا إِذَا كَانَ يَوْمُ الْقِيَامَةِ صُفِّحَتْ لَهُ صَفَائِحُ مِنْ نَارٍ ④ فَأُحْمِيَ عَلَيْهَا فِي نَارِ جَهَنَّمَ، ⑤ فَيُكْوَى بِهَا جَنْبُهُ وَجَبِينُهُ وَظَهْرُهُ، ⑥ كُلَّمَا رُدَّتْ أُعِيدَتْ لَهُ، ⑦ فِي يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهُ خَمْسِينَ أَلْفَ سَنَةٍ ⑧ حَتَّى

[١] اخرجه البخارى فى كتاب الزكاة/باب إثم مانع الزكاة (رقم-١٤٠٢) وابوداود فى السنن كتاب الزكاة/باب فى حقوق المال (رقم-١٦٥٨)

يُقْضَى بَيْنَ الْعِبَادِ، ٩ فَيَرَى سَبِيلَهُ إِمَّا إِلَى الْجَنَّةِ وَإِمَّا إِلَى النَّارِ"،

**ترجمه:** ١ حضرت ابوهريره رضي الله عنه روايت كوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ كوم سړي چې د سرو زرو او د سپينو زرو (د شرعي نصاب) مالک وي او د هغې حق (يعني زكات) ادا نه كړي ٣ نو د قيامت په ورځ به د هغه د پاره د اور تختي جوړې شي (يعني تختي خو به د سرو او سپينو زرو وي خو هغه به په اُور كنبې دومره ګرمي شي لكه چې د اور تختي به وي (هم په دې وجه حضور ﷺ مخكې وفرمايل چه) ٤ هغه تختي به په اور كنبې ګرمې كړل شي ٥ او په هغه تختو سره به دهغه سړي اړخ، د هغه تندي او د هغه شا داغل كيږي ٦ بيا به هغه تختي [د هغه د بدن څخه] جدا كړل شي او په اُور كنبې ګرمولو سره به بيا راوړل شي (يعني هغه تختي چې يخې شي نو دوباره به د ګرمولو د پاره په اُور كنبې واچول شي او د هغه ځاي څخه را اوخكلو سره د هغه سړي بدن به پرې داغل كيږي) ٧ او د هغه ورځې مقدار چې په هغې كنبې به دا سلسله دغه شان جاري وي پنځوس زره [٥٠٠٠٠] كاله به وي ٨ تر دې چې د بنده ګانو حساب كتاب به ختم شي ٩ او هغه سړي به د جنت يا د دوزخ طرف ته خپله لار ووينې.

**حل اللغات:** - ① صُفِحَتْ: داد صفحة جمع ده تختې ته وائي. يعني دَ سرو زرو او سپينو زرو نه به دَ اور تختې جوړولې شي اوپه دې سره به زكوة نه وركونكى داغلې شي. ② فَأُحْمِيَ: يعني دغه تختې به بنه ګرمولې شي. ③ فَيُكْوَى: په اور سره داغونه وركولو ته وائي. ④ جَنْبُهُ: اړخ، طرف، ⑤ رُدَّتْ أُعِيدَتْ: يعني چه دسرو زرو اوسپينو زرو هغه تختې يخې شي نودَ بيا ګرمولودَپاره به اوړلې شي اوبيا دَ داغلودَپاره دوباره راوړلې شي. ⑥ جَبِينُهُ: تندي،

١ قِيلَ: يَارَسُولَ اللّٰهِ فَالْإِبِلُ؟ ٢ قَالَ: "وَلَا صَاحِبُ إِبِلٍ لَا يُؤَدِّي مِنْهَا حَقَّهَا ٣ وَمِنْ حَقِّهَا حَلْبُهَا يَوْمَ وِرْدِهَا، ٤ إِلَّا إِذَا كَانَ يَوْمُ الْقِيَامَةِ بُطِحَ لَهَا بِقَاعٍ قَرْقَرٍ، أَوْفَرَ مَا كَانَتْ، ٥ لَا يَفْقِدُ مِنْهَا فَصِيلًا وَاحِدًا، ٦ تَطَؤُهُ بِأَخْفَافِهَا وَتَعَضُّهُ بِأَفْوَاهِهَا، ٧ كُلَّمَا مَرَّ عَلَيْهِ أُولَاهَا رُدَّ عَلَيْهِ أُخْرَاهَا ٨ فِي يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهُ خَمْسِينَ أَلْفَ سَنَةٍ، ٩ حَتَّى يُقْضَى بَيْنَ الْعِبَادِ، ١٠ فَيَرَى سَبِيلَهُ إِمَّا إِلَى الْجَنَّةِ وَإِمَّا إِلَى النَّارِ"،

**ترجمه:** ١ صحابه وُ عرض اوكړو چې يا رسول الله ﷺ (دا عذاب خو به د نقدي يعنى د سرو او سپينو په باره كنبې وي) د اوښانو د زكات نه وركونكو به څه حشر وي؟ ٢ رسول الله ﷺ وفرمايل چې كوم سړي د اُوښانو مالک وي او د هغې حق (زكات) ادا نه كړي ٣ او د اُوښانو يو حق دا هم دې چې په كومه ورځ په هغې د اوبو څكلو وار وي د هغې شيدې (پيۍ) ولوشل شي(دغه شيدې (پيۍ) په لار تيريدونكو، غريبانو، مسكينانوته وركړي [داحكم استحبابي دې په دې خو عذاب نشته بيادذي ذكردلته استطراداً دې البته كه قحط سالي وي بيا د شيدو منع كول حرام اوموجب دعذاب دي .مرقاة... از مصحح] ٤ نو د قيامت په ورځ به هغه سړي د اوښانو په مخكې په آوار ميدان كنبې پرمخې پرې ويستل شي او د

هغه ټول اوښان به په شمير او څرب والي کښې پوره وي [٥] مالک به د هغې څخه يو بچې هم کم بيا نه مومی [يعني د هغه سړي ټول اوښان به هلته موجود وي حتٰی چې د هغه اوښانو ټول بچې به هم د هغې سره وي بيا دا چې اوښان به ښه څرب (څرب) غټ او تازه وي چې] [٦] خپل مالک ته په پښو کښې د ميده کولو په وخت ښه تکليف ورته وررسوي نو) هغه اوښان به هغه په خپلو پښو سره مړي (چختاړ کوي) او په خپلو غاښونه سره به يې چيچي [٧] هر کله چې د هغه اوښانو جماعت چختاړ کولو او چيچلو سره لاړ شي نو دويم جماعت به راشي [د اوښانو يو قطار به مړلو او چيچلو سره لاړ شي د هغې وروسته به بل قطار راشي دغه شان دا سلسله به جاري وي] [٨] او په کومه ورځ چې دا وي د هغه ورځې مقدار به پنځوس زره [٥٠٠٠٠] کاله وي [٩] تر دې چې د بنده ګانو حساب او کتاب به وشي [١٠] او هغه سړي به د جنت يا دوزخ طرف ته خپله لار ويني.

**حل اللغات:-** (٧) حَلَبُهَا: لوشل، (٨) وِرْدِهَا: داوبو څکلو وار، نمبر، (٩) بُطِحَ: پړمخې سملولوته وائی.

> [١] قِيلَ يَا رَسُولَ اللهِ: فَالْبَقَرُ وَالْغَنَمُ؟ [٢] قَالَ: " وَلَا صَاحِبُ بَقَرٍ وَلَا غَنَمٍ لَا يُؤَدِّي مِنْهَا حَقَّهَا [٣] إِلَّا إِذَا كَانَ يَوْمُ الْقِيَامَةِ بُطِحَ لَهَا بِقَاعٍ قَرْقَرٍ، [۴] لَا يَفْقِدُ مِنْهَا شَيْئًا، [٥] لَيْسَ فِيهَا عَقْصَاءُ وَلَا جَلْحَاءُ وَلَا عَضْبَاءُ، [٦] تَنْطِحُهُ بِقُرُونِهَا، [٧] وَتَطَؤُهُ بِأَظْلَافِهَا، [٨] كُلَّمَا مَرَّ عَلَيْهِ أُولَاهَا رُدَّ عَلَيْهِ أُخْرَاهَا، [٩] فِي يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهُ خَمْسِينَ أَلْفَ سَنَةٍ، [١٠] حَتَّى يُقْضَى بَيْنَ الْعِبَادِ، [١١] فَيُرَى سَبِيلُهُ إِمَّا إِلَى الْجَنَّةِ وَإِمَّا إِلَى النَّارِ ".

**ترجمه:** [١] صحابه و ﷺ عرض اوکړو چې يا رسول الله ﷺ د غويانو او بزو د مالک به څه حال وي؟ [٢] رسول الله ﷺ وفرمايل چې کوم سړي د غوايو او بزو مالک وي او د هغې زکات ادا نه کړي [٣] نو د قيامت په ورځ به هغه په آوار ميدان کښې پړمخې واچول شي [او د هغه غويان او بزې (چيلئ) به راوستل شي] [۴] چې په هغې کښې به هيڅ کمي نه وي [٥] په هغې کښې به د يو غوا، بزې ښکر نه تاؤ وي، نه به مات وي او نه به هغه بغير د ښکرو وي يعنی د هغه د ټولو په سرونو به ښکرونه وي مات به نه وی سالم به وي [٦] چې هغه به خپلو ښکرونو سره ښه ګذار وکړی شي نو هغه غوايه او بزې (چيلئ) به په خپلو ښکرونو سره خپل مالک وهي خپلو پنجو سره به يې پامال کوی [٨] او هر کله چې يو قطار د هغه وهلو سره ولاړ شي نو دويم قطار به راشي او خپل کار به شروع کړي [او دا سلسله به دغه شان جاري وي] [٩] او په کومه ورځ چې دا وي د هغې مقدار به پنځوس زره کاله وي [١٠] تر دې چې د بنده ګانو حساب کتاب به وشی [١١] او هغه سړي به د جنت يا د دوزخ طرف ته خپله لار ويني

**حل اللغات:-** (١٠) قَاعٍ: ميدان. (١١) قَرْقَرٍ: هوار، صفا. (١٢) أَوْفَرَ: أَيْ أَكْثَرَ: زيات پوره او څرب به وی. (١٣) لَا يَفْقِدُ: يعنی هيڅ به پکښې کم نه وی. (١٣) فَصِيلًا: داوښ بچی ته وائی، (١٥) تَطَؤُهُ: دا اوښان به ئې په خپو کښې ښه پامال کوی. (١٦) أَخْفَافِهَا: أَيْ بِأَرْجُلِهَا: په خپو سره، (١٧) تَعَضُّهُ: أَيْ تَقْرِضُهُ وَتَقْطَعُ جِلْدَهُ: چکونه به پرې

لګوی او ښکرمن به ترې شوکوی. ⑱ عَقْصَاءُ : أَيْ مُلْتَوِيَةُ الْقَرْنَيْنِ: چه ښکرونه راتاو او کاږه وی. ⑲ جَلْحَاءُ: أَيْ لَاقَرْنَ لَهَا: هغه غوا اوچیلئ د کومې ښکر چه نه وی ⑳ عَضْبَاءُ: أَيْ مَكْسُورَةُ الْقَرْنِ: هغه غوا اوچیلئ د کومې چه ښکر مات وی. ㉑ تَنْطِحُهُ: نطح په ښکروباندې وهلو ته وائی. ㉒ أَظْلَافِهَا: د ظِلْف جمع ده، نوکانو ته وائی.

١ قِيلَ: يَارَسُولَ اللّٰهِ فَالْخَيْلُ؟ ٢ قَالَ: "فَالْخَيْلُ ثَلَاثَةٌ: هِيَ لِرَجُلٍ وِزْرٌ ٣ وَهِيَ لِرَجُلٍ سِتْرٌ ٤ وَهِيَ لِرَجُلٍ أَجْرٌ، ٥ فَأَمَّا الَّتِي هِيَ لَهُ وِزْرٌ فَرَجُلٌ رَبَطَهَا رِيَاءً وَفَخْرًا ٦ وَنِوَاءً عَلَى أَهْلِ الْإِسْلَامِ، فَهِيَ لَهُ وِزْرٌ ٧ وَأَمَّا الَّتِي هِيَ لَهُ سِتْرٌ فَرَجُلٌ رَبَطَهَا فِي سَبِيلِ اللّٰهِ ٨ ثُمَّ لَمْ يَنْسَ حَقَّ اللّٰهِ فِي ظُهُورِهَا، وَلَا رِقَابِهَا، فَهِيَ لَهُ سِتْرٌ،

**ترجمه:** ١ صحابه ؤ عرض اوکړو چې يا رسول اللهﷺ د آسونو په باره کې څه حکم دي؟ ٢ حضور ﷺ وفرمايل چې اسونه په درې قسمه دي ① يو خو هغه اسونه دي چې د سړي د پاره د ګناه سبب وي ٣ ② دويم هغه اسونه چې د سړي د پاره پرده وي ٤ ③ او دريم هغه اسونه چې د سړي د پاره د ثواب سبب او ذريعه جوړيږي ٥ هغه اسونه چې د ګناه سبب وی د هغه سړي اسونه دي چې د هغې مالک هغه د فخر او غرور د اظهار او مالداري او ريا د پاره د پاره تړلي وي ٦ او د مسلمانانو سره د دشمنی د پاره يې تړلي وي نو هغه اسونه د خپل مالک د پاره د ګناه سبب جوړيږي ٧ او هغه اسونه چې د سړي د پاره پرده وي د هغه سړي اسونه دي چې د هغې مالک د الله ﷻ په لار ه کښې [د کار اخستو د پاره] تړلي وي ٨ او د هغې د شا او د هغې څټ (غاړی) په باره کښې هغه د الله ﷻ حق نه وي هيرکړي نو هغه آسونه د خپل مالک د پاره پرده دي

**حل اللغات:-** ㉓ وِزْرٌ: أَيْ ثِقْلٌ وَإِثْمٌ: يعنی بوج اوګناه، ㉔ سِتْرٌ: پرده، دې نه مراد ثواب دې. ㉕ وَنِوَاءً: أَيْ مُنَازَعَةً: جنګ او دښمنئ ته وائی.

١ وَأَمَّا الَّتِي هِيَ لَهُ أَجْرٌ فَرَجُلٌ رَبَطَهَا فِي سَبِيلِ اللّٰهِ لِأَهْلِ الْإِسْلَامِ ٢ فِي مَرْجٍ وَرَوْضَةٍ ٣ فَمَا أَكَلَتْ مِنْ ذٰلِكَ الْمَرْجِ أَوِ الرَّوْضَةِ مِنْ شَيْءٍ ٤ إِلَّا كُتِبَ لَهُ عَدَدَ مَا أَكَلَتْ حَسَنَاتٌ ٥ وَكُتِبَ لَهُ عَدَدَ أَرْوَاثِهَا وَأَبْوَالِهَا حَسَنَاتٌ ٦ وَلَا تَقْطَعُ طِوَلَهَا فَاسْتَنَّتْ شَرَفًا أَوْ شَرَفَيْنِ، ٧ إِلَّا كَتَبَ اللّٰهُ لَهُ عَدَدَ آثَارِهَا وَأَرْوَاثِهَا حَسَنَاتٍ ٨ وَلَا مَرَّ بِهَا صَاحِبُهَا عَلَى نَهْرٍ فَشَرِبَتْ مِنْهُ ٩ وَلَا يُرِيدُ أَنْ يَسْقِيَهَا ١٠ إِلَّا كَتَبَ اللّٰهُ لَهُ عَدَدَ مَا شَرِبَتْ حَسَنَاتٍ"،

**ترجمه:** ١ او هغه آسونه چې د سړي د پاره د ثواب سبب او ذريعه جوړيږي د هغه سړي اسونه دي چې د هغې مالک د الله تعالی ﷻ په لار کښې د جهاد (غزا) دپاره د مسلمانانو د پاره تړلي وي ٢ او هغه په ورشو (چراګاه) او په سبزه کښې ساتي ٣ هغه اسونه چې د چراګاه او سبزه څخه څه خوري نو څه چې هغوئ وخوړل ٤ [يعني د وابنو وغيره د تعداد په قدر] د هغه د پاره نيکي ليکل کيږی ٥ تر دې چې د هغه اسونو خاشنړه او د هغې د متيازو په اندازه هم د هغه د پاره نيکي ليکل کيږی (ځکه چې خاشنړه او متيازې هم د آس د ژوند باعث دي) ٦ او کوم اسونه چې رسي شلولو سره يو يا دوه ميدان زغلي ګرځي ٧ نو

الله تعالی ﷻ د هغې د قدمونو نښو او د هغې د خاشنړو (چې هغه يې د زغليدلو په حالت کښې کوي) د تعداد په قدر د هغه سړي د پاره نيکي ليکي [٨] او هر کله چې هغه سړي هغه اسونه نهر ته د اوبو د څکلو د پاره بوزي او هغه د نهر څخه اوبه څښي [٩] اګر که د مالک اراده په هغې د اُوبو د څکلو نه وي [١٠] خو الله تعالی ﷻ د اسونو د اُوبو څکلو په قدر د هغه سړي د پاره نيکي ليکي.

**حل اللغات:** - ⑯مَرْجٍ: دې نه مراد کولاؤ او فراخ دَ څرن ځائی دې. په کوم کښې چه جهادی اسونه ساتلې شی ⑰رَوْضَةٍ: سبزه زار، شينکی، ⑱أَرْوَاثٍ: د روث جمع ده، خاشنړو، او سوتيو ته وائی. ⑲أَبْوَالٍ: د بول جمع ده، متيازو ته وائی. ⑳طِوَلِهَا: أَيْ حَبْلَهَا: داهغه رسئی ته وائی چه دَ کومې يو طرف دَ ميخ وغيره سره تړلې کيږی اوبل طرف دَ اس خپې پورې تړلې شی دې دَپاره چه اس اونه تختی. ㉑فَاسْتَنَّتْ: تيزې منډې او ټوپونو وهلوته استنان وائی. ㉒شَرَفًا: اى مَوْضِعًا عَالِيًا: اوچت ځائ ته شرف وائی.

[١] قِيلَ: يَا رَسُولَ اللهِ فَالْحُمُرُ؟ [٢] قَالَ: "مَا أُنْزِلَ عَلَيَّ فِي الْحُمُرِ شَيْءٌ إِلَّا هَذِهِ الْآيَةُ الْفَاذَّةُ الْجَامِعَةُ [٣] ﴿فَمَنْ يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْرًا يَرَهُ [٤] وَمَنْ يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ شَرًّا يَرَهُ﴾ [الزلزلة:٧]» " رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] صحابه ؤ ﷺ عرض وکړو چې يا رسول الله ﷺ بنه د خرو په باره کښې څه حکم دي؟ [٢] حضور ﷺ وفرمايل چې د خرو په باره کښې په ما څه حکم نه دي نازل شوي ليکن د ټولو نيکو او اعمالو په باره کښې دا آيت جامع دي: [٣] **فَمَنْ يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْرًا يَرَهُ وَمَنْ يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ شَرًّا يَرَهُ** کوم سړي چې يوه زره برابر د نيکي عمل وکړي هغه به ووينې [٤] او کوم سړي چې يوه ذره بد عمل وکړي هغه به ووينې (يعنی مثلاً که يو سړي چا ته د نيک کار د پاره خپل خر ورکړي نو ثواب به اومومی او که د بد کار د پاره يي ورکړي نو ګنهګار به وي) (مسلم)

**حل اللغات:** - ㉓الْفَاذَّةُ: چه خاص او منفرد وی، ㉔الْجَامِعَةُ: چه جامع وی ټولو ته.

**تسهيلات:**

**قوله: فَيُكْوَى بِهَا جَنْبُهُ وَجَبِينُهُ وَظَهْرُهُ**

**د داغ ورکولو دپاره د درې ځايونو د تخصيص وجه:** - "جنبه وجبينه": دلته دَ داغ ورکولو دَپاره دَدريو مقاماتو ذکر کړې شوې دې. اول اړخ دويم تندې او دريم شا. دَدې تخصيص وجه کيدې شی چه دا وی چه دَ زکوة ورکونکی په تندی باندې دَ زکوة ورکولو په وخت دريو والی راځی په دې وجه به ورله تندې داغلې شی. بيا صاحب مال دَ زکوة نه ورکولو دَپاره کله اړخ بدل کړی او ډډه کوی اوکله شا کړې خی په دې وجه دغه دا مقامات داغلې شی.

**قوله : مِقْدَارُهُ خَمْسِينَ أَلْفَ سَنَةٍ:**

**د روایاتو په مینځ کښې د تعارض دفع :-** دَ قیامت دا ورځ به دکافرانودپاره دَ سختواو دَ تکلیفونودَ وجې پنځوس زره کاله اندازه باندې اوږده معلومیږی دَمؤمن دَپاره به دَ دوو رکعتو یا څلورو رکعتو دَ مونځ په اندازه محسوس کیږی اودَ نورو مسلمانانودَ پاره به دَهغوی دَاعمالو دَ فرق په اعتبارسره مختصر یا اوږده وی لهذا په دې کښې هیڅ تعارض نشته دې.

**قوله : وَمِنْ حَقِّهَا حَلْبُهَا يَوْمَ وِرْدِهَا:**

**په اوښانو کښې د يو بل حق اضافه :-** دَ اوښانوساتونکودا قاعده چه اوښان په دویمه ورځ یا دریمه ورځ وقفه سره دَ اوبوڅانې ته ور ولی اودَ اوبوڅکلو نه پس دَ اوښانو پینې لشی اوبیا ئې هلته راجمع شوی فقیرانو او مسکینانوباندې تقسیم کوی حضورپاك هم دَدغه حق ذکرکړې دې. داحق دَ زکوة نه علاوه دې خوداحق فرض اوواجب نه دې بلکه مستحب دې البته دَ همدردئی او اخلاقو دَ وجې نه حضورپاك دَدې په سختئی سره تاکید فرمائیلې دې.

**قوله : بِقَاعٍ:** کولاؤ او هوار میدان ته قاع وائی.

**قوله : "قَرْقَرٍ":** دادَ قاع دَ پاره صفت دَتاکید دې هوار کولاؤمیدان ته وائی

**د اوفر په معنى کښې دوه احتمالات :-** ① "اوفر" دا ابل نه حال واقع دې مراددادې چه لونی واړه ټول اوښان به موجود وی هیڅ یواوښ به غائب نه وی

② دویم مطلب دادې چه دااوښان به په داسې حال کښې وی چه ښه چاق او تازه به وی هیڅ یو به په دوی کښې کمزورې نه وی دې دَپاره چه دَدې مالك ته ښه دروند عذاب اورسی.

دَ پوره عبارت ترجمه به داسې وی چه په یوکولاؤ هوار میدان کښې به دَ ښه چاقواوښانو مخې ته به داسړې پرمخې راسملولې شی اوهغه اوښان به په هغه تیریږی اوخی به.

**قوله : أُخْرَاهَا:** یعنی دَ ګول دائرې په شکل کښې به دا اوښان په دغه سرې باندې ګرځی اوتاویږی به. کله چه دَ اوښانودَ قطار آخری اوښ دَده دَپاسه اوخیژی لاړشی نوهم دَ دې قطار رومبې اوښ به دې دَخپو لاندې کولودَپاره راؤرسی. دَ دې مطلب مطابق په مسلم شریف کښې دَ حدیث الفاظ داسې هم دی "کلماجازت اخراها ردت علیه اولاها" مګر دلته چه کوم روایت دې دَهغې مطلب به دااخستې شی په دې سړې باندې به په مختلفو قطارونو کښې اوښان راځی. یوقطار چه لاړشی نو بل قطار به دې دَخپولاندې کولودَپاره رارسی.

**په روایاتو کښې د تعارض دفع :-** علامه طیبی رحمه الله فرمائی زیربحث حدیث کښې مناسب دی چه په تقدیم اوتاخیرباندې عمل اوکړې شی یعنی چه دا داسې واخستې شی "کلمامرعلیه اخراها ردعلیه اولاها" داسې به دَ روایاتواختلاف ختم شی اومطلب به واضح شی چه هم په

یو قطار کښې به اوښان د ګول دائرې په شکل کښې په دې سرې باندې ګرځي. [الکاشف: ۴/۸.]

**قوله**: لَيْسَ فِيهَا عَقْصَاءُ: دَباب سمع او يسمع نه دې هغه غوا اوچيلئ ته وئيلې شي دکوم ښکرې چه تاؤشوې وی د کوم په وهلوسره چه سړی ته کوم تکليف کيږی. مطلب دا چه ټول به د نيغو او تيرو ښکرو څناور وی.

**قوله**: وَلَاعَضْبَاءُ: مطلب داچه د دغه څناورو ښکر به ښه نيغ اوږد او تيره وی د کوم په وهلو سره چه به ښه تکليف پيدا کيږی. المرقات: ۴/۲۶۵.

**قوله**: قَالَ: "فَالْخَيْلُ ثَلَاثَةٌ: صحابه کرامو تپوس اوکړويارسول الله ﷺ د اسونوڅه حکم دې نوحضورپاك اوفرمائيل اسونه په دريم قسم دی.

**اعتراض**: - حضورپاك نه صحابه کرامو د اسونو د زکوة او حقوق الله باره کښې سوال کړې وو حضور پاك ددې جواب ولې ورنه کړو؟

**د شوافع جواب**: - شوافع حضرات فرمائی چه حضورپاك د حکمت په توګه جواب ورکړو هغه داسې چه د اسونود زکوة باره کښې سوال مه کوئی څکه چه په دې کښې زکوة نشته دې بلکه داسې سوال اوکړئی چه د اسونو په ساتلو کښې څه فوائد او نقصانات دی. نو واؤرئی د اسونودرې قسمونه دی.

**داحنافو جواب**: - احناف فرمائی حضورپاك د حکمت په توګه داسې جواب ورکړې دې چه په اسونو کښې صرف د زکوة باره کښې سوال مه کوئی هغه خو واجب دې مګر دې سره سره په اسونو کښې ددې دمالك دپاره چه کومې فائدې او نقصانونه دی دهغې هم سوال اوکړئی

**د اسونو درې قسمونه**: - واؤرئی د اسونو درې قسمونه دی.

① د مالك دپاره د ګناه اوبوج سبب جوړيږی. هغه داسې چه مالك دغه اسونه د رياکارئی دفخر خودلو اومسلمانانوسره د جنګ او دښمنئی دپاره ساتلې وی.

② د خپل مالك دپاره پرده وی. ددې وضاحت داسې دې چه مالك اسونه د اسلام د دين د خدمت اوخپل ضرورت دپاره ساتلی وی. کله چه دهغه په نيکوکارونو کښې ضرورت پيښيږی نو په هغې کښې استعمالوی، يادَ يوغريب مسکين فقير په خدمت کښې ورکوی اودا په استعمال کښې راولی. دغه شان دهريونيك کاردپاره هغه دغه اسونه تيارساتلې وی. د بل چانه د غوښتلو ضرورت نه پيښيږی. دلته په حديث کښې چه د فی سبيل الله کوم لفظ راغلې دې نه مراد جهادنه دې بلکه مطلق دين مراد دې څکه چه د جهاد خبره په راتلونکی کلام کښې ذکرده.

③ دريم قسم هغه اسونه دی چه دهغې مالك د اجراوثواب دپاره دالله تعالی په لارکښې

وقف کړی وی. دلته دَ سبیل الله نه جهاد مراد دې.

**قوله: "فِي مَرْجٍ"**: دَ دغه جهادی اسونو هر څیز او هر نقل او حرکت دَ هغې دَ مالك دَپاره دَ اجر او ثواب سبب دې.

**قوله: "شَرَفًا"**: مراد دادې چه په یوه یا دوو غونډو باندې یا په اوچت ځائی باندې منډه کړی. نو په دغه اختیاری او غیر اختیاری حرکات او سکنات باندې به هم مالك ته ثواب ملاویږی. دا دَ جهادی اس شان دې نو بیخپله دَ مجاهد به څه شان وی.

**[١٧٧٤] دزکات نه ورکولو سزا**

١٧٧٤ – ()[٣] [١] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] " «مَنْ آتَاهُ اللَّهُ مَالًا فَلَمْ يُؤَدِّ زَكَاتَهُ [٣] مُثِّلَ لَهُ مَالُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ شُجَاعًا أَقْرَعَ [٤] لَهُ زَبِيبَتَانِ يُطَوَّقُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، [٥] ثُمَّ يَأْخُذُ بِلِهْزِمَتَيْهِ يَعْنِي شِدْقَيْهِ [٦] ثُمَّ يَقُولُ أَنَا مَالُكَ، أَنَا كَنْزُكَ " [٧] ثُمَّ تَلَا ﴿وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِينَ يَبْخَلُونَ﴾ [آل عمران: ١٨٠] الْآيَةَ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**توجمه:** [١] حضرت ابوهریره ﷜ روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] کوم سړي ته چې الله تعالٰی ﷻ مال او زر ورکړل او د هغې زکات یي ادا نه کړو [٣] نو د قیامت په ورځ به د هغه مال او زر د ګنجي مار په شکل کښې بدل کړي شی [٤] چې د هغه په سترګو به دوه توري نقطې وي بیا به هغه مار د هغه سړي په غاړه کښې د طوق په طور واچول شي [٥] او هغه مار به د هغه سړي د شونډانو دواړه کناری نیسي (چیچي) [٦] او ورته به وایي چې زه ستا مال زه ستا خزانه یم [٧] د دې خبره روسته آنحضرت ﷺ دا آیت اووئیلو وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِينَ يَبْخَلُونَ الْآيَةَ هغه خلق چې بخل کوي دا ګمان دي نه کوي تر آخري آیت پوري. (بخاري)

**حل اللغات:** - ① مُثِّلَ: أَيْ صُوِّرَ: شکل به ورکولې شی، ② شُجَاعًا: أَيِ الْحَيَّةُ الذَّكَرُ: نر مار، ③ أَقْرَعَ: أَيِ الَّذِي لَا شَعْرَ عَلَى رَأْسِهِ: یعنی ګنجی مار، دداسې مار په سرباندې دَ زهرو دَ زیاتوالی دَ وجې نه یا دَ اوږد عمر دَ وجې نه ویښته نه وی دا دَ سخت خباثت او شدت نښه ده. ④ زَبِيبَتَانِ: أَيْ نُقْطَتَانِ سَوْدَاوَانِ فَوْقَ الْعَيْنَيْنِ: دَمار دَ دواړو سترګو دَپاسه دوه تور ټاکي وی، په مارانو کښې داقسم مار ډیر زیات خبیث مار وی. ⑤ يُطَوَّقُهُ: په غاړه کښې به ورته واچولې شی، ⑥ بِلِهْزِمَتَيْهِ: ای شِدْقَيْهِ: أَيْ طَرَفَيْ فِيهِ: د خولې اطراف یعنی وښکی.

**تسهیلات:**

**نوټ:** – د دې حدیث شرح په د بل حدیث په تسهیل کښې ذکر ده.

---

() اخرجه البخاری فی کتاب الزکاة/باب إثم مانع الزکاة (رقم-١٤٠٣) والنسائی کتاب الزکاة/باب: مانع زکاة ماله (رقم-٢٤٨١) ومالک فی الموطا کتاب الزکاة / باب ما جاء فی الکنز(رقم-٢٢) ، احمد فی المسند ٣٥٥/٢

[١٧٧٥] د څارو زكات نه وركولو سزا

١٧٧٥–(١)[٣] ١ وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ٢ «مَا مِنْ رَجُلٍ يَكُونُ لَهُ إِبِلٌ أَوْ بَقَرٌ أَوْ غَنَمٌ لَا يُؤَدِّي حَقَّهَا ٣ إِلَّا أُتِيَ بِهَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَعْظَمَ مَا تَكُونُ وَأَسْمَنَهُ ٤ تَطَؤُهُ بِأَخْفَافِهَا، ٥ وَتَنْطِحُهُ بِقُرُونِهَا، ٦ كُلَّمَا جَازَتْ أُخْرَاهَا رُدَّتْ عَلَيْهِ أُولَاهَا ٧ حَتَّى يُقْضَى بَيْنَ النَّاسِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ حضرت ابوذر رضي الله عنه د نبي كريم صلى الله عليه وسلم څخه نقل كوي چې حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل ٢ د كوم سړي سره چې اوښان يا غوايه يا بزې (چېلۍ) وي او د هغې زكات نه وركوي ٣ نو د قيامت په ورځ به هغه څاروی په داسې حال كښې راوستل شي چې ډير غټ او په څرب شكل كښې به وي ٤ چې بيا به هغه سړي په خپلو پښو سره مړي [پامال كوی] ٥ او په خپلو ښكرونو سره به يې وهي ٦ د هغه پامال كولو سره چې آخري جماعت (ډله) لاړه شي نو بيا به اول جماعت راوستل شي [يعنی دغه شان به يې ټول څاروی بيا واپس كيدو سره يې پامال كوی [ميده كوي] او وهي به يې او دا سلسله به تر هغه وخته پورې جاري وي] ٧ تر څو پورې چې د خلقو حساب او كتاب كولو سره د هغوئ فيصله ونه شي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① أَسْمَنَهُ: ډير څرب، ② تَطَؤُهُ: دا څاروی به ئې په خپو كښې ښه پامال كوی. ③ أَخْفَافِهَا: أَيْ بِأَرْجُلِهَا: په خپو سره، ④ تَنْطِحُهُ: أَيْ تَضْرِبُهُ: نطح په ښكرو باندې وهلو ته وائی

**تسهيلات:**

**قوله:** تَطَؤُهُ بِأَخْفَافِهَا، وَتَنْطِحُهُ بِقُرُونِهَا:

**د زكات نه ادا كړې شوی څاروې د عذاب سبب جوړيدل:** - كوم كس د دې څناورو زكوة نه وی ادا كړې نو د قيامت په ورځ به دا څناور به د هغه دپاره زحمت جوړيږی

[١٧٧٦] د زكات د عاملينو خوشحاله واپس كول

١٧٧٦–(٢)[٥] ١ وَعَنْ جَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ٢ «إِذَا أَتَاكُمُ الْمُصَدِّقُ فَلْيَصْدُرْ عَنْكُمْ ٣ وَهُوَ عَنْكُمْ رَاضٍ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ١ حضرت جرير ابن عبدالله رضي الله عنه روايت كوي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل ٢ هر كله چې (د امام د طرف څخه) زكات وصولونكي (چې د شريعت په اصطلاح كښې ورته ساعي او عامل وايي) تاسو له راشي نو هغه (زكات وصولولو سره) په داسې حال كښې دي

(١) اخرجه البخاری فی كتاب الزكاة/باب زكاة البقر (رقم-١٤٦٠) ومسلم فی كتاب الزكاة/باب تغليظ عقوبة من لا يؤدی الزكاة (رقم-٣٠ - (٩٩٠) والنسائی كتاب الزكاة/باب: مانع زكاة الغنم (رقم-٢٤٥٦) وابن ماجة كتاب الزكاة/باب ما جاء فی منع الزكاة(رقم-١٧٨٥) واحمد فی المسند ٣/٣٢١

(٢) اخرجه مسلم فی كتاب الزكاة/باب إرضاء السعاة (رقم) ٢٩ - (٩٨٩) والترمذی فی السنن كتاب الزكاة عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی رضا المصدق (رقم-٦٤٧) وابن ماجة كتاب الزكاة/باب ما يأخذ المصدق من الإبل (رقم-١٨٠٢) والدارمی من كتاب الزكاة/باب النهی عن الفرق بين المجتمع والجمع بين المتفرق (رقم-١٦٧٠) واحمد فی المسند ٤/٣٦٥

ستاسو څخه واپس شي [٣] چې هغه ستاسو څخه راضي او خوشحاله وي. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① اَلْمُصَدِّقُ: أَيْ آخِذُ الصَّدَقَةِ وَهُوَ الْعَامِلُ: عامل ته وائی کوم چه زکوة راټولوی. اوزکوة ورکونکی مالك ته متصدق وائی. ② فَلْيَصْدُرْ: أَيْ يَرْجِعُ: واپس دې شی.

**تسهيلات: قوله:** إِذَا أَتَاكُمُ الْمُصَدِّقُ:

**په مصدق اومتصدق کښې فرق:** - دَ زکوة وصول کونکی کارکن ته مصدق وائی (کذا فی اشعة اللمعات)[ اشعة المعات.]

دَحديث مطلب دادې چه کله دَ وخت دَ بادشاه يا اسلامی ادارو دَ طرف نه دَ زکوة وصول کونکی کارکن راشی نو هغوی سره دَ احترام اواکرام معامله کول پکاردی. په ښه شان سره پوره زکوة هغوی ته حواله کول پکاردی اوهغوی په هرحال کښې راضی کول پکاردی.
دَ اسلام دا عادلانه اوحکيمانه مزاج دې چه هغه هرسړی ته دَهغه دَ ذمه وارو احساس ورکوی. دَ مالك دَ ذمه وارو هغه ته دومره احساس ورکوی چه هغه دې په هرحال کښې زکوة وصول کونکې راضی ساتی که هغه ظالم ولې نه وی. بل طرف ته عامل اوزکوة وصول کونکی ته دَ هغوی دَ ذمه وارئی دا احساس ورکوی چه هغه دې په هيڅ يوصورت کښې په مالك باندې ظلم نه کوی. دَهغه دَ مال نه دې ښکلې مال نه اخلی اونه دې دَ رمې چيلې اخلی بلکه دَ زکوة په حق کښې دې درميانه مال اوچت کړی دې دَپاره چه مالك پريشان نه وی. دغه شان دَ اسلام په قواعدوکښې دَ مالك اجر او ثواب په کولاؤ الفاظوکښې بيان کړې شوی دی دې دَپاره چه هغوی ته په زکوة ورکولوکښې بوج محسوس نه شی. بل دَ زکوة وصول کونکی اجر اوثواب ئی ښه بيان کړو دې دَپاره چه هغه ته دې نه صرف دَ نوکرئی اومزدورئی احساس نه وی بلکه دَ عبادت احساس وی.

**[١٧٧٧ ] دَعامل دَپاره دَ نبی عليه السلام دعا**

١٧٧٧ - (¹)[٢] [١] وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى قَالَ: [٢] «كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا أَتَاهُ قَوْمٌ بِصَدَقَتِهِمْ قَالَ: [٣] " اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَى آلِ فُلَانٍ "، [٤] فَأَتَاهُ أَبِي بِصَدَقَتِهِ، فَقَالَ: [٥] " اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَى آلِ أَبِي أَوْفَى» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.
[٦] وَفِي رِوَايَةٍ «إِذَا أَتَى الرَّجُلُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِصَدَقَتِهِ [٧] قَالَ: " اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَيْهِ» ".

**ترجمه:** [١] او حضرت عبدالله ابن اوفي وايي [٢] هر کله چې به يو جماعت حضور ﷺ ته خپل زکات اخستو سره راتلو (چې حضور ﷺ يي په مستحقينو کښې تقسيم کړي) نو فرمايل به يي. [٣] اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَى آلِ فُلَانٍ اي الله جل جلاله د فلاني سړي په خاندان رحمت نازل

¹) اخرجه البخارى فى كتاب الزكاة/باب صلاة الإمام، ودعائه لصاحب الصدقة (رقم-١٤٩٧) وابوداود كتاب الزكاة/باب دعاء المصدق لأهل الصدقة(رقم-١٥٩٠) والنسائى كتاب الزكاة/باب: صلاة الإمام على صاحب الصدقة (رقم-٢٤٥٩) وابن ماجة كتاب الزكاة/باب ما يقال عند إخراج الزكاة (رقم-١٧٩٦) واحمد فى المسند ٣٥٥/٤

کړي، ٤ زما پلار بزرګوار چې حضور ﷺ ته زکات اخستو سره حاضر شو نو حضور ﷺ وفرمایل: ٥ اللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى آلِ أَبِيْ أَوْفٰى اي الله ﷻ دابي اوفي په خاندان رحمت نازل کړي، بخاري مسلم، ٦ د یو دویم روایت الفاظ دا دي هر کله چې یو سړي به د خپلې صدقې سره د حضور ﷺ په خدمت کښې حاضر شو ٧ نو حضور ﷺ به وفرمایل چې اي الله ﷻ په دې سړي باندې خپل رحمت نازل کړي.

**تسهیلات:**

**قوله:** اللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى آلِ أَبِيْ أَوْفٰى:

**په غير النبي باندې د درود ليګلو حکم:** - دَ نبی نه علاوه په غیرنبی باندې په مستقل توګه درود وئیل منع دی اوبالتبع جائز دې دا حکم دَ امتی باره کښې دې پخپله رسول اکرم ﷺ که دَ چا دَپاره دَ صلاة الفاظ استعمال کړل نو رسول الله ﷺ دَدې حکم نه مستثنی دې. دادَ حضورپاك خصوصیت دې لکه چه څنګه دلته حضورپاك دَ صلوة لفظ استعمال کړې دې.
بهر حال صدقه اخستونکی له پکار دی چه هغه دَ صدقه ورکونکی دَپاره ښه دعاګانې اوکړی دې دَپاره چه دَ هغه زړه مطمئن کیدوسره خوشحال شي او هغه ته دا احساس نه وی چه زما مال په زور اخستې شي.

[١٧٧٨] دَدرېو صحابو د زکات نه ورکولو وجوهات

١٧٧٨–(١)[٤] ١ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: ٢ «بَعَثَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عُمَرَ عَلَى الصَّدَقَةِ، ٣ فَقِيلَ مَنَعَ ابْنُ جَمِيلٍ، وَخَالِدُ بْنُ الْوَلِيدِ، وَالْعَبَّاسُ، فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ٤ "مَا يَنْقِمُ ابْنُ جَمِيلٍ إِلَّا أَنَّهُ كَانَ فَقِيرًا فَأَغْنَاهُ اللّٰهُ وَرَسُولُهُ، ٥ وَأَمَّا خَالِدٌ فَإِنَّكُمْ تَظْلِمُونَ خَالِدًا، ٦ قَدِ احْتَبَسَ أَدْرَاعَهُ وَأَعْتُدَهُ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ. ٧ وَأَمَّا الْعَبَّاسُ فَهِيَ عَلَيَّ وَمِثْلُهَا مَعَهَا" ٨ ثُمَّ قَالَ: "يَا عُمَرُ أَمَا شَعَرْتَ أَنَّ عَمَّ الرَّجُلِ صِنْوُ أَبِيهِ» "، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ ابو هريره رضي الله عنه وايي ٢ چې رسول الله ﷺ حضرت عمر رضي الله عنه د زکات د وصولولو د پاره مقرر کړو ٣ یو سړي راغې او خبر يې ورکړو چې ابن جمیل، خالد ابن ولید او حضرت عباس رضي الله عنه زکات ادا نه کړو د دې په اوریدو سره حضور ﷺ وفرمایل ٤ چې ابن جمیل خو د زکات ورکولو څخه ځکه انکار اوکړو چې هغه د مخکې څخه مفلس وو او اوس الله تعالی ﷻ او د هغه رسول ﷺ هغه دولتمند جوړ کړي دي ٥ د خالد بن ولید خبره دا ده چې په هغه تاسو ظلم کوئ اچي په اصل کښې په هغه زکات واجب نه دي خو

[1]) اخرجه البخاری فی کتاب الزکاة/باب قول الله تعالی: {وفی الرقاب والغارمین وفی سبیل الله} [التوبة: ٦٠] (رقم-٤٦٨ ) ومسلم فی کتاب الزکاة/باب فی تقدیم الزکاة ومنعها (رقم)١١ - (٩٨٣) وابوداود فی السنن کتاب الزکاة/باب فی تعجیل الزکاة(رقم-١٦٢٣) والنسائی کتاب الزکاة/باب: إعطاء السید المال بغیر اختیار المصدق(رقم-٢٤٦٤) واحمد فی المسند ٣٢٢/٢

تاسو د هغه څخه د زکات وصولولو خواهش مند یې[٦] ځکه چې هغه خو خپلې زغرې او سامان د جنګ (یعنې هتیار، څاروي او د جنګ نور سامان) د الله ﷻ په لار (یعنې د جهاد) د پاره وقف کړي دي انو تاسو چې د هغه مال او اسباب د تجارت مال ګڼئ نو دا غلط دي![٧] او هر چې د حضرت عباس رضي الله عنه خبره ده نو خبره دا ده چې د هغه زکات په ما دي او نه یواځې د دې کال بلکه د دې په مثل او د آینده کال هم[٨] بیا یې وفرمایل چې اې عمره رضي الله عنه ته نه یې خبر چې د یو سړي اکا (تره) د هغه د پلار پشان وي انو تاسو خلق عباس رضي الله عنه زما د پلار په ځاي وګڼئ د هغه تعظیم کوئ او هغه ته هیڅ قسم تکلیف مه رسوئ!، (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① يَنْقِمُ: اى مَا يَكْرَهُ: نقم دَ سخت نفرت او ناخوښئ په معنى كښې دې چه په حقيقت كښې دلته دَ انكار دَپاره استعمال شوې دې أيْ مَا يُنْكِرُ. ② احْتَبَسَ: أَيْ وَقَفَ: يعنى وقف كړى ئې دى. ③ أَدْرَاعَهُ: دَ درع جمع ده زغرې ته وائى. ④ وَأَعْتُدَهُ: دَ عتاد جمع ده دَ جنګ اسباب او آلات مراد دى. ⑤ صِنْوُ: أَيْ مِثْلُهُ وَنَظِيرُهُ: مشابه او مثل ته وائى يعنى تره دَ پلار په شان وى. دَ يوې ونې دَ تنې نه چه كله دوه ښاخونه ونه جوړه شى نو هرې يوې ته صنو وائى.

**تسهيلات: قوله: مَا يَنْقِمُ ابْنُ جَمِيلٍ:**

**دابن جميل تعارف:** - ابن جميل يو منافق سړې وو بيا لږ ښه شو مګر ډير غريب وو. په حضورپاك باندې دَ مال دولت دَپاره دعا اوكړه. حضورپاك دعا اوكړه نو الله تعالى ورته ډير مال وركړو مګر هغه ناشكرى اوكړه او زكوة وركول ئې منع كړه نو حضورپاك دا كلمات ارشاد اوفرمائيل چه دغه سړى څنګه دَ نعمت ناشكرى اوكړه.

**قوله: وَأَعْتُدَهُ** يعنى تاسو خلق په خالد باندې ظلم كوئى هغه غريب سړې دې مسلسل په جهاد كښې وى. خپلې ټولې زغرې اودَ جنګ سامان ئې ټول په ټول دَ الله تعالى په لار دَ جهاد كښې وقف كړې دى. په دې باندې زكوة چرته دې. دَ حضورپاك په دې كلام كښې اشاره ده چه حضرت خالد رضي الله عنه هميشه په جهاد كښې وى. چنانچه هم داسې اوشو حضرت خالد رضي الله عنه ترآخر دمه پورې يوشان په جهاد كښې لګيا وو.

**قوله: فَهِيَ عَلَيَّ وَمِثْلُهَا مَعَهَا:**

**د مذكوره جملې دوه مطلبه:** - ① مطلب دا چه دَحضرت عباس رضي الله عنه طرف ته كوم زكوة دې هغه به زه اداكړم بلكه دَ راتلونكى كال به هم ادا كړم. وائى چه حضورپاك دَ دوو كالو زكوة دَ حضرت عباس رضي الله عنه نه مخكښې وصول كړې وو

② يا دا مطلب دې چه حضورپاك دَحضرت عباس رضي الله عنه په شكايت باندې دَخفګان اظهار اوكړو او وئى فرمائيل چه دَ عباس رضي الله عنه دَ طرف نه به زه پخپله زكوة اداكړم بلكه زيات به وركړم ځكه چه كيدې شى دَ هغه څه عذر وى دَ هغه شكايت نه دى كول پكار هغه زما تره

دي او تره خود پلار په ځائي وی دا مطلب زيات واضح دې او د حديث آخری ټکړه د دې تائيد کوي.

**[١٧٧٩] په سرکاري عهده باندې مقرر کس د پاره د تحفې اخستلو ممانعت**

١٧٧٩–(١)[٨] ١ وَعَنْ أَبِي حُمَيْدٍ السَّاعِدِيِّ قَالَ: ٢ «اسْتَعْمَلَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- رَجُلًا مِنَ الْأَزْدِ يُقَالُ لَهُ ابْنُ اللُّتْبِيَّةِ عَلَى الصَّدَقَةِ، ٣ فَلَمَّا قَدِمَ قَالَ: هَذَا لَكُمْ، وَهَذَا أُهْدِيَ لِي. ٤ فَخَطَبَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَحَمِدَ اللَّهَ وَأَثْنَى عَلَيْهِ، ٥ ثُمَّ قَالَ: "أَمَّا بَعْدُ، فَإِنِّي أَسْتَعْمِلُ رِجَالًا مِنْكُمْ عَلَى أُمُورٍ مِمَّا وَلَّانِي اللَّهُ، ٦ فَيَأْتِي أَحَدُهُمْ فَيَقُولُ: هَذَا لَكُمْ وَهَذِهِ هَدِيَّةٌ أُهْدِيَتْ لِي، ٧ فَهَلَّا جَلَسَ فِي بَيْتِ أَبِيهِ أَوْ بَيْتِ أُمِّهِ فَيَنْظُرُ أَيُهْدَى لَهُ أَمْ لَا،

**ترجمه:** ١ حضرت ابو حميد ساعدی رضي الله عنه وايي ٢ چې نبي کريم ﷺ د قبيلهٔ ازد يو سړي چې د هغه نوم ابن اللتبيه وو په زکات وصولولو باندې مقرر کړو ٣ هغه چې (د زکات وصولولو سره) مدينې ته واپس راغې نو مسلمانانو ته يي اوويل چې دومره مال خو ستاسو دي (يعني دا د زکات د مال څخه وصول شوي دي د دې مستحق تاسو يي) او دومره مال د تحفې په طور ماته راکړې شوي دي ٤ نبي کريم ﷺ [چې دا واوريدل نو د خلقو په مخکې يې] خطبه کې وفرمايل چې په هغې کښې يي اول د الله جل جلاله حمد او ثنا بيان کړه ٥ د هغه څخه روسته يي وفرمايل چې زه په تاسو کښې څومره سړي په هغه اُمورو باندې مقرروم چې د هغې د پاره الله تعالی جل جلاله زه حاکم جوړ کړي يم ٦ په تاسو کښې يو سړي [چې ما په زکات وصولولو باندې مقرر کړي دې] خپل کار کولو سره راځي او وايي چې دا ستاسو د پاره دي او دا مال ماته په تحفه کښې راکړې شوي دي ٧ نو [د هغه څخه پوښتنه وکړئ] چې هغه د خپل مور او پلار په کور کښې ولې نه کيناستي چې تحفه ورکونکي هغه ته تحفه ليږلې شوه که نه؟

١ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ، ٢ لَا يَأْخُذُ أَحَدٌ مِنْهُ شَيْئًا ٣ إِلَّا جَاءَ بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يَحْمِلُهُ عَلَى رَقَبَتِهِ ٤ إِنْ كَانَ بَعِيرًا لَهُ رُغَاءٌ، ٥ أَوْ بَقَرًا لَهُ خُوَارٌ ٦ أَوْ شَاةً تَيْعَرُ" ٧ ثُمَّ رَفَعَ يَدَيْهِ حَتَّى رَأَيْنَا عُفْرَةَ إِبْطَيْهِ ٨ ثُمَّ قَالَ: "اللَّهُمَّ هَلْ بَلَّغْتُ، اللَّهُمَّ هَلْ بَلَّغْتُ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ قسم دي په پاک ذات چې د هغه په قبضه کښې زما ساه ده ٢ (ياد لرئ) په تاسو کښې چې کوم سړي کوم شي هم واخلي ٣ هغه به د قيامت په ورځ (د رسوايي او د ذلت په طور) په خپل غاړه باندې اوچت کړی راوړي ٤ که هغه اوښ وي (چي هغه يي بغير د استحقاقه اخستي وي) نو د هغه د پاره به آواز وي ٥ که هغه غويي وي نو د هغه آواز به وي

[١] اخرجه البخاری فی کتاب الهبة وفضلها والتحريض عليها/باب من لم يقبل الهدية لعلة (رقم-٢٥٩٧) ومسلم فی کتاب الإمارة/باب تحريم هدايا العمال (رقم) ٢٦ - (١٨٣٢) وابوداود فی السنن کتاب الخراج والإمارة والفيء/باب فی أرزاق العمال واحمد فی المسند ٤٢٣/٥

[٦] او كه بزه وي نو د هغه آواز به وي [يعني هغه په دنيا كښې كوم شي هم چې بغير د استحقاق نه واخلي هغه څيز به د قيامت په ورځ د هغه په څټ سور وي او آواز به كوي] [٧] د دې څخه روسته حضور ﷺ خپل دواړه لاسونه مبارک دومره اوچت پورته كړل چې مونږ د حضور ﷺ د بغلونو [ترخونو] مباركو سفينوالې وليدلو [٨] بيا يې وفرمايل چې اې پروردګاره (تا چې كوم څه فرمايلي وو) ما خلقو ته ورسول اې پروردګاره ما خلقو ته ورسول، مسلم بخاري،

[١] قَالَ الْخَطَّابِيُّ: وَفِي قوله: "هَلَّا جَلَسَ فِي بَيْتِ أُمِّهِ أَوْ أَبِيهِ [٢] فَيَنْظُرَ أَيُهْدَى إِلَيْهِ أَمْ لَا" [٣] دَلِيلٌ عَلَى أَنَّ كُلَّ أَمْرٍ يُتَذَرَّعُ بِهِ إِلَى مَحْظُورٍ فَهُوَ مَحْظُورٌ [٤] وَكُلُّ دَخِيلٍ فِي الْعُقُودِ يُنْظَرُ [٥] هَلْ يَكُونُ حُكْمُهُ عِنْدَ الِانْفِرَادِ [٦] كَحُكْمِهِ عِنْدَ الِاقْتِرَانِ أَمْ لَا. هَكَذَا فِي شَرْحِ السُّنَّةِ.

**ترجمه:** [١] او خطابي رحمه الله د حضور ﷺ ارشاد ګرامي چې هغه سړي د خپل مور پلار په كور كښې ولې نه كيناستلو [٢] بيا به يې كتلي وې چې هغه ته څوک تحفه راليږي يا نه؟ [٣] په دې باره كښې ويلي دي چې دا د دې خبري دليل دې چې د حرام كار د پاره كوم شي وسيله جوړه كړل شي نو هغه وسيله به هم حرامه وي [٤] او كه يو عقد (معامله) دويم عقد (مثلاً خريد او فروخت هبه او نكاح وغيره) سره متعلق كړې شي نو هغه وخت به كتل كيږي [٥] چې آيا د هغه معاملو جدا جدا حكم دې [٦] د هغې سره د متعلق كيدو د حكم مطابق دې يا نه؟ [كه دې نو درست به وي او كه نه؟ دې نو درست به نه وي] (شرح السنه)

**حل اللغات:-** ① اسْتَعْمَلَ: عامل ئې جوړ كړو يعنى په زكوة راټولولو ئې مقرر كړو. ② الْأَزْدِ: د قطحان يو قبيله ده، ③ وَلَّانِي: أَيْ جَعَلَ حَاكِمًا فِيهِ: چه زه ئې په هغې حاكم جوړ كړې يم. ④ رُغَاءٌ: دَ اوبښ دَ بربر آواز ته وائى. ⑤ خُوَارٌ: دَغواده اوركى آواز ته وائى ⑥ تَيْعِرُ: دَ چيلۍ دَ مې مې آواز ته وائى ⑦ عُفْرَةَ: اى بَيَاضٍ لَيْسَ بِخَالِصٍ: داسې سپينوالې چه خاورو ته مائل وى. ⑧ يُتَذَرَّعُ: أَيْ يُتَوَسَّلُ: چه وسيله جوړه كړې شى. ⑨ مَحْظُورٍ: أَيْ مَمْنُوعٌ: يعنى منع او حرام دى. ⑩ دَخِيلٍ: يو په بل كښې دخل انداز شى يعنى تعلق ولرى. ⑪ الْعُقُودِ: د دوه كسانو په مينځ كښې معامله. مثلاً خريد او فروخت هبه او نكاح وغيره. ⑫ الِاقْتِرَانِ: يوځاى كول.

**تسهيلات: قوله:** ابْنُ اللُّتْبِيَّةِ:

**دابن اللتبية تعارف:-** په لام باندې پيښ دې او فتحه وئيل هم صحيح دى. تاء ساكنه ده او فتحه وئيل هم صحيح دى. باء باندې كسره ده او ياء باندې شد دې. "لتبية" دَ هغه سړى دَمور نوم دې چه دَعربو مشهور قبيلې لتب طرف ته منسوب دې. دَ دغه سړى نوم عبدالله رضي الله عنه وو. هغه دَ زكوة اموال راجمع كړل دَحضورپاك په خدمت كښې پيش كړل. ليكن دې سره ئى دا هم اووئيل چه ماته خلقو په ذاتى حيثيت سره څه مال دَتحفه په توګه راكړې دې. لهذا هغه زما ذاتى مال دې. په دې خبره باندې نبى كريم ﷺ سخت خفه شو او وئى فرمائيل

"فَهَلَّا جَلَسَ فِي بَيْتِ أَبِيهِ"
**تهديدي الفاظ:** - يعني چه دا سړي خپل پلار سره يا مور سره په كور كښې كيناستو سره انتظار كولو اوكتل ئې چه دلته په ناسته ناسته خلق ده له تحفې وركوي كه نه. كه چرې نه ئې وركولې نو دَ صدقات راجمع كولو په وخت ده ته دَ تحفې اخستو حق نشته.
"تَيْعِرُ" يعني ناجائز اوښ په اوړو باندې اوچتولو سره به برړيړي غوا به هنړيړي او چيلئ مې مې كوي.
**د دوؤ مسئلو استنباط:** - "قَالَ الخطابي" علامه خطابي رحمه الله دَ ذكرشوي حديث دَمضمون نه دوه اجتهادي مسئلې راويستې دي.
① **قوله:** أَمْرٌ يُتَذَرَّعُ بِهِ:
**د ناجائز كار جائز سبب ناجائز گرځيدل:** - يعني هرجائزكار كه چرته دَ يوناجائز كاردَپاره ځان له ذريعه اووسيله جوړيږي نو هغه وسيلې هم ناجائزكيږي. په نورو الفاظو كښې داسې وئيلې شي چه وسيله هم حرام ده. دَمثال په توگه كه څوك چاته قرض پيسې وركوي نودا جائز او دَ ثواب كاردې. ليكن كه هم په دغه قرض باندې څوك سود اخلي اودا قرض دَ سود وسيله جوړيږي نوبيا داقرض وركول هم حرام دي. دغه شان دَ گانړې په معامله كښې كه چرې راهن مرهون څيز نه فائده اخلي نواوس جائز رهن هم ناجائز كيږي. دغه شان دلته دَ ابن التبيه اصل كار خوجائز ووچه صدقات راجمع كول وو ليكن دا كاردَ حرام ذريعه جوړه شوه په دې وجه دا جائز كار دَ هغه په حق كښې حرام شو. خلاصه دا چه حلاله وسيله حلال ده او حرامه وسيله حرام ده.
**قوله:** وَكُلُّ دَخِيلٍ فِي الْعُقُودِ يُنْظَرُ:
**دعقد په انفرادي او اجتماعي صورت كښې د بدليدو قاعده:** - يعني هرشراكت او اجتماعيت او يوعقد دَ بل عقدسره ملاوولو په وخت كتلې شي چه دَدې معاملاتو دَ جدا جدا كيدو په وخت څه حكم دې اودَ دواړو عقدونو دَ ملاوولو په وخت حكم څه دې. كه چرې دَ جدا جدا كولودَ وخت حكم جائز دې نودَ ملاوولو دَ وخت حكم به هم جائز وي. ليكن كه چرې دَ انفرادي حكم جدا دې او دَ اجتماعي حكم جدادې نوبيا دغه شان رايوځائي كول جائز نه دي. مثلاً په زير بحث مسئله كښې ابن لتبيه په يوعهده او منصب باندې فائز وو. اوس كه چرې ابن لتبيه ته دَدې عهدې نه بغير خلقو تحفې وركولې نودا تحفه دَ دغه عهدې په وخت هم قبلول جائز وو اوكه چرې عهده او منصب نه بغير ابن لتبيه ته يوكس هم تحفه نه وركوله. نو اوس دَده دَپاره دا تحفه قبلول جائز نه وو. حضورپاك هم دې طرف ته اشاره فرمائيلې ده چه دا سړې دَ دې منصب نه جدا كيدو سره په كوركښې كينې بيادې اوگوري چه ده ته څوك تحفه وركوي كه نه.

**سرکاری ملازمینو او مهتممینو ته تنبیه:-** دَ علامـه خطابی رحمه الله دَدې استنباطی قاعده په زدکښې دَ مدرسو مهتممان حضرات هم راځی او سرکاری عهدو باندې مقرر افسران بالا او حکام اوقضاة او ججان حضرات هم راځی. او دینی جهادی تنظیماتو عهده دار هم راځی تولو له سوچ کول پکاردی اوقومی امانتونه مال غنیمت ګڼړلو سره هرپ کول نه دی پکار. دَعلامه خطابی رحمه الله دا اجتهادی مسئله امام مالك رحمه الله او امام احمدبن حنبل رحمه الله هم دغه شان قبلوی البته دَ احنافو او شوافع حضراتو په نیز په دې کښې څه تامل او څه تفصیل دې.

**[١٧٨٠] په زکات کښې د خیانت کولو ممانعت**

١٧٨٠–(١)[٩] [١] وَعَنْ عَدِيِّ بْنِ عُمَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] " «مَنِ اسْتَعْمَلْنَاهُ مِنْكُمْ عَلَى عَمَلٍ [٣] فَكَتَمَنَا مِخْيَطًا فَمَا فَوْقَهُ [٤] كَانَ غُلُولًا يَأْتِي بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] حضرت عدي ابن عميره رضي الله عنه روايت كوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] څوک چې په يو كار (يعني د زكات وغيره په وصولو) باندې مونږ مقرر كړو [٣] او هغه سړي زمونږ څخه د ستني برابر يا د دی څخه كم وبيش څه شی پټ كړی [٤] نو دا به په خيانت كښې شمار وي چې د قيامت په ورځ به هغه (رسوا كولو سره) راوړي (مسلم)

**حل اللغات:-** ① اِسْتَعْمَلْنَاهُ: أَيْ جَعَلْنَاهُ عَامِلًا: يعنى مونږ عامل جوړ كړو، په زكوة راټولولو مو مقرر كړو. ② فَكَتَمَنَا: أَيْ أَخْفَى عَلَيْنَا: پټ ئې كړو زمونږنه، ③ مِخْيَطًا: أَيْ إِبْرَةً: ستن. ④ غُلُولًا: أَيْ خِيَانَةً: خيانت به وی.

**تسهيلات:**

**قوله: فَكَتَمَنَا مِخْيَطًا فَمَا فَوْقَهُ:**

**د فوق مصداق:-** ملا علی قاری رحمه الله فرمائی چې ددې نه اعلی او ادنی دواړه څیزونه مراد دی كما فی قوله تعالی (فَمَا فَوْقَهَا).

**د حديث الباب ترجمة الباب سره مناسبت:-** دا حديث پاك په دې باب كښې په عمل كښې د خيانت په مناسبت سره ذكر كړې شوې دې (مرقا ج/٤ ص/١٢٩).

**قوله: يَأْتِي بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ:**

**خيانت او د قيامت د ورځې رسوائی:-** خيانت كه وړوكې وی او كه غټ قيامت كښې به درسوائی سبب ګرځی بالخصوص كوم خيانت چې په زكوة وغيره كښې اوشی نودا په عبادت كښې خيانت دې د خيانت سره دالله ﷻ حق وهل دی او فقراء دهغوئ د حق نه محرومول دی لقوله تعالی وَمَنْ يَغْلُلْ يَأْتِ بِمَا غَلَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ"

---

[١] اخرجه مسلم فی كتاب الإمارة/باب تحريم هدايا العمال (رقم) ٣٠ - (١٨٣٣) وابوداود فی السنن كتاب الخراج والإمارة والفیء/باب فی أرزاق العمال(رقم-٢٩٤٣) واحمد فی المسند ٤٨١٩٢

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۱۷۸۱] زكات نه وركونكو د پاره قرآنى وعيد

۱۷۸۱-()[۱۰] ① عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: ② «لَمَّا نَزَلَتْ هَذِهِ الْآيَةُ ﴿وَالَّذِينَ يَكْنِزُونَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ﴾ [التوبة: ٣٤] ③ كَبُرَ ذَلِكَ عَلَى الْمُسْلِمِينَ، فَقَالَ عُمَرُ: ④ أَنَا أُفَرِّجُ عَنْكُمْ، فَانْطَلَقَ فَقَالَ: ⑤ يَا نَبِيَّ اللَّهِ إِنَّهُ كَبُرَ عَلَى أَصْحَابِكَ هَذِهِ الْآيَةُ، ⑥ فَقَالَ: "إِنَّ اللَّهَ لَمْ يَفْرِضِ الزَّكَاةَ إِلَّا لِيُطَيِّبَ مَا بَقِيَ مِنْ أَمْوَالِكُمْ، ⑦ وَإِنَّمَا فَرَضَ الْمَوَارِيثَ وَذَكَرَ كَلِمَةً لِتَكُونَ لِمَنْ بَعْدَكُمْ، ⑧ فَقَالَ: فَكَبَّرَ عُمَرُ، ثُمَّ قَالَ لَهُ: ⑨ "أَلَا أُخْبِرُكَ بِخَيْرِ مَا يَكْنِزُ الْمَرْءُ الْمَرْأَةُ الصَّالِحَةُ ⑩ إِذَا نَظَرَ إِلَيْهَا سَرَّتْهُ، ⑪ وَإِذَا أَمَرَهَا أَطَاعَتْهُ، ⑫ وَإِذَا غَابَ عَنْهَا حَفِظَتْهُ»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمايي كوم وخت چې دا آيت كريمه وَالَّذِيْنَ يَكْنِزُوْنَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ الآية [او كوم خلق چې سره زر او سپين زر جمع كوي] تر آخر پورې، نازل شو ③ نو صحابه رضي الله عنهم ډير فكرمند شو د هغوئ دا حالت ليدو سره حضرت عمر رضي الله عنه وفرمايل ④ چې زه ستاسو دا فكر اوس لرې كوم نو هغه د نبي كريم صلى الله عليه وسلم په خدمت كښې حاضر شو او عرض يې اوكړو ⑤ چې اې د الله جل جلاله نبي صلى الله عليه وسلم دا آيت خو ستا په صحابه و رضي الله عنهم ډير بوج شوي دي ⑥ حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې الله تعالى جل جلاله زكات ځكه فرض كړي دي چې هغه ستاسو باقي مال پاک كړي ⑦ او الله تعالى جل جلاله ميراث ځكه مقرر كړي دي او د دې ځخه روسته آنحضرت صلى الله عليه وسلم يوه كلمه ذكر وفرمايله، چې كوم خلق ستاسو ځخه روسته پاتې شي هغه د هغوئ حق شي ⑧ حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمايي چې حضرت عمر رضي الله عنه (د دې اوريدو سره د ډيرې خوشالي ځخه چې يو مشكل آسان شو) الله اكبر ووېلو د دې ځخه روسته حضور صلى الله عليه وسلم حضرت عمر رضي الله عنه ته وفرمايل ⑨ چې آيا زه تاته يو بهترين شي ونه ښايم چې انسان يې د ځان سره وساتي نو خوشحاله به وي او هغه نيک بخته ښځه ده ⑩ چې دهغې طرف ته سړې وګوري نو د هغه طبيعت خوشحاله شي ⑪ او كله چې هغې ته څه حكم وركړي نو د هغه اطاعت وكړي ⑫ او كله چې هغه په كور كښې موجود نه وي نو د هغه [د ورو] حفاظت كوي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① كَبُرَ: أَيْ شَقَّ وَصَعُبَ: سخته اوګرانه ورته ښكاره شوه، ② أُفَرِّجُ: أَيْ أُزِيلُ الْغَمَّ وَالْهَمَّ: زه ستاسوغم اوفكر لرې كوم. ③ لِيُطَيِّبَ: چه پاک كړي، ④ يَكْنِزُ: چه ساتي او جمع كوي ئې.

**تسهيلات:** **قوله: لَمَّا نَزَلَتْ هَذِهِ الْآيَةُ:**

**د مذكوره آيت په صحابه كرامو باندې اثر:** - يعنى دَ زكوة متعلق چه كله په قرآن كريم كښې په سخت وعيدباندې مشتمل آيت نازل شونو صحابه كرام رضي الله عنهم ډير پريشان شوځكه چه په دغه آيت كښې دَ څه قسم مال جمع كولواو ذخيره كولوباندې وعيد اوروليې شوې دې.

[۱] اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الزكاة/باب فى حقوق المال (رقم-۱۶۶۴)

حضرت عمر رضی الله عنه اوفرمائیل چه زه ورخم دَ حضورپاك نه معلومات کوم. هغوی دَ رسول الله ﷺ په وړاندې دَ صحابه کرامو دَ پریشانئی ذکراوکړو نوحضورپاك په جواب کښې اوفرمائیل چه الله تعالی زکوة هم په دې وجه فرض کړې دې چه دَ دې په ذریعه دَ مسلمانانو باقی پاتې مال پاك شی. لهذا دکوم مال چه زکوة اداکړې شو هغه پاك شو اوس دَدې ساتل اوجمع کول منع نه دی. په قرآن کریم کښې چه دَمال په جمع کولوباندې کوم وعیدراغلې دې هغه دَ هغه مال باره کښې دې دَ کوم چه زکوة نه وی اداکړې شوې. دې اوریدوسره حضرت عمر رضی الله عنه دَ تکبیرنعره اوچتولوسره دَ خوشحالئی اظهاراوکړو.

**قوله**: وَذَكَرَ كَلِمَةً لِتَكُونَ لِمَنْ بَعْدَكُمْ:

**دصحابه کرامو احتیاط**:- یعنی دَ میراث دَ ذکرکولونه پس حضورپاك یوه کلمه ارشاد فرمائیلې وه مګرمانه هغه هیره شوې ده. دَ حضرت ابن عباس رضی الله عنهما په دې لفظ سره هرسړی ته اندازه کیدې شی چه صحابه کرامو به دَ حضورپاك احادیث بیانولو کښې څومره احتیاط کولو. اودَ روایت بالمعنی په ځائی به ئی دَ اصلی لفظ بیانولو څومره اهتمام کولو

### [١٧٨٢] دَ عاملانو خوشحاله ساتلو دزکات په تکمیل کښې کردار

١٧٨٢-()[١١] [١] وَعَنْ جَابِرِ بْنِ عَتِيكٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [٢] "«سَيَأْتِيكُمْ رُكَيْبٌ مُبَغَّضُونَ،[٣] فَإِذَا جَاءُوكُمْ فَرَحِّبُوا بِهِمْ،[٤] وَخَلُّوا بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ مَا يَبْتَغُونَ،[٥] فَإِنْ عَدَلُوا فَلِأَنْفُسِهِمْ،[٦] وَإِنْ ظَلَمُوا فَعَلَيْهِمْ،[٧] وَأَرْضُوهُمْ فَإِنَّ تَمَامَ زَكَاتِكُمْ رِضَاهُمْ،[٨] وَلْيَدْعُوا لَكُمْ»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: [١] حضرت جابر بن عتیک رضی الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] تاسو ته به یو وړه شان قافله راشي (یعني زکات وصولونکي عاملین به راشي) چې مبغوض به وي (یعني په طبعي طور سره به خلق د هغې څخه نفرت کوي ځکه چې هغوی به د هغوئ څخه د مال اخستو د پاره راځي)[٣] نو کله چې تاسو ته هغه قافله راشي نو تاسو هغوی ته مرحبا (خوش آمدید) اووائي [٤] او د هغوئ په خدمت کښې د زکات مال حاضر کړئ [یعني د هغوئ او د هغوئ د طلب کونکی شي یعنی د زکات په مینځ کښې څه شي مه حائل کوئ] [٥] که هغوی د زکات په باره کښې د عدل څخه کار اخلي نو دا د ځان د پاره کوي (چې د عدل ثواب به بیا مومي)[٦] او که د ظلم معامله کوي نو د هغې وبال به په هغوئ وي [٧] تاسو خو زکات وصولونکي راضي کړئ او پوهه شئ چې ستاسو د طرف څخه په پوره زکات ورکولو کښې د هغوئ رضامندي ده [٨] او عامل (زکات وصولونکو) ته پکار دي چې هغوی ستاسو د پاره دعا وکړي. (ابوداؤد)

---

[١] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الزکاة/باب رضا المصدق (رقم-١٥٨٨)

**حل اللغات:-** ① رُكَيْبٌ: دا دَ رکب تصغیر دې دَ زکوة دَعاملینو وړه شان قافله مراد ده. ② مُبَغَّضُونَ: أَيْ يُبْغِضُونَ طَبْعًا: دَاسم مفعول صیغه ده، یعنی طبعي طوربه ئې ناخوښه وی، ③ فَرَحِّبُوا: یعنی مرحبا او پخیر راغلی ورته اووایئ. ④ خَلُّوا: أَيِ اتْرُكُوا: یعنی هغوی پریږدئ حائل ورته مه جوړیږئ، ⑤ يَبْتَغُونَ: أَيْ مَا يَطْلُبُونَ: کوم زکوة چه غواړی.

**تسهیلات: قوله: مُبَغَّضُونَ** ": عنی زکوة وصول کونکی به تاسو له راځی اوچونکه معامله دَ مال ورکولو ده په دې وجه به په طبعي توګه داخلق ستاسو خوښ نه وی لیکن تاسو دَدوی په خوشحالئی سره هرکلې کوئی.

**قوله: وَإِنْ ظَلَمُوا:**

**په ظلم باندې د صبر تلقین:-** یعنی هغوی به بالکل په تاسو ظلم نه کوی. لیکن فرض کړه که ستاسو خیال وی چه داخلق هم ظلم کوی نوبیاهم دوی خوشحاله ساتئی دوی مه خرابه وئ. دَدې ترغیب دامطلب نه دې چه دَدوی ظلم جائزدې بلکه مطلب دادې چه تاسو په هرحال کښې خوشحاله ساتئی. دَ خوشحالولوترغیب دې څکه چه دَاسلام عادلانه نظام هم په دې باندې قائم دې چه دَطرفین خلق په دې باندې تیارکړې شی چه هغوی دې یوبل برداشت کړی. یوطرف ته اسلام دَ زکوة کارکنانوته په سختئی سره دَ انصاف نصیحت کوی اوبل طرف ته مالکانوته دَمالونو دَهرقسم حکم منلوترغیب ورکوی. سبحان الله څه ښکلې دین دې.

**[١٧٨٣] د زکات د عاملانو په ظلم صبر کول**

١٧٨٣-()[١٣] ① وَعَنْ جَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ قَالَ: ② «جَاءَ نَاسٌ -يَعْنِي مِنَ الْأَعْرَابِ- إِلَى رَسُولِ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَقَالُوا: ③ إِنَّ نَاسًا مِنَ الْمُصَدِّقِينَ يَأْتُونَا فَيَظْلِمُونَا، ④ فَقَالَ: "أَرْضُوا مُصَدِّقِيكُمْ"، قَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ وَإِنْ ظَلَمُونَا؟ ⑤ قَالَ: "أَرْضُوا مُصَدِّقِيكُمْ، وَإِنْ ظُلِمْتُمْ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① او حضرت جریر بن عبدالله ﷺ وایي ② چه د صحرا څه خلق د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او عرض یي اوکړو③ چې زکات وصولونکي ځني خلق مونږ ته راځي او مونږ سره د ظلم معامله کوي ④ حضور ﷺ هغوئ ته وفرمایل چې زکات وصولونکي راضي کړئ هغوئ عرض اوکړو چې یا رسول الله ﷺ اګر که هغوی په مونږ ظلم کوي؟ ⑤ حضور ﷺ وفرمایل چې تاسو زکات وصولونکي راضي کړئ اګر که تاسو سره د ظلم معامله وکړل شي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ① الْمُصَدِّقِينَ: أَيْ آخِذُ الصَّدَقَةِ وَهُوَ الْعَامِلُ: عامل ته وائی کوم چه زکوة راټولوی. اوزکوة ورکونکی مالك ته متصدق وائی. ② أَرْضُوا: راضی، خوشحاله کړئ.

[١] اخرجه مسلم فی کتاب الزکاة/باب إرضاء السعاة (رقم) ٢٩ - (٩٨٩) وابوداود فی السنن کتاب الزکاة/باب رضا المصدق (رقم-١٥٨٩) والنسائی کتاب الزکاة/باب: إذا جاوز فی الصدقة (رقم-٢٤٦٠) واحمد فی المسند ٤/٣٦٢.

**تسهیلات:**

**قوله:** "أَرْضُوا مُصَدِّقِيكُمْ، وَإِنْ ظُلِمْتُمْ:

**اشکال:**- سوال په دې حدیث مبارك کښې مصدق (عامل) لره په ظاهره د ظلم اجازت ورکړې شوې دې حالانکه ظلم ده دپاره بالکل جائز نه دې؟

**داشکال جواب:**- جواب صدقه وصولونکې حضرات صحابه کرام ووا دهغوئ نه د ظلم صدور مشکل وو خینې کلی والو خلقو دهغوئ جائز وصولی هم ظلم ګنړلو په دې وجه نبی کریم ﷺ ارشاد اوفرمائیل چې تاسو که په خپل خیال کښې دا ظلم ګنړئی بیا هم هغوی راضی کړئی د نبی کریم ﷺ ددې اعرابیانو نه د ظلم د تفصیل تپوس نه کول هم دلیل دې چې صحابه ظلم نشی کولې

**[۱۷۸۳] د زکات د څه حصې پټولو ممانعت**

۱۷۸۳-()[۱۳] [۱] «وَعَنْ بَشِيرِ بْنِ الْخَصَاصِيَةِ قَالَ: [۲] قُلْنَا إِنَّ أَهْلَ الصَّدَقَةِ يَعْتَدُونَ عَلَيْنَا، [۳] أَفَنَكْتُمُ مِنْ أَمْوَالِنَا بِقَدْرِ مَا يَعْتَدُونَ؟ [۴] قَالَ: "لَا»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] حضرت بشیر ابن الخصاصیة رضی الله عنه وایي [۲] چې مونږ رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چې زکات وصولونکي په مونږ زیاتي کوي (یعني په زکات کښې د واجب مقدار څخه زیات اخلي) [۳] نو آیا مونږ د خپل مال څخه هغومره حصه پټه کړو څومره چې هغه زمونږ څخه زیات وصولوي؟ [۴] حضور ﷺ وفرمایل چې نا. (ابوداؤد)

**حل اللغات:**- ① يَعْتَدُونَ: أَيْ يَظْلِمُونَ: ظلم اوزیاتي کوی. ② أَفَنَكْتُمُ: آیا مونږ پټولې شو.

**تسهیلات: قوله:** أَفَنَكْتُمُ مِنْ أَمْوَالِنَا بِقَدْرِ مَا يَعْتَدُونَ؟:

**په اموال ظاهره کښې د زکات د عاملینو څخه د څه څیز پټولو عدم جواز:**- یعنی فرض کړه که دَ زکوة راټولونکې په زکوة اخستلو کښې په مونږ باندې زیاتې کوی نو آیا مونږ داسې کولې شو چه دَمال څه حصه دَهغوی نه پټه کړو حضورپاك منع کړل. په دې حدیث باندې دَ پوهیدلودَپاره په دې خبره باندې ښان پوهه کړئی چه دَاسلامی حکومت حق دې چه هغوی دې دَخلقو دَ ظاهر مال نه یعنی څاروو اوعشر وغیره نه پخپله زکوة وصول کړی په دغه مالونوکښې دَ صاحب مال اختیارنشته چه هغه دې په خپله خوښه یوغریب ته ورکړی. بلکه دَهغوی ذمه واری ده چه هغوی دې دغه صدقات په بیت المال کښې جمع کړی. هم دې سره متعلق داحکم دې چه دَ مال څه حصه پټه کیخودل اودَهغې صدقه نه اداکول جائزنه دی. اودَ اموال باطنه یعنی روپو اوپیسو معامله جدا ده هغه صاحب مال په خپله خوښه باندې فقیرانوته ورکولې شی. بهرحال دَاسلامی حکومت نه دَهغه حق پټول منع دی.

---

[۱] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الزکاة/باب رضا المصدق (رقم-۱۵۸۶)

[۱۷۸۵] د زکات د عاملانو اجر

۱۷۸۵ـ(۱)[۱۴] [۱] وَعَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] "«الْعَامِلُ عَلَى الصَّدَقَةِ بِالْحَقِّ كَالْغَازِي فِي سَبِيلِ اللهِ [۳] حَتَّى يَرْجِعَ إِلَى بَيْتِهِ»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] حضرت رافع بن خدیج رضی الله عنه روایت کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل [۲] په حق سره د زکوٰة وصولونکی عامل د الله جل جلاله په لار کښې (د جهاد کونکي) غازي په شان دي [۳] تر دي چې هغه خپل کور ته واپس راشي (ابوداؤد ترمذي)

**حل اللغات:** - ① الْعَامِلُ: څوک چه زکوة راټولوی هغه ته عامل او مصدّق وائی. ② الْغَازِي: څوک چه دالله د دین د سربلندئ دپاره جهاد کوی.

**تسهیلات:**

**قوله: كَالْغَازِي فِي سَبِيلِ اللهِ:**

**د مزکی د غازی سره د تشبه وجه:** - یعنی زکوة وصول کونکي دَ ثواب په اعتبار سره دَ یو مجاهد او غازی په شان دي ځکه هغوی دَ اسلامی حکومت اود دین اسلام دَ یو حکم خدمت کوی سره دَدې چه هغه تنخواه هم اخلی لیکن بیا هم هغه ته لوئی اجر ملاویږی. اسلام مسلمانان نیکو عبادتونو او دَ آخرت طرف ته متوجه کوی. په دې وجه دَ زکوة کارکنان صرف دَ مزدور اونوکر دَ حده پورې نه شی ساتلې بلکه هغوی ته اجر، ثواب او دَ عبادت تصور هم ورکولې شی. اوس به هغه په دې کارکښې دَ عبادت تصور مخې ته ساتی نوکار به دیانت او امانت سره کوی په هغې کښې به شوق او رغبت هم لری نو په کارکښې به نې ترقی وی. دَدې برعکس دَ نن صبا حکمرانانو مسلمانان دَ دین په کار لګولو سره هم بې دینه جوړکړی دی ځکه چه دوی هغوی ته صرف دَ نوکرئی او مزدورئی تصور ورکوی لکه چه دَ پاکستان فوج دې هغوی ته صرف دَ نوکرئی تصور ورکولې شی. حالانکه یوفوجی یو مجاهد وی اودَ مجاهد درجه څومره لویه وی. کله چه دَ عبادت تصور نه وی نو نه په هغوی کښې دینداری او امانت شته نه شوق اونه رغبت شته صرف مزدوری او ملازمت دې.

[۱۷۸٦] د زکات په باب کښې د جَلَب او جَنَب مطلب

۱۷۸٦ـ(۲)[۱۵] [۱] وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] "«لَا جَلَبَ [۳] وَلَا جَنَبَ [۴] وَلَا تُؤْخَذُ صَدَقَاتُهُمْ إِلَّا فِي دُورِهِمْ»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] عمرو ابن شعیب رضی الله عنه د خپل پلار څخه او هغه دخپل نیکه څخه او هغه د نبي کریم صلی الله علیه وسلم څخه روایت کوي چې حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل [۲] چې زکات وصولونکي دي (د

(۱) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الخراج والإمارة والفیء/باب فی السعایة علی الصدقة (رقم-۲۹۳٦) والترمذی کتاب الزکاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی العامل علی الصدقة بالحق(رقم-٦٤٥) واحمد فی المسند ١٤٣/٤

(۲) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الزکاة/باب أین تصدق الأموال(رقم-۱۵۹۱) واحمد فی المسند ۲۱۵/۲

زکات د پاره) څاروی نه راغواړي [٣] او نه دي د څاروو مالک لرې ځي [٤] او د څاروؤ زکات دي د هغوئ په کورونو کښې واخستل شي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ① جَلَبَ: جلب دَ راښکلو او په راښکلوسره دَ راوړلو په معنی کښې دې. ② جَنَبَ: جنب دَ لرې کیدو اوجداکیدو په معنی کښې دې داهم نهی ده. ③ دُورِهِمْ: دور دَ دار جمع ده کورته وائی.

**تسهيلات:**

**قوله: لَاجَلَبَ وَلَاجَنَبَ:**

**د زکات په باب کښې د جلب او جنب تفسیر:-** د جلب او جنب په شان کلمات که چرې دَ زکوة په ابواب کښې راشي نودَي هم دغه مطلبونه دی کوم چه پورته بیان کړې شوی دی خو که دا کلمات دَ کتاب الجهاد دَ اسونو په منډه او مخکښې باب کښې راشي نوهلته دَدې مطلبونه بدلیږی. هلته دَ جلب اطلاق په دې باندې کیږی چه اس پسې یوسړې اولګی او په تیزه تیزه په هغه باندې چغې وهی اوهغه په منډه کړی دې دَپاره چه هغه دَ خپل مقابلې والا اس نه وړاندې شی. او دَاسونو په منډه کښې دَ جنب مطلب دادې چه یواس سترې شی په مزه شی دَهغه په اړخ کښې یوخالی اس دې نو دغه سور په هغه خالی اس باندې ورټوپ کړو هغه ئی قابوکړو اومقابله ئی شروع کړه. دَ اسونو په منډه کښې دَدې عمل نه ځکه منع کړې شوې ده چه په جهادی تربیت کښې دَهریواس دَ طاقت اوقوت اودَ تربیت او مهارت پته اولګی چه کوم یواس تربیت یافته دې اوکوم یونه دې لیکن په دې عمل سره دا مقصد ختمیږی په دې وجه ئی منع کړې ده.

**فائده:**

**د بیوع په باب کښې د جلب تفسیر:-** دالفظ په بیوعات کښې هم استعمالیږی. هلته دَدې مطلب دادې چه دَ ښار لوئی سوداګر لاړشی او ښارته راتلونکې قافلې ټول مال واخلی او په خپله مرضئ باندې دَ ښار په خلقو خرڅه وی. دا تلقی الجلب دې کوم چه منع دې.

**قوله: وَلَاتُؤْخَذُصَدَقَاتُهُمْ إِلَّافِي دُورِهِمْ:**

**دسابقه جملې تاکید:-** داجمله دې نه وړاندې دواړو جملودَپاره تاکید دې. مطلب داچه زکوة هم کورونوسره اخلئی اوورکوئی دې دَپاره چه چاته تکلیف نه وی.

**[١٧٨٧] دَ کټلې شوی مال دَ زکات حکم**

١٧٨٧-(١)[١٦] [١] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] "«مَنِ اسْتَفَادَ مَالًا فَلَا زَكَاةَ فِيهِ [٣] حَتَّى يَحُولَ عَلَيْهِ الْحَوْلُ»". [٤] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَذَكَرَ جَمَاعَةٌ أَنَّهُمْ وَقَفُوهُ عَلَى ابْنِ عُمَرَ.

[١] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الزکاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء لا زکاة علی المال المستفاد حتی یحول علیه الحول (رقم-٦٣٢)

**ترجمه:** [١] حضرت ابن عمر رضي الله عنه روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] چا ته چې مال حاصل شو تر هغه وخته پورې په هغه زکات نه واجبيږي [٣] تر څو پورې چې په هغې يو کال تير نشي، [٤] امام ترمذي رحمه الله دا روايت نقل کړي دي او د يو جماعت په باره کې يي ويلی دی چې هغه دا حديث په حضرت ابن عمر رضي الله عنه باندی موقوف کړې دې (يعني دا د حضور ﷺ ارشاد گرامي نه دي بلکه پخپله د ابن عمر رضي الله عنه قول دي)

**حل اللغات:** - ① اِسْتَفَادَ: اوئې گټلو (د کال په مينځ کښې ئې څه مال اوگټلو ، ② الْحَوْلُ: کال.

**تسهيلات:**

**قوله: مَنِ اسْتَفَادَ مَالًا:**

**د مال مستفاد تعريف:** - مال مستفاد هغه مال ته وائی کوم چه اصل نصاب سره دَ کال په مينځ کښې څه نور مال حاصل شي.

دَ نصاب مکمل کيدونه پس که انسان ته د کال په مينځ کښې کوم مال حاصل شی دَهغې درې صورتونه دی دوو کښې اتفاق دی او يو کښې اختلاف دې.

**د کال په درميان کښې د مال مستفاد درې صورتونه:** - ① اول صورت دادې چه دَ کال په مينځ کښې کوم مال راغلې دې هغه دَ اصل نصاب دَ جنس نه نه دې مثلاً دَ اوښانو نصاب موجود دې د کال په مينځ کښې چيلئې راغلې په دې کښې دَ ائمه اتفاق دې چه دَدې چيلودَپاره جدا کال تيرول ضروري دی دادَ اوښانوپه شان نه دی

② دويم صورت دادې چه اول نصاب موجود دې مثلاً ٣٥ اوښان دی يا دوه سوه درهم دی مگر د کال په مينځ کښې دَ دغه اوښانو بچې پيدا شو يا دَ تجارت په مال کښې زياتې راغلې دې ته انتاج او ارباح وائی دَ فقهاؤ په دې کښې هم اتفاق دې چه حاصل شوی مال دَ اصل نصاب تابع دې دَ جدا کال تيريدلو ضرورت نشته دې.

③ دريم صورت دادې چه نوې حاصل شوې مستفاد مال دَ اصل نصاب دَ جنس نه دې مگر دَ دې دَ انتاج او ارباح نه نه دې يعنی دَدې نه بالکل نه دې حاصل شوې بلکه په جدا ذريعه سره لاس ته راغلې دې مثلاً اول دَ اوښانو نصاب وو بيائی نور واخستل يا چا اوښان په صدقه کښې ورکړل يا په ميراث کښې راغله په دې صورت کښې دَ فقهاء کرامو اختلاف دې.

**په دريم صورت کښې مذاهب:** -

① امام شافعي رحمه الله امام احمدبن حنبل رحمه الله اسحاق بن راهويه رحمه الله په نيز دَدې گټلې شوی مال دَپاره هم کال تيريدل ضروری ضروری دی دا جدا مال دې دَ اول نصاب تابع نه دې.

② دَ امام ابوحنيفه رحمه الله اوامام مالك رحمه الله په نيز دا مال دَ اصل نصاب تابع دې په دې وجه دَ کال تيريدل يا نصاب ته رسيدل شرط نه دې.

**د اول فريق دليل:** - زير بحث حديث د اول فريق دليل دې په کوم کښې چه په واضحه توګه سره ذکردی چه د ګټلې شوې مال د پاره کال تيريدل شرط دی.

**داول فريق د دليل څخه جوابونه:** - ① داحديث د ګټلې شوې مال په هغه صورتونو باندې محمول دې په کوم کښې چه د ټولو فقهاؤ اتفاق دې.

② د دې حديث مطلب او مفهوم هغه نه دې کوم چه شوافع اوحنابله اخستې دې بلکه دا د نوی سر نه حاصل شوې مالونوسره متعلق دې دکوم د کال تيردلو چه ټول قائل دی.

**د دويم فريق دلائل:** - ① دويم فريق هم زير بحث حديث خپل دليل ګرځوی مګر دوی د دې حديث مفهوم هغه نه اخلی کوم چه اول فريق اخستې دې بلکه هغوی فرمائی چه "من استفادمالاً" مطلب دادې چه يو سړی ته د نوې سر نه د شروع په توګه که چرې مال حاصل شو نوترکومې چه په دغه مال باندې کال تير نه شی په هغې کښې زکوة نشته دې.

② د حضرت ابن عباس ﷺ اوحضرت عثمان ﷺ هغه آثار د دوی دليل دې په کوم کښې چه د ګټلې شوې مال د د پاره هغه حضرات د حولان حول شرط نه لګوی. دا آثار نصب الرايه نقل کړی دی.

③ دليل عقلی هم د دوی مستدل دې دوی فرمائی چه کال کښې د اوږدې مودې نه روزانه نوې مال راځی بل مال زياتيږی کميږی که چرته د هر نوی مال د پاره کال تيريدل شرط اولګولې شو نو په دې کښې لوئی حرج دې کوم چه د انسان د طاقت نه بهر دې. "والحرج مدفوع فی الشرع".

**[١٧٨٨] د وجوب زکات څخه وړاندې د زکات ورکولو حکم**

١٧٨٨ -(١)[١٧] ١ وَعَنْ عَلِيٍّ أَنَّ الْعَبَّاسَ سَأَلَ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ٢ فِي تَعْجِيلِ صَدَقَتِهِ قَبْلَ أَنْ تَحِلَّ، ٣ فَرَخَّصَ لَهُ فِي ذَلِكَ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ١ حضرت علي ﷺ فرمايي چې حضرت عباس ﷺ د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه ٢ د کال پوره کيدو څخه مخکي د زکات زر ادا کولو په باره کښې ٣ نو حضور ﷺ هغه ته اجازت ورکړه، (ابوداؤد، ترمذي، ابن ماجه، دارمي)

**حل اللغات:** - ① تَحِلَّ: قَبْلَ أَنْ تَصِيرَ حَالًا بِمُضِيِّ الْحَوْلِ: يعنی اوس لاکال تيرشوې نه دې، کال لانه دې پوره شوې.

[١] اخرجه ابوداود فی السنن كتاب الزكاة/باب فی تعجيل الزكاة(رقم-١٦٢٤) والترمذی كتاب الزكاة عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی تعجيل الزكاة(رقم-٦٧٨) وابن ماجة كتاب الزكاة/باب تعجيل الزكاة قبل محلها(رقم-١٧٩٥) والدارمی من كتاب الزكاة/باب فی تعجيل الزكاة (رقم-١٦٧٦) واحمد فی المسند ١٠٤/١

**تسهيلات:**

**قوله: فَرَخَّصَ لَهُ فِي ذَٰلِكَ:**

**د تعجیل الزکاة حکم:** - یعنی تراوسه پورې کال پوره نه دې مګر که یو سړې دخپل مال زکوة ویستل غواړی نودا سره داحنافو اکثر ائمه په نیزجائز دی اودډې دپاره دا شرط دې چه زکوة ویستونکې د شرعی نصاب مالك وی فقیر نه وی.

**[١٧٨٩] دنابالغه ماشوم دمال زکات**

١٧٨٩-(١)[١٨] ١ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ ٢ أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - خَطَبَ النَّاسَ فَقَالَ: ٣ "«أَلَا مَنْ وَلِيَ يَتِيمًا لَهُ مَالٌ فَلْيَتَّجِرْ فِيهِ، ٤ وَلَا يَتْرُكْهُ حَتَّى تَأْكُلَهُ الصَّدَقَةُ»". ٥ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ فِي إِسْنَادِهِ مَقَالٌ، ٦ لِأَنَّ الْمُثَنَّى بْنَ الصَّبَّاحِ ضَعِيفٌ.

**ترجمه:** ١ عمرو بن شعیب دخپل پلار (شعیب څخه) او هغه د خپل نیکه (یعني د عبدالله رضي الله عنه) څخه نقل کړي دي ٢ چې یوه ورځ نبي کریم ﷺ د خلقو په مخکې په خطبه کښې وفرمایل ٣ چې خبردار کوم سړي چې د یو یتیم نګران وی او هغه یتیم (بقدر د نصاب) د مال مالک وي نو هغه نګران ته پکار دي چې د هغه په مال سره تجارت وکړي ٤ بغیر د تجارت څخه دي د هغه مال نه اړدي چې زکات یي وخوري (یعني د زکات ورکولو سره به پوره مال ختم شي) ٥ دا روایت ابوداؤد او ترمذي نقل کړي دي، او امام ترمذي رحمه الله ویلي دي چې د دې روایت په اسناد کښې کلام شوي دي ٦ ځکه چې د روایت یو راوي مثني ابن صباح ضعیف دي.

**حل اللغات:** - ① وَلِيَ: نګران جوړشو، ② فَلْيَتَّجِرْ: تجارت یعنی اخستل خرڅول دې کوی.

**تسهيلات:**

**قوله: حَتَّى تَأْكُلَهُ الصَّدَقَةُ:**

**د ماشوم په مال کښې د زکات په فرضیت کښې مذاهب:** -

یعنی د یتیم په مال کښې تجارت جاری ساتلې دې دپاره چه په زکوة ورکولو سره د هغه مال زکوة اونه خوری. دډې جملې نه معلومیږی چه دنابالغ ماشوم په مال کښې زکوة شته. په دې مسئله کښې د فقهاؤ اختلاف دې.

① دجمهورو په نیزکه چرته ماشوم د نصاب مالك شی نودهغه په مال کښې زکوة فرض دې. د ماشوم پالونکې او مشر به ددغه مال نه زکوة ورکوی. په صحابه کرامو رضي الله عنهم کښې د یوې طبقې هم دغه مسلك دې.

② احناف عالمان، سفیان ثوری رحمه الله او ابراهیم نخعی رحمه الله په نیز دماشوم په مال کښې

---

(١) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الزکاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی زکاة مال الیتیم(رقم-٦٤١)

زکوة نشته دي. په صحابه کرامو رضی الله عنهم کښې دَ حضرت ابن عباس رضی الله عنهما هم دغه مسلك دي

**د اختلاف منشاء:-** دلته په حقيقت کښې دا اختلاف په يوبل اختلاف باندې متفرع دې هغه اختلاف دادې چه آيا زکوة عبادت محضه دې يا مؤنه مالی دې. نودَ احنافو په نيز زکوة دَ عبادت محضه نه دې ماشوم غيرمکلف دې په هغه باندې عبادت نشته دې لهذا زکوة هم نشته. دَ جمهورو په نيز زکوة مؤنة مالی دې يعنی داسې بوج دې دکوم تعلق چه دَ مال سره دې لهذا که چرې ماشوم غيرمکلف وی دَ هغه دَ مال نه به زکوة ويستې شی

**داول فريق دليل:-** زيربحث حديث د اول فريق مستدل دې

**داول فريق د دليل څخه جوابونه:-** ① چاول فريق دَ زير بحث روايت جواب دادې چه دا حديث امام ترمذی رحمه الله وغيره محدثينو ضعيف ګرځولې دې.

② زير بحث حديث کښې دَ صدقه لفظ راغلې دې دې نه زکوة مراد نه دې بلکه نور خرچ او اخراج مراد دې. کومه چه پخپله دَ يتيم خرچه دد دَهغه دَ مشر خرچه دد دَ ماشوم دَ نورو ضرورتونو خرچه دد. په داسې خرچو سره خو مال ختميږی دَ زکوة په اداکولوسره مال نه ختميږی څکه چه کله دَنصاب نه کم شی نوبيا خو به په هغې کښې زکوة هم نه وی. حالانکه په حديث کښې دی چه صدقه خوړلوسره مال مه ختموئی. معلومه شوه دَ صدقه نه مراد زکوة نه دې نور ضروريات دی اودَ صدقې اطلاق په نورو ضرورتونو باندې ډير دی.

**د دويم فريق دلائل:-** ① هغه ټول نصوص د دويم فريق مستدلات دی دکومو نه چه معلوميږی چه ماشوم ته دَمسئلوحکم نشته "رفع القلم عن ثلاثة" کښې ماشوم مرفوع القلم ګرځولې شوې دې.

② کتاب الآثار کښې دَ حضرت ابن مسعود رضی الله عنه دا اثر موجود دې "انه سئل عن مال اليتيم فقال احصن ماله ولاتزکيه" يعنی دَ هغه دَمال حفاظت کوئی دَهغې نه زکوة مه ورکوئی.

③ حسن بصری رحمه الله فرمائی "ليس فی مال اليتيم زکوة وقال عليه اجماع الصحابة" (زجاجة المصابيح ج۱ص۱۳۹۰)

④ يوروايت دې "عن ابن عباس قال لايجب علی مال الصغير زکوة حتی تجب عليه الصلوة" (رواه الدارقطنی) په دې روايت کښې دې قاعدې او ضابطې طرف ته واضحه اشاره دد چه ماشوم غيرمکلف دې ترکومې چه هغه دَ مونځ مکلف نه دې دَ روژې او حج نه دې بلکه دَا يمان مکلف نه دې نودَزکوة به څنګه مکلف شی؟

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

[١٧٩٠] د مانعين زكات خلاف د ابوبكر رضى الله عنه جهاد كول

١٧٩٠-(١)[١٩] [١] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: [٢] «لَمَّا تُوُفِّيَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَاسْتُخْلِفَ أَبُوبَكْرٍ بَعْدَهُ، [٣] وَكَفَرَ مَنْ كَفَرَ مِنَ الْعَرَبِ، [٤] قَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ لِأَبِي بَكْرٍ: [٥] كَيْفَ تُقَاتِلُ النَّاسَ وَقَدْ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٦] "أُمِرْتُ أَنْ أُقَاتِلَ النَّاسَ حَتَّى يَقُولُوا لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، [٧] فَمَنْ قَالَ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ عَصَمَ مِنِّي مَالَهُ وَنَفْسَهُ إِلَّا بِحَقِّهِ وَحِسَابُهُ عَلَى اللَّهِ"؟

**ترجمه:** [١] حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي [٢] كله نبي كريم ﷺ چې وفات شو او حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه يي خليفه وګرځيدلو [٣] اوپه عربو كښې چې څوک كافران شو هغوئ كافران شو [يعني د زكات منكرين شو نو حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه د هغوئ سره د جنګ كولو فيصله وكړه دا فيصله اوريدو سره] [٤] حضرت عمر فاروق رضي الله عنه حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه ته عرض اوكړو [٥] چې ته د خلقو (يعني د اهل ايمان سره) څرنګه جنګ كوي حالانكه د رسول الله ﷺ ارشاد ګرامي دي [٦] چې ماته حكم راكړې شوي دي چې زه د خلقو سره تر هغه وخته پورې جنګ كوم تر څو پورې چې هغوئ لا اله الا الله ونه وايي (يعني اسلام رانه وړي) [٧] نو چا چې لا اله الا الله اوويله (يعني اسلام يي قبول كړو) هغه زما څخه خپل مال او خپل ځان محفوظ كړو، سوا د اسلام د حق څخه او د هغوى د باطن حساب د الله جل جلاله په ذمه دي،

[١] فَقَالَ أَبُوبَكْرٍ: وَاللَّهِ لَأُقَاتِلَنَّ مَنْ فَرَّقَ بَيْنَ الصَّلَاةِ وَالزَّكَاةِ، [٢] فَإِنَّ الزَّكَاةَ حَقُّ الْمَالِ، [٣] وَاللَّهِ لَوْ مَنَعُونِي عَنَاقًا كَانُوا يُؤَدُّونَهَا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٤] لَقَاتَلْتُهُمْ عَلَى مَنْعِهَا، [٥] قَالَ عُمَرُ: فَوَاللَّهِ مَا هُوَ إِلَّا رَأَيْتُ أَنَّ اللَّهَ شَرَحَ صَدْرَ أَبِي بَكْرٍ لِلْقِتَالِ، [٦] فَعَرَفْتُ أَنَّهُ الْحَقُّ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه وفرمايل چې قسم په الله زه به د هغه سړي سره ضرور جنګ كوم چې په مانځه او زكاة كښې فرق وكړي [٢] [او څكه څنګه چې د بدن حق مونځ دي دغه شان] بلا شبه د مال حق زكات دي [٣] قسم په خداي كوم خلق چې د زكات څخه منكر شوي دي ترڅو چې ماته د بزو هغه بچيان رانه كړى چې رسول الله ﷺ ته به يي وركول [٤] نو زه به د هغوئ سره د دې انكار په وجه جنګ كوم [٥] حضرت عمر رضي الله عنه (دې اوريدو سره) اوويل چې قسم په خداي د دې څخه علاوه بله خبره نشته چه زه پوهه شوم چې الله تعالى جل جلاله د جنګ د پاره (د الهام په ذريعه) د حضرت ابوبكر رضي الله عنه سينه خلاصه كړي ده (د په يقين نه يي كړي ده) [٦] نو ماته هم يقين وشو چې اوس [د دې منكرينِ زكات سره

(١) اخرجه البخارى فى كتاب الزكاة/باب وجوب الزكاة (رقم-١٣٩٩) وابوداود كتاب الزكاة (١٥٥٦) والنسائى كتاب الجهاد/باب: وجوب الجهاد (رقم-٣٠٩١) واحمد فى المسند ١٩/١

جنګ! حق او درست دي.

**حل اللغات:-** ① اسْتُخْلِفَ: أَيْ جُعِلَ خَلِيفَةً: يعنی خليفه جوړشو. ② عَصَمَ: أَيْ حَفِظَ وَمَنَعَ: يعنی محفوظ اوبچ شو. ③ إِلَّا بِحَقِّهِ: أَيْ بِحَقِّ الْإِسْلَامِ: داسلام دحق په وجه، ④ فَرَّقَ: فرق کوی، ⑤ عَنَاقًا: دَ چیلئ وړوکی بچی ته عناق وائی دائی. ⑥ شَرَحَ: خلاصه او فراښه کړې ده.

**تسهیلات:**

**قوله: عَنَاقًا:**

دَ مبالغه په توګه فرمائیلی دی ګنی دَ چیلئ بچې نه په زکوة کښې اخستې شی او نه په داسې بچو کښې زکوة وی. بعضې روایتونو کښې دَ عقال لفظ راغلې دې کوم چه دَ رسئ په معنی کښې دې هغه هم دَ مبالغه په توګه دې.

**د حدیث شان ورود:-** کله چه رسول الله ﷺ دَ دنیا نه تشریف یوړو اوحضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه خلیفه جوړشو هغه وخت په جزیرهٔ عرب دَ ارتداد یوه ډیره لویه فتنه راوچته شوه. ٧٠فیصد خلق تقریباً دَ ارتداد ښکار شو مګر دَ دغه مرتدینو احوال جدا جدا وو. بعضې خو هغه خلق وو چه دَ دروغو نبوتونو دعویٰ ئی اوکړه او ښه پوره ګنړشمیر کښې خلق هغوی سره شو. بعضې هغه خلق وو چاچه اسلام پریخودو اودَ جاهلیت اولی طرف ته واپس لاړل. بعضې هغه خلق وو چه دَ زکوة نه بالکل انکار اوکړو اوبعضې هغه خلق ووچاچه دَ زکوة نه خو انکار اونه کړو مګر حضرت ابوبکر رضی الله عنه ته دَ ورکولونه ئی انکاراوکړو چه مونږ به اوس زکوة په بیت المال کښې نه جمع کوو. حضرت ابوبکر رضی الله عنه دغه ټولو خلقو سره دَ جنګ کولواراده اوکړه کوم خلق چه مرتد شوې وو هغوی سره خوئی په وجه دَ ارتداد اوکفر جهاداوکړو اوکوم خلق چه مونځ روژې پابندوو او کلمه ئی وئیله مګر حضرت ابوبکر رضی الله عنه ته ئی زکوة نه ورکول غوښتل. هغوی سره دوی دَ شعائراسلام دَ حفاظت او فتنې دَ ختمولو په بنیاد باندې جنګ اوکړو. حضرت عمر فاروق رضی الله عنه کوم بحث مباحثه کړې ده هغه هم دَدې قسم خلقو باره کښې وه چه دا خلق کلمه وائی تاسو دوی سره څنګه جنګ کوئی. حضرت ابوبکر رضی الله عنه اوفرمائیل چه کوم خلق په مونځ او زکوة کښې فرق کوی هغه مسلمان نه شی پاتې کیدې زه به هغوی سره جنګ کوم اوبیائی اوفرمائیل "تم الدین وانقطع الوحی اینقص الدین واناحی؟" بیائی دَ حضرت عمر رضی الله عنه باره کښې اوفرمائیل "اجبارفی الجاهلیة وخوارفی الاسلام؟" دَدې خبرو اترونه پس حضرت عمر رضی الله عنه اوفرمائیل چه الله تعالی زما سینه دَدې کاردَپاره کولاؤ کړه دکوم کاردَ پاره چه ئی دَ حضرت ابوبکر رضی الله عنه سینه کولاؤ کړې وه. بهرحال دَمرتدینو خلاف پوره یوکال پورې په جزیرهٔ عرب کښې جهاد اوشو او اسلام بیا هم په هغه خطوط باندې قائم شو کوم چه رسول الله ﷺ پریخودې وو.

**[١٧٩١] د مال څخه اژدها جوړیدل**

١٧٩١–(١)[٢٠] ١ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ٢ " «يَكُونُ كَنْزُ أَحَدِكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ شُجَاعًا أَقْرَعَ ٣ يَفِرُّ مِنْهُ صَاحِبُهُ، وَهُوَ يَطْلُبُهُ ٤ حَتَّى يُلْقِمَهُ أَصَابِعَهُ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** ١ حضرت ابوهریره رضی الله عنه روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ٢ ستاسو خزانه به د قیامت په ورځ د ګنجي مار په صورت وي ٣ مالک به د هغې څخه تښتي او هغه به وریسی زغلي ٤ تر دې چې [هغه مار به مالک رالاندې کړي، اوبه یې خوري او] ګوتې به یې لقمه (نمړې، نواله) کړي. احمد

**حل اللغات:-** ① كَنْزُ: خزانه، ② شُجَاعًا: أَيِ الْحَيَّةُ الذَّكَرُ: نر مار، ③ أَقْرَعَ: أَيِ الَّذِي لَا شَعْرَ عَلَى رَأْسِهِ: یعنی ګنجی مار، دداسې مار په سرباندې د زهرود زیاتوالی د وجې نه یا د اوږد عمر د وجې نه ویښته نه وی دا د سخت خباثت او شدت نښه ده. ④ يَفِرُّ: تختی به دا سړې (خزانه جمع کونکې) ⑤ يُلْقِمَهُ: نمړئ، نواله به ئې کړی. ⑥ أَصَابِعَهُ: ګوتې (ځکه چه په دې ګوتو ئې مال ګټلي وو او زکوة ئې نه ورکولو).

**تسهیلات:**

**قوله: كَنْزُ:**

د خزانې نه مراد هغه مال دې دکوم زکوة چه نه وی اداشوې. دغه شان هرحرام مال کوم چه په ناجائزه طریقه راجمع کړې شوې وی هغه هم د کنز په حکم کښې دې.

**قوله: حَتَّى يُلْقِمَهُ:**

**د مذکوره جملې دوه مطلبه:-** ① دَدې جملې دوه مطلبه دی. اول مطلب دادې چه ګنجې مار به دَمال هغه مالك لټوی تردې چه هغه به اووینی اوبیابه دې نوړئی کوی او تیره وی به ئې. ② دویم مطلب دادې چه ګنجې مار به زکوة نه اداکونکې لټوی او ګرځی به. هغه به د ده نه تختی مګر تختیدې به نه شی نو مجبوراً به خپل لاس اوګوتې پخپله د هغه اژدها په خله کښې ورکوی لکه څنګه چه په دنیاکښې هم کیږی چه د مجبورئی په صورت کښې سړې پخپله د لوئی مصیبت په ځائی دوړوکی مصیبت د برداشت کولو دپاره تیاریږی.

**[١٧٩٢] د بې زکاته مال څخه مار جوړیدل**

١٧٩٢–(٢)[٢١] ١ وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ٢ " «مَا مِنْ رَجُلٍ لَا يُؤَدِّي زَكَاةَ مَالِهِ ٣ إِلَّا جَعَلَ اللهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فِي عُنُقِهِ شُجَاعًا "، ٤ ثُمَّ قَرَأَ عَلَيْنَا مِصْدَاقَهُ مِنْ كِتَابِ اللهِ ٥ ﴿وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِينَ يَبْخَلُونَ بِمَا آتَاهُمُ اللهُ مِنْ فَضْلِهِ﴾ [آل عمران: ١٨٠] » الْآيَةَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ.

[1] اخرجه احمد فی المسند : ٢/٥٣٠

[2] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب تفسیر القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب: ومن سورة آل عمران(رقم-٣٠١٢) والنسائی کتاب الزکاة/باب: التغلیظ فی حبس الزکاة(رقم-٢٤٤١) وابن ماجة کتاب الزکاة/باب ما جاء فی منع الزکاة(رقم-١٧٨٤)

**ترجمه:** [١] حضرت ابن مسعود رضي الله عنه د نبي كريم ﷺ څخه نقل كوي چې حضور ﷺ وفرمايل [٢] كوم سړي چې د خپل مال زكات نه ادا كوي [٣] د قيامت په ورځ به د هغه په غاړه كښې يو مار زورند كړې شي [٤] بيا حضور ﷺ دا آيت اوونيلو (چې د اول فصل په يو حديث كښې پوره نقل شوي دي) [٥] وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِينَ يَبْخَلُونَ بِمَا آتَاهُمُ اللَّهُ مِنْ فَضْلِهِ او هغه خلق چې هغوئ ته الله ﷻ په خپل فضل سره مال وركړي دي او هغوی په دي كښې بخل كوي دا گمان دي نه كوي. (ترمذي، نسايي، ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① عُنُقِهِ: په څټ كښې، ② شُجَاعًا: أي الحَيَّةُ الذَّكَرُ: نر مار ③ يَبْخَلُونَ: بخل او كنجوسي كوي.

**تسهيلات:**

**قوله: إِلَّا جَعَلَ اللَّهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فِي عُنُقِهِ شُجَاعًا**

**د مار په صورت كښې د مال زكات نه ادا كولو سزا:** - يعني اول به مال نه مار جوړ شي او خپل مالك پسې به منډې وهي بيا به دده درانيولو نه پس دده په غاړه كښې طوق جوړ شي، بيا به دده گوتې چوپي او چيچي به ئې داشان به ده ته عذاب وركولې كيږي

**[١٧٩٢] په حلال مال كښې د حرام مال يو ځاى كولو نقصان**

١٧٩٣ - ()[٢٢] [١] وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: [٢] " «مَا خَالَطَتِ الزَّكَاةُ مَالًا قَطُّ إِلَّا أَهْلَكَتْهُ» ". [٣] رَوَاهُ الشَّافِعِيُّ، وَالْبُخَارِيُّ فِي تَارِيخِهِ، وَالْحُمَيْدِيُّ، [٤] وَزَادَ: قَالَ: يَكُونُ قَدْ وَجَبَ عَلَيْكَ صَدَقَةٌ فَلَا تُخْرِجُهَا [٥] فَيُهْلِكُ الْحَرَامُ الْحَلَالَ، [٦] وَقَدِ احْتَجَّ بِهِ مَنْ يَرَى تَعْلِيقَ الزَّكَاةِ بِالْعَيْنِ هَكَذَا فِي الْمُنْتَقَى، [٧] وَرَوَى الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ عَنْ أَحْمَدَ بْنِ حَنْبَلٍ بِإِسْنَادِهِ إِلَى عَائِشَةَ، [٨] وَقَالَ أَحْمَدُ فِي خَالَطَتْ.. [٩] تَفْسِيرُهُ أَنَّ الرَّجُلَ يَأْخُذُ الزَّكَاةَ وَهُوَ مُوسِرٌ أَوْ غَنِيٌّ وَإِنَّمَا هِيَ لِلْفُقَرَاءِ.

**ترجمه:** [١] بي بي عايشه رضي الله عنها وايي چې ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي [٢] چې په كوم مال كښې چې د زكات حق يو ځاى پاتې شي (گډوډ شي يعنى زكات ترينه ادا نه شي) هغه مال ضايع كيږي، [٣] (شافعي، بخاري، حميدي) [٤] حميدي رحمه الله دا هم زيات نقل كړي دي (يعني د حديث وضاحت يي بيان كړي دي) چې بخاري رحمه الله وفرمايل هر كله چې په تا زكات واجب شي او ته زكات نه وكاږې (نو هغه زكات په مال كښې گډوډ. مخلوط شي) [٥] نو حرام مال حلال مال ضايع كوي [٦] كوم حضرات چې د دې خبرې قايل دي چې زكات د عين مال سره متعلق دي، [نه د ذمې سره نو هغوئ دا حديث د بخاري د مذكوره بالا وضاحت سره خپل دليل گرځولي دي] منتقي، [٧] بيهقي رحمه الله په شعب الايمان كښې دا روايت د امام احمد بن حنبل رحمه الله څخه د بي بي عايشي رضي الله عنها پورې د سلسلهٔ سند سره

[١]) اخرجه الشافعي في مسنده ص ٩٩

نقل كړي دي ⑧ نو امام احمد رحمه الله د حديث لفظ خالطت معني يا د دې د تاويل په سلسله كښې.. ⑨ دا وضاحت كړي دي چې مثلاً يو سړي مالدار يا غني دي (راوي ته شک دي چې په روايت كښې اصل لفظ مُوسر وو يا غَنِيٌّ) خو د دې با وجود هغه زكات اخلي حالانكه زكات خو يواځې د فقراؤ اومساكينو او مستحقينو د پاره جائز دي.

**حل اللغات:-** ① خَالَطَتْ: يوځاۍ شي، ورسره ګډ شي، ② قَطُّ: كله هم، ③ بِالْعَيْنِ: عين مال، ④ مُوسِرٌ اَوْغَنِيٌّ: مالدار.

**تسهيلات:**

**قوله: مَاخَالَطَتِ الزَّكَاةُ:**

**د زكات د مال سره د مال مخلوط كيدو دوه مطلبه:-** اختلاط دَ ملاويدلواو ګډوډ كيدلو په معنى كښې دې دلته دَ زكوة ګډوډ كيدل مراد دى. دَ يوسړى په مال كښې دَ زكوة ګډوډ كيدل په دوو معنو دى

① يو سړې مالدار او صاحب نصاب دې مګر هغه دَ خپل مال زكوة جدا كولوسره نه وركوى نوزكوة دَ هغه مال سره ګډوډ پاتې كيږى نوكه زر وى اوكه څه وخت پس دا زكوة به دَدې سړى دا مال هلاك كوى هغه مال بې فائدې اوبې بركت پاتې كيږى دا بالكل تباه كيږى. دَ حديث پورتنې مطلب حضرت امام بخارى رحمه الله بيان كړې دې او راتلونكې دويم مفهوم امام احمدبن حنبل رحمه الله بيان كړې دې.

② دويم مفهوم كوم چه امام احمد رحمه الله بيان كړې دې هغه دادې چه يو سړې پخپله مالدار دې مګر هغه دَ خلقو زكوة اخلى اوخپل مال سره ئى يوځائى كوى په دې اختلاف او ګډوډ كولوسره به هم دَدې سړى مال تباه كيږى. دَ نورو حرامو مالونو اثرهم دغه شان وى.

**قوله: وَقَدِاحْتَجَّ بِهِ مَنْ يَرَى:**

**د زكات د متعلق بها دوه مطلبه:-** ① يعنى دَدې حديث نه خلقو استدلال كړې دې دَ چارائې چه داده دَ زكوة تعلق دَ مال دَ ذات سره دې ذمه سره نه دې. صاحب مشكوة په دې جمله سره دَ فقهاؤ يو اختلاف طرف ته اشاره كړې ده هغه اختلاف داسې دې چه آيا دَ زكوة تعلق ذات دَ مال سره دې يا دَدې تعلق دَ مالدار سړى سره دې. كه چرې دَ زكوة تعلق ذات دَ مال سره دې نوچه كوم مال سره دَدې تعلق شو هم دَهغه مال نه به زكوة وركولې كيږى څه قيمت وغيره ادا كول به نه جائز كيږى اوكه دَ زكوة تعلق ذمه سره وى نودَدغه مال په بدله كښې دَ نورو مالونونه دَ هغې قيمت ادا كول به جائز شي.

② دويم آسان مطلب داسې دې چه آيا په زكوة كښې دقيمت وركول جائز دې كه نه؟ په دې كښې دَ فقهاؤ اختلاف دې.

**په زکات کښې د قيمت په ورکولو کښې مذاهب:-**

① امام مالك رحمه الله او امام شافعي رحمه الله فرمائي دفع القيم جائز نه دې.

② احناف عالمان فرمائي زکوة کښې قيمت ورکول جائز دي مثلاً اوښ واجب وو مالك دَهغې قيمت ورکړو او اوښ ئې خپل خان سره پاتې کړو

**داول فريق دليل:-** د اول فريق مستدل زير بحث حديث دې. اول معلومه شوې ده چه دَ حديث دوه مطلبه دی نودې حضراتو دَ حديث په اول مطلب باندې استدلال کړې دې چه دَ خالطت مطلب دا شو چه زکوة دَ ذات دَ مال سره ګډوډ دې اوس به هم دا ورکول وی بدل نه شی ورکولې ځکه چه زکوة مال سره ملاؤ شوې دې.

**داول فريق د مستدل څخه جواب:-** دَدې حديث تشريح په دوه شان سره کړې شوې ده. شوافع دَدې نه هله استدلال کولې شی چه دَ اختلاط رومبې مفهوم او اولنئی شرح متعين وی حالانکه داسې نه ده. لهذا استدلال صحيح نه دې. مونږ دَدې حديث دوه شرحې اخلو کوم چه امام احمد رحمه الله کړې دی بل په قيمت ورکولو کښې دَ فقراؤ دَپاره ډير سهولت دې او په ذات ورکولو کښې اکثر حرج وی. "والحرج مدفوع في الشرع".

**د دويم فريق دليل:-** دَ حضرت انس رضي الله عنه په حديث نمبر ۱۷۷۳ کښې په واضحه توګه سره ذکر دی که په يوسړی باندې درې کلن ښاروې واجب شو ليکن هغه سره دا نه وی بلکه دوه کلن وی نو زکوة ټولونکې دې دَ هغه نه دوه کلن واخلی او شل درهم يا دوه چيلئی دې هم واخلی دلته مالك چه کوم درهم ورکړی دی دا آخر دَ زکوة قيمت خو دې؟ لهذا په زکوة کښې دفع القيم جائز دې.

# [ ۱ ]بَابُ مَا يَجِبُ فِيهِ الزَّكَاةُ ]

## په کومو څیزونو کښې چه زکات واجبیږی دهغې بیان

**خلاصة الباب:-**

**فيه أحد وعشرون حديثاً مشتملة على سبع مسائل:**

① نصاب الزكوة: ۱، ۳، ۶، ۷، ۹.

② ما لا يجب فيه الزكوة: ۳، ۲۰، ۲۱.

③ ما يجب فيه الزكوة: ۱۵، ۱۶، ۱۷، ۱۸، ۱۹.

④ ما يجب فيه العشر: ۴، ۱۰، ۱۱، ۱۴.

⑤ مايجب الخمس: ۵.

⑥ الزجر بالاعتداء فى الصدقة: ۸

⑦ حكم الخرص: ۱۱، ۱۲، ۱۳.

قال الله تعالى ﴿ وَاٰتُوْا حَقَّهٗ يَوْمَ حَصَادِهٖ ﴾ [سورت الانعام الایه: ۱۴۱] وقال الله تعالى ﴿ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَنْفِقُوْا مِنْ طَيِّبٰتِ مَا كَسَبْتُمْ وَمِمَّآ اَخْرَجْنَا لَكُمْ مِّنَ الْاَرْضِ ﴾ [سورت بقره: ۲۶۷]

**دوجوب زکات اجناس:-** په شریعت کښې چې په کومو اجناسو باندې زکات واجبیږی هغه دا دی

① سره زر، ② سپین زر③ د کال په زیاته حصه کښې څریدونکې څاروی ④ د زمکې پیداوار. لکه فصلونه او میوې

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۱۷۹٤]دزکات د نصاب تفصیل**

۱۷۹۳-(۱)[۱] ① عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② "«لَيْسَ فِيمَا دُونَ خَمْسَةِ أَوْسُقٍ مِنَ التَّمْرِ صَدَقَةٌ، ③ وَلَيْسَ فِيمَا دُونَ خَمْسِ أَوَاقٍ مِنَ الْوَرِقِ صَدَقَةٌ، ④ وَلَيْسَ فِيمَا دُونَ خَمْسِ ذَوْدٍ مِنَ الْإِبِلِ صَدَقَةٌ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

[1] اخرجه البخارى فى كتاب الزكاة/باب: ليس فيما دون خمس ذود صدقة (رقم-۱٤۵۹) ومسلم فى كتاب الزكاة (رقم)۱ - (۹۷۹) وابوداود كتاب الزكاة/باب ما تجب فيه الزكاة (رقم-۱۵۵۸) والترمذى فى السنن كتاب الزكاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى صدقة الزرع والتمر والحبوب(رقم-۶۲۶) والنسائى كتاب الزكاة/باب: زكاة الإبل (رقم-۲٤٤۵) و ابن ماجة كتاب الزكاة/باب ما تجب فيه الزكاة من الأموال(رقم-۱۷۹۳) والدارمى من كتاب الزكاة/باب ما لا يجب فيه الصدقة من الحبوب والورق والذهب(رقم-۱۶۷۳) ومالک فى الموطا كتاب الزكاة / باب ما تجب فيه الزكاة (رقم-۲)

**ترجمه:** ١ حضرت ابو سعید خدري ﷺ روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ د پنځه وسق څخه په کم خرماؤ (کجورو) کښې زکات واجب نه دي ٣ د پنځو اوقیه څخه په کم سپینو زرو کښې زکات واجب نه دي ٥ او د پنځو څخه په کم اوښانو کښې زکات واجب نه دي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① أَوْسُقٍ : د وَسْقٍ جمع ده. دا يو پيمانه ده يو وسق د شپيته (٦٠) صاع برابر وی، او يو صاع د څلور مُده برابر وی. ② أَوَاقٍ : د أُوقِيَةٍ جمع ده. دا د وزن يو معيار دې، د دوه سوه ٢٠٠ گرامو برابر وی. يو اوقيه د څلويښتو درهمو برابر وی. ③ الْوَرِقِ : أَيِ الفِضَّةِ: چاندی، سپين زر، ④ ذَوْدٍ: د دوه نه تر نهه اوښانو پورې جماعت ته ذود وائی.

**تسهیلات:**

**قوله : لَيْسَ فِيمَا دُونَ خَمْسَةِ أَوْسُقٍ مِنَ التَّمْرِ صَدَقَةٌ:**

**دوسق د لفظ تحقیق:-** په دې حديث کښې دَ هرقسم مال دَ نصاب ذکرکړې شوې دې او دَنصاب نه په کم مال کښې دَ زکوة نفی کړې شوې ده. چنانچه په وسق کښې دَ زکوة دَ نفی ذکردې. يو وسق دَ ٦٠ صاع برابر وی او يو صاع ٢٧٠تولو برابر وی يوشاعر وئيلی دی:

صاع کوفی ہست اے مرد سلیم دو صد و ہفتاد تولہ مستقیم

دَمد په اعتبار يوصاع څلورمد باندې مشتمل وی او يو مد دَ دوو رطل برابر وی په دې حساب باندې يو صاع په اته رطل باندې مشتمل دې دا دَ ائمه احناف دَ رائې مطابق دې.

**قوله : وَلَيْسَ فِيمَا دُونَ خَمْسِ أَوَاقٍ مِنَ الْوَرِقِ صَدَقَةٌ:**

**د اواق د لفظ تحقیق:-** اوقيه جمع ده يو اوقيه دَ څلويښت درهم برابر وی. دغه شان پنځه اوقيه دَ سلو درهم برابر شو. دوه سو درهم دَ دوه نيم پنځوس تولې چاندئی برابر دی او هم دغه دَ چاندئی نصاب دې دې نه په کم کښې زکوة نشته دې. دوه نيم پنځوس تولې چاندئی دَ مارکيټ دَ قيمت مطابق به په پاکستانی روپو کښې زکوة اداکولې شی. په هره څلويښتمه روپئی کښې يوه روپئی زکوة دې. دَ سرو زرو نصاب ٢٠ مثقال دې چه دَ اووه نيم تولې برابر دې. دَدې نه په کم سرو زرو کښې زکوة نشته دې. دَ اووه نيم تولې مارکيټ قيمت په اعتبارسره به په پاکستانی روپو کښې زکوة ورکولې شی. که يوسړی سره څه سره زر او څه چاندی يعنی سپين زر دی مثلاً پاؤباندې شپږويش تولې چاندی وی اودَ پاؤباندې شپږويش تولې چاندئی دَ قيمت برابر سره زر وی نودا دَ دوه نيم پنځوس تولې چاندئی نصاب دې په دې کښې به زکوة واجب وی.

**قوله : وَلَيْسَ فِيمَا دُونَ خَمْسِ ذَوْدٍ مِنَ الْإِبِلِ صَدَقَةٌ:**

**د ذود د لفظ تحقیق:-** ①دا لفظ دَ ذال فتحه سره دې په خپله مادې سره دَدې مفرد نشته دې. دَ دوو نه واخله تر نهو پورې دَ اوښانو جماعت ته ذود وائی.

② بعضې وئيلې دی دَ دريو نه واخله تر لسو پورې اوښانو باندې دَ دې اطلاق کيږی.
بهرحال دَ پنځو نه په کمو اوښانو کښې زکوة نشته دې.

**دزکات دری نصابات:**-په دې حدیث کښې دَ زکوة دَ دريو نصابونو ذکر کړې شوې دې.
① کهجور ② چاندی ③ اوښ. دَ روستو ذکر شوو نصابونو تفصيل او تشريح واضح هم ده او په دې کښې څه دَ ذکر قابل اختلاف هم نشته دې. البته دَ اول الذکر نصاب په تشريح اوتفصيل کښې اختلاف پيدا شوې دې کوم ته چه عشر نصاب وائی.

**د زرعی پیداوار په مقدار کښې مذاهب:-**

① دَ جمهورو او صاحبين په نيز دَعشر نصاب مقرر اومعين دې. پنځه وسق غله کښې زکوة دې اودې نه په کم کښې نشته دې. دَ غلې نه مراد هغه غله ده چه يوکال پورې کيخودو سره نه خرابيږی. نوکه خرابيږی بيا په هغې کښې زکوة نشته دې که هغه دَپنځه وسق نه زيات ولې نه وی لکه سبزئی وغيره.

② دَ امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دَ زرعی پيداوار دَپاره څه نصاب نشته لږ وی اوکه ډير پائيدار وی اوکه ناپائيدار ټولو کښې عشر واجب دې.

**داول فریق دلائل:-** ① زير بحث حديث د اول فريق مستدل دې چه په خپل مقصود باندې واضح دليل دې.

② دَ حضرت علی رضی الله عنه حديث هم د اول فريق مستدل دې چه "انه عليه السلام قال ليس فی الخضروات صدقة"

**د دويم فريق دليل:-** ①دَ قرآن کريم آيت ﴿وَآتُوا حَقَّهُ يَوْمَ حَصَادِهِ﴾ [سورة البقرة: ٢٦٧] د د وي فريق مستدل دې چه دَفصل پرې کولو په ورځ دَ هغې حق اداکړئی دَحق نه مراد عشر دې.

**جواب:-** دَدې حديث تعلق دَ تجارت مالونوسره دې. حضورپاک دَ هغې دَ نصاب طرف ته اشاره فرمائيلې ده څکه چه پنځه وسق غله به هغه وخت دَ دوو سوو درهم برابر وه. نو په حديث کښې دَ صدقه نه مراد عشر نه دې بلکه زکوة دې "كذا قال صاحب الهداية والعينی".

② دَ قرآن کريم آيت ﴿وَمِمَّا أَخْرَجْنَا لَكُمْ﴾ هم د دويم فريق مستدل دې. چه دَدې آيت نه زرعی پيداوار مراد دې اوهم دغه دَدې عشر دې.

③ دَ حضرت ابن عمر رضی الله عنهما حديث نمبر١٧٩٧ د دويم فريق مستدل دې دکوم الفاظ چه داسې دی: ((عن عبدالله بن عمر عن النبی صلی الله عليه وسلم قال فيما سقت السماء والعيون اوكان عثريا العشر وما سقی بالنضح نصف العشر)) (بخاری) په دې حديث کښې ماسقت السماء عام دې چه اوبه کوم څيزهم خروب کړی که هغه لږ وی اوکه ډير په هغې کښې عشر دې.

④ په نصب الرايه کښې دَحضرت عمر بن عبدالعزيز رحمه الله دا فرمان هم ذکر دې هغوی حکم

ورکړو: "ان يأخذوا العشر من كل قليل وكثير فلم يعترض عليه احد"
⑤ دَ امت دَ فقيرانو دَپاره مصلحت هم په دې کښې دې چه په هر يو لږ او ډير پيداوار کښې عشر وی دې دَپاره چه مستحقين دَ زکوة دَپاره آسانی او فائده وی.
**معمول به عمل:-** بهرحال داخودَ دلائلو خبره وه مګر په دې مسئله کښې نن صبا پاکستان کښې حکومت دَجمهورو دَ قول مطابق دَعشرحکم جاری کړې دې چه دَپنځه وسق په حساب سره عشر واخلئی په کم کښې مه اخلئی.

**[١٧٩٥] دَغلامانو او اسونو دَزکات حکم**

١٧٩٥-()[٢][١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -:[٢] " «لَيْسَ عَلَى الْمُسْلِمِ صَدَقَةٌ فِي عَبْدِهِ، وَلَا فِي فَرَسِهِ "[٣] وَفِي رِوَايَةٍ قَالَ: "لَيْسَ فِي عَبْدِهِ صَدَقَةٌ إِلَّا صَدَقَةُ الْفِطْرِ» " مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**[١] او حضرت ابوهريره ﷺ راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] په هيڅ مسلمان باندې د هغه په غلام او د هغه په اسونو کښې زکات (واجب) نه دي [٣] د يو بل روايت الفاظ دي چې حضور ﷺ وفرمايل په مسلمان باندې د هغه په غلام کښې زکات واجب نه دي خو صدقه فطر واجب ده. (بخاري مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله: فِي عَبْدِهِ:**

دې نه دَ خدمت غلامان مراد دی څکه چه که غلام دَ تجارت دَپاره وی نو په هغې کښې زکوة فرض دې او دَ خدمت په غلامانو کښې دَ هيچا په نيز هم زکوة نشته دې.

**قوله: وَلَا فِي فَرَسِهِ:**

**د فرس درې قسمونه:-** فرس په درې قسمه دی. ① دَ سورلئی دَپاره ② دَتجارت دَپاره ③ دَ نسل زياتولودَ پاره. په اول قسم کښې دَچا په نيز هم زکوة نشته دې. په دويم قسم کښې دَ ټولو په نيز زکوة فرض دې او دريم قسم کښې دَ فقهاؤ اختلاف دې.

**د فرس په دريم قسم کښې په وجوب زکات کښې مذاهب:-**

① دجمهورو او صاحبينو په اسونو کښې زکوة نشته
② دَ امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز که چرې اسونه څريدونکی صرف نران وی نو دَ اصح قول مطابق په هغې کښې زکوة نشته دې. او که چرې صرف ښځې اسپې وی نو دَ اصح قول

[١]) اخرجه البخاری فی کتاب الزکاة/باب: ليس على المسلم فى عبده صدقة (رقم-١٤٦٤) ومسلم فى كتاب الزكاة/باب لا زكاة على المسلم فى عبده وفرسه (رقم) ٨ - (٩٨٢) وابوداود فى السنن كتاب الزكاة/باب صدقة الرقيق(رقم-١٥٩٥) والترمذى كتاب الزكاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء ليس فى الخيل والرقيق صدقة(رقم-٦٢٨) والنسائى كتاب الزكاة/باب: زكاة الخيل(رقم-٢٤٦٧) وابن ماجة كتاب الزكاة/باب صدقة الخيل والرقيق(رقم-١٨١٢) ومالك فى الموطا كتاب الزكاة / باب ما جاء فى صدقة الرقيق والخيل والعسل(رقم-٣٧)

مطابق په دې کښې زکوة واجب دې اوکه چرې ګډوډ وي يعنې اسونه او سپې يوځائې شوې وې او پوره کال دَ ځنګل په ګيا واښو باندې ګذاره کوي نو په دې کښې يقيناً ذکور دې. دَدې اقوالو دَ وجې نه چه صرف په ذکور کښې احتمال دَ نسل دَ زياتيدو نه دې نو ډيروالې نشته نو زکوة هم نشته اوچه صرف اناث وي يا ګډوډ وي نو احتمال دَنسل دَ زياتيدو دې نو ډيريدل شته نوزکوة هم شته.

**داول فريق دليل:** –زير بحث حديث د اول فريق مستدل دې چه په خپل مقصود باندې ډير واضح دليل دې.

**داول فريق د مستدل څخه جواب:** – دې نه فرس غازې يا فرس خدمت مراد دې لکه څنګه چه دَ غلام نه دَ خدمت غلام مراد دې. بهرحال فتاوى قاضى خان او فتاوىٰ عالمګيرى کښې ليکلي دي چه دې مسئله کښې فتوىٰ دَ صاحبينو اوجمهورو په قول بانـدې ده.

**د دويم فريق دلائل:** – ① دَ حضرت عمر فاروق رضي الله عنه يوه فيصله د دويم فريق مستدل ده. قصه داسې ده چه دَحضرت عمر رضي الله عنه په زمانه کښې اسونه ډير هم شو او قيمتى هم چنانچه يو سړې يو اس دَ سلو اوښانو په بدله کښې خرڅ کړو او بياهم خوشحاله نه وو. هم په دغه زمانه کښې دَ شام دَعلاقې نه خلق راغله اودَ اسونو دَ زکوة نى دَ حضرت عمر رضي الله عنه نه دَ مسئلې تپوس اوکړو. حضرت عمر رضي الله عنه دَ صحابه کرامو رضي الله عنهم شورى راغونډه کړه په دې کښې ټولو صحابه کرامو رضي الله عنهم دَ اسونو دَزکوة مشوره ورکړه تردې چه حضرت على رضي الله عنه هم مشوره ورکړه. نوبيا حضرت عمر رضي الله عنه دَ اسونودَ زکوة حکم ورکړو. دَحضرت عمر رضي الله عنه نه دَ اسونو دَزکوة دَدې روايت تخريج ډيرو زياتو محدثينو کړې دې چنانچه مسنداحمد، طبرانى، طحاوى، دارقطنى اومستدرك حاکم کښې دا اثر دَحضرت عمر رضي الله عنه په حواله سره ذکر دي.

② هغه اوږد حديث هم د دويم فريق مستدل دې په کوم کښې چه "ثم لم ينس حق الله فى ظهورها ولا رقابها" الفاظ دى. (مشكوة ص١٥٥)

**٪ تقطيع [١٧٩٦] دَاوښانودَ زکات تفصيل**

١٧٩٦–(١)[٣] ١ «وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ أَبَا بَكْرٍ كَتَبَ لَهُ هَذَا الْكِتَابَ لَمَّا وَجَّهَهُ إِلَى الْبَحْرَيْنِ: ٢ بِسْمِ اللهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ هَذِهِ فَرِيضَةُ الصَّدَقَةِ الَّتِي فَرَضَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَلَى الْمُسْلِمِينَ، ٣ وَالَّتِي أَمَرَ اللهُ بِهَا رَسُولَهُ، ٤ فَمَنْ سُئِلَهَا مِنَ الْمُسْلِمِينَ عَلَى وَجْهِهَا فَلْيُعْطِهَا، ٥ وَمَنْ سُئِلَ فَوْقَهَا فَلَا يُعْطِ ٦ فِي أَرْبَعٍ وَعِشْرِينَ مِنَ

[١] اخرجه البخارى مقطعا فى ثمان امكنة فى الجزء الثالث فى الاماكن التالية الحديث: كتاب الزكاة/باب زكاة الغنم (رقم-١٤٥٤) والحديث : كتاب الزكاة/باب من بلغت عنده صدقة بنت مخاض وليست عنده (رقم-١٤٥٣) والحديث: كتاب الزكاة/باب العرض فى الزكاة (رقم-١٤٤٨) والحديث: كتاب الزكاة/باب: لا تؤخذ فى الصدقة هرمة ولا ذات عوار، ولا تيس، إلا ما شاء المصدق (رقم-١٤٥٥) والحديث كتاب الزكاة/باب: لا يجمع بين متفرق، ولا يفرق بين مجتمع (رقم-١٤٥٠)

الْإِبِلِ، فَمَا دُونَهَا مِنَ الْغَنَمِ مِنْ كُلِّ خَمْسٍ شَاةٌ [٧] فَإِذَا بَلَغَتْ خَمْسًا وَعِشْرِينَ إِلَى خَمْسٍ وَثَلَاثِينَ فَفِيهَا بِنْتُ مَخَاضٍ أُنْثَى [٨] فَإِذَا بَلَغَتْ سِتًّا وَثَلَاثِينَ إِلَى خَمْسٍ وَأَرْبَعِينَ فَفِيهَا بِنْتُ لَبُونٍ أُنْثَى [٩] فَإِذَا بَلَغَتْ سِتًّا وَأَرْبَعِينَ إِلَى سِتِّينَ فَفِيهَا حِقَّةٌ طَرُوقَةُ الْجَمَلِ [١٠] فَإِذَا بَلَغَتْ وَاحِدَةً وَسِتِّينَ إِلَى خَمْسٍ وَسَبْعِينَ فَفِيهَا جَذَعَةٌ [١١] فَإِذَا بَلَغَتْ سِتًّا وَسَبْعِينَ إِلَى تِسْعِينَ فَفِيهَا بِنْتَا لَبُونٍ [١٢] فَإِذَا بَلَغَتْ إِحْدَى وَتِسْعِينَ إِلَى عِشْرِينَ وَمِائَةٍ فَفِيهَا حِقَّتَانِ طَرُوقَتَا الْجَمَلِ [١٣] فَإِذَا زَادَتْ عَلَى عِشْرِينَ وَمِائَةٍ فَفِي كُلِّ أَرْبَعِينَ بِنْتُ لَبُونٍ [١٤] وَفِي كُلِّ خَمْسِينَ حِقَّةٌ [١٥] وَمَنْ لَمْ يَكُنْ مَعَهُ إِلَّا أَرْبَعٌ مِنَ الْإِبِلِ فَلَيْسَ فِيهَا صَدَقَةٌ إِلَّا أَنْ يَشَاءَ رَبُّهَا،

**ترجمه:** [١] د حضرت انس رضي الله عنه په باره کښې روايت دي کوم وخت چې امير المؤمنين حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه هغه بحرين (چې بصرې ته نژدې د يو ځاى نوم دى) ته اوليږلو نو هغه ته يې دا هدايت نامه تحرير کړه [٢] د الله جل جلاله په نامه سره شروع کوم چې رحمٰن او رحيم دى دا د هغه صدقهٔ فرض (زکات) په باره کښې هدايت نامه ده چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د الله تعالىٰ جل جلاله په حکم سره په مسلمانانو فرض کړه [٣] او الله تعالىٰ جل جلاله د دې د نافذ کيدو په باره کښې خپل رسول صلى الله عليه وسلم ته حکم وفرمايلو [٤] د کوم سړي څخه چې د قاعدې مطابق د زکات مطالبه وشي نو هغه دې ادائيګي اوکړي [٥] او د کوم سړي څخه چې د شرعي مقدار څخه زياته مطالبه وشي هغه دې [د زائد مطالبې] ادائيګي نه کوي [٦] (د زکات نصاب دا دې چه) په څلورويشت (٢٤) او د څلورويشتو څخه په کم اوښانو باندې په زکات کښې د هرو پنځو اوښانو کښې يوه بزه ده [يعنى د پنځه اوښانو څخه په کم کښې زکات نشته او د پنځه څخه تر نهه پورې يوه بزه ده د لسو څخه تر څوارلسو پورې دوه بزې (چيلۍ) د پنځلس څخه تر نولس پورې څلور بزې (چيلۍ) او د شلو څخه تر څلورويښتو پورې څلور بزې واجب دي] [٧] هر کله چې تعداد د پنځويشت څخه پنځه ديرش پورې شي نو په هغې کښې يوه داسې اوښه ده چې د يو کال وي [٨] د شپږ ديرش څخه تر پنځه څلويښت پورې په کښې يوه داسې اوښه ده چې د دوؤ کالو وي [٩] د شپږ څلويښت څخه تر شپيتو پورې په کې يوه داسې اوښه چې د څلورو کالو وي او د اوښ سره د جفتې قابله وي [١٠] د يو شپيتو څخه تر پنځه اويا پورې په کې يوه داسې اوښه ده چې د خپل عمر څلورم کال ختمولو سره په پنځم کال کښې داخله شي [١١] او د شپږ اويا څخه تر نوي پورې په کې دوه داسې اوښې دى چې د دوو کلو وي [١٢] بيا د يو نوي څخه تر يو سل شل پورې په کښې دوه داسې اوښې دى چې د درې درې کالو وي او د اوښ سره د جفتې قابلې وي [١٣] او هر کله چې تعداد د يو سل شل څخه زيات شي نو د هغه طريقه به دا وي چې په هغه زايد اوښو کښې به د هر څلويښت په زياتې د دوو کالو او ښه واجبيږي [١٤] او په پنځوسو کښې يوه حقه ده [١٥] او که د چا سره يوازې څلور اوښان وي نو په هغې زکات واجب نه دى خو که هغه سړي وغواړي نو [د نفل صدقه په طور دې] څه ورکړي

[۱] فَإِذَا بَلَغَتْ خَمْسًا فَفِيهَا شَاةٌ، [۲] وَمَنْ بَلَغَتْ عِنْدَهُ مِنَ الْإِبِلِ صَدَقَةُ الْجَذَعَةِ [۳] وَلَيْسَتْ عِنْدَهُ جَذَعَةٌ وَعِنْدَهُ حِقَّةٌ فَإِنَّهَا تُقْبَلُ فِيهِ الْحِقَّةُ، [۴] وَيُجْعَلُ مَعَهَا شَاتَيْنِ إِنِ اسْتَيْسَرَتَا لَهُ، أَوْ عِشْرِينَ دِرْهَمًا، [۵] وَمَنْ بَلَغَتْ عِنْدَهُ صَدَقَةُ الْحِقَّةِ، [٦] وَلَيْسَتْ عِنْدَهُ الْحِقَّةُ وَعِنْدَهُ الْجَذَعَةُ [۷] فَإِنَّهَا تُقْبَلُ مِنْهُ الْجَذَعَةُ [۸] وَيُعْطِيهِ الْمُصَدِّقُ عِشْرِينَ دِرْهَمًا، أَوْ شَاتَيْنِ، [۹] وَمَنْ بَلَغَتْ عِنْدَهُ صَدَقَةُ الْحِقَّةِ [۱۰] وَلَيْسَتْ عِنْدَهُ إِلَّا بِنْتُ لَبُونٍ فَإِنَّهَا تُقْبَلُ مِنْهُ بِنْتُ لَبُونٍ [۱۱] وَيُعْطِي شَاتَيْنِ أَوْ عِشْرِينَ دِرْهَمًا،

**توجمه:** [۱] هر کله چې پنځه اوښان وي نو په هغې کښې به د زکات په طور يوه بزه واجبيږي [۲] او د کوم سړي چې دومره اوښان وي چې په هغې کښې د زکات په طور داسې اوښه واجب کيږي چې څلور کاله پوره کولو سره په پنځم کال کښې داخله شوي وي (يعني د يو شپيته څخه تر پنځه اويا پورې په تعداد کښې) [۳] او د هغه سره د څلور کالو اوښه نه وي چې د زکات په طور يې ورکړي بلکه د دريو کالو اوښه موجود وي نو د هغه څخه د دريو کالو اُوښه په زکات کښې قبليدي شي [۴] خو زکات ورکونکي به د هغه دري کالو اوښې سره سره که هغه موجود وي نو دوه بزې (چيلۍ)، ګينی په بل صورت کې شل درهم دې ادا کړی [۵] او که د چا سره د اوښانو داسې تعداد وي چې په هغه کښې د دريو کالو اوښه واجبيږي (يعني د شپږ څلويښت څخه تر شپيتو پورې تعداد) [٦] او د هغه سره دري کليزه څه اُوښه په زکات کښې د ورکولو د پاره نه وي بلکه د څلورو کلو اوښه وي [۷] نو د هغه څخه به د څلورو کالو اوښه اخستل کيږي [۸] خو زکات وصولونکي دې هغه ته دوه بزې (چيلۍ) يا شل درهم واپس کړي [۹] او که د چا سره د اوښانو دومره تعداد نور وي چې په هغې کښې د دريو کالو اوښه واجب کيږي [۱۰] او هغه سره ددري کلو هيڅ اوښه نه وي بلکه د دوو کلو اوښه وی نو د هغه څخه دی دوه کليزه اوښه واخستل شي [۱۱] البته زکات ورکونکي دې دوه بزي (چيلۍ) يا شل درهم هم د هغې سره ورکړي

[۱] وَمَنْ بَلَغَتْ صَدَقَتُهُ بِنْتَ لَبُونٍ وَعِنْدَهُ حِقَّةٌ [۲] فَإِنَّهَا تُقْبَلُ مِنْهُ الْحِقَّةُ وَيُعْطِيهِ الْمُصَدِّقُ عِشْرِينَ دِرْهَمًا، أَوْ شَاتَيْنِ، [۳] وَمَنْ بَلَغَتْ صَدَقَتُهُ بِنْتَ لَبُونٍ وَلَيْسَتْ عِنْدَهُ [۴] وَعِنْدَهُ بِنْتُ مَخَاضٍ فَإِنَّهَا تُقْبَلُ مِنْهُ بِنْتُ مَخَاضٍ، [۵] وَيُعْطِي مَعَهَا عِشْرِينَ دِرْهَمًا، أَوْ شَاتَيْنِ، [٦] وَمَنْ بَلَغَتْ صَدَقَتُهُ بِنْتَ مَخَاضٍ وَلَيْسَتْ عِنْدَهُ [۷] وَعِنْدَهُ بِنْتُ لَبُونٍ فَإِنَّهَا تُقْبَلُ مِنْهُ، [۸] وَيُعْطِيهِ الْمُصَدِّقُ عِشْرِينَ دِرْهَمًا، أَوْ شَاتَيْنِ،

**توجمه:** [۱] او که د چا سره په دومره تعداد کښې اوښان وي چې په هغې کښې د دوو کالو اوښه واجبيږي [الکه د شپږ ديرش څخه تر پنځه څلويښت پورې تعداد] او د هغه سره [د دوه کليزه اوښې په ځاې] دري کليزه اوښه وي [۲] نو د هغه څخه دې دري کليزه اوښه واخستل شي خو زکات وصولونکي دی هغه ته شل درهم يا دوه بزي (چيلۍ) ورکړی [۳] او که د چا سره په دومره تعداد کې اوښان وي چې په هغه کښې دوه کليزه اوښه واجب کيږی او د هغه سره نه وي [۴] بلکه يو کليزه اوښه ورسره وي نو د هغه څخه دې يو کليزه اوښه واخستل

شي [٥] او هغه زکات ورکونکي دی د هغې سره شل درهم یا دوه بزي (چیلۍ) هم ورکړي [٦] او که د یو سړي سره په دومره تعداد کښې اوښان وي چې په هغې کښې د یوه کال اوښه واجبیږی [لکه د شلو څخه تر پنځه ویشت پورې تعداد] او د یو کال اوښه د هغه سره نه وي [٧] بلکه د دوو کالو اوښه ورسره وي نو د هغه څخه دي دغه د دوو کالو اوښه واخلي [٨] خو زکات وصولونکي دي هغه ته دوه بزي (چیلۍ) یا شل درهمه ورکړي.

[١] فَإِنْ لَمْ تَكُنْ عِنْدَهُ بِنْتُ مَخَاضٍ عَلَى وَجْهِهَا [٢] وَعِنْدَهُ ابْنُ لَبُونٍ فَإِنَّهُ يُقْبَلُ مِنْهُ، وَلَيْسَ مَعَهُ شَيْءٌ [٣] وَفِي صَدَقَةِ الْغَنَمِ فِي سَائِمَتِهَا إِذَا كَانَتْ أَرْبَعِينَ إِلَى عِشْرِينَ وَمِائَةٍ شَاةٌ [٤] فَإِذَا زَادَتْ عَلَى عِشْرِينَ وَمِائَةٍ إِلَى مِائَتَيْنِ فَفِيهَا شَاتَانِ [٥] فَإِذَا زَادَتْ عَلَى مِائَتَيْنِ إِلَى ثَلَاثِمِائَةٍ فَفِيهَا ثَلَاثُ شِيَاهٍ [٦] فَإِذَا زَادَتْ عَلَى ثَلَاثِمِائَةٍ فَفِي كُلِّ مِائَةٍ شَاةٌ [٧] فَإِذَا كَانَتْ سَائِمَةُ الرَّجُلِ نَاقِصَةً مِنْ أَرْبَعِينَ شَاةً وَاحِدَةً [٨] فَلَيْسَ فِيهَا صَدَقَةٌ، إِلَّا أَنْ يَشَاءَ رَبُّهَا [٩] وَلَا تُخْرَجُ فِي الصَّدَقَةِ هَرِمَةٌ، وَلَا ذَاتُ عَوَارٍ [١٠] وَلَا تَيْسٌ، إِلَّا مَا شَاءَ الْمُصَدِّقُ [١١] وَلَا يُجْمَعُ بَيْنَ مُتَفَرِّقٍ، وَلَا يُفَرَّقُ بَيْنَ مُجْتَمِعٍ، خَشْيَةَ الصَّدَقَةِ [١٢] وَمَا كَانَ مِنْ خَلِيطَيْنِ فَإِنَّهُمَا يَتَرَاجَعَانِ بَيْنَهُمَا بِالسَّوِيَّةِ [١٣] وَفِي الرِّقَةِ رُبْعُ الْعُشْرِ [١٤] فَإِنْ لَمْ تَكُنْ إِلَّا تِسْعِينَ وَمِائَةً [١٥] فَلَيْسَ فِيهَا شَيْءٌ إِلَّا أَنْ يَشَاءَ رَبُّهَا». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [١] او که د هغه سره د ورکولو قابله د یوه کال اوښه نه وي او نه ورسره د دوو کالو اوښه وي [٢] بلکه د دوو کالو اوښ ورسره وي نو هغه اوښ دي ځیني واخستل شي خو په دي صورت کښې څه بل شي واجب نه دي [نه خو دي زکات اخستونکي څه واپس کوي او نه دي زکات ورکونکي څه ورکوي] [٣] او د څریدونکو بزو د زکات نصاب دا دي هر کله چې د بزو تعداد د څلویښتو څخه د یو سل شلو پورې وي [٤] نو یوه بزه واجبیږی او که د یو سل شلو څخه زیاتې وي نو تر دوه سوه پورې تعداد باندې دوه بزي (چیلۍ) واجبیږی [٥] او هر کله چې د دوو سوه څخه زیاتي وي نو دري سوۀ پورې باندې دري بزي (چیلۍ) واجبیږی [٦] او هر کله چې د دري سوو څخه زیاتي شی نو بیا به دا حساب وي چې په هر سلو بزو کښې به یوه بزه واجبیږی [٧] د کوم سړي سره چې څریدونکي بزي (چیلۍ) د څلویښتو څخه یوه هم کمه وي [٨] نو په هغې کښې زکات نه واجبیږی خو که د بزو مالک وغواړي نو د نفل صدقي په طور څه ورکولي شی [٩] (د دي خبري دي خیال ساتل کیږی چه) په زکات کښې که اوښان وي که غوایان او که بزي (چیلۍ) بوډۍ (زړې) او عیب داره دي نه ورکول کیږی [١٠] او نه دي نر اوزګړۍ ورکول کیږی هو که زکات وصولونکي [د څه مصلحت تحت] اوزګړي اخستل غواړي [نو درست دي] [١١] او متفرق څاروی یو ځاي کول نه دي پکار او نه دي د زکات د خوف څخه څاروی جدا جدا کړل شي [١٢] او په کوم نصاب کښې چې دوه سړي شریک وي نو هغوئ ته پکار دي چې هغه دواړه برابر برابر تقسم وکړي [١٣] او په سپینو زرو کښې څلویښتمه حصه د زکات په طور ورکول فرض دي [١٤] خو که د چا سره یوازې یو سل نوي درهم وي (یعني د نصاب شرعي مالک نه وي) [١٥] نو په هغه هیڅ فرض نه دي خو که

هغه د نفلي صدقې په طور څه ورکول غواړي نو ورکولي يې شي. (بخاري)

**حل اللغات:** - ① وَجَّهَهُ: أَيْ حِينَ أَرْسَلَهُ: يعني کوم وخت نې چه ليږلو ② عَلَى وَجْهِهَا: أَيْ كَائِنَةً عَلَى الْوَجْهِ الْمَشْرُوعِ: دشريعت مطابق، ③ فَلَا يُعْطِهَا: نوادا دې کړي. ④ بِنْتُ مَخَاضٍ: دا هغه اوښه ده چه دَيو کال کيدوسره دويم کال شروع شوې وي. ⑤ بِنْتُ لَبُونٍ: دا هغه اوښه ده چه دَ دوو کالو کيدوسره دريم کال شروع شوې وي. ⑥ حِقَّةٌ: دا هغه اوښه ده چه دَدريو کالو کيدوسره څلورم کال شروع شوې وي دې ته "طروقة الجمل" هم وائي يعني اوښه دَ اوښ سره دَملاويدو قابل شوې ده. ⑦ طَرُوقَةٌ: چه نر اوښ نې جفتي کولې شي. ⑧ جَذَعَةٌ: دا هغه اوښه ده چه دَ څلورو کالو کيدوسره پنځم کال شروع شوی وي ⑨ رَبُّهَا: أَيْ مَالِكُهَا: مالک ددې اوښانو. ⑩ سَائِمَةٌ: چه دکال اکثره حصه کښې څريدلې وي، ⑪ هَرِمَةٌ: ډيره زړه يعنی بوډۍ، ⑫ ذَاتُ عَوَارٍ: أَيْ صَاحِبَةُ عَيْبٍ: عيبداره او نقصان والا، ⑬ وَلَا تَيْسٌ: أَيْ فَحْلُ الْغَنَمِ: نر چيلې، ⑭ خَلِيطَيْنِ: شريک وی دوه کسان، ⑮ الرِّقَةِ: دسپينو زرو دراهم.

**تسهيلات: قوله: فَإِذَا بَلَغَتْ خَمْسًا فَفِيهَا شَاةٌ:**

**دَ اوښانو په زکات کښې اتفاقی، مختلف استينافات:** - دَ اوښانو نصاب پنځه دې دَدې نه په کم کښې زکوة نشته دې.

① دَ پنځونه واخله تر څليريش پورې په هرو پنځو اوښانو باندې يوه چيلئی ده.
② دَ پنځه ويش نه تر پنځه ديرش پورې يو دوه کلن بچې دې.
③ دَ شپږ ويش نه تر پنځه څلويښت پورې يو درې کلن بچې دې.
④ دَ څلويښتو نه تر شپيتو پورې يو څلورکلن بچې دې
⑤ دَ يوشپيته نه تر پنځه اوياؤ پورې يو پنځه کلن بچې دې.
⑥ دَ شپږ اويا نه تر يوکم سل پورې دوه درې کلن بچې دې.
⑦ نهه کم سل نه تر شپږ شلې پورې دوه څلورکلن بچې دې.

**په استيناف اول کښې مذاهب:** -

تردې ځانې پورې دَ زکوة په حساب کښې دَچا اختلاف نشته دې. دَدې نه پس حساب کښې دَ ائمه اربعه اختلاف دې.

① دَ ائمه ثلاثه په نيز دَ شپږ شلو نه پس به استيناف نه کيږی بلکه مدار به په اربعينات او خمسينات باندې وی چنانچه دَ حنابله او شوافع په نيز ١٢١ مالکيه په نيز ١٣١ نه هر پنځوس کښې به يوڅلورکلن بچې او هر پنځوس کښې به يو څلورکلن بچې واجب وی. مثلاً په ١٢١ کښې درې اربعينات دی نودرې درې کلن واجب دی او په ١٣٠ کښې دوه درې کلن او يو څلورکلن دی او په ١٤٠ کښې دوه څلورکلن او يو درې کلن دی

② دَ ائمه احناف په نیز دَ ١٢٠ نه پس استیناف یعنی دَ نوې سر نه به حساب شروع کیږی چه هر پنځواوښانو کښې به یوه چیلئی وی ٢٥ باندې یو دوه کلن دې. دا استیناف اول دې دا استیناف به ١٤٩ پورې چلیږی کله چه اوښان ١٥٠ شی نو درې څلورکلن به واجب شی. په هرپنځوس باندې یوه څلورکلن دې دلته به استیناف اول ختم شی که چرې دَ پنځوس نه زیات شی نو بیا په هر پنځوس باندې به دَ یوې چیلئی زیاتوالې شروع کیږی او ٢٥باندې دوه کلن زیاتیږی "وقس علی هذا" دا ستیناف ثانی یادیږی.

**داول فریق دلیل:-** زیربحث حدیث د اول فریق مستدل دې چه په خپله دعویٰ باندې واضح دلیل دې په دې کښې دَ اربعینات او خمسینات ذکر موجود دې.

**داول فریق د مستدل ځخه جواب:-** په زیر بحث حدیث فریق ثانی هم زمونږ عمل دې لیکن دَعمرو بن حزم ﷺ په روایت کښې چه کومه اضافه ده مونږهغه هم منو چه حضورپاك دکوم زیاتی صدقې حکم ورکړې دې نو دې حدیث سره په دې باندې هم عمل کول پکاردی. مونږ چه څنګه په دوو حدیثو باندې عمل کوو جمهورو له هم دغه شان کول پکاردی. او په دې کښې دَ فقیرانو فائده هم ده. باقی دَدې حدیث ځو مقامات داسې دی په کوم کښې چه دَ څناورو په ځائی دَ قیمت اداکولو ذکر دې دا هم دَائمه احناف دَپاره قیمت ورکولو باندې مضبوط دلیل دې دکوم اختلاف چه تیرشوې دې.

**د دویم فریق دلائل:-** ① حضورپاك دَ عمرو بن حزم ﷺ په نوم باندې صدقات باندې مشتمل یوفرمان جاری کړې وو د هغې الفاظ دا دی: ((فاذاكانت اكثرمن عشرين ومأة يعادالى اول فريضة الابل وماكان اقل من خمس وعشرين ففيه الغنم فى كل خمس شاة)) (مراسيل ابو داؤد)

② د حضرت علی ﷺ اثر دې کوم چه دَمرفوع حدیث په حکم کښې دې. الفاظ دادی: ((فاذازادت الابل على عشرين ومأة يستقبل بها الفريضة)) (مصنف ابن ابی شیبه ص ٣٨٥)

**قوله:-** وَلَا يُجْمَعُ بَيْنَ مُتَفَرِّقٍ، وَلَا يُفَرَّقُ بَيْنَ مُجْتَمِعٍ، خَشْيَةَ الصَّدَقَةِ:

**دخلطت دوه قسمونه:-** په دې جملوَ پوهیدلودَپاره اول په خلطه باندې پوهیدل ضروری دی. خلطه دَ اختلاط نه دې اودَ اشتراك په معنی کښې دې. دَدې دوه قسمونه دی

① **خلطة الشيوع:-** مطلب دادې چه دَ دوو سړو مال دَملکیت په اعتبارسره شریك وی. ټول مال په دوارو کښې مشاع وی.

② **خلطة الجوار:-** دَ خلط الجوار مطلب دادې چه دَ دوو سړو مال دَ ملکیت په اعتبارسره جدا جدا وی اوصرف دَ انتظامی آسانتی په وجه په مال کښې اشتراك کړې شوې وی.

**د خلطة الشيوع یا خلطة الجوار په وجوب زکات کښې مؤثر کیدو کښې مذاهب:-**

① دَ جمهورو په نیز دَ زکوة په اداکولوکښې دَ دوارو قسمونو خلطه اعتبارشته. اودَهغوی

په نیز دَ خلطهٔ جوار دَ اشتراك دَپاره یوڅو شرائط دی کوم چه لاندې درج دی:
**د فریق اول په نیز د خلطت په وجه د وجوب زکات شرطونه:-**
① دَ دواړو سړو دَمال دَپاره دَڅرن په ځائی کښې یوځائی والې ضروری دې.
② چه نر کښې اتحاد وی.
③ چه په کور کښې اتحاد وی.
④ اوبه څکلو کښې اتحادوی.
⑤ په څرونکی کښې اتحادوی.
⑥ پئی لشونکی کښې اتحاد وی.
⑦ پئیو رالشلو کښې اتحادوی.
⑧ دَ تګ راتګ په طریقو کښې اتحادی وی.
⑨ دَ حفاظت سپی کښې اتحادوی.
⑩ دَ احنافو په نیز دَ زکوة په اداکولو کښې صرف دَ مالك دَ ملکیت اعتباردې دَ هیڅ قسم خلط اعتبار نشته دې.
**د مذهبینو خلاصه:-** دَ جمهورو په نیزکله چه په دې اختلاط باندې کال تیرشی نودې دواړو ته به خلیطین وئیلې شی اودَدواړو مال یوکیږی. دَ بحث خلاصه داشوه چه دَ جمهورو پـه نیـز دَ زکوة مدار دَ چیلو په رمه اواشتراك اواتحادباندې دې اودَ احناف په نیـزدَ زکـوة مـدار دَمـال په ملکیت باندې دې.
**د متفرق د جمع کولو صورتونه:-** په زیربحث حدیث کښې په دوو څیزونوسره منع راغلې ده یو جمع بین المتفرق سره دویم تفریق بین المجتمع سره منع وارد ده. دَ احنـافو پـه نیـز دواړو څیزونوکښې منع مالك ته هم ده او څرونکی تـه هـم. دوه صـورتونه دَ جمع کولـو دی اودوه دَ جدا کولو دی ټول څلور صورتونه دی. دَ احنافو دَ تشریح مطابق دَ څلورو صورتونو مثالونـه په خدمت کښې پیش کولې شی. په دې کښې پـه معمولی تامـل سره دَ جمهـورو تـشریح هـم په ذهن کښې راتلې شی. اول ولایجمع بین متفرق تشریح په مثالونوسره اوګورئی.
**اول مثال:-** فرض کړه دَ دوو کسانو مشترکه اتیاچیلئی دی. دَ هریوڅلویښت څلویـښت دی په کوم کښې چه په هر یو باندې یوه چلیئی واجب ده. اوس دواړو مالکانودا تدبیراوکړو چه دواړه حصې ئی راجمع کړې او یونصاب ئی جوړ کړو. په کوم کښې چه یوه چلیئی واجب ده نو په حدیث کښې دَدې نه ممانعت راغلې دې "لایجمع بین متفرق خشیة زیادة الصدقة" پـه دې جمله کښې مالك ته خطاب دې.
**دویم مثال:-** فرض کړه دَدوو کسانو په ملکیت کښې څلویښت چیلئی وې. شل دَ یو او شل

دَ بل وى دا چيلئى په جدا جدا ملك كښې دى. په دې كښې دَ نصاب نه كيدو په وجه په يومالك باندې هم زكوة نشته دې مګر زكوة راټولونكى دا تدبير اوكړوچه دا جدا جدا ملكيت ئى رايوځائى كړو اويوملكيت ئى اوګرځولو اودَدې نه ئى يوه چيلئى دَ زكوة په توګه وصول كړه. دا جمع بين المتفرق ده. دَ كوم نه چه ممانعت راغلې دې "ولايجمع الساعي بين متفرق خشية فوت الصدقة" په دې جمله كښې زكوة راټولونكى ته خطاب دې. اوس جمله ولايفرق بين مجتمع په مثال سره اوګورئ.

**دريم مثال:-** فرض كړه دَ يوسړى په ملكيت كښې څلويښت چيلئى وې دَ اصول مطابق په دې كښې يوه چيلئى واجب ده مګر ده دا تدبيراوكړوچه دا چيلئى ئى شل شل كولوسره جدا كړې اوزكوة راټولونكى ته ئى اووئيل چه دادَ دوو سړو مال دې لهذا په دې كښې زكوة نشته دې. دا "تفريق بين المجتمع" دې دكوم چه ممانعت راغلې دې. "اى لايفرق المالك بين مجتمع خشية وجوب الصدقة" په دې جمله كښې هم مالك ته خطاب دې.

**څلورم مثال:-** فرض كړه دَ يوسړى په ملكيت كښې اتيا چيلئى جمع شوې. دَ اصول مطابق په دې كښې يوه چيلئى واجب وه ليكن زكوة راټولونكى دې تنګ كړو او وئى وئيل چه دادَ دوو كسانو مال دې په كوم كښې چه دوه چيلئى واجب دى. دلته زكوة راټولونكى تفريق بين المجتمع اوكړو. دې نه منع كړې شوې ده. "ولايفرق الساعي بين مجتمع خشية قلة الصدقة" په دې جمله كښې هم خطاب زكوة راټولونكى ته دې. "خشية الصدقة" دَ حديث داجمله مفعول له واقع ده دَدې تعلق پورته څلورو واړو صورتونوسره دې لكه چه په مثالونوسره واضح كړې شوې دى.

**قوله:- وَمَا كَانَ مِنْ خَلِيطَيْنِ فَإِنَّهُمَا يَتَرَاجَعَانِ بَيْنَهُمَا بِالسَّوِيَّةِ:**

**د خلطة الشيوع په صورت كښې مراجعت:-** يعنى كه دوو كسانو په مال كښې اختلاط او شراكت ساتلې وى اوساعى راتلوسره دَ دغه ګډوډ مال نه زكوة وصول كړو نوهريوشريك به دَ بل نه دَ خپل ملكيت دَ تناسب مطابق په قيمت كښې رجوع كوى. دَ خلطه بحث او رائطو بيان تيرشو. دلته دَ جمهورو په نيزدواړه قسم خلطه مراددى. ليكن دَ احنافو په نيزدلته صرف خلطة الشيوع مراددې.

**قوله: فَإِنَّهُمَا يَتَرَاجَعَانِ بَيْنَهُمَا بِالسَّوِيَّةِ:**

**د تراجع بالسوية وضاحت:-** دا تراجع بالسوية دَ احنافو دَ ذوق مطابق داسې ګنړل پكاردى چه مثلاً دَ دوو كسانو په مينځ دَخلطة الشيوع په توګه شپږشلې چيلئى مشتركه وې په داسې توګه چه دَ يوكس اتيا وې اودَ بل څلويښت چيلئى وې. په چيلوكښې دَ جدا ملكيت څه نښه نه وه. راټولونكې راغلو اودوه چيلئى ئى په زكوة كښې يوړې. اوس كتل دادى چه دَ

اتیا چیلو پـه مالـك بانـدې څـومره زکـوة راځـی او دَ څلویښتو پـه مالـك بـه څـومره راځـی. نوبنکاره خبره ده چه دَ اتیاؤ چیلو مالك په شپږ شلو چیلو کښې دَ دوه حصو مالك دې دَ څلویښتو چیلو مالـك دَ یـوې حصې مالـك دې اوس بـه دَدواړو چیلـو قیمـت لګولوسره دَ یوحصې مال په حساب سره به دَ هغـه مالـك نـه زکـوة اخستې شی او زکـوة بـه راځی پـه دې کښې چه کوم کمې پاتې شو چـه دَ یوحصې مـال والانـه دَ چیلـو کومـه زیاتـه حصـه پـه زکـوة کښې تلې ده هغه به په هغې کښې دَ دوو حصو والاطرف ته رجوع کـوی چـه زمـا حصـه پـوره کړه هغه به برابرسرابر دَهغه حصه ورکوی. دا دَ "يتراجعان بالسوية" مطلب دې. شـارحینو دلتـه ډیر څه لیکلی دی مګر داآسان صورت دې اوهم په دې باندې صبر کافی دې.

**[١٧٩٧] دعشر د مقدار بیان**

١٧٩٧-()[٣] [١] وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [٢] " «فِيمَا سَقَتِ السَّمَاءُ وَالْعُيُونُ أَوْكَانَ عَثَرِيًّا الْعُشْرُ [٣] وَمَا سُقِيَ بِالنَّضْحِ نِصْفُ الْعُشْرِ» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [١] او حضرت عبدالله بن عمر ﷺ روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] چې کوم شي چې آسمان یا چینو سیراب (اوبه) کړي وي یا خپله زمکه سرسبزه او شادابه وي نو په هغې کښې لسمه حصه واجبیږی [٣] او کومه زمکه چې د غوایانو، اوبنانو په ذریعه د کوهیانوڅخه سیراب (اوبه) کړل شوي وی دهغې په حاصل کښې شلمه حصه واجب ده. (بخاري)

**حل اللغات:** - ① سَقَتِ: چه اوبه نې کړی، خړوب نې کړی، ② الْعُيُونُ: د عین جمع ده چینې ته وائی. ③ عَثَرِيًّا: عثری اوعاثور تروتازه او آبادې زمکې ته وائی. یعنی چه په خپله د جړرو په ذریعه د زمکې نه اوبه راکاږی. ④ النَّضْحِ: چه د غویانو، اوبنانو په ذریعه سیراب شوې وی، یعنی د آرټ په ذریعه

**تسهیلات: قوله: أَوْكَانَ عَثَرِيًّا:**

**د عشر د وجوب په اعتبار د زمکې دوه قسمونه:** - ① مطلب دا چه کومه زمکه په باران یا چینو یا لختو باندې اوبه شوې وی یا پخپله تازه او آباده وی په هغې کښې چونکه پـه مالـك باندې کم بوج راځی په دې وجه په هغې کښې لسمه حصه دَ زکوة ده

② اوکومه زمکه په ارهټ یا اوښ وغیره پـه ذریعـه اوبـه کـولې شی یا ټیوب ویل لګولې شوې وی نو په هغې کښې په مالك باندې زیات بـوج راځی لهذا شریعت دَ هغې پـه زکوة کښې کمې کولوسره شلمه حصه فرض کړخولې ده.

[١] اخرجه البخاری فی کتاب الزکاة/باب العشر فیما یسقی من ماء السماء، وبالماء الجاری ولم یر عمر بن عبد العزیز: «فی العسل شیئا» (رقم-١٤٨٣) وابوداود فی السنن کتاب الزکاة/باب صدقة الزرع (رقم-١٥٩٦) والترمذی کتاب الزکاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الصدقة فیما یسقی بالأنهار وغیرها(رقم-٦٣٩) والنسائی کتاب الزکاة/باب: ما یوجب العشر وما یوجب نصف العشر(رقم-٢٤٨٨) و ابن ماجة کتاب الزکاة/باب صدقة الزروع والثمار(رقم-١٨١٦) ومالک فی الموطا کتاب الزکاة / باب زکاة ما یخرص من ثمار النخیل والأعناب(رقم-٣٣)

**په ما خرج من الارض موزوناتو کښې د عشر په وجوب کښې مذاهب:-**

"ماخرج من الارض" یا دَ پیمانې والاڅیز دَ قسم نه وی یا دَ وزن والا دَ قسم نه وی دَپیمانې والا دَعشر دَپاره جمهورو سره پنځه وسق کیدل شرط دې دکوم تفصیل چه تیرشوې دې او په وزنی څیزونو کښې اختلاف دې.

① امام ابویوسف رحمه الله فرمائی موزون اکثر کال باقی پاتې وی اوچه دَ ادنی مکیل پنځه وسق پورې قیمت رسیدلې وی نو بیا په دغه موزون کښې عشر دې گنی نه دې. مثلاً ادنی مکیل شعیردې یعنی اوربشې دی دَدې پنځه وسق قیمت پورې که زعفران یا چائی اورسی نو په دې کښې عشر دې گنی نه دې.

② امام محمد رحمه الله فرمائی چه موزون کله دَخپلې وزن آله پنځو امثالو ته اورسی په هغې کښې عشردې گنی نه دې مثلاً زعفران موزونی دې دَدې دَ وزن آله یو پونډ دې کله چه پنځوپونډو ته اورسی نوزکوة به واجب وی گنی نه به وی. دغه شان دَ چائیو یوه پیټئی دَ موزون آله ده کله چه پنځو پیټوته اورسی نوعشر به وی گنی نه به وی. دغه شان دَمالوچو پنډ دَدې آله وزن دې کله چه پنځو پنډونو ته اورسی نو عشر دې گنی نه دې.

③ امام شافعی رحمه الله او امام مالک رحمه الله ماخرج من الارض دَپاره دوه شرطونه لگوی اودا چه مکیلات نه وی دویم دا چه په دې کښې اقتیات او ادخار کیدې شی اوس که چرې ماخرج من الارض کښې اقتیات او ادخار نه وی یا مکیلات نه نه وی یا دَپنځو وسق نه کم وی نو په دې کښې عشر نشته دې.

④ امام احمد رحمه الله صرف دَ پنځو وسق شرط لگوی مکیل او موزون کیدوته نه گوری.

⑤ امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی چه ماخرج من الارض کښې عشر دې "قلیلاً کان اوکثیراً مکیلاً اوکان موزوناً یبقی اکثرالسنة اَم لا". په دې مسئله کښې دلائل اوجواب وغیره تفصیلات دَدې باب حدیث نمبر ۱۷۹۲ کښې تیرشوی دی.

**[۱۷۹۸] د حیوان په نقصان رسولو کښې معافی**

۱۷۹۸-(۱)[٥] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] «الْعَجْمَاءُ جَرْحُهَا جُبَارٌ [۳] وَالْبِئْرُ جُبَارٌ [۴] وَالْمَعْدِنُ جُبَارٌ [٥] وَفِي الرِّكَازِ الْخُمُسُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابوهریره رضی الله عنه روایت کوی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل [۲] که ځناور ځوک زخمي کړي نو معاف دي [۳] که په کوهی خکلو کښې ځوک مړ شي نو معاف دي [۴]

---

(۱) اخرجه البخاری فی کتاب الزکاة/باب: فی الرکاز الخمس (رقم-۱٤۹۹) ومسلم فی کتاب الحدود/باب جرح العجماء، والمعدن، والبئر جبار (رقم)٤٥ - (۱۷۱۰)وابوداود فی السنن کتاب الدیات/باب فی الدابة تنفح برجلها(رقم-٤٥۹۲) والنسائی کتاب الزکاة/باب المعدن(رقم-۲٤۹٥) وابن ماجة کتاب الدیات/باب الجبار (رقم-۲٦۷۳) و الدارمی کتاب الزکوة باب فی الرکاز (رقم-)۱۷۱۰

که کان (درنګ) کنستلو کښې څوک مړ شي نو معاف دي ⑤ او په رکاز کښې پنځمه حصه واجبيږي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ①الْعَجْمَاءُ: څاروی، ځناور، ②جُرْحُهَا: زخمی کول ددې څاروی، ③جُبَارٌ: أَيْ هَدَرٌ: معاف دي ④الْبِئْرُ: کوهي، ⑤الْمَعْدِنُ: کان، درنګ، ⑥الرِّكَازُ: خزانه، کان.

**تسهيلات: قوله: الْعَجْمَاءُ جُرْحُهَا جُبَارٌ:**

**دعجماء تعريف:-** العجماء دَ عجم تانيث دې دَعجم لغوی معنی ګونګا ده. دلته ځناور مراد دې ځکه چه هغه په خبروکولوباندې قادر نه دی لکه چه ګونګيان دی. عرب خلق عجموته هم په دې وجه عجم وائی چه دَهغوی په نيز دوی ګونګيان دی.

**قوله: جُرْحُ:** زخم ته وائی

**دڅاروی د نقصان په رسولو په مالک عدم ضمان:-** "جبار" اي هدريعنی دَ ځناورونقصان کول څوک چقنړی کول يا فصل خرابول بې ځايه دی په مالك باندې هيڅ تاوان او ذمه واری نشته دې. ليکن دا حکم هغه وخت دې کله چه ځناور سره نه راکب وی نه سائق وی نه قائد وی.

**د نقصان رسولو د وخت په اعتبار کښې مذاهب:-**

که چرې په دوی کښې يوهم هغې سره وی اوځناور دَهغه دَبې پرواهئی نه نقصان اوکړو نو ذمه واري اوتاوان به راځی. اوس که دَ ځناور دا نقصان دَ ورځې وی يا دَ شپې وی نو آيا دَدې به څه اثر په ذمه وارې باندې پريوځی که نه؟

① په دې کښې دَ جمهور علماؤ په نيز که چرې ځناور دَ ورځې نقصان کړې دې نو په مالك باندې ضمان نشته دې ځکه چه دَ ورځې وخت کښې دَ فصل وغيره دَ حفاظت ذمه واری دَهغې په مالك ده دَ ځناور په مالك نه ده اوکه چرې نقصان ئی دَ شپې کړې وی نودَ ځناور په مالك به ضمان راځی ځکه چه دَ شپې دَ ځناور دَحفاظت ذمه واری دهغې په مالك وه هغه دَ غفلت نه کار اخستې.

② دَ ائمه احناف په نيز هيڅ فرق نشته دې اصل مدار دَ مالك په وجود اوعدم باندې دې په شپه ورځ سره هيڅ فرق نه پريوځی.

**داول فريق دليل:-** دَ ابوداؤد شريف يوکمزورې روايت د دوی مستدل دې په کوم کښې چه دَ ورځې او شپې فرق بيان کړې شوې دې.

**د دويم فريق دليل:-** زير بحث حديث د دوی مستدل دې چه ((العجماء جرحها جبار)) يعنی دَ ځناور نقصان بې ځايه دې.

**داختلاف بنياد اود ټريفک قوانين:-** بهرحال بعضې علماؤ دا اختلاف دَ عرف اختلاف ګرځولې دې ځکه چه بعضې مقاماتوکښې دَ ورځې اوشپې په نقصان کښې فرق وی او

بعضې مقاماتو کښې نه وی. دَ ځناور دَ نقصان دَ ضمان راتلو اونه راتلو قاعده سره دَ نن صبا موجوده دور دَ ټريفك قوانين دَپاره اودَ ګاډی دَ جنګيدو او بيا دَ تاوان اوضمان دَپاره يو جامع ضابطه ملاويږی.

**قوله : وَالْبِئْرُ جُبَارٌ:**

**دحديث د جملې دوه مفهومه :-** ① يعنی خپله مملوکه زمکه يا غيرآباد زمکه کښې يوسړی کوهې اوکنستلو په دې کښې يو سړې راغلو پريوتلو نو په دې کښې دَ کوهی په مالك باندې ضمان نشته دې په دې شرط چه په عام دَ تيريدو لارکښې کوهې نه وی.

② دغه شان که يو سړی دکوهی کنستلودَپاره مزدور مقررکړو او کوهې کنستلو سره په کښې لاندې خښ شو نو په مالك باندې ضمان نشته دې دا دويم مفهوم حديث سره زيات نيزدې دې.

**قوله : وَالْمَعْدِنُ جُبَارٌ:**

**د جبار په مفهوم او حکم کښې دوه اقوال :-** ① معدن دَمعدنياتو کان ته وائی يعنی يوسړې په خپله غيرمملوکه غيرآباد زمکه کښې کان کنستلې وی اوکه کنده پاتې شوې وی په هغې کښې څوك سړې راغلو هلاك شو نو په دې کښې په مالك باندې هيڅ تاوان نشته دې.

② د دکان کنستلو وخت کښې مزدور دَ ملبې لاندې خښ شو اومړ شو دَهغه وينه بې ځايه ده په مالك باندې تاوان نشته دې. دا دويم مفهوم حديث سره زيات نيزدې دې. دا څيزونه که چا دَ مسلمانانو په لار کښې اوکنستل يا دَ بل په زمکه کښې جوړکړل اوبيا څوك په هغې کښې پريوتلو مړ شو نو ضمان به په مالك باندې راځی دَهغه دَ طرف نه به ديت عاقله ادا کيږی.

**په رکاز کښې دخمس حکم :-** "وفي الركاز الخمس" که چرې چاته دَ رکاز مال ملاؤ شی نو په هغې کښې پنځمه حصه دَ بيت المال ده اوڅلور حصې دَ موندونکی ده.

**دزمکې څخه دراويستې شوی څيز درې اقسام :-** دَ رکاز دَ لفظ تفسير او تعيين نه مخکښې دَ تمهيد په توګه دا ګڼړل پکاردی چه دلته درې يوشان الفاظ دی يعنی چه کوم مال دَزمکې نه رااويستلې شی دَهغې درې قسمونه دی:

① **کنز:** کنز هغه مال اوخزانه ده کومه چه انسان پخپله په زمکه کښې خښه کړې وی.

② **معدن:** معدن هغه مال دې کوم چه الله تعالی دَزمکې دَ تخليق په وخت په زمکه کښې پيداکړې وی کوم ته چه قدرتی معدن وائی يعنی اول دفنيه دَ مخلوق ده او دويمه دفنيه دَخالق ده.

③ **رکاز:** دَ رکاز دَ لفظ تفسير اوتشريح اودَدې تعيين کښې دَ فقهاء کرامو اختلاف دې.

## د ركاز په مصداق كښې مذاهب:-

① دَ شوافع حضراتو په نيزدَ ركازمصداق صرف كنز دې. كنز او ركاز دواړه مترادف الفاظ دى په دې كښې خمس دې اومعدنيات كښې خمس نشته دې.

② دَ امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دَ ركاز لفظ دَ خښولو اوثابتولو په معنى كښې دې. دا لفظ كنز او معدن دواړو ته شامل دې. كنز دفنيه دَ مخلوق ده اومعدن دفنيه دَ خالق ده. لهذا دكنز په شان په معدن كښې هم خمس واجب دې. اصل اختلاف په معدنياتو كښې دې دَاحنافو په نيز په دې كښې خمس دې دَ شوافع په نيز نشته دې. اوكه په معدن كښې سره زر يا سپين زر ملاؤ شى نودَ شوافع په نيز په دې كښې زكوة واجب دې په يوقول كښې كال تيريدل شرط دې دويم قول كښې كال تيريدل شرط نه دې.

**اول فريق دليل:-** زير بحث حديث د دوى مستدل دې څكه چه دلته دَ ركاز په معدن باندې عطف شوې دې كوم چه تغاير غواړى لهذا معدن يو څيز دې او ركاز بل څيز دې.

**داول فريق د دليل جوابونه:-** ① احنافو سره مرفوع احاديث هم دى دكوم په مقابله كښې چه دَ شوافع استدلال صحيح نه دې.

② دَدې حديث مصداق كوم چه شوافع بيان كړې دې نه هغه مصداق زيات واضح دې كوم چه احناف بيان كړې دې.لهذا دا حديث دَاحنافو دليل دې نودَ جواب ضرورت نشته دې.

③ په دې حديث كښې دريو دَ داسې څيزونو ذكر دې په كوم كښې چه تاوان اوضمان معاف دې. لهٰذا معدن نه مراد خالى كنده زيات مناسب ده. كله چه خالى كنده مراد وى نو دَ وفى الركاز عطف هم صحيح شو په دواړو كښې ردوبدل راغلو. لكه چه يوه جمله كښې دَ ظرف دَحكم ذكر اوكړې شو كوم چه دَمعدن په نوم سره ياد كړې شو چه په دې كښې هيڅ نشته او په آخرى جمله وفى الركاز كښې دَ مظروف دَحكم ذكراوكړې شو كوم چه ماخرج من المعدن خزانه ده چه په دې كښې خمس دې. دا بيان ډير مناسب او ضرورى وو په دې وجه دَعطف سره راوړلې شو.

**د دويم فريق دلائل:-** ① امام محمد رحمه الله په مؤطا محمد كښې يوحديث نقل كړې دې.

① ((قال محمد الحديث المعروف ان النبى صلى الله عليه وسلم قال وفى الركاز الخمس قيل يارسول الله! وماركاز؟قال المال الذى خلقه الله فى الارض يوم خلق السموات والارض فى هذه المعادن ففيها الخمس)) (مؤطامحمد)

② جوهرالنقى كښې ليكلى دى چه حضرت على رضى الله عنه په فرمائيل ((الركازهوالمعدن))

③ امام بيهقى رحمه الله په خپل كتاب المعرفة كښې دَحضرت ابوهريره رضى الله عنه يو مرفوع حديث نقل كړې دې يوڅو الفاظ دادى. ((الركازالذى ينبت فى الارض)) (بيهقى)

④ امام ابويوسف رحمه الله كتاب الخراج كښې يو حديث نقل كړې دې دكوم الفاظ چه دادى:

((وفي الركاز الخمس فقيل ما الركاز؟ يارسول الله! فقال الذهب والفضة الذي خلقه الله تعالى في الارض يوم خلقت))
(كتاب الخراج)

⑤ دَ لغت كتاب المغرب كښې ليكلي دي ((الركاز هو المعدن والكنز لان كلا منهما مركوز في الارض وان اختلف الراكز)) دَ دې ټولو حواله جاتو او استدلالاتو نه ثابته شوه چه ركاز كښې معدن هم شامل دې لهذا په معدن كښې هم خمس دې بيا معدن په درې قسمه دې:

١- هغه معدنيات چه دَ اور په ذريعه سره ويلي كيږي لكه سره زر سپين زر خوره او چونه.

٢ - هغه معدنيات كوم چه په غرونو كښې ياقوت زمرد او عقيق وغيره قسم كانړي دي.

٣- هغه معدنيات كوم چه مائع وي لكه تيل پټرول وغيره.

اوس دَامام احمد رحمه الله په نيز دې دريوارو كښې خمس واجب دې. دَ امام مالك رحمه الله او امام شافعي رحمه الله په نيز صرف دَ سرو زرو او سپينو زرو كان كښې خمس دې باقي كښې نشته. دَاحناف په نيز صرف اول قسم كښې خمس دې باقي دوو كښې نشته دې.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [١٧٩٩] دَسرو زرو او سپينو زرو نصاب

١٧٩٩-()[٦] ١ عَنْ عَلِيٍّ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ٢ "«قَدْ عَفَوْتُ عَنِ الْخَيْلِ وَالرَّقِيقِ ٣ فَهَاتُوا صَدَقَةَ الرِّقَةِ مِنْ كُلِّ أَرْبَعِينَ دِرْهَمًا دِرْهَمٌ، ٤ وَلَيْسَ فِي تِسْعِينَ وَمِائَةٍ شَيْءٌ، ٥ فَإِذَا بَلَغَتْ مِائَتَيْنِ فَفِيهَا خَمْسَةُ دَرَاهِمَ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ،

**ترجمه:** ١ حضرت علي رضي الله عنه روايت كوي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل ٢ ما په اسونو او غلامانو كښې زكات معاف كړي دي [يعني كه غلام د تجارت د پاره نه وي نو په هغې كښې زكات نشته او د اسونو د زكات په باره كښې چې د ائمه (امامانو) كوم اختلاف دي هغه بيان شوي دي] ٣ نو تاسو د سپينو زرو زكات په هر څلويښت درهم كې د يو درهم په حساب سره ادا كوئ (هر كله چې سپين زر بقدر نصاب يعنى دوه سوه درهم وي ځكه) ٤ چې يو سل نوي ١٩٠ درهم (يعني د دوه سوه درهم څخه كم) په سپينو زرو كې زكات واجب نه دي ٥ هر كله چې دوه سوه درهم سپين زر وي نو په هغې كې پنځه درهم د زكات په طور وركول واجب دي. (ترمذي ابوداؤد)

١ وَفِي رِوَايَةٍ لِأَبِي دَاوُدَ عَنِ الْحَارِثِ الْأَعْوَرِ عَنْ عَلِيٍّ ٢ قَالَ زُهَيْرٌ: أَحْسِبُهُ عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- أَنَّهُ قَالَ: ٣ "«هَاتُوا رُبُعَ الْعُشْرِ مِنْ كُلِّ أَرْبَعِينَ دِرْهَمًا دِرْهَمٌ، ٤ وَلَيْسَ عَلَيْكُمْ شَيْءٌ حَتَّى تَتِمَّ مِائَتَيْ دِرْهَمٍ، ٥ فَإِذَا

---

[1] اخرجه ابوداود في السنن كتاب الزكاة/باب في زكاة السائمة (رقم-١٥٧٤) والترمذي كتاب الزكاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في زكاة الذهب والورق (رقم-٦٢٠) والنسائي كتاب الزكاة/باب: زكاة الورق (رقم-٢٤٧٧) وابن ماجة كتاب الزكاة/باب زكاة الورق والذهب (رقم-١٧٩٠) والدارمي من كتاب الزكاة/باب في زكاة الورق (رقم-١٦٦٩) واحمد في المسند ٩٢/١

كَانَتْ مِائَتَيْ دِرْهَمٍ فَفِيهَا خَمْسَةُ دَرَاهِمَ، ٦ فَمَا زَادَ فَعَلَى حِسَابِ ذَلِكَ، ٧ وَفِي الْغَنَمِ فِي كُلِّ أَرْبَعِينَ شَاةً شَاةٌ إِلَى عِشْرِينَ وَمِائَةٍ، ٨ فَإِنْ زَادَتْ وَاحِدَةٌ فَشَاتَانِ إِلَى مِائَتَيْنِ، ٩ فَإِنْ زَادَتْ فَثَلَاثُ شِيَاهٍ إِلَى ثَلَاثِمِائَةٍ، ١٠ فَإِذَا زَادَتْ عَلَى ثَلَاثِمِائَةٍ فَفِي كُلِّ مِائَةٍ شَاةٌ، ١١ فَإِنْ لَمْ يَكُنْ إِلَّا تِسْعٌ وَثَلَاثُونَ فَلَيْسَ عَلَيْكَ فِيهَا شَيْءٌ، ١٢ وَفِي الْبَقَرِ فِي كُلِّ ثَلَاثِينَ تَبِيعٌ، ١٣ وَفِي الْأَرْبَعِينَ مُسِنَّةٌ ١٤ وَلَيْسَ عَلَى الْعَوَامِلِ شَيْءٌ».

**ترجمه:** ١ ابوداؤد رحمه الله د حارث اعور څخه د حضرت علي دا روایت نقل کړي دي چې ٢ زهیر رحمه الله (چې د حارث رحمه الله څخه روایت نقل کوي) هغه وائي چې زما ګمان دي چه حارث دا ویلي دي چې حضرت علي رضي الله عنه د نبي کریم ﷺ دا ارشاد نقل کړي دي ٣ چې تاسو (هر کال) په هر څلویښت درهم کې یو درهم یعنی څلویښتمه حصه ادا کوئ ٤ او په تاسو تر هغه وخته پورې هیڅ واجب نه دي تر څو پورې چې تاسو سره دوه سوه درهم پوره نه شي ٥ هر کله چې دوه سوه درهمه پوره شي نو په هغې کې بطورِ زکات پنځه درهم واجبیږي ٦ او کله چې د ٢٠٠ څخه زیات شی نو په هغې کې به په هغه حسا ب سره زکات واجب کیږي ٧ او د بزو نصاب دا دي چې په هر څلویښت بزو کې یوه بزه واجبیږي او دا یوه بزه د ١٢٠ پورې تعداد د پاره ده ٨ او هر کله چې د دې تعداد څخه یوه بزه هم زیاته شي نو تر دوه سوه پورې دوه بزي (چیلئ) واجبیږي ٩ او هر کله چې د دوه ٢٠٠ سوه څخه یوه بزه هم زیاتې شی نو دري سوه پورې دري بزي (چیلئ) واجبیږي ١٠ او هر کله چې د دري سوه څخه زیاتې شی (یعنی څلور سوه شي) نو په هرو سلو بزو کې یوه بزه واجبیږي ١١ او که ستاسو سره بقدر د نصاب بزی نه وي (یعني نهه دیرش بزي (چیلئ) وي) نو بیا په هغې کې ستاسو په ذمه هیڅ نه واجبیږي ١٢ او د غواګانو نصاب دا دي چې په هر دیرشو کې د یو کال د عمر یو غوایي ١٣ او په څلویښت کې دوه کلیزي غوا (چې قندهاریٔ ژبه کښې ورته ګیلګی وائی) واجب ده ١٤ او د کار روزګار په څاروو کې هیڅ هم (یعنی زکات) واجب نه دي.

**حل اللغات:-** ① الزِّقَةِ: دچاندئ، سپینو زرو درهم، ② تَبِيعٌ: دغوا د یوکال بچی ته وائی، سخې، ③ مُسِنَّةٌ: چه د دوه کالو وی او غابنونه ئې راختلې وی. ګیلګئ. ④ الْعَوَامِلِ: د کار روزګار څاروو ته عوامل وائی.

**تسهيلات:**

**قوله: فَعَلَى حِسَابِ ذَلِكَ:**

دَ سرو زرو او سپینو زرو نصاب بغیردَ څه اختلاف نه متعین دي چه دَچاندئی نصاب دوه سوا درهم دي په کوم کښې چه پنځه درهم زکوة دي پـه هرڅلویښت باندې یـو درهم واجب دي اودَ سرو زرو نصاب ٢٠ مثقال دي. پـه کـوم کښې چـه نصف مثقال زکوة واجب دي. دَ تولې په حساب سره دوه نیمې پنځوس تولې چاندی نصاب دي او اووه نیمې تولې سره زر نصاب دي.

**په کسورو (دنصاب نه زیاتی مقدار) باندې د زکات په فرضیت کښې مذاهب:-**
اوس که سره زر او سپین زرو مقدار دَ نصاب نه لږ شان زیاتی شی نودَ هغې څه حکم دې؟ په دې کښې دَ فقهاؤ اختلاف دې.
① جمهور سره دَصاحبینو فرمائی که دَ نصاب نه یو درهم هم زیات شو دَهغې حساب به کولې شی اودَ هغې څلویښتمه به په زکوة کښې ورکولې شی.
② امام ابوحنیفه رحمه الله سفیان ثوری رحمه الله او امام شعبی رحمه الله فرمائی په دغه زیاتی حصه باندې زکوة نشته دې اوکه چرته دا زیاتی حصه څلویښت درهم ته اورسی بیا به زکوة واجب وی په هغې کښې به یو درهم ورکولې شی هم دغه شان دَ ۲۰ مثقال نه دَ زیاتی حصې حکم دې.
**داول فریق دلیل:-** زیربحث حدیث د دوی مستدل دې په کوم کښې "فمازادفعلی حسابه" واضح الفاظ موجود دی.
**داول فریق د دلیل جواب:-** په دې کښې دَزیادت نه تر څلویښتو پورې زیاتوالې مراد دې چه کله ترڅلویښتو پورې زیات شی نوبیا زکوة دې. دا مطلب مراد اخستل ځکه ضروری دې چه په نورو احادیثوکښې دَ څلویښتو دَ شمیر تصریح موجود ده په دې سره به په ټولو احادیثوکښې تطبیق هم راشی.
**د دویم فریق دلائل:-** ② حضورپاك حضرت معاذ رضي الله عنه دکُسور نه زکوة اخستلو نه منع کړې وو بل دکُسوردَ زکوة حساب کښې حرج عظیم دې. "والحرج مدفوع فی الشرع".
② دَ بیهقی او دارمی هغه روایت د دوی مستدل دې په کوم کښې چه حضوراکرم ﷺ دَعمرو بن حزم رضي الله عنه په نوم خط کښې لیکلی دی. الفاظ دادی: ((ان فی کل خمس اواق من الورق خمسة دراهم فمازادففی کل اربعین درهمادرهم)) (کذافی زجاجة المصابیح ج۱ص ۵۱۰).

**[۱۸۰۰] دَغواګانو نصاب**

۱۸۰۰–(١)[٧] [١] «وَعَنْ مُعَاذٍ أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لَمَّا وَجَّهَهُ إِلَى الْيَمَنِ [٢] أَمَرَهُ أَنْ يَأْخُذَ مِنَ الْبَقَرِ مِنْ كُلِّ ثَلَاثِينَ تَبِيعًا أَوْ تَبِيعَةً، [٣] وَمِنْ كُلِّ أَرْبَعِينَ مُسِنَّةً». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [١] د حضرت معاذ رضي الله عنه په باره کې منقول دي چې نبي کريم ﷺ چې هغه (عامل جوړولو سره) يمن ته وليږلو [٢] نو دا حکم يي ورکړو چې هغه دې د زکات په طور د هر ديرش غواګانو څخه يو کليز غوايي (ګيلګی) يا يو کليزي غوا (ګيلګي) اخلي [٣] او هر څلويښت غواګانو څخه دوه کليزه غوا (سخی) يا دوه کليزي غوايي (سخې) دي وصولوي. (ابوداؤد، ترمذي، نسايي، دارمي)

[١] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الزکاة/باب فی زکاة السائمة (رقم-١٥٧٨) والترمذی کتاب الزکاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی زکاة البقر(رقم-٦٢٣) والنسائی کتاب الزکاة/باب: زکاة البقر(رقم-٢٤٥٠) وابن ماجة کتاب الزکاة/باب صدقة البقر(رقم-١٨٠٣) والدارمی من کتاب الزکاة/باب زکاة البقر(رقم-١٦٦٣)

**حل اللغات:** - ① وَجَّهَهُ: أَيْ حِينَ أَرْسَلَهُ: يعنی کوم وخت ئې چه لیږلو. ② تَبِيعًا: دغوا د یوکال بچی ته وائی، (نر یا ماده)، ③ مُسِنَّةً: د غوا هغه بچې چه دَ دوو کالو پوره کیدوسره دریم کال ئې شروع شوې وی.

**تسهیلات:**

**قوله: مِنْ كُلِّ ثَلَاثِينَ تَبِيعًا أَوْ تَبِيعَةً:**

** د غواګانو نصاب:** - دَ غوا غوائی دَزکوة باره کښې په دې خبره باندې اتفاق دې چه دَدې نصاب دیرش دې. دَ دیرشو نه په کم باندې زکوة نشته دې. په دیرش باندې یو تبیع یا یوه تبیعه واجب دی. تبیع هغه سخې دې چه دَ یوکال کیدوسره دویم کال ئی شروع شوې وی. کله چه غواګانې څلویښت شی نو په هغې کښې یو مسنه ده. مسنه هغه سخا سخې دې چه دوه کاله مکمل کولوسره په دریم کال کښ' قدم کیخودې وی. دَدې نه پس به هم په دې ترتیب سره حساب روان وی چه په هرو دیرشو باندې یوه تبیعه او هرو څلویښت باندې یوه مسنه راځی په دې خبره دَټولو فقهاؤ اتفاق دې.

**په اوقاصو باندې په وجوب زکات کښې مذاهب:-**

البته په دې کښې اختلاف دې چه دَ دیرشو اوڅلویښتو په مینځ کښې کوم زیاتی شمیر دې په هغې باندې څه واجب دی که نه؟ ① دَ صاحبینو په نیزپه دې کښې هیڅ هم نشته دې ② اوامام ابوحنیفه رحمه الله نه دې باره کښې روایات مختلف دی. مشهور هم دغه دی چه دَدې اعداد حساب لګولو سره زکوة اداکول پکاردی مثلاً په څلویښتو باندې یوه غوا ده که زیاتی وی نو یو مسنه او دویمه مسنه څلویښتمه حصه به اداکولې شی.

**[١٨٠١] په زکاة کښې د واجب مقدار څخه د زیات وصولولو حرمت**

١٨٠١-( )[٨] [١] وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] " «الْمُعْتَدِي فِي الصَّدَقَةِ كَمَانِعِهَا» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ.[1]

**ترجمه:** [١] حضرت انس رضی الله عنه روایت کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل [٢] د زکات اخستلو کې د واجب مقدار څخه زیاتي کونکي د زکات نه ورکونکي په شان دي (یعني څرنګه چې زکات نه ورکول ګناه ده دغه شان په زکات کې د واجب مقدار څخه زیات وصولول هم ګناه ده) (ابوداؤد ، ترمذي)

**حل اللغات:** - ① الْمُعْتَدِي: أَيِ السَّاعِي الْمُتَجَاوِزُ عَنْ قَدْرِ الْوَاجِبِ: څوک چه په اخستلو کښې د واجب حق نه زیات وصولوی.

[1] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الزکاة/باب فی زکاة السائمة (رقم-١٥٨٥) والترمذی کتاب الزکاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی المعتدی فی الصدقة (رقم-٦٤٦) وابن ماجة کتاب الزکاة/باب ما جاء فی عمال الصدقة(رقم-١٨٠٨)

**تسهیلات:**

**قوله:** المعتدی فی الصدقة

**په صدقه کښې د معتدی په مراد کښې اووه اقوال:-**

① یعنی هغه ساعی چې هغه دصدقې په وصولولو کښې د واجب مقدار نه تجاوز اوکړی نو هغه په ګناه کښې د هغه کس پشان دې کوم چې زکوة نه ورکوی

② ابن الملک رحمه الله فرمائی کوم مالک خپنې مال پټوی او تعدی کوی هغه ګناه کښې د هغه کس پشان دې کوم چې زکوة نه ورکوی

③ کوم ساعی چې د واجب مقدار څخه تجاوز کوی نو هغه په ګناه کښې د هغه شان دې څوک چې رب المال د زکوة ورکولو نه منع کوی

④ ددې نه هغه کس مراد دې څوک چې غیر مستحق ته زکوة ورکوی

⑤ معتدی نه مراد هغه ساعی دې څوک چې خپل اختیار سره مال واخلی داهم د مانع پشان ګناهګار دې

⑥ ددې څخه مراد هغه رب المال دې چې په زکوة کښې ټول مال ورکوی ا وخپل اهل و عیال دپاره هیڅ نه پریږدی

⑦ ددې څخه هغه رب المال مراد دې چې زکوة ورکولوڅخه پس پرې احسان کوی او تکلیف رسوی

**د حدیث خلاصه:**- الحاصل دې په زکوة خوشحالی سره عبادت ګڼړلو نه پس مستحق دې ورکړې شی په ځان بوج نه دی ګڼړل پکار او نه غیر مستحق ته ورکول پکار دی داشان چاته چې زکوة ورکړی نو هغه ته پیغور وغیره نه دی ورکول پکار.په دې سره د صدقې ثواب ضائع کیږی کما فی القرآن ﴿لَا تُبْطِلُوْا صَدَقٰتِكُمْ بِالْمَنِّ وَالْاَذٰى﴾

**[١٨٠٢] د غلې او کجورې د زکات حکم**

١٨٠٢-()[٩] ١ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ٢ " «لَيْسَ فِي حَبٍّ وَلَا تَمْرٍ صَدَقَةٌ ٣ حَتَّى يَبْلُغَ خَمْسَةَ أَوْسُقٍ» ". رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ١ ابو سعید خدري رضي الله عنه روایت کوي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل ٢ په غله او کجورؤ کې تر هغه وخته پورې زکات واجب نه دي ٣ تر څو پورې چې د هغې مقدار پنځه وسق (۲۵ من ۲/۱۲۱سیره) نه وي. (نسایي)

**حل اللغات:-** ① حَبٌّ: غَله، غنم وغیره، ② أَوْسُقٍ: د وَسْق جمع ده. دا یو پیمانه ده یو وسق د شپیته (۶۰) صاع برابر وی، او یو صاع د څلور مُده برابر وی.

---

[1] اخرجه مسلم ١٢ - کتاب الزکاة (رقم) ٥ - (٩٧٩) والنسائی کتاب الزکاة/باب: زکاة الحبوب(رقم-٢٤٨٥) واحمد فی المسند ٥٠٢/٣

**تسهیلات:**

**قوله: حَتَّى يَبْلُغَ خَمْسَةَ أَوْسُقٍ:**

**دامام شافعی دلیل:** -دا د امام شافعی دلیل دی چه ترکومې پورې غله پنځو وسقو ته نه وی رسیدلې نوترهغې پورې په دې کښې زکات نشته د دې جوابونه مخکښې تیر شوی دی.

**[١٨٠٣] د مختلفو څیزونو زکات وصولول**

١٨٠٣-(١)[١٠] [١] وَعَنْ مُوسَى بْنِ طَلْحَةَ قَالَ: [٢] «عِنْدَنَا كِتَابُ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنَّهُ قَالَ: [٣] إِنَّمَا أَمَرَهُ أَنْ يَأْخُذَ الصَّدَقَةَ مِنَ الْحِنْطَةِ وَالشَّعِيرِ وَالزَّبِيبِ وَالتَّمْرِ». [٤] مُرْسَلٌ رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ.

**ترجمه:** [١] موسی ابن طلحه (تابعي) رحمه الله وایي [٢] چې مونږ سره د حضرت معاذ ابن جبل رضي الله عنه هغه مکتوب گرامي دي چې نبي کریم ﷺ هغه ته لیږلي وو حضرت معاذ بیان اوکړو [٣] چې نبي کریم ﷺ ماته دا حکم راکړي دي چې زه دغنمو، وربشو، انگورو او خرماؤ زکات وصول کړم، [٤] دا حدیث مرسل دي او په شرح السنه کې نقل کړې شوي دي.

**حل اللغات:** - (١) الْحِنْطَةِ: غنم، (٢) الشَّعِيرِ: وربشې، (٣) الزَّبِيبِ: انگور.

**تسهیلات:**

**قوله: الْحِنْطَةِ:**

**یوه تنبیه:** -په دې حدیث کښې دَ څلورو څیزونونه دَ صدقې اخستلوچه کوم حکم ورکړې شوې دې دا دَهغه علاقې دَ حالت په وجه سره وو. هلته هم دغه څلورقسمه غلې وې بل څه غله نه وه. دَدې مطلب دانه دې چه دَ دغه څلورو څیزونونه علاوه غلوکښې زکوة نشته دې. دلته دَ امر واقعی بیان دې دَ نورو څیزونونفی مقصودنه ده.

**[١٨٠٤] دونوپه میووکښې دَعشر ورکولو حکم**

١٨٠٤-(٢)[١١] [١] وَعَنْ عَتَّابِ بْنِ أَسِيدٍ [٢] أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ «فِي زَكَاةِ الْكُرُومِ: [٣] "إِنَّهَا تُخْرَصُ كَمَا تُخْرَصُ النَّخْلُ، [٤] ثُمَّ تُؤَدَّى زَكَاتُهُ زَبِيبًا، [٥] كَمَا تُؤَدَّى زَكَاةُ النَّخْلِ تَمْرًا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] حضرت عتاب ابن اسید رضي الله عنه راوي دي [٢] چې نبي کریم ﷺ د انگورو د زکات په باره کې وفرمایل [٣] د انگورو دي داسې اندازه وکړل شي څرنگه چې د خرماؤ اندازه کیږي [٤] بیا دهغه انگورو زکات دي هغه وخت اداء کړې شی کله چې هغه وچ شی [٥] څرنگه چې د وچیدو څخه روسته د خرماؤ زکات ادا کولی شي. (ترمذي ابوداؤد)

[١] اخرجه احمد فی المسند ٢٢٨/٥ والدار قطنی حدیث رقم ٨

[٢] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الزکاة/باب فی خرص العنب(رقم-١٦٠٣) والترمذی کتاب الزکاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الخرص(رقم-٦٤٤) والنسائی کتاب الزکاة/باب شراء الصدقة (رقم-٢٦١٨) وابن ماجة کتاب الزکاة/باب خرص النخل والعنب(رقم-١٨١٩)

**حل اللغات:-** ① الكُرُوم: دا دَ كَرْم جمع ده انګور ترې مراد دی. ② تُخْرَص: أي تُحْزَرُ وَتُخَمَّنُ: دا دَ خرص نه دې اندازه کولواو تخمینه لګولو سره دَ حساب لګولو په معنی کښې دې. ③ زَبِيبًا: انګور، ④ النَّخْل: هغه کجورې چه په اونه کښې موجود وی، ⑤ تَمْرًا: کجورې.

**تسهیلات:**

**قوله: إِنَّهَا تُخْرَصُ كَمَا تُخْرَصُ النَّخْلُ:**

**د خرص د ضرورت پیښیدو پس منظر:-** دې وخت کښې دَدې خرص ضرورت څکه پیښ شو چه دَ خیبر دَ یهودو زمکې کله دَ مسلمانانو لاس ته راغلې نو یهودو په زمیندارئی باندې دغه زمکې آبادول شروع کړل. نیمه غله دَهغوی او نیمه غله دَ مسلمانانو مقررشوه لیکن دَهغوی په زړونو کښې داخبره وه چه دا زمکې زمونږ دی مسلمانانو فتح کولوسره زمونږ نه په زور اخستې دی. په دې وجه هغوی په میوو کښې خیانت کول جائز ګڼړلو اودَ میوو دَ پخیدو پورې دَ انتظار کولو نه مخکښې دَهغې دَ ضائع کیدو خطره پیدا شوې وه. په دې وجه حضورپاك دَخرص نظام قائم کړو او داسې چه یوماهر سړې به باغ ته تلو او په ونو کښې به ئی دَ کهجورو اندازه کوله او بیابه ئی حکم ورکولو چه دومره من کهجورې دی په اوچیدو باندې په دې کښې دومره زکوة دې. وړاندې ذمه واری دَ زمیندار ده چه هغه دَدې حفاظت کوی اوکه نه کوی. دغه شان به غله محفوظ شوه. اوس مسئله داده چه آیا اندازه لګول او دَخرص عمل په شرعی توګه باندې حجت مُلزمه دې که نه دې؟

**د خرص په حجتیت کښې مذاهب:-**

① دَ بعضې فقهاؤ په نیز دَ خرص داعمل حجت ملزمه دې.

② ائمه احناف دَخرص دَدې عمل جائز ګڼړلو قائل دی لیکن داحجت مُلزمه نه منی چه په نورو باندې دا حساب قطعی حجت جوړشی.

**[١٨٠٥] په زکات کښې دَمزکی خیال ساتل**

١٨٠٥-(١)[١٢] ① وَعَنْ سَهْلِ بْنِ أَبِي حَثْمَةَ حَدَّثَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ يَقُولُ: ② " «إِذَا خَرَصْتُمْ فَخُذُوا وَدَعُوا الثُّلُثَ، ③ فَإِنْ لَمْ تَدَعُوا الثُّلُثَ فَدَعُوا الرُّبُعَ» " رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ① سهل ابن ابي حثمه ﷺ به د رسول کریم ﷺ دا حدیث بیانولو چې حضور ﷺ وفرمایل ② هرکله چې تاسو د انګورو او د کجورو د زکات اندازه وکړئ نو د هغې څخه دوه حصې واخلئ او یوه حصه پریـــږدئ ③ که یوه حصه مو پري نه ښوده نو څلورمه خو پریږدئ. (ترمذي، ابوداؤد، نسايي)

---

[١] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الزکاة/باب فی الخرص(رقم-١٦٠٥) والترمذی کتاب الزکاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الخرص(رقم-٦٤٣) والنسائی کتاب الزکاة/باب کم یترک الخارص(رقم-٢٤٩١) والدارمی ومن کتاب البیوع/باب: فی الخرص(رقم-٢٦٦١)

**د راوي مختصر تعارف:-** نوم سهل، کنیت ابومحمد یا ابویحیی وو. دَ پلار نوم ئې ابوحثمه عبدالله بن ساعده وو. په ۳هـ کښې پیداشو او دَ شروع نه په مدینه منوره کښې اوسیدو بیاکوفې ته لاړو.دَهغوی عمر دَ حضور دَ وفات په وخت کښې اته کاله خودلې شي.

**وفات:-** دَ مصعب بن زبیر په زمانه کښې مدینه منوره کښې وفات شو.

**مرویات:-** دَدوی نه تقریباً ۲۵ احادیث نقل دی په کوموچه بخاری اومسلم اتفاق کړې دې.

**تسهیلات:**

**قوله: خَرَصْتُمْ:**

**مالکانو سره د نرمئ کولو حکم:-** په دې حدیث کښې دَ اندازې لګونکو مالکانوسره دَ نرمئ کولو هدایت کړې شوې دې. دَدې حدیث په مفهوم باندې دَ پوهیدلودَپاره دَدې نه دَمخکینی حدیث توضیح ونیل ضروری دی چه دَ حدیث پوره پس منظر اندازه اوشي.

**قوله: وَدَعُوا الثُّلُثَ:**

**د مذکوره جملې په توجیه کښې مختلف اقوال:-**

① دَدې حدیث نه معلومیږی چه ساعی اوخرص اوتخمینه لګونکې دَدې تخمینې دوران کښې په زکوة اوعشر کښې څه تخفیف یعنی کمې کولوسره معاف کولې شي. امام احمدبن حنبل رحمه الله دَدې ظاهری حدیث دَ وجې نه دَدې کمی قائل دی.

② لیکن ائمه ثلاثه فرمائی چه خارص او ساعی ته دا حق نشته دې چه هغه دې دَ زکوة څه حصه معاف کړی ځکه چه عشر اوزکوة حقوق الله اوفرائض اسلام نه دی په کوم کښې چه کمې زیاتې کول جائز نه دی. لهذا جمهور دَدې حدیث مفهوم دا بیانوی چه دلته دَزکوة دَمعاف کولو حکم نشته دې بلکه دَحضورپاك دَفرمان مطلب دادې چه دَ زکوة څه حصه مالك سره پریخودې شي دې دَ پاره چه هغه ئې خپلو مستحقینو خپلوانو باندې تقسیم کړی نودا ثلث یا ربع مالك دَ مال په خپله طبع باندې تقسیم کړی. دا توجیه امام شافعی رحمه الله کړې ده .

③ امام ابوحنیفه رحمه الله او امام مالك رحمه الله فرمائی چه زکوة راټولونکې او دکهجورو اندازه لګونکې له پکاردی چه هغه دې دَ حساب لګولو په وخت په میوو باندې راټلونکې آفتونو هم خیال اوکړی چه دَمیوو غلا هم کیدې شي ضائع کیدې هم شي څوك غوښتونکې دَ غوښتو دَپاره هم راتلې شي. په دې وجه دَ کهجورو اندازه لګونکې دَ یوثلث یا یو ربع میوې په اصل میوو کښې شمیر نه کړی دې دَپاره چه مالك دا دَ ضرورت په موقع باندې خرچ کړی.

**[١٨٠٦] د تجور د مقدار معلوم وخت**

١٨٠٦—(١)[١٣] ١ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: ٢ «كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَبْعَثُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ رَوَاحَةَ إِلَى يَهُودَ ٣ فَيَخْرُصُ النَّخْلَ حِينَ يَطِيبُ ٤ قَبْلَ أَنْ يُؤْكَلَ مِنْهُ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** ١ ام المؤمنين حضرت عايشه صديقه رضي الله عنها فرمايي ٢ چې نبي كريم ﷺ به عبدالله ابن رواحه رضي الله عنه د خيبر يهوديانو ته ليږلو [هلته چې به ورسيدو] نو د خرماؤ د مقدار به يي هغه وخت اندازه كوله كله چې به په هغې كې خوږوالي پيدا شوي وو ٤ خو د خوراك قابلي به لا نه وي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ① يَطِيبُ: أَيْ يَظْهَرُ فِي الثِّمَارِ الْحَلَاوَةُ: چه كله به په ميوه كښې خوږوالي پيدا شو.

**تسهيلات:**

**قوله: فَيَخْرُصُ النَّخْلَ حِينَ يَطِيبُ، قَبْلَ أَنْ يُؤْكَلَ مِنْهُ:**

**د يهودو د زمكې د خرص وجه:-** چونكه يهودو به د خپلې زمكې په پيداوار كښې خيانت كولو په دې وجه به داسې كيدل

**[١٨٠٧] په شاتو كښې دَعشر حكم**

١٨٠٧—(٢)[١٤] ١ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "«فِي الْعَسَلِ ٢ فِي كُلِّ عَشَرَةِ أَزُقٍّ زِقٌّ» ". ٣ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ فِي إِسْنَادِهِ مَقَالٌ، ٤ وَلَا يَصِحُّ عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي هَذَا الْبَابِ كَثِيرُ شَيْءٍ.

**ترجمه:** ١ حضرت ابن عمر رضي الله عنهما وايي چې رسول الله ﷺ د شاتو د زكات په باره كې وفرمايل ٢ چې په هر لس مشكو كې يو مشك (په طور د زكات) واجب دي، ٣ ترمذي، او امام ترمذي رحمه الله فرمايلي دي چه د دې حديث په اسناد كې كلام شوي دي ٤ او په دې باره كې دحضور ﷺ اكثر احاديث چې نقل كيږي هغه صحيح نه دي.

**حل اللغات:-** ① الْعَسَلِ: شهد، شات. ② أَزُقٍّ: وَهُوَ ظَرْفٌ مِنْ جِلْدٍ: دځرمن لوښې، مشك.

**تسهيلات: قوله: فِي الْعَسَلِ:**

**په شاتو(عسل) كښې د عشر به فرضيت كښې مذاهب:-**

كه په عشري زمكه كښې شات حاصل شي نو آيا په دې كښې عشر شته كه نه؟ په دې كښې دَ فقهاؤ اختلاف دي.

① دَامام شافعي رحمه الله او امام مالك رحمه الله په نيز په شاتو كښې عشر نشته دي.

(١) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الزكاة/باب متى يخرص التمر(رقم-١٦٠٦) وابن ماجة كتاب الزكاة/باب خرص النخل والعنب(رقم-١٨٢٠) ومالك فى الموطا باب ما جاء فى المساقاة(رقم-١) واحمد فى المسند ٢٤/٢

(٢) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب الزكاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى زكاة العسل(رقم-٦٢٩)

② دَامام ابوحنيفه رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله په نيزيه شاتو كښې عشر دې. البته بيا دَ احنافو په خپل مينځ كښې اختلاف دې.
دَ امام ابوحنيفه په نيز دَدې څه نصاب نشته قليل او كثير كښې عشر دې. دَ امام ابويوسف رحمه الله په نيز چه لس مشكيزو ته رسيد و كښې عشر دې كم كښې نشته دې.
**داول فريق دليل:**- اول فريق سره هيڅ يو مرفوع حديث نشته دې صرف دَ حضرت معاذ رضي الله عنه دَ يو قول نه استدلال كوى هغه قول دا سې دې: ((انه سئل عن العسل فى اليمن فقال لم يومر فيه بشيئ)).
**داول فريق د دليل جواب:**- دَ حضرت معاذ رضي الله عنه دا فرمائيل چه مونږ ته څه حكم نه دې راكړې شوې نو په عدم حكم سره عدم وجوب نه ثابتيږي. په زير بحث روايت كښې دَ ډيرو احاديثو نفى ده دكوم نه چه معلوميږي چه دَ قليل احاديثو وجود شته كوم چه دَ وجوب دپاره كافى دي.
**د دويم فريق دلائل:**- زير بحث حديث د دوى مستدل دې په كوم كښې چه په واضحه توګه باندې دَ زكوة حكم دې چه په هرولسو مشكيزو كښې يوه مشكيزه ادا كړئى. دا حديث سره دَدې چه ضعيف دې ليكن دَ مسلك دَ تائيد دپاره كافى دې.
② ((عن عبدالله بن عمرو عن النبى صلى الله عليه وسلم انه اخذ من العسل العشر)) (رواه ابن ماجه و ابوداؤد)
ابوداؤد رحمه الله دا حديث نقل كړو او په دې باندې خاموشى اختيار كړه چه كم نه كم دَ حسن په حكم كښې راغلو. امام ابوحنيفه رحمه الله "ماسقت السماء الخ، ما اخرجت الارض ففيه العشر" نه هم استدلال كړې دې.

**[١٨٠٨] دَ ښځو په كالو كښې دَ زكات حكم**

١٨٠٨-()[١٥] ① وَعَنْ زَيْنَبَ امْرَأَةِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَتْ: ② خَطَبَنَا رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: ③ " «يَا مَعْشَرَ النِّسَاءِ تَصَدَّقْنَ، وَلَوْ مِنْ حُلِيِّكُنَّ، ④ فَإِنَّكُنَّ أَكْثَرُ أَهْلِ جَهَنَّمَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.[1]

**ترجمه:** ① د عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه زوجه محترمه بي بي زينب رضي الله عنها وايي ② چې رسول الله صلى الله عليه وسلم زمونږ په مخكې خطبه وفرمايله③ چې اي د ښځو جماعته! تاسو د خپل مال زكات ادا كوئ اګر كه هغه زيور ولي نه وي ④ ځكه چې د قيامت په ورځ به په تاسو كې اكثر د دوزخيانوڅخه وي. (ترمذي)
**حل اللغات:**- ① حُلِيِّكُنَّ: كالى (په كومو سره چه ښځې خپل ښائست كوي).
**د راوي مختصر تعارف:**- نوم زينب، عرف رائطه دَ ثقيف دَ قبيلې سره ئې تعلق وو. دَدې نكاح دَ حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه سره شوې وه. دَ حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه دَ

---

[1] اخرجه البخارى فى كتاب الزكاة/باب الزكاة على الزوج والأيتام فى الحجر (رقم-١٤٦٦) والترمذى كتاب الزكاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى زكاة الحلى(رقم-٦٣٥) والنسائى كتاب الزكاة/باب الصدقة على الأقارب(رقم-٢٥٨٣) والدارمى من كتاب الزكاة/باب أى الصدقة أفضل؟(رقم-١٦٩٤) واحمد فى المسند ٥٠٢/٣

معاش څه ذریعه نه وه اوحضرت زینب ﷺ دَ لاس کار کولو نوچې دې نه به کومه ګټه کیدله هغه به ئې په خپل خاوند اوبال بچ خرچ کوله. بوخل هغې ونیل چه زه څه ګټم نو هم په تاتې خورم په دې کښې زما څه فائده. حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ جواب ورکړو نه دَ خپلې فائدې څه صورت راوباسه ماته ستا نقصان منظورنه دې. دَ دې دَ پاره چه کله هغوی دَ رسول الله ﷺ په وړاندې خبره بیان کړه نوحضور ﷺ ارشاد اوفرمائیلو چه هم په خپل خاوند اوبال بچ خرچ کوه ثواب به ملاویږی. (۲)

**وفات**:- دَ وفات باره کښې څه پوره تحقیقی خبره معلومه نه کړې شوه.

**مرویات**:- دَ هغې نه اته احادیث نقل دی په دې کښې دوه په بخاری اومسلم کښې موجوددی او په یو کښې دواړه متفق دی په یوکښې مسلم څان له دې. ()

**تسهیلات: قوله : وَلَوْمِنْ حُلِيِّكُنَّ**:

**د زیر استعمال کالو(زیوراتو) په وجوب زکاة کښې مذاهب**:-

دَ ښځوکالی کوم چه دَهغوی په استعمال کښې وی په هغې کښې زکوة شته که نه؟ په دې باره کښې دَ فقهاؤ اختلاف دې.

① دَ څه معمولی فرق سره دَ ائمه ثلاثه په نیز دَ ښځو دَ استعمال په کالوکښې زکوة نشته دې.

② دَائمه احناف په نیز مطلقًا په کالوکښې زکوة واجب دې که په استعمال کښې وی اوکه نه وی.

**داول فریق دلیل**:- داول فریق سره څه قوی اومستند دلیل نشته دې صرف دَ احنافو دَ دلائلو تضعیف کولوسره خپل دلیل جوړوی. هغوی سره یو روایت دې چه مصنف عبدالرزاق کښې په دې الفاظو سره نقل دې: "لیس فی الحلی زکوة".

**داول فریق د دلیل جواب**:- اول فریق چې په نفی زکوة باندې چې دَ کوم بعضې روایاتونه استدلال کړې دې هلته دَ مرغلرو اوغمو دَ کالو نفی مقصود ده دَ سرو زرو اوسپینو زرو کالوکښې دَ زکوة صریح حکم موجود دې. حدیث نمبر۱۸۰۹ او حدیث نمبر ۱۸۱۰ اوګورئی.

**د دویم فریق دلائل**:- زیر بحث حدیث نمبر۱۸۰۷ د دوی مستدل دې

② حدیث نمبر۱۸۰۹ د دوی مستدل دې

③ دَ ام سلمه ﷺ حدیث نمبر۱۸۱۰ د دوی مستدل دې. دا ټول احادیث په خپله دعویٰ باندې ډیر واضحه دلائل دی.

---

١) مختصر التلقیح). (٢)اخرجه البخاری فی الایمان باب ما جآء ان الاعمال بالنیة ومسلم فی الزکاة باب فضل النفقة والصدقة علی الاقربین والزوج والاولاد واحمد (١٧٠٨\٦) والترمذی والنسائی وابن حبان (٤٢٣٩) والدارمی وهکذا البیهقی (١٧٨\٤)_

**په زير بحث حديث دامام ترمذي اعتراض:-** "ولا يصح فى هذالباب" امام ترمذي رحمه الله دَدې روايتونو دَ ضعيف ګرځولو کوشش کړې دې؟

**دا اعتراض جواب:-** په دې باندې علامه منذري رحمه الله فرمائي "لايصح في هذا الباب مؤل والاخطاء" يعنى يادَ امام ترمذي رحمه الله په قول کښې تاويل کړې شوې دې ګني دا به خطا ګرځولې شي ځکه چه په دې باب کښې ډيرزيات روايات ثابت دى محدثينو دَ امام ترمذي رحمه الله په دې قول باندې دَ حيرانتيا اظهار کړې دې ځکه چه په دې کښې دَ بعضې احاديثو توثيق کړې شوې دې.

**[١٨٠٩] دزيوراتوزکات له اداکولوسزا**

١٨٠٩ –() [١٦] ١ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ ٢ «أَنَّ امْرَأَتَيْنِ أَتَتَا رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ٣ وَفِي أَيْدِيهِمَا سِوَارَانِ مِنْ ذَهَبٍ، ٤ فَقَالَ لَهُمَا: "تُؤَدِّيَانِ زَكَاتَهُ؟" قَالَتَا: لَا. ٥ فَقَالَ لَهُمَا رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ٦ "أَتُحِبَّانِ أَنْ يُسَوِّرَكُمَا اللهُ بِسِوَارَيْنِ مِنْ نَارٍ؟" قَالَتَا: لَا، ٧ قَالَ: "فَأَدِّيَا زَكَاتَهُ» " ٨ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ قَدْ رَوَى الْمُثَنَّى بْنُ الصَّبَّاحِ عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ نَحْوَ هَذَا، ٩ وَالْمُثَنَّى بْنُ الصَّبَّاحِ وَابْنُ لَهِيعَةَ يُضَعَّفَانِ فِي الْحَدِيثِ. ١٠ وَلَا يَصِحُّ فِي هَذَا الْبَابِ عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - شَيْءٌ.

**ترجمه:** ١ عمرو ابن شعيب د خپل پلار بزرګوار څخه او هغه دخپل نيکه محترم څخه نقل کوي ٢ چې يوه ورځ دوه ښځې د حضور ﷺ په خدمت کې حاضري شوې ٣ هغه د دوارو په خپلو لاسونو کې د سرو زرو بنګړي اچولي وو ٤ حضور ﷺ هغه بنګړو ته کتلو سره وفرمايل چې آيا تاسو د دې زکات ادا کوئ؟ هغوئ دواړو اوويل چې نا ٥ حضور ﷺ ورته وفرمايل ٦ چې آيا تاسو دا خبره خوښوې چې (صبا د قيامت په ورځ) الله تعالى جل جلاله تاسو ته د اور دوه کړې واچوي؟ هغوئ عرض وکړو چې نا، ٧ حضور ﷺ ورته وفرمايل چې بيا تاسو د دې کړو زکات ادا کوئ، ٨ ترمذي رحمه الله دا روايت نقل کړې دې او ويلې يې دی چې دا حديث دغه شان مثنّي ابن صباح د عمرو ابن شعيب څخه نقل کړې دې ٩ او مثنّي ابن صباح او ابن لهيعه چې د دې حديث يو دويم راوي دې دواړه د حديث په باره کې ضعيف شميرل کيږي ١٠ اوپه دې باره کې دنبي کريم ﷺ نه هيڅ صحيح حديث منقول نه دې.

**حل اللغات:-** ① سِوَارَانِ: کړې، بنګړې.

[1] اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الزكاة/باب الكنز ما هو؟ وزكاة الحلى(رقم-١٥٦٣) والترمذى كتاب الزكاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى زكاة الحلى(رقم-٦٣٧) والنسائى كتاب الزكاة/باب: زكاة الحلى (رقم-٢٤٧٩) واحمد فى المسند ١٧٨/٢

**تسهيلات:**

**قوله: يُضَعَّفَانِ فِي الْحَدِيثِ:**

**اشکال:** - په دې حديث مبارك كښې دوه راويان مثنى بن صباح او ابن الهيعة متكلم فيه دى ددوئ متعلق امام ترمذى رحمه الله اشكال كړې دې چې هيڅ يو حديث په دې باب كښې ثابت نه دې؟

**دا اشکال دوه جوابونه:** - ① د کثرت طرق په وجه په سند كښې ضعف ختميږى

② امام ترمذى رحمه الله هغه احاديثو متعلق فرمائيلى دى كوم چې په ترمذى كښې دى او هغوئ پخپله نقل كړى دى دا نه چې په ټولو احاديثو باندې اعتراض دې لهذا دا اعتراض قابل قبول نه دې

**[ ١٨١٠ ] د زکات ادا شوی مال په کنز کښې عدم دخول**

١٨١٠-( )[١٧] [١] وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ: [٢] «كُنْتُ أَلْبَسُ أَوْضَاحًا مِنْ ذَهَبٍ» [٣] فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ أَكَنْزٌ هُوَ؟ [٤] فَقَالَ: "مَا بَلَغَ أَنْ تُؤَدَّى زَكَاتُهُ فَزُكِّيَ فَلَيْسَ بِكَنْزٍ". رَوَاهُ مَالِكٌ وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] بي بي ام سلمه رضي الله عنها فرمايي [٢] چې ما به د سرو زرو اوضاح (چې د يو زيور نوم دې) اچول [٣] يوه ورځ ما عرض وكړو چې يا رسول الله ﷺ! آيا د دې شمير هم په جمع كړې شوو خزانو كې دې؟ [٤] حضور ﷺ وفرمايل چې كوم شي په دومره مقدار كې وي چې د هغې زكات ادا شي (يعني حد نصاب ته رسي) نو د زكات د ادا كولو څخه روسته د هغې شمير په جمع كولو كې نه كيږي. (مالك ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① أَوْضَاحًا: د وَضَحٍ جمع ده. د سپينو زرو نه جوړيږى او دا سپين وى نو ځكه ورته وضح اووئيلې شو.

**تسهيلات:**

**قوله: فَقُلْتُ: يَارَسُولَ اللهِ أَكَنْزٌ هُوَ؟:**

**د ام سلمه رضى الله عنها د سوال كولو مقصد:** - دحضرت ام سلمه رضى الله عنها د سوال مطلب دا وو چې قرآن كريم د مال په جمع كولو باندې كوم وعيد فرمائيلې دې ﴿وَالَّذِينَ يَكْنِزُونَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ الاية﴾ كوم خلق چې سره زر او سپين زر جمع كوى او په دې كښې دالله ﷻ په لار كښې خرچ نه كوى نو دوئ دپاره به دردناك عذاب وى.

نو آيا دا زما سره زر په دې وعيد كښې داخل دى؟ ددې جواب نبى كريم ﷺ دا وركړو چې كوم مال د نصاب په قدر وى او ددې زكوة ادا كړې شى نو هغه مال په دې وعيد كښې نه

[١] اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الزكاة /باب الكنز ما هو؟ وزكاة الحلى(رقم-١٥٦٤) ومالك فى الموطا كتاب الزكاة / باب الزكاة فى المعادن (رقم-٨)

دي داخل څکه چې قرآن کریم خو د دردناك عذاب خبر په هغه مال سره ورکوی کوم چې بغیر د زکوة نه جمع کړې شی.

**[١٨١١] د تجارت په مال کښې زکاة**

١٨٢–(١)[١٨] ١ وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ يَأْمُرُنَا أَنْ نُخْرِجَ الصَّدَقَةَ ٢ مِنَ الَّذِي نُعِدُّ لِلْبَيْعِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ١ سمره ابن جندب رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم به مونږ ته حکم راکولو چې مونږ دې زکات ورکوو ٢ د هغه مال کوم چه مونږ تجارت د پاره تیاروو. (ابوداؤد)

**تسهیلات: قوله**: الذی نُعِدُّ لِلْبَیْعِ:

**په مال تجارت کښې د زکات وجوب:** – د دې حدیث مبارك څخه معلومه شوه چې په مال تجارت کښې زکاة شته دې که نقود وی اوکه سامان تجارت وی.

**[١٨١٢] په کانونو کښې دَزکات حکم**

١٨٣–(٢)[١٩] ١ وَعَنْ رَبِيعَةَ بْنِ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ غَيْرِ وَاحِدٍ ٢ أَنَّ «رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَقْطَعَ لِبِلَالِ بْنِ الْحَارِثِ الْمُزَنِيِّ مَعَادِنَ الْقَبَلِيَّةِ ٣ وَهِيَ مِنْ نَاحِيَةِ الْفُرْعِ» ٤ فَتِلْكَ الْمَعَادِنُ لَا تُؤْخَذُ مِنْهَا إِلَّا الزَّكَاةُ إِلَى الْيَوْمِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ١ ربیعه ابن ابي عبدالرحمن (تابعي) رحمه الله د ډیرو صحابه ؤ څخه نقل کوي ٢ چې نبي کریم صلى الله عليه وسلم بلال ابن حارث مزني رضي الله عنه ته د قبیلي کانونه په طور د جاګیر ورکړي وو ٣ په مقام فرع کې ٤ نو د هغه کانونو څخه تر اوسه پورې یواځې زکات اخستي شي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** – ① أَقْطَعَ: أَيْ خَصَّ: خاص کړی یعنی جدا کړی او ورکړی ئې وو. ② مَعَادِنَ: دَ معدن جمع ده، معدن هم هغه خزانه وی دَ کوم تفصیل چه تیرشوې دې. ③ نَاحِيَةِ: الْقَبَلِيَّةِ: دا د فُرْع یوه قبیله ده، دَ مدینې اومکې په مینځ کښې یومشهور مقام دې دَ کوم نوم چه فرع دې، د مدینې نه د پنځو ورځو په مسافت باندې دې.

**یواشکال:** – دلته یوسوال دې چه دَمعدن داسې اقطاع جائزنه ده. بیا حضورپاك دَ حضرت بلال بن حارث رضي الله عنه دَ پاره څنګه جدا کړو؟

**داشکال جوابونه:** – ① حضورپاك صلى الله عليه وسلم حضرت بلال رضي الله عنه ته خالی زمکه ورکړې وه خزانه خو روستو ښکاره شوه.

② دامعادن دَعامو مسلمانانو په کار نه شو راتلې په دې وجه ئې هغه ته ورکړو.

③ امیرالجیش ته دومره حق حاصل دې چه هغه دَ خپل اختیار مطابق چاته دَ معادن نه څه

(١) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الزکاة/باب العروض إذا کانت للتجارة، هل فیها من زکاة (رقم-١٥٦٢)
(٢) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الخراج والإمارة والفیء/ باب فی إقطاع الأرضین(رقم-٣٠٦١)

ورکړي. اوس پاتې شوه دا مسئله چه په معادن کښې زکوة واجب دي که خمس واجب دي نودَ شوافع اومالکيه په نيز زکوة واجب دي خمس نه دي. دَ احنافو په نيزمعدن کښې خمس واجب دي تفصيل تيرشوي دي.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۱۸۱۳] په ترکاريانواودَعرايا په کهجورو کښې عدم زکات**

۱۸۱۳–()[۲۰] ١ عَنْ عَلِيٍّ أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ٢ " «لَيْسَ فِي الْخَضْرَاوَاتِ صَدَقَةٌ، ٣ وَلَا فِي الْعَرَايَا صَدَقَةٌ، ۴ وَلَا فِي أَقَلَّ مِنْ خَمْسَةِ أَوْسُقٍ صَدَقَةٌ، ۵ وَلَا فِي الْعَوَامِلِ صَدَقَةٌ، ٦ وَلَا فِي الْجَبْهَةِ صَدَقَةٌ» "، ٧ قَالَ الصَّقْرُ: الْجَبْهَةُ الْخَيْلُ وَالْبِغَالُ وَالْعَبِيدُ، رَوَاهُ الدَّارَقُطْنِيُّ.

**ترجمه:** ١ حضرت علي ﷺ روايت کوي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل ٢ په سبزئ کې زکات واجب نه دي ٣ د عاريت په ونو کې زکات واجب نه دي ۴ د پنځه وسق څخه په کم کې زکات واجب نه دي ۵ د کار او روزګار په څاروو کې زکات واجب نه دي ٦ او په جبهه کې زکات واجب نه دي ٧ صقر رحمه الله وايي چې د جبهه څخه اس، غاتره [خچر] او غلام مراد دي. (دار قطني)

**حل اللغات:-** ① الْخَضْرَاوَاتِ: سبزياني مثلا کدو، بادرنګ، باتينګڼ وغيره، ② الْعَرَايَا: د عَرِيَّة جمع ده، عريه عطيه ته وائی. ③ أَوْسُقٍ: د وَسْقٍ جمع ده. دا يو پيمانه ده يو وسق د شپيته (۶۰) صاع برابر وی، او يو صاع د څلور مُده برابر وی. ④ الْعَوَامِلِ: دَعاملة جمع ده هغه څناور مراددی چه دَ کار روزګاردَپاره ساتلې شوې وی. ⑤ الْجَبْهَةِ: په حقيقت کښې داجبهه ميدان دَ جنګ ته وائی ليکن دلته راوی دَ کوم نوم چه صقر دې. جبهه نه قچر اسونه او غلام مراداخستې دی خکه چه هغه په ميدان باندې جنګيږی.

**تسهيلات:**

**قوله: فِي الْعَرَايَا:** دَدې تفصيل به انشاء الله په کتاب البيوع کښې راشی.

**قوله: لَيْسَ فِي الْخَضْرَاوَاتِ صَدَقَةٌ:**

### په سبزياتو کښې په وجوب عشر کښې مذاهب:-

سبزيانو او ترکاريانو ته وائی. دَدې متعلق بحث تير شوې دې چه دَ جمهورو په نيزيه دې کښې عشر نشته دې اودَ امام ابوحنيفه رحمه الله په نيزيه دې کښې عشر واجب دې.

[1]) اخرجه الدارقطني في السنن رقم الحديث ۱ من باب: ليس في الخضراوات صدقة

[١٨١٤] د څناروپه وقص مقدار کښې د زکات حکم

١٨١٣-()[٢١] [١] وَعَنْ طَاوُسٍ «أَنَّ مُعَاذَ بْنَ جَبَلٍ أُتِيَ بِوَقَصِ الْبَقَرِ فَقَالَ: [٢] لَمْ يَأْمُرْنِي فِيهِ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِشَيْءٍ». [٣] رَوَاهُ الدَّارَقُطْنِيُّ وَالشَّافِعِيُّ، وَقَالَ: الْوَقَصُ مَا لَمْ يَبْلُغِ الْفَرِيضَةَ.

**ترجمه:** [١] حضرت طاؤس (تابعي) رحمه الله وايي چې حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه ته وقص غواګاني راوستل شو (چې د هغې څخه زکات وصول کړی) خو هغه اوویل [٢] چې رسول الله ﷺ د دې څخه ماته د څه آخستو حکم نه دی فرمایلی (یعني حضور ﷺ په دې د زکات په طور څه نه دي واجب کړي) [٣] دار قطني شافعي، او امام شافعي رحمه الله فرمایلي دي چه وقص هغه څاروو ته وایي چې (په ابتدایي طور باندې یا مخکې د دویم نصاب څخه پس) حد نصاب ته نه وي رسیدلي.

**حل اللغات:** - ① بِوَقَصِ: دَ وقص جمع اوقاص ده. دڅاروو د دوه نصابونو په مینځ کښې تعداد ته وائي دکوم په زکوة کښې چه اختلاف دي.

**تسهيلات:**

**قوله: أُتِيَ بِوَقَصِ الْبَقَرِ:**

**د وقص تشريح:** - دَ نصاب نه کم عدد مثلاً څلور اوښان دغه شان دَ دوو اوښانو دَپاره هم وقص اطلاق کیږی اودَ فریضه په مینځ کښې په اعدادباندې هم دَ وقص اطلاق کیږی. دلته دَ دوو نصابونو په مینځ کښې مثلاً دَ پنځونه ترلسو اوښانو په مینځ کښې او دیرشونه دَ څلویښتو غواګانو درمیانی شمیر باندې دَ وقص اطلاق شوې دې. په دې عدد کښې دَ صاحبینو په نیزباندې هیڅ زکوة نشته دې البته دَ امام صاحب په نیز نصاب سره زکوة شته دې. تفصیل تیرشوې دې.

[١] اخرجه الدارقطني باب: ليس في الخضراوات صدقة (رقم-١٩٢٧)

# [٢] بَابُ صَدَقَةِ الْفِطْرِ

## د صدقه فطر بیان

**خلاصة الباب:-**

**فيه ستة أحاديث مشتملة على اربع مسائل:**

① مقدار صدقة الفطر: ١، ٢، ٣، ٥، ٦.

② من تجب عنه الصدقة: ١، ٣، ٥، ٦.

③ وقت أداء صدقة الفطر: ١.

④ فوائد صدقة الفطر: ٤، ٦.

**د صدقه فطر نومونه:-** ① صدقة الفطر ② زكوة الصوم ③ صدقة الصوم دي ④ صدقة الرؤس دي. ⑤ زكوة رمضان

**د صدقه فطر د وجوب حکمت:-** وكيع بن جراح رحمه الله فرمائي چه صدقة الفطر په مانځه کښې د سجده سهو په شان دي. لهذا د روژو د نقصاناتو د پوره کولو د پاره صدقه فطر ده.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

### [١٨١٥] د صدقه فطر حکم

١٨١٥-(١)[١] ١ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: ٢ «فَرَضَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- زَكَاةَ الْفِطْرِ ٣ صَاعًا مِنْ تَمْرٍ، أَوْ صَاعًا مِنْ شَعِيرٍ ٤ عَلَى الْعَبْدِ وَالْحُرِّ وَالذَّكَرِ وَالْأُنْثَى وَالصَّغِيرِ وَالْكَبِيرِ مِنَ الْمُسْلِمِينَ، ٥ وَأَمَرَ بِهَا أَنْ تُؤَدَّى قَبْلَ خُرُوجِ النَّاسِ إِلَى الصَّلَاةِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ ابن عمر رضي الله عنهما روايت کوي ٢ چې رسول الله ﷺ زکات فطر (د صدقۀ فطر په طور) فرض ګرځولي دي ٣ يو صاع کجوري وي يا يو صاع وربشي ٤ په مسلمانانو کې په هر غلام، آزاد سړي، ښځي او وړوکي او لوي باندي ٥ او حضور ﷺ د صدقۀ فطر په باره کې دا حکم هم فرمايلي دي چې هغه دي خلقو ته د عيد الفطر (وړوکي اختر) د مانځه د پاره د تلو څخه مخکې ورکول شي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① صَاعًا: دا يو پيمانه ده چه يو صاع ٢٧٠ تولو برابر وی يا يو صاع په اته رطل باندي مشتمل دي.

---

[1] اخرجه البخاري فی کتاب الزکاة/باب فرض صدقة الفطر (رقم-١٥٠٣) ومسلم فی کتاب الزکاة/باب زکاة الفطر على المسلمين من التمر والشعير (رقم)١٢ - (٩٨٤) ابوداود کتاب الزکاة/باب کم يؤدى فی صدقة الفطر؟(رقم-١٦١٢) والترمذی کتاب الزکاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی صدقة الفطر(رقم-٦٧٦) والنسائی کتاب الزکاة/باب فرض زکاة رمضان على المسلمين دون المعاهدين (رقم-٢٥٠٤) وابن ماجة کتاب الزکاة/باب صدقة الفطر(رقم-١٨٢٦) والدارمی من کتاب الزکاة/باب فی زکاة الفطر(رقم-١٧٠٢)ومالک فی الموطا کتاب الزکاة / باب مکيلة زکاة الفطر(رقم-٥٢)

**تسهيلات:**

**قوله:** فَرَضَ رَسُولُ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-زَكَـاةَ الفِطْرِ

**په صدقه فطر د فرض د اطلاق توجيه:**-په حديث كښې صدقه فطر ته فرض ونيلې شوې دې خودا په لغوى اعتبار سره يعنى د مقرر كولو په معنى كښې دې په اصطلاحى معنى كښې نه دې مستعمل چې صدقه فطر ته مونږ د مونځ وغيره فرائضو پشان فرض اووايو.

**د صدقه فطر څلور مسائل:**-په صدقه دَفطر كښې ټولې څلور مسئلې دى:

① د دې حكم څه دې؟

② دا په چا واجبيږى ؟

③ د چا د طرف نه واجبيږى؟

④ څومره مقدار كښې واجبيږى؟

اوله مسئله دا ده.

**د صدقه فطر په حكم كښې مذاهب:-**

صدقة الفطرفرض ده كه واجب دې يا سنت دې. په دې كښې دَ فقهاء كرامو اختلاف دې.

① دَ امام شافعىؒ او امام احمدؒ په نيز صدقة الفطر فرض دې.

② دَ امام مالكؒ په نيز سنت دې. [الكاشف:۴/۵۰.]

③ دَ ائمه احناف په نيز صدقة الفطر واجب ده.

**داول فريق دلائل:**-زير بحث حديث كښې لفظ د "فرض" د دوى مستدل دې چه په خپله حقيقى معنى باندې واضح دليل دې.

**د دويم فريق دليل:**-دوى هم فرض دَ قَدَّرَ په معنى كښې اخستې دې. ليكن دوى قدر په سنت باندې حمل كړې.

**د اول او دويم فريق د دلائلو جواب:**-دا خبر واحد دې په دې سره فرض نه شى ثابتولې لهذا فرض به په معنى دَ قدر مقررولې شى. بيا شريعت دا تقدير دَ واجب طرف ته منتقل كړو لكه چه احاديث كښې دى لهذا سنت پاتې نه شو نومالكيه استدلال نه شى كولې.

**د دريم فريق دلائل:**-①دَ عمرو بن شعيبؓ حديث نمبر۱۸۱۹ د دوى مستدل دې په كوم كښې "الاان صدقة الفطرواجبة" واضح الفاظ موجود دى.

② دَ فرض دَپاره دَ قطعى الثبوت او قطعى الدلالة نص ضرورت دې كوم چه دلته نشته دې. لهذا صدقه فرض نه بلكه واجب ده چه عملاً دَ فرض په حكم كښې ده.

**په من وجب عليه صدقة الفطركښې مذاهب:-**

يعنی صدقه دَ فطر په چا باندې واجب ده. ① دَ امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز صدقه فطر صرف په مالك دَ نصاب باندې واجب کيږي يعنی په صاحب دَ يسار يعنی فراخئی باندې واجب ده په غريب باندې نه ده ځکه چه غريب خو اخستونکې دې. دا صدقه دَغريت دَختمولو دپاره ده دَ غريب دَ ختمولودپاره نه ده.

② دَ شوافع په نيز صدقه دَ فطر په هرهغه سړی باندې فرض ده چاسره چه دَ يو ورځې شپې نه زياتی خرچه موجود وی.

**داول فريق دليل:-** دَ حضرت عبدالله بن ثعلبه حديث نمبر(١٨١٩) د دوی مستدل دې په هغې کښې دا الفاظ دی: "امافقيركم فيرداللہ عليه اكثرمما اعطاه".

**د دويم فريق دليل:-** "لاصدقة الاعن ظهرغنى" د دوی مستدل دې

**په من وجب عليه الصدقة کښې مذاهب:-**

يعنی صدقه فطربه دَ چا چا دَ طرف نه ادا کيږي. په دې کښې

② دَ فقهاء کرامو اختلاف دې اودَ اختلاف بنياد په حديث کښې من المسلمين لفظ دې چه دا چاسره متعلق دې.

① دَ ائمه ثلاثه په نيز صرف دَ مسلمان مملوك دَ طرف نه مولی باندې صدقه واجب ده دکافر دَطرف نه نه. دَ ائمه احناف په نيز دَهرقسم غلام دَ طرف نه په مولی باندې صدقه ورکول واجب دی.

**داول فريق دليل:-** زير بحث حديث د دوی مستدل دې دلته دَ من المسلمين جمله دَ على الحر والعبدنه حال ده کوم چه دَدې دپاره قيد دې لهذا دَ حر مسلمان کيدل هم شرط دې اودَ عبدمسلمان کيدل هم شرط دې.

**داول فريق د دليل جواب:-** "من المسلمين" کلماتو تعلق دَ ائمه احناف په نيز دَ حر او عبدسره نه دی بلکه صدقه اداکونکی سره دی چه صدقه اداکونکې مسلمان کيدل پکاردی. اوس مسلمان ئی چه دَچا دَطرف نه اداکول غواړی جائز ده که هغه غلام مجوسی وی يا هندو غلام وی يا عيسائی وی دلته مطلق غلام ذکر دې که هغه مسلمان وی اوکه کافر دا مقيد کول مناسب نه دی. او په نورو احاديثوکښې دَدې تائيد دې ځکه چه هلته دَ حال او ذوالحال دَقيد نه آزاديدو سره په احاديثوکښې دَ مطلق غلام ذکرراغلې دې.

**د دويم فريق دليل:-** مصنف عبدالرزاق او دارقطنی کښې دَ حضرت ابن عباس رضی الله عنهما حديث د دوی مستدل دې دکوم الفاظ چه دادی: ((يخرج زكوة الفطرعن كل مملوك وان كان يهودياً اونصرانياً)) دغه شان دا الفاظ هم نقل دی: ((ادواعن كل حروعبد يهودي اونصراني اومجوسی)).

**[١٨١٦] دَ صدقې دَ فطر مقدار**

١٨١٦ – (١) [٢] [١] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: [٢] «كُنَّا نُخْرِجُ زَكَاةَ الْفِطْرِ صَاعًا مِنْ طَعَامٍ [٣] أَوْ صَاعًا مِنْ شَعِيرٍ [٣] أَوْ صَاعًا مِنْ تَمْرٍ [٤] أَوْ صَاعًا مِنْ أَقِطٍ [٥] أَوْ صَاعًا مِنْ زَبِيبٍ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] ابو سعيد خدري رضي الله عنه وايي [٢] چې مونږ به صدقهٔ فطر ويستله د طعام څخه يو صاع [٣] يا د وربشو څخه يو صاع [٣] يا د خرماؤ څخه يو صاع [٤] يا د پنير څخه يو صاع [٥] يا د وچو انګورو [اوسكو] څخه يو صاع. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① زَكَاةَ الْفِطْرِ: صدقه فطر، سرسايه، ② أَقِط: پنير (دا په يو خاص طريقه پېئ، شودې اوچولو سره جوړولې شي). ③ زَبِيب: اوچ انګور، اوسكې.

**تسهيلات:** -

**قوله: صَاعًا مِنْ طَعَامٍ:**

**د غنمو د صدقه فطر په مقدار كښې مذاهب:** -

په صدقه دَ فطر كښې چه دَڅومره غلو ذكر كړې شوې دې په هغې كښې په يو كښې هم اختلاف نشته دې په ټولو څيزونو كښې يوصاع صدقه دَفطر ده صرف په غنمو كښې اختلاف دې چه آيا په دې كښې نصف صاع دې كه يو صاع.

① دَ ائمه ثلاثه په نيز لكه څنګه چه په نورو څيزونو كښې يوصاع صدقه دَ فطر ده دغه شان په غنمو كښې هم يوصاع واجب دې.

② دَ ائمه احناف په نيز په غنمو كښې نصف صاع صدقه دَ فطر ده.

**داول فريق دليل:** - زير بحث د حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه د دوى روايت دې په كوم كښې چه "صاعا من طعام" الفاظ راغلي دى اودَ طعام نه غنم مراددى څكه چه دَ نورو څيزونو ذكر دَغنمو نه پس دې كوم چه په دې باندې عطف دې لهذا تغاير ضروري دې.

**د دويم فريق دلائل:** - ① فصل ثانى كښې دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما حديث نمبر ١٨١٨ كښې "اونصف صاع من قمح" صريح الفاظ موجود دى څكه چه دَ "قمح" لفظ دَ غنمودَپاره خاص دې.

② دغه شان په فصل ثالث كښې دَ حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنه حديث نمبر ١٨١٩ كښې "مدان من قمح" الفاظ راغلي دى په دې دواړه رواياتو كښې په صراحت سره په غنمو او بيا نصف صاع باندې دلالت كوى. بيا دَعطف په ذريعه سره ئې طعام جدا ذكركړې دې.

---

[١] اخرجه البخاري فى كتاب الزكاة/باب: صدقة الفطر صاع من طعام (رقم-١٥٠٦) ومسلم فى كتاب الزكاة/باب زكاة الفطر على المسلمين من التمر والشعير (رقم) ١٧ - (٩٨٥) وابوداود كتاب الزكاة/باب كم يؤدى فى صدقة الفطر؟(رقم-١٦١٤) والترمذى كتاب الزكاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى صدقة الفطر(رقم-٦٧٣) والنسائى كتاب الزكاة/باب: التمر فى زكاة الفطر(رقم-٢٥١٢) وابن ماجة كتاب الزكاة/باب صدقة الفطر(رقم-١٨٢٩) والدارمى من كتاب الزكاة/باب فى زكاة الفطر(رقم-١٧٠٤)

③ په فصل ثالث کښې دَ حضرت عبدالله بن ثعلبه رضی الله عنه حدیث نمبر ۱۸۲۰ کښې "صاع من بر" صریح الفاظ راغلی دی. دَ احادیثو په نورو کتابونو کښې هم دَ نصف صاع غنمو ذکر موجود دې.

**داول فریق د دلیل جوابونه :-** ① دا حدیث متحمل دې ځکه چه دَطعام لفظ غنمو سره خاص نه دې بلکه په نورو غلو باندې دَدې اطلاق کیږی خاص کر چه جوار دَ دې نه مراد واخستلې شی. په دې حدیث کښې دَ صاع نه پس چه کوم عطف کړې شوې دې دا عطف دَ خاص علی العام دَقبیل نه دې. بهرحال په لفظ دَ طعام کښې ډیر احتمالات دی او لفظ "قمح" یا لفظ "بر" غنمو سره خاص دې. لهٰذا دَمتحمل په ځائی دَ متعین نه استدلال کول پکاردی. جوهری لیکلی دی چه دَطعام اطلاق په هرخوړلوو الا څیز باندې کیږی غنمو سره خاص نه دې. هسې هم په عربو کښې غنم نایاب وو دَهغوی په نیز دَ طعام اطلاق په نورو غلو باندې کیدلو.

② څه بنه تیك شوه مونږ دَ څه وخت دَپاره منو چه دَ طعام نه مراد هم غنم دی اودلته هم یو صاع غنم ورکړې شوې دی لیکن مونږ وایو چه نصف صاع په صدقه دَ فطر کښې ورکړې شو او نصف صاع په توګه دَ تطوع او تبرع وو نودا اوس هم جائز دی چه سړې دې زیاته صدقه کوی. پخپله دَحضرت ابوسعید خدری رضی الله عنه الفاظ "کنا نخرج" نه معلومیږی چه دا دَ حضور پاك حکم نه وو بلکه هغوی به پخپله داسې کول.

**قوله : أَقِطٍ:**

**د قرط تعریف او ددې د جوړولو طریقه :-** دې ته قرط هم وائی پنیر ته وائی. دَدې دَ جوړولو طریقه داسې ده چه تازه لسی اوخوټکولې شی چه دَهغې اوبه جدا شی او اقط ئی جدا شی بیا دا په کپړا کښې راغونډ کړې شی دې دَپاره چه اوچ شی. په مظاهرحق جدید کښې غلط لیکلې شوی دی.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۱۸۱۷] په صدقه فطر کښې د غنمو مقدار**

۱۸۱۷ -(۱)[۳] ۱ «عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ فِي آخِرِ رَمَضَانَ: ۲ أَخْرِجُوا صَدَقَةَ صَوْمِكُمْ ۳ فَرَضَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - هَذِهِ الصَّدَقَةَ ۴ صَاعًا مِنْ تَمْرٍ، أَوْ شَعِيرٍ ۵ أَوْ نِصْفَ صَاعٍ مِنْ قَمْحٍ، ۵ عَلَى كُلِّ حُرٍّ، أَوْ مَمْلُوكٍ، ذَكَرٍ أَوْ أُنْثَى، صَغِيرٍ أَوْ كَبِيرٍ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ۱ روایت دې چې ابن عباس رضی الله عنهما د رمضان په آخري ورځو کې خلقو ته اوویل ۲

---

[1]) اخرجه ابوداود کتاب الزکاة/باب من روی نصف صاع من قمح (رقم-۱۶۲۲) والنسائی کتاب الزکاة/مکیلة زکاة الفطر(رقم-۲۵۰۸)

چې تاسو د خپلو روژو زکات وکاړئ (یعني صدقهٔ فطر ادا کړئ) [٣] رسول الله ﷺ دا صدقه فرض (یعني واجب) ګرځولي ده [٤] په خرماؤ او وربشو کې یو صاع [٥] او په غنمو کې نیم صاع [٦] په هر مسلمان آزاد، غلام، وینځې، سړي، ښځې او وړو او لوئي باندې. (ابوداؤد نسایی)

**حل اللغات:** - ① قَمْحٍ: أَيْ حِنْطَةٍ: غنمو ته وائی.

**تسهیلات:** - **قوله: أَوْشَعِيرٍ:**

**په اوربشو کښې دامام ابوحنیفه مستدل:** - امام اعظم رحمه الله هم د دې مطابق قول کړې دې که په صدقه فطر کښې اوربشې ورکوی نو ددې مقدار نیم صاع یعنی یوکلو (۶۳۳) ګرام دې.

**[١٨١٨] د صدقه فطر د وجوب وجه**

١٨١٨ – (٣) [١] وَعَنْهُ قَالَ: «فَرَضَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - زَكَاةَ الْفِطْرِ طُهْرَ الصِّيَامِ [٢] مِنَ اللَّغْوِ وَالرَّفَثِ، [٣] وَطُعْمَةً لِلْمَسَاكِينِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.[1]

**ترجمه:** [١] ابن عباس رضي الله عنهما روایت کوي چې رسول الله ﷺ روژې د پاکولو د پاره صدقه فطر لازمه ګرځولې ده [٢] د بیهوده خبرو او لغوکلام څخه [٣] او په مسکینانو باندې د خوړلو دپاره. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① اللَّغْو: وَهُوَمَالَايَعْنِي: عبث اوفضول، باطل خبرې، ② الرَّفَثِ: أَيِ الْفُحْشُ مِنَ الْكَلَامِ: دګناه او د بې حیایئ خبرې، ③ طُعْمَةً: خوراک، رزق.

**تسهیلات:**

**قوله: وَطُعْمَةً لِلْمَسَاكِينِ:**

اسلام دَعدل اومساوات علمبردار مذهب دې. دَ وړوکی اختر په موقع به غنیان خوشحالئی کوی او فقیران به ورته په کتلوسره سوزیږی اوترقیږی. په دې وجه اسلام په مالدارانو باندې واجب اوګرځول چه تاسو په وړوکی اختر کښې صدقه فطر ورکوئی دې دپاره چه غریبانان خلق هم تاسو سره په خوشحالو کښې شرکت اوکړې شی. هم دغه وجه ده چه صدقه فطر دَ وړوکی اختر دَ مونځ نه وړاندې اداکول پکاردی اوهم دغه وجه ده چه فطره دومره عام کړې شوې ده چه په معمولی مالداربانډې هم واجب کړې شوې ده او په لوئی، وړوکی، ښځه، سړی، غلام او آزاد ټولوباندې واجب ګرځولې شوې ده. تردې چه دَ وړوکی اختر په شپه دَ صبح صادق نه وړاندې پیداکیدونکی بچی باندې دَهغه دَ طرف نه هم واجب ده. په زیربحث حدیث کښې هم دَدې حکمت طرف ته په پورتنو الفاظو کښې اشاره کړې شوې ده.

[1] اخرجه ابوداود کتاب الزکاة /باب زکاة الفطر(رقم-١٦٠٩) وابن ماجة کتاب الزکاة /باب صدقة الفطر(رقم-١٨٢٧)

دويم حکمت دادې چه په روژوکښې څه کمزورئ پاتې شوی وی دهغه تولو کوتاهيانو دَ ختمولودَپاره صدقه فطرمقررکړې شوې ده. دَ اخترد مانځه نه وړاندې او پس په دواړو وختونوکښې صدقه دَ فطر اداکولې شي البته اول اداکول بهتردی. دَ شيخ وکيع رحمه الله قول دې چه څنګه دَ مونځ دَ کوتاهودَ ازاله دَپاره سجده دَ سهوې مقرر ده هم دغه شان دَ روژو دَ نقصان دَ ازالې دَپاره صدقه دَ فطر مقرر ده.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [١٨١٩] په صدقه فطرکښې دغنمو مقدار

١٨١٩–(١)[٥] ١ عَنْ عَمْرِوبْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ ٢ أَنَّ «النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بَعَثَ مُنَادِيًا فِي فِجَاجِ مَكَّةَ: ٣ "أَلَا إِنَّ صَدَقَةَ الْفِطْرِ وَاجِبَةٌ عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ، ٤ ذَكَرٍ أَوْ أُنْثَى، حُرٍّ أَوْ عَبْدٍ، صَغِيرٍ أَوْ كَبِيرٍ، ٥ مُدَّانِ مِنْ قَمْحٍ، أَوْ سِوَاهُ، أَوْ صَاعٌ مِنْ طَعَامٍ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ١ عمرو بن شعيب رحمه الله د خپل پلار څخه اوهغه دخپل نيکه څخه نقل کوي ٢ چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم د مکي په کوڅو کې اعلان کونکي وليږلو ٣ چې واورئ صدقهٔ فطر (سرسايه) په هر مسلمان باندې واجب ده ٤ که سړي وي که ښځه، آزاد وي که غلام، ماشوم وي او که لوی ٥ (او د دې مقدار) د غنمو يا د هغې په شان څيزونه (مثلاً وچ انګور وغيره) څخه دوه مُد او د غنمو څخه علاوه په نورو غلو کې يوه صاع ده. (ترمذي)

**حل اللغات:** – ① فِجَاجِ: أَيْ فِي طُرُقِهَا: لارې او کوڅې، ② قَمْحٍ: أَيْ حِنْطَةٍ: غنمو ته وائي.

**تسهيلات:**

**قوله: أَوْ صَاعٌ مِنْ طَعَامٍ:**

**د صاع او مد مقدار:** – د دوؤ مدو نه مراد نيم صاع دی څکه چې د يو مد غلې وزن تقريبا څوارلس چټاکۍ وی او يو صاع د درې نيمو سيرو برابر وی لهذا د صدقه فطر په طور غنم پاؤ کم دوه سيره يعنی يو کلو ۶۳۳ ګرام ورکول پکار دی چونکه د غنمو اوړهٔ هم د غنمو په مثل دی نو په دې وجه دواړه څيزونه هم په دې مقدار ورکول پکار دی.

### [١٨٢٠] مالدار او فقير دواړو ته د صدقه فطر اداکولو ترغيب

١٨٢٠–(٢)[٦] ١ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ ثَعْلَبَةَ، أَوْ ثَعْلَبَةَ بْنِ عَبْدِ اللهِ، بْنِ أَبِي صُعَيْرٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ٢ "«صَاعٌ مِنْ بُرٍّ، أَوْ قَمْحٍ عَنْ كُلِّ اثْنَيْنِ، ٣ صَغِيرٍ أَوْ كَبِيرٍ، حُرٍّ أَوْ عَبْدٍ، ذَكَرٍ أَوْ أُنْثَى، ٤ أَمَّا غَنِيُّكُمْ فَيُزَكِّيهِ اللهُ، ٥ وَأَمَّا فَقِيرُكُمْ فَيَرُدُّ عَلَيْهِ أَكْثَرَ مِمَّا أَعْطَاهُ»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

[1] اخرجه الترمذی کتاب الزکاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی صدقة الفطر(رقم-٦٧٤)
[2] اخرجه ابوداود کتاب الزکاة/باب من روی نصف صاع من قمح (رقم-١٦١٩)

**ترجمه:** ① عبدالله ابن ثعلبه يا حضرت ثعلبه ابن عبدالله بن ابي صعير د خپل پلار څخه نقل کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② چې [سرسايه (صدقهٔ فطر) واجب ده] د غنمو څخه يوه صاع يا د دوو کسانو د طرف څخه (چې د هر يو د طرف څخه به نيمه نيمه صاع وي) ③ که ماشوم وي او که لوي، آزاد وي او که غلام، سړي وي که ښځه، ④ د غني معامله دا ده چې الله تعالیٰ ﷻ (د سرسايي ورکولو په وجه) هغه پاکيزه جوړوی ⑤ او د فقير معامله دا ده چې الله تعالیٰ ﷻ هغې ته د هغه څخه زيات ورکوي څومره چې هغه د صدقهٔ فطر په طور ورکړل. (ابوداؤد)

**تسهيلات:**

**قوله:** عَبْدِاللّٰهِ بْنِ ثَعْلَبَةَ:

**د راوی د نوم تصحيح:** - دمشکوة په نسخو کښې اګر چې د دې حديث مبارك د راوی نوم داشان ليکلې شوې دې خو صحيح عبدالله ابن ثعلبه ابن ابی صغير يا ابن ابی صعير عن ابيه إلخ دې.

حضرت ثعلبه ﷺ صحابی دې او ددوئ نه ددوئ څوئې عبدالله ذا روايت نقل کوی.

**قوله:** أَمَّا غَنِيُّكُمْ فَيُزَكِّيهِ اللّٰهُ، وَأَمَّا فَقِيرُكُمْ فَيَرُدُّ عَلَيْهِ أَكْثَرَ مِمَّا أَعْطَاهُ:

**ترغيب ته د صدقه فطر ورکولو ترغيب:** - د حديث مبارك د آخرى جملې مطلب دادې چې غنى دې هم صدقه فطرورکوی او فقير دې هم صدقه فطر ادا کوی الله ﷻ د دواړو باره کښې فرمائى چې الله ﷻ به غنى لره دده د صدقه فطر د ورکولو په وجه پاك کړی او فقير لره ددې نه زيات ورکوی څومره چې ده صدقه فطر ورکړې ده دا بشارت اګر چې غنى دپاره هم دې چې الله ﷻ دده په مال کښې ددې نه زيات برکت اچوی څومره چې ده ورکړې دې خو دا بشارت ئې فقير سره په دې وجه مخصوص کړو چې ده ته همت ملاؤ شی او دې په صدقه فطر ورکولو کښې سستی اونه کړی.

# [٣]بَابُ مَنْ لَاتَحِلُّ لَهُ الصَّدَقَةُ

## دَ کوموخلقودَپاره زکات اخستل حلال نه دي

**خلاصة الباب:-**

**فيه أربعة عشر حديثاً مشتملة على ثلاث مسائل:**

① من لا تحل له الصدقة: ١، ٢، ٣، ۴، ۵، ٩، ١٠، ١١، ١۴-

② حل الهدية للنبي ﷺ : ۴، ۵، ۶، ٧

③ من تحل له الصدقة: ٨، ١٢، ١٣-

په تمهیدی توګه باندې په دې خبره باندې پوهیدل پکاردی چه په دې باب کښې به هغه احادیث نقل کولې شی دکومونه چه معلومه شی چه دَ کوموخلقودَپاره زکوة اخستل جائزدی اودَ کومودَپاره ناجائزدی. څکه دَ مالدارانودَ پاره زکوة اخستل جائزنه دی.

**د مالدارانو درې قسمونه:-** اغنیاء یعنی مالداران په درې قسمه دی.

① یوغنی هغه دې چاسره چه دَزیاتیدونکې مال نه نصاب موجوددې په دوی باندې زکوة صدقه فطر او قربانی کول واجب دی. اوده له هرقسم صدقه اخستل جائزنه دی.

② دویم غنی هغه دې چاسره چه دَ ضرورت اصلیه نه زیات مال موجود دې مګر هغه زیاتیدونکې مال نه دې اوپه هغې کښې دَ تجارت نیت هم نشته دې. په داسې سړی خوزکوة ورکول واجب نه دی لیکن قربانی اوصدقه دَ فطر په ده باندې واجب دی. اودَده دَپاره هرقسم زکوة صدقات اخستل حرام دی.

③ دریم هغه سړې دې چاسره چه دَ حاجت اصلیه نه زیات نه زیاتیدونکې مال شته اونه ورسره نه زیاتیدونکې یعنی دَ نصاب مالك نه دې لیکن دَده ضرورت پوره کیږی دَده هیڅ ضرورت بندنه دې. په ده باندې نه زکوة فرض دې نه صدقه فطر اونه قربانی واجب ده خودَده دَپاره سوال کول هم جائزنه دی اوکه چاده ته زکوة ورکړو نوهغه قبلولې شی.

**چاته زکات ورکول ناجائز دي؟:-**

① بهرحال کوم سړې چه صاحب دَ نصاب وی هغه خپل زکوة په خپل فروع او اصول کښې نه شی ورکولې. دَامام صاحب په نیزخاوند ښځې ته یا ښځه خپل خاوندته زکوة نه شی ورکولې. مګر صاحبین فرمائی چه ښځه خپل خاوند ته زکوة ورکولې شی.

② دَ زکوة مال خپلې وینځې غلام وغیره ته نه شی ورکولې کیدې.

③ دَ سخرګنئی خپلوان کښې زکوة ورکول صحیح دی کله چه اخستونکې مستحق وی.

④ دَ زکوة مال یوغنی ته ورکول جائزنه دی څه اغنیاء مستثنی دی تفصیل وړاندې راځی.

⑤ هاشمي ته زکوة ورکول جائزنه دی سيد ته هاشمي وائي.
⑥ کافر له زکوة ورکول جائزنه دی.
⑦ دَ جمات يا مدرسې دَ آبادولو دَپاره اودَمرمت دَپاره يادَ يومړی دَ کفن دفن دَپاره زکوة ورکول صحيح نه دی.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[١٨٢١] په نبی علیه السلام د زکات اخستلو حرمت**

١٨٢١ـ() [١] [١] عَنْ أَنَسٍ قَالَ: «مَرَّ النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِتَمْرَةٍ فِي الطَّرِيقِ [٢] فَقَالَ: "لَوْلَا أَنِّي أَخَافُ أَنْ تَكُونَ مِنَ الصَّدَقَةِ لَأَكَلْتُهَا» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] حضرت انس رضی الله عنه وايي چې نبي کريم ﷺ په يوي کجوري باندې تير شو چې په لار کې پرته وه [٢] د هغې په ليدو سره حضور ﷺ وفرمايل چې که ما سره دا خوف نه وې چې دا خرما به د زکات وي نوما به [د الله د نعمت د تعظيم په خاطر] دا ضرور خوړلي وی. (بخاري مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله:** لَوْلَا أَنِّي أَخَافُ أَنْ تَكُونَ مِنَ الصَّدَقَةِ لَأَكَلْتُهَا

**د حديث بعضې فوائد:** -① صدقه په نبی علیه السلام په بنو هاشم او په بنوعبدالمطلب باندې حرامه ده. البته په کوم غلام چې نبی علیه السلام آزاد کړی وی نود هغه په باره کښې دوه اقوال دی صحيح قول دا دې چې په هغه باندې هم حرام ده. باقي نفلی صدقه صرف به نبی علیه السلام باندې حرامه ده او اصح قول دا دې چې په بنو هاشم او بنو عبدالمطلب باندې حرامه نه ده.

② په لاره کښې چې کوم معمولی څيز پروت وی نودا اوچتول او خوړل او په استعمال کښې راوستل په هغه وخت کښې جائز دی چې دا ګمان وی چې مالک به ددې لټون نه کوی.

③ د متقی دپاره غوره دی چې د داسې مشتبه څيزونو څخه ځان ساتی.

[١] اخرجه البخاري في كتاب البيوع/باب ما يتنزه من الشبهات (رقم-٢٠٥٥) ومسلم في كتاب الزكاة/باب تحريم الزكاة على رسول الله صلى الله عليه وسلم وعلى آله وهم بنو هاشم وبنو المطلب دون غيرهم (رقم) ١٦٤ - (١٠٧١)

[١٨٢٢] په بنو هاشم د صدقه فطر اخستلو حرمت

١٨٢٢—()[٢] [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: [٢] «أَخَذَ الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ تَمْرَةً مِنْ تَمْرِ الصَّدَقَةِ فَجَعَلَهَا فِي فِيهِ، [٣] فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "كِخْ كِخْ" لِيَطْرَحَهَا، [٤] ثُمَّ قَالَ: "أَمَا شَعَرْتَ أَنَّا لَا نَأْكُلُ الصَّدَقَةَ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] ابوهريره ﷺ روايت کوي [٢] چې يو ځل حضرت حسن بن علي ﷺ د زکات اېښودل شوو خرماؤ څخه يوه خرما پورته کولو سره په خپله خُله کې واچوله [٣] د دې په ليدو سره حضور ﷺ ورته وفرمايل چې دا راوکاږه راوکاږه (او دغه شان يې فرمايل چه) هغه د خُلې څخه ويستلو سره يې وغورځي [٤] بيا ورته حضور ﷺ وفرمايل چې آيا تاته نه ده معلومه چې مونږ (بني هاشم) د صدقې د مال څخه نه خورو. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① كِخْ كِخْ: بِمَعْنَى اتْرُكْ وَارْمِ: يعنى مه خوره اوغورزوه، د يوخراب او نامناسب کار نه د ماشومانو منع کولو دپاره دا لفظ استعمالولې شي. دا د فارسي الفاظ دي عربۍ ته رامنتقل شوي دي، تکرار دتاکيد دپاره دي. ② لِيَطْرَحَهَا: چه راؤ ئې غورزوي. ③ أَمَا شَعَرْتَ: أَيْ مَا عَلِمْتَ: آيا تاته معلومه نه ده؟

**تسهيلات:**

**قوله: أَمَا شَعَرْتَ أَنَّا لَا نَأْكُلُ الصَّدَقَةَ**

**د حديثو څخه معلومې شوې فائدې: -**

دَدې حديث اودې نه مخکښې حديث نه څه فائدې حاصلېږي.

① دَ حضورپاك دَ پاره دَ زكوة مال خوړل حرام وو.

② په لاركښې پروت څيز خوړلې شي هركله چه هغه په لږ مقدار کښې وي.

③ دَبنوهاشم دَپاره صدقه واجبه اخستل حرام دي مگر صدقه نافله خوړل جائز دي.

④ په مورپلار باندې فرض دی چه هغوی دې دَاولاد صحيح تربيت اوکړي اودَمنکرات نه دې خپل اولاد بچ کړي. او په څه منکر کښې دې دَهغوی امداد نه کوی لکه ماشومانو ته ريښم اغوستل يا دَ سرو زرو او سپينو زرو کالی ماشومانو هلکانو ته اچول ټول ناجائز دي.

⑤ په کوم څيز کښې چه دَ حرمت لږ شان هم شك وی دَمؤمن دَپاره هغې ته نيزدې کيدل مناسب نه دي.

---

[١] اخرجه البخاری فی کتاب الزکاة/باب ما یذکر فی الصدقة للنبی صلی الله علیه وسلم وآله (رقم-١٤٩١) ومسلم فی کتاب الزکاة/باب تحریم الزکاة علی رسول الله صلی الله علیه وسلم وعلی آله وهم بنو هاشم وبنو المطلب دون غیرهم (رقم) ١٦١ - (١٠٦٩) والنسائی کتاب الزکاة/باب استعمال آل النبی صلی الله علیه وسلم علی الصدقة(رقم-٢٦٠٩) واحمد فی المسند ١٦٦/٤

**[١٨٢٣] دَ بنوهاشم دَپاره دَ زکات خوړلو حرمت**

١٨٢٣-()[٣] [١] وَعَنْ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ بْنِ رَبِيعَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [٢] "«إِنَّ هَذِهِ الصَّدَقَاتِ إِنَّمَا هِيَ أَوْسَاخُ النَّاسِ، [٣] وَإِنَّهَا لَا تَحِلُّ لِمُحَمَّدٍ، وَلَا لِآلِ مُحَمَّدٍ»" رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] عبد المطلب رضي الله عنه ابن ربيعه روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] دا صدقه (يعني زکات) د انسانانو خيري دي [٣] صدقه نه خو د محمد ﷺ د پاره حلاله ده او نه د آل محمد (بني هاشم) د پاره حلاله ده. (مسلم)

**حل اللغات:-** ① أَوْسَاخُ: دا دَ وسخ جمع ده دَ خيرى وغيره په معنى کښې دي.

**تسهیلات: قوله "وَإِنَّهَا لَا تَحِلُّ لِمُحَمَّدٍ، وَلَا لِآلِ مُحَمَّدٍ"**

**بنوهاشم ته د زکات نه ورکولو حکمت:-** هاشمی يعنی سادات او آل رسول ته صدقات واجبه ورکول هم جائزنه دی اوهغوی له اخستل هم جائزنه دی. زير بحث حديث په واضحه توګه په دې باندې دلالت کوی. دغه شان دَ سادات غلامانو او وينځوته له هم صدقات اخستل اوورکول جائزنه دی ځکه چه زکوة دَ خلقو دَ مالونو خيرې دي اودَ بنی هاشم بنياد پاك دې چرته هغه په دې سره ککړنه شی. په دې وجه به حضورپاك صدقه نه قبلوله اوتحفه به ئې قبلوله ځکه چه په تحفه کښې اکرام اواعزاز مقصود وی او په صدقه کښې دَمصدق له دَ پاره اکرام اواعزاز اړخ نشته دې.

**د بنو هاشم مصداق:-** دَپنځوبزرګانو اولاد ته هاشمی وئيلی شی.

① دَحضرت علی رضي الله عنه اولاد که هغه دَ فاطمه بی بی رضي الله عنها نه وی اوکه دَ بلې بی بی نه وی.

② دَحضرت عباس رضي الله عنه اولاد. ③ دَحضرت جعفر رضي الله عنه اولاد.

④ دَحضرت عقيل رضي الله عنه اولاد.

⑤ دَحارث بن عبدالمطلب اولاد. دَ بنوهاشم دَ اوچتې مرتبې دَ وجې نه بعضې احکام دَدوی دَپاره ناجائزګرځولې شوی دی سره دَدې چه دَ امت دَپاره هغه جائزوی.

**[١٨٢٤] د صدقې د مال څخه د نبي عليه السلام احتياط**

١٨٢٤-()[٤] [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: [٢] «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- إِذَا أُتِيَ بِطَعَامٍ سَأَلَ عَنْهُ [٣] أَهَدِيَّةٌ أَمْ صَدَقَةٌ؟ [٤] فَإِنْ قِيلَ: صَدَقَةٌ قَالَ لِأَصْحَابِهِ كُلُوا، وَلَمْ يَأْكُلْ، [٥] وَإِنْ قِيلَ: هَدِيَّةٌ ضَرَبَ بِيَدِهِ فَأَكَلَ مَعَهُمْ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

[١]) اخرجه مسلم فی کتاب الزکاة/باب ترک استعمال آل النبی علی الصدقة (رقم) ١٦٧ - (١٠٧٢)

[٢]) اخرجه البخاری فی کتاب الهبة وفضلها والتحريض عليها/باب قبول الهدية (رقم-٢٥٧٦) ومسلم فی کتاب الزکاة/باب قبول النبی الهدية ورده الصدقة (رقم) ١٧٥ - (١٠٧٧) والترمذی کتاب الزکاة عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی کراهية الصدقة للنبی صلی الله عليه وسلم وأهل بيته ومواليه(رقم-٦٥٦) والنسائی کتاب الزکاة/الصدقة لا تحل للنبی صلی الله عليه وسلم(رقم-٢٦١٣)

**ترجمه:** [١] حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي [٢] چې د رسول الله ﷺ دا معمول وو چې کله به د خوراك د پاره ورته څه شي راوړل شو نو مخکې به يې دا پوښتنه کوله [٣] چې دا هديه (تحفه) ده که صدقه؟ [٤] که به ورته اوويل شو چې صدقه ده نو حضور ﷺ به [د بني هاشم څخه علاوه خپلو نورو] صحابه ؓ ته وفرمايل چې دا وخورئ او حضور ﷺ به پخپله نه خوړله [٥] او که به ورته اووئيل شو چې دا هديه ده نو لاس مبارك به يې ور مخکې کړو او د صحابه ؓ سره به يې هغه خوړله. (بخاري مسلم)

**تسهیلات:**

**نوټ:** - په نبی عليه السلام د صدقې د حرمت بيان د بل حديث په تسهيل کښې ذکر شوې دې.

**[١٨٢٥] په زکات کښې دتمليك حکم**

١٨٢٥ـ(١)[٥] [١] وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: [٢] «كَانَ فِي بَرِيرَةَ ثَلَاثُ سُنَنٍ [٣] إِحْدَى السُّنَنِ أَنَّهَا عُتِقَتْ، فَخُيِّرَتْ فِي زَوْجِهَا [٤] وَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " الْوَلَاءُ لِمَنْ أَعْتَقَ "، [٥] وَدَخَلَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَالْبُرْمَةُ تَفُورُ بِلَحْمٍ، [٦] فَقُرِّبَ إِلَيْهِ خُبْزٌ وَأُدْمٌ مِنْ أُدْمِ الْبَيْتِ، [٧] فَقَالَ: " أَلَمْ أَرَ بُرْمَةً فِيهَا لَحْمٌ؟ " [٨] قَالُوا: بَلَى، وَلَكِنْ ذَلِكَ لَحْمٌ تُصُدِّقَ بِهِ عَلَى بَرِيرَةَ، وَأَنْتَ لَا تَأْكُلُ الصَّدَقَةَ، [٩] قَالَ: " هُوَ عَلَيْهَا صَدَقَةٌ، وَلَنَا هَدِيَّةٌ ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] او بي بي عايشه رضي الله عنها فرمايي [٢] چې د بريره (وينځې) متعلق درې احکام مخې ته راغلل [٣] ① اول حکم خو دا چې کوم وخت هغه آزاده شوه نو هغې ته د خپل خاوند په باره کې اختيار ورکړې شو [٤] ② دويم حکم دا چې حضور ﷺ وفرمايل چه د ولاء يعني دميراث حق د هغه سړي د پاره دي چې چا آزاد کړو [٥] ③ دريم حکم دا چې يوه ورځ حضور ﷺ کور ته تشريف راوړو د غوښې کټوئ پخيده [٦] د حضور ﷺ مخې ته روټي او د کور سالن را وړل شو [٧] حضور ﷺ وفرمايل چې آيا ما هغه کټوئ اونه ليده چې په هغې کې غوښه وه [يعني چې غوښه پخيږي نو هغه ماته ولې رانه کړل شوه] [٨] عرض وشو چې بيشکه په کټوئ کې غوښه پخيږي ليکن هغه غوښه بريده (وينځې) ته د صدقې په طور ورکړې شوې ده او تاسو ﷺ خو صدقه نه خورئ [٩] حضور ﷺ وفرمايل چې هغه غوښه د بريره د پاره صدقه ده او زمونږ د پاره هديه ده. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① سُنَنٍ: أَيْ أَحْكَامٌ وَمَسَائِلُ شَرْعِيَّةٌ: يعنی احکام اوشرعی مسئلې، ② الْوَلَاءُ: دميراث حق، ③ الْبُرْمَةُ: أَيِ الْقِدْرُ: کټوئ، ④ تَفُورُ: أَيْ تَغْلِي: خوټکيده، جوشيدله، ⑤ أُدْمٌ: سالن، اينګلې چه روټئ ورسره خوړلې شي.

---

(١) اخرجه البخارى فى كتاب الطلاق/باب لا يكون بيع الأمة طلاقًا (رقم-٥٢٧٩) ومسلم فى كتاب العتق/باب إنما الولاء لمن أعتق (رقم) ١٤ - (١٥٠٤) والنسائى كتاب الزكاة/باب إذا تحولت الصدقة(رقم-٢٦١٤) وابن ماجة كتاب النكاح/ خيار الأمة إذا أعتقت(رقم-٢٠٧٦) والدارمى باب فى تخيير الأمة تكون تحت العبد فتعتق(رقم-٢٣٣٥) ومالک فى الموطا كتاب الطلاق/باب ما جاء فى الخيار(رقم-٢٥) واحمد فى المسند ٢٨١/١

**تسهيلات:**

**قوله: كَانَ فِي بَرِيرَةَ ثَلَاثُ سُنَنٍ:**

**د بريرې په وجه د درې مسئلو معلوميدل:** - يعنى دَ بريره رضي الله عنها دَ وجې نه دَ اسلام درې مسئلې واضحه شوې. ① "خيار عتق" ② "الولاء لمن اعتق" يعنى ميراث به آزادونكى ته ملاوېږى. ③ په تبدلى د يد سره به په ملكيت كښې بدلون راځى چه دَ يودَ پاره يوځيز زكوة دې مګر هغه چه كله بل ته وركړو نودَهغه دَپاره هديه ده. دَ فقهاء په اصطلاح كښې دې بدلون ته تمليك وائى كوم چه جائز دې په دې شرط چه ناجائز حيله نه وى.

**[١٨٣٦] د هديه قبلول اوبدل خلاصول**

١٨٣٦—(١)[٦] [١] وَعَنْهَا قَالَتْ: «كَانَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقْبَلُ الْهَدِيَّةَ [٢] وَيُثِيبُ عَلَيْهَا». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [١] بي بي عايشه رضي الله عنها فرمايي چې رسول الله ﷺ به تحفه قبلوله [٢] او د هغې بدله به يې وركوله. (بخارى)

**حل اللغات:** - ① يُثِيبُ: أَيْ يُجَازِي: يعنى عوض او بدله به ئې وركوله.

**تسهيلات:**

**قوله: يقبل الهدية:**

**د تحفې وركولو ترغيب:** - ددې حديث مبارك تشريح هم واضح ده چې هديه وركونكى ته په بدله كښې د تهادو تحابوا پيش نظر څه وركول پكار دى.

**[١٨٣٧] د معمولي تحفې قبلول**

١٨٣٧—(٢)[٧] [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] "«لَوْ دُعِيتُ إِلَى كُرَاعٍ لَأَجَبْتُ [٣] وَلَوْ أُهْدِيَ إِلَيَّ ذِرَاعٌ لَقَبِلْتُ»". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [١] ابوهريره رضي الله عنه روايت كوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] كه ماته د كراع (پنډۍ) هم دعوت راكړل شي نو زه به يې قبول كړم [٣] او كه ليچه په تحفه كې راكړل شي نو قبوله به يې كړم. (بخاري)

**حل اللغات:** - ① كُرَاعٍ: د چيلى پنډۍ، ② ذِرَاعٌ: ليچه، لاس (مخكنۍ خپې).

**تسهيلات:**

**قوله: لَوْ دُعِيتُ إِلَى كُرَاعٍ لَأَجَبْتُ:**

**د كراع په مفهوم كښې دوه اقوال:** - ① د چيلى پتون ته كراع وائى په دې صورت كښې به د

---

(١) اخرجه البخار فى كتاب الهبة وفضلها والتحريض عليها/باب المكافاة فى الهبة (رقم-٢٥٨٥)

(٢) اخرجه البخار فى كتاب الهبة وفضلها والتحريض عليها/باب القليل من الهبة (رقم-٢٥٦٨) واحمد فى المسند ٢/٤٢٤

نبی کریم ﷺ د ارشاد مطلب دا وی که زه د یو معمولی کس دعوت او معمولی هدیه قبوله کړم نو زه په دې کښې هیڅ شرم نه محسوسوم بلکه زه به ئې ضرور قبلوم
② کراع د مکې او مدینې په مینځ کښې د یو ځائې نوم دې دې صورت کښې به ددې مطلب دا وی چې که دومره لرې ځخه ما څوك دعوت ته اوبلی نو زه به هغه قبلوم

**دحدیث څخه د دوؤ مسئلو استنباط:-** ① د محدثینو په نزد اوله معنی راجح او درست ده په دې حدیث پاك کښې مالداروته تعلیم ورکړې شوې دې چې د خپلو ماتحتو او غریبانانو هدیې مه واپس کوئی بلکه د هغوئ د خلوص قدر اوکړئی
② دا هم معلومه شوه چې نبی کریم ﷺ به خپل امت سره ډیر تواضع او شفقت او عاجزئ معامله کوله

**[١٨٢٨] د مسکین تعریف**

١٨٢٨-(١)[٨] ① وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② "«لَيْسَ الْمِسْكِينُ الَّذِي يَطُوفُ عَلَى النَّاسِ ③ تَرُدُّهُ اللُّقْمَةُ وَاللُّقْمَتَانِ، وَالتَّمْرَةُ وَالتَّمْرَتَانِ، ④ وَلَكِنَّ الْمِسْكِينَ الَّذِي لَا يَجِدُ غِنًى يُغْنِيهِ، ⑤ وَلَا يُفْطَنُ بِهِ فَيُتَصَدَّقَ عَلَيْهِ، ⑥ وَلَا يَقُومُ فَيَسْأَلَ النَّاسَ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① حضرت ابوهریره رضی الله عنه روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② مسکین هغه سړي نه دي چې د خلقو څخوسوال کوي (خیر غواړي) ③ او خلق هغه ته یوه نمړئ یا دوه نمړئ او یوه کجوره یا دوه کجوره وي ورکړي ④ بلکه مسکین سړي هغه دي چې دومره مال هم نه لري چې هغه د هغې په وجه مستغني شی ⑤ او د هغه د ظاهري حالاتو په وجه خلق په دي هم نه پوهیږي چې هغه محتاج او ضرورت مند دي چې هغه ته صدقه ورکړې شي ⑥ او د خلقو په مخکې د سوال لاس غزولو د پاره د کور څخه نه وځي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① اللُّقْمَةُ: نمړئ، نوړئ ② غِنًى: أَيْ شَيْئًا أَوْ مَالًا: هیڅ څیز یا مال ③ يُفْطَنُ: أَيْ لَا يُعْلَمُ بِاحْتِيَاجِهِ: یعنی خلق دده په محتاجئ نه پوهیږي.

**تسهیلات:**

**قوله:** لَيْسَ الْمِسْكِينُ الَّذِي يَطُوفُ عَلَى النَّاسِ:

**په مسکین او فقیر کښې فرق:-** ① علامه زبیدی د ابن سکیت حوالې سره لیکی چې مسکین هغه دې چې هغه سره هیڅ څیز نه وی او فقیر هغه دې چې د هغه خرج باندې د

[١] اخرجه البخاری فی کتاب الزکاة/باب قول الله تعالی: {لا یسألون الناس إلحافًا} [البقرة: ٢٧٣] وکم الغنی (رقم-١٤٧٩) ومسلم فی کتاب الزکاة/باب المسکین الذی لا یجد غنًى، ولا یفطن له فیتصدق علیه (رقم) ١٠١ - (١٠٣٩) وابوداود کتاب الزکاة/باب من یعطی من الصدقة، وحد الغنی (رقم-١٦٣١) والنسائی کتاب الزکاة/باب تفسیر المسکین(رقم-٢٥٧١) والدارمی من کتاب الزکاة/باب المسکین الذی یتصدق علیه(رقم-١٦٥٦) ومالک فی الموطأ کتاب صفة النبی صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی المساکین(رقم-٧) وا حمد فی المسند ٣٨٤/١

هغه ژوند تیریږی.

④ و قال الأصمعي: مسکین هغه دې چې هغه دفقیر څخه په احسن حالت کښې وی لقوله تعالی (أَمَّا السَّفِينَةُ فَكَانَتْ لِمَسَاكِينَ) (الكهف: ٧٩) او د فقیر په حق کښې فرمائی چې (أُحْصِرُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ لَا يَسْتَطِيعُونَ ضَرْبًا فِي الْأَرْضِ) (البقرة: ٢٧٣)

③ وقال صاحب القوت فقیر هغه دې چې سوال نه کوی او مسکین هغه دې چې سوال کوی

④ فقیر هغه دې چې په کټلو کښې کوشش اوکړی او مسکین هغه دې چې ګټه نه کوی

⑤ فقیر هغه دې چې دهغه د ظاهری حالت څخه د هغه فقر معلوم شی او مسکین هغه دې چې د هغه باره کښې هیڅ معلوم نه وی هم په دې بناء په حدیث مبارك کښې تعریف کړې شوې دې چې مسکین هغه نه دې چې سوال کوی بلکه مسکین هغه دې چې سوال نه خان بچ اوساتی او خلقو ته خپل مشکل نه بیانوی

⑥ فقهاء کرامو وئیلی دی چې مسکین هغه دې چې د خپلې پیشې د تنګسیا په وجه محتاج شوې وی یا د اهل و عیال د ډیر والی په وجه محتاج شوې وی

⑦ صاحب هدایه رحمه الله د مسکین تعریف داشان کړې دې چې هغه سره څه څیز نه وی او فقیر هغه دې چې هغه سره ادنی څیز موجود وی

⑧ اوچا د صاحب هدایه د تعریف بالعکس تعریف کړې دې.

**دحدیث مطلب:** - ددې حدیث پاك حاصل دادې چې په مسکینیت باندې ثواب دې او هغه د صابرینو په زمره کښې داخل دې دا هغه سوال کوونکې فقیر نه دې بلکه دا خو په عام حالاتو کښې هم داسې سوال باندې ګناهنګاریږی چې کله هغه سوال کولو دپاره دومره کوشش کولې شی نو دې د ګټلو دپاره کوشش هم کولې شی خو صابر مسکین هغه دې چې هغه واقعی ضرورت مند وی لیکن خپل ضرورت چا ته نه ښکاره کوی بلکه د پټولو فکر ورسره وی او په قرآن کریم کښې دمسکین تعریف کړې شوې دې (لِلْفُقَرَاءِ الَّذِينَ.........الأية)

**د یوتعارض جواب:** - واضحه دې وی چې نبی کریم ﷺ چې د کوم مسکینیت دعا کړې ده هغه د زړه مسکینیت دې یعنی زړه کښې عاجزی وی او تکبر په کښې نه وی کوم کس چې د مالداره کیدو باوجود د زړه مسکین وی هغه مبارك دې او کومو احادیثو کښې چې د مسکینیت نه پناه غوښتلې شوې ده هغه داسې محتاجی او تنګسیا ده چې یو انسان په فتنه کښې اخته کوی لهذا احادیثو کښې تعارض نشته دې.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[١٨٢٩] د بني هاشم د غلامانو د پاره صدقې اخستلو حرمت**

١٨٢٩-(١)[٩] [١] عَنْ أَبِي رَافِعٍ «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بَعَثَ رَجُلًا مِنْ بَنِي مَخْزُومٍ عَلَى الصَّدَقَةِ [٢] فَقَالَ لِأَبِي رَافِعٍ: اصْحَبْنِي كَيْمَا تُصِيبُ مِنْهَا، [٣] فَقَالَ: لَا حَتَّى آتِيَ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَأَسْأَلَهُ، [٤] فَانْطَلَقَ إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَسَأَلَهُ، فَقَالَ: [٥] "إِنَّ الصَّدَقَةَ لَا تَحِلُّ لَنَا وَإِنَّ مَوَالِيَ الْقَوْمِ مِنْ أَنْفُسِهِمْ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُودَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ.

**توجمه:** [١] ابو رافع ﷺ روایت کوي چې نبي کریم ﷺ د بني مخزوم یو سړي د زکات اخستو د پاره ولیږلو [٢] هغه ابو رافع ﷺ ته اوویل چې ته هم ما سره لاړ شه چې تاته هم د هغې څخه څه حصه حاصله شي [٣] ابو رافع ﷺ اوویل چې زه درسره نه زم ترڅوچې د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه ونکړم [چې زه د دې سړي سره د زکات اخستو د پاره لاړ شم که نه؟] [٤] نو هغه د حضور ﷺ په خدمت کې حاضر شو او د حضور ﷺ څخه یې د خپلو تلو متعلق پوښتنه وکړه حضور ﷺ ورته وفرمایل [٥] چې صدقه زمونږ [د بني هاشمو] د پاره حلاله نه ده او مولي (یعني آزاد شوی غلام د زکات اخستو په معامله کې) د هغه آزاد قوم په حکم کې دي. (ترمذي، ابوداؤد، نسايي)

**تسهیلات:**

**قوله:** إِنَّ الصَّدَقَةَ لَا تَحِلُّ لَنَا وَإِنَّ مَوَالِيَ الْقَوْمِ مِنْ أَنْفُسِهِمْ:

**د بنو هاشم غلام دپاره د صدقې اخستلو عدم جواز:**- حضرت ابو رافع د رسول کریم ﷺ آزاد کړې شوې غلام وو رسول کریم ﷺ دې د زکوة مال اخستلو څخه منع کړې وو چې څنګه مونږ لره د زکوة اخستل جائز نه دی داشان ستا دپاره هم د زکوة مال اخستل جائز نه دی ددې نه معلومه شوه چې د بنی هاشم غلام دپاره هم د زکوة مال اخستل جائز نه دی که غلام دده په ملکیت وی او که آزاد شوې وی.

**[١٨٣٠] د مالدار دپاره د صدقې اخستلو عدم جواز**

١٨٣٠-(٢)[١٠] [١] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] "«لَا تَحِلُّ الصَّدَقَةُ لِغَنِيٍّ، [٣] وَلَا لِذِي مِرَّةٍ سَوِيٍّ» "، رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُودَاوُدَ وَالدَّارِمِيُّ.

---

(١) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الزکاة/باب الصدقة علی بنی هاشم(رقم-١٦٥٠) والترمذی کتاب الزکاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی کراهیة الصدقة للنبی صلی الله علیه وسلم وأهل بیته وموالیه(رقم-٦٥٧) واحمد فی المسند ١٠/٦

(٢) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الزکاة/باب من یعطی من الصدقة، وحد الغنی (رقم-١٦٣٤) والترمذی کتاب الزکاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب من لا تحل له الصدقة(رقم-٦٥٢) والدارمی من کتاب الزکاة/باب من تحل له الصدقة(رقم-١٦٧٩) واحمد فی المسند ٣٨٩/٢

**ترجمه:** [١] عبدالله ابن عمرو رضي الله عنهما روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] نه خو غني ته د زکات مال اخستل حلال دي [٣] او نه روغ او جوړ او توانايي لرونکی ته (چې د محنت او مزدوري کولو قابل وي) (ترمذي، ابوداؤد، دارمي)

**حل اللغات:** - ① ذِي مِرَّةٍ: اى ذِى القُوَّةُ: چه طاقت ئې وی، ② سَوِيٍّ: أَيْ صَحِيحِ الْبَدَنِ: بدن ئې صحيح وی، اندامونه ئې پوره وی. (يعنی محنت مزدوری کولې شي).

**تسهيلات:**

**قوله:** لَا تَحِلُّ الصَّدَقَةُ لِغَنِيٍّ:

**د غنی درې قسمونه:** - ① هغه غنی دې چې په هغه باندې زکوة فرض دې يعنی دا کس د نصاب مالك وی او حولان حول هم شوې وی

② هغه غنی دې چې هغه لره صدقه اخستل حرام وی او په هغه باندې صدقه فطر او قربانی واجب شوی وی لکه چې دې کس سره دومره روپۍ وی چې د نصاب قيمت ته رسيدلې وی

③ دريم هغه غنی دې چې هغه لره سوال کول حرام وی او صدقه ورله حلال لکه چې د يوې ورځې په خوراك څکاك باندې قادر وی (مرقاة ج/٤ص/١٤٩)

**قوله:** وَلَا لِذِي مِرَّةٍ سَوِيٍّ

**د مذکوره جملې مطلب:** - حديث پاك ددې جملې مطلب دادې چې څنګه غنی دپاره زکوة اخستل جائز نه دی داشان تندرست او صحت مند کس لره زکوة اخستل جائز نه دی

١٨٣١ - (١) [٥] [١] وَرَوَاهُ أَحْمَدُ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ.

**ترجمه:** [١] او احمد، نسائي، او ابن ماجه رحمهم الله دا روايت د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه نقل کړی دي.

**[١٨٣٢] دصحتمند دپاره دزکات اخستلو حکم**

١٨٣٢ - (٢) [١١] [١] وَعَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَدِيِّ بْنِ الْخِيَارِ قَالَ: [٢] «أَخْبَرَنِي رَجُلَانِ أَنَّهُمَا أَتَيَا النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٣] وَهُوَ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ، [٤] وَهُوَ يَقْسِمُ الصَّدَقَةَ فَسَأَلَاهُ مِنْهَا، [٥] فَرَفَعَ فِينَا النَّظَرَ، وَخَفَضَهُ [٦] فَرَآنَا جَلْدَيْنِ، فَقَالَ: [٧] "إِنْ شِئْتُمَا أَعْطَيْتُكُمَا [٨] وَلَا حَظَّ فِيهَا لِغَنِيٍّ وَلَا لِقَوِيٍّ مُكْتَسِبٍ"». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [١] عبيدالله بن عدي بن خيار وايي [٢] چې ماته دوو سړو خبر راکړو چې هغوئ د رسول الله ﷺ په خدمت کې هغه وخت حاضر شو [٣] کوم وخت چې حضور ﷺ په حجة

---

[١] اخرجه النسائی کتاب الزکاة/باب إذا لم يكن له دراهم وكان له عدلها(رقم-٢٥٩٧) وابن ماجة کتاب الزکاة/باب من سأل عن ظهر غنًى (رقم-١٨٣٩) واحمد فی المسند ١٦٤/٢

[٢] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الزکاة/باب من يعطى من الصدقة. وحد الغنی (رقم-١٦٣٣) والنسائی کتاب الزکاة/باب إذا لم يكن له دراهم وكان له عدلها(رقم-٢٥٩٨)

الوداع کې وو ۞ او په دغه موقع يې په خلقو کښې د زکات مال تقسيمولو هغه دواړو هم [د حضور ﷺ په مخکې د هغه مال څخه] د څه آخستو خواهش ظاهر کړو ۞ هغه دواړه وايي چې حضور ﷺ زمونږ د طلب خواهش ليدو سره په مونږ د سر څخه تر پښو پورې نظر واچولو ۞ او زمونږ تندرست او توانا ليدو سره يې وفرمايل ۞ چې که تاسو اخستل غواړئ نو زه به يې درکړم ۞ (ليکن ياد لرئ چه) په صدقات او زکات کې نه خو د غني څه حصه شته او نه د هغه سړي څه حصه شته چې تندرست او توانا وي او په ګټه وټه کولو باندې قادر وي. (ابوداؤد نسايي)

**حل اللغات:** - ① خَفَضَهُ: ښکته ئې کړو (نظر). ② جَلْدَيْنِ: أَيْ قَوِيَّيْنِ: تثنيه ده، مضبوط، طاقت لرونکی، ③ لَاحَظَّ: أَيْ لَا نَصِيبَ: حصه نشته، ④ مُكْتَسِبٍ: په ګټه وټه کولو باندې قادر وی.

**تسهيلات:**

**قوله: وَهُوَ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ،**

**د حجة الوداع مطلب:** - حجة الوداع د حضرت رسول اکرم ﷺ آخری حج ته وائی کوم کښې چې حضرت رسول اکرم ﷺ د الله ﷻ احکام په وضاحت سره بيان کړی وو او خلقو ته ئې وداع وئيلې وه او بيا ددې څخه څو مياشتې پس وفات شوی وو.

**[١٨٢٢] په پنځو صورتونو کښې د مالدار دپاره د زکات اخستلو جواز**

١٨٢٢ - (١) [١٢] ۞ وَعَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ مُرْسَلًا قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ۞ " «لَا تَحِلُّ الصَّدَقَةُ لِغَنِيٍّ إِلَّا لِخَمْسَةٍ، ۞ لِغَازٍ فِي سَبِيلِ اللهِ، ۞ أَوْ لِعَامِلٍ عَلَيْهَا، ۞ أَوْ لِغَارِمٍ، ۞ أَوْ لِرَجُلٍ اشْتَرَاهَا بِمَالِهِ، ۞ أَوْ لِرَجُلٍ كَانَ لَهُ جَارٌ مِسْكِينٌ فَتَصَدَّقَ عَلَى الْمِسْكِينِ، ۞ فَأَهْدَى الْمِسْكِينُ لِلْغَنِيِّ» ". رَوَاهُ مَالِكٌ وَأَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** ۞ عطاء بن يسار بطريقِ ارسال روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۞ د غني د پاره د زکات مال حلال نه دي خوپه پنځو صورتونو کې د غني د پاره هم د زکات مال حلاليږي ۞ ① د الله ﷻ په لار کې د جهاد کونکی غنی د پاره هر کله چې د هغه سره د جهاد سامان نه وي ۞ ② د زکات وصولونکي غني د پاره ۞ ③ تاوان برداشت کونکی [تاوان ډکونکی] غني د پاره ۞ ④ د زکات مال د خپل مال په بدله کې اغستونکی غني د پاره [يعنی يو سړي يو مفلس ته د زکات مال ورکړو او يو مالدار او غني د هغه مفلس څخه د زکات مال واخلی او هغه ته د هغې بدل ورکړي نو په دې صورت کې به د غني د پاره هغه مال جائز او حلال وي] ۞ ⑤ او د هغه غني د پاره چې د هغه په ګاونډ کې يو مفلس وسيړي او يو سړي هغه ته د زکات مال ورکړي ۞ او هغه مفلس خپل يو ګاونډی مالدار او غنی ته

(١) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الزکاة/باب من يجوز له أخذ الصدقة وهو غنی(رقم-١٦٣٥) وابن ماجة کتاب الزکاة/باب من تحل له الصدقة(رقم-١٨٤١)

د هغې څخه حصه د تحفې په طور وليږي نو هغه به د غني د پاره جائز او حلال وي.
(مالك ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① عَامِلٍ: څوک چه زکوة راټولوی هغه ته عامل او مصدّق وائي. ② غَارِمٍ: تاوان ډکونکي يا برداشت کونکي، د دوو کسانو په مالي معامله (مثلاً د ديت يا قرض وغيره) کښې صلح او روغه کونکي.

**تسهيلات: قوله: إِلَّا لِخَمْسَةٍ:**

**د پنځه قسمه مالدارو د پاره د زکات اخستلو جواز: -**

يعني پنځه غنيان داسې دي چه زکوة اخستې شي.

① اول غازي او مجاهد دې دَ چا دَ پاره چه زکوة اخستل حلال دی دَدې تفصيل به ان شاء الله په کتاب الجهاد کښې راځی.

② دويم عامل يعني دَ زکوة په وصول کولو باندې مقرر کارکن خپله تنخواه او خرچ دَ زکوة دَ مالونو نه اخستې شي.

③ دريم غارم يعني تاوان ډکونکي سړې سره دَدې چه غني دې مګر دَ تاوان پوره کولو سره هغه دَدې لاندې خښ پروت دې هغه زکوة اخستې شي. دَ تاوان دوه صورتونه دی. اول دا چه دې غني او مالدار سړی دَ چا دَ طرف نه دَ ديت ضمانت واخستلو دَ دغه تاوان پوره کولو دَپاره زکوة اخستې شي. دَ تاوان دويم صورت دادې چه په دوو فريقو کښې ئې صلح او کړه او په هغې کښې ئې خپل ذاتي مال خرچ کړو اوس هغه دا قرض دَ زکوة په مال سره پوره کولې شي. غارم عام قرض داری ته هم وئيلی شي هغه هم دَ فقر او فاقې دَ وجې نه دَ زکوة مستحق دې.

④ څلورم دَ مشتری دَپاره دَ زکوة مال دَ چانه په قيمت اخستل جائزدی يعني يو سړی غريب ته په زکوة کښې څه څيز ورکړو. دغه غريب هغه دَ زکوة مال په چا مالدار باندې خرڅ کړو. دَ مالدار دَپاره دغه اخستل جائزدی ځکه چه دَ ملك بدليدل راغلل.

⑤ پنځم مسکين ته چا زکوة ورکړو اوس ئې هغه يو غني ته ورکوی نو دَغني دَپاره جائزدې. په دغه پنځو صورتونو کښې په ټولو کښې اتفاق دې البته په غازي کښې دومره اختلاف دې چه احناف فقير غازي ته زکوة ورکول افضل ګڼري دَ شوافع په نيز ټول جائزدی.

١٨٣٢-(١)[٥] ١ وَفِي رِوَايَةٍ لِأَبِي دَاوُدَ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ: أَوِ ابْنِ السَّبِيلِ.

**ترجمه:** ١ او د دابوداود په يو روايت کې چې د ابوسعيد رضي الله عنه څخه منقول دي لفظ أو ابن السبيل (يعني د هغه غني د پاره هم چې مسافر وي د زکات مال حلال دي) مذکور دي.

(١) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الزكاة/باب من يجوز له أخذ الصدقة وهو غني (رقم -١٦٣٧)

**[١٨٣٥] د زکات مصارف**

١٨٣٥ ــ(١)[١٣] ① وَعَنْ زِيَادِ بْنِ الْحَارِثِ الصُّدَائِيِّ قَالَ: ② «أَتَيْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَبَايَعْتُهُ ③ فَذَكَرَ حَدِيثًا طَوِيلًا: ④ فَأَتَاهُ رَجُلٌ فَقَالَ: أَعْطِنِي مِنَ الصَّدَقَةِ، ⑤ فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "إِنَّ اللَّهَ لَمْ يَرْضَ بِحُكْمِ نَبِيٍّ وَلَا غَيْرِهِ فِي الصَّدَقَاتِ، ⑥ حَتَّى حَكَمَ هُوَ فِيهَا، فَجَزَّأَهَا ثَمَانِيَةَ أَجْزَاءٍ، ⑦ فَإِنْ كُنْتَ مِنْ تِلْكَ الْأَجْزَاءِ أَعْطَيْتُكَ»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① زیاد رضي الله عنه ابن حارث صدایي وایي ② چې زه د نبي کریم ﷺ په خدمت اقدس کې حاضر شوم او د حضور ﷺ په لاس مې بیعت اوکړو ③ د دې څخه روسته زیاد رضي الله عنه یو طویل حدیث بیانولو سره اوویل ④ چې یو سړي نبي کریم ﷺ ته راغې هغه اوویل چې ماته د زکات مال راکړئ ⑤ حضور ﷺ ورته وفرمایل چې د زکات د تقسیمولو په باره کې چې چا چا ته دي زکات ورکړې شي الله تعالی جل جلاله نه خو د یو پیغمبر او نه د بل چا په حکم کولو راضي شوی دی ⑥ بلکه د دې حکم حق تعالی جل جلاله پخپله ارشاد وفرمایلو (یعني الله تعالی جل جلاله د مستحقین زکات د پاره د تعین ذمه واري په نبي یا په علماؤ او مجتهدینو باندې نه ده اچولې بلکه د دې تعین یې پخپله فرمایلی دی) الله تعالی جل جلاله د زکات اته [٨] مصارف (مستحقین) ذکر کړي دي ⑦ که ته د هغه اتو [٨] څخه یې نو زه به درته د زکات مال درکړم. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① فَجَزَّأَهَا: أَيْ فَقَسَمَ أَصْحَابَهَا: تقسیم ئې کړل مصارف او مستحقین د زکوة.

**تسهیلات: قوله:** إِنَّ اللَّهَ لَمْ يَرْضَ بِحُكْمِ نَبِيٍّ وَلَا غَيْرِهِ فِي الصَّدَقَاتِ:

**د عدم رضا مطلب:** - یعنی الله ﷻ نیغ په نیغه څنګه چې د زکوة د مصارفو تفصیل اوفرمائیلو دومره تفصیل ئې په نورو احکامو کښې نه دې بیان کړی لکه څنګه چې د مونځ وغیره اجمالي ذکر ئې اوفرمائیلو د لم یرض معنی داده چې دزکوة د مصارفو په تفصیل کښې الله ﷻ د رسول کریم ﷺ بیان باندې اکتفاء او نه کړه بلکه پخپله ئې بیان کړل لهذا په دې حدیث پاك کښې د عدم رضا څخه مراد عدم کفایت دی.

## الْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[١٨٣٦] د صدقې د پیو څکلو حکم**

١٨٣٦ ــ(٢)[١٤] ① عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ قَالَ: ② شَرِبَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ لَبَنًا فَأَعْجَبَهُ ③ فَسَأَلَ الَّذِي سَقَاهُ: مِنْ أَيْنَ هَذَا اللَّبَنُ؟ ④ فَأَخْبَرَهُ أَنَّهُ وَرَدَ عَلَى مَاءٍ قَدْ سَمَّاهُ فَإِذَا نَعَمٌ مِنْ نَعَمِ الصَّدَقَةِ، ⑤ وَهُمْ يَسْقُونَ فَحَلَبُوا مِنْ أَلْبَانِهَا ⑥ فَجَعَلْتُهُ فِي سِقَائِي فَهُوَ هَذَا، ⑦ فَأَدْخَلَ عُمَرُ يَدَهُ فَاسْتَقَاءَ، رَوَاهُ مَالِكٌ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ.

---

١) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الزکاة/باب من يعطى من الصدقة. وحد الغنى (رقم-١٦٣٠)

٢) اخرجه مالک فی الموطا کتاب الزکاة / باب ما جاء فی أخذ الصدقات والتشديد فيها(رقم-٣١)

**ترجمه:** ١ زيد ابن اسلم رحمه الله وايي ٢ چې يوه ورځ امير المؤمنين حضرت عمر فاروق رضي الله عنه شيدې (پئ) وڅکل نو په هغه ډيرې ښه ولګيدل ٣ کوم سړي چې شيدې (پئ) ورباندې څکلې وو د هغه څخه يې پوښتنه وکړه چې دا شيدې (پئ) د کوم ځاى دي؟ ٤ هغه ورته اووئيل چې په اوبو باندې (يعني نوم اخستو سره يې اووئيل چه) د فلانې ځاى [کوم ځاى چې اوبه وې] زه هلته ورغلم څه ګورم چې د زکات ډير اوښان موجود دي ٥ او هغه اوبه کولې شو بيا اوښو والا ړ شان شيدې ولوشل ٦ د هغې څخه لږ څه ما هم اخستو سره په خپل مشک کې واچول نو دا هغه شيدې (پئ) دي ٧ (د دې آوريدو سره) حضرت عمر رضي الله عنه خپل لاس په خپله خُله کې ورکړو او هغه شيدې (پئ) يې قې کړل. (مالک بيهقي)

**حل اللغات:** - ① فَأَعْجَبَهُ: ډير ښه پرې اولګيدل، ② فَحَلَبُوا: نو اوئې لوشلې اوښې، ③ فَاسْتَقَاءَ: أَيْ فَتَقَيَّأَهُ: يعنى قئ ئې کړل او دخيتې نه ئې راؤ ويستل.

**تسهيلات:**

**قوله:** مِنْ أَيْنَ هٰذَا اللَّبَنُ؟

**دحضرت عمر رضى الله عنه فراست:** -ددې حديث مبارک حاصل دادې چې حضرت عمر فاروق رضي الله عنه خپل فراست سره محسوس کړل چې په دې کښې څه راز شته دې چې نفس دومره خوشحاليږي هم ددې فراست باره کښې نبی کريم صلى الله عليه وسلم فرمائی چې (اتقوا فراسة المؤمن فإنه ينظر بنور الله).

**اشکال:** - په احاديثو کښې دى چې حضرت رسول کريم صلى الله عليه وسلم د حضرت بريره رضي الله عنها دصدقې د غوښې څخه خوراک اوکړو او دلته حضرت عمر فاروق رضي الله عنه احتياط کوى؟

**داشکال دوه جوابونه:** - ① يوه فتوى ده او بله تقوى د حضرت رسول کريم صلى الله عليه وسلم د حضرت بريره رضي الله عنها غوښه په طور د هديه قبولول فتوى وه چې په دې کښې آسانى ده حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د تقوى په وجه داسې فعل او کړو ځکه چې حضرت عمر فاروق رضي الله عنه دا ګنړل چې ددې معدې ته تلل بيا د زړه د قساوت سبب جوړيږى

② حضرت عمر فاروق رضي الله عنه داسې په دې وجه اوکړل چې حضرت عمر فاروق رضي الله عنه ته شک وو چې شايد پئ ورکونکى شپونکى ته د پيئو ورکولو اختيار نه وى يا د پيئو اخستلو والاد پئيو اخستلو مستحق نه وى ددې شبهې په وجه دوئ احتياط اوکړو همداشان واقعه د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه هم ده چې هغوئ هم دمشتبه څيز خپل غلام نه واخستلو او هغه ئې اوخوړلو او کله چې ورته معلومه شوه نو قئ (التيء) ئې کړې او وې فرمائيل چې ددې په راويستلو باندې که زما ساه هم لاړه شى نو زما هيڅ پرواه نشته دې بهر حال د ډير زيات احتياط ضرورت دې

# [۴]بَابُ مَنْ لَا تَحِلُّ لَهُ الْمَسْأَلَةُ وَمَنْ تَحِلُّ لَهُ

دَکومو خلقو دَپاره سوال کول جائز او دَکومو دَپاره ناجائز دي

**خلاصة الباب:-**

**فيه تسعة وعشرون حديثاً مشتملة على مسئلتين:**

① الترغيب في الانفاق وفضيلته : ١، ٢، ٣، ۴، ۵، ۶، ٧، ٨، ٩، ١٠، ١١، ١٢، ١٧، ١٨، ١٩، ٢٠، ٢١، ٢۴، ٢۵، ٢۶، ٢٨، ٢٩۔

② قباحة الإمساك والانفاق عند الموت: ٢، ٣، ۵، ۶، ٧، ٩، ١١، ١٣، ١۴، ١۵، ١۶، ٢٠، ٢١، ٢۴، ٢۵، ٢۶، ٢٨، ٢٩۔

**د سوال د جواز په حکم کښې اقوال:-** ① بحرالرائق کښې ليکلې دي چه کوم سړي سره د يوې شپې او يا د يوې ورځې د ضرورت مطابق مال وي نو دهغه دَ پاره سوال کول جائز نه دي.
② د شوافع دَ بعضې کتابونو نه معلوميږي چه کوم سړي سره پنځوس درهم موجود وي دهغه دَ پاره سوال کول حرام دي.
③ بعضې دَ خلوېښتو درهمو ذکر کړې دې په احاديثو کښې هم دَدې ذکر دې.
④ امام غزالي رحمه الله فرمائي چه کوم سړي بال بچ نه لري نو دهغه دَپاره دَ يوې ورځې او شپې خوراك نصاب دې او که دَ بال بچ والا دې نو بيا پنځوس درهم نصاب دې.
⑤ په دې باب کښې ذکرشوی احاديثو کښې بعضې کښې داسې حکم دې چه کله دَ قبيلې درې کسان ګواهي ورکړي چه فلانکې فقير او مفلس دې نو بيا سوال کول جائزدی ګنې نه دی جائز.
⑥ بعضې رواياتو کښې داسې ذکر دی که چرې غوښتل وی نو چرته دَنيك سړي دې غواړي.

**په اقوالو کښې تطبيق:-** دَ دې ټولو روايتونو دَ تطبيق دَ پاره امام طحاوي رحمه الله فرمائي چه دَ خلقو مختلف صورتونه او مختلف حالات وي. دَ چا دَ حال مطابق به دَ پنځوسو درهمو ضرورت وي او چاته به دَدې نه دَزيات ضرور وي. چاته به دَدې نه دَ کم ضرورت وي. دَ هرسړي دَ معروضي حالت لاندې به دَهغه دَ سوال دَ جواز او عدم جواز فيصله کولې شي.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[١٨٣٧] د درې کسانو دپاره د سوال کولو جواز**

١٨٣٧-(١)[١] ١ «عَنْ قَبِيصَةَ بْنِ مُخَارِقٍ قَالَ: ٢ تَحَمَّلْتُ حَمَالَةً، فَأَتَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- أَسْأَلُهُ فِيهَا، ٣ فَقَالَ: "أَقِمْ حَتَّى تَأْتِيَنَا الصَّدَقَةُ، فَنَأْمُرَ لَكَ بِهَا" ۴ ثُمَّ قَالَ: "يَا قَبِيصَةُ إِنَّ الْمَسْأَلَةَ لَا تَحِلُّ إِلَّا لِأَحَدِ ثَلَاثَةٍ: ۵ رَجُلٍ تَحَمَّلَ حَمَالَةً فَحَلَّتْ لَهُ الْمَسْأَلَةُ ۶ حَتَّى يُصِيبَهَا ثُمَّ يُمْسِكُ، ٧ وَرَجُلٍ أَصَابَتْهُ جَائِحَةٌ

---

[1] اخرجه مسلم في كتاب الزكاة/باب من تحل له المسألة (رقم ١٠٩ - (١٠٤٤) وابوداود في السنن كتاب الزكاة/باب ما تجوز فيه المسألة(رقم-١۶۴٠) والنسائي كتاب الزكاة/باب الصدقة لمن تحمل بحمالة(رقم-٢۵٨٠) والدارمي من كتاب الزكاة/باب من تحل له الصدقة(رقم-١٧٢٠) واحمد في المسند ۴٧٧/٣

اجْتَاحَتْ مَالَهُ، [٨] فَحَلَّتْ لَهُ الْمَسْأَلَةُ حَتَّى يُصِيبَ قِوَامًا مِنْ عَيْشٍ، [٩] أَوْقَالَ سِدَادًا مِنْ عَيْشٍ، [١٠] وَرَجُلٍ أَصَابَتْهُ فَاقَةٌ حَتَّى يَقُولَ ثَلَاثَةٌ مِنْ ذَوِي الْحِجَا مِنْ قَوْمِهِ: [١١] لَقَدْ أَصَابَتْ فُلَانًا فَاقَةٌ [١٢] فَحَلَّتْ لَهُ الْمَسْأَلَةُ حَتَّى يُصِيبَ قِوَامًا مِنْ عَيْشٍ، [١٣] أَوْقَالَ سِدَادًا مِنْ عَيْشٍ، [١٤] فَمَا سِوَاهُنَّ مِنَ الْمَسْأَلَةِ يَا قَبِيصَةُ سُحْتٌ، [١٥] يَأْكُلُهَا صَاحِبُهَا سُحْتًا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] قبیصه ﷜ ابن مخارق وايي [٢] چې ما د يو داسې قرضي ضمانت واغستلو چې د ديت د وجې څخه وو زه د رسول الله ﷺ په خدمت اقدس کې حاضر شوم او د حضور ﷺ څخه مې د قرض د ادائيګۍ د پاره د څه رقم يا مال سوال اوکړه [٣] نو حضور ﷺ وفرمايل چې څه ورځې انتظار اوکړه هر کله چې مونږ ته د زکوٰة مال راشي نو د هغې څخه به تاته د درکولو د پاره اووايو [٤] بيا حضور ﷺ وفرمايل اې قبيصه صرف درې قسمه خلقو ته سوال کول جائز دي [٥] ① يو خو د هغه سړي د پاره چې د چا د قرض ضامن جوړ شوي وي [په شرط د دې چې په غوښتلو کې مبالغه نه کوي] [٦] بلکه د دومره قدر مال سوال وکړي چې په هغې سره قرضه ادا کړي او د هغې څخه روسته يې بيا نه غواړي [٧] ② دويم د هغه سړي د پاره چې په څه آفت او مصيبت (مثلاً قحط او سيلاب وغيره) کې مبتلاء شي او د هغه ټول مال هلاك او ضايع شي [٨] نو هغه ته صرف دومره قدر غوښتل جائز دي چې په هغې سره د هغه د غذا او لباس ضرورت پوره شي [٩] يا وي فرمايل دومره وغواړي چې د هغه محتاجي لرې شي او د هغه د ژوند د پاره سهاره شي [١٠] ③ دريم د هغه سړي د پاره چې غني وي خو هغه ته څه داسې سخت حاجت پيښ شي چې ګاونډيان هم باندې پوهيږي [١١] چې واقعي هغه ته سخت حاجت پيښ شوي دي [١٢] نو د هغه د پاره دومره غوښتل جائز دي چې په هغې سره د هغه ضرورت پوره شي [١٣] يا وي فرمايل چې د هغې په وجه د هغه محتاجي لرې شي [او د هغه د ژوند سهاره شي] [١٤] اې قبيصه د دې دريو څخه علاوه بل چا ته سوال کول حرام دي [١٥] که يو سړي د دې دريو مجبوريانو څخه علاوه د سوال کولو سره د چا څخه څه اخلي اوخوري يې، نو هغه حرام خوري. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① أَقِمْ: امر دې د إِقَامَة نه، په معنی د الْبُثْ وَاصْبِرْ سره، يعنی صبر اوکړه ايسارشه، ② تَحَمَّلَ: ضامن جوړشو، ذمه واري ئې واخستله، ③ حَمَالَةٌ: بوج د قرض، ④ جَائِحَةٌ: أَيْ آفَةٌ وَحَادِثَةٌ: آسمانی آفت اومصيبت ته جائحه ونيلې شي. ⑤ اجْتَاحَتْ: أَيْ اسْتَأْصَلَتْ وَأَهْلَكَتْ: ټول مال ورله هلاک کړي. ⑥ قِوَامًا: هغه څيز چه هغه پرې خپل حاجت او ضرورت پوره کړې شي. ⑦ سِدَادًا: مَا يُسَدُّ بِهِ الْفَقْرُ: څه سره چه محتاجی لرې کيږی او حاجت پرې پوره کيږی، ⑧ ذَوِي الْحِجَا: أَيِ الْعَقْلِ الْكَامِلِ: عقلمند او هوښيار خلق، ⑨ فَاقَةٌ: حاجت، محتاجی، ⑩ سُحْتٌ: أَيِ الْحَرَامُ: حرام دی (سوال کول)، سحت په معنی د بوتللو سره دې داهم برکت ختموی ځکه ورته سحت ونيلې شوی دی.

**د راوي مختصر تعارف:** - نوم قبيصة دپلارنوم مخارق او کنيت ئی ابوبشر وو. دَ نسب سلسله ئی داسې ده قبيصة بن مخارق بن عبدالله بن شداد بن ربيعه بن نهيك بن حلال بن عامر الحلالی البصری. دَ خپلې قبيلې سره په وفدکښې راغلو مسلمان شو. دَ بصرې اوسيدونکې وو دَ هغه نه شپږ احاديث مروی دی په دې کښې يو په مسلم کښې او ابوداؤد او نسائی کښې هم دَ هغه نه څورروايتونه نقل شوی دی.

**تسهيلات: قوله: حَمَالَةً:**

دې جملې نه مراد هغه سړې دې چاچه د يوسړي ديت په خپله ذمه واخستو اوقرض دار کيدوسره ديواليه شو دې د ضرورت د حدپورې سوال کولې شي.

**[١٨٣٨] بغير مجبورئ د سوال کولو وعيد**

١٨٣٨–(¹)[٢] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢]«مَنْ سَأَلَ النَّاسَ أَمْوَالَهُمْ تَكَثُّرًا [٣] فَإِنَّمَا يَسْأَلُ جَمْرًا، [٤] فَلْيَسْتَقِلَّ أَوْلِيَسْتَكْثِرْ» . رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] کوم سړي چې محض د مال د زياتولو د پاره د خلقو د مال څخه څه غواړي [٣] نو هغه لکه چې د اور سکروټه غواړي [٤] اوس د هغه خوښه ده چه کم غواړي اوکه زيات. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① تَكَثُّرًا: أَيْ لِيَكْثُرَ مَالُهُ: چه مال ئې زيات شي، ② جَمْرًا: د اور سکروټه، ③ فَلْيَسْتَقِلَّ: نو (که خوښه ئې وي) کم دې کړي (أور)، ④ لِيَسْتَكْثِرْ: او (که خوښه ئې وي) نو زيات دې کړي (أور).

**تسهيلات:**

**قوله: فَإِنَّمَا يَسْأَلُ جَمْرًا:**

**د مال د زياتولو مطلب:** - د مال د اضافې مطلب دادې چې يو کس د خپل ضرورت او احتياج دپاره نه بلکه صرف ددې دپاره خلقو څخه سوال کوي چې دده په مال کښې اضافه اوشي.

**د حديث مطلب:** - ددې څخه مراد د دوزخ د اور سکروټه ده ددې مطلب دادې چې داسې کس چې دخپل حاجت پورا کولو دپاره نه بلکه صرف د مال د زياتوالي دپاره چا څخه سوال کوي نو دې به د خپل حرص او لالچ په وجه د دوزخ په اور کښې اچولې کيږي ډير يا لږ، نبي کريم ﷺ دتنبيه په طور اوفرمائيل. ددې وضاحت دادې چې بغير د ضرورت نه دخلقو نه سوال کول په آخرت کښې د نقصان او د ذلت اورسوائي باعث دي که د يو حقير او کم تر څيز دپاره سوا ل کوي او که د يو قيمتي او اعلی څيز دپاره سوال کوي.

**[١٨٣٩] د قيامت په ورځ د سوالګرو د حشر کيفيت**

١٨٣٩–(²)[٣] وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] «مَا يَزَالُ الرَّجُلُ يَسْأَلُ النَّاسَ [٣] حَتَّى يَأْتِيَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ لَيْسَ فِي وَجْهِهِ مُزْعَةُ لَحْمٍ» . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] عبد الله ابن عمر رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] کوم سړي چې هميشه د خلقو څخه سوال کوي [٣] هغه به د قيامت په ورځ په داسې حال کې وي چې د هغه په مخ به د غوښې يوه ټوټې نه وي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① مُزْعَةٌ: أَيْ قِطْعَةٌ يَسِيرَةٌ: دغوښې وړې ټکړې ته وائي.

---

(¹) اخرجه مسلم في كتاب الزكاة/باب كراهة المسألة للناس (رقم) ١٠٥ - (١٠٤١) وابن ماجة كتاب الزكاة/باب من سأل عن ظهر غنى (رقم-١٨٣٨)

(²) اخرجه البخاري في كتاب الزكاة/باب من سأل الناس تكثراً (رقم-١٤٧٤) ومسلم في كتاب الزكاة/باب كراهة المسألة للناس (رقم) ١٠٤ - (١٠٤٠) والنسائي كتاب الزكاة/باب الصدقة على الأقارب(رقم-٢٥٨٥) واحمد في المسند ١٥/٢

**تسهيلات:**

**قوله: لَيْسَ فِي وَجْهِهِ مُزْعَةُ لَحْمٍ:**

**د غوښې نه کیدو په مفهوم کښې دوه اقوال:-** ① یعنی په دنیا کښې ناجائز سوال کونکې سړې به د محشر میدان کښې داسې ذلیل اوخوار راځي چه د هغه په مخ باندې به غوښه نه وی لکه چه دا یو تعبیر اوکنایه ده د دغه سړی د ذلت او رسوایئی نه.

② بعضې شارحینو حضراتو دا په حقیقت باندې حمل کړې ده چه د قیامت په ورځ به د سوال کونکي په مخ باندې غوښه نه وی د کوم په وجه چه به د هغه د مخ د هډوکو ډهانچه ښکاری اود اهل محشر دپاره به د عبرت یوه نمونه جوړیږی. [ الکاشف ۴/ ۶۸.]

**[ ۱۸۴۰ ] په چمبړ(اصرار) سره د سوال کولو ممانعت**

۱۸۳۰-(¹) [۴] وَعَنْ مُعَاوِيَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] " «لَا تُلْحِفُوا فِي الْمَسْأَلَةِ، [۳] فَوَاللهِ لَا يَسْأَلُنِي أَحَدٌ مِنْكُمْ شَيْئًا [۴] فَتُخْرِجَ لَهُ مَسْأَلَتُهُ مِنِّي شَيْئًا وَأَنَا لَهُ كَارِهٌ [۵] فَيُبَارَكَ لَهُ فِيمَا أَعْطَيْتُهُ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] حضرت معاویه رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] په غوښتلو (سوال کولو) کې مبالغه مه کوئ [۳] قسم په الله په تاسو کې چې کوم سړي (د مبالغې سره) زما څخه څه غواړي [۴] نو زه هغه ته په دې حال کې څه ورکوم چې زه هغه ته ورکول بد ګڼم [۵] او ظاهره ده چې په داسې صورت کې دا څرنګه ممکنه ده چې کوم شې ما هغه ته ورکړې وي په هغې کې دې برکت وي. (مسلم)

**حل اللغات:-** ① لَا تُلْحِفُوا: أَيْ لَا تُبَالِغُوا: مبالغه مه کوئ، یعنی ډیرمنتونه مه پکښې مه کوئ. ② كَارِهٌ: بد ګڼم.

**تسهیلات: قوله: لَا تُلْحِفُوا فِي الْمَسْأَلَةِ:**

**دحدیث د بعضې جملو وضاحت:-** ① لَا تُلْحِفُوا: یعنی په غوښتلو کښې مبالغه کول لکه څنګه چې فرمان دې ﴿لَا يَسْأَلُونَ النَّاسَ إِلْحَافًا﴾ (بقرة ۲۷۳)

② أَعْطَيْتُهُ: یعنی په غوښتلو کښې څه برکت نه راځی یعنی دا نشی کیدې چې لاس خور کړی او سوال اوکړی او په دې مال کښې دې برکت هم راشی.

**[ ۱۸۴۱ ] د خپل محنت کټه خوړل اود سوال څخه ځان ساتل**

۱۸۳۱-(²) [۵] وَعَنِ الزُّبَيْرِ بْنِ الْعَوَّامِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] " «لَأَنْ يَأْخُذَ أَحَدُكُمْ حَبْلَهُ [۳] فَيَأْتِيَ بِحُزْمَةِ حَطَبٍ عَلَى ظَهْرِهِ فَيَبِيعَهَا [۴] فَيَكُفَّ اللهُ بِهَا وَجْهَهُ [۵] خَيْرٌ لَهُ مِنْ أَنْ يَسْأَلَ النَّاسَ أَعْطَوْهُ أَوْ مَنَعُوهُ» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

---

(¹) اخرجه مسلم فی کتاب الزکاة/باب النهی عن المسألة(رقم ۹۹ - (۱۰۳۸) والنسائی کتاب الزکاة/باب الإلحاف فی المسألة (رقم-۲۵۹۳) والدارمی من کتاب الزکاة/باب التشدید علی من یسأل وهو غنی(رقم-۱۶۸٤) واحمد فی المسند ۹۸/۱

(²) اخرجه البخاری فی کتاب الزکاة/باب الاستعفاف عن المسألة (رقم-۱٤۷۱) والنسائی کتاب الزکاة/باب الصدقة علی الأقارب(رقم-۲۵۸٤) وابن ماجة کتاب الزکاة/باب کراهیة المسألة(رقم-۱۸۳۶)

**ترجمه:**[١] زبیر بن عوام ﷺ راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل چې په تاسو کې یو سړی یوه رسۍ واخلي [٢] او د لرګو یو پیټی ترلو سره په شا راوړي او هغه خرچ کړي [٣] او الله ﷻ د دې په وجه د هغه عزت او ابرو برقرار وساتي (چې د سوال کولو سره نه پاتې کیږي) [٥] نو دا هغه د پاره د دې څخه بهتر دي چې هغه د خلقو څخه سوال کوي او خلق څه ورکړي یا یې ورنه کړي. (بخاري)

**حل اللغات:** - ① حَبْلَهُ: رسۍ، ② بِحُزْمَةٍ: د لرګو ګیډۍ، بار څومره چه په شا کولې شي. ③ حَطَبٍ: لرګی، ④ فَيَكُفَّ: نو بچ اوساتي.

**تسهیلات:**

**قوله:** لَأَنْ يَأْخُذَ أَحَدُكُمْ حَبْلَهُ فَيَأْتِيَ بِحُزْمَةِ حَطَبٍ عَلَى ظَهْرِهِ:

**د محنت او مزدورۍ عظمت:** - مطلب دا چه په اوږو باندې لرګي وغیره بوج اوچتولوسره مزدوري کول دې نه بهتر دي چه سړی د خلقو نه غوښتلوسره ګرځي او هر یو کس ته لاس خوروي. که څوك هغه ته څه ورکړي اوکه ورنه کړي اسلام یو مسلمان ته د عزت نفس او محنت درس ورکوي دا هم دهغي حصه ده.

**[١٨٤٢] د ورکونکي په اخستونکي باندې فوقیت**

١٨٣٢—(١)[٦] وَعَنْ حَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ قَالَ: [٢] «سَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَأَعْطَانِي، [٣] ثُمَّ سَأَلْتُهُ فَأَعْطَانِي، [٤] ثُمَّ قَالَ لِي: "يَا حَكِيمُ إِنَّ هَذَا الْمَالَ خَضِرٌ حُلْوٌ، [٥] فَمَنْ أَخَذَهُ بِسَخَاوَةِ نَفْسٍ بُورِكَ لَهُ فِيهِ، [٦] وَمَنْ أَخَذَهُ بِإِشْرَافِ نَفْسٍ لَمْ يُبَارَكْ لَهُ فِيهِ، [٧] وَكَانَ كَالَّذِي يَأْكُلُ وَلَا يَشْبَعُ، [٨] وَالْيَدُ الْعُلْيَا خَيْرٌ مِنَ الْيَدِ السُّفْلَى" [٩] قَالَ حَكِيمٌ: فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ وَالَّذِي بَعَثَكَ بِالْحَقِّ [١٠] لَا أَرْزَأُ أَحَدًا بَعْدَكَ شَيْئًا حَتَّى أُفَارِقَ الدُّنْيَا»، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**[١] حکیم ابن حزام ﷺ وایي [٢] چې ما (یو ځل) د رسول الله ﷺ څخه څه وغوښتل نو حضور ﷺ راکړل [٣] ما بیا دوباره وغوښتل نو حضور ﷺ هغه وخت هم راته عطا کړل [٤] بیا یې ماته وفرمایل چې اي حکیم! دا مال سبز او شیرین دي (یعني په نظر کې خوشنما او زړه ته لذت ورکونکي دي)[٥] کوم سړي چې دا مال بې پروایي سره (یعني بغیر د سوال کولو او بغیر د طمع او حرص) حاصلوي نو په هغې کې ورله برکت اچولې کیږي [٦] او څوك چې یې په طمع او حرص سره حاصلوي نو په هغې کې برکت نه وي [٧] او د هغه حالت د هغه سړي په شان وي چې طعام خو خوري خو د هغه نس (خیټه) نه ډکیږي (لکه چې د بې برکتي او د حرص د کثرت په وجه یې دا حال وي)[٨] او یاد لره دپاسه لاس (یعني نورو ته ورکونکی لاس) د لاندې لاس (یعنی د نور څخه غوښتونکي لاس) څخه بهتر دی [٩] حکیم ﷺ وایي

[١]) اخرجه البخاري في كتاب الزكاة/باب الاستعفاف عن المسألة (رقم-١٤٧٢) ومسلم في كتاب الزكاة/باب بيان أن اليد العليا خير من اليد السفلى، وأن اليد العليا هي المنفقة وأن السفلى هي الآخذة (رقم) ٩٦ - (١٠٣٥) والترمذي في السنن كتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب(رقم-٢٤٦٣) والنسائي كتاب الزكاة/باب مسألة الرجل في أمر لا بد له منه(رقم-٢٦٠١) والدارمي من كتاب الزكاة/باب التشديد على من يسأل وهو غني(رقم-١٦٨٤) واحمد في المسند ٤٣٤/٣

چې «د دې په اوريدو سره» ما عرض وکړو چې يا رسول الله ﷺ قسم دې په هغه ذات چې ته ﷺ يې د حق سره راليږلې يې [١٠] اوس به زه د هيچا څخه سوال ونه کړم تر دې چې زه د دې دنيا څخه جدا شم «يعني وفات شم» «بخاري مسلم»

**حل اللغات:** - ① خَضِرٌ: أَيْ طَرِيٌّ نَاعِمٌ: ترو تازه او خوندور. ② حُلْوٌ: أَيْ لَذِيذٌ: خوږ او مزيدار دې. ③ بُورِكَ: برکت به واچولې شي. ④ بِإِشْرَافٍ: أَيْ بِطَمَعٍ أَوْ حِرْصٍ: په طمع او لالچ سره، د نفس خوشحالولو دپاره. ⑤ يَدُ الْعُلْيَا: اى الْمُنْفِقَةُ: پورتنې لاس يعنى خرچ کونکې او ورکونکې لاس. ⑥ يَدِ السُّفْلَى: اى السَّائِلَةُ: لاندينې لاس يعنى غوښتونکې لاس. ⑦ لَا أَرْزَأُ: رَزَءَ يَرْزَءُ فتح يفتح نه دې. چاته تکليف ورکول پريشانه کول او سوال کولو سره دَ چا نه مال اخستل. ⑧ أُفَارِقَ: جدا شم، يعنى وفات شم.

**د راوي مختصر تعارف:** د حديث د راوى نوم حکيم، کنيت ابوالخالد دپلار نوم حزام دې دوى د قبيله قريشى اسدى سره تعلق ساتلو اود حضرت ام المؤمنين خديجې وراره وو.

د فيل د واقعه نه ١٣ کاله وړاندې پيدا شوې وو. د جاهليت او اسلام په دواړو زمانو کښې ورته ډير دعزت په نظر سره کتلې شو. روستو ددوى اسلام ډيرښه وو. اوپه صحابؤ کښې ډيره زيرک، پوهه، دلاور او پرهيزګار وو. په شروع کښې په مؤلفة القلوب کښې وو. په زمانه د جاهليت کښې ئې سل غلامان آزاد کړى وو اوبيا د اسلام قبلولو نه پس ئې هم سل غلامان آزاد کړل

**وفات:** - ٥٤ هجرى کښې د ١٢٠ کالو په عمر کښې په مدينه منوره کښې په خپل کور کښې وفات شو د دوى د ژوند سره عجيبه خبره دا ده چه په يوسل شل کاله عمر کښې ئې شپيته کاله په جاهليت کښې تير کړى وو او شپيته کاله ئې په اسلام کښې تير کړل

**مرويات:** - د وى نه ٤٠ احاديث منقول

دى په څلور احاديثو کښې بخارى او مسلم متفق دى (١)

**تسهيلات:**

**قوله:** بِسَخَاوَةِ نَفْسٍ: دادَ بې نيازئى نه کنايه ده چه په زړه کښې دَ چانه څه غرض نه لرى.

**قوله:** بِإِشْرَافِ نَفْسٍ: دادَ حرص اولالچ نه کنايه ده چه دَ سينې دننه لکه چه دَ ده زړه په کتوسره طمع او لالچ کوى.

**[١٨٤٢] د پورتنى لاس د ښکتنى لاس څخه غوره والى**

١٧٣٣ - (٢)[٤] [١] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ «أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ وَهُوَ عَلَى الْمِنْبَرِ [٢] وَهُوَ يَذْكُرُ الصَّدَقَةَ وَالتَّعَفُّفَ عَنِ الْمَسْأَلَةِ: [٣] "الْيَدُ الْعُلْيَا خَيْرٌ مِنَ الْيَدِ السُّفْلَى، [٤] وَالْيَدُ الْعُلْيَا هِيَ الْمُنْفِقَةُ [٥] وَالسُّفْلَى هِيَ السَّائِلَةُ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

(١) روضة الصالحين (٢٠٨/١١)۔

(٢) اخرجه البخارى فى كتاب الزكاة/باب لا صدقة إلا عن ظهر غنًى (رقم-١٤٢٩) ومسلم فى كتاب الزكاة/باب بيان أن اليد العليا خير من اليد السفلى، وأن اليد العليا هى المنفقة وأن السفلى هى الآخذة (رقم) ٩٤ - (١٠٣٣) وابوداود كتاب الزكاة/باب فى الاستعفاف(رقم-١٦٤٨) والنسائى كتاب الزكاة/باب اليد السفلى (رقم-٢٥٣٣) ومالك فى الموطا كتاب الصدقة /باب ما جاء فى التعفف عن المسألة(رقم-٨) واحمد فى المسند ٦٧/٢

**ترجمه:** [١] ابن عمر ﷺ راوي دي چې رسول الله ﷺ په هغه موقعه باندې چې په منبر وو [٢] او د صدقې ذکر يې کولو او د سوال څخه د ځان ساتلو په باره کې يې خطبه ورکوله دا ارشاد يې وفرمايلو [٣] چې دپاسه لاس د لاندې لاس څخه بهتر دې [۴] دپاسه لاس خرچ کونکي (خلقو ته ورکونکي) لاس دي [۵] او لاندې لاس غوښتونکي (يعني د سوالګري لاس) دي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① التَّعَفُّفَ: هُوَ الْكَفُّ عَنِ الْحَرَامِ: د حرام (سوال وغيره) نه ځان ساتل.

**[١٨٤٤] د سوال نه کولو فضيلت**

[٨] ()[١٨٤٤] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: [٢] «إِنَّ أُنَاسًا مِنَ الْأَنْصَارِ سَأَلُوا رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَأَعْطَاهُمْ [٣] ثُمَّ سَأَلُوهُ فَأَعْطَاهُمْ حَتَّى نَفِدَ مَا عِنْدَهُ [۴] فَقَالَ: "مَا يَكُونُ عِنْدِي مِنْ خَيْرٍ فَلَنْ أَدَّخِرَهُ عَنْكُمْ [۵] وَمَنْ يَسْتَعِفَّ يُعِفَّهُ اللهُ [٦] وَمَنْ يَسْتَغْنِ يُغْنِهِ اللهُ [٧] وَمَنْ يَتَصَبَّرْ يُصَبِّرْهُ اللهُ [٨] وَمَا أُعْطِيَ أَحَدٌ عَطَاءً هُوَ خَيْرٌ وَأَوْسَعُ مِنَ الصَّبْرِ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] ابو سعيد خدري ﷺ وايي [٢] چې يوه ورځ په انصارو کې څو سړو د حضور ﷺ څخه څه وغوښتل، حضور ﷺ هغوئ ته ورکړل [٣] هغوئ بيا وغوښتل حضور ﷺ بيا ورکړل تر دې چې د حضور ﷺ سره چې څه ووهغه ټول ختم شو [۴] د دې څخه روسته حضور ﷺ وفرمايل ما سره چې څه مال هم وي ستاسو څخه يې منع کولو سره نه ذخيره کوم [۵] (او ياد لرئ) کوم سړي چې د خلقو څخه د سوال کولو څخه ځان ساتي خداي ﷻ هغه (د خرابو ځيزونو څخه) ساتي [او هغه خلقوته نه محتاج کوي دغه شان د هغه خود داري باقي ساتي] [٦] او کوم سړي چې په انتهايي معمولي شي باندې قناعت کوي او د چا څخه سوال نه کوي نو الله ﷻ هغه ته قناعت آسانوي. [٧] او څوک چې (د سوالوکولو څخه) صبر کوي (او د سوال څخه ځان بچ کوي (نو الله هغه ته د صبر توفيق ورکړي) او څوک چه صبر اوکړي نو الله ﷻ هغه ته صبر ورکوي (يعني کوم سړي چې د الله ﷻ څخه د صبر د توفيق طلب کوي الله ﷻ د هغه د پاره صبر آسانوي) [٨] او ياد لرئ چې د صبر څخه زيات بهتر او وسيع هيڅ يو بل شي چا ته نه دي عطا شوي (يعني د الله ﷻ په ټولو عطايا او بخشش کې صبر د ټولو څخه بهتره ورکړه ده) (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① نَفِدَ: أَيْ فَنِيَ: يعنى ختم شو. ② أَدَّخِرَهُ: ذخيره نې کړم ③ يَسْتَعِفَّ: سوال نه ځان ساتل، ④ يَسْتَغْنِ: ځان مستغنى ګڼړی، بې پرواه شی ⑤ يَتَصَبَّرْ: ځان صبر کوی (د سوال نه) ⑥ عَطَاءً: څه ورکړه، بخشش.

**تسهيلات:**

**نوټ:** - د دې حديث شرح په د بل حديث په تسهيل کښې ذکر ده.

[1] اخرجه البخاري في كتاب الزكاة/باب الاستعفاف عن المسألة (رقم-١٤٦٩) ومسلم في كتاب الزكاة/باب فضل التعفف والصبر (رقم) ١٢٤ - (١٠٥٣) وابوداود كتاب الزكاة/باب في الاستعفاف(رقم-١٦٤٤) والترمذي كتاب البر والصلة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في الصبر(رقم-٢٠٢٤) والنسائي كتاب الزكاة/باب الاستعفاف عن المسألة(رقم-٢٥٨٨) والدارمي من كتاب الزكاة/باب في الاستعفاف عن المسألة(رقم-١٦٨٦) ومالک في الموطا كتاب الصدقة /باب ما جاء في التعفف عن المسألة(رقم-٧) واحمد في المسند ١٢/٣

**[١٨٤٥] بغير د طمعې څخه د حاصليدونكې څيز قبلول**

١٨٤٥—( )[٩] [١] وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ، قَالَ: [٢] «كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يُعْطِينِي الْعَطَاءَ، فَأَقُولُ: [٣] أَعْطِهِ أَفْقَرَ إِلَيْهِ مِنِّي، [٤] فَقَالَ: "خُذْهُ، فَتَمَوَّلْهُ وَتَصَدَّقْ بِهِ، [٥] فَمَا جَاءَكَ مِنْ هَذَا الْمَالِ وَأَنْتَ غَيْرُ مُشْرِفٍ وَلَا سَائِلٍ فَخُذْهُ [٦] وَمَا لَا فَلَا تُتْبِعْهُ نَفْسَكَ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] حضرت عمر ابن خطاب ﷺ وايي [٢] چې حضور ﷺ چې به ماته د زكوة د وصولولو اجرت راكولو نو ما به عرض كولو [٣] چې دا هغه چاته وركړه چې زما څخه زيات محتاج وي [٤] حضور ﷺ به په جواب كې فرمايل كه تا ته حاجت او ضرورت وي نو دا واخله په خپل مال كې يې شامل كړه او كه د حاجت او ضرورت څخه زيات وي نو خپله يې د الله ﷻ په لار كې خيرات كړه [٥] (او دا به يې هم فرمايل) او كوم شي چې تا ته بغير د څه طمع او حرص او بغير د غوښتلو حاصل شي هغه قبول كړه [٦] او كوم شي چې دغه شان يعنى بغير طمع او حرص او بغير سوال څخه په لاس رانشي نو په هغې پسې مه ورپسې كيږه. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① الْعَطَاءَ: بخشش، وركړه، ② أَفْقَرَ: أَيْ: أَحْوَجَ: چه زيات حاجت مند وى. ③ فَتَمَوَّلْهُ: أَيْ: اقْبَلْهُ وَأَدْخِلْهُ فِي مَالِكَ: يعنى دا زكوة قبول كړه او خپل مال كښې ئې شامل كړه. ④ غَيْرُ مُشْرِفٍ: أَيْ بِغَيْرِ طَمَعٍ أَوْ حِرْصٍ: دطمع او لالچ نه بغيء، د نفس خوشحالولو دپاره نه وى،

**تسهيلات:**

**قوله: وَأَنْتَ غَيْرُ مُشْرِفٍ وَلَا سَائِلٍ فَخُذْهُ:**

**د مذكوره جملې مطلب:-** د دې جملې مطلب دادې چې كوم څيز بغير د طمعې او حرص او غوښتلو څخه حاصل نشى نو دهغې د حاصلولو دپاره طمع مه كوئى او نه دهغې انتظار كښې اوسئ لكه څنګه چې وئيلې كيږى (لاردولاكن).

**بغير طمعې حاصليدونكې څيزونه واپس كول:-** په يو بل حديث مبارك كښې منقول دى چې كوم كس ته څه مال يا يو څيز بغير د طمعې او حرص څخه حاصل شو او هغه دې واپس كړى نو داداسې دى لكه چې ده دا څيز الله ﷻ ته واپس كړو يعنى ده دالله ﷻ د نعمت ناشكرى اوكړه

**د نصيحت نه ډكه يوه واقعه:-** منقول دى چې يو ځل حضرت امام احمد ﷫ بازار ته لاړو او هلته دوئ څه سامان واخستو دا بنان جلال (مزدور) رااوچت كړواو حضرت امام احمد ﷫ سره ئې كور ته راوړو هر كله چې دوئ كور ته داخل شو نو څه كورى چې روټى د پخيدو دپاره اينبودې شوى وې حضرت امام صاحب ﷫ خپل خوئ ته اووئيل چې يوه روټى بنان ته وركړه ددوئ خوئ چې كله بنان ته روټى وركوله نو هغه انكار اوكړو .كله چې بنان د كور نه بهر شو او واپس لاړو نو حضرت امام صاحب ﷫ خپل خوئ ته اووئيل چې ده پسې ورشه او روټى ورته وركړه ددوئ خوئ بهر لاړو او روټى ئې ورته وركړه او هغه زر واخستله

[١] اخرجه البخارى فى كتاب الزكاة/باب من أعطاه الله شيئًا من غير مسألة ولا إشراف نفس {وفى أموالهم حق للسائل والمحروم} [الذاريات: ١٩] (رقم-١٤٧٣) ومسلم فى كتاب الزكاة/باب إباحة الأخذ لمن أعطى من غير مسألة ولا إشراف (رقم) ١١٠ (١٠٤٥) والنسائى كتاب الزكاة/باب من آتاه الله عز وجل مالًا من غير مسألة(رقم-٢٦٠٨)واحمد فى المسند ١٧/١

هغوئ ډير حيران شو چې اول ئې انکار اوکړو او اوس ئې روټۍ واخسته آخر په دې کښې څه قصه ده هغه د حضرت امام احمد رحمه الله نه دې باره کښې تپوس اوکړو نو امام صاحب رحمه الله ورته اوفرمائيل چې کله بنان کور ته داخل شو نو هغه د خوراك يو ښکلې څيز اوليدو دبشرى تقاضې مطابق د هغه په زړه کښې ددې خواهش پيدا شو او په زړه کښې ئې ددې طمع پيدا شوه په دې وجه چې کله ورته تا روټۍ ورکړه نو هغه دا اونه غوښتل چې د خپل طمعې او خواهش تابعداري اوکړي نو د روټۍ اخستلو څخه ئې انکار اوکړو خو کله چې هغه بهر لاړو او ددې روټۍ څخه ئې طمع قطعی شوه او بيا تا هغه روټۍ ورکړه نو اوس چونکه هغه ته دا روټۍ بغير د طمعې او خواهشه په غير متوقع طريقې سره حاصله شوه په دې وجه هغوئ دا دالله ﷻ نعمت اوګنړلو او زړئې قبول کړه.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [١٨٤٦] د ضرورت په وخت د مالدار څخه د سوال کولو جواز

١٨٤٦–()[١٠] ١ عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ٢ «اَلْمَسَائِلُ كُدُوحٌ يَكْدَحُ بِهَا الرَّجُلُ وَجْهَهُ، ٣ فَمَنْ شَاءَ أَبْقَى عَلَى وَجْهِهِ وَمَنْ شَاءَ تَرَكَهُ ٤ إِلَّا أَنْ يَسْأَلَ الرَّجُلُ ذَا سُلْطَانٍ أَوْفِي أَمْرٍ لَا يَجِدُ مِنْهُ بُدًّا» . رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ١ سمره ابن جندب رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ سوال کول يو زخم دي چې د هغې په ذريعه انسان خپل مخ زخمي کوي (په دې طور چې د چا په مخکې لاس نيول خپل آبرو او عزت په خاورو کې يو ځاي کول دي چې دا د خپل مخ زخمي کولو برابر دي) ٣ کوم سړي چې خپل عزت باقي ساتل غواړي [هغه دی د سوال کولو څخه شرم وکړي [او د چا په مخکې د لاس نه غوړولو سره دې خپل عزت باقي وساتي] او که يو سړی خپله آبرو باقي ساتل نه غواړي نو [د خلقو په مخکې دی د لاس په غزولو سره] خپل عزت په خاورو کې يو ځاي کړي [يعنی هغه دي باقي نه ساتي دا لکه چې د سوال کونکي د پاره تهديد او تنبيه ده چې د چا څخه سوال کول نه دي پکار] ٤ خو که سوال کول وي نو بيا د حاکم څخه دي سوال وکړي يا په داسې صورت کې دي سوال وکړي چې د هغه د پاره څه واقعي ضرورت او مجبوري وي. (ابوداؤد، ترمذي، نسايي)

**حل اللغات:-** ① كُدُوحٌ: الْجَرْحِ: زخم، د كَدَحَ يَكْدَحُ فَتَحَ يَفْتَحُ نه دَمخ خراش زخمونوته وائی. دَخپلو لاسونو په نوکونو سره خپل مخ پرې کولوسره زخمی کول مراد دی. ② بُدًّا: د خلاصون څه لار او علاج،

**تسهيلات:**

**قوله: ذَا سُلْطَانٍ:**

دې نه دَ ملك لوئی حاکم هم مراد کيدې شی اودَ لوئی حاکم نائب وړوکی حکمرانان مثلاً ګورنر يا وزير يا قاضی هم مراد اخستې شی.

---

[1] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الزكاة/باب ما تجوز فيه المسألة(رقم-١٦٣٩) والترمذی کتاب الزكاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی النهی عن المسألة(رقم-٦٨١) والنسائی کتاب الزكاة/باب مسألة الرجل ذا سلطان(رقم-٢٥٩٩) واحمد فی ا لمسند ٢٢/٥

**قوله**: إِلَّا أَنْ يَسْأَلَ الرَّجُلُ ذَا سُلْطَانٍ:

**دحدیث مطلب**:- دَحدیث مطلب دادي چه که ته هم سوال کول غواړي نوبیا کم نه کم داسې سړی نه کوه په چاچه ستاحق هم وی اوهغه حاکم یا دَ هغه نائب خلق دی. دچا په تصرف کښې چه بیت المال وی او په بیت المال کښې دَهرمسلمان حق دي. که چرې هغه تا مستحق ګڼړی نو دربه کړی.

**دحاکمانوڅخه د هدیه قبلولو دوه شرطونه**:- دَ حکام ورکړه قبلولوکښې دَدوو خبرو خیال ساتل ضروری دی. ① بیت المال کښې که چرې حرام مال زیات وی نودَ هغه نه غوښتل یا دَ هغه ورکړه قبلول حرام دی اوکه چرې حلال مال زیات وی نوبیا قبلول جائز دی.
② په دې ورکړه سره دَ سړی مذهبی آزادی اودَ حق آواز اوچتولو باندې څه قدغن نه لګی.

[١٨٤٧] بغیرد مجبورۍ څخه په سوال کولو باندې وعید

١٨٣٧-(١)[١١] ١ وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ٢ " «مَنْ سَأَلَ النَّاسَ وَلَهُ مَا يُغْنِيهِ ٣ جَاءَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَمَسْأَلَتُهُ فِي وَجْهِهِ خُمُوشٌ أَوْ خُدُوشٌ أَوْ كُدُوحٌ "، ٤ قِيلَ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ وَمَا يُغْنِيهِ؟ ٥ قَالَ: " خَمْسُونَ دِرْهَمًا أَوْ قِيمَتُهَا مِنَ الذَّهَبِ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه**: ١ حضرت عبد الله ابن مسعود رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل ٢ کوم سړي چې د خلقو څخه د یو داسې شي په موجودګۍ کې سوال کوي چې هغه لره مستغني جوړونکي وي ٣ نو هغه به د قیامت په ورځ په داسې حال کې پیښ شي چې د هغه په مخ به د هغه سوال په صورت د خموش یا خدوش یا کدوح کښې وي ٤ عرض وشو چې یا رسول الله! صلی الله علیه وسلم مستغني جوړونکي څه ځیز دي؟ ٥ حضور صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل پنځوس درهم یا د دې د قیمت زر سره. (ابوداؤد، ترمذي، نسایي، ابن ماجه، دارمي)

**حل اللغات**:- ① مَا يُغْنِيهِ: چه دده دپاره کافی وی او د سوال نه ئې بې پرواه کوی، ② خُمُوشٌ أَوْ خُدُوشٌ أَوْ كُدُوحٌ: دا درې واړه قریب المعنٰی دی، زخم ته وائی، فرق صرف دا دې چه خمش هغه زخم چه په مخ کښې وی، او خدش چه په نوره څرمن کښې وی، او کدح چه د څرمن دپاسه وی.

**تسهیلات**: **نوټ**:- ددې حدیث شرح په د بل حدیث په تسهیل کښې ذکر ده.

[١٨٤٨] دغنی پیژندګلو

١٨٣٨-(٢)[١٢] ١ وَعَنْ سَهْلِ بْنِ الْحَنْظَلِيَّةِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ٢ " «مَنْ سَأَلَ وَعِنْدَهُ مَا يُغْنِيهِ، فَإِنَّمَا يَسْتَكْثِرُ مِنَ النَّارِ» ٣ " قَالَ النُّفَيْلِيُّ وَهُوَ أَحَدُ رُوَاتِهِ فِي مَوْضِعٍ آخَرَ ٤ " وَمَا الْغِنَى الَّذِي لَا تَنْبَغِي مَعَهُ الْمَسْأَلَةُ؟ ٥ قَالَ: قَدْرُ مَا يُغَدِّيهِ وَيُعَشِّيهِ " ٦ وَقَالَ فِي مَوْضِعٍ آخَرَ " أَنْ يَكُونَ لَهُ شِبَعُ يَوْمٍ أَوْ لَيْلَةٍ وَيَوْمٍ ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: ١ سهل ابن حنظلیه رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل ٢ د کوم سړي سره

---

[١] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الزکاة/باب من یعطی من الصدقة، وحد الغنی (رقم-١٦٢٦) والنسائی کتاب الزکاة/باب حد الغنی (رقم-٢٥٩٢) وابن ماجه کتاب الزکاة/باب من سأل عن ظهر غنی (رقم-١٨٤٠)

[٢] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الزکاة/باب من یعطی من الصدقة، وحد الغنی (رقم-١٦٢٩) واحمد فی المسند ١٨٠/٤

چې دومره مال وي چې هغه مستغني کړي خو هغه د دې باوجود د خلقو څخه سوال کوي نو لکه چې هغه د اور زياتوالي غواړي [يعنی کوم سړي چې بغير د ضرورت او حاجت د خلقو څخه په غوښتلو غوښتلو سره مال وزر جمع کوي نو هغه لکه چې د دوزخ اور جمع کوي] [٣] نفيلي رحمه الله چې د دې حديث د راويانو څخه يو راوي دې په يو بل ځاي (يعني په يو دويم روايت) کې نقل کوي [٤] چې [د حضور ﷺ څخه پوښتنه وشوه چې] د مستغني کيدو څه حد دې چې د هغې په موجودګي کې د نورو خلقو څخه غوښتل ممنوع دي؟ [٥] حضور ﷺ ورته وفرمايل چې د سحر او ماښام په قدر خوراك، [٦] نفيلي رحمه الله يو بل ځاي (د حضور ﷺ جواب داسې نقل) کړې دې چې د هغه سره د يوې ورځې يا يوې شپې او ورځ په قدر خوراك وي راوي ته شك دې چې حضور ﷺ يواځې يوه ورځ فرمايلې ده يا يوه شپه او يوه ورځ يې فرمايلې ده. (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ① مَا يُغْنِيهِ: دومره مال چه دده دپاره کافي وی چه دسوال نه پرې بچ کيدې شی. ② يَسْتَكْثِرُ: نودې زياتوالي کوی (د اور). ③ يُغَدِّيهِ: إِطْعَامُ طَعَامِ الْغُدْوَةِ: په چا باندې دسحر روټۍ خوړل. ④ يُعَشِّيهِ: إِطْعَامُ طَعَامِ الْعَشَاءِ: په چا باندې د ماسخوتن روټۍ خوړل. ⑤ شِبَعٌ: مَا يُشْبِعُهُ مِنَ الطَّعَامِ: څومره خوراک چه دده د مړيدلو د پاره کافي وی.

**تسهيلات:**

**قوله: مَا يُغَدِّيهِ وَيُعَشِّيهِ:**

**د رواياتو په مينځ کښې د تعارض دفع:-** يعني چه دَ سحراوماښام دَ خوراك په اندازه سامان موجودوی نوسوال کول حرام دی لکه څنګه چه وړاندې ليکلې شوی دی چه دَ خلقودَ احوالو مختلف کيدو دَ وجې نه په احاديثوکښې غنی اوفقير په بيان کښې فرق راغلې دې داڅه حقيقي تضاد يا تعارض نه دې. دَحضرت ابن مسعود رضی الله عنه په روايت کښې مستغنی کيدودَپاره دَ پنځوس دراهم ذکردې.

**د سوال د جواز دپاره د ماليت په مقدار کښې فقهاؤ مذاهب:-**

① امام احمدبن حنبل، عبدالله بن مبارك اواسحاق بن راهويه رحمهم الله هم په دې روايت باندې عمل کړې دې اودا ئی خپل مسلك جوړکړې دې.

② امام ابوحنيفه رحمه الله زيربحث دَ حضرت سهل بن حنظلية رضی الله عنه روايت خپل مسلك قائم کړې دې.

③ بعضې علماؤ دَ عطاء بن يسار رحمه الله روايت معمول به جوړکړې دې په کوم کښې چه دَ څلويښت دراهم ذکردې.

**[١٨٤٩] د مالدار د مالداری حد**

١٨٤٩-(١)[١٣] [١] وَعَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ بَنِي أَسَدٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [٢] «مَنْ سَأَلَ مِنْكُمْ، وَلَهُ أُوقِيَّةٌ أَوْ عِدْلُهَا، [٣] فَقَدْ سَأَلَ إِلْحَافًا». رَوَاهُ مَالِكٌ وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ.

---

[١]) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الزكاة/باب من يعطى من الصدقة، وحد الغنى (رقم-١٦٢٧) والنسائي كتاب الزكاة/باب إذا لم يكن له دراهم وكان له عدلها(رقم-٢٥٩٦) واحمد في المسند ٤٣٠/٥

**ترجمه:** [١] عطاء ابن يسار د قبيلهٔ بني اسد د يو سړي څخه نقل کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] په تاسو کې چې کوم سړي د يو اوقيه (يعني څلوېښت درهم) يا د دې د قيمت په قدر دسرو زرو وغيره مالك وي او د دې باوجود هغه د خلقو څخه غواړي [٣] نو هغه بطريق الحاف (يعني هغه د څه مجبوري څخه بغير) سوال وکړو. (مالك، ابوداؤد، نسايي)

**حل اللغات:** - ① أُوقِيَّةٌ: دچاندۍ روپۍ ده د څلوېښت درهمو برابر وی. ② إِلْحَافًا: أَيْ: إِلْحَاحًا وَإِسْرَافًا مِنْ غَيْرِ اضْطِرَارٍ: يعنی په منت زارۍ او اسراف سره ئې بغير د مجبورۍ نه سوال اوکړو.

**تسهيلات: قوله:** عَنْ رَجُلٍ مِنْ بَنِي أَسَدٍ:

**د رجل په جهالت عدم جرح:** - دلته ئې نوم پټ ساتلې دې په دې سره په هغه صحابی څه قدح نه لازميږي لأن الصحابة كلهم عدول.

**قوله:** وَلَهُ أُوقِيَّةٌ أَوْ عَدْلُهَا، فَقَدْ سَأَلَ إِلْحَافًا:

**په رواياتو کښې تعارض:** - ماقبل کښې د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه حديث مبارك کښې د غنى کيدو دپاره مقدار پنځوس درهم ذکر کړې شوی دی او د سهل بن الحنظلية رضي الله عنه په حديث مبارك کښې د غنى کيدو دپاره مقدار شپه ورځ په مړهٔ خيټه خوراك كول دی او په دې مذكوره حديث پاك کښې د اوقيه مقدار په اندازه غنى کيدو ذکر دې نو په دې درې واړه رواياتو کښې په ظاهره تعارض په نظر راځی؟

**د تعارض څخه درې جوابونه:** - ① امام احمدبن حنبل دا درې واړه روايات په ابتداء اسلام باندې حمل کړی دی.اوآخری خبره د يوې ورځې کفاءت دې يعنی چا سره چې د يوې ورځې په اندازه خوراک موجود وی دهغه دپاره سوال کول جائز نه دې.

② داوقيه او خمسون درهما حديثونه منسوخ دی او د دې دپاره ((من سأل الناس وعنده عدل خمس فقد سأل الحافا)) حديث ناسخ دې.

③ د روايت زياته حصه د بل روايت په زياته حصې سره منسوخ شوه او باقی حکم تدريجا، يعنی اول حرمت د پنځوس دراهم لرونکو دپاره بيا د څلوېښتو دراهم لرونکو دپاره او بيا په آخر کښې د يوې ورځې شپې خوراک باندې قدرت لرونکو دپاره د سوال کولو حرمت نازل شو.

### [١٨٥٠] د مجبورۍ په وخت کښې د سوال کولو جواز

١٨٥٠-(١)[١٣] [١] وَعَنْ حُبْشِيِّ بْنِ جُنَادَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] "«إِنَّ الْمَسْأَلَةَ لَا تَحِلُّ لِغَنِيٍّ [٣] وَلَا لِذِي مِرَّةٍ سَوِيٍّ [٣] إِلَّا لِذِي فَقْرٍ مُدْقِعٍ، [٥] أَوْ غُرْمٍ مُفْظِعٍ، [٦] وَمَنْ سَأَلَ النَّاسَ لِيُثْرِيَ بِهِ مَالَهُ [٧] كَانَ خُمُوشًا فِي وَجْهِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، [٨] وَرَضْفًا يَأْكُلُهُ مِنْ جَهَنَّمَ، [٩] فَمَنْ شَاءَ فَلْيُقِلَّ، وَمَنْ شَاءَ فَلْيُكْثِرْ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [١] حبشي ابن جناده رضي الله عنه روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] نه خو د غني د پاره غوښتل حلال دي (يعني د هغه سړي د پاره چې د يوي ورځي د خوراك مالك وي) [٣] او

(١) اخرجه الترمذي في السنن كتاب الزكاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب من لا تحل له الصدقة(رقم-٦٥٣)

نه د تندرست او توانا او صحیح الاعضاء د پاره غوښتل حلال دي [۴] هود هغه فقیر د پاره غوښتل حلال دي چې فقر وفاقې په زمکه غورځولی وي [۵] دغه شان هغه قرضداري د پاره هم غوښتل حلال دي چې د دروند قرض لاندې راغلی وي [٦] (یاد لرئ) کوم سړي چې یواځې د دې د پاره د خلقو څخه غواړي چې د هغه په مال وزر کې زیاتوالی اوشي [٧] نو د قیامت په ورځ به د هغه غوښتل د هغه په مخ د زخم په صورت کې وي [٨] او په دوزخ کې به دا ګرم کاڼي خپل خوراك جوړ کړې شي چې هغه به یې خوري [٩] نواوس چې دچاخوښه وي کم سوال دې وکړي او دچاخوښه وي زیات سوال دې وکړي. (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① ذِيْ مِرَّةٍ: اى ذِى الْقُوَّةِ: چه طاقت ئې وى، مراد دا چه دَ بیمارئى نه خالى وى. ② سَوِيٍّ: أَيْ صَحِيحِ الْبَدَنِ: بدن ئې صحیح وى، اندامونه ئې پوره وى. (یعنى محنت مزدورى کولې شى). ③ مُدْقِعٍ: وَهُوَ التُّرَابُ: دَ باب افعال نه دې دقعاء خاورې ته وائى یعنى چه دومره سخت فقیر وى چه دهغه فقر هغه په خاورو کښې ملاؤ کړې وى. ④ غُرْمٍ: أَيْ: دَيْنٍ: یعنى قرضدارې وى. ⑤ مُفْظِعٍ: أَيْ: شَنِيعٍ مِثْقَالٍ: ډیر خراب او دروند قرض وى چه سړې د ویرې سره مخامخ کوى یعنى تباه کونکې قرض وى. ⑥ يُثْرِيَ: اى ليكثرماله: یعنى ذخیره کول اومال زیاتولودپاره سوال کوى. ⑦ خُمُوشًا: په مخ به ئې زخمونه وى. ⑧ رَضْفًا: أَيْ: حَجَرًا مُحْمِيًا: هغه کاڼړې چه په اور کښې ښه ګرم کړې شوې وى یعنى ګرم واړه کاڼړى به خورى.

**تسهیلات:**

**نوټ:** - ددې حدیث شرح په د بل حدیث په تسهیل کښې ذکر ده.

**[۱۸۵۱] دَخپل لاس کټې برکت**

١٨٥١ - ( )[١٥] [١] وعَنْ أَنَسٍ «أَنَّ رَجُلًا مِنَ الْأَنْصَارِ أَتَى النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَسْأَلُهُ، [٢] فَقَالَ: "أَمَا فِي بَيْتِكَ شَيْءٌ؟"، [٣] فَقَالَ: بَلَى حِلْسٌ نَلْبَسُ بَعْضَهُ، وَنَبْسُطُ بَعْضَهُ [۴] وَقَعْبٌ نَشْرَبُ فِيهِ مِنَ الْمَاءِ، [۵] قَالَ: "ائْتِنِي بِهِمَا" فَأَتَاهُ بِهِمَا، [٦] فَأَخَذَهُمَا رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِيَدِهِ، وَقَالَ: "مَنْ يَشْتَرِي هَذَيْنِ؟". [٧] قَالَ رَجُلٌ: أَنَا آخُذُهُمَا بِدِرْهَمٍ، [٨] قَالَ: "مَنْ يَزِيدُ عَلَى دِرْهَمٍ؟" مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلَاثًا، [٩] قَالَ رَجُلٌ: أَنَا آخُذُهُمَا بِدِرْهَمَيْنِ، فَأَعْطَاهُمَا إِيَّاهُ، [١٠] فَأَخَذَ الدِّرْهَمَيْنِ، فَأَعْطَاهُمَا الْأَنْصَارِيَّ،

**ترجمه:** [١] حضرت انس ﷺ وایي چې یوه ورځ د انصارو څخه یو سړي د نبي کریم ﷺ په خدمت کې راغې او د څه شي سوال یې اوکړو [٢] حضور ﷺ هغه ته وفرمایل چې آیا تا سره په کورکړي هیڅ هم نشته؟ [٣] هغه عرض وکړو صرف یو غټ کمبل دي چې د هغې څه حصه دپاسه ځان باندې اچوو او څه حصه لاندې خوروو [۴] د دې څخه علاوه یوه پیالې هم شته چې په هغې کې اوبه څښو [۵] حضور ﷺ ورته وفرمایل دا دواړه ځیزونه ماته راوړه، هغه دواړه ځیزونه په خدمت کې پیش کړل [٦] حضور ﷺ هغه دواړه ځیزونه په خپل لاس مبارك کې اخستو سره وفرمایل دا ځیزونه څوك اخلي؟ [٧] یو سړي اوویل زه دا دواړه ځیزونه په یو درهم اغستلو ته تیار یم [٨] حضور ﷺ وفرمایل چې دا ځیزونه د یو درهم

[1] اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الزكاة/باب ما تجوز فيه المسألة(رقم-١٦٤١) وابن ماجة كتاب التجارات/باب بيع المزايدة(رقم-٢١٩٨) واحمد فى المسند ١١٤/٣

څخه زيات اغستونکي څوك شته ؟ حضور ﷺ داسي دوه يا دري خله وفرمايل ٩ يو سړي اوويل چې زه دا دواړه په دوه درهم اخلم حضور ﷺ هغه دواړه څيزونه هغه ته ورکړل ١٠ د هغه څخه يې دوه درهمه واخستل او انصاري ته يې ورکړل.

١ وَقَالَ: "اشْتَرِ بِأَحَدِهِمَا طَعَامًا، فَانْبِذْهُ إِلَى أَهْلِكَ ٢ وَاشْتَرِ بِالْآخَرِ قَدُومًا، فَأْتِنِي بِهِ" ٣ فَأَتَاهُ بِهِ، فَشَدَّ فِيهِ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عُودًا بِيَدِهِ، ٤ ثُمَّ قَالَ: "اذْهَبْ، فَاحْتَطِبْ، وَبِعْ، ٥ وَلَا أَرَيَنَّكَ خَمْسَةَ عَشَرَ يَوْمًا" ٦ فَذَهَبَ الرَّجُلُ يَحْتَطِبُ وَيَبِيعُ، ٧ فَجَاءَهُ، وَقَدْ أَصَابَ عَشْرَةَ دَرَاهِمَ ٨ فَاشْتَرَى بِبَعْضِهَا ثَوْبًا وَبِبَعْضِهَا طَعَامًا،

**ترجمه:** ١ او هغه ته يې وفرمايل چې په دې کې په يو درهم د خوراك سامان اغستلو سره خپل کور والاته يې ورکړه ٢ او په دويم درهم تبر واخله او ماته يې راوړه ٣ هغه سړي تبر واغستلو او حضور ﷺ ته يې راوړو حضور ﷺ په هغه تبر کې پخپل لاس مبارك سره د يو مضبوط لرګي لاستي ولګولو ٤ بيا هغه ته يې وفرمايل چې دا واخله څه لرګي پرېکولو سره جمع کوه او خرڅوه يې ٥ اوس د دې څخه روسته چې پنځلس ورځې زه دلته تا ونه وينم (يعني اوس دلته مه پاتې کيږه په خپل کار کې مشغول شه او محنت کوه)٦ نو هغه سړي لاړلو لرګي يې جمع کول او خرڅول يې ٧ څه ورځې وروسته چې هغه د حضور ﷺ په خدمت کې حاضر شو نو مخکې چې د غوښتلو د پاره راغلي وو اوس هغه د لس درهم مالك وو٨ هغه په هغه درهمو کې په څه کپړه او په څه غله واغستله

١ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - : "هَذَا خَيْرٌ لَكَ مِنْ أَنْ تَجِيءَ الْمَسْأَلَةُ نُكْتَةً فِي وَجْهِكَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، ٢ إِنَّ الْمَسْأَلَةَ لَا تَصْلُحُ إِلَّا لِثَلَاثَةٍ: ٣ لِذِي فَقْرٍ مُدْقِعٍ، ٤ أَوْ لِذِي غُرْمٍ مُفْظِعٍ، ٥ أَوْ لِذِي دَمٍ مُوجِعٍ". ٦ رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَرَوَى ابْنُ مَاجَهْ إِلَى قَوْلِهِ: "يَوْمَ الْقِيَامَةِ".

**ترجمه:** ١ حضور ﷺ د هغه په حالت کې تبديلي ليدو سره وفرمايل چې دا صورت حال ستا د پاره ښه دي په نسبت د دې چې صبا د قيامت په ورځ ته په داسې حالت کې راشې چې ستا سوال ستا په مخ د خرابې نښې (يعني د زخم په صورت کې) وي ٢ او ياد لره چې صرف دري قسمه خلقو له سوال کول مناسب دي ٣ ① يو د هغه محتاج د پاره چې مفلسئ په زمکه راغورځولي وي ٤ ② دويم د هغه قرضداري د پاره چې درونډ او د عدم ادائيګي په صورت کې د ذليل کونکي قرض د بوج لاندې (دباو شوي) راغلي وي ٥ ③ او دريم د صاحب خون د پاره چې درد ورسوي (يعنى د هغه سړي د پاره چې په هغه ديت واجب وي خواه که هغه خپله د چا خون کړي وي او د هغې خون بها د هغه په ذمه وي يا يو بل سړي څه خون کړي وي او ده د هغه ديت په خپله ذمه اخستې وي خو د هغې د ادائيګي قدرت نه لري نو د هغه د پاره هم جائز دي چې د هغه خون بها په قدر د چا څخه غوښتلو سره ادائيګي وکړيا ، ٦ ابوداؤد او ابن ماجه دا روايت تر يَوْمَ الْقِيَامَةِ پورې نقل کړي دي.

**حل اللغات:** - ① حِلْسٌ : كِسَاءٌ غَلِيظٌ: پير څادر ، ټاټ، ② نَبْسُطُ : خوروو ئې په زمکه، ③ قَعْبٌ: أَي: قَدَحٌ: پيالې ته وائي. ④ فَانْبِذْهُ: أَي: اطْرَحْهُ: اوغورزوه، ⑤ قَدُومًا: أَي: فَأْسًا: تبر او تيشې ته وائي. ⑥ فَشَدَّ: مضبوط ئې کړو، ⑦ عُودًا: لرګي، لاسکې، ⑧ فَاحْتَطِبْ: أَي: اطْلُبِ الْحَطَبَ: يعنى لرګى راجمع کوه او

راوړه، ⑨ نُكْتَةٌ: أَيْ: عَلَامَةٌ قَبِيحَةٌ: بدنبکاریدونکې اورسوا کونکې داغ به وی. ⑩ مُدْقِعٍ: أَيْ: شَدِيدٍ: ډير زیات قرض چه په زمکه ئې راسملولې وی یعنی بر داشت کولې ئې نه شی. ⑪ غُرْمٍ: قرض ته هم وائی اود څه وجې نه تاوان برداشت کولوته هم وائی. ⑫ مُفْظِعٍ: أَيْ: شَنِيعٍ مُثْقَالٍ: ډير خراب او درونډ قرض وی چه سړې د ویرې سره مخامخ کوی یعنی تباه کونکې قرض وی. ⑬ ذِي دَمٍ: دخون بها دیت که خپله ئې کړې وی اوکه دبل چا ذمه واری ئې اخستې وی. ⑭ مُوجِعٍ: أَيْ: مُؤْلِمٍ: درد او تکلیف رسونکې.

**تسهیلات:**

**قوله: مُفْظِعٍ:**

یعنی چه چا قتل کړې وی دهغه د وینې قیمت چا په خپله ذمه باندې اخستې وی اواوس ئې پوره کولې نه شی دَدې د وجې نه په تکلیف کښې وی نوهغه سوال کولې شی دې د پاره چه د وینې د قیمت هغه پیسې اداکړې شی. موجع: د وجع نه د درد په معنی کښې دې.

**[١٨٥٢] صرف الله تعالی څخه خپل حاجت بیانول**

١٨٥٢ - (ﺂ) [١٦] ﴿١﴾ وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ﴿٢﴾ "«مَنْ أَصَابَتْهُ فَاقَةٌ، ﴿٣﴾ فَأَنْزَلَهَا بِالنَّاسِ لَمْ تُسَدَّ فَاقَتُهُ، ﴿٤﴾ وَمَنْ أَنْزَلَهَا بِاللهِ أَوْشَكَ اللهُ لَهُ بِالْغِنَاءِ، ﴿٥﴾ إِمَّا بِمَوْتٍ عَاجِلٍ، ﴿٦﴾ أَوْ غِنًى آجِلٍ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ﴿١﴾ ابن مسعود رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ﴿٢﴾ كوم سړي چې د فاقې (يعني سخت حاجت) سره مخ شي ﴿٣﴾ او هغه د خلقو په مخكې (په طور د شكايت) بيانولو سره د هغوئ څخه د حاجت روايي خواهش وكړي نو د هغه حاجت به نه پوره كيږي ﴿٤﴾ او كوم سړي چې يواځې خپل الله جل جلاله ته خپل حاجت بيان كړي نو الله جل جلاله به هغه ته زر فائده او اطمينان وركړي ﴿٥﴾ په دي طور چې هغه ته به زر مرګ راولي (چې د دنيا د مشقتونو او تكليفونو څخه نجات موندلو سره د الله تعالى د رحمت سره يو ځاي شي) ﴿٦﴾ يا هغه به په څو ورځو كې مالدار جوړ كړي چې خپل حاجت پوره كولو سره اطمينان محسوس كړي. (ابوداؤد ترمذي)

**حل اللغات:** - ① فَاقَةٌ: أَيْ: حَاجَةٌ شَدِيدَةٌ: سخت حاجت اوضرورت ،تنګسيا او محتاجي، ② أَوْشَكَ: أَيْ: أَسْرَعَ وَعَجَّلَ: ډير زر او نژدې.

**تسهیلات:**

**قوله: وَمَنْ أَنْزَلَهَا بِاللهِ**

**د الله تعالى څخه د ويرې فائده:** - څوك چې د الله ﷻ څخه ويريږي نو الله ﷻ دهغه دپاره د وتلو ځائې پيداكوی او هغه ته دداسې ځائې څخه رزق وركوی چې دهغه په وهم وګمان كښې هم نه وی او څوك چې په الله ﷻ باندې بهروسه ساتی نو الله ﷻ هغه له كافی كيږی.

(١) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الزكاة /باب فى الاستعفاف(رقم-١٦٤٥) والترمذى كتاب الزهد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى الهم فى الدنيا وحبها(رقم-٢٣٢٦) واحمد فى المسند ٤٠٧/١

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [١٨٥٣] دَ مجبورئی په وخت د نیکانو څخه سوال کول

١٨٥٣ـ(١)[١٧] [١] عَنِ ابْنِ الْفِرَاسِيِّ، أَنَّ الْفِرَاسِيَّ قَالَ: قُلْتُ لِرَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] «أَسْأَلُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ؟ [٣] فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " لَا وَإِنْ كُنْتَ لَا بُدَّ، فَسَلِ الصَّالِحِينَ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [١] ابن فراسي وايي چې خما پلار بزرګوار حضرت فراسي ﷛ اوويل [٢] چې ما رسول الله ﷺ ته عرض وکړو چې يا رسول الله! ﷺ زه د خلقو څخه سوال کولې شم؟ [٣] رسول الله ﷺ وفرمايل نا (بلکه په هرحالت کې په الله ﷻ باندې بهروسه کوه) خو که د څه شديد او سخت حاجت په وجه غوښتل ضروري وي نو بيا د نيک بختو څخه يې غواړه. (ابوداؤد نسايي)

**حل اللغات:** - ① لَا بُدَّ: أَيْ: أَلْبَتَّةَ وَلَا مَحَالَةَ، که خامخا ضروري وي.

**تسهیلات:**

**قوله:** فَسَلِ الصَّالِحِينَ:

**د نيکانو څخه د سوال کولو فائدې:** - دې نه نيکان صالحان اوخيرخواه خلق مراددی که چرې يوسړې مجبورشو اودَ مجبورئی دَ وجې نه هغه دَنيکانوخلقونه پيسې اوغواړی. ① دانيک سړې به دغه سوال کونکې رسوا کوی نه او په حلال ګته سره به ئی امداد کوی.

② هغه به مسلسل دَ دغه مجبوردَپاره دَ وسعت دعا کوی.

**دامام احمد بن حنبل او دهغوی د څوی سخاوت:** - ملاعلی قاری ﷫ ليکلی دی دَ بغداد فقراء به دَ امام احمدبن حنبل ﷫ نه سوال کولو. دَ امام احمد ﷫ دَ څوئی دا حالت وو چه هغه به دَ محتاجودَ سهولت دَپاره به دَ کور دروازې سره اوده کيدو.

### [١٨٥٤] د بيت المال څخه د کار د اجرت اخستلو جواز

١٨٥٤ـ(٢)[١٨] [١] «وَعَنِ ابْنِ السَّاعِدِيِّ، قَالَ: [٢] اسْتَعْمَلَنِي عُمَرُ عَلَى الصَّدَقَةِ، [٣] فَلَمَّا فَرَغْتُ مِنْهَا، وَأَدَّيْتُهَا إِلَيْهِ، أَمَرَ لِي بِعُمَالَةٍ، [٤] فَقُلْتُ: إِنَّمَا عَمِلْتُ لِلّٰهِ، وَأَجْرِي عَلَى اللّٰهِ، [٥] قَالَ: خُذْ مَا أُعْطِيتَ، [٦] فَإِنِّي قَدْ عَمِلْتُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَعَمَّلَنِي، فَقُلْتُ مِثْلَ قَوْلِكَ، [٧] فَقَالَ لِي رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " إِذَا أُعْطِيتَ شَيْئًا مِنْ غَيْرِ أَنْ تَسْأَلَهُ، فَكُلْ وَتَصَدَّقْ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] ابن ساعدي وايي [٢] چې اميرالمؤمنين حضرت عمر فاروق ﷛ زه د زکات په وصولولو باندې مقرر کړم [٣] کوم وخت چې زه د زکات د وصولولو څخه فارغه شوم او د زکات مال مې د حضرت عمر ﷛ په خدمت کې ورسولو نو ماته د زکات د وصولولو د

---

[١] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الزکاة/باب فی الاستعفاف(رقم-١٦٤٥) والنسائی کتاب الزکاة/باب سؤال الصالحين(رقم-٢٥٨٧) واحمد فی المسند ٤/ ٣٣٤

[٢] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الزکاة/باب فی الاستعفاف(رقم-١٦٤٧)

اجرت راکولو حکم یې اوکړه [۴] ما عرض وکړو چې ما دا کار یواځې د الله ﷻ د رضا حاصلولو د پاره کړي دي نو زما د پاره د دې ثواب هم د الله ﷻ په ذمه دي [۵] حضرت عمر ﷜ وفرمایل چې کوم شې تا ته درکول کیږي هغه قبول کړه [۶] څکه چې د رسول الله ﷺ په زمانه مبارکه کې ما د زکات وصولولو کار اوکړو او حضور ﷺ ماته عطا کول وغوښتل نو ماهم دغه شان عرض وکړو کوم چې اوس یې ته کوې [۷] نو حضور ﷺ ماته وفرمایل چې هر کله څه شي تا ته بغير د طلب او بغير د طمع درکول شي نو ته هغه اخستو سره خوره «چیزي که بي سوال رسد داده خدا است» او [څه چې ستا د ضرورت څخه زیات وي هغه د الله ﷻ په لار کې] خیرات کړه. «ابوداؤد»

**حل اللغات:-** ① اسْتَعْمَلَنِي: أَيْ: جَعَلَنِي عَامِلًا: عامل نې جوړ کړم یعنې په زکوة راټولولو نې مقرر کړم. ② الصَّدَقَةِ: زکوة ته وائی. ③ بِعُمَالَةٍ: أُجْرَةُ الْعَمَلِ: د زکوة راټولولو مزدوری، معاوضه.

**تسهيلات:**

**قوله:** فَقُلْتُ: إِنَّمَا عَمِلْتُ لِلّٰهِ، وَأَجْرِي عَلَى اللّٰهِ:

**په دینی کار باندې د تنخواه اخستلو ثبوت:-** د دې حدیث پاك څخه معلومه شوه چې دخپل هر یو کار او هر یو خدمت اجرت دبیت المال څخه اخستل جائز دی هغه خدمت دې فرض ولې نه وی لکه قضاء احتساب اودرس وتدریس وغیره بلکه امام وقت دپاره ضروری دی چې هغه دې نه صرف دداسې خلقو بلکه هغه خلق کوم چې د بیت المال په معامله کښې دده په حکم کښې شامل دی د هغوئ هم خیر خبر اخلی

**بغیر طمعې دڅه څیز په قبلولو کښې اختلاف:-** دا حدیث مبارك او د دې مخکښې تیر شوي حدیث چې د حضرت عمرفاروق ﷛ باره کښې دې په ظاهره په دې دلالت کوی چې که یو کس چا ته دهغه د طمعې او لالچ څخه بغیر څه څیز ورکړی نو د دې قبلول واجب دې دامام احمد بن حنبل هم دا مذهب دې. خو جمهوردا په استحباب او اباحت باندې حمل کوی.

**[۱۸۵۵] په مقدسو مقاماتو کښې د سوال کولو څخه پرهیز کول**

۱۸۵۵-()[۱۹] [۱] وَعَنْ عَلِيٍّ، أَنَّهُ سَمِعَ يَوْمَ عَرَفَةَ رَجُلًا يَسْأَلُ النَّاسَ، [۲] فَقَالَ: أَفِي هٰذَا الْيَوْمِ وَفِي هٰذَا الْمَكَانِ تَسْأَلُ مِنْ غَيْرِ اللّٰهِ؟ [۳] فَخَفَقَهُ بِالدِّرَّةِ. رَوَاهُ رَزِينٌ.

**ترجمه:** [۱] د حضرت علي کرم الله وجهه په باره کې منقول دي چې هغه د عرفې په ورځ یو سړي د خلقو څخه په سوال کولو ولیدلو [۲] نو هغه ته یې وفرمایل چې اي بدنصیبه نن او په دي ځای ته د الله ﷻ څخه علاوه د نورو خلقو څخه سوال کوي [۳] بیا هغه سړي یې په دوره ووهلو. «زرین»

**حل اللغات:-** ① فَخَفَقَهُ: أَيْ: ضَرَبَهُ: اونې وهلو. ② الدِّرَّةِ: کوره.

[۱] اخرجه رزين

**تسهيلات:**

**قوله : فَخَفَقَهُ بِالدِّرَّةِ:**

**د حضرت علی رضی الله سوال کولکی لره د وهلو وجه:-** حضرت علی رضي الله عنه هغه سړي څکه په کوړه اووهلو چه هغه بې همته دَ عرفات په میدان کښې الله تعالی پریخودو او دَ خلقو نه به ئې غوښتل کول. دې نه معلومه شوه چه دَ حرمین شریفین جماتونه او په مقدس مقاماتو کښې صرف دَ الله تعالی نه سوال کول پکاردی. دَ دعا دَ قبلیدو په موقع باندې دَ غیر الله نه غوښتل څومره خرابه خبره ده.

**د بهاؤ الدین رحمه الله عجیبه حکایت:-** ملاعلی قاری رحمه الله لیکی چه شیخ بهاؤالدین نقشبندی رحمه الله حج دَ پاره لاړو. چا دَ هغوی نه پوښتنه اوکړه چه دَ حج په سفر کښې تاسو کومه یوه عجیبه خبره اولیدله؟ وئې فرمائیل ما په منٰی کښې یو ځوان هلك اولیدلو چه په خرڅولو او اخستلو کښې اخته وو خو یو شان دَالله تعالی په یاد او ذکر کښې مشغول وو. یو لمحه دَ الله تعالی نه غافل نه وو. بیا ما دَ بیت الله دَ ملتزم سره یو لوئی عالم فاضل شیخ اولیدلو چه هغه هلته دَ دنیا سوال کولو.

**د احقر شاه فیصل واقعه:-** زه یو ځل په رمضان کښې حرمینو شریفینو ته تلې وو. څو روزې مې په پاکستان کښې تیرې کړې وې دلته خو مونږ په گرمی. کښې د شربتونو عادت یو. او په حرمی مکی کښې روژه ماتې په قجورو او زمزم په اوبو باندې کیږی. خیر زه خانه کعبې ته مخامخ په مطاف کښې ناست ووم. زه چې په کوم صف کښې ناست وو د هغې څخه یو څو صفونه وړاندې یو کس شربت تقسیمولو. زما ورته ډیر زیات زړه اوشو. نو دالله تعالی څخه مې سوال اوکړو. یا الله دغه شربت درڅخه نه غوارم. لنډه دا چې ماته د رارسیدو نه وړاندې هغه شربت ختم شو. کله چې د پلاسټک درستخوانونه راغونډول شروع شول. نو یو ماشوم ته یو گلاس شربت ورکړې شوې وو. خو هغوی هغه شربت اونه څکلو او روان شو. هغه ئې هلته پریخودو. ما سوچ اوکړو چې دا زما د دعا قبولیت دې. چې الله تعالی د ماشوم د شربت اشتها ختمه کړه. او شربت ئې پریخودلو. زه ورغلم او هغه شربت مې راوچت کړل او مې څکلو او په دې مې یقین نور هم زیات شو. چې دلته څوک څه سوال هم کوی الله تعالی ئې قبلوی.

**د یو نومسلم واقعه:-** شیخ فضل محمد صاحب لیکلی دی چې ،،بنده یو قاری صاحب اولیدلو چه هر کال حج او عمرې ته خی نوې مسلمان شوې نیك سړې دې هغه وائی چه ما یو ځل دَ ملتزم دَ پاسه دواړه لاسونه کیخودل او دَ مجبورئی دَ وجې نه مې دَالله تعالی نه نسوار اوغوښتل. ما اوکتل چه دوه پوړئی نسوار زما په دواړو لاسونو کښې راپریوتل ما هغه استعمال کړل او څه بزرگانو ته مې هم ورکړل،،

**[۱۸۵۶] دغیر الله څخه طمعه کول**

۱۸۵۶ —(۱)[۲۰] [۱] وَعَنْ عُمَرَ، قَالَ: تَعَلَّمُنَّ أَيُّهَا النَّاسُ [۲] أَنَّ الطَّمَعَ فَقْرٌ [۳] وَأَنَّ الإِيَاسَ غِنًى، [۴] وَأَنَّ الْمَرْءَ إِذَا يَئِسَ عَنْ شَيْءٍ اِسْتَغْنَى عَنْهُ. رَوَاهُ رَزِينٌ.

**ترجمه:** [۱] د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه په باره کې منقول دي چې خلق مخاطب کولو سره یې ورته وفرمایل اې خلقو پوهه شي [۲] طمع محتاجي ده [۳] او د خلقو څخه نا امیده کېدل توانګري اوبې پروايي ده [۴] انسان چې کله د یوشي څخه نا امیده شي نودهغه څخه بې پروا شي. (رزین)

**حل اللغات:-** ① الإِيَاسَ: نا أمیدی، ② اسْتَغْنَى: بې پرواه کېږی.

**تسهیلات: قوله: أَنَّ الطَّمَعَ فَقْرٌ:**

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:-**

① طمع محتاجی ده ددې یومطلب دادې چې دا د محتاجۍ یو صورت دې

② طمع د محتاجۍ ذریعه ده یعنی د طمعې په وجه انسان محتاج جوړیږی هغه داسې چې دخپلې طمعې پورا کولو دپاره د نورو څخه سوال کوی او ددې نه دده محتاجی ظاهریږی

**قوله: وَأَنَّ الإِيَاسَ غِنًى:**

**په نااميده کيدو د غنا اطلاق:-** نا امیدی دغنی کیدو سبب دې ددې مطلب دادې چې د انسان نه نااميدی مستغنی اوبې پرواه جوړوی کله چې یو کس ته د یو څیز د ملاویدو امید نه وی نو دهغې د اخستلو کوشش به نه کوی هرکله چې کوشش نه کوی نو هم دا دده غنا ده د یو انسان نه نااميدی د دوؤ راحتونو نه یو راحت دې ابوالحسن شازلی رحمه الله نه چا د کیماء په باره کښې تپوس اوکړو نو وې فرمائیل چې مخلوق خدا نه نظر واړوه او څه چې ستاپه مقدر کښې لیکلې شوی دی د هغې نه علاوه د نورو څیزونو نه امید منقطع کړه هم داکیماء ده. (مرقاة ج/۴ ص/۱۸۳).

**[۱۸۵۷] دَسوال نه کونکودَپاره بشارت**

۱۸۵۷ —(۲)[۲۱] [۱] وَعَنْ ثَوْبَانَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] "«مَنْ يَكْفُلُ لِي أَنْ لَا يَسْأَلَ النَّاسَ شَيْئًا فَأَتَكَفَّلَ لَهُ بِالْجَنَّةِ" [۳] فَقَالَ ثَوْبَانُ: أَنَا، فَكَانَ لَا يَسْأَلُ أَحَدًا شَيْئًا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ثوبان رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل [۲] کوم سړي چې ما سره د دې خبري عهد وکړي چې هغه به د خلقو څخه سوال نه کوي نو زه د هغه د پاره د جنت ضامن یم [۳] (ثوبان رضي الله عنه وايي چه) ما وعده وکړه چې زه به هیڅ کله د چا په مخکې لاس نه غزوم نو ثوبان رضي الله عنه به د هیچا مخکې لاس نه غزولو (خواه هغه به په هر څومره تنګسیا کې مبتلا ولي نه وو. (ابوداؤد نسايي)

**حل اللغات:-** ① مَنْ يَكْفُلُ: أَيْ: مَنْ يَضْمَنُ: ضمانت، ذمه واری،

---

[۱] اخرجه رزین

[۲] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الزکاة/باب کراهیة المسألة(رقم-۱۶۴۳) واحمد فی المسند ۲۷۵/۵

**تسهيلات:**

**قوله :عَنْ ثَوْبَانَ**

**د ثوبان مصداق:-** دده څخه مراد ثوبان ابن وجد دې او دده کنیت ابو عبدالله یا عبدالرحمن دې دې د مکې او یمن د مینځ نه قیدی جوړ شوی او راغلې وو او حضرت رسول کریم ﷺ دې اخستې وو دې د حضرت رسول کریم ﷺ د حضراوسفر ملګرې وو تر دې چې کله حضرت رسول کریم ﷺ وفات شو نو دې شام ته لاړو اورمله کښې ئې قیام اوکړو او بیا حمص ته لاړو او هم هغه ځائې کښې د څلورپنځوسو کالو په عمر وفات شو

**په څپله وعده قائم پاتې کیدل:-** خلقو ته لاس نه نیولو متعلق چې ده څخه کومه وعده اخستې شوې وه هغې کښې دې هم شریك وو ده تر آخری ژوند پورې سوال او نه کړو په دې کښې دې طرفته اشاره ده چې د سوال نه کولو والاخاتمه بۀ بالخیر کیږی

**دسوال کولواستثنائی صورت:-** د غوښتلو یوصورت مستثنی دې چې کله سړې مضطر وی نو بیا غوښتلې شی ځکه چې اصول دادی (الضرورات تبیح المحظورات) هم په دې وجه ځینې حضراتو وئیلی دی چې که څوك مضطر وی اودسوال کولونه بغیر مړ شی نو نافرمان مړ شو

**[١٨٥٨] د چاڅخه د سوال نه کولو حکم**

١٨٥٨—()[٢٢] [١] «وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ: دَعَانِي رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٢] وَهُوَ يَشْتَرِطُ عَلَيَّ أَنْ لَا تَسْأَلَ النَّاسَ شَيْئًا، قُلْتُ: نَعَمْ، [٣] قَالَ: "وَلَا سَوْطَكَ إِنْ سَقَطَ مِنْكَ حَتَّى تَنْزِلَ إِلَيْهِ فَتَأْخُذَهُ"» رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** [١] ابوذر رضی الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ زه وبللم [٢] او د دې خبرې اقرار یې را څخه واخستو چې هیڅ کله به د چا څخه څه شي نه غواړم ما د دې خبرې اقرار اوکړو [٣] بیا حضور ﷺ دا وفرمایل چې که ستا څخه کوړه هم وغورځیږي نو د چا څخه یې مه غواړه (یعني چاته د اوچتولو د پاره مه وایه) بلکه د خپلی سورلۍ څخه را خکته کیدو سره یې اوچتوه. (احمد)

**حل اللغات:-** ① سَوْطَكَ: چابک، کوړه.

**تسهيلات:**

**قوله : وَهُوَ يَشْتَرِطُ عَلَيَّ:**

**په حالت اضطراری کښې د سوال کولو وجوب:-** په اضطراری حالت کښې دَ ځان بچ کولودپاره سوال کولوسره غوښتنه کول اوځان بچ کول ضروری دی. پورته په دواړو احادیثوکښې چه د سوال نه کولوکومه خبره کړې شوې ده دادَ اضطراری حالت نه علاوه صورت دې. اضطراری حالت کښې خو "الضرورات تبیح المحظورات" باندې عمل کیږی اودَ ځان بچ کولو دَ حد پورې غوښتنه کول اودَ ذخیره کولودپاره نه.

(الحمد لله ! څلورم جلد ختم شو.)

....

(١) اخرجه احمد فی المسند: ١٨١/٥